ا

# تسهيلات

## پښتوشرح

# مشكوٰة

تاليف۔ مولاناشاه فيصل فاضل دارالعلوم اسلاميه چارسده

دولسم جلد(۱۲)

د شلو(۲۰) خصوصياتو سره چې لس(۱۰) په کښې دا دي

① پيښوری پښتو سره بين القوسين د قندهاری پښتو د ګرانو ټکو اضافه

② د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه

③ په ترجمه کښې بين القوسين د مرقاة المفاتيح داضافي قيوداتو ترجمه

④ دحديث هري جملې ته اود هغې ترجمې د آسانتيا دپاره نمبري ورکول

④ په فقهي اختلافي مسئلو کښې مدلل او آسان مباحث

⑤ د اوږدو احاديثو د متن او ترجمې تقسيم

⑥ د هرحديث د صحاح سته وغيره څخه تخريج

⑦ د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتيح څخه د مشکلو لغات حل

⑧ د قوله په عنوان سره د حديث د هري مشکلې جملې تشريح

⑨ د هرباب په اول کښې د هغې د احاديثو خلاصه

⑩ د کتاب په اول کښې د علوم الحديث مفيده مقدمه

خورنکی

فيصل کتب خانه محله جنګی پيښور

موبائل ۰۳۱۵-۹۵۹۵۷۱۷

# اجمالی فہرست

# د احادیثو د عنوانانو فهرست

# [۴] بَابُ الْمَبْعَثِ وَبَدْءِ الْوَحْيِ ]

## بعثت نبوی او دَ وحی دَ نازلیدلو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه اربعة عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① وقت البعث: ۱۔

② بدء الوحي : ۲، ۵، ۶، ۱۴۔

③ وقت موت النبي ﷺ : ۱، ۳، ۴۔

④ تحمل الشدائد في تبليغ القران: ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳ ۔

⑤ تحمل المشقة في نزول الوحي : ۷، ۸۔

**دترجمة الباب د اجزاء تسهيل:**

**قوله:** بَابُ الْمَبْعَثِ

**د بعثت دوه معانی:** ① دالفظ دَ بعث نه دي اوچتولو ژوندی کولو په معنی راځی
② د لیګلو په معنی کښې راځی. دلته دا دویمه معنی مراد ده

**قوله:** وَبَدْءِ الْوَحْيِ

**د نبوت اعلان:** حضورپاك ته دَخلویښتو کالو په عمر کښې نبوت ملاویدلونه درې کاله پس حضور پاك صفاغر ته اوختلواو په کولاؤ الفاظو کښې دَ نبوت اعلان اوکړو دَ نبوت دیارلس کاله حضورپاك په مکه کښې تیر کړل اولس کاله په مدینه منوره کښې اوسیدلو دغه شان چه کله دَ نبوت ۲۳ کاله پوره شونو الله تعالی خپل طرف ته راؤغوښتلو او ۶۳ کالو په عمر کښې دَحضورپاك وصال اوشو.

**قوله:** الْوَحْيِ

**د وحی لغوی معنی:** هوالاشارة الخفية. یعنی په لغوی اعتبارسره وحی. رمز اومخفی اشاره اوکنایه او پټې خبرې او پیغام لیګلواو القاء اوالهام ته ونیلی شی

**د وحی اصطلاحی تعریف:** ملاعلی قاری رحمه الله دَ اصطلاحی وحی تعریف داسې کړې دې.
"وشرعًاهوالاعلام بالشرع" یعنی دَ انبیاء کراموطرف ته شرعی پیغام رسولونوم وحی ده. دَ انبیاء کراموطرف ته

**د وحی حقیقت:** قرآن کریم چونکه په نبی ﷺ د وحی په ذریعه نازل شوې دې نووددې وجې د تولونه اول د وحی په باره کښې څو خبرې پیژندل ضروری دی.

**د وحی ضرورت:** هرمسلمان ته پته ده چې الله ﷻ انسان دې دنیا ته د امتحان دپاره

رالیږلې دي او په ده باندې ئې څه فرائض مقرر کړی دی. اوټول کائنات ئې دده په خدمت کښې لګیا کړی دی. نو دنیاته د راتلونه پس دانسان دپاره دوه کارونه ضروری دی. یو دا چې ددې کائناتو نه کوم چې د ده نه څلور واړه طرفونوته پراته دی. ددې نه صحیح صحیح کار واخلی. دویم دا چې دا کائنات په خپل استعمال کښې راولی. او چې دالله ﷻ داحکامو خیال په کښې اوساتی. او داسې څه حرکت اونکړی. چې دالله ﷻ د رضا خلاف وی.

**دعلم ضرورت:** ددې دواړوکارونو دپاره ده ته د علم ضرورت دې ځکه چې ترتر څور پورې ده ته دا معلومه نه وی. چې ددې کائناتو حقیقت څه دې؟ددې دفلانی څیزخواص څه دی؟ددې نه څنګه فائده اخستلې شی. نوترهغه وخته پورې دې د دنیا هیڅ یوڅیزدخپلې فائدې دپاره نشی استعمالولې.دغه شان چې تر څور پورې ده ته دا معلومه نه وی. چې دالله ﷻ رضا څه ده؟هغه کوم کارونه خوښوی.؟ او کوم کارونه نه خوښوی؟ ترهغه وخته پورې د هغه دپاره دالله ﷻ د رضا مطابق اوسیدل ممکن نه دی.

**دعلم د تحصیل درې ذرائع:** نوالله ﷻ دانسان پیدا کولو سره سره درې څیزونه داسې پیدا کړی دی چې دهغې په ذریعه ده ته دپورتنو خبرو علم کیدیشی. [چې دکائناتو نه به څنګه فائده اخلی. اودالله ﷻ د رضا حصول به څنګه کوی؟ [ازمترجم]

① یو دانسان حواس یعنی سترګې غوږونه، پوزه،خوله اولاسونه پښې ② دویم عقل ③ او دریم وحی. انسان ته زیاتې خبرې دخپلو حواسو په ذریعه معلومیږی. او ډیرې دعقل په ذریعه اوکومې خبرې چې په دې دواړو ذرائعو باندې نشی معلومې دې. نو د هغې علم د وحی په ذریعه باندې ورکولې شی.

**دعلم په ذرائعو کښې ترتیب:** دعلم په دې دریو ذرائعو کښې ترتیب څه داسې دے چې د هر یو خپل حد اومخصوص دائره کار دې چې دهغې نه وراندې کار نه کوی. نو کوم څیزونه چې انسان ته دحواسو په ذریعه معلومیږی. دهغې علم صرف دعقل په ذریعه نشی معلومیدې مثلا اوس ماته مخامخ یوانسان ناست دې ماته دخپلو سترګو په ذریعه دا معلومه شوه.چې دا انسان دې هم سترګو ماته دا اوخودلو.چې دده رنګ بادامی دې اوتن دا یې پلن دې ویخ ته یې تور دی. شونډې ئې نرئ دی. اومخ ئې کتابی دې لیکن که هم دا خبرې زه خپل حواس بیکاره کړم.او دعقل په ذریعه معلومول غواړم.مثلا چې سترګې بندې کړم.او دا اوغواړم.چې ددې انسان رنګ اودده داندامونو صحیح صحیح جوړخت څنګه دې؟ او دده د سر نه تر پښو پورې صحیح شکل ماته صرف په خپل عقل سره شی معلوم شی. نودا ناممکنه ده.

**د عقل دائره کار:** دغه شان چې د کوموڅیزونوعلم په عقل سره حاصلیدې شی.نو هغه

صرف په حواسو نه معلومیږي. مثلا ددغه کس په باره کښې ماته دا هم معلومه ده.چې د ده به خامخا مور هم وي. دغه شان راته هم علم دې چې دې به چا پیدا کړې وي. اګرچې په هغه وخت کښې نه دهغه مور ماته مخامخ شته.او نه دهغه پیدا کونکې زه وینم.لیکن زما عقل دا ښائي.چې داکس په خپله نشي پیداکیدې.اوس که داعلم دعقل په ځائې دخپلو سترګو په ذریعه حاصلول غواړم.نودا ممکن نه ده.ځکه چې دهغه دتخلیق او پیدائش منظرزما د سترګو وړاندې نه دې. غرض دا چې ترکومې پورې د حواس خمسه تعلق دې هلته عقل څه راهنمائي نه کوي. اوپه کوم ځائې کښې چې حواس خمسه بې کاره شي. نوهلته کښې عقل کار شروع کړي. لیکن ددې عقل راهنمائي هم غیر محدود نه ده.بلکه دا هم چې یو ځائې ته لاړ شي. اواودریږي.

**د وحی دائره کار:** ډیرې خبرې داسې دی چې نه هغه دحواسو په ذریعه حاصلیدې شي. اونه دعقل په ذریعه.مثلا ددغه کس په باره کښې خو عقل دا اوخودل. چې دے چا پیدا کړیدې لیکن دا سړې یې ولې پیدا کړیدې په ده باندې دالله ﷻ د طرف نه څه فرائض دی؟ دده کوم کار دالله ﷻ خوښ دې اوکوم کار یې ناخوښه دې. دا سوالونه داسې دی. که عقل او حواس یوځائې شي. نوهم ددې جواب نشي ورکولې. انسان ته ددې سوالاتو دجوابونودپاره چې الله ﷻ کومه ذریعه پیدا کړې ده.د هغې نوم "وحی" دې.

او ددې طریقه دا وی چه الله تعالی په خپلو بندګانو کښې څوك منتخب کوی او خپل پیغمبر ئې ګرځوی او په هغه باندې خپل کلام نازلوی، هم دې کلام ته ''وحی،، وائی

**د علم په ذرائعو کښې د وحی عظمت:** ددې نه معلومه شوه.چې وحی د انسان دپاره هغه اوچته ذریعه دعلم ده.چې ده ته دده د ژوند متعلق د هغه سوالونو جوابونه ورکوي. چې هغه د عقل او حواسو په ذریعه نشی حل کیدې. لیکن دهغې علم حاصلول د ده دپاره ضروری دی. د پورتنی وضاحت نه دا هم معلومه شوه.چې صرف عقل او مشاهده د انسانی رهنمائې دپاره کافی نه ده.بلکه دده د هدایت دپاره دالله ﷻ وحی یو اهم ضرورت دې اوچونکه بنیادی طور د وحی ضرورت په هغه ځائې کښې راځی. په کوم ځائې کښې چې عقل کار نه کوی. نوځکه دا ضروری نه ده.چې دوحی دهرې خبرې ادراك دې په عقل سره اوشی. لکه څنګه چې د یوځیز رنګ معلومول د عقل کار نه دې. بلکه دحواسوکار دې. دغه شان د ډیرو دینی معتقداتو علم حاصلول دعقل په ځائې د وحی منصب دې. اودهغې د ادراك دپاره صرف په عقل باندې بهروسه کول ټیك نه دی.[1]

---

[1] دلته کښې د وحی ضرورت ته ډیر اجمالی اشارې اوشوې. په دې موضوع باندې دتفصیلی بحث دپاره "تمهید ابی شکورسالملی رحمه الله صفحات ۶۸ تا ۷۲ اود مولانا شمس الحق افغانی رحمه الله کتاب "علوم القرآن" صفحات ۳ تا ۱۸ مطبوعه اداره مطبعه فاروقیه بهاولپور کال ۱۳۸۹هجری اوګورئ.

او معاذالله هغه ماده پرستو خلقو چې هغوی د سر نه د الله ﷻ د وجود نه منکر دی. هغوی سره خو د وحی په مسئله باندې خبرې کول بالکل فضول دی. ځکه څوك چې دالله ﷻ د وجود نه منکر وی. نو دهغه دپاره ممکن نه دی.چې هغه د وحی په حقیقت په کهولاو زړه سره غور اوکړی. اوپه سراو سترګو دا تسلیم کړی. هغه سره خو د ټولو نه وړاندې د الله ﷻ په وجود باندې دخبرو کولو ضرورت دې. باقی پاتې شوهغه کسان چې د الله ﷻ د وجود قائل دی. نو دهغوی دپاره دوحی عقلی ضرورت ،دې امکان اوددې حقیقی وجود پیژندل څه ګران نه دی.

**د عاقل فعل د حکمت نه خالی نه وی :** که ته دا یقین ساتې.چې دا کائنات یو قادر مطلق پیدا کړی دی.او هم هغه دا مربوط اومستحکم نظام په خپل حکمت بالغه سره چلوی. اوهم هغه انسان د یو خاص مقصد دپاره دلته رالیږلې دې. نوبیا دا څنګه ممکن ده.چې انسان به یې پیدا کړی وی. او داسې به یې په تیارهٔ کښې پریخې وی. اوهغه ته به دومره قدرې نه ښائی. چې دې دڅه دپاره دے دنیا ته راغلې دې؟ دلته کښې دده څه ذمه وارئ دی. اودده څه منزل مقصود دې. او دې به څنګه خپل ژوند تیروی. آیا یوکس چې عقل اوحواس ئې کار کوی. داسې کولې شی. چې د څه خاص مقصد دپاره خپل نوکر په سفر باندې اولیږی. او هغه ته نه په سفر د روانیدو په وخت کښې د سفر مقصد اوښائی. او نه بیا روستو په څه ذریعه هغه خبر کړی. چې دې د څه کار دپاره لیږلې شوې دې او دسفر په دوران کښې به دده ذمه واری څه وی؟کله چې یو معمولی انسان داسې حرکت نشی کولې.نو بیا د هغه پاك ذات په باره کښې دا تصور څنګه کیدیشی. چې دهغه په حکمت بالغه د کائناتو دا ټول نظام چلیږی. آخر دا څنګه ممکن ده.چې کوم ذات سپوږمئ. نمر آسمان. زمکه. ستوری او د سیارو دا عقل حیرانونکې نظام پیدا کړېدې. هغه به خپلو بندګانو ته د پیغام رالیږلو داسې څه انتظام نشی کولې چې دهغې په ذریعه انسانانو ته دهغوی د ژوند دمقصد په باره کښې هدایات ورکړی. که د الله ﷻ په حکمت بالغه باندې ایمان وی. نوبیا به دا منل هم ضروری وی. چې هغه خپل بندګان په تیارهٔ کښې نه دی پریخی. بلکه د هغوی د لار خودلو دپاره به یې څه باقاعده نظام ضرور جوړ کړې وی. بس د لار خودلو ددې باقاعده نظام نوم وحی او رسالت دې

**عدم مشاهده دلیل د عدم وجود نه دې؛** ددې نه ښکاره ثابته شوه. چې "وحی " صرف دینی اعتقاد نه دې .بلکه یو عقلی ضروت دې ددې نه انکار په حقیقت کښې د الله ﷻ د حکمت بالغه نه انکار دې.

**په نبی ﷺ دوحی طریقې:**① د وحی او رسالت دا مقدّسه سلسله د دوارو جهانونو په سردار محمد مصطفی ﷺ باندې ختمه شوه، اوس به نه په یو انسان باندی وحی نازلیږی

او نه ددې ضرورت شته.

په نبی ﷺ هم په مختلفو طريقو وحی نازله شوې ده. دصحيح بخاری په يو حديث کښې حضرت عائشه ﷴ فرمائی. چې يوځل حضرت حارث بن هشام [۱] د نبی ﷺ نه تپوس اوکړلو چې په تاسو به وحی څنګه راتله؟ نونبی ﷺ اوفرمائيل: [أحيانا يأتيني مثل صلصلة الجرس وهوأشده علي فيفصم عني وقد وعيت ما قال وأحيانا يتمثل لي الملك رجلا] [۲] کله خو به ماته د تلې آواز اوروليې شو. او د وحی دا صورت زما دپاره د ټولو نه زيات سخت وو. بيا چې کله دا سلسله ختمه شوه. نو چې څه آواز به وو. هغه به ماته ياد شوې وو. اوکله به فرښته ماته مخامخ د سړی په شکل کښې راتله. [صحيح بخاری ج۱ ص۲] ۱

په دې حديث کښې نبی کريم ﷺ د وحی آواز لره د تلې آواز سره تشبيه ورکړې ده شيخ حضرت محی الدين ابن عربی ﷫ نه ددې تشبيه کوم مطلب نقل کړېدې. هغه د ذکر شوو ټولوتوجيهاتونه زيات لطيف دې. دهغوی وينا دا ده چې دا تشبيه صرف په دوو اعتبارو سره ورکړې شوې ده. يوخو دآواز تسلسل سره وی. لکه څنګه دتلې آوازمسلسل وی. اونه اودريږی.

اودويم په دې اعتبار سره چې تلې مسلسل ټنګيږی. نو اوريدونکی ته عام طور د هغې د آواز طرف متعين کول ګران وی. ځکه چې د هغې آواز د هر طرف نه محسوسيږی. اوالله ﷻ چونکه د جهت اومکان نه پاك دې. نو ځکه د کلام الهی دا خصوصيت دے چې د هغه آواز د يوطرف نه نۀ راځی. بلکه د هرطرف نه راځی. ددې کيفيت صحيح ادراك د مشاهدې نه بغير ممکن نه دې ليکن دا خبره عامو ذهنونو ته د نزدے راوستلو دپاره ددې تشبيه نبی ﷺ د تلې د آواز سره ورکړې ده. [۳]

**د دې قسم د سختوالی وجه:** کله چه به په دې طريقه نبی عليه السلام باندې وحی نازليده نو داپه نبی ﷺ د ټولو نه زياته سخته وه. ددې سره به په نبی ﷺ زيات بوج پريوتلو [۴] حضرت عائشه ﷴ د پورتنی حديث په آخر کښې فرمائی چې [ولقد رأيته ينزل عليه الوحي في اليوم الشديد البرد فيفصم عنه وإن جبينه ليتفصد عرقا] [۵] ما د سخت ژمی په ورځ نبی ﷺ د وحی نازليدو په وخت کښې ليدلې وو. [چې په داسې يخنۍ کښې هم] چې کله به د وحی

---

[۱] حضرت حارث بن هشام ﷛ په اوچتو صحابه کراموکښې دې دمکه دفتح په موقعه يې اسلام راوړلې او په کال ۱۵هجری کښې دشام په فتح کولو کښې شهيد شوې وو. [القسطلانی: ارشادالساری ۵۷/۱ بولاق مصر کال ۱۳۲۳هجری]

[۲] صحيح بخاری ۲/۱. اصح المطابع کراچی

[۳] فيض الباری ۱۹/۱. ۲۰] قاهره کال شي ۱۳۵۷هجری]

[۴] فتح الباری [۱۶/۱] قاهره کال ۱۳۵۷هجری

[۵] صحيح بحاری [۲/۱] حديث نمبر ۳ ۰۰

سلسله ختمه شوه.نو د نبی ﷺ د تندی نه به خولے بهیدلے.په یو بل روایت کښې حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چې کله به په نبی ﷺ وحی نازلیدله.نو د نبی ﷺ ساه به بندیدله.او مخ مبارك به یې بدلیدو.اود کهجورے د شاخ پشان به زیړ شو.مخامخ غابنونه به یې د یخنۍ نه ړچیدل.او په نبی ﷺ به دومره خوله راتله.چې د هغې څاڅکی به د ملغلرو پشان څڅیدل.[۱]

**دحضرت زید بن ثابت واقعه:** دوحی په دې کیفیت کښې به بعضې وخت دومره سخت والی پیدا شو.چې نبی ﷺ به په هغه وخت کښې په کوم څاروی سور وو.نو هغه به د ډیر بوج د وجې کیناستلو.او یوځل نبی ﷺ خپل سر مبارك د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه په پتون باندې ایخودے وو.چې په دې حالت کښې د وحی نزول شروع شو.په دې باندې د حضرت زید رضی الله عنه په پتون دومره بوج پریوتلو.چې ماتیدوته نزدے وو[۲] بعضې وخت به ددې وحی معمولی معمولی آواز نوروهم اوریدلو.حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی. چې کله به په نبی ﷺ وحی نازلیدله. نود نبی ﷺ د مخ مبارك سره به د شاتو د مچو پشان بنګار اوریدے شو.[۳]

**تمثیل ملک:** ⑥ د وحی دویم صورت چې په دې حدیث کښې ئے ذکر دادې وو.چې فرښته به انسانی شکل کښې راغله.او نبی ﷺ ته به یې پیغام راوړو.په داسې موقع به اکثر حضرت جبرئیل ﷺ د مشهور صحابی حضرت دحیة کلبی رضی الله عنه په صورت کښې تشریف راوړلو. البته په بعضې وختونو کښې په نورو صورتونو کښې هم دحضرت جبرئیل ﷺ راتلل ثابت دی. بهر حال د وحی په دې صورت کښې به فرښته په انسانی شکل کښې راتله. اود وحی په دې طریقه کښې به په نبی ﷺ څه سختی نه راتله.

**دفرښتې په خپل اصلی شکل کښې راتلل:** ⑦د وحی دریم صورت دا وو.چې حضرت جبرئیل ﷺ د انسانی شکل جوړولو نه بغیر په خپل اصلی شکل کښې ښکاره کیدلو. داسې د نبی ﷺ په ټول عمر کښې درې ځله شوی وو.یوځل هغه وخت چې د نبی ﷺ په خپله د جبرئیل ﷺ په خپل اصلی شکل کښې د لیدلو خواهش کړې وو.دویم ځل په معراج کښې او دریم ځل بیخی د نبوت په ابتدائی زمانه کښې په مکه مکرمه کښې په مقام اجیاد باندې اولنۍ دوه واقعې ت خو په صحیح سند سره ثابتې شوی دی. خو آخری دریمه واقعه د سند د کمزورۍ د وجې مشکوکه ده.[۴]

[۱] السیوطی الاتقان [۴۶/۱] قاهره کال ۱۳۶۸ هجری بحواله ابن سعید
[۲] ابن قیم زاد المعاد فی هدی خیر الأنام [۱۹،۱۸/۱] الطبعة المیمنیة مصر.
[۳] ایضاً [۲۱۲/۲۰]
[۴] د تفصیل دپاره اوګورئ فتح الباری [۱۸،۱۹،۲۰/۱]

**الله تعالی سره خبري کول:** ④دوحی څلورم صورت دا وو.چې نبی ﷺ ته هم الله ﷻ سره براه راست د خبروکولوشرف حاصل شوې وو.دبیدارئ په حالت کښې دا واقعه صرف د معراج په موقعه پیشکه شوې وه.ددې نه علاوه یوځل نبی ﷺ په خوب کښې هم الله ﷻ سره خبرې کړې وې [الإتقان ۴۶/۱]

**نفث فی الروع:** ⑤د وحی پنځمه طریقه دا وه چې حضرت جبرئیل ﷺ به بغیر د څه شکل اختیارلو نه د نبی ﷺ په زړه کښې څه خبره واچوله.

دې ته په اصطلاح کښې ''نفث فی الروع،، وائی. [ایضاً]

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۵۸۳۷] نبی کریم ﷺ ته د څلوېښت کالو په عمر کښې نبوت ملاویدل**

۵۸۳۷-() [۱] ①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ ②«بُعِثَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِأَرْبَعِينَ سَنَةً ③فَمَكَثَ بِمَكَّةَ ثَلَاثَةَ عَشْرَةَ سَنَةً يُوحَى إِلَيْهِ ④ثُمَّ أُمِرَ بِالْهِجْرَةِ فَهَاجَرَ عَشْرَةَ سِنِينَ ⑤وَمَاتَ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ سَنَةً.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایي ②چه رسول الله ﷺ د څلوېښت کالو په عمر کې د رسالت منصب او نبوت باندې فائز شو ③د دې نه وروسته حضور ﷺ دیارلس کاله په مکه کې وو چې وحي به ورته کیدله ④او بیا حضور ﷺ ته د هجرت حکم وشو نو مکې نه یې هجرت وکې او لس کاله په مدینه کې وو ⑤کوم وخت چې حضور ﷺ وفات شو نو عمر مبارك يې دروشپيته کاله وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ①فَمَكَثَ: أَيْ:فَلَبِثَ: پاتې شو، وخت ئې تیرکړو.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَمَاتَ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ سَنَةً:

**د حضور پاک صلی الله علیه وسلم عمر مدت:** د نبی علیه السلام د عمر په مقدار کښې درې روایات ①په دې روایت کښې دحضورپاك مکی ژوندون ۱۳ کاله خودلې شوې دې اومدنی ژوندون لس کاله خودلې شوې دې اوپوره عمرئې ۶۳ کاله بیان کړې شوې دې دا روایت بنیادی حیثیت لری هم دې ته امام بخاری رحمه الله ترجیح ورکړې ده

② د نبی علیه السلام عمر ۶۰ کاله وو په دې کښې داسې تاویل کولې شی چې راوی د پیدائش نمکړې کال او د وفات نیمکړې کال ساقط کړی دی

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مبعث النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۸۵۱) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب کم أقام النبی صلی الله علیه وسلم بمکة والمدینة؟ (رقم-۱۱۷ - (۲۳۵۱) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۵۲)واحمد فی المسند:۳۷۱/۱

③ د نبی علیه السلام عمر ۶۵ کاله وو په دې کښې داسې تاویل کولې شی چې راوی د پیدائش نمکړې کال او د وفات نیمکړې کال پوره حساب کړې دې.

**[۵۸۳۸] د نزول وحي ابتداء**

۵۸۳۸-(¹) [۲] ①وَعَنْهُ، قَالَ «أَقَامَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمَكَّةَ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً يَسْمَعُ الصَّوْتَ② وَيَرَى الضَّوْءَ سَبْعَ سِنِينَ وَلَا يَرَى شَيْئًا③ وَثَمَانِ سِنِينَ يُوحَى إِلَيْهِ④ وَأَقَامَ بِالْمَدِينَةِ عَشْرًا وَتُوُفِّيَ⑤ وَهُوَ ابْنُ خَمْسٍ وَسِتِّينَ سَنَةً». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وایې رسول الله ﷺ ته رسالت ورکولو نه وروسته پنځلس کالو نه ابتدائې اووه کاله کې د حضرت جبرائیل علیه السلام اواز یا محمد به یې اوریدی ② او په تیارو شپوکې به یې یوه عجیبه رڼا لیدله تر اووکالو پورې ددې نه علاوه بل شی ورته په نظر نه راتلو③ بیا د دې پنځلس کالو په آخرکې د اته کاله موده کې ورباندې وحي نازلیدلې ④ ددې نه وروسته حضور ﷺ په مدینه کې لس کاله تیر کړل او کوم وخت چې وفات شو ⑤ نو عمر یې ۶۵ کاله وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① يَسْمَعُ الصَّوْتَ: أي: صَوْتَ جِبْرِيلَ: دجبرئيل علیه السلام آواز به ئې آوریدلو. ② يَرَى الضَّوْءَ: رڼا به ئې لیدله

**تسهیلات:**

**قوله: خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً:**

**د نبی علیه السلام د عمر موده:** دلته حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ حضورپاك دَ پیدائش کال دَ هجرت کال پوره پوره کال شمیرلې دې په کوم سره چه دَمکی دور نبوت موده پنځلس کاله جوړیږی په دې وجه ئې دَ حضورپاك پوره عمر ۶۵ کاله ګرځولې دې.

پورته روایت کښې دَمکی دور نبوی ژوندون ۱۳ کاله خودلې شوې دې لهذا پوره عمر ۶۳ کاله شمیرکړې شو هغه روایت راجح دې.

باقی هغه روایات په کوم کښې چه مکی دور نبوت لس کاله خودلې شوې دې هلته دَ یودهائی نه زیات ۳ کاله کسر ګنړلو سره نه دی شمیرلې شوې عرب داسې کوی. مدنی دور لس کاله باندې مشتمل دې په دې کښې اختلاف نشته دې.

**قوله: يَسْمَعُ الصَّوْتَ وَيَرَى:**

**په ابتداء کښې د فرښتو نه لیدولو حکمت:** په دې کښې حکمت دا ووکه په شروع کښې فرښته لیدلې وې نوکیدې شی چه دَوحی تحمل مشکل شوې وې لهذا اول به ورته صرف

¹) اخرجه مسلم فی كتاب الفضائل/باب كم أقام النبي صلى الله عليه وسلم بمكة والمدينة؟ (رقم-۱۲۳ - ۲۳۵۳)والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في سن النبي صلى الله عليه وسلم وابن كم كان حين مات (رقم-۳۶۵۱)واحمد في المسند:۱/۲۶۶

آواز اوریدلې کیدو او بیابه یوه رڼا ښکاریدله په دې وجه چه مخکښې وحی سره او فرښتې سره یوانس اوالفت پیداشي او بیا فرښته وحی راوړو سره راشي.

**اشکال:** په دې حدیث سره په واضحه توګه باندې معلومه شي چه په حضورپاك باندې آواز اوریدل او نور لیدلو کیفیت دنبوت ملاویدونه پس مکه مکرمه کښې ښکاره کیدلو حالانکه دوحی دملاویدلو نه پس دَدغه نور کتلو او دَ آواز اوریدلو ضرورت نه وو اونه داسې قسم واقعات ښکاره شوی دی. بیا دَدې حدیث څه مطلب دې چه تر اووه کالوپورې آوازونه راتلل؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① انوارات کتل او آوازونه اوریدلو داواقعات دَ نبوت دَزمانې نه دَمخکښې زمانې دی. تاریخي واقعات او دَاحادیثو تصریحاتونه ثابتیږی چه دَ انواراتو کتل اودَ آوازونو اوریدل دَنبوت دَ ملاویدونه دَ مخکښې دور واقعات دی. دَ زیر بحث حدیث په مقابله کښې هغه احادیث قابل ترجیح دی.

② دَ زیر بحث حدیث تعلق هغه دور سره دې په کوم کښې چه وحی منقطع شوې وه. حضورپاك به پریشانه وو. دَ انقطاع وحی هم په دغه زمانه کښې حضورپاك ته دَ تسلئ ورکولودپاره غیبی آوازونه راتلل او رڼاګانې به پرقیدلې دې دپاره چه حضورپاك خپل خان په خطره کښې وانچوی. مګر دا رڼاګانې او آوازونه مسلسل نه وو بلکه وخت په وخت او کله کله به وو اودَ اووه کالوپورې دا سلسله روانه وه. دا جواب واضح او آسان دې.

**قوله:** وَلَايَرَى شَيْئًا: دَدې مطلب دادې چه آوازونه او رڼاګانې خو وې مګر څه فرښته وغیره به نه ښکاریدله.

**[۵۸۲۹]د نبی کریم ﷺ دوفات عمر**

۵۸۲۹-(1)[۳] [۱]وَعَنْ أَنَسٍ، قَالَ [۲]«تَوَفَّاهُ اللَّهُ رَأْسَ سِتِّينَ سَنَةً.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ وایي [۲] الله ﷻ حضور ﷺ د دریو شپیته کاله عمر پوره کېدو باندې وفات کې «بخاري مسلم»

**نوټ:** د دې حدیث تسهیل د دې څخه وړاندې حدیث نمبر «۵۸۳۸» کښې تیرشوې دې.

[1] اخرجه البخاری فی کتاب اللباس/باب الجعد (رقم-۵۹۰۰) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب فی صفة النبی صلی الله علیه وسلم، ومبعثه، وسنه (رقم-۱۱۳ - (۲۳۴۷) ومالک فی الموطا فی کتاب صفة النبی صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صفة النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۱)

**[٥٨٤٠] د نبي كريم ﷺ او د خلفاء اربعه عمرونه**

٥٨٤٠-(¹) [٤] ① وَعَنْهُ قَالَ «قُبِضَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ، ② وَأَبُو بَكْرٍ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ، ③ وَعُمَرُ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ» . ④ رَوَاهُ مُسْلِمٌ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الْبُخَارِيُّ: (ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ) أَكْثَرُ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷺ وايي رسول الله ﷺ ددرو شپيتو كالوپه عمر كې وفات شو ② او د حضرت ابوبكر صديق ﷺ هم د ۶۳ كالوپه عمر كې وفات شوي دي ③ او حضرت عمر فاروق ﷺ هم ۶۳ كالوپه عمر كې په حق ورسيدي ④ (مسلم) او محمد بن اسمعيل بخاري ويلي دي چې د حضور ﷺ د عمر مبارك په باره كې زيات روايتونه د ۶۳ كالو دي.

**تسهيلات:**

**قوله: وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّينَ،**

نوټ: ددې حديث تسهيل ددې څخه وړاندې حديث نمبر (۵۸۳۸) كښې تيرشوې دې.

**[٥٨٤١] دوحي دآغاز تفصيل**

٥٨٤١-(²) [٥] ① وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ② أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْوَحْيِ الرُّؤْيَا الصَّادِقَةُ فِي النَّوْمِ، ③ فَكَانَ لَا يَرَى رُؤْيَا إِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ، ④ ثُمَّ حُبِّبَ إِلَيْهِ الْخَلَاءُ، ⑤ وَكَانَ يَخْلُو بِغَارِ حِرَاءٍ يَتَحَنَّثُ فِيهِ - ⑥ وَهُوَ التَّعَبُّدُ اللَّيَالِيَ ذَوَاتِ الْعَدَدِ - قَبْلَ أَنْ يَنْزِعَ إِلَى أَهْلِهِ، ⑦ وَيَتَزَوَّدُ لِذَلِكَ، ⑧ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى خَدِيجَةَ. فَيَتَزَوَّدُ لِمِثْلِهَا ⑨ حَتَّى جَاءَهُ الْحَقُّ وَهُوَ فِي غَارِ حِرَاءٍ،

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه ﷺ وايي ② رسول الله ﷺ باندې د وحي د نزول سلسله چې دكوم شي نه شروع شوه هغه په خوب كې د ريښتيني خوبونو په نظر راتلل وو حضور ﷺ چې به كوم خوب ليدى ③ د هغه تعبير به د ابهام او اشتباه دآميزش نه بغير داسې روښانه كيدو سره مخې ته راتلو لكه د سهار رڼا چې ښكاره وي ④ دي نه وروسته چې د نبوت د ظهور وخت شو ⑤ نوحضور ﷺ د تنهائي شوقين جوړ شو نو حضور ﷺ په غارِ حرا كې گوشه نشين شو ⑥ په دې غار كې به حضور ﷺ عبادت كوى يعنى متعدد شپې به هلته عبارت كې هغه وخت مشغول وو د څوپوري چې كور والو ته د ورتلو مېنه به يې پيدا نه شوله ⑦ حضور ﷺ به د هغه عبادت دشپو د پاره د كور نه د خوراك څكاك څيزونه وړل ⑧ او هركله چې هغه څيزونه به ختم شو نو بي بي خديجه ﷺ ته به راتلو او د راتلونكو شپو په

¹) اخرجه مسلم فى كتاب الفضائل/باب كم سن النبى صلى الله عليه وسلم يوم قبض؟ (رقم-١١٤ - (٢٣٤٨) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٦٥٣)

²) اخرجه البخارى فى كتاب بدء الوحى/كيف كان بدء الوحى إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم؟ (رقم-٣) ومسلم فى كتاب الإيمان/باب بدء الوحى إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-٢٥٢ - (١٦٠) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٦٣٢) واحمد فى المسند: ٢٣٢/٦

قدر څه ځيزونه اخستو سره به بېرته غارته تلی [داسلسله دغه شان جاري وه][۹] تردې چې د حق د ظهور وخت راغې حضور ﷺ هغه وخت هم غار حراء کې وو

**حل اللغات:-** ①فَلَقِ الصُّبْحِ: أَيْ: ضَوْءِهِ: رڼا د سحر، ②الْخَلَاءُ: أَيِ: الْخَلْوَةُ: تنهائی، په يواځې والی کښې کيناستل، گوشه نشين کيدل ③يَتَحَنَّثُ: أَيْ: يَتَعَبَّدُ: عبادت به ئې کولو(په دينی ابراهيمی سره، او تعبد ته تحنث ځکه اووئيلې شو چه تحنث په لغت کښې إِلْقَاءُ الْحِنْثِ عَنْ نَفْسِهِ ته وائی او په عبادت سره هم سړې دحنث يعنی گناه نه بچ کيږی، او بله دا چه دلته باب تفعل د سلب مأخذ دپاره دې يعنی ازالهٔ گناه او ازالهٔ گناه هم عين عبادت دې). ④ذَوَاتِ الْعَدَدِ: يعنی د شمير يو څو شپې، ⑤يَنْزِعَ: أَيِ اشْتَاقَ وَمَالَ: شوق به ئې پيدا شو، مائل به شو. ⑥يَتَزَوَّدُ: د سفر توښه، د خوراک ځکاک ځيزونه چه په گوشه نشينی کښې به په کار راتلل.

[۱]فَجَاءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ: اقْرَأْ. فَقَالَ: (مَا أَنَا بِقَارِءٍ). [۲]قَالَ: "فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدُ، [۳]ثُمَّ أَرْسَلَنِي، فَقَالَ: اقْرَأْ فَقُلْتُ: مَا أَنَا بِقَارِءٍ [۴] فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّانِيَةَ، [۵]حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدُ، ثُمَّ أَرْسَلَنِي، [۶]فَقَالَ: اقْرَأْ. فَقُلْتُ: مَا أَنَا بِقَارِءٍ. [۷]فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّالِثَةَ، [۸]حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدُ، ثُمَّ أَرْسَلَنِي، فَقَالَ: [۹]﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ -[۱۰]خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ -[۱۱]اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ -[۱۲]الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ -[۱۳]عَلَّمَ الْإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ [العلق:۱-۵].

**ترجمه:**[۱]حضور ﷺ ته فرشته يعنی جبرائيل علیه السلام او د يوه روايت مطابق اسرافيل علیه السلام راغې او هغه ورته اوويل اووئيلو حضور ﷺ جواب ورکړو ماته وئيل نه راځي [۲] حضور ﷺ فرمايي فرشتي خما دا جواب اورېدو سره زه ښه په زور سره ونيولم تردې چې ماته تکليف ورسيدي [۳] بيا فرشتي زه پرېښودم او راته يې اوويل اووئيلو ما ورته بيا اوويل زه په ويلو نه پوهېږم [۴] حضور ﷺ فرمايي فرشتي به دويم ځل زه ښه زور سره ونيولم [۵] تردې چې ماته تکليف ورسيدي بيايې زه پرېښودم [۶] او راته يې اوويل اووئيلو ما ورته بيا اوويل زه وئيل نه پېژنم [۷] فرشتي په دريم ځل زه ښه زور سره ونيولم [۸] تردې چې ماته تکليف ورسيدي بيايې زه پرېښودم او راته يې وويل: [۹] اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ الَّذِیْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ يعنی د خپل پروردگار په نوم اووايه چې هغه ته او هرشي يې پيدا کی [۱۰] انسان يې د مور په رحم کې دجم شوي وينې نه پيدا کی [۱۱] او اووايه او ستا پروردگار د ټولو نه بزرگ او برتردی [۱۲] هغه پروردگار چې هغه د قلم په ذريعه د علم تعليم ورکی [۱۳] او انسان ته يې هرهغه شی وخودی چې هغه وريانديې نه پوهېدی.

**حل اللغات:-** ⑦فَغَطَّنِي: أَيْ: عَصَرَنِي: زور ئې راکړو ماته (دا دباؤولو اوسينې سره لگولو ته وائی يعنی زور سره ئې په غيږ کښې اونيولم). ⑧الْجَهْدُ: وَهُوَ الْغَايَةُ وَالْمَشَقَّةُ: تکليف، محنت اومشقت. ⑨عَلَقٍ: چکه وينه، جم شوي وينه.

[١] فَرَجَعَ بِهَا رَسُولُ اللّٰهِ يَرْجُفُ فُؤَادُهُ، [٢] فَدَخَلَ عَلٰى خَدِيجَةَ، فَقَالَ: [٣] (زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي) [٤] فَزَمَّلُوهُ حَتّٰى ذَهَبَ عَنْهُ الرَّوْعُ، [٥] فَقَالَ لِخَدِيجَةَ وَأَخْبَرَهَا: [٦] (لَقَدْ خَشِيتُ عَلٰى نَفْسِي) [٧] فَقَالَتْ خَدِيجَةُ: كَلَّا، وَاللّٰهِ لَا يُخْزِيكَ اللّٰهُ أَبَدًا، [٨] إِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ، [٩] وَتَصْدُقُ الْحَدِيثَ، [١٠] وَتَحْمِلُ الْكَلَّ، [١١] وَتَكْسِبُ الْمَعْدُومَ، [١٢] وَتَقْرِي الضَّيْفَ، [١٣] وَتُعِينُ عَلٰى نَوَائِبِ الْحَقِّ [١٤] ثُمَّ انْطَلَقَتْ بِهِ خَدِيجَةُ إِلٰى وَرَقَةَ بْنِ نَوْفَلٍ، ابْنِ عَمِّ خَدِيجَةَ. [١٥] فَقَالَتْ لَهُ: يَا ابْنَ عَمِّ اسْمَعْ مِنِ ابْنِ أَخِيكَ.

**توجمه:** [١] ددي نه وروسته فرشته خوغانبه شوه او حضور ﷺ دې آيتونو سره مکي ته خپل کورته راغي هغه وخت يې دا حال وو چې د وحي د شدّتِ رُعب نه سخت دهشت زده وو او نه صرف زړه يې رپيدی بلکه د تبې اودلړز کيفيت پوره جسم باندې خور وو [٢] حضور ﷺ بي بي خديجي ﷺ ته رسيدو سره اوويل [٣] په ما کپړه واچوه په ماکپړه واچوه [چې گرم شم] [٤] بي بي خديجي ﷺ په حضور ﷺ کپړه واچوله تردې چې څه وخت وروسته هغه رُعب او د هيبت شدت ختم شو نو د حضور ﷺ خوف وهراس لاړو، [او خپل اصلي جسماني حالت يې ختم شو] [٥] بيا حضور ﷺ بي بي خديجي ﷺ ته پوره واقعه وښودله او هغه ته يې داهم اوويل [٦] چې ما سره د خپل ځان خوف دی [٧] بي بي خديجي ﷺ تسلي ورکولو سره ورته اوويل تاسو قطعًا خوف مه کوئ تاسو چې کوم سوچ کوئ داسې به هيڅ کله نه کېږي قسم په الله څما پوره يقين دی چې الله ﷻ به تاسو هيڅ کله رسوا او نامراده نه کړي [٨] څکه چې تاسو قرابتدارو سره د حسنِ سلوك او تعلق معامله کوئ [٩] تاسو هميشه رښتيا وايئ [که څه هم هغه قرابتدار ستاسو سره ترك تعلق او د بدسلوکی معامله کوي تاسو هيڅ کله هغوئ ته دروغ نه وايئ که څه هم خلق تاسو ته دروغ وايې يا تاسو دروغجن کوي بعضې روايتونو کې دلته دا الفاظ هم دي چې تودی الامانة يعنی تاسو د امانت آدائيگی کې کوتاهي نه کوئ [١٠] او تاسو د نورو بوج پورته کوئ [١١] تاسو غريبانو او مسکينانو باندې خرڅ کوئ [١٢] تاسو د ميلمنو خاطر مدارات کوئ [١٣] او د هغوئ هرقسم مدد کوئ او تاسو د خلقو حقيقي حادثات او مصائبو کې د هغوئ مدد کوئ [١٤] ددي نه وروسته بي بي خديجي ﷺ حضور ﷺ بيولو سره د خپل تره خوی ورقه ابن نوفل ته ورسيدله [١٥] او هغه ته يې اوويل اې د تره خويه! د خپل وراره قصه واوره

**حل اللغات:** -① يَرْجُفُ: أَيْ: يَضْطَرِبُ: رپيدلو، لړزيدلو (د ډير رُعب نه) ② فُؤَادُهُ: أي قلبه: زړه د نبی عليه السلام، ③ زَمِّلُونِي: أَيْ: غَطُّونِي بِالثِّيَابِ: کمبل راباندې واچوئ، په څادر کښې مې پټ کړئ. ④ الرَّوْعُ: أَيْ: الْخَوْفُ وَالرُّعْبُ: ويره، رعب ⑤ لَتَصِلُ الرَّحِمَ: جوړوې رشته داری ⑥ وَتَحْمِلُ الْكَلَّ: أي أَنَّكَ تَتَحَمَّلُ مُؤْنَةَ الْكَلِّ: ته د محتاجو او يتيمانو خلقو بوج برداشت کوې يعنی هغوی باندې خرچ کوې. ⑦ وَتَكْسِبُ الْمَعْدُومَ: أي تُعْطِي الْمُحْتَاجَ: محتاجو خلقو باندې مال خرچ کوې، ⑧ وَتَقْرِي الضَّيْفَ: أَيْ: تُطْعِمُ النَّازِلَ بِكَ: ميلمه ته خوراک ورکوې، ⑨ نَوَائِبِ الْحَقِّ: نوائب د نَائِبَة جمع ده، حوادث او آفاتو ته وائی. يعنی په حق او حقيقی حوادثو او تکاليفو دخلقو مدد کوې.

[۱] فَقَالَ لَهُ وَرَقَةُ: يَا ابْنَ أَخِي مَاذَا تَرَى؟ [۲] فَأَخْبَرَهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَبَرَ مَا رَأَى. [۳] فَقَالَ وَرَقَةُ: هٰذَا هُوَ النَّامُوسُ الَّذِي أَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَى مُوسَى، [۴] يَا لَيْتَنِي فِيهَا جَذَعًا يَا لَيْتَنِي أَكُونُ حَيًّا إِذْ يُخْرِجُكَ قَوْمُكَ. [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (أَوَمُخْرِجِيَّ هُمْ؟) [۶] قَالَ: نَعَمْ، لَمْ يَأْتِ رَجُلٌ قَطُّ بِمِثْلِ مَا جِئْتَ بِهِ إِلَّا عُودِيَ، [۷] وَإِنْ يُدْرِكْنِي يَوْمُكَ أَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا. [۸] ثُمَّ لَمْ يَنْشَبْ وَرَقَةُ أَنْ تُوُفِّيَ وَفَتَرَ الْوَحْيُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ورقه حضور ﷺ ته متوجه شو او ورته يې اوويل خما وراره! واوروه په تاڅه تير شوه او ته څه وينې او محسوسوې؟ [۲] رسول الله ﷺ د هغه مخکې هغه ټوله واقعه بيان کړه کومه چې حضور ﷺ ته پيښه شوې وه [۳] ورقه ټولې خبرې اوريدو سره اوويل تاسو دواړو ته دې مبارك وي داخو هغه ناموس فرشته ده چې الله ﷻ وحي ورکولو سره حضرت موسى عليه السلام ته رالېږله [۴] اې آرمان چې ستا د نبوت د اظهار او ستا د دعوت د اعلان په وخت زه طاقتور خوان واى کاشکې چې زه هغه وخت ژوندى وى، که څه هم چې په ماکې طاقت او توانائي نه واى هرکله چې ستا قوم يعنى قريشو نه به ستا قرابتدار تا د ښار نه بهر وباسي [۵] رسول الله ﷺ دې خبرې اوريدوسره حيرت سره پوښتنه وکړه آيا واقعي خما قوم به ما د ښار نه بهر باسي [۶] ورقه ورته اوويل هو خما يقين دى چې ستا قوم به تا د ښار نه بهر وباسي څکه چې همېشه داشوې دې چې کله هم يوسړى ستا په شان دنبوت او شريعت سره دې دنيا ته راغلى دى نو هغه سره دښمنې شوې ده [او په يوه روايت کې داسې دې کله هم چې يو پيغمبر دې دنيا ته راغلى دى نو کافرو هغه سره دښمنې کړې ده او سخت تکليفونه يې ورته رسولې دي] [۷] که زه هغه ورځو کې هرکله چې ته به خلق د الله دين طرف ته رابلې او د دې جواب کې به ستا د قوم خلق تاته تکليفونه رسوي او تابه ستا د ښار نه بهر باسي ژوندى پاتې شوم نو پوره طاقت او قوت سره به ستا مدد او حمايت کوم [۸] ليکن ددې نه وروسته ورقه زياتې ورځې ژوندې پاتې نه شو او زر ددې دنيا نه رخصت شو او په حضور ﷺ د وحي راتلو سلسله هم قطع شوه داروايت ددې خاى پورې بخارې او مسلم دواړو نقل کړى دى

النَّامُوسُ: صَاحِبُ سِرِّهٖ: رازدار کوم چه د پټو ښو خبرو اطلاع ورکوى اهل کتابو به جبرئيل عليه السلام ته ناموس وئيل، اود شر د خبرو اطلاع ورکونکى ته جاسوس وائى. جَذَعًا: أَيْ: جَلْدًا شَابًّا قَوِيًّا: مضبوط خوان، عُودِيَ: د مُعَادَاةٌ نه د ماضى مجهول صيغه ده، دشمنى کولو ته وائى (يعنى دښمنى ورسره شوې ده). نَصْرًا مُؤَزَّرًا: الْأَزْرُ وَهُوَ الْقُوَّةُ: دَ وزير نه دې، د أزر معنى قوت اوطاقت دې يعنى پوره قوت سره مدد کول لَمْ يَنْشَبْ: أَيْ: لَمْ يَلْبَثْ: ډيروخت نې تير نه کړو، يعنى ډير وخت ژوندې پاتې نه شو وَفَتَرَ الْوَحْيُ: أَيْ: انْقَطَعَ أَيَّامًا: يعنى وحى بنده شوه (ترڅو ورځو پورې)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ:

**دنبوت څخه وړاندې خوبونه رښتيا كيدل:** يعنى دَ حضورپاك دَ رښتونى خوب تعبيريه داسې واضح كيدو سره راتلو لكه څنګه چه پرق سره سحر راځى. مطلب دا چه څنګه دَ سحر راتلل يقينى وى دغه شان دَ حضورپاك دَخوبونوتعبيرهم يقينى وو

**قوله:** ثُمَّ حُبِّبَ إِلَيْهِ الْخَلَاءُ

**نبي عليه السلام ته خلوت خوښه كيدل:** يعنى په طبعى توګه دَ حضورپاك خلوت كښې كيناستل محبوب وو اوحضورپاك يوازيوالې اختياركړودې دَپاره چه دَ مخلوق نه ځان له شى اوخالق سره دَ راز اونياز رشته جوړه كړى

**قوله:** وَكَانَ يَخْلُو بِغَارِ حِرَاءٍ:

**د غارحراء تعارف:** دَمكې نه دَ يوڅو كلوميترو په فاصله باندې دَ يوغرپه څوكه باندې داغار واقع دې. دې غرته جبل نور وائى. دَدې دَپاسه ميدان دې چرته چه نن صباد يوتنبو لاتدې يو عارضى هوټل جوړشوې دې. دَدې غار په خله كښې دَ قبلې طرف ته دَ دوو كاڼړو په خپل مينځ كښې دَ ملاويدودَوجې نه يو خالى ځائى پيدا شوې دې هم دغه خالى ځائى غارحراء دې. په دې كښې دوه كسان كيناستې شى سرې په كښې اودريدې نه شى. دَمخې نه دا غاركولاو دې دكوم چه بيت الله شريف ښكارى. مګر نن صباعمارتونو بيت الله پټ كړې دې. غارحراء دَ جاهليت په زمانه كښې هم په مقدس مقاماتوكښې شميرلې كيدو خلقو به په دې كښې عبادت او رياضت كولو.

**قوله:** يَتَحَنَّثُ فِيهِ:

**د يتحنث معنى:** دلته باب تفعل، سلب مأخذ دَپاره دې يعنى ازالۀ ګناه او ازالۀ ګناه عين عبادت دې لهذا دَ "يتحنث"معنى "يتعبد"ده كوم چه عبادت كولوته وائى. په يوروايت كښې "يتحنف"دې يعنى دَحنفيه ملت مطابق به ئى عبادت كولو

**قوله:** فَجَاءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ: اقْرَأْ.:

**د اقرأ د حكم حيثيت:** يعنى دَ يواستاذ نه ئى هيڅ نه دى وئيلى په خپله توګه څه وئيلى نه شى. جبرائيل عليه السلام دَ "تكليف مالايطاق" حكم نه وو وركړې بلكه دَاقراء تعليمى حكم وو لكه دَ نوى سر نه چه استاذ وړوكى بچى ته وائى چه وايه بچې! نودا تعليمى اقراء ده دا امتحانى اقراء نه وه.

**قوله:** "فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي:

**د راجختولو حكمت:** داسې ئى دباو كړو چه دَ ملكوتيت بركات اوصفات په بشر كښې

منتقل شی. اول ځل نی دباؤ کړو چه انس بالملك پیدا شی په دویم ځل نی دباؤ کړو چه انس بالله پیدا شی او په دریم ځل نی دباؤ کړو چه انس بالوحی پیدا شی.

**قوله: حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدُ،**

**د اعراب په لحاظ سره په جهد کښې دوه احتمالات:** ① دا لفظ مرفوع دې کوم چه فاعل واقع دې. "اي بلغ مني الجهد مبلغه" یعنی په ما کښې چه څومره طاقت وو هغه خپلې انتهاء ته اورسیدو.

② په یو روایت کښې "الجهد" منصوب دې کوم چه مفعول واقع دې "اي بلغ جبرئيل مني الجهد" یعنی جبرائیل علیه السلام دَ خپل طاقت مطابق زور اولګولو اوماله نی زور راکړو دانی ځکه اوکړه چه حضورپاك وحی سره مانوس شی اوملکوتی صفات دَ حضورپاك طرف ته منتقل شی. فرښته چه کله دَانسان په شکل کښې راځی نو په هغه کښې دَ یوانسان طاقت وی.

**قوله: فَقَالَ: (زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي)**

**په زملونی کښې د جمعې صیغې راوړلو وجه:** حضورپاك دَمحاوره په لحاظ سره دَجمع صیغه استعمال کړې ده ځکه چه دَ ادب په توګه دکور والادَ جمع په لفظ سره رابللې شی سره دَدې چه صرف یوه ښځه نی ولې نه وی. دلته صرف حضرت خدیجه رضی الله عنها دَ جمع په صیغه سره هم دَدې قاعده مطابق خطاب کړې دې یاکیدې شی چه په کور کښې نور خلق هم وی په دې وجه نی دَ جمع صیغه اختیار کړه.

**قوله: فَرَجَعَ بِهَا رَسُولُ اللَّهِ يَرْجُفُ فُؤَادُهُ،**

**د مذکوره جملې مفهوم:** چه کله زړه ته څه خطره رسیږی نو پوره بدن دَ هغې دَ حفاظت کوشش کوی اوپوره حرارت راغونډ شی دَ زړه نه چاپیره جمع شی. نودې سره دَ زړه حفاظت کیږی مګر په باقی بدن باندې رږ شروع کیږی. هم په دې وجه بعضې روایاتو کښې "يرجف بوادره" الفاظ راغلی دی. بوادر، دَ بادرة جمع ده. دَ اوګې غوښې ته وائی دَ اوګې غوښه چه کله رږیږی نوباقی بدن نور هم زیات رږیږی.

**قوله: لَقَدْ خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي:**

**د نبی علیه السلام د ویرې په علت کښې دوه احتمالات:** ① دوی په دې باندې اوویردل که بار بار دغه شان دَ وحی بوج په ما باندې پریوځی نو دَ دغه بوج سره ماته دَ خپل ځان دَ ختمیدو خطره ده.

② داهم ممکن دی چه راتلونکی وخت کښې دَ نبوت دَ دعوت اودَ پوره عربو سره دَ مقابله کولو طرف ته اشاره وی.

**قوله: وَتَحْمِلُ الْكَلَّ،**

**د کل معنی:** کل هغه سړی ته وائی چه خپل خاندان او معاشره باندې بوج وی او دَ هغه نه چاته څه فائده نه رسیږی بلکه چه کوم طرف ته ځی نقصان اوچتولوسره راځی.

**د مذکوره جملې مطلب:** دَ حدیث مطلب دادې چه ته دَ داسې بې کاره او بې یاراومددګار خلقو بوج اوچتوې اودَهغوی امداد کوې مثلاً یتیمانانو، مسکینانو کونډو ښځو کمزورو اوبې کسو خیال کوې.

**قوله: هَذَا هُوَ النَّامُوسُ الَّذِي**

**د ناموس مصداق:** ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه اهل کتاب به جبرائیل آمین ته ناموس وئیلې دامعنی ډیره ښه ده.

**قوله: أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَى مُوسَى**

**دموسی علیه السلام د ذکر کولو وجه:** ورقه بن نوفل دَحنفاء نه وو بیا هغه عیسائیت قبول کړو هغه دَ حضرت موسٰی علیه السلام په ځائی دَ حضرت عیسٰی علیه السلام نوم اخستل غوښتل مګر علماؤ لیکلی دی چونکه حضرت موسٰی علیه السلام مشهور وو او اولوالعزم هم وو په دې وجه ورقه دَ هغه نوم واخستلو.

۵۸۴۳-()[۱]وَزَادَ الْبُخَارِيُّ، «حَتَّى حَزِنَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِيمَا بَلَغَنَا - [۲]حُزْنًا غَدَا مِنْهُ مِرَارًا [۳]كَيْ يَتَرَدَّى مِنْ رُءُوسِ شَوَاهِقِ الْجِبَالِ، [۴]فَكُلَّمَا أَوْفَى بِذِرْوَةِ جَبَلٍ لِكَيْ يُلْقِيَ نَفْسَهُ مِنْهُ، [۵]تَبَدَّى لَهُ جِبْرِيلُ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ إِنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ حَقًّا. [۶]فَيَسْكُنُ لِذَلِكَ جَأْشُهُ، وَتَقِرُّ نَفْسُهُ».

**ترجمه:** [۱] لیکن ددې نه وروسته بخاري دا الفاظ هم نقل کړي دي (چې د وحې د نزول سلسله قطع شوه) د دې ثبوت مونږ ته د هغه حدیثونو نه حاصلیږي کوم چې مونږ ته رسیدلی دی [۲] نو حضور ﷺ باندې غم او خفګان شو او داغم او خفګان یې دومره شدید او سخت وو [۳] چې څوځلې حضور ﷺ په دې اراده سره دغرونو طرف ته به لاړو چې خپل ځان د پورته غرونو د څوکې نه خکته را وغورځوي [۴] کله به چې حضور ﷺ د یو غر څوکې ته ورسیدی چې خپل ځان را وغورځوي [۵] نو اچانک جبرائیل علیه السلام به ښکاره شو او وئیل به یې اې محمد! بلاشبه تاسو د الله ﷻ برحق رسول یئ [۶] په دې صورت کې یقینًا ستاسو هره پریشاني به ختمه شي (او د کار انجام د دین و دنیا هره معامله کې به بامراد شئ که څه هم چې په منځ کې د څه مشقت او ابتلاء د مراحلو نه به تیریدل وي د حضرت جبرائیل علیه السلام دابشارت اوریدو سره به) د حضور ﷺ د زړه پریشاني او دهشت به ختم شو او حضور ﷺ به مطمئن شو.

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب بدء الوحی/کیف کان بدء الوحی إلی رسول الله صلی الله علیه وسلم؟ (رقم-۳) واحمد فی المسند:۶/۲۳۳

**حل اللغات:-** ① حَزِنَ: غم اوخفگان ته وائي ددې ضد سرور راځي يعني خوشحالي. ② غَدَامِنْهُ: أَيْ: ذَهَبَ فِي الْغُدْوَةِ: سحر وخت كښې تلو ته غدا وائي. ③ يَتَرَدَّي: أَيْ: يَسْقُطُ: چه ځان راوغورځوي، راوغرځوي، ④ شَوَاهِق: د شَاهِقٍ جمع ده، وَهُوَ الْجَبَلُ الْمُرْتَفِعُ: اوچت غر يا د غر سوكې ته وائي. ⑤ أَوْفَى: أَيْ وَصَلَ وَلَحِقَ: اوبه رسيدلو. ⑥ ذِرْوَة: أَيْ: بِأَعْلاهُ: د غرسر، سوكه، ⑦ تَبَدَّي: أَيْ: تَبَيَّنَ وَظَهَرَ: ښكاره به شو، جبرئيل عليه السلام، ⑧ جَأْشُهُ: أي اضْطِرَابُ قَلْبِهِ وَرَوْعُهُ وَفَزَعُهُ: د زړه ويره، خطرات.

**تسهيلات:**

**قوله:** غَدَامِنْهُ مِرَارًا كَيْ يَتَرَدَّى،

**دخود كشي اراده كول:** يعني دَ دغه غم دَوجې نه څو ځل حضورپاك سحر سحر دَ غر څوكې ته لاړو دې دَپاره چه خپل ځان راګذار كړي

**قوله:** فَيَسْكُنُ لِذَٰلِكَ جَأْشُهُ، وَتَقِرُّ نَفْسُهُ،

**نبي عليه السلام ته تسلي ملاويدل:** اي اضطرابه جبرائيل عليه السلام په آواز سره به دَحضورپاك تسلي كيدله اودَ حضورپاك اضطراب په سكون كښې بدليدلو

**[۵۸۴۳] دانقطاع نه وروسته بيا وحي**

٥٨٤٣-( ) [٦] ⓵ «وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، ⓶ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ يُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ الْوَحْيِ، ⓷ قَالَ: (فَبَيْنَا أَنَا أَمْشِي سَمِعْتُ صَوْتًا مِنَ السَّمَاءِ، ⓸ فَرَفَعْتُ بَصَرِي، ⓹ فَإِذَا الْمَلَكُ الَّذِي جَاءَنِي بِحِرَاءٍ قَاعِدٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، ⓺ فَجُبِثْتُ مِنْهُ رُعْبًا حَتَّى هَوَيْتُ إِلَى الْأَرْضِ، ⓻ فَجِئْتُ إِلَى أَهْلِي، فَقُلْتُ: زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي، ⓼ فَزَمَّلُونِي، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: ⓽ ﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ - قُمْ فَأَنْذِرْ - ⓾ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ - وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ - ⑪ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ﴾ [المدثر: ١-٥] ⑫ ثُمَّ حَمِيَ الْوَحْيُ وَتَتَابَعَ)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** ⓵ او حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دي ⓶ هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دځه ورځو د پاره د وحي قطع كېدو [او بيا د سلسله وحي دوباره شروع كيدو] حال داسې واوريدى چې ⓷ حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل يوه ورځ د مكې په يوه لار يا حراغر باندې زه روان وم چې ناڅا په خما په غوږونو كې يوآسماني اواز راغې ⓸ ما چې پورته وكتل ⓹ نو څه ګورم چې هغه فرشته چې غارِ حراء كې ماته راغې وه د زمكې او آسمان په منځ كې په يوتخت ناسته ده ⓺ د هغه په نظر راتلو سره خما په زړه كې دومره سخت رعب او خوف پيدا شو چې زه بې ساخته په زمكه راولوېدم ⓻ بيا زه واپس خپل كوروالو ته راغلم او ورته مې اوويل په ما كپړه واچوئ په ما كپړه واچوئ ⓼ كوروالو په ما كپړه واچوله او زه هغه كپړه كې پريوتم بيا الله تعالى دا آيت نازل كې: ⓽ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ (١) قُمْ فَأَنْذِرْ (٢) وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ (٣) وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ (٤) وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ ⑤.

---

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب بدء الوحي/كيف كان بدء الوحي إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم؟ (رقم-٤) ومسلم في كتاب الإيمان/باب بدء الوحي إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-٢٥٥ - (١٦١) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ومن سورة المدثر (رقم-٣٣٢٥) واحمد في المسند:٣/٣٢٥

ای کپړه اغوستونکیه! لاړ شه او مخلوق اوېروه [۱۰] اود خپل رب لويي بيان که او خپلي کپړي پاکي کړه [۱۱] او پليتي پرېږده [۱۲] د دي څخه روسته وحی شروع شوه او مسلسل راتله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① فَتْرَةُ الْوَحْيِ: أي: انْقِطَاعِهِ أَيَّامًا: وحی يوڅو ورځي بنديدل مراد دی. ② فَجُئِثْتُ: د باب سمع يسمع نه د ويريدلو په معنى کښي دي. أي: فَزِعْتُ وَهِلْتُ: ډير زيات اويريدم ③ رُعْبًا: ويره. ④ هَوَيْتُ: د ضرب يضرب نه د راغورزيدلو په معنى کښي راځي د سمع نه د محبت په معنى کښي وی دلته ضرب نه دي ⑤ الْمُدَّثِّرُ: څادر يا کمبل اغوستونکي (يعنى د نبوت او رسالت څادر او دروند بار اوچتونکي) ⑥ فَأَنْذِرْ: نو اوېروه خلق (د عذاب نه). ⑦ وَالرُّجْزَ: أي: الشِّرْكَ وَالْعِصْيَانَ: کفر اوشرک، نافرماني يا عامه پليتي، ⑧ فَاهْجُرْ: أي: فَاتْرُكْهُ: پرېږده، ⑨ حَمِيَ الْوَحْيُ: أي: اشْتَدَّ حَرُّهُ: يعنى د وحى بنديز څخه بيا راتلل شروع شو اوګرم شو يعنى يوشان راتلله ⑩ وَتَتَابَعَ: أي: نُزُولُهُ: يعنى د وحی نزول پرله پسې شروع شو.

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث کښي د ګرانولغاتوحل شوي دي باقي مضمون آسان دي

**[٥٨٤٤] د وحي راتلو کيفيت**

٥٨٤٣-(١) [٤] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، «أَنَّ الْحَارِثَ بْنَ هِشَامٍ سَأَلَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! كَيْفَ يَأْتِيكَ الْوَحْيُ؟ [٣] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (أَحْيَانًا يَأْتِينِي مِثْلَ صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ، [٤] وَهُوَ أَشَدُّهُ عَلَيَّ، [٥] فَيَفْصِمُ عَنِّي وَقَدْ وَعَيْتُ عَنْهُ مَا قَالَ، [٦] وَأَحْيَانًا يَتَمَثَّلُ لِيَ الْمَلَكُ رَجُلًا فَيُكَلِّمُنِي، [٧] فَأَعِي مَا يَقُولُ).

**ترجمه:** [١] او بي بي عائشه رضي الله عنها نه روايت دی چې حارث ابن هشام رضي الله عنه (چې د ابوجهل ورور وو او د مکي د فتح نه مخکي يي اسلام راوړی وو) رسول الله ﷺ نه يي پوښتنه وکړه [٢] يارسول الله! تاسو ته وحي څرنګه راځي [٣] حضور ﷺ ورته وفرمايل ماته وحي کله د جرس ړنګولي د اواز په شان راځي (يعنى د وحي الفاظ چې ماته رسولی شي د جرس د اواز په شان صوت لري) [٤] اودا وحي په ماسخت ترينه وحي وي انو فرشته د وحي چې کوم الفاظ ماته رسوي زه هغه د هرېه محنت او توجه سره اوريدو سره يادوم [٥] او کله داسې کېږي چې فرشته د انسان شکل اختيارولو سره ما سره هم کلام کېږي [٦] او څه چې وايي زه هغه محفوظ او يادوم

[١] ) اخرجه البخاري فی کتاب بدء الوحی/کيف کان بدء الوحی إلی رسول الله صلی الله عليه وسلم؟ (رقم-٢ ) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب عرق النبی صلی الله عليه وسلم فی البرد وحين يأتيه الوحی (رقم-٨٧ - (٢٣٣٣) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء کيف کان ينزل الوحی علی النبی صلی الله عليه وسلم (رقم-٣٦٣٤) واحمد في المسند:١٥٨/٦

**حل اللغات:** - ① صَلْصَلَةِ: أَي صَوْتُ الْحَدِيدِ إِذَا حُرِّكَ: د اوسپنې زنځير د شرقولو آواز ته صلصله وائي. ② الْجَرَسِ: ګونګرو، ټلې، ③ فَيَفْصِمُ: أَيْ: يَنْقَطِعُ: يعنې دَ وحي دا کيفيت به ختميدو. ④ وَعَيْتُ: أَيْ: حَفِظْتُ: يادوم، حفاظت کوم. ⑤ يَتَمَثَّلُ: أَيْ: يَتَصَوَّرُ وَيَتَشَكَّلُ: شکل اوصورت به ئې اختيارولو.

① قَالَتْ عَائِشَةُ: وَلَقَدْ رَأَيْتُهُ يَنْزِلُ عَلَيْهِ الْوَحْيُ ② فِي الْيَوْمِ الشَّدِيدِ الْبَرْدِ، فَيَفْصِمُ عَنْهُ ③ وَإِنَّ جَبِينَهُ لَيَتَفَصَّدُ عَرَقًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① بي بي عائشه رضي الله عنها دا بيانولو سره وايې ماليدلی دی چې حضور ﷺ باندې به وحي نازليدله ② چې کله به د سختې يخنئ ورځې وې او فرشته د وحي به لاړه ③ نو د حضور ﷺ تندی مبارک به د خولې پسينې نه ډک په نظر راتلی (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ⑥ جَبِينَهُ: أَيْ: مُقَدَّمُ وَجْهِهِ: تندي يا مخ مبارک. ⑦ لَيَتَفَصَّدُ: أَيْ: لَيَتَصَبَّبُ: بهيدلې به، ⑧ عَرَقًا: خولې

**تسهيلات:**

**قوله:** صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ:

**د لفظ صلصلة الجرس تسهيل:** په مضبوط چټان اوکاڼړی باندې چه کله دَ اوسپنې زنځير راښکليږی نودَهغې نه آواز پيدا کيږی هم دغه آواز ته صلصلة وائی او جرس ټلئې ته وائی دلته دَ ټلئې دَ آواز سره تشبيه ورکول مقصود دی.

**د آواز په سبب کښې اقوال:** ① دادَ الله تعالی د کلام نفسی آواز وو بعضې علماء فرمائی چه داددَاسې قسم وحی آواز وو لکه څنګه چه د کلام دَ تياری دَپاره مخکښې اعلان کيږی يا دَ ټيلی فون ټلئی غږيږی.

② حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه دادَ حواس دَ تعطل نه پس يو آواز پيدا کيدو هغه مراد دې لکه دَ غوږونو بندولوسره دننه يو آواز پيدا کيږی.

③ دادَ جبرائيل امين دَ راتګ اودَهغه دَ وزرو پرپړ راتلو آواز وو

**قوله:** أَشَدُّهُ عَلَيَّ: چونکه په دې کښې به انسلاخ بشريت ووځکه دا قسم درونډ وو

**قوله:** وَعَيْتُ:

**د ماضی صيغه راوړلو وجه:** دَماضی صيغه استعمال کړې شوې ده ځکه چه حضورپاک به پخپله په هوش کښې نه وو په هوش کښې دَ راتلونه مخکښې به ورته ټوله وحی يادېدله نودَ ماضی صيغه مناسب شوه.

**قوله:** لَيَتَفَصَّدُ:

**د وحی شدت:** په رګ باندې چه ستن وهلوسره کومه وينه راوځی هغې ته فصد وائی مطلب دا چه دَ وحی دَ شدت دَ وجې نه دَ يخنئی په موسم کښې هم به دَ حضورپاک په اننګو مبارکو باندې دَ مرغلرو دَ لړئی په شان خوله بهيدله.

## [۵۸٤۵] د وحي د نزول په وخت د نبی کريم ﷺ کيفيت

۵۸۴۵-() [۸] [۱] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ [۳] كُرِبَ لِذَلِكَ وَتَرَبَّدَ وَجْهُهُ» [۴] وَفِي رِوَايَةٍ: نَكَّسَ رَأْسَهُ، [۵] وَنَكَّسَ أَصْحَابُهُ رُءُوسَهُمْ، [۶] فَلَمَّا أُتْلِيَ عَنْهُ رَفَعَ رَأْسَهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عباده بن صامت ﷺ وايي [۲] هر کله چې رسول الله ﷺ باندې به وحي نازليدل [۳] نو د هغه په سبب به حضور ﷺ ته سخت غم لاحق کيدی او د مخ مبارک رنګ به يې متغير کيدی [۴] او په يوه روايت کې داسې دي چې کله به حضور ﷺ باندې وحي نازليدل نو خپل سر مبارک به يې ښکته کوی [۵] او هغه وخت چې کوم صحابه ﷺ به موجود وه هغوئ به هم سرونه ښکته کول [۶] هر کله چې وحي به موقوفه شوه نو حضور ﷺ او صحابه ﷺ به خپل سرونه پورته کړل. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① كُرِبَ: أَيْ: أَصَابَهُ الْكَرْبُ وَحَزِنَ: يعني سخت تکليف مصيبت اوغم به ورته کيدلو ② تَرَبَّدَ: أَيْ: تَغَيَّرَ: يعنی دَ مخ رنګ به ئې بدليدلو. ③ نَكَّسَ رَأْسَهُ: أَيْ: أَطْرَقَهُ: سرئې ښکته کړو (لکه چه فکر اوسوچ کوی). ④ أُتْلِيَ: اي أقلع وأكشف يعني چه کله به دَ وحی دا کيفيت ختم شو "

**تسهيلات:**

**قوله:** نَكَّسَ رَأْسَهُ:

**د نبی کريم عليه السلام او صحابؤ د سر ټيټولو وجه:** دَ سر ټيټولو په معنی کښې دې حضورپاک دَ الله تعالی دَ طرف نه دَوحی حکم راتلو او په هغې دَ سوچ کولو اوپه هغې باندې دَ پوهيدلو دَ وجې نه سرټيټ کړو اوصحابه کرامو دَ حضورپاک دَ متابعت او ادب دَ وجې نه سرټيټ کړو.

## [۵۸٤٦] د دعوت الی الله اعلان

۵۸۴۶-(۲) [۹] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ: [۲] ﴿وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ [الشعراء: ۲۱۴] [۳] خَرَجَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى صَعِدَ الصَّفَا، [۴] فَجَعَلَ يُنَادِي: (يَا بَنِي فِهْرٍ يَا بَنِي عَدِيٍّ) [۵] لِبُطُونِ قُرَيْشٍ حَتَّى اجْتَمَعُوا، [۶] فَجَعَلَ الرَّجُلُ إِذَا لَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ يَخْرُجَ أَرْسَلَ رَسُولًا لِيَنْظُرَ مَا هُوَ، [۷] فَجَاءَ أَبُو لَهَبٍ وَقُرَيْشٌ فَقَالَ: [۸] (أَرَأَيْتَكُمْ إِنْ أَخْبَرْتُكُمْ أَنَّ خَيْلًا تَخْرُجُ مِنْ صَفْحِ هَذَا الْجَبَلِ-

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابن عباس ﷺ وايي کوم وخت چې دا آيت نازل شو [۲] وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ

---

[۱] ) اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب عرق النبی صلی الله عليه وسلم فی البرد وحين يأتيه الوحی (رقم-۸۸ - (۲۳۳٤)

[۲] ) اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب {وأنذر عشيرتک الأقربين واخفض جناحک} [الشعراء: ۲۱۵] ألن جانبک (رقم-۴۷۷۰) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب فی قوله تعالى: {وأنذر عشيرتک الأقربين} [الشعراء: ۲۱٤] (رقم-۳۵۵ - (۲۰۸) والترمذی فی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ومن سورة تبت (رقم-۳۳۶۳) واحمد فی المسند: ۳۰۷/۱

الْاَقْرَبِيْنَ ۳ نو رسول الله ﷺ د دې حکم تعمیل د پاره سمدستي اووتلو او کوه صفا باندې وختلې ۴ او د قریش قبائل بلل يې شروع کړل چې اې د فهر اولاده! اې د عدي اولاده! ۵ دغه شان حضور ﷺ د قریشو ټول ښاخونه نوم په نوم وبلل د حضور ﷺ په دې اواز د قریشو ټول قبائل او ډلې د حضور ﷺ چاپیره جمع شوې ٦ د دې پورې چې کوم سړی د څه عذر او مجبورۍ په سبب خپله هلته ونه رسیدې نو هغه دې معلومولو د پاره چې محمد ولې ټول بللي دی څوك خپل نماينده جوړولو سره ولیږی ۷ غرض دا چې هرکله چې ټول اهل قریش او د حضور ﷺ اکا ابولهب راغې نو حضور ﷺ هغوی مخاطب کولو سره ورته وفرمایل ۸ که زه تاسو ته داخبر درکړم چې د جنګیالیو شهسوارو یوه دسته د دې غر د پناه نه ښکاره شوې ده

**حل اللغات:-** ①وَأَنْذِرْ: نو اویروه (د عذاب نه). ②عَشِيْرَتَكَ: أَيْ: قَوْمَكَ: خپل خاندان، خپل قوم، ③صَعِدَ: أَيْ عَلَمَ: اوختلو. ④لِبُطُوْنٍ: خاندانونه، قبیلې. ⑤تَجْتَمِعُوْا: ټول را جمع شو، ⑥رَسُوْلًا: قاصد، خبر راوړونکې، ⑦خَيْلًا: يَعْنِيْ فُرْسَانًا: په اسونو سواره، شهسواران. ⑧صَفْحِ: أَيْ عَرْضُ الْجَبَلِ: د غر ښکاره مخ، ښکاره طرف،

| ١ وَفِيْ رِوَايَةٍ: أَنَّ خَيْلًا تَخْرُجُ بِالْوَادِيْ ٢ تُرِيْدُ أَنْ تُغِيْرَ عَلَيْكُمْ - أَكُنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ؟) ٣ قَالُوا: نَعَمْ، مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ إِلَّا صِدْقًا. ٤ قَالَ: (فَإِنِّيْ نَذِيْرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيْدٍ) .٥ قَالَ أَبُوْ لَهَبٍ: تَبًّا لَكَ، لِهٰذَا جَمَعْتَنَا؟ ٦ فَنَزَلَتْ: ﴿تَبَّتْ يَدَا أَبِيْ لَهَبٍ وَتَبَّ﴾ [المسد:١]. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

**ترجمه:** ١ او د یو روایت الفاظ دا دي چې د سورو یوه دسته د مکې د جنګل نه ښکاره شوې ده ٢ او د هغوی مقصد قتل او غارتګری د پاره د ورځې یا شپې څه حصه کې په تاسو اچانك حمله کول دي نو اووایئ چې آیا تاسو خلق به ځما داخبره رښتنې ومنئ ٣ ټولو په یوه اواز اوویل هو ضرور رشتیا به يې منوځکه چې مونږ ته همیشه رښتنې پیدا کړی یې ٤ بیا حضور ﷺ ورته وفرمایل نو واورئ زه تاسو خلق د هغه سخت عذاب نه ویروم چې دنیا یا آخرت کې په تاسو راتلونکی دی ٥ دا اوریدل وو چې ابولهب په قهر شو او هغه اوویل هلاکت او بربادي دې وي تالره آیا تا مونږ د دې پاره جمع کړی وو ٦ په دې دا آیت نازل شو تَبَّتْ يَدَا أَبِيْ لَهَبٍ وَتَبَّ ابولهب دې هلاك شي او هغه هلاك شو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ⑨أَنْ تُغِيْرَ: أَيْ: تَأْتِيَكُمْ بَغْتَةً لِلْإِغَارَةِ: یعنی ناڅاپی به په تاسو حمله اوکړی. ⑩جَرَّبْنَا: تجربه کړې ده مونږ، ازمېښت کړې دې مونږ، ⑪نَذِيْرٌ: أَيْ: مُنْذِرٌ وَمُخَوِّفٌ: ⑫بَيْنَ يَدَيْ: أَيْ: قُدَّامَهُ: خپلې مخې ته.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَمَّا نَزَلَتْ: ﴿وَأَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْأَقْرَبِيْنَ﴾:

**د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دعوت مختلف ادوار:**

① رسول الله ﷺ ته چه کله د څلويښتو کالو په عمر کښې مکه مکرمه کښې نبوت ملاؤ

شو نودریو کالوپورې حضورپاك پټ دعوت اوچلولو دَ کورکسان او نیزدې دوستانو نه علاوه نې چاته دعوت ورنه کړو.

② بیا چه کله ﴿ وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ ۝ ﴾ آیت نازل شو نوحضورپاك نیزدې خپلوانو له دعوت ورکړو اوهغوی له نې دَ دین اسلام دعوت ورکړو مګر دَ ابولهب په شرارت باندې څوك دَ منلودپاره تیارنه شو. دَ سورت "ص" دَ شروع آیات هم دَدې قصې سره متعلق دي.

③بیا درې کاله تیریدونه پس داآیت نازل شو ﴿ فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ ۝ ﴾ (حجر ۹۴)یعنی دَ الله تعالی دَ طرف نه چه کوم حکم راغلې دې هغه ښکاره ښکاره بیان کړه اودَمشرکانو پرواه مه کوه. په دې باندې رسول الله ﷺ غوښتل چه صفاغونډئ کومه چه بیت الله ته مخامخ ده په دغه څائې دَ دین دعوت ورکړي. دَعربو عادت وو چه دَ یولوئې مصیبت او غمې حادثې په وخت به اوچت څائې ته ختل اودَخپل امداددپاره به ئې خلق رابلل. هم دَ دغه قاعدې مطابق حضورپاك دَ صفاغونډئ ته راغلو اودا آواز نې اوکړو "یَا صَبَاحَاهُ وَاصَبَاحَاهُ" اې خلقو سحروخت کښې یومصیبت راتلونکې دې. دَدې آواز اوریدوته دَ قریشو سردارانو خصوصي توجه ورکړه ځکه چه حضورپاك څلویښت کاله کښې کله هم دَخپل امداددپاره داسې عام اعلان نه وو کړې. نوچه کوم سړي هم دا آواز اوریدو په منډه راغلو یاخپل څوك کس ئې راؤلیګلو. حضورپاك چونکه دَ صفا په اوچت څائې باندې وو په دې وجه نې اوفرمائیل چه ماته دواړه طرفه ښکاری که چرې زه اووایم چه دَ شانه یولښکر راروان دې نو تاسو به ئې اومنئ؟ اول دا اووایئ چه ما ستاسو په مینځ کښې یوه اوږده موده تیره کړې ده آیا تاسو زه رښتونې لیدلې یم که دروغژن؟ قریشو وئیل مونږ ته بار بار ازمینښت کړې ئې مونږ ته هم رښتونې لیدلې ئې. په دې باندې حضورپاك دَتوحید دعوت ورکړو په کوم سره چه هغه خلق اوتختیدل او ابولهب ګستاخي اوکړه. حضورپاك چه دا اوفرمائیل دَ غر نه اخوا ته دښمن حمله کول غواړي نودې نه دَ ابلیس لښکر مراد وو چه په انسانانو باندې حمله کونکې دې. حضورپاك ته دَ دنیا او آخرت دواړه طرفونه ښکاریدل. دَ قریشو کافرانو ته دَ آخرت پته نه وه نوټولو انکار اوکړو.

### [٥٨٤٧]دسجدې په حالت کښې په نبی علیه السلام د لرې راغور ځول

٥٨٤٧-(¹) [١٠] [١] «وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] بَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُصَلِّي عِنْدَ الْكَعْبَةِ [٣] وَجَمْعُ قُرَيْشٍ فِي مَجَالِسِهِمْ، إِذْ قَالَ قَائِلٌ: [٤] أَيُّكُمْ يَقُومُ إِلَى جَزُورِ آلِ فُلَانٍ [٥] فَيَعْمِدُ إِلَى فَرْثِهَا وَدَمِهَا وَسَلَاهَا [٦] ثُمَّ يُمْهِلُهُ حَتَّى إِذَا سَجَدَ وَضَعَهُ بَيْنَ يَدَيْهِ؟ [٧] فَانْبَعَثَ أَشْقَاهُمْ فَلَمَّا سَجَدَ وَضَعَهُ بَيْنَ يَدَيْهِ، وَبَيْنَ كَتِفَيْهِ. [٨] وَثَبَتَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَاجِدًا.

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الوضوء /باب إذا ألقی علی ظهر المصلی قذر أو جيفة، لم تفسد عليه صلاته (رقم-٢٤٠) ومسلم فی کتاب الجهاد والسير /باب ما لقی النبی صلی الله عليه وسلم من أذی المشرکين والمنافقين (رقم-١٠٧ - (١٧٩٤)

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ وایي [۲] یوه ورځ رسول الله ﷺ د خانه کعبې نزدې مونځ کوی [۳] او هلته خانه کعبې سره د قریشو د عمائدینو یوې ډلې مجلس لګولی ناست وو اچانك هغوئ کې یوسړی اوویل [۴] آیا په تاسو کې یوداسې سړی شته چې فلانی محله او قبلې ته ورشي چیرته چې فلانی خاندان یواوښ ذبح کړی دی [۵] او د هغه اوښ د غلاظت نه ډك لړي کولمې د هغه وینه او پوست راوړي [٦] او هغه ټوله ګندګي او غلیظ څیزونه کوم وخت چې محمد په سجده پریوځي نو هغه د محمد د دواړو اوږو په منځ کې ورواچوي [۷] په دې اوریدو سره یوانتهائي درجه بدبخت سړی عقبه ابن معیط یا ابوجهل د هغه څیزونو راوړلو د پاره لاړل او داټول څیزونه یې راوړل کوم وخت چې حضور ﷺ په سجده شو نو هغه هغه ټوله ګندګي د حضور ﷺ د دواړو اوږو په منځ کې باندې وغورځوله [۸] نو حضور ﷺ د هغه ګندګي د بوج نه نشو پورته کیدلې او په سجده کې پاتې شو

**حل اللغات:-** ① يَقُومُ: أَيْ: يَتَوَجَّهُ: پاسې یعنی ورشی، متوجه شی ② جَزُورِ: أَيْ: بَعِيرٍ: اوښ، ③ فَيَعْمِدُ: أَيْ: فَيَقْصِدُ: قصد اوکړی، یعنی راوړی، ④ فَرْثِهَا: وَهُوَ السِّرْجِينُ مَا دَامَ فِي الْكِرْشِ: سوتې اوخاشنړه چه په لری کښې دننه وی. ⑤ وَسَلَاهَا: وَهُوَ الْجِلْدُ الرَّقِيقُ الَّذِي يَخْرُجُ فِيهِ الْوَلَدُ: دَ څناور په بچه دانئ کښې دَ بچې دَپاسه یوه نرئ شان جهلئ وی چه پیدائش سره بهر راځی هم دغه نرئ پردې ته سلا وائی ⑥ يُمْهِلُهُ: انتظار وکړی ورته ⑦ فَانْبَعَثَ: أَيْ: فَقَامَ وَذَهَبَ: پاڅیده، لاړه، ⑧ أَشْقَاهُمْ: بد بخته دقوم (دا بدبخته عُقْبَةُ بْنُ أَبِي مُعَيْطٍ وو).

[۱] فَضَحِكُوا حَتَّى مَالَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ مِنَ الضَّحِكِ، [۲] فَانْطَلَقَ مُنْطَلِقٌ إِلَى فَاطِمَةَ، فَأَقْبَلَتْ تَسْعَى، [۳] وَثَبَتَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَاجِدًا حَتَّى أَلْقَتْهُ عَنْهُ، [۴] وَأَقْبَلَتْ عَلَيْهِمْ تَسُبُّهُمْ، [۵] فَلَمَّا قَضَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الصَّلَاةَ [٦] قَالَ: (اللَّهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ) ثَلَاثًا [۷] وَكَانَ إِذَا دَعَا دَعَا ثَلَاثًا،

**ترجمه:** [۱] هغه بدبختانو دالیدو سره خندا ګاني او ټوقې مسخرې شروع کړې په دې خندا کې دومره بدحاله شوه چې په خندا خندا کې په یوبل ورکاږه شوه [۲] بیا یوسړی بي بي فاطمه ﷺ ددې حال نه خبره کړه هغه په منډه راغله [۳] اورسول هم ترهغه وقته پورې د هغه ګندګي لاندې په سجده پروت وو بي بي فاطمه ﷺ هغه ټول څیزونه د حضور ﷺ د شا نه پورته کولو سره لرې وغورځول [۴] او هغه بدبختانو طرف ته متوجه کیدو سره هغوئ ته یې بد رد وئیل شروع کړل [۵] کوم وخت چې رسول الله ﷺ دما نځه نه فارغه شو [٦] نوبد دعایې وکړه اې الله! ته دا قریش سخت ونیسې [یعنی مشرکین قریش هلاك او برباد کړې] حضور ﷺ دا دعا درې خله وکړله [۷] اود حضور ﷺ عادت مبارك وو چې کله به یې دعا کوله نو درې خله به یې دعا کوله.

**حل اللغات:-** ⑨ مُنْطَلِقٌ: تلونکې، خبر ورکونکې،

[١] وَإِذَا سَأَلَ سَأَلَ ثَلَاثًا: [٢] (اللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِعَمْرِو بْنِ هِشَامٍ، وَعُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ، وَشَيْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ، وَالْوَلِيدِ بْنِ عُتْبَةَ، وَأُمَيَّةَ بْنِ خَلَفٍ، وَعُقْبَةَ بْنِ أَبِي مُعَيْطٍ، وَعُمَارَةَ بْنِ الْوَلِيدِ. [٣] قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ: فَوَاللّٰهِ لَقَدْ رَأَيْتُهُمْ صَرْعَى يَوْمَ بَدْرٍ [۴] ثُمَّ سُحِبُوا إِلَى الْقَلِيبِ قَلِيبِ بَدْرٍ. [۵] ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (وَأُتْبِعَ أَصْحَابُ الْقَلِيبِ لَعْنَةً)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] دغه شان چې حضور ﷺ به د الله ﷻ نه څه غوښتل نو درې ځله به يې درخواست کوی [٢] بيا عمومي طور سره دقريشوپه حق کې بد دعا کولو نه وروسته په خاص طور سره د هغه ازلي بدبختانو نومونه اخستو سره داسې بددعايې وکړله! اې الله! ته عمرو ابن هشام ابوجهل عقبه ابن ربيعه او شيبه ابن ربيعه دواړه وروڼه وليد بن عتبه اميه ابن خلف عقبه ابن ابي معيط اوعماره ابن وليد سخت ونيسې [٣] حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه راوي دا روايت بيانولو سره اووېل قسم په الله ما د جنګ بدر په ورځ مذکوره کافر هلاك شده په زمکه پراته وليدل [۴] بيا هغوئ د ميدان نه راښکلو سره په يوکوهي کې چې د مقام بدرکوهي وو په هغه کې وغورځول شوه [۵] او هغه وخت حضور ﷺ فرمايلي وه داخلق چې په کوهي کې غورځول شوي دي ملعون ګرځول شوي دي. بخاري ومسلم

**حل اللغات**: -[١] صَرْعَى: هَلْكَى: دَ صريع جمع ده کوم چه دَ مصروع په معنی کښې دې حال دې په معنی د مفعول په زمکه باندې راغورزولي شوي اوپروت سړی ته وائي. دا کنايه ده د هلاکت نه يعنی هلاک کړې شوي [٢] سُحِبُوا: أَيْ: جُرُّوا: دمجهول صيغه ده. راښکلې شو [٣] الْقَلِيبِ: وَهُوَ الْبِئْرُ قَبْلَ أَنْ تُطْوَى: دا يو کوهي وو چه غاړې يعنی منډير ورته نه وو جوړشوې.

**تسهيلات**:

**قوله**: قَالَ قَائِلٌ:

**د قائل مصداق**: داابوجهل ملعون وو يا څوك بل بدبخت وو

**قوله**: جَزُورٍ:

**د لفظ جزور تحقيق**: شيخ عبدالحق رحمه الله اشعة اللمعات کښې ليکلي دی چه جزور کښې په جيم باندې زبر دې بيا په زاء باندې پيښ دې دا هغه اوښ ته وائی چه دَ ذبح کولو نه پس ټکړې ټکړې شوې وی مذبح خانه مراد ده

**قوله**: آلِ فُلَانٍ:

**د آل فلان څخه مراد**: نه دَ يوسړی اولاد مراد دې مخصوص څه خاص محله اوخاص قبيله ده. کيدې شی دلته څه مذبح خانه وه چرته چه دَ ذبح شوی اوښانو ګندګيری پرته وه.

**قوله**: فَرْثِهَا: ديکښې ضمير مؤنث دَ جزور طرف ته راجع دې دکوم طرف ته چه مذکر اومؤنث دواړه ضميرونه راګرځی.

**د اشقاهم نه څوک مراد دي:**

**قوله:** فَانْبَعَثَ أَشْقَاهُمْ،

**د اشقاء څخه مراد:** دې څخه مراد عقبه ابن ابی معیط وو داد آخری درجې بې وقوف اودَ ابوجهل چمچه وه څه چه به ابوجهل وئیل ده به هم هغه کول.

**جنگ بدر کښې د عقبه هلاکت:** جنگ بدر کښې دې گیرشوې وو حضورپاك دَ ده دَقتل کولوحکم ورکړو نوهغه وئیل زما قصور څه دې چه دَ باقی قیدیانو په شان ما قیدنه ساتې اودَ قتل حکم ورکوې؟ حضورپاك اوفرمائیل چه تا الله تعالی ته اودَ هغه رسول ته تکلیف رسولې دې بیا یوصحابی اودریدو اودَ هغه سټ ئی کټ کړو. الحمدلله

**قوله:** لَقَدْرَأَيْتُهُمْ:

**کوهی ته غورځولې شوی کافران:** دا په اعتباردَ اکثر دې چه ټول په کوهی کښې واچولې شوحالانکه عماره کوهی ته نه وو غورزولې شوې. دغه شان دَ عقبه بن ابی معیط معامله وه

**قوله:** الْقَلِيبِ:

**د قلیب پیژندگلو:** قلیب هغه کوهی ته وائی دکوم خله اویاسنئی حصه چه تیك کړې شوې نه وی یعنی دَ غاړه ئی نه وی. دَ بدر په مقام باندې دا یوخراب اوگنده کوهې وو په کوم کښې چه دا گنده خلق واچولې شو اودَ هغوی دَ ذلیل کولودَپاره حضورپاك دغه کوهی له راغلواوهغوی ئی مخاطب کړل وئی فرمائیل ماسره چه زما رب کومه وعده کړې وه ما هغه ربښتونې اوموندله. آیا تاسوسره چه کومه وعده وه تاسو هغه اولیدله که نه؟

**دحسان اشعار:** دَ رسول الله ﷺ دَدربار شاعر حضرت حسان رضي الله عنه دانقشه داسې بیان کړې ده

فغادرنااباجهل صريعًا　　　　وعتبة قدتركنابالجبوب

**ترجمه** مونږ ابوجهل راغورزولې شوې پریخودو اوعتبه مو په سخته کانړی ځنه زمکه باندې مړ شوې پریخودو

يناديهم رسول الله لما　　　　قدفناهم كباكب فی القليب

**ترجمه** دوی ته رسول خدا هغه وخت آواز ورکولو کوم وخت چه مونږ دوی په گنده کوهی کښې غورزولې وو

الم تجدواكلامی كان حقاً　　　　وامرالله يأخذبالقلوب

**ترجمه** حضورپاك اوفرمائیل ولې تاسو زما خبرې ربښتونې اونه لیدلې؟ حالانکه دَ الله تعالی حکم خو په زړونوکښې ورکوزیږی

فمانطقواولونطقوالقالوا　　　　صدقت وكنت ذارأي مصيب

**ترجمه** دغه خلقو جواب ورنه کړو که چرې جواب ئی ورکولې نوداسې به ئی وئیل تاسو ربښتیا وئیلی وو اوستاسو رائې صحیح وه.

**د مقام بدر زيارت:**

هسې خو ماته الله تعالى څو خله د حرمينو زيارت نصيب کړې دې خو په کال ۲۰۱۹ کښې دعمرې دپاره چې لاړم نو د جده ځخه چې د کمپنۍ کوم بس تلو د هغې ډرائيور راته ووئيل که ستاسو خوښه وی ماته پنځوس پنځوس ريالـه اضافى راکړې زه به مو د مکې ځخه مدينې ته چې کومه عامه لاره تلې ده د هغې ځخه په بله لاره بوزم چرته چې بعضې تاريخى مقامات دى مونږ ورسره دا خبره اومنله اوپه هغه مقاماتو کښې مقام بدر هم وو، هلته چې د ګاړى ځخه کوز شو نو د سړک په کناره او اړخ باندې يو ښکلې جمات جوړ شوې وو دا هغه ځائې وو په کوم ځائې کښې چې د نبى عليه السلام دپآره څپر جوړ شوې وو اودوى په کښې تشريف فرما وو.بيا د سړک ځخه لاندې ورکوز شو هلته دغه قليب بدر هم وو په کوم کښې چې ئې د کافرانو لاشونه غورځولى وو.د بس ډرائيور راته د جنګ بدر نقشه بيان کړه چې په دې ځائې کښې د کافرانو صفونه وو او په دې ځائې کښې د مسلمانانو صفونه وو.لنډه دا چې ددې ځه روسته په ګاړى کښې کيناستو اوبيا ئې راته د شهداء بدر مقبره اوخودله د کومې ځخه چې چارديوالى تاو وه د ګاړى نه ئې کوز نکړو البته لګ ئې ودرولو او دهغې په هغه ديوال باندې کوم چې د سړک طرف ته وو د شهداء بدر نومونه ليکلى شوى وو غرض دا چې په دې سفرکښې راته د مقام بدر زيارت هم نصيب کړو که الله تعالى تاسو حرمينوته بوتلئ نو د ډرائيورسره که مو خبره اوکړه اوپه ځه طريقه مو راضى کړه هم ښه ده ګنى بيا د مدينې ځخه ملګرى برابرشئ اومقام بدر ته لاړ شئ ځکه دا يو اسلامى تاريخى مقام دې دجنګ بدر نقشه کتونکى ته وراندې کوى

**[۵۸۴۸] د دعوت دپاره د طائف سفر**

۵۸۴۸-(¹)[۵] ١ «وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: ٢ يَا رَسُولَ اللهِ! هَلْ أَتَى عَلَيْكَ يَوْمٌ كَانَ أَشَدَّ مِنْ يَوْمِ أُحُدٍ؟ ٣ فَقَالَ: (لَقَدْ لَقِيتُ مِنْ قَوْمِكِ، فَكَانَ أَشَدَّ مَا لَقِيتُ مِنْهُمْ يَوْمَ الْعَقَبَةِ، ٤ إِذْ عَرَضْتُ نَفْسِي عَلَى ابْنِ عَبْدِ يَالِيلَ بْنِ كُلَالٍ، ٥ فَلَمْ يُجِبْنِي إِلَى مَا أَرَدْتُ، ٦ فَانْطَلَقْتُ وَأَنَا مَهْمُومٌ - عَلَى وَجْهِي، ٧ فَلَمْ أَسْتَفِقْ إِلَّا بِقَرْنِ الثَّعَالِبِ،

**ترجمه:** ١ او بي بي عائشې رضي الله عنها نه روايت دى هغه يوه ورځ عرض وکړو ٢ يارسول الله آيا د اُحد نه هم زياته سخته ورځ په تاسو چيرته تيره شوې ده [د احد جنګ کې حضور ﷺ ډير زيات مصيبتونو او اذيتونو سره مخ شوى وو چې د هغه ذکر مخکې حديث کې راغې] ٣ حضور ﷺ دبي بي عائشې رضي الله عنها دا سوال اوريدو سره وفرمايل ستا د قوم د طرف نه چې

¹ ) اخرجه البخارى فى كتاب بدء الخلق/باب إذا قال أحدكم: آمين والملائكة فى السماء، آمين [ص:۱۱۴] فوافقت إحداهما الأخرى، غفر له ما تقدم من ذنبه (رقم-۳۲۳۱) ومسلم فى كتاب الجهاد والسير/باب ما لقى النبى صلى الله عليه وسلم من أذى المشركين والمنافقين (رقم-۱۱۱ - (۱۷۹۵)

کوم صورت حال پیښ شوی وو هغه د أحد د ورځي نه ډير زيات په ماسخت وو او دا د عقبه د ورځي واقعه ده [چي ما ستا د قوم دلاسه داسي سخت تکليفونه پورته کړل چي د هغه نه زيات اذيتونه د هغوئ د طرف نه په ټول عمر کي ماته هيڅ کله نه دي رسيدلي] ۲ اوشوه داسي چي زه په هغه ورځ ابن عبد ياليل ابن کلال ته ورسيدم او هغه ته مي د اسلام قبلولو تلقين نصيحت وکی ۵ ليکن هغه خما تلقين ته هيڅ توجه ورنه کړه ۶ او زه خني غمجن سيده روان شوم ۷ او تلم ددي پوري چي قرن ثعالب ته رسيدو سره خما حواس قابو کي رانه غلل.

**حل اللغات:-** ① يَوْمَ الْعَقَبَةِ: دعقبه معنى ده غريزه کنده، دلته ترې د طائف ورځ مراد ده چه نبي عليه السلام ورته د اسلام دعوت ورکړو اوهغوی ورته تکليفونه اورسولو. ② مَهْمُومٌ: أَيْ: حَيْرَانًا هَايِمًا: حيران او پريشان، دغم نه ډک (دغم او پريشانۍ په وجه مدهوش ووم) ③ أَسْتَفِقْ: أَيْ: فَلَمْ أُفِقْ: افاقه مي اونه شوه يعنى غم او تکليف مي لري نه شو. ④ بِقَرْنِ الثَّعَالِبِ: جَبَلٌ بِعَيْنِهِ بَيْنَ مَكَّةَ وَالطَّائِفِ: دمکې او د طائف په مينځ کښې يو غردې د قرن المنازل سره نزدې.

۱ فَرَفَعْتُ رَأْسِي، فَإِذَا أَنَا بِسَحَابَةٍ قَدْ أَظَلَّتْنِي ۲ فَنَظَرْتُ فَإِذَا فِيهَا جِبْرِيلُ، فَنَادَانِي فَقَالَ: ۳ إِنَّ اللّٰهَ قَدْ سَمِعَ قَوْلَ قَوْمِكَ وَمَا رَدُّوا عَلَيْكَ، ۴ وَقَدْ بَعَثَ إِلَيْكَ مَلَكَ الْجِبَالِ لِتَأْمُرَهُ بِمَا شِئْتَ فِيهِمْ). ۵ قَالَ: (فَنَادَانِي مَلَكُ الْجِبَالِ، فَسَلَّمَ عَلَيَّ ثُمَّ قَالَ: ۶ يَا مُحَمَّدُ! إِنَّ اللّٰهَ قَدْ سَمِعَ قَوْلَ قَوْمِكَ، وَأَنَا مَلَكُ الْجِبَالِ، ۷ وَقَدْ بَعَثَنِي رَبُّكَ إِلَيْكَ لِتَأْمُرَنِي بِأَمْرِكَ، ۸ إِنْ شِئْتَ أَنْ أُطْبِقَ عَلَيْهِمُ الْأَخْشَبَيْنِ)

**ترجمه:** ۱ ما خپل سر پورته کی نو څه ګورم چي د وريځي يوه لويه ټکړه ده چي په ما يي سايه (سوري) کړي ده ۲ او بيا اچانك خما نظر د وريځي هغه ټکړي کي په حضرت جبرائيل عليه السلام راغي جبرائيل عليه السلام زه مخاطب کړم راته يي اوويل ۳ ستاسو پروردګار ستاسو د قوم خبره واوريده او د هغوئ هغه جوابي يي هم واوريدی چي هغوئ تاسو ته درکړي دي ايعنى ستاسو د قوم تاسو ته بدردويل تاسو دروغجن کول او تاسو ته تکليف رسول ټول معلوم دي] ۴ او اوس پروردګار ستاسو په خدمت کي د غرونو فرشته اچي د هغه په مخ د زمکي په ټولو غرونو عملداري ده ددي دپاره] راليږلي ده چي تاسو د خپل قوم د هلاکت او تباهي او د هغه ټولو ظالمانو په غرونو کي دننه ويستلو په باره کي چي تاسو ا څرنګه غواړئ حکم وکئ ۵ حضور ﷺ فرمايي ددي نه وروسته د غرونو فرشتي ماته يانبي يا محمد مخاطب کولو سره راته اوويل ۶ اي محمد! الله ﷻ ستاسو د قوم خبره اوريدلي ده زه د غرونو فرشته يم ۷ زه ستاسو پروردګار تاسو ته راليږلی يم چي تاسو ماته د خپلي فيصلي د تعميل حکم راکړئ ۸ که تاسو فرمايئ نو زه ستاسو د قوم خلقو باندي دا دواړه غرونه اخشبين رايوځاي کوم چي د هغه لاندي دب کيدو سره ټول نيست ونابود شي.

**حل اللغات:-** ⑤ بِسَحَابَةٍ: وريځ. ⑥ أُطْبِقَ: أي أُقْلِبَ: چه راواړوم، رايوځاي کړم (يو څيز په بل څيز

باندې داسې اینبودل چه د هر طرفه نې پوره راګیرکړې دې ته طبق وائي. دلته د غرونو په مینځ کښې دخلقو راګیرول مراد دی. ⑥الْأَخْشَبَيْنِ: دا د اخشب تثنیه ده. وَالْأَخْشَبُ كُلُّ جَبَلٍ غَلِيظٍ: هر یو سخت غر ته اخشب وائي. أي الْجَبَلَانِ الْمُطِيفَانِ بِمَكَّةَ: د مکې مکرمې سره خواکې مخامخ دوه غرونه دی د یونوم جبل ابوقبیس دې او د دویم نوم قعیقعان دې

①قَالَ رَسُولُ اللهِ ـ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (بَلْ أَرْجُو أَنْ يُخْرِجَ اللهُ مِنْ أَصْلَابِهِمْ②مَنْ يَعْبُدُ اللهَ وَحْدَهُ،③وَلَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**:① رسول الله ﷺ په دې اوریدو سره وفرمایل زه [د دوی د هلاکت طلبګار نه یم بلکه زه خو] دا امید لرم چې الله ﷻ به د دوی په نسل کې داسې خلق پیدا کړي ② چې صرف د یو الله عبادت به کوي ③ او هیڅ شی به هغه سره شریك نه ګرځوي یعنی نه به شرك جلي کې مبتلا وي او نه شرك خفي کې. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:-⑧أَصْلَابِهِمْ: أَيْ: مِنْ أَنْسَابِ بَعْضِهِمْ: ددوی په خاندان او نسل کښې

**تسهيلات**: **قوله**: أَشَدَّ مِنْ يَوْمِ أُحُدٍ:

**د طائف دسفر شدت**: په احد کښې د رسول الله ﷺ ۷۰ صحابه کرام شهیدان شوی وو د حضورپاك د تره حضرت حمزه ﷺ د بدن ټکړې د حضورمخې ته وې پخپله هم وینې وینې وو غاښونه مبارك نې شهیدان شوی وو ډیره سخته ورځ وه. هم په دې وجه حضرت عائشه ﷺ د احد د ورځې د سختئی نه زیات د بلې ورځې د سختئی او مصیبت باره کښې تپوس کړې دې د حضرت عائشه ﷺ خیال وو چه د دې نه زیاته سخته ورځ بله کیدې نه شي لیکن حضورپاك د طائف ورځ کوم ته چه یوم العقبة وئیلې شوې ده هغه د احد د ورځ نه زیاته اوخودله

**قوله**: يَوْمَ الْعَقَبَةِ:

**د یوم العقبه تاریخی پس منظر**: دلته یو جمات راپیدا شوې وو هم په دغه ځائی کښې حضورپاك مدینې والو ته خپل خان خودلې وو منی کښې مسجد خیف سره جمرة العقبة هم دغه کندې ته منسوب ده په کال ۲۰۰۷ء کښې د سعودی حکومت د جمرات توسیع اوکړه هلته یو جمات راؤوتلو دکوم نوم چه مسجد العقبة دې په اصل کښې د حج موسم کښې به حضورپاك د عربو قبانلوته دعوت ورکولو کله چه حالات خراب شو نوحضورپاك حج له راغلی مختلف خلقو ته خپل خان اوخودلو چه ماته تاسو دلته پناه راکړئی دې ته په حدیث کښې "عَرْضُ نَفْسِهِ عَلَى الْقَبَائِلِ" سره یاد کړې شوې دې. په منی کښې حضورپاك دا دې شروع اوکړه. بیاهم په دغه مهم کښې حضورپاك طائف ته روان شو چه هغه آزاد قبائل دی کیدې شي اسلام قبول کړي اوبیا ماته د پناه ځائی ملاؤ شي. دا پوره نقشه په یوم العقبة سره یاده کړې شوې ده

**قوله: عَرَضْتُ نَفْسِي:**

**د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د ثقيف سردارنو ته دعوت ورکول:** يعنی ما خپل خان پيش کړو د ثقيف دريو سردارانو ته چه خپل مينځ کښې رونړه وو د يونوم عبد ياليل وو د دويم نوم مسعود اودريم نوم حبيب وو دا دريواړه رونړه د عمرو بن عمير خامن وو طائف کښې ددوی دټولو لوئی سردار مسعودوو اهل تاريخ دلته ډير ګډوډ نومونه ذکر کړی دی ما د البدايه والنهايه خبره اوليکله ملاعلی قاری ﷫ ليکلی دی چه ابن عبد ياليل کنيت دې مګر هم دغه ددې سړی نوم هم (يعنی عبد ياليل سره خبرې اترې اوکړې)

**قوله: بِقَرْنِ الثَّعَالِبِ:**

**د قرن ثعالب پيژندګلو:** د زوړ طائف نه وتلوسره د جبل هدیٰ طرف ته راتلوسره د جديد طائف د يوخائی نوم قرن الثعالب دې اوقرن المنازل هم دغه خائی کښې دې دکوم خائی نه چه اهل نجد احرام تړلوسره مکې ته راخی د اهل طائف ميقات هم دغه دې

**اشکال:** په غزوه احد کښې رسول الله ﷺ پخپله هم زخمی شوې وو د حضورپاك د ۷۰ صحابه کرامو نعشونه د حضور مخې ته وو د حضورپاك د تره حضرت حمزه ﷜ نعش پرې کړې شوې د حضورپاك مخې ته وو دا سخته صدمه حضورپاك د طائف د مصيبت نه کمه ولې اوګرخوله اود طائف دا غم اومصيبت نی ددې نه ولې زيات اوګرخولو؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① په احد کښې حضورپاك د جنګ ميدان اود مقابله په ميدان کښې وو دښمن سره په مقابله کښې چه خومره هم نقصان اوشی دهغې دومره تکليف نه وی خکه چه د مقابله په ميدان کښې خو ګټه اوتاوان دواړه مخې ته راخی خوددې برعکس په طائف کښې حضورپاك د مقابله په ميدان کښې نه وو هلته چه څه کيدل هغه ټول د يوطرف نه ظلم وو کوم چه حضورپاك د ډيرې بې کسئی په حالت کښې برداشت کولو دکوم تکليف چه ډير زيات وو په دې وجه حضورپاك د طائف تکليف اومصيبت د حد نه زيات اوګرخولو.

② نبی عليه السلام طائف ته د طائف د خلقو د ايمان راؤړو په اميد تلې وو چې د طائف خلق به ايمان راوړی خوهرکله چې د هغوی دطرفه دايمان راؤړو په خائې ورته تکليفونه اورسولی شو نودا د انسان فطرت دې چې کله ده ته د اميد په خائې سزا ملاؤ شی نوډيرخفه اوپريشانه کيږی ددې وجې نبی عليه السلام د طائف سختی د احد د سختی څخه زياته اوګرځوله.

**دطائف ليدل:** په کال ۲۰۰۹ کښې په اول خل حج د بيت الله ته الله تعالی بوتلې ووم په دغه سفر کښې په مکه مکرمه کښې ماته دوه کتابونه ملاؤشو تاريخ مکه او تاريخ مدينه، دا دواړه کتابونه په اردو کښې وو هسې خو په دې موضوع باندې نور کتابونه هم شته خو

ددې مصنف دا کمال کړې دې چې د نبی علیه السلام په وخت کښې کوم مقامات وو هغه مقامات که اوس ختم شوی هم دی او نورې آبادۍ پرې شوی دی خودوی دا خودلی دی چې د نبی علیه السلام په زمانه کښې چې کوم ځائې وو په هغه ځائې کښې اوس دا آبادی ده مثلاً د نبی علیه السلام د وفات څخه پس صحابه کرام چې د خلیفه مقرر کولو دپاره په سقیبه بنو ساعده کښې جمع شوی وو نو دوی دا خودلی دی چې په موجوده وخت کښې په دغه ځائې باندې کوم عمارت جوړ شوې دې دا د بنوساعده محل وقوع ده غرض دا چې ددې کتابونو په کتلوسره په ما کښې د حرمینو د تاریخی ځایونو لیدلو شوق پیدا شوې اوبیا په کښې د طائف د تګ اراده هم پیدا شوه لنډه دا چې الله تعالی طائف ته هم د څخه ملګرو په ملګرتیا کښې اورسولواوهغه باغ موهم ډیر په مشکله پیدا کړل چرته چې نبی علیه السلام دمه کړې وه هغه باغ اوس هم موجود دې په هغه وخت کښې هم د قجورو او انګورو باغ وو اوس په کښې مختلف ځیژونه دی فصلونه هم او میوه دارې ونې هم بیا دې باغ سره متصل ورکوټې غوندې جمات وو په هغې کښې مو غسل اوکړواود عمرې دپاره مو احرامونه اوتړل اوبیا مو ټیکسی اوکړو په لارې کښې د طائف د خلقو میقات راغلو نو ډرائیور راته اوونیل چې اوس تاسو دعمرې نیتونه اوکړئ نومونږ د هغه ځائې څخه د عمرې نیتونه اوکړل اوالله تعالی په خیرخیریت سره مکې ته راورسولو او عمره مو ادا کړه

**قوله**: الْأَخْشَبَيْنِ:

**د الاخشبین معنی او مصداق**: دا غرونه احمر نومی غر سره لګیدلي دې دا دواړه غرونه دَ یوطرف نه خو په مکه کښې دی مګر بل طرف ته منی سره لګیدلی دی

**اشکال**: دَحضورپاك ګستاخی اهل طائف اوکړه ظالمان هغوی وو بیا په اهل مکه باندې دَ غرونو دَ یوځائی کولوڅه مطلب دې؟

**داشکال دوه جوابونه**: ① دَدې غرونو دا سلسله اهل مکه او اهل طائف دواړو باندې محیط ده نودَ دواړو ښاریو دَ تباهئی خبره وه یا صرف دَ طائف دَ تباهئی خبره وه هیڅ اشکال نشته دې

② اصل مجرمان خودَ مکې کافران وو هم دَهغوی دَ وجې نه خودا ټول هرڅه کیدل. دَ طائف سفرهم دَ دغه ظلمونو دَ وجې نه وو په دې وجه دا جرړه دَ ختمولو خبره اوکړې شوه

**[۵۸٤۹] په غزوه اُحد کښې د نبی کریم ﷺ زخمي کیدل**

۵۸٤۹-(۱) [۳] ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كُسِرَتْ رَبَاعِيَتُهُ يَوْمَ أُحُدٍ ②

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب حرق الحصیر لیسد به الدم (رقم-۵۷۲۲) ومسلم فی کتاب الجهاد والسیر/باب غزوة أحد (رقم-۱۰٤ - (۱۷۹۱) والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة آل عمران (رقم-۳۰۰۳) وابن ماجه فی کتاب الطب/باب دواء الجراحة (رقم-۳٤٦٤) واحمد فی المسند:۲۸۸/۳

وَشُجَّ فِي رَأْسِهِ [۳] فَجَعَلَ يَسْلُتُ الدَّمَ عَنْهُ وَيَقُولُ: [۴] «كَيْفَ يُفْلِحُ قَوْمٌ شَجُّوا رَأْسَ نَبِيِّهِمْ [۵] وَكَسَرُوا رَبَاعِيَتَهُ؟)». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷺ نه روایت دی د اُحد د جنګ په ورځ د رسول الله ﷺ هغه څلورو غاښونو کې یوغاښ مبارك مات شوی وو چې هغه ته رباعیه وایې [۲] او د حضور ﷺ سر مبارك زخمي شوی وو [۳] حضور ﷺ به وینه وچوله او فرمایل به یې [۴] هغه قوم به څرنګه نجات پیدا کړی شي چې دخپل نبي سر یې زخمي کی [۵] د هغه غاښ یې مات کی (مسلم)

**حل اللغات:-** ① كُسِرَتْ: د مجهول صیغه ده، مات کړې شوې وو ② رَبَاعِيَتُهُ: مخامخ دوه لاندې باندې غاښونوته ثنایا وائی وریسې لاندې باندې څلور غاښونه رباعی دی (نبی طرف ته لاندې رباعی غاښ د نبی علیه السلام مات شوې وو) ③ شُجَّ: أَيْ: جُرِحَ: زخمي کړې شوې وو (د سر اومخ زخم دپاره شج لفظ استعمالیږي) ④ يَسْلُتُ: أَيْ: يُزِيلُ: د نَصَرَ يَنْصُرُ نه دې دَبدن نه وینه صفا کولوته وائی

**تسهیلات:**

**قوله:** كُسِرَتْ رَبَاعِيَتُهُ يَوْمَ أُحُدٍ،

**د رباعیته مصداق:** دَ انیاب اوثنایاپه مینځ کښې غاښونوته رباعی وائی دَحضورپاك غاښونه مبارك بالکل ماتیدوسره پریوتلې نه وو بلکه څه حصه ئی ماته شوې وه دَ نبی طرف لاندینو غاښونوڅخه رباعی مراددی.

### [۵۸۵۰] د نبی کریم ﷺ په لاس وژلی شوی کس شقاوت

۵۸۵۰ - ( ) [۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «(اشْتَدَّ غَضَبُ اللَّهِ عَلَى قَوْمٍ فَعَلُوا بِنَبِيِّهِ) [۳] يُشِيرُ إِلَى رَبَاعِيَتِهِ [۴] (اشْتَدَّ غَضَبُ اللَّهِ عَلَى رَجُلٍ يَقْتُلُهُ رَسُولُ اللَّهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ) [۵] مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ». وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ: الْفَصْلِ الثَّانِي

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د الله ﷻ سخت ترین غضب په هغه قوم دی چې هغوئ خپل نبي سره داسې سلوك وکی [۳] دداسې سلوك نه د حضور ﷺ اشاره خپلو غاښونو طرف ته وه اچې په هغه کې یوغاښ کفارو د اُحد په جنګ کې شهید کړی وو) [۴] او د الله ﷻ سخت ترین غضب په هغه سړي دی چې د الله ﷻ رسول یې د الله په لار یعنی جهاد کې قتل کړي [۵] (بخاري مسلم) او په دی باب کی دویم فصل نشته

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب ما أصاب النبی صلی الله علیه وسلم من الجراح یوم أحد (رقم-۴۰۷۳) ومسلم فی کتاب الجهاد والسیر/باب اشتداد غضب الله علی من قتله رسول الله صلی الله علیه وسلم (رقم-۱۰۶ - (۱۷۹۳) واحمد فی المسند: ۳۱۷/۲

**تسهیلات:**

**قوله:** يَقْتُلُهُ رَسُولُ اللّٰهِ،

**د رجل مصداق:** دَ احد په میدان کښې حضورپاك یوبدبخت كافر ابی بن خلف په نیزه باندې وهلوسره قتل کړې وو دَهغه طرف ته اشاره ده

## (هذا الباب خال عن الفصل الثانی)

په دې باب کښې دویم فصل نشته

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۸۵۱]دَ نزول په اعتبار سره اولنی آیاتونه**

۵۸۵۱-( ) [۳] ⓵«عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، قَالَ: ⓶ سَأَلْتُ أَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَوَّلِ مَا نَزَلَ مِنَ الْقُرْآنِ؟ ⓷ قَالَ: ﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ [المدثر: ۱] قُلْتُ: يَقُولُونَ: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ﴾ [العلق: ۱] ⓸ قَالَ أَبُو سَلَمَةَ: سَأَلْتُ جَابِرًا عَنْ ذٰلِكَ. وَقُلْتُ لَهُ مِثْلَ الَّذِي قُلْتَ لِي. ⓹ فَقَالَ لِي جَابِرٌ: لَا أُحَدِّثُكَ إِلَّا بِمَا حَدَّثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ⓺ قَالَ: (جَاوَرْتُ بِحِرَاءٍ شَهْرًا، فَلَمَّا قَضَيْتُ جِوَارِي هَبَطْتُ،

**ترجمه:** ⓵ حضرت یحیی ابن کثیر وایي ⓶ ما د حضرت ابوسلمه ابن عبد الرحمٰن ابن عوف رضی الله عنه نه چې د اوچتې درجې تابعینواو مشاهیرو علماء اسلام اود فقهاء سبعه نه دي پوښتنه وکړه د قرآن کريم کومه حصه د ټولو نه مخکښې نازله شوه؟ ⓷ هغه جواب راکړو چې يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ما عرض وکړو اکثره علماء خو دا وایي چې د ټولو نه مخکښې اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ نازل شوي دي ⓸ حضرت ابوسلمه وفرمايل ما د حضرت جابر رضی الله عنه نه دا پوښتنه کړې وه اچې د قرآن کريم کومه حصه د ټولو نه مخکښې نازله شوې ده؟ نو هغه هم دا جواب راکړو کوم چې ماتاته درکړې دیا بیا ماهم هغوی ته دا اوویل څه چې تاماته ویلي دي اچې اکثره خلق خو دا وایي چې د ټولو نه مخکښې اقرأباسم ربك الذی نازل شوي دیا ⓹ نو هغوی ماته وفرمايل زه ستا مخکښې هغه حديث بيانوم چې رسول الله ﷺ زمونږ مخکښې ارشاد فرمايلی وو ⓺ حضور ﷺ دا وفرمايل چې زه يوه مياشت پورې په غارِ حرا کې خلوت نشين او معتکف وم هرکله چې خما د خلوت نشينۍ او اعتکاف موده پوره شوه او زه د غره نه راکوز شوم

**حل اللغات:-** ⓵ الْمُدَّثِّرُ: څادر يا کمبل اغوستونکې (يعنی دنبوت او رسالت څادر او درونډ بار اوچتونکې، ⓶ جَاوَرْتُ: گوشه نشينی يا اعتکاف مې اوکړو ⓷ هَبَطْتُ: أَيْ: نَزَلْتُ: راکوز شوم.

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب سورة المدثر (رقم-۴۹۲۲) ومسلم فی کتاب الإيمان/باب بدء الوحی إلی رسول الله صلی الله عليه وسلم (رقم-۲۵۷ - (۱۶۱) واحمد فی المسند:۳/۳۰۶

۱ فَنُودِيتُ فَنَظَرْتُ عَنْ يَمِينِي فَلَمْ أَرَ شَيْئًا، ۲ وَنَظَرْتُ عَنْ شِمَالِي فَلَمْ أَرَ شَيْئًا، ۳ وَنَظَرْتُ عَنْ خَلْفِي فَلَمْ أَرَ شَيْئًا، ۴ فَرَفَعْتُ رَأْسِي فَرَأَيْتُ شَيْئًا، ۵ فَأَتَيْتُ خَدِيجَةَ، فَقُلْتُ: دَثِّرُونِي، ۶ فَدَثَّرُونِي، وَصَبُّوا عَلَيَّ مَاءً بَارِدًا، ۷ فَنَزَلَتْ: ﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ - قُمْ فَأَنْذِرْ - وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ - وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ - وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ﴾ [المدثر: -۵] ۸ قَالَ وَذَلِكَ قَبْلَ أَنْ تُفْرَضَ الصَّلَاةُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱ نو اچانك ځما په غوږونو کې اواز راغې چې څوك صاحب ما مخاطب کوي ما ښي طرف ته وکتل نوماته هيڅ شی په نظر رانغې ۲ بيا مې ګس طرف ته وکتل نو اخوا هم هيڅ شی په نظر رانغلو ۳ وروسته مې نظر وکی نو هيڅ مې ونه ليدل ۴ بيا چې ماپورته نظر وکړو نو ماته څه په نظر راغلل (يعنې يوه فرشته راته ښکاره شوه د هغه په ليدو سره زه وويرېدم او د خوف نه رپيدو سره) ۵ بې بې خديجې ﷺ ته راغلم ورته مې اوويل په ما باندې کپړه واچوه (په ما باندې کپړه واچوه) ۶ بې بې خديجې ﷺ سمدستي په ما يوه کپړه واچوله او (ځما حواس بحال کولو د پاره) په ما باندې يخې اوبه واچولې ۷ ددې نه وروسته دا آيت نازل شو يا ايها المدثر قم فانذر وربك فكبر وثيابك فطهر والرجز فاهجر يعنې کپړه اغوستونکيه را لاړ شه او د خپل رب لويې بيان کړه او خپلې کپړې پاکې ساته اود ناپاکې نه پرهيز کوه ۸ او د وحې د نزول دا واقعه د مونځ فرض کېدو نه د مخکې ده (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ۴ فَنُودِيتُ: آواز راته اوکړې شو ۵ دَثِّرُونِي: کمبل راباندې واچوئ، ۶ وَصَبُّوا: راباندې ئې واړولې

**تسهيلات**:

**قوله**: أَوَّلُ مَا نَزَلَ مِنَ الْقُرْآنِ؟:

**د نزول وحی په اعتبارسره د ټولو نه اولنې سورت**: دَ نزول وحی په اعتبارسره دټولو نه مخکښې سورت علق پنځه آياتونه نازل شوی بيا دَ انقطاع وحی زمانه راغله. دَ انقطاع وحی نه پس چه مکمل سورت نازل شو هغه سورت مدثر دې دکوم تذکره چه په زير بحث حديث کښې ده نو دا مطلق دَ وحی خبره نه ده بلکه دکامل سورت دَ نازليدو خبره ده لکه چه دا شروع اضافی ده چه دَ انقطاع وحی نه پس دَ ټولو نه مخکښې دَ وحی نه پس نازل شوی وو

# [۵] بَابُ عَلَامَاتِ النُّبُوَّةِ

## دَ نبوت دَعلاماتو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه عشرة أحاديث مشتملة على إحدى عشرة علامة:**

① شق الصدر: ۱- ② تسليم الحجر عليه ﷺ: ۲-
③ شق القمر: ۳، ۴،
④ خندق النار دون أبي جهل: ۵-
⑤ الإخبارالأمن: ۲، ۷-
⑥ الإخبار بفتح مكة: ۶-
⑦ الإخبار باستغناء الناس عن المال المستقبل: ۶-
⑧ الإخبار بغزوة البحر وكون أم حرام من المجاهدين فيها: ۸-
⑨ الكلام المعجز في الفصاحة: ۹-
⑩ إقرار الأعداء بصداقة النبي صلى الله عليه وسلم: ۱۰-
⑪ بلوغ ملكه إلى الروم: ۱۰-

**د علامات: لغوی معنی:** علامات جمع ده دَدې مفرد علامة دې. علامات نښوته وائی

**دعلامات څخه مراد:** دلته هغه نښې اوعلامې مراد دی کوم چه دَ حضور پاك په نبوت باندې دلالت کوی

**د صاحب مشکاة په عنوان باندې اشکال:** شیخ عبدالحق رحمه الله اشعة اللمعات کښې لیکلی دی چه علامات نبوت او معجزات هم یو څیزدې. په دې وجه شراح حضرات حیران اوپریشان دی چه صاحب مشکوة هم دَ یومفهوم څیز په دوو جداجدا ابوابو کښې ولې ذکرکړو

**د اشکال دوه جوابونه:** ① په علامات نبوت کښې څه څیزونه هغه هم دی دَ کوم تعلق دَ نبوت دَ اعلان نه وړاندې واقعاتوسره دې لکه څنګه چه دَدې باب په حدیث نمبر(۵۸۵۲) او (۵۸۵۳) وغیره کښې دی. نوښکاره خبره ده چه دې ته معجزه خونه شي وئیلې مګرداپه نبوت باندې علامت اودلالت دې هم په دې وجه کیدې شی صاحب مشکوة داباب دَمعجزاتونه جدا اوساتلواودَدې دَپاره ئی جدا عنوان اوتړلو

② په معجزاتوکښې زیات تر دَهغه څیزونوبیان وی چه مخامخ انسان عاجز اومجبورکوی

چه معجزه دي او کتله اوس ایمان راوړه. او دَ نبوت په علاماتو کښې داسې نه وی بلکه په دې کښې زیات تر داسې څیزونه بیانولې شی چه فی نفسه دَحضورپاك په نبوت باندې دَعلامت په توګه دلالت کوی مګر څوك په ایمان راوړلوباندې مجبوراوعاجزکولې نه شی.
دا دواړه جوابونه حافظ فضل محمد صاحب صاحب د توضیحات دی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۵۸۵۲] د شق صدر واقعه

۵۸۵۲-() [۱] [۱] عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَتَاهُ جِبْرِيلُ [۲] وَهُوَ يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ، فَأَخَذَهُ، [۳] فَصَرَعَهُ، فَشَقَّ عَنْ قَلْبِهِ، [۴] فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ عَلَقَةً فَقَالَ: [۵] هَذَا حَظُّ الشَّيْطَانِ مِنْكَ، [۶] ثُمَّ غَسَلَهُ فِي طَسْتٍ مِنْ ذَهَبٍ بِمَاءِ زَمْزَمَ، [۷] ثُمَّ لَأَمَهُ وَأَعَادَهُ فِي مَكَانِهِ [۸] وَجَاءَ الْغِلْمَانُ يَسْعَوْنَ إِلَى أُمِّهِ، يَعْنِي ظِئْرَهُ [۹] فَقَالُوا: إِنَّ مُحَمَّدًا قَدْ قُتِلَ، [۱۰] فَاسْتَقْبَلُوهُ وَهُوَ مُنْتَقِعُ اللَّوْنِ [۱۱] قَالَ أَنَسٌ: فَكُنْتُ أَرَى أَثَرَ الْمِخْيَطِ فِي صَدْرِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی حضور ﷺ چې خپل ماشومتوب کې بې بې حلیمې رضی الله عنها سره وو د هغه وخت واقعه ده یوه ورځ حضور ﷺ ته حضرت جبرائیل علیه السلام راغې [۲] حضور ﷺ د وړو سره لوبې کولې چې حضور ﷺ یې اونیولو [۳] بیا یې سم څملولو بیا هغه د حضور ﷺ زړه ته نزدې سینه وڅیرله [۴] او د حضور ﷺ د زړه نه یې د جم شوي وینې یوه توره ټکړه راوایستله او رته یې اوویل [۵] دا ستا په جسم کې د شیطان حصه ده [که دا ټکړه ستا په جسم کې دغه شان پاتې شوې وې نو شیطان به د دې په ذریعه په تا قابو پیدا کولای] [۶] د دې نه وروسته هغوئ د حضور ﷺ زړه مبارك د سو زرو یو لګن کې د زمزم په اوبو سره ومنځې [۷] او بیا زړه په خپل ځاې ایښودلو سره سینه مبارکه یې برسیره نه برابره کړله [۸] هغه کشنیان چې دحضور ﷺ سره وه دا پوره منظر لیدو سره وویرېدل او وتښتېدل او د حضور ﷺ مور یعنی تیئ ورکونکې حلیمه رضی الله عنها ته راغلل [۹] او ورته یې اوویل چې محمد ووژل شو [۱۰] د بې بې حلیمه رضی الله عنها د کور او ګاونډیان خلق دې خبرې اوریدو سره هغه ځاې ته ورسیدل اچیرته چې حضور ﷺ موجود وو هغوئ حضور ﷺ صحیح سالم اولیدلو لیکن حضور ﷺ یې په داسې حال کې اولیدلو چې د خوف او دهشت نه] د حضور ﷺ د مخ مبارك رنګ بدل شوی وو [۱۱] حضرت انس رضی الله عنه دا روایت بیانولو سره اوویل چې مابه د حضور ﷺ په سینه مبارکه د ګنډلو (سلائې) ننبه لیدله (مسلم)

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الإیمان/باب الإسراء برسول الله صلی الله علیه وسلم إلی السماوات. وفرض الصلوات (رقم-۲۶۱ - (۱۶۲) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی آیات نبوة النبی صلی الله علیه وسلم وما قد خصه الله عز وجل به (رقم-۳۶۲٤)

**حل اللغات:-** ① الغِلْمَانِ: أي الصِّبْيَانِ: ماشومان. ② فَصَرَعَهُ: أي: فَطَرَحَهُ: نبي عليه السلام ئې راځملولو ③ فَشَقَّ: اوئې څيرله، اوئې شلوله ④ عَلَقَةً: أي: دَمًا غَلِيظًا: جم شوې يا چکه وينه، ⑤ حَظُّ الشَّيْطَانِ: أي: نَصِيبُهُ: د شيطان حصه، ⑥ طَسْتٍ: لوښې، خانک يا لګن ⑦ لَأَمَهُ: أي: أَصْلَحَ: برابر ئې کړو (يعني دنبي عليه السلام زړه مبارک ئې واپس په خپل ځائې کښې کېښودلو). ⑧ ظِئْرَهُ: أي: مُرْضِعَتَهُ حَلِيمَةَ: رضاعي مور يعني بي بي حليمه سعديه رضي الله عنها) ⑨ مُنْتَقِعُ اللَّوْنِ: أي: مُتَغَيِّرَهُ: يعني رنګ ئې بدل شوې وو زيړشوې وو. ⑩ أَثَرَ الْمِخْيَطِ: أي: الإِبْرَةِ: په ستن سره د ګنډلو نښه

**تسهيلات:**

**قوله: فَشَقَّ عَنْ قَلْبِهِ:**

**د شق صدر مفهوم:** يعني زړه سره ئې سينه اوشلوله اوبيائې دننه نه زړه رااويستلو دزړه دننه نه ئې توره کلکه وينه اوويستله اوبهرئې اوغورزوله بيائې زړه اوګنډلو اوبيائې سينه اوګنډله په کوم کښې چه دَ سينې نښه دَعمر مودې پورې باقي پاتې وه

**د شق صدر څلور ځله وقوع:**

د شق صدر اوشرح صدرواقعه حضورپاك سره څلورځل پيښه شوې ده

① دَحضرت حليمه سعديه ﷺ دَ پالنې په وخت کښې د شق صدر واقعه پيښه شوې دکوم ذکرچه په زيربحث حديث کښې دې. دغه وخت حضورپاك په کم عمرکښې وو کوم وخت چه حليمه سعديه ﷺ دَحضورپاك پالنه کوله

② د شرح صدرواقعه دَ لسوکالو په عمرکښې پيښه شوې

③ دَ نبوت دَ ظهورپه وخت کښې کوم وخت چه دَحضورپاك عمرڅلويښت کاله وو د شق صدر واقعه

④ آسمان ته دَ معراج دَپاره دَتللو په وخت د شق صدر واقعه پيښه شوې اوهغه وخت دَحضورپاك عمر مبارك يوپنځوس خواؤشا وو

**د انسان په بدن او په زړه کښې دننه دوه قسم مخلوق کار کوی:**

**قوله: هَذَا حَظُّ الشَّيْطَانِ مِنْكَ،**

**په انساني زړه د دوه قسمه مخلوق اثرانداز کيدل:** يعني دَ انسان په بدن اوبياپه زړه کښې دننه دوه قسم مخلوق کارکوی اوخپل خپل اثراچوی

① يومخلوق فرښتې په زړه کښې دننه ځائې جوړې شوی دی چرته چه دَ وينې قطرې هم وی داخايونه دَ فرښتودالهاماتو مقامات دی

② بل مخلوق شيطانان دی دا مقامات دَ شيطانانودَ وسوسو مرکزونه دی

**د دواړه قسمه مخلوق اثراندازی:** ① په دې دواړوکښې چه دَ کوم مخلوق کنټرول په دې

خایونو کښې قائم شو هم ذهغوی لاس ته ورخی اودزړه ذ وجې نه بیاپوره بدن متاثر کیږی.
که ذ فرښتو په قابو کښې زړه راغلو نوذ پوره بدن روحانی نظام صحیح کیږی
④اوکه چرې ذ شیطانانو کنټرول راغلو نوذ پوره بدن روحانی نظام خراب شی. په زیربحث حدیث کښې حظ الشیطان اشاره هم دې پس منظرطرف ته ده نولکه چه ذ حضور پاك قلبی روحانی نظام مکمل توګه باندې ذ فرښتو په لاس کښې راغلواوذ شیطانانوذ وسوسو ګنجائش ختم شو.

**اشکال:** چه ذ اپریشن په ذریعه ذ قلب اطهرنه هغه حصه پرې کولوسره ویستلې شوې وه نوذتخلیق په وخت دا په قلب اطهر کښې ولې پیدا کړې شوه؟ ذ شروع نه به الله تعالی داحصه نه پیدا کوله نوذ ویستلو هډو ضرورت به نه وو؟

**د اشکال جواب:** الله تعالی انبیاء کرام علیهم السلام په کامل بشریت باندې پیدا کړی دی په یونبی کښې څه بدنی نقص پرینخودو. که ذتخلیق په وخت داحصه نه پیدا کوله نوذحضورپاك په جسم اطهر کښې به یوبشری نقص پاتې کیدو او په کمال کښې به ئی فرق راتلو. په دې وجه ئی اول ذاعلی کمال تکمیل اوفرمائیلو بیائی ذ اپریشن په ذریعه دا اوویستلو په دې

**د زړه د اپریشن ایجاد:** حدیث سره انسانانوته ذ زړه ذ اپریشن لارخودنه ملاؤشوې ده. دوه نیم زره کاله پس چه په کوم څیزدنیا فخر کوی ذهغې شروع ذ محمدعربی ﷺ ذ ذات مبارك نه ذ بې سر اوسامانئی په دور کښې شوې.

**قوله:** أَثَرَ الْمِخْيَطِ:

**د اثر المحیط وضاحت:** یعنی ذ شرح صدرنه پس ذ سینې نښه ذ مرئی ذ قوتی نه واخله ترنامه پورې موجود وه په دې باندې ذ ویښتو یوه ښائسته کرخه وه.

**[۵۸۵۳] په نبی علیه السلام د د کا ڼری سلام اچول**

۵۸۵۳-() [۲] ①وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②(«إِنِّي لَأَعْرِفُ حَجَرًا بِمَكَّةَ ③كَانَ يُسَلِّمُ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ أُبْعَثَ، إِنِّي لَأَعْرِفُهُ الْآنَ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ابن سمره رضی الله عنه وایې چې رسول کریم ﷺ وفرمایل② زه هغه کانی پیژنم ③ چې په مکه کې د نبوت د ظهور نه مخکې به یې ماته سلام اچوی زه اوس هم هغه ښه پیژنم (مسلم)

**حل اللغات:-** ①قَبْلَ أَنْ أُبْعَثَ: د نبوت ملاویدو یا ښکاره کیدو نه مخکښې.

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب فضل نسب النبی صلی الله علیه وسلم، وتسلیم الحجر علیه قبل النبوة (رقم-۲-۲۲۷۷) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی آیات نبوة النبی صلی الله علیه وسلم وما قد خصه الله عز وجل به (رقم-۳۶۲۴)

**تسهيلات:**

**قوله**: إِنِّي لَأَعْرِفُ حَجَرًا:

**د حجر په مصداق كښې دوه اقوال:** ① دَ دې حجر نه مراد حجر اسود دې ② دې نه هغه كاڼړې مراد دې كوم چه دَ زقاق الحجر په نوم سره مشهور دې. اودا زقاق الحجر دَ مكې مكرمې دَ يوې محلې نوم دې چه دكعبې او دَ حضرت خديجه رضي الله عنها دكور په مينځ كښې واقع دې. او تراوسه پورې هغه كاڼړې په مكه كښې موجود دې او په هغه كاڼړې كښې دَ نبي كريم ﷺ دَ څنګلې نښې موجود دى.

**په نبي عليه السلام د جماداتو سلام اچول**:اهل مكه اوس هم دَدغه كاڼړى زيارت كوى. په يو روايت كښې دى چه حضورپاك ارشاد فرمائيلې دې چه كله حضرت جبرائيل عليه السلام ماله رسالت راوړلو سره راغلو دَهغې نه پس چه به زه كله هم دَ يوكاڼړى يا ونې مخې ته تيريدلم نوهغه به "السلام عليك يا رسول الله" وئيلو. دَ دې نه معلومه شوه چه حضورپاك دَ ټولو مخلوقاتو طرف ته راليږلې شوې دې.

**[٥٨٥٤]دشق قمر معجزه**

۵۸۵۴-() [۳] ①وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«إِنَّ أَهْلَ مَكَّةَ سَأَلُوا رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ يُرِيَهُمْ آيَةً، ③فَأَرَاهُمُ الْقَمَرَ شِقَّتَيْنِ ④حَتَّى رَأَوْا حِرَاءً بَيْنَهُمَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او حضرت انس رضي الله عنه وايې ② د مكي كافرو جمع كېدو سره درسول الله ﷺ نه مطالبه وكړه كه تاسو د نبوت دعوٰى كې ريښتنى يې نو څه نښه معجزه وښايه ③ نو حضور ﷺ د خپل لاس مبارك اشاري سره د سپوږمى دوې ټكړې كولو سره وښودله ④ ددې پورې چې هغه كافرو حراء غر د هغه دوو ټكړو په منځ كې وليدى. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ① آيَةً: أَيْ: عَلَامَةً دَالَّةً عَلَى نُبُوَّتِهِ وَرِسَالَتِهِ: نښه او علامت چه د نبى عليه السلام په نبوت اورسالت باندې دلالت كوى يعنى معجزه. ② شِقَّتَيْنِ: أَيْ: قِطْعَتَيْنِ: دوه ټكړې، دوه حصې، ③ حِرَاءً: د يو غر نوم دې.

**تسهيلات:**

**قوله**: حَتَّى رَأَوْا حِرَاءً بَيْنَهُمَا

**اشكال**: شق القمر يوه ډيره لويه واقع ده كه چرې حقيقتًا شوې وى نو صرف اهل مكه ولې اوليدلو نورو خلقو به هم ليدلو. لهذا كه چرې دا واقعتًا ريښتيا وې نو پوره دنيابه ليدلو؟

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب المناقب/باب سؤال المشركين أن يريهم النبى صلى الله عليه وسلم آية، فاراهم انشقاق القمر (رقم-٣٦٣٧) ومسلم فى كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب انشقاق القمر (رقم-٤٦ - (٢٨٠٢) كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى آيات نبوة النبى صلى الله عليه وسلم وما قد خصه الله عز وجل به (رقم-٣٦٢٤)واحمد فى المسند: ٣٧٧/١

**د شق القمر د واقعې د عدم شهرت وجوه:** ددې واقعې د عدم شهرت وجوهات بعضې عالمانو ليکلي دي.

① دَ شق القمر واقعه چونکه دَ شپې وه په دې وجه زياته مشهوره نه شوه

② دا خاص خلقو غوښتې وه نوضروری نه وه چه دَ ټولې دنيا خلقو ته خودلې شوې وه.

③ ټول انسانان ئی عام هم نه کړل اونه دټولو غوښتلو اوبيا دَ ټولو کتلو نه پس که چرې کافرانو انکار کولې نوبيابه عمومی عذاب راتلو لکه څنګه چه دَ غوښتنې دمعجزه نه دَ انکار نه پس راځی. په سماوی کائنات کښې دَ"خرق والتئام" انکار يوځو مخروق الدماغ او محروف الدماغ خلقو کار دې کوم چه ناقابل التفات دې. دَ الله تعالی په حکم سره دَ حضورپاك په لاس باندې دَمعجزه ظهور کښې دَ محال کيدو ګنجائش نشته دې. اهل تاريخ دَ شق القمر واقعه په تواتر سره نقل کړې ده. په احاديثو کښې دَدې ثبوت موجود دې دَ قرآن اعلان دې ﴿ اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ۝ ﴾ اوس انکار بې کاره دې. دې سره حديث کښې دَ فرقتين الفاظ دی دې نه مراد هم دوه ټکړې دی.

٥٨٥٥-() [٣] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «انْشَقَّ الْقَمَرُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِرْقَتَيْنِ: ② فِرْقَةٌ فَوْقَ الْجَبَلِ، وَفِرْقَةٌ دُونَهُ ③ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (اشْهَدُوا)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** ① او حضرت ابن مسعود ﷺ وايې د رسول الله ﷺ په زمانه کې سپوږمۍ په منځ چاودلو سره داسې دوه ټکړي شوه ② چې يوه ټکړه د غر برسيره جانب باندې وه او دويمه لاندې طرف ته ③ رسول الله ﷺ [د کافرو په طلب دا معجزه ښودلو سره] هغوئ ته وفرمايل چې ځما د نبوت يا ځما د معجزې شهادت ورکړئ. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** اشْهَدُوا

**د شق القمر دوه قسمونه:** ①دَ رسول الله ﷺ دَ لاس مبارك په اشاره سره دَ سپوږمئی دوه ټکړې کيدل دَ کوم په صداقت کښې چه هيڅ شك شبه نشته دې. په حديث کښې دَ شهادت يوه معنی داده چه راشئی دامعجزه اوګورئی په دې صورت کښې به "اشهدو" دَ شهادت نه مشتق منلې شی. دَ دې نه مراد هم شق القمر دې چه دَ حضورپاك دَ معجزې په توګه واقع شوې . ② انشقاق قمر بل دې کوم چه به دَ قيامت په ورځ وی. کوم چه په قرآن کښې په سورت القمر بيان کړې شوې دې.

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب سؤال المشرکين أن يريهم النبی صلى الله عليه وسلم آيةً. فأراهم انشقاق القمر (رقم-٣٦٣٦) ومسلم فی کتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب انشقاق القمر (رقم-٤٤ -(٢٨٠٠) واحمد فی المسند: ٣٧٧/١؟

## [۵۸۵٦] د الله تعالى د طرفه ابوجهل ته تنبيه

۵۸۵٦-() [۵] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ أَبُو جَهْلٍ: [۲] هَلْ يُعَفِّرُ مُحَمَّدٌ وَجْهَهُ بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ؟ فَقِيلَ: نَعَمْ [۳] فَقَالَ: وَاللَّاتِ وَالْعُزَّى لَئِنْ رَأَيْتُهُ يَفْعَلُ ذٰلِكَ لَأَطَأَنَّ عَلَى رَقَبَتِهِ، [۴] فَأَتَى رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ يُصَلِّي - [۵] زَعَمَ لِيَطَأَ عَلَى رَقَبَتِهِ - [٦] فَمَا فَجِئَهُمْ مِنْهُ إِلَّا وَهُوَ يَنْكُصُ عَلَى عَقِبَيْهِ، [۷] وَيَتَّقِي بِيَدَيْهِ، فَقِيلَ لَهُ مَا لَكَ؟

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وايي يو وار ابوجهل د خلقو مخکې ډيرپه تحقير سره اوويل [۲] يا محمد ستاسو مخکې خپل مخ خاك آلود کوي يعنی مونځ اوسجده کوي خلقو اوويل هو [۳] ابوجهل اوويل په لات او عزٰی دواړو لويو بتانو قسم که ما محمد داسې کولو يعنی مونځ او سجده کولو باندې اوليدلو نو د هغه په څټ به پښه ايږدم [۴] يوه ورځ هرکله چې حضور ﷺ مونځ کوی او سجده کې وو [۵] ابوجهل دي ناپاکي ارادي سره چې د حضور ﷺ څټ مبارك خپلو پښو سره پامال کړي [٦] هغه دحضور ﷺ طرف ته مخکې مخکې کيدو کې اچانك اودريدلو او سمدستي خلقو طرف ته راتاؤشو [۷] او داسې ښکاره کيدی چې هغه په خپلو دواړو لاسونو سره څه شی منع کوي [يعنی کوم وخت چې هغه واپس راتلو سره خپلو خلقوته ورسيدی نو داسې معلوميده چې څه سخت آفت باندې راغلي او هغه دواړو لاسونو سره هغه منع کوي] خلقو په دې ليدو سره څني پوښتنه وکړه چې آخر څه قصه ده [چې ته خپله اراده پوره کولو نه بغير واپس راغې او خپلو لاسونو سره د څه شي د منع کولو کوشش کوې].

**حل اللغات:-** ① يُعَفِّرُ: دا د تَعْفِير نه دې، وَهُوَ التَّمْرِيغُ: په خاورو ککړ کولو په معنی کښې دې. ② وَاللَّاتِ وَالْعُزّٰى: دا دواړه په بيت الله شريف کښې د ننه دوه غټ مشهور بتان وو. ③ لَأَطَأَنَّ: أَيْ: لَأَدُوسَنَّ: پامال کوم به ئې، په څټ به ورته خپه ايږدم. ④ فَجِئَهُمْ: أَيْ أَتَاهُمْ بَغْتَةً: يعنی ناڅاپه راتاؤ شو. ⑤ يَنْكُصُ: أَيْ: يَرْجِعُ: راواپس شو.

[۱] فَقَالَ: إِنَّ بَيْنِي وَبَيْنَهُ لَخَنْدَقًا مِنْ نَارٍ [۲] وَهَوْلًا وَأَجْنِحَةً. [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (لَوْ دَنَا مِنِّي [۴] لَاخْتَطَفَتْهُ الْمَلَائِكَةُ عُضْوًا عُضْوًا)». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوجهل صفا اوويل زه دا وينم چې ځما او د محمد په منځ کې د اور خندق کنده ده [۲] ډيرخوفناك منظر دی او د محافظ فرشتو وزري او متې دي [۳] رسول الله ﷺ وفرمايل که ابوجهل ماته نزدې راغلی وی، [۴] نو فرشتو به د هغه جسم ټکړې ټکړې کړې وې [يعنی هري فرشتي به د هغه د بدن يو يو عضو تښتولی وی].

**حل اللغات:-** ⑥ هَوْلًا: أَيْ: خَوْفًا وَأَمْرًا شَدِيدًا: ويره اوسخته خطره. ⑦ وَأَجْنِحَةً: د جَنَاح جمع ده، وزرې يعنی

---

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب صفة القيامة والجنة والنار /باب قوله: {إن الإنسان ليطغى أن رآه استغنى} [العلق: ۷] (رقم -۳۸ - (۲۷۹۷)

دَ حفاظت کونکو فرښتو متې وي. ⑧لَاخْتَطَفَتْهُ: أَي: اسْتَلَبَتْهُ بِسُرْعَةٍ: هغه به ئې تکړې تکړې کړې وي يعنی حفاظت کونکو فرښتو به هغه ذره ذره کړې وي.

**تسهيلات:**

**قوله: فَمَا فَجِئَهُمْ مِنْهُ:**

**د مذكوره جملې مفهوم:** فَجِئَهُمْ کښې دَفاعل ضميرد ابوجهل طرف ته راګرځي اوهم مفعول به ضمير اهل مجلس طرف ته راګرځي اودَمنه ضمير حضوراکرم طرف ته راګرځي. معنی داچه ابوجهل حضوراکرم طرف نه دَخپل مجلس والوطرف ته ناڅاپي په داسې حال کښې راؤرسيدو چه دواړه لاسونه اوچت کړی التّه خپې په بدحواس کيدوسره راروان وو.

**[۵۸۵۷]دامن پيدا کيدو پيشن ګوئی**

٥٨٥٧-(١) [٦] ①وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ②«بَيْنَا أَنَا عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذْ أَتَاهُ رَجُلٌ فَشَكَا إِلَيْهِ الْفَاقَةَ، ③ثُمَّ أَتَاهُ الْآخَرُ فَشَكَا إِلَيْهِ قَطْعَ السَّبِيلِ. ④فَقَالَ: (يَا عَدِيُّ! رَأَيْتَ الْحِيرَةَ؟ ⑤فَإِنْ طَالَتْ بِكَ حَيَاةٌ فَلَتَرَيَنَّ الظَّعِينَةَ تَرْتَحِلُ مِنَ الْحِيرَةِ ⑥حَتّٰى تَطُوفَ بِالْكَعْبَةِ لَا تَخَافُ أَحَدًا إِلَّا اللّٰهَ، ⑦وَلَئِنْ طَالَتْ لَكَ حَيَاةٌ لَتُفْتَحَنَّ كُنُوزُ كِسْرٰى،

**ترجمه:** ① اوحضرت عدي ابن حاتم ﷜ وايي ② يوه ورځ زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضروم ناڅا په يوسړی راغې او حضور ﷺ ته يې د خپل فقر وفاقي او افلاس شکايت وکی ③ بيا يوبل سړی راغې هغه د راهزني شکايت وکی چې په لار کې ډاکوانو لوټ کړم ④ نو حضور ﷺ د هغه دواړو خبري اوريدو نه وروسته ماته وفرمايل اې عدي! تاخو به حيره ليدلي وي ⑤ که ستا عمر زيات شي نو يقيناً به ته ويني چې يوه ښځه به تنها سوريدو سره دحيره نه روانه شي ⑥ او مکي ته رسيدو سره د کعبي طواف به وکړي او سوا د الله ﷻ نه هغه ته به د هيڅ ډاکو اوغله خوف نه وي ⑦ او که ته زياتو ورځو پوري ژوندی پاتې شوي نو وبه ويني چې د کسرٰی د فارس د بادشاه خزاني به مسلمانانو د پاره خلاصي شي [چې د غنيمت په طور به ورته حاصلي شي او ټولو مسلمانانو کې به تقسيم شي].

**حل اللغات:-** ①قَطْعَ السَّبِيلِ: أَيْ: قُطَّاعِ الطَّرِيقِ: لارکښې شوکه کونکی، ډاکوان، ②الْحِيرَةَ: دکوفې نه شا طرف ته د يو پخوانی ښارنوم دې. ③الظَّعِينَةَ: أَيْ: الْمَرْأَةَ الْمُسَافِرَةَ: سفرکونکې ښځه، ④تَرْتَحِلُ: روانه به شی، سفربه کوی. ⑤لَتُفْتَحَنَّ: أي لَتُؤْخَذَنَّ: تاسوبه فتح کړئ، حاصل به کړئ.

①وَلَئِنْ طَالَتْ بِكَ حَيَاةٌ لَتَرَيَنَّ الرَّجُلَ يُخْرِجُ مِلْءَ كَفِّهِ مِنْ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ ②يَطْلُبُ مَنْ يَقْبَلُهُ فَلَا يَجِدُ أَحَدًا يَقْبَلُهُ مِنْهُ، ③وَلَيَلْقَيَنَّ اللّٰهَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ يَلْقَاهُ ④وَلَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ تَرْجُمَانٌ يُتَرْجِمُ لَهُ، ⑤فَلَيَقُولَنَّ: أَلَمْ أَبْعَثْ إِلَيْكَ رَسُولًا فَيُبَلِّغَكَ؟ فَيَقُولُ: بَلٰى. ⑥يَقُولُ: أَلَمْ أُعْطِكَ مَالًا وَأُفْضِلْ عَلَيْكَ؟ فَيَقُولُ: بَلٰى، ⑦فَيَنْظُرُ عَنْ

جلد نمبر 12

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب علامات النبوة في الإسلام (رقم-٣٥٩٥) واحمد في المسند: ٤/٢٥٧

يَمِينِهِ فَلَا يَرَى إِلَّا جَهَنَّمَ، ۸ وَيَنْظُرُ عَنْ يَسَارِهِ فَلَا يَرَى إِلَّا جَهَنَّمَ، ۹ اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ، ۱۰ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ)

**ترجمه:** ۱ او که ستا عمر زيات شو نو وبه وينې چې يوسړی به يوموټ برابر سونا چاندي خيرات کولو د پاره وځي ۲ او قبلونکی يعنې څوك محتاج او مفلس به تلاش کوي خوداسې سړی به پيدا نه کړي چې هغه نه د خيرات هغه مال واخلي ۳ او ياد لره د قيامت په ورځ به تاسو کې يوسړی د الله ﷻ په حضور کې داسې پيش شي ۴ چې د هغه او د الله ﷻ په منځ کې به څوك ترجمان نه وي چې د هغه حال بيان کی ۵ بيابه الله ﷻ د هغه نه پوښتنه وکړي آيا ماتاته د دين احکام رسولو او د قيامت د ورځې خبر درکولود پاره رسول نه وو راليږلی هغه سړی به وايې بيشکه تا رسول راليږلی وو ۶ دي نه وروسته به تری نه الله ﷻ پوښتنه وکړي ما تاته مال وزر نه وو عطاکړی او آيا په تاباندې مي فضل او احسان نه وو کړی؟ هغه به وايې بېشکه تاماته مال هم عطا کړی وو او په مادي فضل او احسان هم کړی وو ۷ ددي نه وروسته به هغه سړی خپل ښي طرف ته وګوري نو هغه ته به د دوزخ نه علاوه بل هيڅ په نظر را نشي [چې هغه د ترك طاعت او عبادت په سبب ځان د پاره واجب کړی وو] ۸ بيابه هغه خپل چپ طرف ته وګوري نو هغه ته به د دوزخ نه علاوه بل څه په نظر را نشي [چې هغه د ګناه کولو په سبب په ځان واجب کړی وو نو رسول الله ﷺ ټول خلق مخاطب کولو سره وفرمايل چې] ۹ اې خلقو! د دوزخ د اور نه د خيرات په ذريعه خپل ځان بچ کئ که څه هم د خرما د يوې ټکړې خيرات کولو وس ولرئ ۱۰ او که يوسړی د الله په نوم خرڅ کولو د پاره د خرما يوه ټکړه هم نه لري نو نرمي او خوش خلقي سره خبره کولو سره ځان دي د دوزخ د اور نه بچ کړي.

**حل اللغات:**- ⑥ لَيَلْقَيَنَّ: ملاقات به اوشي، پيش به شي. ⑦ بِشِقِّ تَمْرَةٍ: أَيْ: بِنِصْفِهَا أَوْبِبَعْضِهَا: نيمه يا حصه د کجورې.

۱ قَالَ عَدِيٌّ: فَرَأَيْتُ الظَّعِينَةَ تَرْتَحِلُ مِنَ الْحِيرَةِ ۲ حَتَّى تَطُوفَ بِالْكَعْبَةِ لَا تَخَافُ إِلَّا اللَّهَ ۳ وَكُنْتُ فِيمَنِ افْتَتَحَ كُنُوزَ كِسْرَى بْنِ هُرْمُزَ ۴ وَلَئِنْ طَالَتْ بِكُمْ حَيَاةٌ لَتَرَوُنَّ مَا قَالَ النَّبِيُّ أَبُو الْقَاسِمِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۵ (يُخْرِجُ مِلْءَ كَفِّهِ)». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضرت عدی ابن حاتم دا روايت بيانولو نه وروسته اوويل د حضور ﷺ د دي پيشن ګوئي مطابق ماخو دا وليدل ۲ چې په اوښه سپره ښځه د خانه کعبې طواف کولو د پاره حيره نه تنها سفر کوي او د الله ﷻ نه ماسوا بل هيچا نه نه بيريږي ۳ او زه خپله په هغه په خلقوکي شامل وم چې هغوئ د کسری ابن نوشيروان د فارس د بادشاه خزانې خلاصې کړې ۴ اوس که ته زياتې ورځې ژوندی پاتې شوې نو د رسول الله ﷺ داپيشن ګوئي به هم حرف به حرف پوره کيدونکی ووينئ ۵ چې يوسړی به موټ برابر سونا چاندي

خيرات كولو د پاره وخي او هيڅ سړى به د هغه آخستونكى پيدا نه كى . «بخاري»

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَتَرَيَنَّ الظَّعِينَةَ تَرْتَحِلُ مِنَ الْحِيرَةِ

**دامن پيشنګوئى:** په حديث الباب كښې درې پيشنګوئى فرمائيلي شوى دى. اول دا چه دعربو په ملك كښې به دومره امن او امان شى چه حيره كوم چه د كوفې په خواكې يو پخوانې ښار دې د هغه ځائى نه به يوه ښځه مكې ته راځى نو هغې ته به د لارې شوكيدو يا نور څه قسم خطرې نه وى.

**قوله:** لَتُفْتَحَنَّ كُنُوزُ كِسْرَى،

**د اسلامى فتوحاتو پيشنګوئى:** دويم دا چه الله تعالى به مجاهدينو ته كاميابئى وركوى چه د اهل فارس عظيم سلطلنت به فتح كړى.

**قوله:** لَتَرَيَنَّ الرَّجُلَ يُخْرِجُ مِلْءَ كَفِّهِ مِنْ ذَهَبٍ

**د صدقې وركونكى نه موندلو كښې دوه احتمالات:** ① دريم دا چه داسې وخت به راشى چه هرڅيز كښې به دومره زياتوالې پيدا شى چه يو موتې صدقه كونكې كس به لټون كوى چه چاته صدقه وركړم. صدقه اخستونكې به څوك نه ملاويږى. دابه د حضرت عيسى عليه السلام په زمانه كښې وى.

② د دې يو مطلب دا هم كيدې شى چه صدقه وركونكې به صحيح مستحق لټوى حالانكه ډيرزيات غوښتونكې به وى هغه ته به معلومه نه وى چه په چا باندې صدقه كيږى او څوك پيشه ور دې. د دې پيشنګويو متعلق بعضې حضراتو وئيلى دى چه دا د حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله په دور خلافت كښې پوره شوې دى چه دهغوى په زمانه كښې دعامو خلقو حالت دومره بهتر وو چه د صدقې اوخيرات مال اخستونكې به نه ملاويدلو.

**د نبى عليه السلام د جواب حقيقت:** اوس نبى كريم ﷺ اولنئى پيشنګوئى دهغه سړى په جواب كښې فرمائيلې وه كوم چه د لارې شوكولو شكايت كړې وو او دويمه پيشنګوئى د هغه سړى په جواب كښې وه چا چه د خپل فقر او غربت شكايت كړې وو.

**[۵۸۵۸] د الله تعالى په دين كښې تكليفونه زغمل**

۵۸۵۸-(۱) [ع] ① وَعَنْ خَبَّابِ بْنِ الْأَرَتِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «شَكَوْنَا إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② وَهُوَ مُتَوَسِّدٌ بُرْدَةً فِي ظِلِّ الْكَعْبَةِ ③ وَقَدْ لَقِيَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ شِدَّةً، ④ فَقُلْنَا: أَلَا تَدْعُو اللهَ، فَقَعَدَ وَهُوَ مُحْمَرٌّ وَجْهُهُ وَقَالَ ⑤ "كَانَ الرَّجُلُ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ يُحْفَرُ لَهُ فِي الْأَرْضِ، فَيُجْعَلُ فِيهِ، ⑥ فَيُجَاءُ بِمِنْشَارٍ، فَيُوضَعُ فَوْقَ رَأْسِهِ فَيُشَقُّ بِاثْنَتَيْنِ، ⑦ فَمَا يَصُدُّهُ ذَلِكَ عَنْ دِينِهِ،

[1]) اخرجه البخاري فى كتاب المناقب/باب علامات النبوة فى الإسلام (رقم-۳۶۱۲) واحمد فى المسند:۶/۳۹۵

**ترجمه:** [۱] حضرت خباب ابن ارت رضي الله عنه وايي يوه ورځ مونږ رسول الله ﷺ ته د كفارو د سخت ترين مخالفت او دښمني شكايت وكړ [۲] چې هغه وخت حضور ﷺ د خانه كعبې په سايه (سورې) كې ترسر لاندې كمبل ايښي پروت وو [۳] چې مونږ ته ددې مشكانو نه سخت اذيت او تكليف رسيږي [۴] او عرض مو وكړ چې هركله هغوئ د ايذا رسائي نه نه منع كېږي نو تاسو د هغوئ په حق كې بد دعا ولې نه كوئ زمونږ داخبره اوريدو سره حضور ﷺ راپورته شو او مخ مبارك يې سور شو وي فرمايل [۵] ستاسو نه مخكې ډير خلق داسې تير شوي دي په هغوئ كې ځيني هغه څوك وه چې د هغه د پاره به په زمكه كې يوه كنده وكنستل شوه بيا هغه سرې به په هغه كنده كې كينول شو [يا ودرول شو] [٦] او بيا آره راوړلو سره د هغه په سر به كيښودل شوه او په هغه اري سره به هغه شلولو سره د هغه سرې دوه ټكړې كيدې [۷] ليكن دې سخت عذاب هم هغه د خپل دين نه نه شو ګرځولې.

**حل اللغات:-** ① مُتَوَسِّدٌ: الشَّيْءَ جَعَلَهُ تَحْتَ رَأْسِهِ: څه څيز د سرلاندې ايخودلو ته وائي يعنې بالخت. ② بُرْدَةٌ: أَيْ: كِسَاءٌ مُخَطَّطًا: لكير دار زيګ څادر، كمبل. ③ مُحْمَرٌّ: أَيِ اشْتَدَّ حَرَارَتُهُ: مخ مبارك ئې سور شو. ④ يُحْفَرُ: أَيْ يُجْعَلُ لَهُ حُفْرَةٌ: كنده به ورله اوكنستلې شوه. ⑤ مِنْشَارٌ: وَهُوَ آلَةٌ يُشَقُّ بِهَا الْخَشَبَةُ: د لرګى كټ كولو آله، آره، ⑥ فَيُشَقُّ: أَيْ: فَيَنْقَطِعُ: څيرلې به شو. ⑦ فَمَا يَصُدُّهُ: أَيْ: فَلَا يَمْنَعُهُ: نه به ئې شو منع كولې (دې سخت عذاب د خپل دين نه).

> [۱] وَيُمْشَطُ بِأَمْشَاطِ الْحَدِيدِ [۲] مَا دُونَ لَحْمِهِ مِنْ عَظْمٍ وَعَصَبٍ [۳] وَمَا يَصُدُّهُ ذَلِكَ عَنْ دِينِهِ، [۴] وَاللهِ لَيَتِمَّنَّ هَذَا الْأَمْرُ حَتَّى يَسِيرَ الرَّاكِبُ مِنْ صَنْعَاءَ إِلَى حَضْرَمَوْتَ [۵] لَا يَخَافُ إِلَّا اللهَ أَوِ الذِّئْبَ عَلَى غَنَمِهِ [٦] وَلَكِنَّكُمْ تَسْتَعْجِلُونَ)». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او يوسړې هغه وو چې د هغه په جسم به د اوسپنې تيزه منګز وچلول شوه [۲] چې غوښې نه لاندې هډوكو او پلو پورې به يې خيرې كړو [۳] ليكن دې سخت ترين عذاب هم هغه د خپل دين نه ګرځولې نه شو [۴] قسم په الله دا دين به درجه كمال ته رسيږي او تاسو به د مصيبتونو او پريشانۍ ددې ختميدونكې ډور نه وروسته د آسانۍ او اطمينان هغه زمانه وويني چې يوسړې به صنعاء نه حضر موت پورې تنها سفر كوي [۵] او د الله ﷻ نه علاوه به د هيچا نه نه ويريږي يا داچې يوسړي ته به د خپلو بزو په باره كې د شرمخانو نه هيڅ خطره او خوف نه وي [٦] ليكن تاسو جلتي كوئ. (بخاري)

**حل اللغات:-** ⑧ عَصَبٌ: پټې، پلې، ⑨ لَيَتِمَّنَّ: أَيْ: لَيَكْمُلَنَّ: خامخا به ئې تمام كوى، تكميل ته به رسوى (دا دين). ⑩ صَنْعَاءَ: بَلَدٌ بِالْيَمَنِ: په يمن كښې يو ښار نوم دې. ⑪ حَضْرَمَوْتَ: د يو ښار نوم دې.

**تسهيلات:**

**قوله: وَعَصَبٍ:**

**امت ته په مصائبو د صبر كولو تعليم:** يعنى د اوسپنې تيره ګمنز به د هغه سرې په هډوكو او

پټوپه مینځ کښې چلولې شوه په کوم سره چه به غوښنه اوچتیدله او هډوکی به پاتې کیدل. مګر دې مصیبت هغه سړې په دین باندې تللو او خپلولونه منع نه کړو. حضورپاك په دې حدیث کښې امت ته مصیبتونو باندې صبرکول او دَدین دپاره امتحانونه تیریدلو تعلیم ورکړې دې اودَ استقامت هدایت ئې ورته کړې دې اوقسم خوړلوسره ئې فرمائیلی دی چه دَدې دین په برکت سره به یو مثالی امن راځی تاسو تادی مه کوئی.

## [۵۸۵۹] په خوب کښې د مجاهدینو لیدل

۵۸۵۹-([1]) [۸] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدْخُلُ عَلَى أُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ، [۳] وَكَانَتْ تَحْتَ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، [۴] فَدَخَلَ عَلَيْهَا يَوْمًا فَأَطْعَمَتْهُ، [۵] ثُمَّ جَلَسَتْ تَفْلِي رَأْسَهُ، [۶] فَنَامَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۷] ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ، [۸] قَالَتْ: فَقُلْتُ: مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه وایې [۲] رسول الله ﷺ به بي بي اُم حرام بنت ملحان رضی الله عنها کره تلو [۳] چې د حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه ښځه وه [۴] یوه ورځ حسب معمول حضور ﷺ بي بي ام حرام رضی الله عنها کره تشریف راوړی نو اُم حرام ورباندې طعام وخوړلي [۵] بیا د رسول الله ﷺ په سر مبارك کې سېږو کتلو د پاره کیناسته [۶] په دې دوران کې حضور ﷺ اوده شو [۷] بیا څه وخت وروسته حضور ﷺ په خندا سره بیداره شو [۸] ام حرام بیان وکړو ما چې حضور ﷺ هغه حالت کې په خندا اولیدلو نو پوښتنه مې ترینه وکړه یارسول الله! تاسو په څه باندې وخندل؟

**حل اللغات:**- ① تَفْلِي: أَيْ: تُفَتِّشُ: لټولو ئې (یعنی سېږې ئې پکښې کتلې).

[۱] قَالَ: (نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا عَلَيَّ غُزَاةً فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، [۲] يَرْكَبُونَ ثَبَجَ هَذَا الْبَحْرِ مُلُوكًا عَلَى الْأَسِرَّةِ، [۳] أَوْ مِثْلَ الْمُلُوكِ عَلَى الْأَسِرَّةِ)، [۴] فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ادْعُ اللّٰهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ، [۵] فَدَعَا لَهَا ثُمَّ وَضَعَ رَأْسَهُ فَنَامَ، [۶] ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ، [۷] فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا يُضْحِكُكَ؟ [۸] قَالَ: (نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا عَلَيَّ غُزَاةً فِي سَبِيلِ اللّٰهِ). كَمَا قَالَ فِي الْأُولَى.

**ترجمه:** [۱] وې فرمایل په خوب کې خماد ا مت یوجماعت په دی حال کې خما مخې ته راوستل شو او ماته وښودل شو چې هغوئ د الله ﷻ په لار کې جهاد کوي [۲] او په سمندر کې داسې سفر کوي لکه بادشاه چې په خپل تخت وي [۳] یاداسې یې وفرمایل لکه چې د بادشاهانو په شان په تخت جلوه ګر وي [۴] ما دي خبري اوریدوسره عرض وکړو یارسول

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب الدعاء بالجهاد والشهادة للرجال والنساء (رقم-۲۷۸۸) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب فضل الغزو فی البحر (رقم-۱۶۰ - (۱۹۱۲) والترمذی فی کتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/ ما جاء فی غزو البحر (رقم-۱۶۴۵) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب فضل الجهاد فی البحر (رقم-۳۱۷۱) کتاب الجهاد/باب الترغیب فی الجهاد (رقم-۳۹) واحمد فی المسند:۳/۲۴۰

الله! د الله ﷻ نه دعا وغواړئ چې په هغه مجاهدينو کې چې د سمندر سينه شلولو سره د الله ﷻ په لار کې وځي ماهم په هغوئ کې شامله کړي [۵] حضور ﷺ د ام حرام په حق کې دعاء وکړله دي نه وروسته حضور ﷺ پربالښت سر مبارك ايښودلو سره بيا اوده شو [۶] څه ساعت وروسته بيا حضور ﷺ په خندا سره را بيداره شو [۷] ماعرض وکړو يارسول الله! تاسو اوس ولي وخندل؟ [۸] وې فرمايل اوس بيا په خوب کې ځما امت کې څه خلق ځما مخې ته داسې حال کې پيښ شوه چې هغوئ د الله ﷻ په لار کې جهاد کوئ څرنګه چې حضور ﷺ په مخکني ځل فرمايلي وه دا ځل يې هم هغه الفاظ ارشاد وفرمايل [چې هغه خلق په سمندر کې داسې محو سفر وو څرنګه چې بادشاه په خپل تخت باندې وي].

**حل اللغات:**- ⑦ ثَبَجَ: أَيْ وَسَطَهُ وَمُعْظَمَهُ: دَ سمندر په مينځ کښې چه کوم غټ موجونه وی او ډيرې زياتې اوبه وی هغې ته ثبج وائی. مراد دَ سمندر سينه او مينځ دې. ③ الْأَسِرَّةِ: جمع د سرير ده، تختونه. ④ غُزَاةً: غزا او جهاد کونکی،

> [۱] (قُلْتُ: يَارَسُولَ اللهِ) ادْعُ اللهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ. [۲] قَالَ: (أَنْتِ مِنَ الْأَوَّلِينَ). [۳] فَرَكِبَتْ أُمُّ حَرَامٍ الْبَحْرَ فِي زَمَنِ مُعَاوِيَةَ، [۴] فَصُرِعَتْ عَنْ دَابَّتِهَا حِينَ خَرَجَتْ مِنَ الْبَحْرِ فَهَلَكَتْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ما دي خبري اوريدو سره دا ځل هم بيا عرض وکی يارسول الله! تاسو د الله ﷻ نه دعا وغواړئ چې هغه مجاهدينو کې ماهم شامله کړي [۲] حضور ﷺ وفرمايل ته په مخکنی جماعت کې يې [۳] نو بي بي ام حرام د حضرت معاويه په زمانه کې د جهاد په غرض بحري سفر وکی [۴] او کوم وخت چې سمندر نه راوتلو سره په ځاروي سپره شوه نو ناځا په د ځاروي د شا نه په زمکه راولويده او د الله ﷻ په لار کې يې د شهادت مرتبه پيدا کړه ددې دنيا نه يې سفر وکی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ⑤ فَصُرِعَتْ: أَيْ: فَسَقَطَتْ: راپريوتله (د سوارلئ نه).

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ جَلَسَتْ تَفْلِي رَأْسَهُ،

**د ام حرام پيژندګلو:** يعنی حضرت ام حرام بنت ملحان ﷺ دَ حضورپاك په سر کښې سپږې لټولې. اول په دې خبره باندې ځان پوهه کړئ چه حضرت ام حرام ﷺ دَ حضورپاك رضاعی خاله يا رضاعی ترور وه. اول دا خبره په تفصيل سره ليکلې شوې ده. چه ام سليم ﷺ او ام حرام ﷺ دواړه انصاری ښځې دی په مدينه کښې هغوی حضرت آمنه يا خواجه عبدالله سره پيئي ځکلې وو. لهذا دا ښځې دَ حضورپاك محارم نه وو.

**د نبی عليه السلام په سر کښې د سپږو لټولو مطلب:** دَ حضورپاك په بدن کښې سپږې نه وې نولټول يو ځيزدې او ملاويدل بل ځيزدې.

**قوله**: حِينَ خَرَجَتْ:

**دامت ملحان شهادت**: يعنى دَ سمندر سفرمكمل كولوسره كله غاړې ته راغله او په خپله سورلئى باندې سوره شوه نودَ ځناور دَ شانه راپريوتلو اوشهيده شوه. په سمندركښې جهاز چلول او سمندركښې دَ جهاد شروع حضرت معاويه ﷺ كړې ده. فرضى الله عنه وعنا وعن جميع الصحابة

**[۵۸۶۰] نبى عليه السلام ته دليونى نسبت كول**

۵۸۶۰-() [۹] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: ② إِنَّ ضِمَادًا قَدِمَ مَكَّةَ وَكَانَ مِنْ أَزْدِ شَنُوءَةَ، ③ وَكَانَ يَرْقِي مِنْ هٰذَا الرِّيحِ، ④ فَسَمِعَ سُفَهَاءَ أَهْلِ مَكَّةَ يَقُولُونَ: ⑤ إِنَّ مُحَمَّدًا مَجْنُونٌ. ⑥ فَقَالَ: لَوْ أَنِّي رَأَيْتُ هٰذَا الرَّجُلَ لَعَلَّ اللّٰهَ يَشْفِيهِ عَلَى يَدَيَّ. ⑦ قَالَ: فَلَقِيَهُ. فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ! إِنِّي أَرْقِي مِنْ هٰذَا الرِّيحِ، فَهَلْ لَكَ؟ ⑧ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: (إِنَّ الْحَمْدَ لِلّٰهِ، نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ، ⑨ مَنْ يَهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ، وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ، ⑩ وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، ⑪ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، أَمَّا بَعْدُ)

**ترجمه**: ① او حضرت ابن عباس ﷺ وايې ② چې أزد شَنوءَه سره تعلق لرونكى يوسړى چې د هغه نوم ضماد وو د اسلام ابتدائي زمانه كې مكې ته راغې ③ هغه به د ميرګي پيريانولري كولو دم چُف كوي ④ هركله چې هغه د مكې د بيوقوفانو د ژبې نه دا واوريدل ⑤ چې محمد ليونى شوي دي ⑥ نو هغه اوويل كه زه دا سړى يعنى محمد ووينم نو علاج به يې وكړم شايد الله ﷻ څماپه علاج سره هغه تيك كړي ⑦ ابن عباس ﷺ وايې دي نه وروسته ضماد د رسول الله ﷺ په خدمت كې راغې او هغه اوويل اې محمد ﷺ! زه د دَم چُف په ذريعه ميرګي پيريان لري كوم كه تاسو غواړئ نو زه د خپل دَم چُف په ذريعه ستاسو علاج كوم ⑧ حضور ﷺ ورته په جواب كې وفرمايل ټول تعريفونه الله لره دي مونږ د هغه حمد وثناء وايو د هغه دنعمتونو شكر اداكوو اود هغه نه د ذكر وطاعت او عبادت توفيق او مدد غواړو ⑨ هغه چې چاته سيده لار وښايې او مقصد حيات يې كړي هغه هيڅوك ګمراه كولى نشى او څوك چې ګمراه كړي هغه ته څوك هدايت نشي كولى او منزل مقصود ته نشي رسيدى ⑩ زه ګواهي وركوم چې الله ﷻ نه ماسوا بل معبود نشته هغه ايكي يو دى هيڅوك د هغه شريك نشته ⑪ او زه ګواهي كوم چې محمد ﷺ د الله بنده او د الله رسول دى

**حل اللغات**:- ① أَزْدِشَنُوءَةَ: شنوءة د يمن يوه لويه قبيله ده. بيا أزد د شنوءه يو شاخ او قبيله ده. ② يَرْقِي: أي: يُعَالِجُ الدَّاءَ بِشَيْءٍ يَقْرَأُ ثُمَّ يَنْفُثُ: دم به نې اچولو يعنى څه به نې لوستل اوهغه به چف كول. ③ الرِّيحِ: هوا ته وائي. د بيمارئ يعنى ليونتوب اوجنون علت ته په ريح سره اشاره شوې ده ,ګوم چه

[1]) اخرجه مسلم فى كتاب الجمعة /باب تخفيف الصلاة والخطبة (رقم-۴۶ - (۸۶۸) واحمد فى المسند: ۳۰۲/۱

هغوی دجن وغیره نفخ او ریح ګنړلو. ③ سُفَهَاءُ: أَيْ: جُهَّالُهُمْ مِنَ الْكُفَّارِ: بې وقوف اوجاهلان خلق (د کافرانو د مکې نه).

۱ فَقَالَ: أَعِدْ عَلَيَّ كَلِمَاتِكَ هٰؤُلَاءِ ۲ فَأَعَادَهُنَّ عَلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ۳ فَقَالَ: لَقَدْ سَمِعْتُ قَوْلَ الْكَهَنَةِ وَقَوْلَ السَّحَرَةِ وَقَوْلَ الشُّعَرَاءِ ۴ فَمَا سَمِعْتُ مِثْلَ كَلِمَاتِكَ هٰؤُلَاءِ ۵ وَلَقَدْ بَلَغْنَ قَامُوسَ الْبَحْرِ ۶ هَاتِ يَدَكَ أُبَايِعْكَ عَلَى الْإِسْلَامِ قَالَ: فَبَايَعَهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ بیا ضما د تردې پورې اوریدو نه وروسته بې ساخته اوویل چې دا جملې یووار بیا خما په مخکې ارشاد وفرمایې ۲ حضور ﷺ دا جملې بیا دوباره او درې باره کړلو ۳ ضماد اوویل ما د کاهنانو اقوال اوریدلي دي ما د ساحرانو کلمات اوریدلي دي ما د شاعرانو اشعار اوریدلي دي ۴ لیکن قسم په الله ترننه پورې ما ستاسو د دې کلماتو او اقوالو په شان هیڅ کلام نه دی اوریدلی ۵ حقیقت خو دا دی چې ستاسو دا کلمات د فصاحت او بلاغت او د تاثیر د اعتبار نه د علم او کلام د دریاب انتهائي ژور والی ته رسیدلی دی ۶ خپل لاس مبارك رامخکې کړه زه ستاسو په لاس مبارك د اسلام بیعت کوم ابن عباس رضي الله عنه وایې ضماد هغه وخت د حضور ﷺ په لاس مبارك بیعت وکړ او مسلمان شو. (مسلم)

**حل اللغات:** -⑤ الْكَهَنَةِ: د كَاهِن جمع ده، وَهُوَ الْمُخْبِرُ عَنِ الْغَيْبِ: دغیب خبرې کونکی ته کاهن وائی. پالکر ⑨ بَلَغْنَ: رسیدلی دی (کمال ایجاز ته دا کلمات). ⑥ قَامُوسَ الْبَحْرِ: أَيْ: مُعْظَمَ بَحْرِ الْكَلَامِ: د سمندر د اوبو ژورې او مینځ چپو ته قاموس وائی د ناعوس هم دغه معنی ده یعنی دا خبرې د سمندر د ژورې اوبیخ نه شوی دی یعنی د فصاحت او بلاغت نه ډکې دی.

۱ وَفِي بَعْضِ نُسَخِ (الْمَصَابِيحِ): بَلَغْنَا نَاعُوسَ الْبَحْرِ وَهُوَ تَصْحِيفٌ ۲ وَذَكَرَ حَدِيثَا أَبِي هُرَيْرَةَ وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ (يَهْلِكُ كِسْرَى) ۳ وَالْآخَرَ (لَتَفْتَحَنَّ عِصَابَةٌ) فِي بَابِ (الْمَلَاحِمِ). ۴ وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِي

**ترجمه:** ۱ د مصابیح په بعضې نسخو کې د بلغن په ځای بلغنا دی او د قاموس البحر په ځای ناعوس البحر دی ۲ او د حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت یهلك کسری الخ ۳ او د حضرت جابر ابن سمره رضي الله عنه روایت لتفتحن عصابة الخ باب الملاحم کې نقل شوي دي. ۴ او په دې باب کې دوهم فصل نشته.

**حل اللغات:** -⑧ تَصْحِيفٌ: أَيْ تَحْرِيفٌ: بدلول، وړاندې روسته کول. ⑨ عِصَابَةٌ: ډله، فرقه.

**تسهیلات: قوله: ضِمَادًا:**

**د حدیث پس منظر:** په ضاد باندې کسره او ضمه دواړه دی او میم ساکن دې. په یوروایت کښې ضمام دې. دَدې سړی تعلق دَ یمن دَ یوې مشهورې قبیلې ازدشنوءه سره وو. داسړې دَخپل وخت لوئی طبیب او حکیم هم وو او دَ عملیاتو او دم درهاً ماهر هم وو. دَاسلام نه وړاندې دَ هغه حضورپاك سره پیژند ګلوشوې وه. کله چه حضورپاك ته نبوت ملاؤشو او دا سړې مکې ته راغلو نو اهل مکه په ډیره لویه پروپیګنډه سره ده ته اوخودل چه

محمد خولیوني شوې دې. په دې باندې ضمام اوونیل کیدې شی زما په دم درها باندې هغه ته فائده وی. په دې غرض سره حضوراکرم له راغلو ملاؤشو. حضور پاك دَهغه په وړاندې په مختصر الفاظوسره دَ الله تعالی په وحدانیت باندې مشتمل خطبه اولوستله. خطبه اوریدوسره دا سړې وارخطاشو حیران پاتې شو اومسلمان شو.

**قوله:** مِنْ هٰذَا الرِّيحِ:

**د ریح په مصداق کښې دوه اقوال:**

① دَ جناتو په اثراتوسره چه کومه بیماری راشی هغې ته ریح وائی.

②داهم ممکن دی چه پخپله هم جنات ته ریح وئیلې شوی وی ځکه چه جنات هم دَهوا په شان تلونکې مخلوق دې اوچه دَهوا په شان ښکاری هم نه.

**قوله:** قَامُوسَ الْبَحْرِ:

**د لفظ قاموس وضاحت:** په سمندرکښې چرته چه دَیولونه زیاتې اوبه وی اودَیولونه زیات ژورمقام وی. دغه زیاتو اوبوته قاموس وئیلې شی. دادَ سمندر دَمینځ حصه وی بهرحال قاموس دَسمند مینځ ته وائی. یعنی داکلمات په لفظی او معنوی فصاحت او بلاغت سره دَسمندرژوروالی ته رسیدلی دی دکوم نه زیات ژوروالې چې بل چرته نشته دې.

وهذا الباب خال عن الفصل الثانی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۵۸۶۱] د قیصر روم په دربار کښې د ابوسفیان ګواهي**

۵۸۶۱-(١) [٠]١عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو سُفْيَانَ بْنُ حَرْبٍ مِنْ فِيهِ إِلَى فِيَّ،٢قَالَ: انْطَلَقْتُ فِي الْمُدَّةِ الَّتِي كَانَتْ بَيْنِي وَبَيْنَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -٣قَالَ: بَيْنَا أَنَا بِالشَّامِ إِذْ جِيءَ بِكِتَابٍ مِنَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى هِرَقْلَ.٤قَالَ: وَكَانَ دِحْيَةُ الْكَلْبِيُّ جَاءَ بِهِ فَدَفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ بُصْرَى،٥فَدَفَعَهُ عَظِيمُ بُصْرَى إِلَى هِرَقْلَ.

**ترجمه:**١ حضرت ابن عباس ﷺ وایې ابوسفیان ابن حرب ماته مخامخ دابیان وکړو ٢ چې د صُلح حدیبیه په موده کې چې ځما او د حضور ﷺ په منځ کې وه ٣ او نه صرف داچې زه مسلمان شوی نه وم بلکه د اسلام د دښمنانو یوسردار وم ما سفر وکی او په اتفاق سره هغه وخت هرکله چې د رسول الله ﷺ نامه مبارکه هر قل د روم قیصر ته ورسیده زه د شام په ملك کې مقیم وم ٤ ابوسفیان اوویل نامه مبارك یعنی د اسلام د دعوت خط د حیه

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب قل: یا {أهل الکتاب تعالوا إلی کلمة سواء بیننا وبینکم أن لا نعبد إلا الله} " (رقم-٤٥٥٣) ومسلم فی کتاب الجهاد والسیر/باب کتاب النبی صلی الله علیه وسلم إلی هرقل یدعوه إلی الإسلام (رقم-٧٤ - (١٧٧٣)

كلبي راوړی وو چې هغه د بصرئ حاکم ته ورسوی ⑤ او د بصرئ حاکم هغه دعوت نامه اسلام د هرقل په خدمت کې پیش کړه

**حل اللغات:** - ① فِيهِ إِلَى فِيَّ: أي انتقل من فيه إلى فيي: يعني دا روايت دهغه د خولې نه زما خولې ته منتقل شو(زمونږ دواړو په مينځ كښې بل څوک واسطه نشته. ② عَظِيمُ بُصْرَى: د بصرئ حاكم، ګورنر.

① فَقَالَ هِرَقْلُ: هَلْ هُنَا أَحَدٌ مِنْ قَوْمِ هَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ؟ ② قَالُوا: نَعَمْ، فَدُعِيتُ فِي نَفَرٍ مِنْ قُرَيْشٍ، ③ فَدَخَلْنَا عَلَى هِرَقْلَ، فَأَجْلَسَنَا بَيْنَ يَدَيْهِ، ④ فَقَالَ: أَيُّكُمْ أَقْرَبُ نَسَبًا مِنْ هَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ؟ ⑤ قَالَ أَبُو سُفْيَانَ: فَقُلْتُ: أَنَا، فَأَجْلَسُونِي بَيْنَ يَدَيْهِ ⑥ وَأَجْلَسُوا أَصْحَابِي خَلْفِي، ⑦ ثُمَّ دَعَا بِتَرْجُمَانِهِ فَقَالَ: ⑧ قُلْ لَهُمْ: إِنِّي سَائِلٌ هَذَا عَنْ هَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ، ⑨ فَإِنْ كَذَبَنِي فَكَذِّبُوهُ، ⑩ قَالَ أَبُو سُفْيَانَ: وَايْمُ اللهِ لَوْلَا مَخَافَةُ أَنْ يُؤْثَرَ عَلَيَّ الْكَذِبُ لَكَذَبْتُهُ،

**ترجمه:** ① هرقل پوښتنه وکړه آيا د دې سړي د قوم څوک سړی دلته شته کوم چې د خپل نبي کيدو دعویٰ کوي [چې زه د هغه نه د مدعي نبوت په باره کې معلومات حاصلولو سره په دې پوهه شم چې هغه رښتني دی يا دروغجن] ② د هغه عملې ورته وښودل هو [د دې سړي دقوم سره تعلق لرونکي يو سړی شته چې دلته د تجارت په غرض راغلی دی] نو زه د قريشو يوجماعت سره چې سل سړو باندې مشتمل وو د هرقل په دربار کې طلب شوم ③ کوم وخت چې مونږ هرقل ته ورسيدو نو مونږ د هغه مخکې کينول شوا چې آساني سره مونږ د هغه او هغه‌زمونږ خبري واريدل شي] ④ د ټولو نه مخکې هرقل پوښتنه وکړه چې په تاسو کې څوک د دې سړي نزدې رشته دار شته کوم چې د نبوت مدعي دی ⑤ د ابوسفيان بيان دی په دې اوريدو سره ما اوويل د دې سړي د ټولو نه نزدې رشته دار زه يم ددې نه وروسته تنها زه د هرقل مخکې تخت شاهي ته نزدې کينول شوم ⑥ او خما ملګري خما شاته کينول شوه ⑦ بيا هرقل خپل مترجم طلب کی [چې عربي او رومي دواړې ژبې يې پيژندی] او هغه ته يې اوويل ⑧ ته د دې سړي ابوسفيان ملګرو ته اووئيلو چې زه د ابوسفيان نه دهغه سړی حالات معلوموم چې د نبوت دعویٰ کوي ⑨ که دې ابوسفيان ماته څه غلطه خبره وکړه نو تاسو خلق يې بې خدشې ترديد کوئ [او ماته صحيح خبره وکئ] ⑩ د ابوسفيان بيان دی قسم په الله که داخوف نه وی چې زه به دروغ ګومشهور شم نو يقينًا مابه د هرقل مخکې دروغ ويلي وه او د حضور ﷺ په باره کې به مې هغه ته صحيح خبره نه وه خو دلې

① ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهِ: سَلْهُ كَيْفَ حَسَبُهُ فِيكُمْ؟ ② قَالَ: قُلْتُ: هُوَ فِينَا ذُو حَسَبٍ. ③ قَالَ: فَهَلْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مِنْ مَلِكٍ؟ قُلْتُ: لَا. ④ قَالَ: فَهَلْ كُنْتُمْ تَتَّهِمُونَهُ بِالْكَذِبِ فِي أَنْ يَقُولَ مَا قَالَ. قُلْتُ: لَا. ⑤ قَالَ: وَمَنْ يَتْبَعُهُ، أَشْرَافُ النَّاسِ أَمْ ضُعَفَاؤُهُمْ؟ ⑥ قَالَ: قُلْتُ: بَلْ ضُعَفَاؤُهُمْ. ⑦ قَالَ: أَيَزِيدُونَ أَمْ يَنْقُصُونَ؟ قُلْتُ: لَا بَلْ يَزِيدُونَ. ⑧ قَالَ: هَلْ يَرْتَدُّ أَحَدٌ مِنْهُمْ عَنْ دِينِهِ بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ فِيهِ سَخْطَةً لَهُ؟ قَالَ: قُلْتُ: لَا.

**حل اللغات:** -④تَتَّهِمُونَهُ: أَيْ: تَنْسُبُونَهُ إِلَى التُّهَمَةِ: تاسو پرې تهمت لګوئ. ④أَشْرَافُ: عزت مند او شريف خلق.

**ترجمه:** [۱] ددې نه وروسته هرقل خپل مترجم ته اوويل چې ابوسفيان نه پوښتنه وکړه په ستاسو کې د دې سړي حضور ﷺ حسب څرنګه دی؟ [۲] ابوسفيان وايي ما ورته اوويل دا سړی په مونږ کې حسب والادی [يعنې اعلى حسب لري] [۳] بيا هرقل پوښتنه وکړه د دې سړي پلار نيکه کې څوك بادشاه تير شوي دي ما ورته اوويل هيڅ کله نه [۴] بيا هرقل پوښتنه وکړه اوس چې هغه څه وايي دي نه مخکې هم هغه چيرته داسې خبره کړي وه چې تاسو دروغ ګڼلي وي [يعنې د نبوت دعوى کولو نه مخکې هغه څه دروغ ويلي وه يا يوسړي په هغه د دروغو الزام لګولی وو] ما ورته اوويل نه [۵] بيا هرقل پوښتنه وکړه د هغه اتباع کونکي او په هغه ايمان راوړونکي کوم خلق دي شرفاء يا کمزوري او ضعيف خلق [۶] ابوسفيان اوويل ما جواب ورکړو د هغه پيروي کونکي کمزور او ضعيف خلق دي [۷] هرقل پوښتنه وکړه د دې سړي د تابعدار وتعداد ورځ په ورځ زياتيږي يا کميږي ابوسفيان اوويل ماجواب ورکړو کميږي نه بلکه زياتيږي [۸] بيا هر قل پوښتنه وکړه د هغه په دين کې داخليدو نه وروسته څوك سړی د هغه نه خفه کيدو په وجه يا د هغه د دين په لاره کې پيښيدونکو سختيو نه بيزاره کيدو سره دين پريږدي هم که نه ابوسفيان اوويل ماجواب ورکړو نه هيڅوك د هغه دين نه پريږدي.

| |
|---|
| [۱] قَالَ: فَهَلْ قَاتَلْتُمُوهُ؟ قُلْتُ: نَعَمْ. [۲] قَالَ فَكَيْفَ كَانَ قِتَالُكُمْ إِيَّاهُ؟ [۳] قَالَ: قُلْتُ: يَكُونُ الْحَرْبُ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُ سِجَالًا، [۴] يُصِيبُ مِنَّا وَنُصِيبُ مِنْهُ. [۵] قَالَ: فَهَلْ يَغْدِرُ؟ قُلْتُ: لَا، [۶] وَنَحْنُ مِنْهُ فِي هَذِهِ الْمُدَّةِ، لَا نَدْرِي مَا هُوَ صَانِعٌ فِينَا؟ [۷] قَالَ: وَاللهِ مَا أَمْكَنَنِي مِنْ كَلِمَةٍ أُدْخِلُ فِيهَا شَيْئًا غَيْرَ هَذِهِ. [۸] قَالَ: فَهَلْ قَالَ هَذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ قَبْلَهُ؟ قُلْتُ: لَا. |

**حل اللغات:** -⑤سِجَالًا: أَيْ: مُسَاجَلَةً وَمُدَاوَلَةً: سجال بوقې ته وائي يعنې څنګه چه بوقه وار په وار وی دغسې په جنګ کښې ګټه بيلات هم په وار اوپه نمبر وی کله دهغوی کله زمونږ. يا دا چه لکه څنګه د کوهی نه اوبه راويستلووخت کښې دولچه کله خالي راوځی کله ډکه راوځی. نو په جنګونو کښې کله هغوی غالب اوکله مونږ غالب راځو ⑨يَغْدِرُ: وَهُوَ نَقْضُ الْعَهْدِ: وعد ماتول او بې لوظی کول ④مَا هُوَ صَانِعٌ: چه څه به کوی؟ يعنې چه په دې صلح کښې به دهوکه کوی اوکه نه.

**ترجمه:** [۱] بيا هرقل پوښتنه وکړه آيا تاسو خلق هغه سره جنګ کوئ ماجواب ورکړو هو بيا [۲] هرقل پوښتنه وکړه هغه سره ستاسو د جنګ آنجام څه وي [۳] ابوسفيان اوويل ماجواب ورکړو زمونږ او د هغه په منځ کې کيدونکی جنګ د دوو بوقو په شان وي [۴] کله مونږ هغه په شا کو او کله هغه مونږ په شا کړي [يعنې زمونږ او د هغه په منځ کې د جنګونو حال د دوو بوقو په شان دی چې په يوه وخت د اوبو ډکولو کوشش وشي کله يوه ډکه شي نو دويمه خالي پاتې شي او کله دويمه ډکه شي نو مخکنی خالي پاتې شي دغه شان کله مونږ دي

مدعي نبوت او د ده په ملګرو باندې غالب راشو او کله هغه په مونږ غالب راشي دغه شان کله مونږ د هغه په وجه مصيبتونو اوپريشانيو کې مبتلا کيږو او کله هغه زمونږ په وجه مصائبو او تکليفونو کې وي۵ بيا هرقل پوښتنه وکړه آيا هغه عهد شکني وعده خلافي کوي (يعنی د چاسره صلح کولو نه وروسته خپل عهد وپيمان اواقرار ماتوي) ما ورته اوويل نه (مخکې خو هيڅ کله داسې نه دی شوی چې هغه د چاسره صلح کړی وي او هغه يې په خپله ختم کړی وي)٦ البته نن صبا زمونږ او د هغه په منځ کې، چې کومه صلح حديبيه ده د هغه په باره کې مونږ نه شو ويلی چې د هغه روش به څه وي (چې آيا هغه به داصلح د مودې ختمولو نه مخکې ماته کړي ياباقي به يې پريږدي)۷ ابوسفيان وايې قسم په الله د هرقل سره دپوره سوال او جواب په منځ کې صرف دايوه خبره داسې وه چې ما د خپلو جذباتو لاندې کړې وه ددې نه علاوه بله څه خبره ما د خپل طرف نه ونه کړه (يعنی زه د هرقل د هيڅ سوال په جواب کې څه داسې خبره کولو باندې قادر نه شوم چې څما په نزد خلاف حقيقت وه يا هغه سره د حضور ﷺ توهين او تنقيص کيدې هو د دې يوې خبرې اظهار د خپل طرف نه مابيشکه وکړې چې نن صبا زمونږ او د هغوئ په منځ کې کومه صلح چليږي په دې باره کې مونږ ته داخوف دی چې چيرته هغوئ عهد شکني ونکړي څما ددې خبرې نه ذات رسالت طرف ته د عهد شکني په نسبت احتمال ظاهريدی بهرحال)۸ بيا د هر قل سوال دا وو آيا داسې خبره دې نه مخکې هم چا کړې ده (يعنی د مشهورو پيغمبرانو لکه ابراهيم عليه السلام اسماعيل عليه السلام اسحاق عليه السلام يعقوب عليه السلام موسی عليه السلام او عيسی عليه السلام نه علاوه ستا د قوم چا بل سړی د ده نه مخکې د نبوت دعوی کړې ده؟) ما جواب ورکړو نه (ددې ټولو سوالونو او جوابونو نه وروسته هرقل ضروري وګڼله چې خپل داسوالونه چې دنبوت او رسالت په باب کې بنيادي اهميت لري په عقل ونقل او د تجربې اود معلوماتو په رڼا کې واضحه کړي).

۱ ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهِ: قُلْ لَهُ: إِنِّي سَأَلْتُكَ عَنْ حَسَبِهِ فِيكُمْ ۲ فَزَعَمْتَ أَنَّهُ فِيكُمْ ذُو حَسَبٍ، ۳ وَكَذٰلِكَ الرُّسُلُ تُبْعَثُ فِي أَحْسَابِ قَوْمِهَا. ۴ وَسَأَلْتُكَ هَلْ كَانَ فِي آبَائِهِ مَلِكٌ؟ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا، ۵ فَقُلْتُ: لَوْكَانَ مِنْ آبَائِهِ مَلِكٌ ۶ قُلْتُ: رَجُلٌ يَطْلُبُ مُلْكَ آبَائِهِ. ۷ وَسَأَلْتُكَ عَنْ أَتْبَاعِهِ أَضُعَفَاؤُهُمْ أَمْ أَشْرَافُهُمْ؟ ۸ فَقُلْتَ: بَلْ ضُعَفَاؤُهُمْ، وَهُمْ أَتْبَاعُ الرُّسُلِ.

**توجمه:**۱ نو هغه خپل مترجم ته اوويل چې ته دې ابوسفيان ته اووئيلو چې ما ستاسو په منځ کې د دې سړي د حسب په باره کې ستا نه پوښتنه وکړه ۲ او تا وښودل چې هغه حسب والا دی ۳ نو حقيقت دادی چې رسول او نبي د خپل قوم د اشرافو نه وي ۴ بيا ما پوښتنه وکړه چې د هغه په پلرونو نيکونو کې څوک بادشاه وو او تا وښودل چې هيڅوک نه ۵ نو ماخپل زړ. ـ ـې ووئيل ـه د ده په پلرونو نيکونو کې څوک بادشاه تير شوی وی ۶ نو مابه دا

کښله چې دی هم یوداسې سړی دی چې د خپل پلار نیکه د حکومت طالب دی [او د حکمراني او سرداري خپل دا طلب او خواهش د نبوت د دعوي په ذريعه ظاهروي] ۷ بيا ما ستا نه پوښتنه کړې وه چې د ده اتباع پیروي کونکی خلق د خپل قوم شرفاء [یعنی دولت وثروت او دنیاوي جاه وجلالت لرونکي خلق دي یا کمزوري او ضعیف یعنی مفلس او مسکین او ګوشه نشین خلق دي] ۸ او تا وښودل چې کمزوري خلق د ده تابعدار دی نو حقیقت دادی چې د پیغمبرانو تابعداران عام طور سره کمزوري او ضعیف خلق وي

۱ وَسَأَلْتُكَ هَلْ كُنْتُمْ تَتَّهِمُونَهُ بِالْكَذِبِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ مَا قَالَ؟ ۲ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا، فَعَرَفْتُ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ لِيَدَعَ الْكَذِبَ عَلَى النَّاسِ ۳ ثُمَّ يَذْهَبَ فَيَكْذِبُ عَلَى اللهِ. ۴ وَسَأَلْتُكَ: هَلْ يَرْتَدُّ أَحَدٌ مِنْهُمْ عَنْ دِينِهِ بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ فِيهِ سَخْطَةً لَهُ؟ ۵ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا، وَكَذٰلِكَ الْإِيمَانُ إِذَا خَالَطَ بَشَاشَتُهُ الْقُلُوبَ. ۶ وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَزِيدُونَ أَمْ يَنْقُصُونَ؟ فَزَعَمْتَ أَنَّهُمْ يَزِيدُونَ، ۷ وَكَذٰلِكَ الْإِيمَانُ حَتّٰى يَتِمَّ

**ترجمه:** ۱ او ما ستا نه پوښتنه کړې وه چې دا وخت هغه څه وایي [یعنی دعوی نبوت؟] دی نه مخکې آیا تاته د ده دروغ ویلو تجربه شوي ده ۲ او تا وښودل چې نه نو زه پوهه شوم چې دا ممکنه نه ده چې یوسړی دي خلقوته دروغ ویلو نه خو پرهیز کوي ۳ او د الله ﷻ په نسبت دي دروغ وایي ۴ او ما پوښتنه کړې وه چې د ده په دین کې د داخلیدونکي کله د ده نه خفه کیدو سره دا دین هم پرېږدي ۵ او تا خودلي وه چې نه نو درحقیقت د ایمان داحال دی چې هغه کله په زړونو کې ځاي ونیسي اوروح د هغه د لذت او حلاوت خوږوالي نه آشنا شي نو بيا هيڅ کله ځني نه جدا کېږي [او که شاذ ونادر يوسړی دين پرېږدي نو هم د هغه مطلب به داوي چې د هغه په زړه کې ايمان د سره نه داخل او راسخ شوی نه وو] ۶ او ما ستا نه پوښتنه کړې وه چې د دې سړي دملګرو تعداد ورځ په ورځ زیاتیږي یا کمیږي او تاخو دلي وه چې زیاتیږي ۷ نو درحقیقت د ایمان داحال دی چې ورځ په ورځ د هغه دائره اثر وسیع تر کېږي [او د اهل ایمانو تعداد زیاتیږي] او آخر هغه پایه تکمیل او اتول ته رسي

**حل اللغات:**- ⑧ خَالَطَ: ګډ شي، يوځاي شي ⑨ بَشَاشَتُهُ: أَيْ: أُنْسُهُ وَفَرْحَهُ: مينه اومحبت د ايمان

۱ وَسَأَلْتُكَ هَلْ قَاتَلْتُمُوهُ؟ فَزَعَمْتَ أَنَّكُمْ قَاتَلْتُمُوهُ، ۲ فَتَكُونُ الْحَرْبُ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ سِجَالًا يَنَالُ مِنْكُمْ وَتَنَالُونَ مِنْهُ ۳ وَكَذٰلِكَ الرُّسُلُ تُبْتَلَى، ثُمَّ تَكُونُ لَهَا الْعَاقِبَةُ. ۴ وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَغْدِرُ، فَزَعَمْتَ أَنَّهُ لَا يَغْدِرُ، ۵ وَكَذٰلِكَ الرُّسُلُ لَا تَغْدِرُ، ۶ وَسَأَلْتُكَ هَلْ قَالَ هٰذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ قَبْلَهُ؟ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا، ۷ فَقُلْتُ: لَوْ كَانَ قَالَ هٰذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ قَبْلَهُ ۸ قُلْتُ: رَجُلٌ ائْتَمَّ بِقَوْلٍ قِيلَ قَبْلَهُ.

**ترجمه:** ۱ او ما ستا نه پوښتنه کړې وه چې آیا تاسو خلق د ده سره جنګ جګړه کوئ او تا ویلي وه هو جنګ ورسره کوو ۲ او د جنګ آنجام د دوو بوقو په شان دی کله هغه ستاسو نه مصیبت پورته کوي او کله تاسو د هغه نه مصیبت پورته کوئ ۳ نو حقیقت دادی چې د رسولانو امتحان دغه شان اخستی شي چې کله هغوئ ته د دین په دښمنانو باندې غلبه

ورکول کېږي او کله دښمنان په هغوئ غالب کولی شي ليکن آخري انجام رسولانو او د هغوئ تابعدارو ته کامله فتحه او نصرت حاصليږي (او د هغوئ دين خورېږي) [۴] او ما ستا نه پوښتنه کړي وه چې آيا داسړی عهد شکني وعده خلافي کوي او تا جواب راکړی وو چې نه [۵] نودغه شان رسولان دهوکه نه کوي [۶] او ما در نه پوښتنه کړي وه چې ستاپه قوم کې دده نه مخکې داسې خبره چاکړي ده يعنی د نبوت دعوی يې کړي ده او تاجواب راکړی وو چې نه [۷] نو ماخپل په زړه کې اوويل که د ده نه مخکې چا دغه شان د نبوت دعوی کړي وي [۸] نو کيدی شي چې دی هم د مخکني سړي پيروي کې دغه شان دعوی کوي.

**حل اللغات:** -⑩ الْعَاقِبَةُ: أَي: الْمَحْمُودَةُ: ښه انجام،

[۱] قَالَ: ثُمَّ قَالَ: بِمَا يَأْمُرُكُمْ؟ [۲] قُلْنَا: يَأْمُرُنَا بِالصَّلَاةِ، وَالزَّكَاةِ، وَالصِّلَةِ، وَالْعَفَافِ، [۳] قَالَ: إِنْ يَكُ مَا تَقُولُ حَقًّا فَإِنَّهُ نَبِيٌّ، [۴] وَقَدْ كُنْتُ أَعْلَمُ أَنَّهُ خَارِجٌ، وَلَمْ أَكُنْ أَظُنُّهُ مِنْكُمْ، [۵] وَلَوْ أَنِّي أَعْلَمُ أَنِّي أَخْلُصُ إِلَيْهِ لَأَحْبَبْتُ لِقَاءَهُ، [۶] وَلَوْ كُنْتُ عِنْدَهُ لَغَسَلْتُ عَنْ قَدَمَيْهِ، [۷] وَلَيَبْلُغَنَّ مُلْكُهُ مَا تَحْتَ قَدَمَيَّ. [۸] ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَرَأَهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۹] وَقَدْ سَبَقَ تَمَامُ الْحَدِيثِ فِي (بَابِ الْكِتَابِ إِلَى الْكُفَّارِ).

**ترجمه:** [۱] د ابوسفيان بيان دی. ددې نه وروسته هرقل زما نه پوښتنه وکړه ښه دا وښايه چې داسړی تاسو ته د کومې خبر حکم درکوي [۲] ما ورته اوويل هغه مونږ ته وايي چې مونځ کوئ زکوة ورکوئ رشته دارو سره صله رحمي محبت او نيک سلوك کوئ او حرام څيزونو نه بچ اوسئ [۳] هرقل په دې اوريدو سره اوويل که ستا بيان درست دی نو يقينًا داسړی پيغمبر دی [۴] او ماته د مخکې نه معلومه وه چې په آخره زمانه کې يوپيغمبر پيدا کيدونکی دی ليکن خما داخيال نه وو چې هغه به ستاسو په قوم کې پيدا کېږي [۵] که زه پوهيدای چې زه به هغوئ ته ورسيږم نو د هغوئ په خدمت کې به حاضر شوی وی او ملاقات به مې ورسره کړی وو دابه زما د پاره د ټولو نه زياته خوښه خبره وه [۶] او که زه د هغوئ په خدمت کې حاضر شوی وی نو د هغوئ دواړي پښې به مې په خپلو لاسونو سره وينځلې وې [۷] او زه تاته ښايم چې د هغوئ د حکومت او اقتدار دائره به دې زمکې د شام او روم ملك ته راورسي کومه چې خما د قدمونو لاندې ده [۸] بيا هرقل د حضور ﷺ نامه مبارکه را وغوښتله او وې ويل (بخاري مسلم) [۹] او دا حديث وروسته باب الکتاب الی الکفار کې پوره نقل شوی دی

**حل اللغات:** -⑪ وَالْعَفَافِ: أَي: الْكَفِّ عَنِ الْمَحَارِمِ: د حرامو نه خان ساتل ⑫ أَخْلُصُ: أَي: أَصِلُ: چه اوبه رسيږم زه

**تسهيلات:** قوله: حَدَّثَنِي أَبُوسُفْيَانَ:

**دابوسفيان قصه:** حضرت ابوسفيان رضی الله عنه خپله داقصه دَ اسلام قبلولو نه پس دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په مخکښې بيان کړې ده. دَدې قصې پس منظر داسې دې چه حضورپاك دَ نبوت

ملاویدلو نه پس دیارلس کاله په مکه کښې تیرکړل بیائی مدینې طرف ته هجرت اوکړو. په مدینه کښې دَ جهاد حکم راغلو. حضورپاك سره کافرانو جنګ بدر اوکړو، جنګ احد او جنګ خندق او نور ډیر جنګونه په شپږمه هجری کښې دَ عمره ې اداکولواراده اوکړه مګر دَ حدیبیه په مقام باندې دَ قریشوکافرانو حضورپاك اوورسره یونیم زر صحابه کرام مکه کښې دَ داخلیدونه منع کړل. بیا دَ صلح حدیبیه په نوم باندې دَ جنګ بندئی یوه معاهده اوشوه په کوم کښې چه فیصله اوکړې شوه چه لس کاله به خپل مینځ کښې جنګ نه کوو.

**بیرونکی دنیا ته د اسلام دعوت ورکول**:دَدې صلح په وجه چه کله حضورپاك دَ اهل حجاز دَ جنګونونه فارغ شو نوحضورپاك دَ بهردنیا دَ بادشاهانوپه نوم باندې دعوتی خطونه اولیکل. په هغه زمانه کښې په دنیا باندې دوو سپرطاقتونو حکومت کولو یودَ اهل فارس سپر طاقت وو چه په نیمه دنیا باندې قابض وو. بل طرف ته دَ روم دَ سلطنت طاقت وو چه په باقی نیمه دنیا باندې قابض وو. دَدې دواړو په مینځ کښې به جنګونه کیدل په یوجنګ کښې دَ فارس والو رومیانوته ماتې ورکړه او هغوی ئی ګډوډ کړل اوهرقل دَخپل مرکز نه اوتختیدو او پټ شو. په دې موقع هرقل منخته اوکړه که چرې زه بیا په خپله علاقه باندې قابض شوم نوزه به پیدل دَ حج دَپاره بیت المقدس ته ځم. چنانچه نهه کاله پس یو بل جنګ اوشو په کوم کښې چه رومیان غالب راغله او فارس ماتې اوخوړله.

**هرقل ته په بیت المقدس کښې د نبی علیه السلام خط ملاویدل**:هرقل دَخپل نذر پوره کولودَپاره بیت المقدس ته راغلې وو چه دې وخت کښې دَ نبی کریم ﷺ دعوتی خط هغوی ته اورسیدو. هغه دَ نبی کریم ﷺ احوال معلومولودَپاره خپلو سړو ته اووئیل چه لږ شان معلومات اوکړئی چه دَدې نبوت دَ دعویٰ کونکی دَ قوم څوك سړې زمونږ علاقې ته راغلې وی نوهغه ماسره ملاؤ کړئی. هغه وخت ابوسفیان رضی الله عنه خپلې قافلې سره دَتجارت په غرض بیت المقدس ته راغلې وو. خلقو هغه دَخپلو ملګرو سره دَ هرقل په مخکښې پیش کړو. هرقل دَ ابوسفیان نه دَ حضورپاك متعلق تقریباً ۱۱ سوالونه اوکړل او ابوسفیان هم صحیح صحیح جوابونه ورکړل. بیا هغه دَ ده په جوابونو باندې خپله تبصره اوکړه. هرقل دَ رسول الله ﷺ دَ صداقت اودَ اسلام دَ حقانیت اعتراف اوکړو مګر مسلمان نه شو. زیر بحث دې اوږد حدیث کښې هم دَدې پس منظر تفصیلات دی.

**د هرقل تعصب:**

**قوله**:وَلَمْ أَكُنْ أَظُنُّهُ مِنْكُمْ:

**د مذکوره جملې په وئیلو کښې دوه احتمالات**:① هرقل دَ سابقه آسمانی صحیفو عالم هم وو داسړې نجومی هم وو اودَ تاریخ نه هم واقف وو. وئیلی شی چه ده سره دَ ټول انبیاء کرامو تصویرونه وو اودَ حضورپاك هم وو. په دې وجه هغه اووئیل چه دَ یو نبی راتلل باقی

دی مګر دلته هرقل لره شان دَ تعصب نه کار واخستلو چه زمادا خیال نه وو چه دا به دَعربونه وی حالانکه هغه ته ښه معلومه شوه چه نبی آخرالزمان به دَ بنی اسماعیل نه وی دَعربو نه به وی

② کیدي شی چه دَهغه خیال هم دغه وی چه اکثر او بیشتر انبیاء دَ اولاد ابراهیم عليه السلام نه بنواسرائیل کښې راغلی دی نو نبی آخرالزمان به هم دَدوی نه راځی

# [۶] بَابٌ فِي الْمِعْرَاجِ

## د معراج بیان

| خلاصة الباب: |
|---|
| فيه ستة أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل: |
| ① تفصيل قصة المعراج: ۱، ۲، ۳. |
| ② ما عطى النبي صلى الله عليه وسلم ليلة المعراج: ۱، ۲، ۳، ۴. |
| ③ سوال المشركين في شان الإسراء والجواب لهم: ۵، ۶. |

**قوله:** أَسْرٰى:

**په اسراء او معراج کښې فرق:** ① اسراء، دَ سیرت نه دې دَ شپې په زمکه باندې سفرکولوته وائی دَحضورپاك چه کوم سفردَ مسجدحرام نه دَمسجد اقصٰی پورې دَ شپې شوې دې هغې ته اسراء وائی

اومعراج دَعروج نه دې اوعروج دَ ختلو په معنی کښې دې دَ مسجداقصٰی نه دَ آسمانونو پورې اودَ آسمانونونه دَ لامکان پورې دَ ختلوچه کوم سفردې هغې ته معراج وائی په دې أطلاق کښې څه قانونی یا شرعی پابندی نشته دې دَ یولفظ په بل باندې اطلاق کیږی.

**د اسراء اومعراج شرعی تعریف اوحکم:** البته دا شرعی مسئله ده چه دَمسجدحرام نه دَمسجد اقصی پورې دَمعراج واقعه دَ قرآن کریم نه ثابته ده دَدې منکرکافر دې اودَ مسجداقصٰی نه دَ پورته پورې سفر دَاحادیثونه ثابت دې دکوم منکر چه ګمراه اوبدعتی دې

**د نبی علیه السلام د معراج تنوع:** دَحضورپاك په ژوند مبارك کښې هغوی ته څومعراجونه ورکړې شوی دی کوم چه په خوب کښې شوی دی لیکن جمهور امت په دې باندې متفق دې چه دَ کوم معراج ذکر په سورت بنی اسرائیل کښې کړې شوې دې هغه معراج په بدن عنصری سره دَ حالت بیدارئی کښې شوې وو

**معراج د واقعې پس منظر:** دَ حضورپاك عمر مبارك ۵۱ یا ۵۲ کاله شوې وو چه په مکه مکرمه کښې ئې دَ کافرانو دَلاسونونه ټول تکلیفونه برداشت کړې وو. دَ انسانی تصورنه

پورته دَ قریشو کافرانو په حضورپاك باندې هرقسم ظلمونه کړی وو. په شعب ابی طالب کښې دَدریو کالو پورې دَ قیداوبند اودَ تعلقاتو پرېخودو تکلیفونه برداشت کولونه پس حضورپاك په دې غرض سره دَ طائف سفراوکړو که دَ طائف قبائلی سرداران مسلمان شی نوحضورپاك به دَمکې نه مسلمانان طائف طرف ته اولیګی دغه شان به دَ ظلمونو داسلسله ختمه شی. لیکن دَ طائف سردارانودَ مکې دَ چودهریانودَ ویرې نه رسول الله ﷺ سره دَعربودَ رواج خلاف انتهائی ظالمانه سلوك اوکړو. دَخبرې کولونه نې انکاراوکړو اوماشومان او پاګلان ئې حضورپاك پسې شاته اولګول او په کاڼړو ئې اوویشتلو.

خلاصه دا چه حضورپاك دَ تکلیفونو دَټولو لارونه تیرشوې وو اوس دَحضورپاك ذات با برکت دَدې دَپاره بالکل تیارشوې وو چه احکم الحاکمین سره دَ رازاونیاز خبرې اوکړی څکه چه دَ اوسپنې نه کله اوچت څیزونه جوړول مقصود وی نوهغه اوسپنه دګرمو بهټونه تیرولې شی. روح انسانی چه دَ څومره بدنی اثراتونه آزادیږی هم دومره دَهغه پرواز اوچتیږی.

دَ طائف په سفرسره په حضورپاك باندې دَ مصیبتونوانتهاء شوې وه. هلته دَ دنیا یوکمزورې انسان خاتم النبیین ﷺ سره دَ خبرونه انکاراوکړونوالله تعالی خان ته راؤغوښتلو دې دَپاره چه هغوی ﷺ له ټول رفعتونه عظمتونه او برکتونه ورعطاکړی اودَدنیاوالوته اوښائی چه کومې هستئی سره تاسوکلام نه کول غواړئی خالق کائنات پخپله هغه سره همکلام کیدل غواړی. چنانچه دَ راجح قول مطابق ۲۷ رجب کال ۱۱هجری کښې دَ حضورپاك دَ ژوندداعظیمه واقعه پیښه شوه اودَمکې مکرمې نه حضورپاك دَ جبرائیل اومیکائیل سره په براق باندې سورشو اول مسجداقصٰی ته لاړو اودَهغه ځائی نه آسمانونوته لاړو اوبیاالله تعالی سره په لامکان کښې په عرش عظیم باندې همکلام شو. په زیربحث باب کښې ټول شپږ احادیث دی مګر بعضې ډیراوږده دی. په دې کښې په پوره تفصیل سره دَمعراج واقعه بیان کړې شوې ده.

**مختلفو پیغمبرانو سره دملاقاتو دپاره پټ الفاظ:** په اووه آسمانونو کښې په کوموآسمانونو کښې کوم کوم انبیاء کراموسره دَحضورپاك ملاقات شوې دې. دَدې دَپاره "اعباهما" الفاظ په خیال کښې ساتل پکاردی. په دې جمله کښې رومبې حرف چه دَ کوم نبی دَ نوم رومبې حرف وی هغه نبی سره به په رومبی آسمان کښې ملاقات شوې وی. دغه شان دَ دې جملې دویم حرف چه دکوم نبی دَ نوم رومبې حرف وی هغه نبی سره به په دویم آسمان باندې ملاقات شوې وی. دَ اووه آسمانونو پورې به هم دغه ترتیب وی

**مختلفو پیغمبرانو سره د نبی علیه السلام ملاقاتونه:**

① دَدې جملې رومبې حرف الف دې نو په رومبی آسمان کښې حضرت آدم علیه السلام سره ملاقات اوشو دَ کوم دَ نوم رومبې حرف چه الف دې.

② دغه شان په دې جمله کښې دويم حرف عين دې نو په دويم آسمان باندې حضرت عيسیٰ علیه السلام سره ملاقات اوشو چه دَ نوم رومبې لفظ ئې عين دې

③ دغه شان حرف ياء دې نو په دريم آسمان کښې حضرت يوسف علیه السلام سره ملاقات شوې.

④ څلورم حرف الف دې نو په څلورم آسمان باندې حضرت ادريس علیه السلام سره ملاقات شوې

⑤ پنځم حرف هاء دې نو په پنځم آسمان باندې حضرت هارون علیه السلام سره ملاقات شوې

⑥ اوشپږم حرف ميم دې نو په شپږم آسمان باندې حضرت موسیٰ علیه السلام سره ملاقات شوې.

⑦ دَدې جملې اووم حرف آخرى حرف الف دې او په اووم آسمان کښې حضرت ابراهيم علیه السلام سره ملاقات اوشو چه دَنوم رومبې حرف ئې الف دې

**تفصيلي حديث:** دَمعراج په شپږو احاديثوکښې دَدې باب رومبې حديث چه دَحضرت انس رضی الله عنه او مالک بن صعصعه رضی الله عنه نه نقل دې دَټولونه زيات منضبط او مرتب دې هم دَدې حديث په بنياد باندې "اعباهما" جمله بنياد دې.

**د معراج په واقعه اعتراضات:** په واقعه دَ معراج باندې دَ پخوانئې زمانې ملحدين فلاسفه هم اعتراضات اوچت کړى وو. جديد ملحدين فلاسفه او سائنسدان هم اعتراضات کوى يوڅو اعتراضات سره دَ جوابه اوګورئې:

① **د معراج واقعه خوبى کيدل:** واقعه دَمعراج په جسم عنصرى سره دَبيدارئې واقعه نه وه بلکه دَ خوب واقعه وه.

**د اول اعتراض جواب:** دايوخوشې اوغلط اعتراض دې ځکه چه که دَ معراج واقعه خوب وې نوالله تعالى هغه په قرآن کريم کښې په دومره لوئې اهتمام سره ولې بيانوله؟ چنانچه ارشاد اوشو "دَهرقسم عجزاو نقص نه پاك الله تعالى دَ شپې په لږه شان حصه کښې په خپل خاص بنده دَمسجد حرام نه مسجداقصىٰ پورې سيل اوکړو" په خوب کښې خوهرسړې دَدنيا ګوټ ګوټ پورې سفرکوى کله په سمندرونوکښې تيريږى کله په هواګانوکښې الوزى کله آسمانونوته خيژى اوکله په غرونوباندې ورخيژى په دې کښې دَ حيرانتياڅه خبره وه اوپه دومره اهتمام سره دَ بيانولوڅه ضرورت وو؟ اودَ هغه وخت دَ يوڅو کچه عقيدې دَمسلمانانودَ مرتد کيدوڅه خبره وه؟ او په دې کښې دَحضورپاك دَ وينا څه ضرورت وو که چرې دادَ خوب معامله وه نوحضورپاك دَمکې کله غانب شوې وو چه بيانئې سحرهم په مکه کښې اوکړو؟ معلومه شوه چه دا بدنى سفروو کوم چه په بيدارئې کښې شوې وو دَ کوم په وجه چه اهل مکه دَحدنه زيات شور جوړکړو اوداخبره خويقينى ده چه دَخوب په خبره څوك دومره تعجب نه کوى اونه دَهغې په بحث کښې څوك وردانګى اونه دَ وردانګلوضرورت وى. دلته لفظ "عبد" نه صرف روح ته وائى اونه صرف بدن ته وائى بلکه دَ روح او بدن دواړو په ملاپ باندې دَ لفظ عبداطلاق کيږى.

۲ **د ناري اوزمهريري طبقاتو څخه د تيريدو عدم امکان**: دَ جسد عنصري واقعه څنګه کيدې شي. کله چه پورته طبقات زمهريريه اوطبقات ناريه دی دَ کوم نه تيريدل چه محال دی.
**د دويم اعتراض جواب**: الله تعالى دَ معراج دَ واقعه په شروع کښې دَ سبحان لفظ کيخودې دې يعنى هغه پروردګار چه دَهرقسم عجزاو عيب نه اوهرقسم نقص اوکمزورئى نه پاك دې هغه چه څه کول غواړي کولې شي. دويمه خبره داده چه نن يو کمزورې انسان دَدغه طبقات نه دَ بچ کيدودَپاره داسې آلات اواسباب جوړکړي دی چه په قول دَهغوى دغه آلات استعمالولوسره دَدغه طبقات نه په حفاظت سره تيريږي. که چرې يوکمزورې مخلوق دَخپلو آلاتوپه ذريعه دَدغه طبقات دَ مضر اثراتونه بچ کيدې شي نودَقادرمطلق بادشاه دَپاره څه ګران دی چه هغه خپل شاهي ميلمه دَدغه ټولو طبقاتونه په حفاظت سره تيرکړي. دا اعتراض هم دَ نن صباپه دورکښې مهمل پاتې شوې دې.
نن صبادَې نوى ټيکنالوجئى په دورکښې دَدې اعتراض حيثيت ختم شوې دې اوس خوکافران هم وائى چه مونږ پورته سپوږمئى ته ختلې يو.
۳ **د آسمان عدم وجود**: په معراج باندې ملحدينودويم اعتراض داکړې دې چه دا پورته کوم آسمان ښکاري داآسمان نه دې بلکه نيلګونى يعنى شينوالې دې چه دَ لرې مسافت دَ وجې نه ستر ګوته آسمان معلوميږي. کله چه آسمان نشته نودَ معراج پوره داستان نشته.
**د دريم اعتراض جواب**: دَ ملحدينودا اعتراض هم غلط دې ځکه چه الله تعالى باربار انسان دَ دغه علوي کائنات په عجائباتوکښې دَ غورکولودَپاره متوجه کړې دې چه دا اوګورئى آسمان دې هغه اوګورئى ستوري سپوږمئى اونمردې. کوم چه دَ الله تعالى په حکم باندې روان دی. دَ آسمان اوچتوالى ته اوګورئى په دې کښې هيڅ چاؤدې نشته دې. دَدې هيڅ ستن وغيره نشته دې که چرې دا آسمان نه دې نوالله تعالى دَغورکولودَپاره انسان دکوم څيزطرف ته متوجه کړې دې؟
بل که چرې دا شينوالې دې آسمان نه دې نومونږ وايودَې دَپاسه آسمان دې تاسو سره دَدې دَنفى کوم يودليل دې؟ دَنن صباپه دې جديددورکښې دَملحدينودا اعتراض هم ختم شوې دې بلکه اوس خو ملحدين پخپله دَ آسمان اعتراض کوى اودې ته دَتللو اوپه دې کښې دَ اوسيدلو فضول خبرې هم کوى
۴ **د اوږد مسافت طې کول**: يواعتراض کوم چه دَ پخوانئى او اوسنئى زمانې دَملحدانودَطرف نه دَ پخوانه راروان دې هغه دا چه دَ مسجدحرام نه دَمسجداقصى پورې دَزمکې لاردَ يوې مياشتې مسافت دې اودَزمکې نه دآسمان پورې پنځه سوه کاله مسافت دې. دَ پورته آسمان مسافت دَزرګونوکالودې دادومره اوږد سفرئى په يوه شپه کښې څنګه اوکړو دا ناممکن دی؟

**د علوم اعتراض جواب:** دَ پخوانئی زمانې فلسفیانولیکلی دی چه دَحرکت تیزی اوسرعت سیردَپاره څه حدمقررنه دې دَهرسریع الحرکة څیزنه پس هم ممکن دیٔ چه دَدې نه هم دَ زیات تیزحرکت والا څیزراشی دَنن نه څوسوه کاله وړاندې کله چه هوائی جهازنه وو جوړشوې نودَ چاپه تصورکښې هم نه وو چه دا سریع الحرکة څیزبه راشی دَ کوم په ذریعه چه په یوځوګینټوکښې انسان دَدنیادَ یوګوټ نه بل ګوټ پورې الوتوسره څی لیکن نن داسفرمشاهده جوړه شوې ده او په جهازونوکښې هم دَترقئی دَ پاسه ترقی کیږی اودَحرکت تیزوالې نورهم تیزیږی بل چه مونږ په خپل بدن کښې په خپلو سترګوباندې خیال اوکړو چه دَدې سفرڅومره تیزدې په یوڅوسیکنډه کښې هم دا نظردآسمانه پورې څی هم او واپس هم راځی په یوڅوسیکنډونوکښې دَالله تعالی فرښته دآسمان نه دنیاته راځی کله چه دَالله تعالی په حکم سره دَهغه فرښته داسې کولې شی نودَصاحب معراج دَپاره څه مشکل دی چه په یوڅولمحوکښې آسمانونوته لاړشی اوخاص کر چه پخپله هم شاهی میلمه وی؟په حدیث شریف کښې دی چه دَحضورپاك سورلی دومره تیزه وه چه دکوم ځائی پورې دَهغه نظررسیدلو نوهم هلته به دَهغه قدم پریوتلو بل دَ نمر سریکوته اوګورئی چه دَ آسمان نه په ښکاره کیدو سره په یوڅولمحوکښې دَدنیادکوم ګوټ نه دکوم ګوټ پورې رسیږی بل دَ بجلئی دَ کرنټ نظام ته اوګورئی که په مشرق کښې دَهغې بټن اووهلې شی نوبغیردَ څه وقفې نه به په مغرب کښې بلب روښانه شی. بل دَ ریډیائی لاسلکی نظام مشاهده اوکړئی چه دَ مشرق نه ترمغرب پورې بغیردَځه وقفې نه آواز رسیږی. که چرې دَ تیز سیر دا شواهد زمونږ په مشاهده کښې دی نوبیاپه دې کښې دَ شك کولوڅه ګنجائش دې چه سیدالاولین والاخرین ﷺ په دغه مبارك سفرکښې دَ رفتار څه پیچیدګی پیداشی بهرحال دَاهل یورپ او اهل مغرب تعصب اوګورئی چه کله دَمعراج دا عظیم معجزې او اعزاز په انکارباندې راغلل نودآسمانونونه ئی انکاراوکړو اودَ طبقات زمهریره اوناریه مسائل ئی راپیدا کړل او کله چه ئی دَخپل مطلب خبره راغله نو په سپوږمئی باندې دَ پلاټونو دَاخستلو منصوبې جوړوی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۵۸۶۲] د معراج د واقعې ذکر**

۵۸۶۲-(١) [١] ١ عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ [عَنْ مَالِكِ] بْنِ صَعْصَعَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، ٢ أَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَدَّثَهُمْ عَنْ لَيْلَةِ أُسْرِيَ بِهِ: ٣ (بَيْنَمَا أَنَا فِي الْحَطِيمِ - وَرُبَّمَا قَالَ فِي الْحِجْرِ - مُضْطَجِعًا ٤ إِذْ أَتَانِي آتٍ، فَشَقَّ مَا بَيْنَ هَذِهِ إِلَى هَذِهِ) ٥ يَعْنِي مِنْ ثُغْرَةِ نَحْرِهِ إِلَى شِعْرَتِهِ " ٦ فَاسْتَخْرَجَ قَلْبِي، ثُمَّ أُتِيتُ بِطَسْتٍ مِنْ

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب المعراج (رقم-۳۸۸۷) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب الإسراء برسول الله صلی الله علیه وسلم إلی السماوات. وفرض الصلوات (رقم-۲۶۵ - (۱۶٤) والنسائی کتاب الصلاة/باب فرض الصلاة , وذکر اختلاف الناقلین فی إسناد حدیث أنس بن مالک رضی الله عنه , واختلاف ألفاظهم فیه (رقم-٤٤٨) واحمد فی المسند: ۲۰۷/٤

ذَهَبٍ مَمْلُوءٍ إِيمَانًا، ⑦ فَغُسِلَ قَلْبِي، ثُمَّ حُشِيَ، ثُمَّ أُعِيدَ) - ⑧ وَفِي رِوَايَةٍ: "ثُمَّ غُسِلَ الْبَطْنُ بِمَاءِ زَمْزَمَ، ⑨ ثُمَّ مُلِئَ إِيمَانًا وَحِكْمَةً لِلّٰهِ

**توجمه:** ① حضرت قتاده تابعي رحمه الله د حضرت انس ابن مالك نه او هغه د حضرت مالك ابن صعصعه نه روايت كوي ② چې رسول الله ﷺ د اسراء او د معراج د شپې د احوالو او واقعاتو تفصيل صحابه رضي الله عنهم ته بيانولو سره وفرمايل ③ نن شپه زه په حطيم كې پروت وم او په بعضې موقعو حضور ﷺ حجر كې د پروتې ذكر وفرمايلې ④ چې اچانك يوراتلونكى يعنى فرشته ماته راغله او هغه څما د جسم ددې ځاى نه دې ځاى پورې حصه وڅيرله ⑤ راوي وايې ددې ځاى نه دې ځاى پورې د حضور ﷺ مراد د غاړې د كندې نه زير ناف وينښتانو پورې حصه وه ⑥ بيا حضور ﷺ وفرمايل هغه فرشتې داسې څما سينه شلولو څمازړه را اوښكلو دې نه وروسته څما مخكې د سروزرو لګن راوړل شو چې د ايمان نه ډك وو ⑦ او په هغه كې څما زړه و وينځل شو بيا څما زړه د الله تعالیٰ د عظمت او محبت يا د علم او ايمان ددولت نه ډك كړل شو او بيا زړه په سينه كې په خپل ځاى كيخودل شو ⑧ او په يوه روايت كې دا الفاظ دي چې څما په خيټه كې دننه ټول څيزونه يا د زړه ځاى د زمزم په اوبو سره و وينځل شو ⑨ او هغه د ايمان او حكمت نه ډك كړل شو.

**حل اللغات:-** ① ثُغْرَةِ نَحْرِهِ: أَيْ: نَقْرَةِ نَحْرِهِ: د مرئ كنده، ② شِعْرَتِهِ: أَيْ عَانَتِهِ: تر د ناف، نوم پورې (چرته چه وينسته راخيجي) ③ حُشِيَ: د ماضى مجهول صيغه ده، د حَشْو نه ماخوذ ده، أَيْ: مُلِئَ مِنْ حُبِّ رَبِّي: ډک کړې شو دعظمت اومحبت دالله نه، يا ډک کړې شو دعلم اوايمان نه

① ثُمَّ أُتِيتُ بِدَابَّةٍ دُونَ الْبَغْلِ وَفَوْقَ الْحِمَارِ، ② أَبْيَضَ يُقَالُ لَهُ: الْبُرَاقُ، ③ يَضَعُ خَطْوَهُ عِنْدَ أَقْصَى طَرْفِهِ، فَحُمِلْتُ عَلَيْهِ، ④ فَانْطَلَقَ بِي جِبْرِيلُ حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ الدُّنْيَا، ⑤ فَاسْتَفْتَحَ، قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ. ⑥ قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ. ⑦ قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ. ⑧ قِيلَ: مَرْحَبًا بِهِ، فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، ⑨ فَفُتِحَ فَلَمَّا خَلَصْتُ، فَإِذَا فِيهَا آدَمُ فَقَالَ: ⑩ هَذَا أَبُوكَ آدَمُ، فَسَلِّمْ عَلَيْهِ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ السَّلَامَ، ⑪ ثُمَّ قَالَ: مَرْحَبًا بِالِابْنِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ

**توجمه:** ① دي نه وروسته د سورلى يوحيوان راوستل شو چې د قچرڅخه وړوكې او د خرڅخه غټ وو ② دا حيوان د سپين رنګ وو او د هغه نوم براق وو ③ او د هغه د تيز رفتارى داحال وو چې تركومه خايه پورې به د هغه نظر تلى دهغى پورې به هغه يوقدم اينښووى زه په هغه سور شوم ④ او جبرائيل علیه السلام زه روان كړم ددې پورې چې زه د دنيا آسمان يعنى مخكنى آسمان ته ورسيدم ⑤ جبرائيل دروازه كولاؤولو د پاره اوويل نود پهره دارو فرشتو د طرف نه پوښتنه وشوه چې څوك يې؟ جبرائيل علیه السلام اوويل زه جبرائيل يم ⑥ بيا پوښتنه وشوه اوستا سره څوك دى؟ جبرائيل جواب وركړو محمد ﷺ دى ⑦ ددې نه وروسته پوښتنه وشوه د دوئ محمد بللو د پاره څوك ليږل شوى وو يا په خپله راغلى دى

جبرائیل جواب ورکړو بللو سره راغلی دی ۸ بیا هغه فرشتو اوویل مونږ محمد ﷺ ته پخیر راغلئ وایو راتلونکي ته دي راتلل مبارك وي ۹ د دې د آسمان دروازه کولاؤه شوه او کوم وخت چې زه په آسمان کې داخل شوم نو څه ګورم چې حضرت آدم علیه السلام مخې ته ولاړ دی جبرائیل علیه السلام اوویل ۱۰ دا ستا پلار یعنی جدّ اعلیٰ آدم دی ده ته سلام وکړه ما حضرت آدم علیه السلام ته سلام وکی هغوئ د سلام جواب راکړو ۱۱ او وې فرمایل زه نیك بخت ځوی او صالح پیغمبر ته پخیر راغلئ وایم.

**حل اللغات:**-④الْبُرَاقُ: قچر، خچر، دا دخر نه غټ وی او د اس نه وروکې وی. دې ته براق ځکه وائی چه رنګ ئې خلیدو یا دا چه لکه د وریخې د برېښنا په شان پړقیده ځکه ورته برق وائی ⑤خَلَصْتُ: أَيْ: وَصَلْتُ: چه اورسیدم، ورداخل شوم

۱ ثُمَّ صَعِدَ بِي حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ الثَّانِيَةَ، ۲ فَاسْتَفْتَحَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ. ۳ قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ ۴ قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ. ۵ قِيلَ: مَرْحَبًا لَهُ، فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَفُتِحَ. ۶ فَلَمَّا خَلَصْتُ إِذَا يَحْيَى وَعِيسَى وَهُمَا ابْنَا خَالَةٍ ۷ قَالَ: هَذَا يَحْيَى وَهَذَا عِيسَى فَسَلِّمْ عَلَيْهِمَا، ۸ فَسَلَّمْتُ فَرَدَّا، ثُمَّ قَالَا: مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ.

**ترجمه:**۱ د دې نه وروسته جبرائیل زه پورته دویم آسمان ته راوستم ۲ هغه دروازه کولاؤولو د پاره اوویل نو پوښتنه وشوه څوك دي؟ جبرائیل علیه السلام اوویل زه جبرائیل یم ۳ بیا پوښتنه وشوه تا سره څوك دی؟ هغه اوویل محمد دی ۴ بیا پوښتنه وشوه دوئ راغوښتل شوي دي؟ جبرائیل اوویل هو۵ بیا پهره دار فرشتو اوویل مونږ محمد ته پخیر راغلئ وایو راتلونکي ته دي راتلل مبارك وي دي نه وروسته د آسمان دروازه کولاؤه شوه ۶ کوم وخت چې زه په آسمان کې داخل شوم نو چې ګورم حضرت یحیٰی علیه السلام او حضرت عیسٰی ولاړ دي چې یوبل خاله زاد ورونه وه ۷ جبرائیل اوویل دا یحیٰی دی او دا عیسٰی دی دوئ ته سلام وکړه ۸ ما دواړو ته سلام وکی او دواړو ځما د سلام جواب راکولو سره اوویل نیك بخت ورور او پیغمبر صالح ته مونږ پخیر راغلئ وایو.

۱ ثُمَّ صَعِدَ بِي إِلَى السَّمَاءِ الثَّالِثَةِ، فَاسْتَفْتَحَ، ۲ قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ. قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ. ۳ قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ. ۴ قِيلَ: مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَفُتِحَ، ۵ فَلَمَّا دَخَلْتُ إِذَا يُوسُفُ، ۶ قَالَ: هَذَا يُوسُفُ، فَسَلِّمْ عَلَيْهِ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَرَدَّ. ۷ ثُمَّ قَالَ: مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ،

**ترجمه:**۱ د دې نه وروسته جبرائیل زه آختوسره پورته بوتلم او دریم آسمان ته راغلو هغه دروازه کولاؤولو د پاره اوویل ۲ نو پوښتنه وشوه څوك دي؟ جبرائیل علیه السلام اوویل زه جبرائیل یم بیا پوښتنه وشوه تا سره څوك دی؟ هغه اوویل محمد دی ۳ بیا پوښتنه وشوه دوئ راغوښتل شوي دي؟ جبرائیل اوویل هو۴ بیا پهره دار فرشتو اوویل مونږ محمد ته پخیر راغلئ وایو راتلونکي ته دي راتلل مبارك وي دي نه وروسته د آسمان دروازه کولاؤه

شوه ۵ زه چې په دریم آسمان کې داخل شوم نو چې ګورم حضرت یوسف علیه السلام مخې ته ولاړ دی۶ جبرائیل اوویل دا یوسف دی ده ته سلام وکړه ماهغه ته سلام اوونیلو هغه خما د سلام جواب راکړو ۷ اوویې ویل زه نیك بخت ورور او پیغمبر صالح ته پخیر راغلې وایم.

۱ ثُمَّ صَعِدَ بِي حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ الرَّابِعَةَ، فَاسْتَفْتَحَ،۲ قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ. قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ.۳ قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ.۴ قِيلَ: مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَفُتِحَ،۵ فَلَمَّا خَلَصْتُ فَإِذَا إِدْرِيسُ،۶ فَقَالَ: هَذَا إِدْرِيسُ، فَسَلِّمْ عَلَيْهِ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَرَدَّ،۷ ثُمَّ قَالَ: مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ.

**ترجمه**:۱ دې نه وروسته جبرائیل زه پورته بوتلم او څلورم آسمان ته راغلو هغه دروازه کولاؤولو د پاره اوویل ۲ نو پوښتنه وشوه څوك دې؟ جبرائیل علیه السلام اوویل زه جبرائیل یم بیا پوښتنه وشوه تا سره څوك دې؟ هغه اوویل محمد دی ۳ بیا پوښتنه وشوه دوی راغوښتل شوي دي؟ جبرائیل اوویل هو۴ بیا پهره دار فرشتو اوویل مونږ محمد ته پخیر راغلې وایو راتلونکي ته دې راتلل مبارك وي دې نه وروسته د آسمان دروازه کولاؤ شوه ۵ او هرکله چې زه څلورم آسمان کې داخل شوم نو چې ګورم حضرت ادریس علیه السلام مخې ته ولاړ دی ۶ جبرائیل علیه السلام اوویل دا ادریس علیه السلام دی ده ته سلام وکړه ما هغه ته سلام وکی اوهغه خما د سلام جواب راکړو ۷ اوویې ویل زه نیك ورور او پیغمبر صالح ته پخیر راغلې وایم

۱ ثُمَّ صَعِدَ بِي حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ الْخَامِسَةَ، فَاسْتَفْتَحَ،۲ قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ. قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ.۳ قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ.۴ قِيلَ: مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، فَفُتِحَ،۵ فَلَمَّا دَخَلْتُ، فَإِذَا هَارُونُ.۶ قَالَ: هَذَا هَارُونُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَرَدَّ،۷ ثُمَّ قَالَ: مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ.

**ترجمه**:۱ د دې وروسته جبرائیل پورته بوتلم او پنځم آسمان ته راغلو هغه دروازه کولاؤولو د پاره اوویل ۲ نو پوښتنه وشوه څوك دې؟ جبرائیل علیه السلام اوویل زه جبرائیل یم بیا پوښتنه وشوه تا سره څوك دی؟ هغه اوویل محمد دی ۳ بیا پوښتنه وشوه دوی راغوښتل شوي دي؟ جبرائیل اوویل هو۴ بیا پهره دار فرشتو اوویل مونږ محمد ته پخیر راغلې وایو راتلونکي ته دې راتلل مبارك وي دې نه وروسته د آسمان دروازه کولاؤ شوه ۵ زه چې پنځم آسمان کې داخل شوم نو چې ګورم حضرت هارون علیه السلام مخې ته ولاړ دی ۶ جبرائیل اوویل دا هارون دی ده ته سلام وکړه ما هغه ته سلام وکی او هغه خما د سلام جواب راکولو سره اوویل زه نیك بخت ورور او پیغمبر صالح ته پخیر راغلې وایم

۱ ثُمَّ صَعِدَ بِي حَتَّى أَتَى السَّمَاءَ السَّادِسَةَ، فَاسْتَفْتَحَ،۲ قِيلَ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ. قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ.۳ قِيلَ: وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ.۴ قَالَ: مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ،۵ فَلَمَّا خَلَصْتُ فَإِذَا مُوسَى،۶ قَالَ: هَذَا مُوسَى، فَسَلِّمْ عَلَيْهِ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَرَدَّ،۷ ثُمَّ قَالَ: مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ،۸ فَلَمَّا

جَاوَزْتُ بَكَى، قِيلَ: مَا يُبْكِيكَ؟ ⑨ قَالَ: أَبْكِي لِأَنَّ غُلَامًا بُعِثَ بَعْدِي يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِهِ أَكْثَرُ مِمَّنْ يَدْخُلُهَا مِنْ أُمَّتِي،

**ترجمه:** ① ددي نه وروسته جبرائيل زه پورته بوتلم شپږم آسمان ته راغلو هغه دروازه کولاؤولو د پاره اوويل ② نو پوښتنه وشوه څوك دي؟ جبرائيل عليه السلام اوويل زه جبرائيل يم بيا پوښتنه وشوه تا سره څوك دی؟ هغه اوويل محمد دی ③ بيا پوښتنه وشوه دوئ راغوښتل شوي دي؟ جبرائيل اوويل هو ④ بيا پهره دار فرشتو اوويل مونږ محمد ته پخير راغلئ وايو راتلونکي ته دي راتلل مبارك وي ⑤ دي نه وروسته د آسمان دروازه کولاؤه شوه کوم وخت چې شپږم آسمان کې داخل شوم نو چې گورم حضرت موسیٰ عليه السلام څما مخې ته ولاړ دی ⑥ جبرائيل اوويل دا موسیٰ عليه السلام دی ده ته سلام وکړه ما هغه ته سلام اووئيلو هغه څما د سلام جواب راکړو ⑦ اووېې ويل زه نيك بخت ورور او پيغمبر صالح ته پخير راغلئ وايم ⑧ ددي نه وروسته چې زه مخکې روان شوم نو حضرت موسیٰ عليه السلام په ژړاسو پوښتنه وشوه ته ولي ژاړې؟ ⑨ حضرت موسیٰ اوويل يوځلمی چې زما نه وروسته رسول دنيا ته راليږل شوي دي د هغه د امت خلق څما د امت د خلقو نه ډير زيات په جنت کې داخليږي.

① ثُمَّ صَعِدَ بِي إِلَى السَّمَاءِ السَّابِعَةِ، فَاسْتَفْتَحَ جِبْرِيلُ، ② قِيلَ: مَنْ هٰذَا: قَالَ: جِبْرِيلُ. قِيلَ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: مُحَمَّدٌ. ③ قِيلَ: وَقَدْ بُعِثَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ. ④ قِيلَ: مَرْحَبًا بِهِ فَنِعْمَ الْمَجِيءُ جَاءَ، ⑤ فَلَمَّا خَلَصْتُ، فَإِذَا إِبْرَاهِيمُ، ⑥ قَالَ: هٰذَا أَبُوكَ إِبْرَاهِيمُ، فَسَلِّمْ عَلَيْهِ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَرَدَّ السَّلَامَ، ⑦ ثُمَّ قَالَ: مَرْحَبًا بِالِابْنِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ

**ترجمه:** ① بهرحال شپږم آسمان نه تيريدو سره جبرائيل زه پورته بوتلم او اووم آسمان ته راغلو هغه دروازه کولاؤولو د پاره اوويل ② نو پوښتنه وشوه څوك دي؟ جبرائيل عليه السلام اوويل زه جبرائيل يم بيا پوښتنه وشوه تا سره څوك دی؟ هغه اوويل محمد دی ③ بيا پوښتنه وشوه دوئ راغوښتل شوي دي؟ جبرائيل اوويل هو ④ بيا پهره دار فرشتو اوويل مونږ محمد ته پخير راغلئ وايو راتلونکي ته دي راتلل مبارك وي ⑤ دي نه وروسته د آسمان دروازه کولاؤه شوه او زه اووم آسمان کې داخل شوم نو چې گورم حضرت ابراهيم څما مخې ته ولاړ دی ⑥ جبرائيل عليه السلام اوويل دا ستا پلار مورث اعلیٰ ابراهيم دی ده ته سلام وکړه ما هغه ته سلام وکی هغوئ دسلام جواب راکړو ⑦ اووېې ويل زه نيك بخت ځوی اوپيغمبر صالح ته پخير راغلئ وايم

① ثُمَّ رُفِعْتُ إِلَى سِدْرَةِ الْمُنْتَهَى، ② فَإِذَا نَبِقُهَا مِثْلُ قِلَالِ هَجَرَ، ③ وَإِذَا وَرَقُهَا مِثْلُ آذَانِ الْفِيَلَةِ، قَالَ: هٰذَا سِدْرَةُ الْمُنْتَهَى، ④ فَإِذَا أَرْبَعَةُ أَنْهَارٍ: نَهْرَانِ بَاطِنَانِ وَنَهْرَانِ ظَاهِرَانِ، ⑤ قُلْتُ: مَا هٰذَانِ يَا جِبْرِيلُ؟ قَالَ: أَمَّا الْبَاطِنَانِ فَنَهْرَانِ فِي الْجَنَّةِ، ⑥ وَأَمَّا الظَّاهِرَانِ فَالنِّيلُ وَالْفُرَاتُ، ⑦ ثُمَّ رُفِعَ لِيَ الْبَيْتُ الْمَعْمُورُ، ⑧ ثُمَّ أُتِيتُ بِإِنَاءٍ مِنْ خَمْرٍ، وَإِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ، وَإِنَاءٍ مِنْ عَسَلٍ، ⑨ فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ، فَقَالَ: هِيَ الْفِطْرَةُ أَنْتَ عَلَيْهَا وَأُمَّتُكَ،

**ترجمه:** [۱] ددې نه زه سدرة المنتهٰی ته ورسول شوم [۲] ما ولیدل چې د هغه میوې [یعنی بیرې] د مقام هجر د لویو لویو منګو برابرې وې [۳] او د هغه پاڼې د فیل د غوږونو برابرې وې جبرائیل علیه السلام هلته رسیدو سره اوویل دا سدرة المنتهٰی ده [۴] ماهلته څلور نهرونه ولیدل دوه نهرونه خو د باطن وه او دوه نهرونه د ښکاره وه [۵] ماپوښتنه وکړه اې جبرائیل علیه السلام! دا دوه نهرونه څرنګه دي؟ جبرائیل اوویل دا د باطن دوه نهرونه د جنت دي [۶] اودا دوه ښکاره نهرونه نیل او فرات دي [۷] بیا ماته بیت المعمور وښودل شو [۸] او ددې نه وروسته یوه پیاله د شرابو یوه د پیئو او یوه پیاله دعسلو (شهد) خما مخې ته راوړل شوه [او ماته اختیار راکول شو چې دې درې واړه پیالوکې کومه پیاله دې خوښه وي هغه واخله] [۹] نو ما د پیئو پیاله واخسته جبرائیل دالیدو سره چې ما د پیئو پیاله اختیار کړه اوویل پئې فطرت دی او یقیناً ته او ستا د امت خلق به په دې فطرت قائم او عامل وي او هر چې شراب دي نو هغه خو ام الخبائث او د شر او فساد بیخ دی

**حل اللغات:** - ⑥ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى: سدرة د بیرې ونې ته وائی، او منتهٰی آخری حد ته وائی. دا په اووم آسمان کښې یوه وُنه ده، ددې تنه په شپږم آسمان کښې ده. دې ته منتهٰی ځکه وائی چه دې ځائې نه د لاندې مخلوق پورته نه شی تلې اود پورته مخلوق لاندې نه شی راتلې. اعمال العباد هم دلته پورې رسیږی، ملائک اورسولان هم ددې ځائې نه تجاوز نه شی کولې سیوا د نبی علیه السلام نه ⑦ نَبْقُهَا: أَيْ ثَمَرُهَا: میوې ددغه ونې ⑧ قِلَالِ: د قُلَّة جمع ده، لوئې منګې یعنی چاټې ته وائی ⑨ هَجَرَ: دا د یو ښار نوم دې هغې ته نسبت دې ⑩ آذَانِ: د أُذُن جمع ده، غوږ ته وائی ⑪ الْفِيَلَةِ: د فیل جمع ده، هاتهی ته وائی. ⑫ الْبَيْتُ الْمَعْمُوْرُ: وَهُوَ بَيْتٌ فِي السَّمَاءِ السَّابِعَةِ حِيَالَ الْكَعْبَةِ: د کعبې دپاسه په اووم آسمان کښې یوکوردې، دې ته د فرشتو کعبه هم وائی ⑬ الْفِطْرَةُ: وَهِيَ الْإِيْمَانُ: فطرت نه مراد ایمان یا دین اسلام دی (یعنی د حق شی د قبلولو په هغه کښې صلاحیت وی)

[۱] ثُمَّ فُرِضَتْ عَلَيَّ الصَّلَاةُ خَمْسِينَ صَلَاةً كُلَّ يَوْمٍ، [۲] فَرَجَعْتُ فَمَرَرْتُ عَلَى مُوسَى، فَقَالَ: بِمَا أُمِرْتَ؟ [۳] قُلْتُ: أُمِرْتُ بِخَمْسِينَ صَلَاةً كُلَّ يَوْمٍ [۴] قَالَ: إِنَّ أُمَّتَكَ لَا تَسْتَطِيعُ خَمْسِينَ صَلَاةً كُلَّ يَوْمٍ، [۵] وَإِنِّي وَاللهِ قَدْ جَرَّبْتُ النَّاسَ قَبْلَكَ، [۶] وَعَالَجْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَشَدَّ الْمُعَالَجَةِ، [۷] فَارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَسَلْهُ التَّخْفِيفَ لِأُمَّتِكَ،

**ترجمه:** [۱] ددې نه وروسته هغه مقام راغې چې هلته په ماباندې په یوه ورځ و شپه کې پنځوس مونځونه فرض شوه [۲] بیا چې [د ملاء اعلیٰ څخه سفر تېول شو او درګاه رب العزت نه] واپس راووتم [نو اووم آسمان باندې حضرت ابراهیم علیه السلام نه رخصت کیدو سره شپږم آسمان باندې] حضرت موسیٰ ته راغلم [او هغه نه چې رخصتیدم] نو هغه پوښتنه وکړه تاته د کوم عبادت حکم شوې دې [۳] ما ورته وښودل په شپه او ورځ کې د پنځوسو مونځونو حکم راته شوې دې [۴] حضرت موسیٰ علیه السلام په دې اوریدو سره اوویل ستا امت د کمزورې او سستۍ په سبب شپه او ورځ کې پنځوس مونځونه به ادا نه کړي [۵] قسم په الله ما

ستاسو نه مخکې خلق آزمائیلي دي اچې د عبادت خداوندي په لار کې مشقت او تکلیف برداشت کول د هغوئ طبیعتونو باندې ګومره بوج وو[۶] او د بني اسرائیلو د اصلاح او درستۍ سخت ترین کوشش مې کړی دی الیکن دهغوئ اصلاح و نه شوه باوجود د دې چې د هغه قوئ ستا د امت د قوئ نه زیات مضبوط وو بیا ستا د امت خلق به دومره زیات مونځونه ځرنګه برداشت کړي[۷] ته خپل پروردګار ته لاړ شه او دخپل امت په حق کې د تخفیف او آسانۍ درخواست وکړه.

**حل اللغات:** -⑬ التَّخْفِیفَ: سپکوالی، کموالی.

> [۱] فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّي عَشْرًا، [۲] فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى فَقَالَ مِثْلَهُ، [۳] فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّي عَشْرًا، [۴] فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى فَقَالَ مِثْلَهُ، فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّي عَشْرًا، [۵] فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى فَقَالَ مِثْلَهُ، [۶] فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّي عَشْرًا. [۷] فَأُمِرْتُ بِعَشْرِ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ، [۸] فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى فَقَالَ مِثْلَهُ، [۹] فَرَجَعْتُ فَأُمِرْتُ بِخَمْسِ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ، [۱۰] فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى، فَقَالَ: بِمَا أُمِرْتَ؟ [۱۱] قُلْتُ: أُمِرْتُ بِخَمْسِ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ

**توجمه:** [۱] نو زه د خپل پروردګار بارګاه کې دوباره حاضر شوم او ځما پروردګار ځما عرض اوریدو باندې لس مونځونه کم کړل [۲] بیا حضرت موسیٰ علیه السلام ته راغلم اورته ومې ویله چې لس مونځونه کمولو سره څلویښت مونځونه پاتې شوه] لیکن هغه بیا هغه اوویل څه چې یې مخکې ویلي وه اچې ما مخکښې خلق آزمائیلي دي ستا د امت خلق څلویښت مونځونه هم نشي اداکولی اوس دوباره بارګاه رب العزت ته لاړ شه د مزید تخفیف درخواست وکړه] [۳] نو زه دوباره بارګاه خداوندي کې حاضر شوم څلویښتو نه لس مونځونه کم شوه [۴] بیا حضرت موسیٰ ته راغلم هغه بیا هغه اوویل ځرنګه چې یې مخکې ویلي وه نو زه بارګاه خداوندي کې حاضر شوم او دیرش نه لس مونځونه کم شوه [۵] بیا زه حضرت موسیٰ علیه السلام ته راغلم هغه بیا هغه اوویل څه چې یې مخکې ویلي وه [۶] نو زه بارګاه خداوندي کې حاضر شوم نو شلو نه لس مونځونه کم شو[۷] او دلسو مونځونو حکم وشو په هره ورځ کې[۷] بیا حضرت موسیٰ ته راغلم هغه بیا هغه اوویل ځنګه چې یې مخکې ویلي وه [۹] نو زه بارګاه خداوندي کې حاضرشوم اود لسو نه آخر دپنځو مونځونوپه شپه او ورځ کې د کولو حکم وشو[۱۰] بیا زه حضرت موسیٰ ته راغلم هغه پوښتنه وکړه اوس درته څه حکم شوي دي [۱۱] ما ورته اوویل اوس ماته په شپه او ورځ کې د پنځو مونځونو حکم شوي دي.

> [۱] قَالَ: إِنَّ أُمَّتَكَ لَا تَسْتَطِيعُ خَمْسَ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ [۲] وَإِنِّي قَدْ جَرَّبْتُ النَّاسَ قَبْلَكَ، وَعَالَجْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَشَدَّ الْمُعَالَجَةِ، [۳] فَارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَسَلْهُ التَّخْفِيفَ لِأُمَّتِكَ، [۴] قَالَ: سَأَلْتُ رَبِّي حَتَّى اسْتَحْيَيْتُ، [۵] وَلَكِنِّي أَرْضَى وَأُسَلِّمُ. [۶] قَالَ: فَلَمَّا جَاوَزْتُ، نَادَى مُنَادٍ: [۷] أَمْضَيْتُ فَرِيضَتِي وَخَفَّفْتُ عَنْ عِبَادِي). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**توجمه:** [۱] حضرت موسیٰ علیه السلام اوویل حقیقت دادی چې ستا د امت اکثره خلق به په پوره پابندي سره شپه او ورځ کې پنځه مونځه هم ونکړي [۲] ما ستاسو نه مخکې خلق آزمائیلي

دي او د بني اسرائيلو د اصلاح او درستی سخت کوشش مي کړی دی هغوئ دي نه هم کم عبادتِ خداوندي باندې عامل پاتې نه شوه ۳ نو ته خپل پروردګار ته ورشه او خپل د امت د پاره پنځه مونځونو کې هم د تخفيف درخواست وکړه ۴ حضور ﷺ وفرمايل [په دې موقعه ما حضرت موسى ته اوويل] ما بيا بيا خپل رب ته د تخفيف سوال کړی دی اوس ماته شرم راځي اګه څه هم د امت د طرف نه د پنځه مونځونو هم د نه کيدو ګمان دی خو د مزيد تخفيف درخواست کول اوس زما د پاره ممکن نه دی[ ۵ زه د خپل پروردګار دا حکم په رضا او رغبت سره قبلوم او خپله او د امت معامله په هغه سپارم [چې هغه خپل توفيق او مدد سره د امت خلق د دې پنځو مونځونو د آدائيګی پابند جوړ کړي[ ۶ حضور ﷺ فرمايي حضرت موسى سره دي ګفتګو نه وروسته چې زه د هغه ځاي نه رخصت شوم نو د الله ﷻ د طرف نه دا اواز راغي ۷ ما مخکې خو خپل فرض جاري کړل بيا د خپل خوږ رسول دخوشحالولودپاره دخپلو بنده ګانو په حق کې مي تخفيف وکی مطلب داچې اوس به څمابندګان خوپنځه مونځونه کوي ليکن ثواب به ورته د پنځوسو حاصليږي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ⑮عَالَجْتُ: علاج مې کړې دې، د صحيح کولو کوشش مې کړې دې ⑯جَاوَزْتُ: وړاندې شوم، روان شوم ⑰أَمْضَيْتُ: أَيْ: أَحْكَمْتُهَا وَأَنْفَذْتُهَا أَوَّلًا: جاري مې کړل دا فرض، حکم مې کړې وو اول

**[۵۸۶۲]داسراء او معراج واقعه**

۵۸۶۳-() [۲] ۱ وَعَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ (أُتِيتُ بِالْبُرَاقِ، وَهُوَ دَابَّةٌ أَبْيَضُ طَوِيلٌ، ۳ فَوْقَ الْحِمَارِ وَدُونَ الْبَغْلِ ۴ يَقَعُ حَافِرُهُ عِنْدَ مُنْتَهَى طَرْفِهِ، ۵ فَرَكِبْتُهُ حَتَّى أَتَيْتُ بَيْتَ الْمَقْدِسِ، ۶ فَرَبَطْتُهُ بِالْحَلْقَةِ الَّتِي تَرْبُطُ بِهَا الْأَنْبِيَاءُ).

**ترجمه:** ۱ او حضرت ثابت بناني تابعي رحمه الله د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کوی چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ۲ خما مخکې براق راوستل شو چې د يوسپين رنګ اوږد قد والاحيوان وو ۳ د خره نه غټ او دغاترې نه کوشنی وو ۴ ترکومه ځايه چې د هغه نظر تلو ترهغه ځايه د هغه يوقدم راتلو ۵ زه په هغه سور شوم او بيت المقدس ته راغلم ۶ او ما هغه براق د مسجد په دروازه کې د هغه حلقې سره وتړی چې مخکې به په هغه باندې انبياؤ خپل براقونه يا دا براق تړی

**حل اللغات:-** ①حَافِرُهُ: قدم ددغې براق (يعنى د قچر) ②طَرْفِهِ: أَيْ نَظَرِهِ: نظر د براق ③فَرَبَطْتُهُ: أَى شَدَدْتُهُ: اومې تړلو براق ④الْحَلْقَةِ: کړئ، زنځير

[1] اخرجه مسلم في كتاب الإيمان/باب الإسراء برسول الله صلى الله عليه وسلم إلى السماوات، وفرض الصلوات (رقم-۲۵۹ - (۱۶۲)) واحمد في المسند:۶/۳۹۲

۱ قَالَ: (ثُمَّ دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَصَلَّيْتُ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ، ۲ ثُمَّ خَرَجْتُ فَجَاءَنِي جِبْرِيلُ بِإِنَاءٍ مِنْ خَمْرٍ، وَإِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ، ۳ فَاخْتَرْتُ اللَّبَنَ، فَقَالَ جِبْرِيلُ: اخْتَرْتَ الْفِطْرَةَ، ۴ ثُمَّ عَرَجَ بِنَا إِلَى السَّمَاءِ) وَسَاقَ مِثْلَ مَعْنَاهُ ۵ قَالَ: (فَإِذَا أَنَا بِآدَمَ، فَرَحَّبَ بِي وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ). ۶ وَقَالَ فِي السَّمَاءِ الثَّالِثَةِ: فَإِذَا أَنَا بِيُوسُفَ، ۷ إِذَا هُوَ قَدْ أُعْطِيَ شَطْرَ الْحُسْنِ، ۸ فَرَحَّبَ بِي وَدَعَا لِي بِخَيْرٍ). ۹ وَلَمْ يَذْكُرْ بُكَاءَ مُوسَى، ۱۰ وَقَالَ فِي السَّمَاءِ السَّابِعَةِ: (فَإِذَا أَنَا بِإِبْرَاهِيمَ مُسْنِدًا ظَهْرَهُ إِلَى الْبَيْتِ الْمَعْمُورِ، ۱۱ وَإِذَا هُوَ يَدْخُلُهُ كُلَّ يَوْمٍ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ، لَا يَعُودُونَ إِلَيْهِ،

**ترجمه:** ۱ حضور ﷺ وفرمایل بیا زه مسجد اقصیٰ کې داخل شوم او دوه رکعاته مونځ مې وکړی ۲ بیا زه د مسجد نه بهر راووتم او جبرائیل علیه السلام خما مخکې یو پیاله د شرابو او یو پیاله د پیئو راوړله ۳ ماچې د پیئو پیاله واخسته نوجبرائیل علیه السلام اوویل تاسو فطرت یعنی د اسلام دین اختیار کی ۴ او بیایې مونږ آسمان طرف ته وخیژولو ددې نه وروسته حضرت انس رضی الله عنه د حدیث هغه مضمون بیانولو سره چې په مخکې حدیث کې تیر شو ۵ حضور ﷺ وفرمایل چې ما مخکښې آسمان باندې حضرت آدم علیه السلام ولیدی هغوی خما د سلام جواب راکولو نه وروسته ماته دې الفاظو کې مرحبا هرکلی اوو‌ئیلو چې زه نیک بخت ځوی او پیغمبرِ صالح ته پخیر راغلئ وایم او زما د پاره یې دعائې خیر وکړله ۶ بیا حضور ﷺ د دریم آسمان ذکر کولو سره وفرمایل هلته ما حضرت یوسف علیه السلام اولیدلو ۷ چې هغه ته نیم حسن ورکول شوی وو ۸ هغه هم ماته مرحبا سترې مشې اوویل او زما د پاره یې دعایې خیر وکړه ۹ راوي یعنی ثابت بناني رحمه الله د حضرت انس رضی الله عنه نه په دې روایت کې د حضرت موسیٰ د ژړا ذکر ونه کړی [ځرنګه چې سابق حدیث کې وو] ۱۰ او حضور ﷺ د اووم آسمان ذکر کولو سره د سابق حدیث په نسبت مزید داهم ارشاد وفرمایې چې هلته ما حضرت ابراهیم علیه السلام اولیدلو چې بیت المعمور سره یې شالګولی ناست وو ۱۱ او بیت المعمور کې هره ورځ اویا زره فرشتې دطواف د پاره داخلیږي چې هغوئ ته دوباره داخلیدل نه نصیب کېږي [یعنی هره ورځ نوي اویا زره فرشتې طواف د پاره راځي ځکه چې د فرشتو د کثرت په بناء یو فرشته یووار نه وروسته بیا دوباره بیت المعمور کې د داخلیدو موقع ورته هیڅ کله نه حاصلیږي]

**حل اللغات:-** ⑥ عَرَجَ: اوني خیجولو ⑨ فَرَحَّبَ: أي مَرْحَبًا: مرحبا او هرکلې ئې راته اوو‌ئیل (یعني مَرْحَبًا بِالْإِبْنِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ، ئې ورته اوو‌ئیل. ⑥ شَطْرَ الْحُسْنِ: أَيْ: نِصْفَ الْحُسْنِ: نیم حُسن او ښائست.

۱ ثُمَّ ذَهَبَ بِي إِلَى السِّدْرَةِ الْمُنْتَهَى، ۲ فَإِذَا وَرَقُهَا كَآذَانِ الْفِيَلَةِ، ۳ إِذَا ثَمَرُهَا كَالْقِلَالِ، ۴ فَلَمَّا غَشِيَهَا مِنْ أَمْرِ اللهِ مَا غَشِيَ تَغَيَّرَتْ، ۵ فَمَا أَحَدٌ مِنْ خَلْقِ اللهِ يَسْتَطِيعُ أَنْ يَنْعَتَهَا مِنْ حُسْنِهَا ۶ وَأَوْحَى إِلَيَّ مَا أَوْحَى، ۷ فَفَرَضَ عَلَيَّ خَمْسِينَ صَلَاةً فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ، ۸ فَنَزَلْتُ إِلَى مُوسَى، فَقَالَ: مَا فَرَضَ رَبُّكَ عَلَى أُمَّتِكَ؟ ۹ قُلْتُ: خَمْسِينَ صَلَاةً فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ. ۱۰ قَالَ: ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَسَلْهُ التَّخْفِيفَ، فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ ذَلِكَ، ۱۱ فَإِنِّي بَلَوْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ

وَخَبَرْتُهُمْ ⑫ قَالَ: (فَرَجَعْتُ إِلَى رَبِّي، فَقُلْتُ: يَا رَبِّ خَفِّفْ عَلَى أُمَّتِي، فَحَطَّ عَنِّي خَمْسًا، ⑬ فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى، فَقُلْتُ: حَطَّ عَنِّي خَمْسًا. ⑭ قَالَ: إِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ ذَلِكَ، فَارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَسَلْهُ التَّخْفِيفَ). ⑮ قَالَ: (فَلَمْ أَزَلْ أَرْجِعُ بَيْنَ رَبِّي وَبَيْنَ مُوسَى،

**ترجمه:** ① دي نه وروسته زه سدرة المنتهى ته بوتلل شوم [چې اووم آسمان کې د بيرې يوه ونه ده] ② ما وليدل چې د سدرة المنتهى پاڼې د فيل د غوږونو برابر دی ③ او د هغه ميوې يعنى ويرې د منګوبرابر وي ④ بيا چې سدرة المنتهى د الله ﷻ په حکم سره پټونکى شى پټه کړله نو د هغه حالت بدل شو [يعنى هغه کې د مخکې نه زيات اعلى تبديلي راغله] ⑤ او حقيقت دادی چې د الله ﷻ مخلوق کې هيڅوك هم د هغه خوبي او وصف کمال نشي بيانولی ⑥ بيا الله ﷻ چې کومي وحي غوښتي زما طرف ته يې راوليږلي [يعنى ما سره يې بلا واسطه کلام وفرمايلي] ⑦ بيا په ماپه ورځ شپه کې پنځوس مونځونه فرض شوه ⑧ بيا زه هغه بلند مقام نه راکوزشوم [او اووم آسمان کې حضرت ابراهيم نه رخصتيدو سره] حضرت موسى ته شپږم آسمان ته راغلم هغه پوښتنه وکړه ستا پروردګار ستا په امت څه فرض کړل؟ ⑨ ما اوويل شپه او ورځ کې پنځوس مونځونه ⑩ حضرت موسى عليه السلام اوويل خپل پروردګار ته واپس لاړ شه او د مونځونو تعداد کې تخفيف د کمی درخواست وکړه ځکه چې ستا امت دومره طاقت نه لري ⑪ ما بني اسرائيل ازمائيلي دي او د هغوی امتحان مي مخکې آخستی دی ⑫ حضور ﷺ وفرمايل د حضرت موسى په مشوره زه بارګاه خداوندي کې بيا حاضر شوم ماعرض وکړو اې پروردګاره! خما د امت په حق کې آساني وفرمايي نو الله ﷻ خما په وجه خما د امت په حق کې آساني فرمايلو سره پنځه مونځونه کم کړل ⑬ بيا زه حضرت موسى عليه السلام ته راغلم او ورته مي وښودل چې خما په درخواست پنځه مونځونه کم شوه ⑭ حضرت موسى عليه السلام اوويل ستا امت د دومره مونځونو اداکولو طاقت نه لري ته بيا خپل پروردګار ته ورشه او د مزيد تخفيف درخواست وکړه ⑮ حضور ﷺ وفرمايل دغه شان زه د خپل پروردګار او حضرت موسى په منځ کې تلم راتلم [او د تخفيف سلسله دغه شان جاري وه چې خما درخواست باندې هر ځلې پنځه مونځونه کميدل]

**حل اللغات:** - ⑧ غَشِيَهَا: أَيْ: جَاءَهَا وَنَزَلَ عَلَيْهَا: يعنى هغه نې پټه کړې وه ⑨ أَنْ يَنْعَتَهَا: أَيْ يَصِفَهَا: چه صفت اوکيفيت نې بيان کړی ⑩ بَلَوْتُ: أَيْ: جَرَّبْتُ: آزمائلى مې دی، تجربه مې پرې کړې ده ⑪ فَحَطَّ: أَيْ: فَوَضَعَ: لرې نې کړل، کم نې کړل

① حَتَّى قَالَ: يَا مُحَمَّدُ! إِنَّهُنَّ خَمْسُ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ، ② لِكُلِّ صَلَاةٍ عَشْرٌ، فَذَلِكَ خَمْسُونَ صَلَاةً، ③ مَنْ هَمَّ بِحَسَنَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا كُتِبَتْ لَهُ حَسَنَةً فَإِنْ عَمِلَهَا كُتِبَتْ لَهُ عَشْرًا، ④ وَمَنْ هَمَّ بِسَيِّئَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا لَمْ تُكْتَبْ لَهُ شَيْئًا ⑤ فَإِنْ عَمِلَهَا كُتِبَتْ لَهُ سَيِّئَةً وَاحِدَةً). ⑥ قَالَ: (فَنَزَلْتُ حَتَّى انْتَهَيْتُ إِلَى مُوسَى فَأَخْبَرْتُهُ، ⑦ فَقَالَ: ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ

فَسَلْهُ التَّخْفِيفَ) ⑧ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: فَقُلْتُ قَدْ رَجَعْتُ إِلَى رَبِّي حَتَّى اسْتَحْيَيْتُ مِنْهُ») رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ① تردي پورې چې آخري خل هم تخفيف وشو نو پروردګار وفرمايل اې محمد ﷺ! شپه او ورځ کې فرض خو دا پنځه مونځونه دي ② ليکن په دي کې د هرمونځ ثواب د لسو مونځونو برابر دی دغه شان دا پنځه مونځونه په ثواب کې د پنځوسو مونځونو برابر دي ③ او زمونږ اصول دادي چې کوم سړی د نيکي قصد وکی او هغه [د څه شرعي عذر يا څه دويم رکاوټ په سبب] پوره نه شو نو د هغه په حساب کې صرف د هغه قصد په وجه يوه نيکي ليکلی شي او که دقصد نه وروسته هغه هغه نيکي وکړله نو د هغه په حساب کې هغه نيکي لس چنده ليکلی شي ④ او کوم سړی چې د خراب کار قصد او اراده وکړه بيا هغه بد کار يې ونه شو نو د هغه په حساب کې هغه بدي نشي ليکلی ⑤ او که هغه د خپل قصد مطابق هغه خراب کار وکی نو د هغه په حساب کې د هغه يوه بدي ليکلی شي ⑥ حضور ﷺ وفرمايل بيا زه د بارګاه الهي نه لاندي شپږم آسمان ته واپس راغلم او حضرت موسٰی ته مې صورت حال و خودی ⑦ هغه بيا هغه مشوره راکړه چې خپل پروردګار ته ورشه او پنځه مونځونو کې هم د تخفيف درخواست وکی ⑧ حضور ﷺ وفرمايل ما حضرت موسٰی ته اوويل زه بيا بيا خپل رب ته ورغلی يم اوس هغه ته په ورتلو کې ماته شرم راځي. (مسلم)

**حل اللغات**: -③ هَمَّ: أَيْ: عَزَمَ: قصد ئې اوکړو، مضبوطه اراده ئې اوکړه.

**تسهيلات**: **قوله**: عُرِجَ بِنَا:

**د بيت المقدس څخه آسمان ته عروج**: دَ مسجد اقصٰی پورې سفر دَبراق په ذريعه اوشو بيا دَ آسمان نه دَ لفټ په شان يو خودکاره پاؤړنی راغله او هم په هغې باندې حضور پاك پورته لاړو. په عرج کښې هم دغه پاؤړنی طرف ته اشاره ده

**قوله**: شَطْرَ الْحُسْنِ:

**د شطر الحسن دوه مطلبونه**: ① يعنی دَ نفس حسن نيمه حصه هغوی ته ورکړې شوه باقی نيمه په ټوله دنيا باندې تقسيم کړې شوه

② دَ خپلې زمانې دَ ټولو خلقو نيم حسن حضرت يوسف عليه السلام ته ورکړې شوې وو او حضرت يوسف عليه السلام به په خپل مخ کښې دَ آئينه په شان خپل مخ کتلو مګر دَ دې نه باوجود دَ حضور پاك حسن زيات وو ځکه چه دَ حسن تعلق دَ اعضاء اعتدال سره دې په اعتدال اعضاء کښې دَ حضور پاك مقابله څوك نه شی کولې. بل حضور پاك فرمائيل "انا املح واخي يوسف صبيح" يعنی اصل ښائست په ملاحت کښې دې نه چه صرف په صباحت کښې.

**[٥٨٦٤] د معراج واقعه**

٥٨٦٣-(١) [٣] [١] وَعَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢] «كَانَ أَبُو ذَرٍّ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٣] (فُرِجَ عَنِّي سَقْفُ بَيْتِي، وَأَنَا بِمَكَّةَ [٤] فَنَزَلَ جِبْرِيلُ، فَفَرَجَ صَدْرِي، [٥] ثُمَّ غَسَلَهُ بِمَاءِ زَمْزَمَ، [٦] ثُمَّ جَاءَ بِطَسْتٍ مِنْ ذَهَبٍ [٧] مُمْتَلِئٍ حِكْمَةً وَإِيمَانًا، [٨] فَأَفْرَغَهُ فِي صَدْرِي، [٩] ثُمَّ أَطْبَقَهُ، ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِي. [١٠] فَعَرَجَ بِي إِلَى السَّمَاءِ،

**ترجمه:** [١] او حضرت شهاب زهري تابعي رحمه الله د حضرت انس ابن مالك رضي الله عنه نه روايت كوي هغه اوويل [٢] حضرت ابوذر رضي الله عنه بيان كوى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٣] زه په مكه كې خپل كوركي اوده وم اچانك د مكان د كوټې چت كولاو شو [٤] او حضرت جبرائيل عليه السلام نازل شو هغه خما سينه يې وشلوله [٥] بيا يې په آب زمزم سره و وينځله [٦] بيا د سوني لګن يې راوړى [٧] چې د ايمان او حكمت نه ډك وو [٨] هغه خما سينه كې واچول شو [٩] او بيا خما د سيني شليدل يوځاي كولو سره يې برابر كې ددي نه وروسته جبرائيل عليه السلام خما لاس اونيولو [١٠] او زه يې آسمان طرف ته وخيژولم.

**حل اللغات:** - ① فُرِجَ: أَيْ: أُزِيلَ: فرج په معنى د څيرلو او كهلاويدلو راځي يعني لرې كړې شو

[١] فَلَمَّا جِئْتُ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا. [٢] قَالَ جِبْرِيلُ لِخَازِنِ السَّمَاءِ: افْتَحْ. [٣] قَالَ: مَنْ هٰذَا؟ قَالَ: جِبْرِيلُ [٤] قَالَ: هَلْ مَعَكَ أَحَدٌ؟ قَالَ: نَعَمْ مُحَمَّدٌ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -. [٥] فَقَالَ: أُرْسِلَ إِلَيْهِ؟ قَالَ: نَعَمْ. [٦] فَلَمَّا فَتَحَ عَلَوْنَا السَّمَاءَ الدُّنْيَا [٧] إِذَا رَجُلٌ قَاعِدٌ، عَلَى يَمِينِهِ أَسْوِدَةٌ، [٨] وَعَلَى يَسَارِهِ أَسْوِدَةٌ إِذَا نَظَرَ قِبَلَ يَمِينِهِ ضَحِكَ [٩] وَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهِ بَكَى [١٠] فَقَالَ: مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالِابْنِ الصَّالِحِ. [١١] قُلْتُ: لِجِبْرِيلَ: مَنْ هٰذَا؟ [١٢] قَالَ: هٰذَا آدَمُ، وَهٰذِهِ الْأَسْوِدَةُ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ نَسَمُ بَنِيهِ، [١٣] فَأَهْلُ الْيَمِينِ مِنْهُمْ أَهْلُ الْجَنَّةِ، [١٤] وَالْأَسْوِدَةُ الَّتِي عَنْ شِمَالِهِ أَهْلُ النَّارِ [١٥] فَإِذَا نَظَرَ عَنْ يَمِينِهِ ضَحِكَ. [١٦] وَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهِ بَكَى،

**ترجمه:** [١] هركله چې زه د دنيا آسمان ته ورسيدم [٢] نو جبرائيل عليه السلام د آسمان داروغه ته وويلو دروازه كولاوه كړه [٣] خازن اوونيل چه څوک يې؟ جبرائيل عليه السلام اوويل چه زه جبرائيل يم [٤] داروغه پوښتنه وكړه ستاسو سره نور څوك هم شته؟ جبرائيل عليه السلام اوويل هو ما سره حضرت محمد صلى الله عليه وسلم دى [٥] داروغه پوښتنه وكړه رابلل شوي دي؟ جبرائيل عليه السلام اوويل هو [٦] نو دروازه كولاوه شوه هركله چې مونږ د دنيا آسمان برسيره ورسيدو [٧] نو چې ګورو مخې ته يوصاحب ناست دى او د هغه د اولاد او ذريات نه څه خلق خو د هغه ښي طرف ته ناست دى [٨] او څه اولاد او ذريات يې چپ طرف ته ناست دى بيا ما داهم وليدل چې هغه خپل ښي طرف ته وګوري نو وخاندي اخكه چې هغه طرف ته جنتيان خلق وه او د هغوئ ليدل يقيناً د خوشحالۍ او مسرت باعث وو! [٩] او هركله چې چپ طرف ته وګوري نو په ژړاسې

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب الصلاة /باب: كيف فرضت الصلاة في الإسراء؟ (رقم-٣٤٩) ومسلم في كتاب الإيمان /باب الإسراء برسول الله صلى الله عليه وسلم إلى السماوات. وفرض الصلوات (رقم-٢٦٣ - (١٦٣) واحمد في المسند: ١٢٢/٥

اخکه چې هغه طرف ته دوزخي خلق وه چې د هغوئ لیدل د غم باعث وو هغه د سلام د جواب نه وروسته۱۰ زما طرف ته مخاطب کیدو سره اوویل پیغمبر صالح او نیک بخت خوی ته زه پخیر راغلې وایم ۱۱ ما جبرائیل علیه السلام نه پوښتنه وکړه داڅوك دی ۱۲ جبرائیل اوویل دا آدم علیه السلام دی او داخلق چې د هغه ښي او چپ طرف ته ناست دي د هغه د اولاد روحونه دي ۱۳ په دوئ کې چې کوم خلق ښي طرف ته ناست دي هغه جنتیان دي ۱۴ او کوم خلق چې ښي چپ طرف ته ناست دي هغه دوزخیان دی ۱۵ خکه حضرت آدم چې ښي طرف ته وګوري نو خاندي ۱۶ او چپ طرف ته چې وګوري نو ژاړي.

**حل اللغات:-** ②خَازِن: دربان او څوکیداره، نګرانه فرشته ③عَلَوْنَا: پورته اورسیدو مونږ. ④أَسْوِدَةٌ: جمع د سَوَاد ده، خلق، د آدم علیه السلام اولاد، انسان ته سواد څکه وئیلی شوی دی چه دا د لرې نه توره مجسمه ښکاري، ⑤نَسَم: د نَسَمَة جمع ده، د نَسَم نه ماخوذ دي، وَهُوَ النَّفَسُ: روح او ساه ته وائي یعنی د آدم علیه السلام د اولاد روحونه وو.

۱ حَتَّى عَرَجَ بِي إِلَى السَّمَاءِ الثَّانِيَةِ، ۲ فَقَالَ لِخَازِنِهَا: افْتَحْ، ۳ فَقَالَ لَهُ خَازِنُهَا مِثْلَ مَا قَالَ الْأَوَّلُ) ۴ قَالَ أَنَسٌ: فَذَكَرَ أَنَّهُ وَجَدَ فِي السَّمَاوَاتِ آدَمَ، وَإِدْرِيسَ، وَمُوسَى، وَعِيسَى، وَإِبْرَاهِيمَ، ۵ وَلَمْ يُثْبِتْ كَيْفَ مَنَازِلُهُمْ، ۶ غَيْرَ أَنَّهُ ذَكَرَ أَنَّهُ وَجَدَ آدَمَ فِي السَّمَاءِ الدُّنْيَا، ۷ وَإِبْرَاهِيمَ فِي السَّمَاءِ السَّادِسَةِ».

**توجمه:** ۱ دي نه وروسته جبرائیل علیه السلام زه آخستو سره دویم آسمان ته وختلو ۲ او هغه دروازه کولاوولو د پاره اوویل ۳ نو دا روغه د هغه نه پوښتنه وکړه کوم چې د مخکې آسمان داروغه کړې وه ۴ راوي وایې غرض دغه شان حضور ﷺ تولو آسمانونو ته ورسیدی او هلته حضرت آدم علیه السلام حضرت ادریس علیه السلام حضرت موسی اوحضرت عیسی علیه السلام او حضرت ابراهیم سره د ملاقات ذکر یې وفرمایه ۵ خو د هغوئ دمنازلو او مقاماتو کیفیت او احوال یې بیان نه کړه ۶ صرف حضرت آدم سره مخکنې آسمان باندې ۷ او حضرت ابراهیم سره شپږم آسمان باندې د ملاقات ذکر یې وکې

۱ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: فَأَخْبَرَنِي ابْنُ حَزْمٍ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ وَأَبَا حَبَّةَ الْأَنْصَارِيَّ كَانَا يَقُولَانِ: ۲ «قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (ثُمَّ عُرِجَ بِي حَتَّى ظَهَرْتُ لِمُسْتَوًى ۳ أَسْمَعُ فِيهِ صَرِيفَ الْأَقْلَامِ» ) ۴ وَقَالَ ابْنُ حَزْمٍ وَأَنَسٌ: ۵ «قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (فَفَرَضَ اللَّهُ عَلَى أُمَّتِي خَمْسِينَ صَلَاةً فَرَجَعْتُ بِذَلِكَ،

**توجمه:** ۱ ابن شهاب رحمه الله وایې ماته ابن حزم وښودل چې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او حضرت ابوحبه انصاري بیان وکړو ۲ رسول الله ﷺ وفرمایل بیا زه پورته بوتلل شوم ددې پورې چې یوهموار او بلند مقام ته ورسیدم ۳ هلته د قلمونو د لیکلو اوازونه راتلل ۴ ابن حزم رحمه الله او حضرت انس رضي الله عنه دابیان وکړو ۵ چې رسول الله ﷺ وفرمایل بیا د الله جل جلاله د طرف نه خما په امت پنځوس مونځونه فرض شوه نو د پنځوس مونځونو دا حکم او په دې د عمل کولو اراده آخستو سره زه واپس راغلم

**حل اللغات:** -⑨ ظَهَرْتُ: أَيْ: عَلَوْتُ: پورته لاړم، ⑦ لِمُسْتَوًى: دادَ اسم مفعول صيغه ده، أي مَوْضِعُ الإِسْتِعْلَاءِ: اوچت هوار ځائي، ⑧ صَرِيفَ الْأَقْلَامِ: أَيْ صَوْتَهَا عِنْدَ الْكِتَابَةِ: د ليكلو په وخت د قلم آواز ته صريف وائي يعني د قلمونو د ليكلو آوازونه (كوم سره چه دمخلوق مقادير يعني تقديرونه ليكلي كيدل).

[۱] حَتَّى مَرَرْتُ عَلَى مُوسَى، فَقَالَ: مَا فَرَضَ اللّٰهُ لَكَ عَلَى أُمَّتِكَ؟ [۲] قُلْتُ: فَرَضَ خَمْسِينَ صَلَاةً. [۳] قَالَ: فَارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ، فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ [۴] فَرَجَعْتُ، فَوَضَعَ شَطْرَهَا، [۵] فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى، فَقُلْتُ: وَضَعَ شَطْرَهَا، [۶] فَقَالَ: رَاجِعْ رَبَّكَ فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ ذٰلِكَ، [۷] فَرَجَعْتُ فَرَاجَعْتُ، فَوَضَعَ شَطْرَهَا، [۸] فَرَجَعْتُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيقُ ذٰلِكَ،

**ترجمه:** [۱] چې كله په حضرت موسىٰ چې تير شوم نو هغه پوښتنه وكړه پروردګار ستا په ذريعه ستا په امت باندې څه شى فرض كړي [۲] ما ورته وښودل پنځوس مونځونه يې فرض كړل [۳] هغه اوويل خپل پروردګار ته لاړ شه او په دې مونځونو كې د تخفيف درخواست ورته وكړه ځكه چې ستا امت به دومره مونځونه اداء نه كړيشي [دغه شان حضرت موسىٰ عليه السلام زه باركاه رب العزت ته واپس راوستم يعني د هغوئ په وينا] [۴] زه د پروردګار باركاه ته واپس تلو سره درخواست مې پيش كړي او په هغه كې د څه مونځونو يعني د لسو مونځونو كمى وشو [۵] بيا زه حضرت موسىٰ ته راغلم او هغه ته مې وښودل چې الله ﷻ په هغوئ د پنځوس مونځونو څه حصه معاف كړي ده [۶] حضرت موسىٰ اوويل خپل پروردګار ته واپس ورشه او عرض كولو سره د مزيد تخفيف درخواست وكړه ځكه چې ستا امت د دومره مونځونو كولو هم طاقت نه لري [۷] زه بيا واپس لاړم نو زه تلم راتلم [او مزيد تخفيف د پاره مې عرض وكړو] نو په هغه كې څه نور مونځونه كم شوه [۸] ددې نه وروسته بيا حضرت موسىٰ عليه السلام ته راغلم نو هغه اوويل بيا خپل پروردګار ته ورشه او عرض معروض كولو سره د مزيد تخفيف درخواست وكې ځكه چې ستا امت د دومره مونځونو كولو طاقت نه لري.

**حل اللغات:** -⑨ شَطْرَهَا: أَيْ بَعْضَ الْخَمْسِينَ وَهُوَ الْخُمُسُ: څه حصه دمونځونو (يعنى د پنځوس مونځونو پنځمه حصه كومه چه الله تعالى تخفيف كولوسره معاف كړه).

[۱] فَرَاجَعْتُهُ، فَقَالَ: هِيَ خَمْسٌ وَهِيَ خَمْسُونَ، [۲] لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ، [۳] فَرَجَعْتُ إِلَى مُوسَى فَقَالَ: رَاجِعْ رَبَّكَ [۴] فَقُلْتُ: اسْتَحْيَيْتُ مِنْ رَبِّي، [۵] ثُمَّ انْطُلِقَ بِي حَتَّى انْتُهِيَ بِي إِلَى سِدْرَةِ الْمُنْتَهَى، [۶] وَغَشِيَهَا أَلْوَانٌ لَا أَدْرِي مَا هِيَ؟ [۷] ثُمَّ أُدْخِلْتُ الْجَنَّةَ فَإِذَا فِيهَا جَنَابِذُ اللُّؤْلُؤِ، [۸] وَإِذَا تُرَابُهَا الْمِسْكُ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] نو زه بيا لاړم [او پروردګار ته مې عرض وكړو نو پروردګار مزيد تخفيف وكى ددې پورې چې لس مونځونه پاتې شوه او آخري ځل باركاه رب العزت ته راغلم او ځما درخواست باندې په هغه كې هم تخفيف كولو سره د پنځه مونځونو حكم وشو] نو پروردګار وفرمايل فرض خو دا پنځه مونځونه دي ليكن د اجر او ثواب د اعتبار نه د پنځوسو مونځونو برابر دى [۲] ځما قول نه تبديل كېږي [۳] زه بيا حضرت موسىٰ ته راغلم

[او هغه ته مي وښودل چې اوس پنځه مونځونه فرض پاتې شوي دي] نو هغه بيا ماته بارګاه رب العزت ته د ورتلو اوويل [او هغه پنځه مونځونو کې هم د تخفيف کولو مشوره يې راکړله]④ ليکن ما اوويل اوس ماته د خپل پروردګار نه شرم راځي ⑤ دي نه وروسته حضور ﷺ وفرمايل زه سدرة المنتهى ته بوتلل شوم ⑥ چې په هغه دجلال کبريايي د انوارو يا د ملائکو د وزرو چمك يا د څه بل شي دغه شان رنګ خور شوی وو چې د هغه په باره کې ماته هيڅ نه ده معلومه چې هغه څه شي وو [يعنی يا خو هغه وخت چې څه ماوليدل اومحسوس مي کړل د هغه بيانولو باندې قادر نه يم ياداچې هغه وخت زه ذات حق طرف ته داسې متوجه او مستغرق وم چې ځما نظر سدرة المنتهى باندې وشو خود رنګونو حقيقت ته رسيدو او په هغه د پوهيدو موقع حاصله نه شوه]⑦ دي نه وروسته زه جنت ته بوتلل شوم هلته ما د ملغلرو ګنبد وليدل ⑧ او دامې هم وليدل چې د جنت خاوره مشك وه. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ⑩ جَنَابِذُ: د جُنْبُذَة جمع ده، وَهِيَ مَا ارْتَفَعَ مِنَ الشَّيْءِ وَاسْتَدَارَ: دهر يو ځيز اوچت سر چه ګول وی لکه قبه، ګنبد.

**تسهيلات: قوله:** سَقْفُ بَيْتِي:

**د نبی عليه السلام د پوتلوپه محل کښې د رواياتو تعارض:**

① بعضې رواياتوکښې دَحطيم ذکر دې.

② بعضې کښې دَ زمزم ذکر دې

③ بعضې کښې دَ شعب ابی طالب ذکر دې.

④ په زير بحث حديث کښې دَ خپل کور ذکر دې.

**د تعارض جواب:** رسول الله ﷺ په دغه شپه دَحضرت ام هانی ﷺ په کور کښې اوده وو اودا کور شعب ابی طالب سره نيزدې وو نودَ کور دَ چت په لاره باندې حضورپاك اوچت کړې شو اودَ شعب ابی طالب نه واخله خطيم ته راوړلې شو اوبيازمزم له راؤړلو بيا دَ هغه ځائی نه باب الشاميه طرف ته چرته چه پخوانې ترکی اذان خانه ده هلته براق ولاړ وو هم دَ هغه ځائی نه حضورپاك مسجد اقصٰی طرف ته يوړلو نوهيڅ تعارض نشته دې.

**په موجوده وخت کښې د براق د تړلو ځائې:** دَترکی اذان خانې سره يوه ستن ده ترکو په هغې باندې دَ کيکردَ پاڼرو نښې جوړې کړی دی په دې تعمير کښې دا تعبير اواشاره ده چه براق دلته تړلې شوې وو.

**قوله:** فَعَرَجَ بِي:

**آسمان ته د پورته کيدوه پاره د پوړۍ استعمال:** يعنی دَ مسجدحرام نه دَ مسجد اقصٰی پورې سفرکيدلونه پس دَمخکښې مرحلې دَ سفردَپاره دَ خودکار پاؤړئی انتظام اوکړې شو

پورته دَ آسمانونو سفر هم دې سره اوکړې شو. نن صباد لفټ انتظام دَدغه پاؤړئی یوه ژوندئی نمونه ده.

**قوله:** مَنْ هَذَا:

**په آسمانونو کښې د څوکیدارۍ منظم نظام:**

یعنی جبرائیل امین دَ آسمان دربان اوڅوکیدارې فرښتې ته دَ دروازې کولاوولو دَپاره وائی او څوکیداره فرښته پوره تفتیش کوی

دې نه معلومه شوه چه په آسمانونو کښې دَ څوکیدارئی پوره مضبوط نظام دې. اوس چه کومې سیارې په آسمان دَپاسه دی دَهغې پورې دَ یوانسان رسیدل محال دی اوکومې سیارې چه دَ آسمان نه لاندې دی دَ هغې پورې تلو سره دَ شریعت هیڅ ضابطه نه ماتیږی. که څوک دعوی اوکړی نوبیشکه اودې کړی که هغه دروغ اووائی او که ربنتیا اووائی

**قوله:** حَتَّى ظَهَرْتُ لِمُسْتَوًى أَسْمَعُ فِيهِ صَرِيفَ الْأَقْلَامِ،

**یوخاص مقام ته رسیدل:** په دې کښې لام دَعلت دَپاره دې. یعنی دَ دغه اوچت اوهوار مقام دَ رسیدو دَپاره اودَهغې دَ کتلو دَپاره زه پورته لاړم او یو کولاؤ مقام ته اورسیدم په کوم کښې چه دَقلمونو په کاغذونودَ لیکلو آواز راتللو.

**قوله:** صَرِيفَ الْأَقْلَامِ:

**د قلمونو د لیکلو کشار اوریدل:** په قلم سره دَ لیکلو وخت کښې چه کوم دَ کش کش آواز راځی هم هغه مراد دې. دادَ لوح محفوظ نه مقادیر نقل کونکې فرښتې دی. صرف حضورپاك هلته لاړوګنی دا هغه لامکان دې چرته چه څوك نه شی تللې فرښتې دَ لوح محفوظ نه روزانه نافذ کیدونکې فیصلې نقل کوی. دَدې مقام پوره حقیقت دَالله تعالی نه بغیر بل هیڅوك نه پیژنی.

**[۵۸٦۵] د سدرة المنتهٰی بیان**

۵۸٦۵-(۱) [۴] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «لَمَّا أُسْرِيَ بِرَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- انْتُهِيَ بِهِ إِلَى سِدْرَةِ الْمُنْتَهَى، [۳] وَهِيَ فِي السَّمَاءِ السَّادِسَةِ، [۴] إِلَيْهَا يَنْتَهِي مَا يُعْرَجُ بِهِ مِنَ الْأَرْضِ فَيُقْبَضُ مِنْهَا، [۵] وَإِلَيْهَا يَنْتَهِي مَا يُهْبَطُ بِهِ مِنْ فَوْقِهَا فَيُقْبَضُ مِنْهَا، [٦] قَالَ: ﴿إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَى﴾ [النجم: ۱٦].

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وایی [۲] کوم وخت چې حضور صلی الله علیه وسلم باندې په شپه کې د بیت المقدس او د آسمانونو سیل وشو نو حضور صلی الله علیه وسلم سدرة المنتهٰی ته ورسول شو [۳] او سدرة المنتهٰی شپږم آسمان باندې ده او کوم شی چې د زمکې نه پورته ورل کیږي

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب أحادیث الأنبیاء/باب ذکر إدریس علیه السلام (رقم-۳۳٤۲) ومسلم فی کتاب الإیمان/فی ذکر سدرة المنتهی (رقم-۲۷۹ - (۱۷۳)) واحمد فی المسند: ۳۸۷/۱

هغه سدرة المنتهى باندې منتهي کېږي [۵] او بیا د څه واسطې او ذریعې نه بغیر پورته رسولې شي دغه شان کوم شی چې د ملاء اعلى نه زمکې ته را ښکته کولې شي هغه هم سدرة المنتهى نه اخستی شي [۶] دې نه وروسته حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دا آيات اووئیلو:

إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَى یعنی هغه وخت چې سدره یې پټه کړه کوم شی چې پټه کړه

**حل اللغات:** - ① يُهْبَطُ: رانازلولې شي، راکوزولې شي ② يَغْشَى: پټه ئې کړه (دا بیره)

> [۱] قَالَ: فِرَاشٌ مِنْ ذَهَبٍ، [۲] قَالَ: فَأُعْطِيَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ثَلَاثًا: [۳] أُعْطِيَ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ، وَأُعْطِيَ خَوَاتِيمَ سُورَةِ الْبَقَرَةِ، [۴] وَغُفِرَ لِمَنْ لَا يُشْرِكُ بِاللَّهِ مِنْ أُمَّتِهِ شَيْئًا الْمُقْحِمَاتُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او هغه اوویل هغه شی چې سدره یې پټه کړې ده د سرو زرو پتنګان دي [۲] حضرت ابن مسعود رضي الله عنه داهم اوویل چې شب معراج کې رسول الله ﷺ ته درې څیزونه عطا شو [۳] د پنځه مونځونو فرضیت ورته عطا شو د سورة بقره آخري آیتونه ورته عنایت شو [۴] او دحضور ﷺ په امت کې د هغه سړي ګناه کبیره د معافې پروانه ورته عطا شوه چې الله جل جلاله سره څوك شریك نه ګرځوي. (مسلم)

**حل اللغات:** -③ فِرَاشٌ: پتنګان (یعنی دا بیره ئې چه پټه کړې وه دا د سرو زرو پتنګان وو) ④ خَوَاتِيمَ: آخرې ⑤ الْمُقْحِمَاتُ: داسم فاعل صیغه ده په معنی د داخلولو، أي الْكَبَائِرُ الْمُهْلِكَاتُ: غټوغټو ګناهونو ته مقحمات وئیلې شوی دی یعنی الله تعالی دَ شرك نه علاوه لونی لونی ګناهونه معاف کوی (دې ته مقحمات ځکه وائی چه دا هم خپل صاحب اور ته غورځوی)

**تسهیلات:**

**قوله:** وَهِيَ فِي السَّمَاءِ السَّادِسَةِ،

**په روایت باندې اشکال:** په نوروتولو روایاتو کښې ذکر دی چه سدرة المنتهی په اووم آسمان باندې ده خو دلته دَ شپږم آسمان ذکر دې

د اشکال دوه جوابونه ① دَ سدرة المنتهی جرړې په شپږم آسمان کښې دی او پخپله په اووم آسمان باندې ده غټه ونه ده وائی چه په ټولو آسمانونو او جنتونو باندې دَدې سورې دې.

② دَ شپږم ذکرچرته دَ یو راوی نه سهواً شوې دې

**قوله:** فِرَاشٌ مِنْ ذَهَبٍ،

**د فراش حقیقت:** پتنګ ته وائی په یوروایت کښې جرادهم راغلې دې. دَالله تعالی دَ انواراتونه چاپیره دَ یوتاویدونکی مخلوق ذکر دې دکوم حقیقت چه الله تعالی ته معلوم دې.

**[۵۸٦٦] د نبی کریم ﷺ دپاره د بیت المقدس څخه حجابات پورته کول**

۵۸٦٦ -(¹) [۵] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] (لَقَدْ رَأَيْتُنِي فِي الْحِجْرِ وَقُرَيْشٌ تَسْأَلُنِي عَنْ مَسْرَايَ [۳] فَسَأَلَتْنِي عَنْ أَشْيَاءَ مِنْ بَيْتِ الْمَقْدِسِ لَمْ أُثْبِتْهَا، [۴] فَكُرِبْتُ كَرْبًا مَا كُرِبْتُ مِثْلَهُ، [۵] فَرَفَعَهُ اللَّهُ لِي أَنْظُرُ إِلَيْهِ، [٦] مَا يَسْأَلُونِي عَنْ شَيْءٍ إِلَّا أَنْبَأْتُهُمْ، [۷] وَقَدْ رَأَيْتُنِي فِي جَمَاعَةٍ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ، فَإِذَا مُوسَى قَائِمٌ يُصَلِّي.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] ما خپل ځان په حجر حطیم کې اولیدلو په داسې حال کې چې زه ولاړ وم او د مکې قریشو زما نه ځما د شب معراج د سفر په باره کې سوالات کول [۳] او د بیت المقدس هغه څیزونه او نښې یې معلومولې چې ماته هغه وخت یاد نه وو پاتې شوی [۴] اوپه دې خبرې سره [چې که د قریشو پوښتنو خبرو جواب ورنه کول شو نو دا ټول خلق به ځما د بیت المقدس سفر او د معراج واقعه یو دروغ واقعه وګڼي] زه دومره پریشان او غمجن شوم چې دې نه مخکې هیڅ کله دومره پریشانه او غمجن شوی نه وم نو الله ﷻ ځما مدد وکړ [۵] او بیت المقدس یې بلند کړ چې ځما د نظر مخکې راغې [یعنی قادرِ مطلق ځما او د بیت المقدس په منځ کې ټولې فاصلې راټولې کړلو او ټول حجابات یې پورته کړل چې , هغه سره د بیت المقدس پوره عمارت خپل خوا وشاسره ځما مخې ته راغې او زه د دې قابل شوم چې] د مکې قریش د بیت المقدس کوم شی او کومې نښانې په باره کې پوښتنه وکړې زه به هغه لیدو لیدو سره ښایم] [٦] نو هغوئ چې به د بیت المقدس په باره کې څه پوښتنه زما نه کوله ما به ورته لیدو سره ښودله [۷] او دا حقیقت دی چې د اسراء او معراج په شپه کې ما خپل ځان د انبیاء په منځ کې اولیدلو ما هغه وخت حضرت موسیٰ اولیدلو چې ولاړ وو مونځ یې کوی.

**حل اللغات:-** ① مَسْرَايَ: دا مصدر میمی دی، أَيْ عَنْ سَيْرِي إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ: زما د شپې تلل بیت المقدس ته ② لَمْ أُثْبِتْهَا: د إِثبات نه دی، أَيْ لَمْ أَحْفَظْهَا: ما یاد کړی نه وو ③ كَرْبًا: دا مفعول مطلق دی، ای حُزْنًا شَدِيدًا: سخت غم.

[۱] فَإِذَا رَجُلٌ ضَرْبٌ جَعْدٌ كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوءَةَ، [۲] وَإِذَا عِيسَى قَائِمٌ يُصَلِّي، [۳] أَقْرَبُ النَّاسِ بِهِ شَبَهًا عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ الثَّقَفِيُّ، [۴] وَإِذَا إِبْرَاهِيمُ قَائِمٌ يُصَلِّي، [۵] أَشْبَهُ النَّاسِ بِهِ صَاحِبُكُمْ - يَعْنِي نَفْسَهُ - [٦] فَحَانَتِ الصَّلَاةُ

¹) اخرجه البخاری کتاب أحادیث الأنبیاء/باب قول الله تعالی: {وهل أتاک حدیث موسی} [طه: ۹] {وکلم الله موسی تکلیمًا} [النساء: ۱٦۴] (رقم-۳۳۹۴) فی ومسلم فی کتاب الإیمان/باب ذکر المسیح ابن مریم، والمسیح (رقم-۲۷۸ - (۱۷۲) والترمذی فی کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة الصافات (رقم-۳۲۳۰)

فَأَمَمْتُهُمْ. ۷ فَلَمَّا فَرَغْتُ مِنَ الصَّلَاةِ، قَالَ لِي قَائِلٌ: يَا مُحَمَّدُ! ۸ هٰذَا مَالِكٌ خَازِنُ النَّارِ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ، ۹ فَالْتَفَتُّ إِلَيْهِ فَبَدَأَنِي بِالسَّلَامِ». ۱۰ رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِي

**ترجمه:** ۱ حضرت موسیٰ یومیانه قد سړی په نظر راغې لکه چې هغه د قبیله شنوءه سره تعلق لرونکي یوسړی وي ۲ ما حضرت عیسیٰ علیه السلام هم اولیدلو چې ولاړوو مونځ یې کوی ۳ د هغه سره زیات مشابهت لرونکی سړی عروه ابن مسعود ثقفي دی ۴ بیا ما حضرت ابراهیم علیه السلام هم اولیدلو چې ولاړوو مونځ یې کوی ۵ دوئ سره زیات مشابهت لرونکی چې کوم سړی دی هغه ستاسو دوست دی ستاسو دوست نه د حضور ﷺ مراد خپل ذات مبارك وو ۶ بیا حضور ﷺ وفرمایل هرکله چې د ما نخه وخت شو نو زه د ټولو انبیاء علیهم السلامو امام جوړ شوم ۷ او کوم وخت چې زه د ما نخه نه فارغه شوم نو [آسمان ته تلو نه مخکې یا آسمان ته رسیدو سره او بارګاه رب العزت کې حاضرۍ نه وروسته] یو ویونکی زه مخاطب کړم راته یې اوویل اې محمد ۸ دا د دوزخ دا روغه موجود دی [د خپل پروردګار د قهاریت تعظیم د پاره یا څرنګه چې د ابرارو او صالحینو په آدابو کې دی د تواضع او انکسار له مخه] ده ته سلام وکړه ۹ نو زه سلام کولو د پاره هغه داروغه دوزخ طرف ته متوجه شوم لیکن په سلام کې هغه مخکې شو. ۱۰ (مسلم) او په دې باب کښې دویم فصل نشته.

**حل اللغات:-** ۲ ضَرْبٌ: أَيْ: تَوَغُّوَسَطٌ: درمیانه قسم سړی، یا کمزوری سړی، ۵ جَعْدٌ: کمزوري، یا ګلګچې وېښتو والا ۶ شَنُوءَةَ: شنوءه د یمن یوه لویه قبیله ده، ۶ فَحَانَتِ الصَّلَاةُ: أَيْ: دَخَلَ وَقْتُهَا: د مونځ وخت شو ۸ فَالْتَفَتُّ: متوجه شوم (داروغه د دوزخ ته چه سلام ورته اوکړم)

**تسهیلات:** **قوله:** لَمْ أُثْبِتْهَا:

**د قریشو به هوده تپوله:** یعنی په سفرباندې دتللود وجې نه مادغه څیزونه یادکړې نه وو مګر قریشو ترې نه د ورو ورو څیزونو پوښتنه اوکړه مثلاً دمسجداقصیٰ کهړکئی څودی؟ دروازې څو دی؟ روشندانونه او ستنې څو دی؟ یومسافر چه په لار تیریږی دا څیزونه چرته شمیری اومحفوظ ساتلوسره یاد لری. حضورپاك په دې سره ډیرزیات پریشان شو.

**قوله:** فَكُرِبْتُ كُرْبًا مَا كُرِبْتُ مِثْلَهُ،

**ابوبکر ته د صدیق لقب ملاویدو وجه:** قریشودمکي دحضورپاك نه عجیبه سوالونه شروع کړه کوم چه اهم سوالات وو اوهغه صدیق اکبر رضي الله عنه پخپله اوکړه اوحضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه د حضورپاك په جواب باندې تصدیق کولو چه صدقت یارسول الله. په دې باندې

حضرت جبرائيل آمين دَالله تعالى دَ طرف نه دَحضرت ابوبكر صديق ﷺ دَپاره دَصديق لقب وركړو. بهر حال دَ قريشو په بې كاره سوالونو باندې حضورپاك ډيرزيات پريشان شو نو الله تعالى دَ بيت المقدس نقشه دَ حضورپاك مخې ته راوستله حضورپاك به كتل اوجواب به ئې وركولو څه خلقو اسلام قبول كړو مگر څه كچه مسلمان په شك كښې پريوتل ځكه چه كافرانو ډيره سخته پروپيگنډه كړې وه. دا قصه دَ بريليانو په مخ باندې څپيړه ده چه دَعلم غيب په مسئله كښې گربړ كوى.

## وهٰذا الباب خالٍ عن الفصل الثاني

په دې (باب المعراج) كښې دويم فصل نشته دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۵۸٦۷]بيت المقدس د نبى كريم ﷺ مخې ته راوستل

۵۸٦۷-() [۶] ١عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، «أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ٢(لَمَّا كَذَّبَنِي قُرَيْشٌ قُمْتُ فِي الْحِجْرِ فَجَلَّى اللهُ لِي بَيْتَ الْمَقْدِسِ، ٣فَطَفِقْتُ أُخْبِرُهُمْ عَنْ آيَاتِهِ وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَيْهِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت جابر ﷺ نه روايت دى هغه د رسول الله ﷺ نه واوريدل ٢ هركله چې قريشو [شبِ معراج كې څما بيت المقدس ته د تلو په باره كې] زه دروغجن وگنړلم [او د بيت المقدس دعمارتي علاماتو او نښو په باره كې زما نه پوښتنه كول شروع كړل] نو زه حجر [حطيم] كې ودريدم او الله ﷻ بيت المقدس زما د پاره ظاهركړ ٣ نو ما به بيت المقدس طرف ته كتلو كتلو سره د هغه نښې او علامات خلقوته ښودل (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَجَلَّى: أَيْ: فَأَظْهَرَ: ښكاره ئې كړو، راته ئې مخامخ كړو. ② فَطَفِقْتُ: أَيْ: فَشَرَعْتُ: شروع شوم

**تسهيلات:**

**قوله: الحِجْر:**

**دحجر څخه مراد:** دې نه مراد حطيم دې دې ته حجر اسماعيل هم وائى. ونيلى شى چه دلته دَحضرت اسماعيل عليه السلام قبر هم دې.

[1] اخرجه البخاري كتاب المناقب/باب حديث الإسراء (رقم-۳۸۸۶) فى ومسلم فى كتاب الإيمان/باب ذكر المسيح ابن مريم. والمسيح (رقم-۲۷۶ - (۱۷۰) والترمذى فى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة ص (رقم-۳۲۳۳) واحمد فى المسند:۳۷۸/۳

# [٧] بَابٌ فِي الْمُعْجِزَاتِ

## دا باب د معجزاتو بيان كښې دې

**خلاصة الباب:**

**فيه اربعة وسبعون حديثاً مشتملة على نحو اربعة وعشرين اجناسا من المعجزات:**

① الحفاظة عن الأعداء : ١ ، ٢، ١٥.
② إجابة أسئلة عبدالله بن سلام رضي الله عنه : ٣.
③ الإخبار ببعض المغيبات: ٤، ٥، ١١، ١٢، ١٩، ٢٣، ٢٥، ٢٩، ٣٠، ٣١، ٣٢، ٤٦، ٤٧، ٥٨، ٦٢، ٦٣، ٦٦، ٦٧، ٦٩، ٧٠، ٧٣.
④ مجئ الملائكة لنصرة النبي ﷺ : ٦، ٧، ١٣.
⑤ ضرب الكدية: ١٠.
⑥ حصول الشفاء بمسح النبي صلى الله عليه وسلم ونفثه: ٩، ١٨، ٢٨، ٥٣، ٥٤.
⑦ تكثير الطعام وغيره بيد النبي صلى الله عليه وسلم : ١٠ ،٣٧، ٣٨، ٣٩، ٤٣، ٤٤، ٥٩، ٦٤، ٧٢.
⑧ تكثير المياه: ١٤ ، ١٥، ١٦، ٤٠، ٤١ ، ٤٢.
⑨ تسخير الشجر له ﷺ : ١٧، ٥٥.
⑩ رمي المشركين بالحصيات: ٢٠، ٢٢.
⑪ شجاعة النبي ﷺ: ٢١، ٢٢.
⑫ رؤية النبي ﷺ في المنام عمل السحربه ﷺ: ٢٤.
⑬ إفاضة علم النبي ﷺ : ٢٧.
⑭ إجابة دعاء النبي ﷺ: ٢، ٥، ٢٦، ٣٣، ٣٥، ٦٠، ٧١،
⑮ أنين السارية بفراق النبي ﷺ: ٣٤.
⑯ تظليل الغمام النبي ﷺ: ٤٩.
⑰ صلاح الدابة بسبب ركوب النبي ﷺ وزجره: ٣٦، ٤٥، ٥١.
⑱ سلام الأحجار والأشجار النبي ﷺ: ٥٠، ٥١.
⑲ خرق الحجر للنبي ﷺ: ٥٢.
⑳ سجود الدواب للنبي ﷺ: ٥٣.
㉑ شهادة الأشجار والثمار بصداقة النبي ﷺ: ٥٦، ٥٧.
㉒ نسج العنكبوت على غار النبي ﷺ في سفرالهجرة: ٦٥.
㉓ إخبار الذراع بوجود السم فيه وإخبار الشجرة بإتيان الجن للنبي ﷺ: ١٢، ٦٦، ٦٨.
㉔ تكثيرلبن الشاة بمسح النبي ﷺ: ٧٤.

**دخارق عادت اووه قسمونه:**

① **ارهاصات:** داداسې خارق عـادت افعـال وی چـه دَ یـونبی دَ نبـوت نـه وړانـدې دَ تمهیـد پـه توګـه دَ نبـی دَ راتلـودَاعلان دَپـاره پـیش کـولې شـی لکـه حضورپاك تـه دَ نبـوت نـه وړانـدې دکانړو سلام کول یادَاوریځو سورې کول. اودَ ولادت نبی پـه وخـت دَ انقلابـی واقعـاتو مخـې ته راتلل هم دا ارهاصات وو.

② **معجـزات:** داداسـې خـارق عـادت امـوردی چـه دَ یـونبی دَ نبـوت دَ دعـوت دَ اثبـات اوتصدیق دَپاره اودَمخالفینودَ عاجزکولودَپاره دَ مدعی نبوت په لاس باندې ښکاره کیـږی لکـه دَ حـضورپاك دَ لاس پـه اشـاره بانـدې چـه سـپوږمئی دوه ټکـړې شـوې وه اودلتـه پـه زیربحث باب حدیث ۷۴ احادیثوکښې معجزات ښه په تفصیل سره راځی

③ **کرامات:** داداسې خارق عـادت اموردی چـه دَ صـاحب ایمـان متبـع سنت سـړی پـه لاس بانـدې دَ اعزازاواکرام پـه توګـه ښـکاره کیـږی. پیغمبرتـه دَخپلـې معجـزې علـم هـم وی اودَ معجزې دَ ښکاره کولو اراده ئی هم وی مګردَ ولی دَپاره داضروری نه دی.

④ **معونات:** داداسې خارق عادت امور دی چه دَ یومسلمان دَ اعانت او امداددَپاره ښـکاره کـولې شـی لکـه پـه حالـت دَمخمـصه کـښې خـوراك راتلـل، اوبـه راتلـل یـادَ زمکـې فاصـله کمیدل یا په اوبو باندې تلل وغیره داټول دَ اعانت اوامداد صورتونه دی.

⑤ **استدراجات:** داداسـې خـارق عـادت امـوردی چـه دَ یوکافرفاسـق اوفاجرپـه لاس بانـدې دَهغه دَ مقصودمطابق ښـکاره شـی لکـه دَ دجـال پـه احوالـو کـښې دَ عجیبـه اسـتدراجاتو او تـصرفاتو بیـان شـوې دې یـادَ دروغومـدعی نبـوت اسـودعنـسی پـه لاس بانـدې عجائبـات ښکاره شوی وو داټول دَاستدراجاتو دَ قبیل نه دی.

⑥ **اهانات:** دادَ داسې خارق عادت امورو نوم دې چه دَ یوکافرپه لاس باندې ښـکاره کیـږی لیکن دَهغه دَمقصود اومطلوب برعکس ښـکاره کیـږی مـثلاً دَمـسیلمه کـذاب دَ یوکـانړی یوه سترګه باندې لاس راښکلو چه دا سترګه ئی جوړه شی مګر دَهغه سړی بیناسـترګه ړنـده شـوه. دغـه شـان مـسیلمه کـذاب دَخپـل اودس اوبـه دَبرکـت دَپـاره دَ بـاغ پـه ونوبانـدې اوشیندلې نودَباغ ټولې ونې اوچې شوې. دغه شان هغه غرغرې اوکړې اوبـه ئـی پـه کـوهی کښې واچولې دې دَپاره چه اوبـه زیـاتې شـی نوچـه کـومې اوبـه پـه کـوهی کـښې وې هغـه هم اوچې شـوې. دغـه شـان هغـه دَیوماشـوم پـه سرباندې لاس راښـکلو نودَهغـه حـافظې کـار پریخودو داټول دَ اهانت صورتونه دی چه ټول تدبیرونه ئی اولټه شو.

⑥ **سحر او جادو**: دَدې يو تعريف دادې "كل مالطف مأخذه ودق فهو سحر" دَدې دويم تعريف دادې "اخراج الحق في صورة الباطل" دَ جادونور تفصيل د تسهيلات په اول جلد كښې اوګورئ. بعضې علماؤ جادو خرق عادت نه دې ګنړلې ځكه چه په دې كښې ظاهرى اسباب استعماليږى. بهرحال دا ټول خارق عادت امورد ى دلته دَ دې نه دَمعجزې تعريف اوتفصيل بيانول مقصود دى.

**د معجزې لغوى معنى**: دَ معجزې لغوى معنى عاجزجوړونكې څيزخودلې شوې ده

**دمعجزې اصطلاحى تعريف**: "المعجزة امر خارق للعادة يعجز البشر ان يأتوا بمثله" يعنى معجزه دَهغه امرخارق عادت نوم دې چه انسان عاجزكړى اوهغه دَدې په شان څه څيز پيش نه كړې شى. دَ خارق عادات هم

**د معجزې دوه قسمونه**: ① يوقسم هغه معجزه ده چه دَ يونبى دَنبوت دَ ثابتولودَپاره دَالله تعالى دَ طرف نه راخى اودَقوم دَ هدايت ذريعه جوړيږى. دَحضورپاك اكثرمعجزې هم دَدې قسم راغلى دى. ليكن په دې كښې دَټولونه لويه معجزه اودائمى معجزه قرآن پاك دې په كوم سره چه په اربونوانسانانوته هدايت نصيب شوې دې او كيږى

② دويمه معجزه فرمائشى معجزه وى چه قوم دَايمان راوړلودَپاره څه فرمائشى معجزه اوغواړى په دې كښې دَ نبى ازميښت مقصود وى چه آياهغه داكاركولې شى كه نه؟ په دې قسم معجزوكښې خلق فضول قسم تپوسونه كوى

**د فرمائشى معجزو مثالونه**: ① د دې غرنه دې يوه بلاربه اوښه راوځى بيادې هغه بچې راوړى اومونږ ټول دې هغه اووينو نوبيابه مونږ ايمان راوړو

② دَدې نبى دې يولوئى باغ وى په هغې كښې نهرونه وى اوهغه باغ داسې وى

③ دانبى دې آسمان ته اوخيژى اودَهغه ځائى نه دې مونږ ته يوخط راوليګى دې دَپاره چه مونږ هغه اولولو او ايمان راوړو.

**د دويم قسم معجزې ښكاره كيدو څخه پس نتيجه**: دغه شان فرمائشى معجزه كه الله تعالى يوقوم ته وركوى اوقوم دَهغې نه انكاركوى اوايمان نه راوړى نوبيادَ الله تعالى دَطرف نه په پوره قوم باندې عذاب نازليږى لكه چه قوم ثمود تباه كړې شو.

**د قريشود مطالباتو نه پوره كيدو وجه**: دَ قريشوكافرانوهم دَرسول الله ﷺ بار بار فرمائشى معجزې اوغوښتې ليكن الله تعالى ورنه كړې كه چرې وركړې وې اوكافرانو انكاركړې وې نوټول به هلاك شوې وې حالانكه هم دَدغه خلقو نه اكثرروستو مسلمانان شوى دى.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۵۸۶۸] د غار ثور واقعه

۵۸۶۸ -() [۱] [۱] «عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ أَبَا بَكْرٍ الصِّدِّيقَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] نَظَرْتُ إِلَى أَقْدَامِ الْمُشْرِكِينَ عَلَى رُءُوسِنَا وَنَحْنُ فِي الْغَارِ، [۳] فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ نَظَرَ إِلَى قَدَمِهِ أَبْصَرَنَا، [۴] فَقَالَ: (يَا أَبَا بَكْرٍ مَا ظَنُّكَ بِاثْنَيْنِ اللهُ ثَالِثُهُمَا؟)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس بن مالك رضی الله عنه راوي دی حضرت ابوبکر صديق وفرمايل [۲] کوم وخت چې مونږ په غار ثور کې پټ وو او ما د مشرکينود پښو طرف ته وکتل چې ګويا زمونږ په سرونو وي [۳] نو ما عرض وکړو يارسول الله که په دوئ کې د يونظر هم خپلو پښو طرف ته لاړشي نو مونږ به ويني [۴] حضور ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل د هغه دوو سړو په باره کې ستا څه خيال دی چې د هغوئ دريم ملګرى الله جل جلاله دی (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: فِي الْغَارِ:**

**د غار څخه مراد:** دې غار نه مراد غارثور دې. دا غار دَمکې مکرمې نه يوميل فاصله باندې واقع دې په ډير اوچت غر باندې واقع دې اودَې غر نوم ثور دې پورته په څوکه باندې په هوارځائى کښې دوه غارونه جوړشوى دى په هريوباندې ليکلى دى چه دا غارثور دې. په دې کښې چه کوم زيات مشهور دې او په غرباندې دَمکې طرف ته واقع دې حضرت مولانا فضل محمد صاحب فرمائى زما په خيال هغه په څه نه څه زمانه کښې چاتراشلې جوړکړې اصلي غار ثور کيدې شى نه وى. دَدې په مقابل کښې دَ جبل ثوربل طرف ته يوغار دې چه دَ دوو درنوکانړو په مينځ کښې دې دَ پورته طرف نه دَ ورکوزيدو لار ده. يوکانړې بالکل دَ ثور يعنى غوئى په شان دې. بعضې علماؤ وئيلى دى چه ثوردَ يوسړى نوم وو دَهغه په نوم باندې دا غار مشهوردې

**قوله: نَظَرَ إِلَى قَدَمِهِ:**

**په غار ثور کښې د نبی علیه السلام حفاظت:** چه پورته په کانړى باندې ولاړ سړې که چرته خپلو خپوته اوګورى نودا غار به دَهغه دَ قدمونو لاندې ښکارى حضورپاك دعاغوښتې وه "اللهم اعم ابصارهم" اې الله دا کافران ړانده کړې الله تعالى دَهغوى دکتو نه ړانده کړل نوهغوى هيڅ اونه ليدل. دَ غار په خله کښې کوترې هګئى واچولې جولاګى جاله جوړه

[۱] ) اخرجه البخاري فيكتاب المناقب/باب مناقب المهاجرين وفضلهم " (رقم-۳۶۵۳) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب من فضائل أبي بكر الصديق رضي الله عنه (رقم-۱ - (۲۳۸۱) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة التوبة (رقم-۳۰۹۶) واحمد في المسند: ۴/۱

کړه دغه شان الله تعالی دَدې دوو محبوبینو حفاظت اوکړو. علامه بوصیری رحمه الله فرمائي:

فالصدق في الغار والصدیق لم یریا　　وهم یقولون ما بالغار من ارم
ظنوا الحمام وظنوا العنکبوت علی　　خیر البریه لم تنسج ولم تحم

**یو نکته:**

**قوله: اللّٰهُ ثَالِثُهُمَا:**

**دمعیت خداوندی اعزاز:** الله تعالی خپل ځان دریم ظاهر کړو داد خالص معونت او معیت طرف ته اشاره ده چه په هرحالت کښې دریواړه یوځائي وو. دَدې برعکس حضرت موسی علیه السلام معنا اونه فرمائیل بلکه معي ني اوفرمائیل. دا په پټو الفاظو سره په قوم باندې دَ اعتماد نه کولو اظهار دې. بهرحال دَ حضور پاك اودَ صدیق اکبر رضی الله عنه بالکل ښکاره کیدو سره کافرانو ته نه ښکاریدل معجزه وه.

**[۵۸۶۹] د هجرت د سفر په دوران کښې د دشمن خلاف د معجزې ظهور**

۵۸۶۹-( [1] ) [۲] ۱ «وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ لِأَبِي بَكْرٍ: يَا أَبَا بَكْرٍ! ۲ حَدِّثْنِي كَيْفَ صَنَعْتُمَا حِينَ سَرَيْتَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-؟ ۳ قَالَ: أَسْرَيْنَا لَيْلَتَنَا وَمِنَ الْغَدِ، ۴ حَتَّى قَامَ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ. ۵ وَخَلَا الطَّرِيقُ لَا يَمُرُّ فِيهِ أَحَدٌ، ۶ فَرُفِعَتْ لَنَا صَخْرَةٌ طَوِيلَةٌ، ۷ لَهَا ظِلٌّ لَمْ يَأْتِ عَلَيْهَا الشَّمْسُ، فَنَزَلْنَا عِنْدَهَا،

**ترجمه:** ۱ او حضرت براء ابن عازب رضی الله عنه د خپل پلار محترم حضرت عازب رضی الله عنه نه روایت کوي هغه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه پوښتنه وکړه اې ابوبکر! ۲ هرکله چې حضور صلی الله علیه وسلم د هجرت ارادې سره مکه پرېښودله او مدینې ته روان شو او تا د شپې رسول الله صلی الله علیه وسلم سره سفر وکې نو غار نه وتلو نه وروسته تاسو ته څه څه حالات او واقعات پېښ شو ۳ حضرت ابوبکر رضی الله عنه وفرمایل دغار نه وتلو سره مونږ توله شپه روان وو او د راتلونکې ورځ څه حصه هم یعنې غرمې پورې په سفر کې تیره کړه ۴ ددې پورې چې تیك غرمه شوه او نمر اودریدلو ۵ او لار دتلونکو راتلونکو نه بالکل خالي شوه ۶ نو مونږ ته یوه ګاره په نظر راله ۷ چې د هغه لاندې سوری وه او نمر په هغه نه وو راغلی [یعنی دهغه ګاري لاندې چې کومه غاره وه په هغه کې نمر نه وو] نو مونږ هغه ګاري لاندې خکته شو

**حل اللغات:-** ① كَيْفَ صَنَعْتُمَا: تاسو دواړو څه اوکړل، څه حالات درته پېښ شو؟ ② سَرَيْتَ: أسرى د شپې د تلو په معنی کښې دې، أَيْ: حِينَ سَافَرْتَ: یعنی کله چه تا د شپې سفر اوکړو روان شوې. ③ صَخْرَةٌ: غټ ګټ،

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب علامات النبوة في الإسلام (رقم-۳۶۱۵) ومسلم في كتاب الزهد والرقائق/باب في حديث الهجرة ويقال له حديث الرحل بالعاء (رقم-۷۵ - (۲۰۰۹) واحمد في المسند: ۲/۱

[۱] وَسَوَّيْتُ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَكَانًا بِيَدَيَّ يَنَامُ عَلَيْهِ، [۲] وَبَسَطْتُ عَلَيْهِ فَرْوَةً، وَقُلْتُ: نَمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] وَأَنَا أَنْفُضُ مَا حَوْلَكَ، فَنَامَ وَخَرَجْتُ أَنْفُضُ مَا حَوْلَهُ، [۴] فَإِذَا أَنَا بِرَاعٍ مُقْبِلٍ، [۵] قُلْتُ: أَفِي غَنَمِكَ لَبَنٌ؟ قَالَ: نَعَمْ قُلْتُ: أَفَتَحْلِبُ؟ قَالَ: نَعَمْ. [۶] فَأَخَذَ شَاةً فَحَلَبَ فِي قَعْبٍ كُثْبَةً مِنْ لَبَنٍ، [۷] وَمَعِي إِدَاوَةٌ حَمَلْتُهَا لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۸] يَرْتَوِي فِيهَا، يَشْرَبُ وَيَتَوَضَّأُ،

**توجمه:** [۱] أو ما هلته رسول الله ﷺ د پاره يوځاي په خپلو لاسونو سره هموار اوصاف كړي چې حضور ﷺ په هغه اوده شي [۲] بيا مې په هغه ځاي پوستين وغوړوى او عرض مې وكړ يارسول الله! تاسو دلته اوده شئ [۳] زه به ستاسو اخوا ديخوا نګراني كوم [چې څه طرف نه د دښمن څوك سړى زمونږ تلاش كې خو نه دى كه څوك اخوا نه راځي نو هغه به منع كوم] حضور ﷺ اوده شو او زه د هغه ځاي نه د وتلو سره د حضور ﷺ حفاظت د پاره څلور طرف ته نګراني مې كوله چې [۴] اچانك ما يو شپونكي اوليدلو چې مخ طرف نه راروان وو [۵] هركله چې هغه ماته نزدې راغې نو ما د هغه نه پوښتنه وكړه آيا ستا په بزو كې پئي شته؟ هغه اوويل هو شته ما ورته اوويل آيا ته به پئي لوشلو سره راكړې هغه اوويل هو [۶] بيا هغه يوه بزه (چيلۍ) ونيوله او د لرګي پياله كې څه لږ پئي ولوشلي [۷] ما سره يو بټك وو چې ما د حضور ﷺ د استعمال د پاره ساتلى وو [۸] په هغه كې به اوبه وې چې د حضور ﷺ د څكلو او اودس پكار به راتلي.

**حل اللغات:** - [۲] فَرْوَةٌ: جِلْدٌ بِشَعْرِهِ: پوستين، د څرمن څادر. [۵] أَنْفُضُ: نفض څنډلو او كتلو ته وائى دلته ترې نګراني مراد ده، أَيْ: أَتَجَسَّسُ الْأَخْبَارَ: جاسوسي به كوم، نګراني به كوم (يعنى د دشمن يا د ضررى څيزونونه به ستاسو حفاظت كوم). [۹] رَاعٍ: شپونكي، ګډې بزې څرونكې. [۶] مُقْبِل: أَي جَاءَ مِنْ قِبَلِنَا: مونږ ته مخامخ راروان وو. [۸] قَعْبٌ: أَيْ: فِي قَدَحٍ مِنْ خَشَبٍ: د لرګي ژوره پيالۍ يا كاسه. [۹] كُثْبَةٌ: أَيْ: قَدْرُ حَلْبَةٍ: د كه پيالۍ يعنى څومره چه پكښې راتلل [۱۰] يَرْتَوِي: رَوِيتُ مِنَ الْمَاءِ: د روى نه دې دَ خروب كيدو په معنى كښې دې يعنى په دې لوتـه كښې دَ اودس دپاره او دَ څكلودَپاره اوبه كيخودلې شوې. [۱۱] إِدَاوَةٌ: أَيْ: ظَرْفُ مَاءٍ: د اوبو ساتلو د څرمن لوښى، چهاګل

[۱] فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَكَرِهْتُ أَنْ أُوقِظَهُ فَوَافَقْتُهُ حَتَّى اسْتَيْقَظَ، [۲] فَصَبَبْتُ مِنَ الْمَاءِ عَلَى اللَّبَنِ حَتَّى بَرَدَ أَسْفَلُهُ، [۳] فَقُلْتُ: اشْرَبْ يَا رَسُولَ اللَّهِ! فَشَرِبَ حَتَّى رَضِيتُ، [۴] ثُمَّ قَالَ: (أَلَمْ يَأْنِ لِلرَّحِيلِ؟) قُلْتُ: بَلَى. [۵] قَالَ: فَارْتَحَلْنَا بَعْدَمَا مَالَتِ الشَّمْسُ، [۶] وَاتَّبَعَنَا سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكٍ، فَقُلْتُ: أُتِينَا يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ: ﴿لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾ [الفاتحة: ۴۰-۳۶۴۶۱۷]

**توجمه:** [۱] ما پئي اخستو سره رسول الله ﷺ ته راغلم نو حضور ﷺ اوده وو ما ويښول مناسب ونه ګڼل ددې پورې چې حضور ﷺ خپله بيداره شو [۲] او زه هم كينا ستم ما په پيئو كې دومره اوبه واچولي چې لاندې پورې يخې شوې [۳] بيا مې عرض وكړو يارسول الله! داسيدې اوڅكئ حضور ﷺ هغه پئي وڅكلې او زه ډېر خوشحاله شوم [۴] ددې نه وروسته

حضور ﷺ وفرمايل د كوچ وخت لاته دى راغلى ما اوويل هو راغلى دى ۵ حضرت ابوبكر ﷺ وايي نو مونږد نمر زوال كيدو نه وروسته د يخ والي په وخت كې د هغه ځاي نه كوچ وكى او مخكې سفر شروع شو٦ چې د وروسته نه سراقه بن مالك راغې ما د هغه په ليدو سره عرض وكړو يارسول الله! دښمن مونږ نيولو د پاره راغلى دى حضور ﷺ وفرمايل مه ويريږه الله ﷻ زمونږ سره دى

**حل اللغات:** - ⑫ فَوَافَقْتُهُ: أي تَوَقَّفْتُ فِي الْمَجِيءِ إِلَيْهِ: موافقت مې اوكړود نبى عليه السلام د راپاځيدو. ⑬ أَلَمْ يَأْنِ: يَأْنِ د أَنَى يَأْنِي نه دې، إِذَا دَخَلَ وَقْتُ الشَّيْءِ: يعنى كله چه د يوڅيز وخت اوشى ⑭ لِلرَّحِيلِ؟: هُوَ السَّيْرُ الْجَمِيلُ: د راحت سفر يا د راحت ځاني ته سفر كول. ⑮ أُتِينَا: أَيْ: أَتَانَا الْعَدُوُّ: دښمن مونږ ته راورسيدو، مونږ راګيرشو.

| ١ فَدَعَا عَلَيْهِ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ فَارْتَطَمَتْ بِهِ فَرَسُهُ إِلَى بَطْنِهَا فِي جَلَدٍ مِنَ الْأَرْضِ ٣ فَقَالَ: إِنِّي أَرَاكُمَا دَعَوْتُمَا عَلَيَّ، فَادْعُوَا لِي، ٤ فَاللَّهُ لَكُمَا أَنْ أَرُدَّ عَنْكُمَا الطَّلَبَ، ٥ فَدَعَا لَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَنَجَا، ٦ فَجَعَلَ لَا يَلْقَى أَحَدًا إِلَّا قَالَ: كُفِيتُمْ، مَا هَاهُنَا، ٧ فَلَا يَلْقَى أَحَدًا إِلَّا رَدَّهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.» |
|---|

**ترجمه:** ١ دي نه وروسته حضور ﷺ سراقه د پاره بددعا وكړه ٢ نو د سراقه آس د هغه سره ترخيتې پورې په زمكه كې غرق شو ٣ سراقه دي صورت حال مخ كيدو سره بد حواسه شو او هغه اوويل زه پوهيږم تاسو دواړو زما د پاره بد دعا كړي ده اوس ځما د نجات او خلاصون د پاره هم تاسو دعا وكئ ماته ددې ګرفت نه نجات راكړئ ٤ نو زه الله ﷻ ګواه جوړولو سره وعده كوم چې زه به كفار ستاسو د تعاقب كولو نه منع كوم ٥ رسول الله ﷺ د هغه د پاره دعا وكړه نو هغه د ګرفت نه نجات پيدا كى ٦ او بيا سراقه [خپله وعده پوره كولو د پاره دا اوويل چې د حضور ﷺ په تلاش كې د مكې نه روانيدونكو] كافرانو كې كوم كافر به چې د هغه په لار كې يوځاي كيدى نو هغه ته به يې وئيل ستا د پاره ځما تلاش كول كافي دى [يعنى ما ډير د لري نه د محمد تلاش كول ليدلى دى] د هغوئ هيڅ چرته معلومات نه كيږي [ته د هغوئ د تلاش كولو زحمت مه برداشت كوه] ٧ سراقه سره به چې كوم سړى يوځاي كيدي هغه به دغه اوريدلو سره واپس تلى. بخارى ومسلم

⑯ فَارْتَطَمَتْ: أَيْ: سَاخَتْ قَوَائِمُهَا: ښخ شو په زمكه كښې (د اس خپې تر سينې پورې په زمكه كښې ښخې شوې). ⑰ جَلَدٍ: أَيْ: صُلْبٌ مِنَ الْأَرْضِ: سخته زمكه. ⑱ فَاللَّهُ لَكُمَا: أَيْ: فَاللَّهُ كَفِيلٌ عَلَيَّ لَكُمَا أَنْ لَا أَهُمَّ بَعْدَ ذَلِكَ لِغَدْرِكُمَا: يعنى زه دَ الله تعالى وعده دركوم چه ستاسو دَ بدخواهئ اراده به ددې نه پس نه كوم. ⑲ الطَّلَبَ: أَيْ: طَلَبَ الْكُفَّارِ: د كافرانو تلاش او لټون (ځوک چه تاسو تلاش كوى زه به هغوى واپس كوم).

**تسهیلات:**

**قوله:** وَأَنَا أَنْفُضُ مَا حَوْلَكَ،

**د ابوبکر د نبی علیه السلام دپاره پیره ورکول**،فوجی اصطلاح کښې دې قسم پهره اوپه دښمن باندې دَنظر ساتلو دَپاره اخوادیخوا ګرځیدوته ګزمه وائی. صدیق اکبر ﷛ هم دَ غار نه ګیرچاپیره دکافرانو په راتګ وغیره باندې نګرانی شروع کړې وه

**قوله:** فَحَلَبَ فِي قَعْبٍ كُثْبَةً مِنْ لَبَنٍ،

**پیو څوښتلو درې احتمالات:** ① دَعربو دَ عادت مطابق ئې اوغوښتل چه عربو به مسافرانوته دَ چیلئی نه پیئی ویستلوسره ورکول خپله فریضه ګڼړله.

② دَ قیمت ادا کولو په اراده ئې اوغوښتل

① دا چیلئی خود صدیق اکبر ﷛ وې په دې وجه ئی پیئی اوغوښتل

**قوله:** فَوَافَقْتُهُ:

**د وافقت په تحلیل اومعنی کښې دوه احتمالات:**

① که چرې په وافقته کښې فاء مقدم ده نودا دَ موافقت نه دې یعنی مادَ حضورپاك خوب سره موافقت اوکړو تردې چه هغوی پخپله پاسیدل

②که چرې قاف مقدم دې نودا به دَ وقوف نه وی چه دَانتظار په معنی کښې دې یعنی ما انتظار اوکړو تردې چه حضورپاك بیدار شو.

**قوله:** سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكِ بن جعشم مدلجی:

**د سراقه تعارف:**داسړې دَ خپلې علاقې سردار وودَ انعام په لالچ کښې هغه حضورپاك پسې شوې وو معجزه کتلو سره ئی معافی اوغوښتله دَ خپل خان دَ پاره ئی بوچت اولیکلو چه دَ فتح مکه په ورځ ماته امان ملاؤ شی. حضورپاك هغه سره دَ کسری دَ بنګړوورکولو وعده اوکړه کله چه دې مسلمان شو اودکسری خزانه دَ حضرت عمرفاروق ﷛ په دورکښې مدینې ته راغلو نو په مال غنیمت کښې دَ کسری بنګړی سراقه ته ورکړې شو. هغه واچول او په منبر نبوی باندې ختلوسره خلقو ته ئې اوخودل

**قوله:** الطَّلَبَ:

**د نبی علیه السلام د لټولو لوری وجه** ،ابوجهل دَ سلو اوښانو انعام کیخودې وو چه محمد ﷺ ژوندې یا مړ حالت کښې که څوك راوړی یادَ هغوی خبر مونږ ته اورسوی نودا انعام به هغه ته ملاویږی. هرطرف ته دا لټون هم په دې وجه کیدلو اودا چهاپې هم په دې وجه پریوتلې.

**[۵۸۷۰] د عبد الله ابن سلام د ایمان راوړلو واقعه**

۵۸۷۰-(١) [٣] ⓵ «وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ بِمَقْدَمِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⓶ وَهُوَ فِي أَرْضٍ يَخْتَرِفُ، ⓷ فَأَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ⓸ إِنِّي سَائِلُكَ عَنْ ثَلَاثٍ لَا يَعْلَمُهُنَّ إِلَّا نَبِيٌّ: ⓹ فَمَا أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ؟ ⓺ وَمَا أَوَّلُ طَعَامِ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟ ⓻ وَمَا يَنْزِعُ الْوَلَدَ إِلَى أَبِيهِ أَوْ إِلَى أُمِّهِ؟

**ترجمه:** ⓵ او حضرت انس رضی الله عنه وايي عبد الله ابن سلام د رسول الله ﷺ دمکي نه مديني ته د راتلو حال واوريدی ⓶ دغه وخت هغه په يوځاي کې د ونو نه ميوې شوکولې ⓷ هغه فوراً د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو ⓸ زه د نبوت د علاماتو د تصديق د پاره ستاسو نه دا درې خبرې معلومول غواړم چې هغه د نبي نه ماسوا بل څوك نه پيژني ⓹ يو خو داچې د قيامت مخکنۍ علامه به څه وي؟ ⓺ دويم داچې د جنتيانو مخکنی طعام به څه وي اچې جنت ته رسيدو سره مخکنی به هغه خوري ⓻ دريم داچې هغه کوم شی دی چې اولاد د مورو پلار مشابه کوي يعنی اولاد چې د شکل وصورت د اعتبار نه کله د پلار مشابه وي او کله د مور مشابه نو د دې سبب څه دی؟

**حل اللغات:** - ① يَخْتَرِفُ: أَيْ: يَجْتَنِي مِنَ الْفَوَاكِهِ: د ونو نه ئې ميوې شوکولې ② أَشْرَاطِ: أَيْ عَلَامَاتِهَا: علامات اونښې (دقيامت د راتلو).

⓵ قَالَ: (أَخْبَرَنِي جِبْرِيلُ آنِفًا; ⓶ أَمَّا أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ فَنَارٌ تَحْشُرُ النَّاسَ مِنَ الْمَشْرِقِ إِلَى الْمَغْرِبِ، ⓷ وَأَمَّا أَوَّلُ طَعَامٍ يَأْكُلُهُ أَهْلُ الْجَنَّةِ فَزِيَادَةُ كَبِدِ حُوتٍ ⓸ وَإِذَا سَبَقَ مَاءُ الرَّجُلِ مَاءَ الْمَرْأَةِ نَزَعَ الْوَلَدَ، ⓹ وَإِذَا سَبَقَ مَاءُ الْمَرْأَةِ نَزَعَتْ). ⓺ قَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّكَ رَسُولُ اللّٰهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ⓻ إِنَّ الْيَهُودَ قَوْمٌ بُهْتٌ، ⓼ وَإِنَّهُمْ إِنْ يَعْلَمُوا إِسْلَامِي مِنْ قَبْلِ أَنْ تَسْأَلَهُمْ يَبْهَتُونِي،

**ترجمه:** ⓵ حضور ﷺ [د عبد الله ابن سلام دادرې سره سوالونه اوريدو سره] وفرمايل اوس اوس جبرائيل علیه السلام د دې سوالونو د جواب نه آګاه کړی يم ⓶ او هغه تاته بنايم چې د قيامت مخکنۍ علامه خوبه هغه اور وي چې خلق به د مشرق طرف نه د مغرب طرف ته جمع کولو سره بوځي ⓷ او جنتيان چې جنت کې د ټولو نه مخکنۍ طعام خوري هغه به د ماهي (مهي) د جګر زائده حصه وي [يعنی د ماهي د جګر هغه حصه چې خيګر نه جدا زوړند وي او د ماهي لذيذ ترين جزو وي] ⓸ او هر چې په اولاد کې د مور پلار د مشابهت سوال دی نو که دسړي اوبه مني د ښځي په اوبو غالبي شی نو سړی اولاد خپل مشابهت طرف ته راکاږي ⓹ او که د ښځي اوبه د سړي په اوبو غالبي شی نو ښځه اولاد خپل مشابهت طرف ته راکاږي ⓺ عبد الله بن سلام [د خپلو سوالونو جوابونه اوريدو سره] اوويل زه شاهدي اداکوم چې الله ﷻ نه ماسوا بل معبود نشته او داچې تاسو يقيناً د الله ﷻ رسول يئ ⓻ [د قبول اسلام

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب خلق آدم صلوات الله عليه وذريته (رقم-٣٣٢٩) واحمد في المسند: ١٠٨/٣

نه وروسته عبد الله ابن سلام عرض وکړو یا رسول الله! دا یهودیان ډېر بهتان تراش دی [۸] که ستاسو د پوښتني نه مخکې دوی ته خما مسلمانیدل معلوم شي نو په مابه دروغ بهتان تړي ایعني که هغوی ته دي معلومیدو نه وروسته چې زه مسلمان شوی یم تاسو د دوی نه څه پوښتنه وکړه نو هغوی به مخالفت وکړي او په ماباندې به نوي نوي الزامونه لګوي ځکه ښه داده چې خما د اسلام راوړلو دخبریدو نه مخکې که تاسو ددوی نه خما په باره کې څه پوښتنه وکئ ښه به وي چې هغوی خما متعلق تاسو د صحیح حالاتو نه آګاه کړي!

**حل اللغات:-** ⑦بُهُتٌ: دا د بَهُوت جمع ده. دا په بُهْتَان کښې مبالغه ده. یعنی ډیر زیات بهتان لګونکی، بهتان تراش.

[۱] فَجَاءَتِ الْيَهُودُ فَقَالَ: (أَيُّ رَجُلٍ عَبْدُ اللَّهِ فِيكُمْ؟) [۲] قَالُوا: خَيْرُنَا وَابْنُ خَيْرِنَا، وَسَيِّدُنَا وَابْنُ سَيِّدِنَا [۳] فَقَالَ: (أَرَأَيْتَ إِنْ أَسْلَمَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ؟) [۴] قَالُوا: أَعَاذَهُ اللَّهُ مِنْ ذَلِكَ. [۵] فَخَرَجَ عَبْدُ اللَّهِ فَقَالَ: [۶] أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ [۷] فَقَالُوا: شَرُّنَا وَابْنُ شَرِّنَا، فَانْتَقَصُوهُ، [۸] قَالَ: هَذَا الَّذِي كُنْتُ أَخَافُ يَا رَسُولَ اللَّهِ!» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] نو [اتفاقًا یا د حضور ﷺ په بلنه هغه وخت] څه یهودیان مجلس نبوي ته راغلل [او عبد الله ابن سلام یو ګوټ کې پټ شو حضور ﷺ د هغه یهودیانو څخه پوښتنه وکړه] ستاسو ګمان او علم کې عبد الله ابن سلام څرنګه سړی دی؟ [۲] هغوی جواب ورکړو هغه په مونږ کې بهترین سړی دی په مونږ کې د بهترین سړي ځوی دی ایعنی عبد الله ابن سلام نه صرف داچي د خپل ذات د اعتبار نه په مونږ کې اعلی علمي اخلاقي او سماجي حیثیت لري او زمونږ سردار دی بلکه د حسب ونسب د اعتبار نه هم په مونږ هغه ته فضیلت حاصل دی! [۳] حضور ﷺ د هغوی دا جواب اوریدو سره بیا داپوښتنه وکړه ښه ده او ښایي که عبدالله ابن سلام مسلمان شي انو آیا تاسو به هم مسلمانان شئ! [۴] یهودیانو اوویل الله ﷻ دي هغه د اسلام نه بچ کړي [او خپل حفاظت کې دي وساتي یا داچي معاذ الله مونږ د دې تصور هم نه شو کولی! [۵] نو عبد الله ابن سلام د هغوی مخې ته راغې او هغه اوویل [۶] زه ګواهي کوم چې د الله ﷻ نه ماسوا بل معبود نشته او داچي بلاشبه محمد د الله ﷻ رسول دی [۷] یهودیانو په دې اوریدو سره ونیل شروع کړل چې داسړی خو په مونږ کې ډیر خراب دی او د بدترین سړي ځوی دی او په هغه کې قسم قسم عیبونه را اوخکل یې شروع کړل [۸] عبد الله ابن سلام ﷺ اوویل یا رسول الله! تاسو ولیدل دا هغه خبره ده چې زه ځني ویرېدم [او په دې وجه ما تاسو ته عرض کړی وو چې مخکې دوی نه خما د حال پوښتنه وکړی چې تاسو ته اندازه وشي چې داقوم څومره دوه مخي او دروغجن دی]. (بخاري)

**حل اللغات:-** ⑤فَانْتَقَصُوهُ: دا د نَقْص نه دي، وَهُوَالْعَيْبُ: نقصان او عیب ته وائي.

**تسهیلات: قوله:** سَمِعَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ بِمَقْدَمِ رَسُولِ اللّٰهِ- صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د حدیث پس منظر:**

حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه دَ یهودو ډیر لوئی عالم وو دَ تورات حافظ وو هغه خپل غلام ته ونیلي ووچه کله نبی آخرالزمان دَ مکې نه مدینې ته راشي نوته ماته خبر راکړه یوه ورځ هغه خپل باغ کښې دَ یوې ونې نه میوه راشوکوله چه غلام دَ لاندې نه آواز ورکړو نبی آخرالزمان مدینې ته راغلو په هغه باندې یو هیبت او رعب راغلو نیزدې وه چه دَ ونې نه راپریوتلې وې خو بچ شو دَ ونې نه راکوزیدو سره دَ حضورپاك طرف ته روان شو کله چه دَ حضورپاك په مخ مبارك باندې نظر پریوتلو نووئی وئیل "واللہ ماھذا بوجه کذاب" په خدائی قسم دا مخ دَ یو دروغژن نه شی کیدې بیا ئی دَ ازمیښت په توګه درې سوالونه اوکړه حضورپاك پخپله دَ جواب په ځائې دَ جبرائیل امین انتظار اوکړو اوبیا دَ وحی په ذریعه جواب ورکړو عبدالله بن سلام رضی الله عنه مسلمان شو مګر اول ئی په یهودو باندې دَ خپل عظمت اقرار اوکړوچه روستو بیا دَ بهتان تړلو اثر نه وی

**قوله:** إِلَّا نَبِيٌّ:

**د نبی علیه السلام امتحان اخستل:** یعنی دا داسې خبرې دی چه صرف هم نبی خودلې شی هم په دې کښې دَمعجزه ظهورشوې دې چه حضورپاك دَ وحی په بنیادباندې دادریواړه خبرې صحیح صحیح اوخودلې.

**قوله:** أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ:

**د قیامت د اولنی غټې نښې تپوس:** دَ قیامت نه مخکښې ښکاره کیدونکې علامات تپوس ئی اونه کړوبلکه دَ قیامت دَ شروع کیدو سوال دې ځکه چه دَ دغه اورنه به قیامت شروع کیږی دَ قیامت علامات خوبه ددې نه مخکښې ډیرې ښکاره شوې وی لهذا دَ دې سوال نه دې

**د سبق ماء په معنی کښې دوه اقوال:**

**قوله:** سَبَقَ مَاءُ الرَّجُلِ:

**د سبق په معنی کښې دوه اقوال:** یعنی دَ مور رحم ته رسیدونکې نطفه که چرته دَ سړی غالب راشی اودَ ښځې مغلوب شی نوماشوم دَ سړی په شان پیدا کیږی

① ملاعلی قاری رحمه الله دَ سبق ترجمه "علاوغلب" سره کړې ده

② شیخ عبدالحق رحمه الله اشعة اللمعات کښې ددې ترجمه سبقت سره کړې ده فرمائی "چوں پیش میشود آب مرد آب زن را یعنی پیشتر در رحم می افتد" یعنی دَ سړی نطفه چه کله دَمور رحم کښې مخکښې رسیږی دَ ښځې په اوبو غالب راځی نوبچې دَ پلار په شان وی.

## [۵۸۷۱] د جنګ بدر سره متعلق د پیشن ګوئي معجزه

۵۸۷۱-(۱)[۳][۱]وَعَنْهُ، قَالَ: «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- شَاوَرَ[۲]حِينَ بَلَغَنَا إِقْبَالُ أَبِي سُفْيَانَ،[۳] وَقَامَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ![۴]وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ[۵]لَوْ أَمَرْتَنَا أَنْ نُخِيضَهَا الْبَحْرَ لَأَخَضْنَاهَا،[٦]وَلَوْ أَمَرْتَنَا أَنْ نَضْرِبَ أَكْبَادَهَا إِلَى بَرْكِ الْغِمَادِ لَفَعَلْنَا.[۷]قَالَ: فَنَدَبَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- النَّاسَ، فَانْطَلَقُوا حَتَّى نَزَلُوا بَدْرًا،

**ترجمه:**[۱] او حضرت انس ﷛ وايي رسول الله ﷺ هغه وخت مدينه والاوو سره صلاح مشوره وکړه [۲] چې مونږ ته د ابوسفيان د راتلو خبر وشو[۳] نو سعد ابن عباده اودريدلو او عرض يې وکړ يارسول الله![۴] په هغه پاك ذات مې دي قسم وي چې د هغه په قبضه کې خما ساه ده [۵] که تاسو مونږ ته د خپلې سورلۍ د حيوانانو په سمندر کې د اچولو حکم وکړ نو بلاشبه مونږ به داسې کوو (يعنې يوازې په مخ د زمکې باندې موقوف نه دو)[٦] که تاسو حکم وکړ نو مونږ ته د رسيدو او د هغه بيخ کنې کولو د پاره سمندر کې هم خپل آسونه به وزغلوو او که ستاسو حکم وي چې مونږ د خپلو اوښانو او آسونو ځګر برك غمد پورې وهو نو مونږ به بيشکه داسې کوو[۷] حضرت انس ﷛ وايي دې نه وروسته رسول الله ﷺ ټول خلق يعنې مهاجرين او انصار جنګ د پاره دجوش او جذبې نه ډك کړل او تيار يې کړل او ټول خلق روان شول ددې پورې چې د بدر مقام ته ورسيدل او معرکه آرايي د پاره هغه ځاي منتخب شو.

**حل اللغات:-** ①إِقْبَالُ: راتلل، ②نُخِيضَهَا: أَيْ نُدْخِلَ الدَّوَابَّ: داخل کړو، اوزغلوو خپل آسونه دجنګ د پاره، ③بَرْكِ الْغِمَادِ: په حبشه کښې يا په يمن کښې د يو ځاي نوم دې، يه د لرې ځاي نه کنايه ده ④فَنَدَبَ: أَيْ: فَدَعَا: راونې بلل يعنې دجهاد ترغيب نې ورکړو په اصحابو کښې نې دجهاد جوش اوجذبه پيدا کړه،

[۱]فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (هَذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ)[۲] وَيَضَعُ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ هَاهُنَا وَهَاهُنَا،[۳] قَالَ: فَمَا مَاطَ أَحَدُهُمْ عَنْ مَوْضِعِ يَدِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] نو رسول الله ﷺ مجاهدين اسلام مخاطب کولو سره وفرمايل ګورئ داځاي د فلاني سړي کافر د هلاکيدو او د هغه د جسد غورځيدو دی (او دا ځاي به اشقياء (بدبخته) سړي قتليدو سره غورځيږي) دغه شان حضور ﷺ (د مکې دکفارو او اشقياوو (بدبختو) نومونه اخستل او) په زمکه باندې يو يو ځاي لاس اينبوی فرمايل به يې چې فلاني سړی به دلته مړکيدو سره رالويږي او د فلاني سړي بدن به دلته لويږي[۳] حضرت انس ﷛ وايي حضور ﷺ چې چيرته لاس ايخو دلی وو د هغه ځاي نه يو سړی هم متجاوز نه شو (مسلم)

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الجهاد والسير /باب غزوة بدر (رقم-۸۳ - (۱۷۷۹) وابوداود فی کتاب الطلاق/ باب فی عدة المطلقة (رقم-۲۲۸۱) والنسائی فی کتاب الجنائز /باب أرواح المؤمنين (رقم-۲۰۷٤) واحمد فی المسند: ۲۱۹/۳

**حل اللغات:** -⑤مَصْرَعُ: أَيْ مَقْتَلُ: د راغورځیدو او قتل کیدو ځاني ته وائي. ⑥مَاطَ: أَيْ: مَـازَالَ وَتَعَدَّ وَتَجَاوَزَ: وړاندې نه شو، تجاوز نې اونه کړو.

**تسهیلات: قوله**: شَاوَرَ:

**د جنګ بدر پس منظر**: حضورپاك دَخپلو صحابه کرامو نه جنګ بدرته دَ رسیدو نه وړاندې مشوره اوغوښتله چه دَ جنګ میدان ته لاړشو که نه؟ صورت حال داووچه حضورپاك دَ ابوسفیان دَ قافلې دَ ګیرولودَپاره دَمدینې نه یوڅو صحابه کرام اخستلوسره بدرته رسیدلی وو په تادئی سره دَ وتلودَ وجې نه صحابه کراموسره وسله هم نه وه. اخوادَ ابوسفیان قافله دَ شام نه راغله اولاربدلولوسره مکې ته لاړه. اهل مکه ته پته اولګیدله چه دَهغوی قافله لوټ کړې شوه. ابوجهل دَ زروکسانو وسله وال لښکرتیارکړو اودَ جنګ دَپاره بدرته اورسیدل.

**د نبی کریم صلی الله علیه وسلم انصارو نه بار بار د مشورې غوښتلو وجه**: بل خواه حضورپاك دَانصارونه دَهجرت نه وړاندې په لیلة عقبة کښې کومه معاهده کړې وه هغه داوه که په حضورپاك باندې یوقوم په مدینه ښارکښې حمله کوی نوانصاربه دفاع کوی. خوکه حضورپاك دَمدینې نه بهرپه چاپسې دَ جنګ دَپاره ځی نوانصار به ورسره دَ تللوپابندنه وی. هم دَدې صورت حال په رڼاکښې حضورپاك باربارِدَ انصارودَ سردارانونه مشوره اوغوښتله چه ستاسو رائې او مشوره څه ده. حضرت سعدبن معاذ ﷺ زوردار تقریراوکړو اودَوفادارئې وعده ئې اوکړه په کوم چه حضورپاك ډیرزیات خوشحال شو اودَ جنګ میدان ته وړاندې شو.

**قوله**: سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ:

**اشکال اودهغې دفع**: دلته دَسعدبن عباده ﷺ نوم دې کیدې شی چانه هیره شوې وی ګنی په مشهورو روایاتوکښې دَحضرت معاذ ﷺ ذکردې یاکیدې شی چه دواړوداخبره کړې وی.

**قوله**: بَرْكِ الْغِمَادِ:

**د برک الغماد په مصداق کښې درې اقوال**: ①په حبشه کښې دَ یومقام نوم دې.

② په یمن کښې دَ یوښارنوم دې.

③ ملاعلی قاری ﷫ وائی دادواړه دَ لرې علاقونه کنایه ده یعنی چه دَدنیادَ کوټ دَپاره تاسو فرمایئی مونږ به ځو.

**قوله**: فَمَا مَاطَ:

**د نبی علیه السلام د پیشنګوئی صداقت**: یعنی په کوم ځائی کښې چه حضورپاك دکوم کافردَقتل کیدلو او پریوتلو ارشاد فرمائیلې ووهغه یوه ذره برابر اخوادیخواشوی نه وی بلکه هم په هغه ځائی راپروتلوې مړشوې. په دې کښې معجزه ښکاره شوې.

**[۵۸۷۲] د جنګ بدر په ورځ د نبی کریم ﷺ دعا**

۵۸۷۲-() [۵]① «وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ يَوْمَ بَدْرٍ:② (اللَّهُمَّ أَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَوَعْدَكَ،③ اللَّهُمَّ إِنْ تَشَأْ لَا تُعْبَدْ بَعْدَ الْيَوْمِ)④ فَأَخَذَ أَبُو بَكْرٍ بِيَدِهِ فَقَالَ:⑤ حَسْبُكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَلْحَحْتَ عَلَى رَبِّكَ،⑥ فَخَرَجَ وَهُوَ يَثِبُ فِي الدِّرْعِ وَهُوَ يَقُولُ:⑦ ﴿سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ﴾ [القمر:۴۵]». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**① او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی رسول الله ﷺ د جنګ بدر په ورځ یوه خیمه کې دا دعا غوښتله ② اې الله! زه ستا نه ستا آمان غواړم او ستا د وعدې پوره کول غواړم ③ اې الله! که ته داغواړې چې [دلته د دښمنانو په مقابله کې مسلمانان هلاک شي] نو په مخ د زمکې باندې به هیڅ مسلمان باقي پاتې نشي [او نن نه وروسته به ستا عبادت نه کېږي هرکله چې حضور ﷺ ډېرې عاجزۍ سره دا دعا غوښتله] ④ نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه د حضور ﷺ لاس مبارك ونیولو هغه اوویل ⑤ یارسول الله! بس کړئ دومره دعا غوښتل کافي دی تاسو ډیر زارۍ سره خپل پروردګار نه د فتح او نصرت التجاء کړې ده ⑥ دې نه وروسته حضور ﷺ زغره اچولې وه او ډېرې خوشحالۍ نه په ډیرې تیزۍ سره د خپلې خیمې نه اووتلو او دا آیت چې هغه وخت نازل شوی وو حضور ﷺ اوچت اواز سره اوویلو:⑦ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ د کفارو دا جماعت به شکست وخوري او دا ټول به شاکولو سره تښتي دا روایت بخاري رحمه الله نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ① قُبَّةٍ: خیمه، څپر. ② أَنْشُدُكَ: أَيْ أَطْلُبُكَ وَأَسْأَلُكَ: غواړم ستانه، سوال کوم له تانه. ③ أَلْحَحْتَ: أَيْ بَالَغْتَ فِي السُّؤَالِ: په دعا کولو کښې دې ډیره مبالغه اوکړه، ډیر په ژړا او زارۍ مو سوال اوکړو. ④ يَثِبُ: ټوپ وهل او وردانګلو سره راتلو ته وائي. أَيْ: يُسْرِعُ فَرَحًا وَنَشَاطًا: یعني ډیره په خوشحالۍ سره په جلتۍ کښې اووتلو. ⑤ الدِّرْعِ: زغره (یعنې کفارو سره د جنګ په اراده ئې زغره اغوستې وه) ⑥ سَيُهْزَمُ: شکست او ماتې به خوري، ⑦ الْجَمْعُ: أَيْ: جَمْعُ الْكُفَّارِ: ډله د کافرانو

**تسهیلات: قوله: أَلْحَحْتَ:**

**دالله تعالی په دربار کښې د نبی علیه السلام زاری کول:** یعنی حضورپاك دَ خپل رب نه په غوښتو کښې ښه اصرار او مبالغه اوکړه داکافي دي حضورپاك چه کله اوکتل چه دَهغوی یو صحابي او امتي ته دَ الله تعالی دَ امداد دَنزول شرح صدر اوشو نو یقیناً دَ الله تعالی امداد راؤرسیدو نو حضورپاك دَعریش نه بهر راغلو اودَ زیری آیت ئې واؤرولو اودَ معجزه ظهور اوشو.

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير/باب ما قيل في درع النبي صلى الله عليه وسلم، والقميص في الحرب (رقم-۲۹۱۵) واحمد في المسند: ۳۲۹/۱

**قوله**: فِي الدِّرْعِ:

نن صبا دَبدر میدان هم په دې مقام باندې يو جمات جوړ شوې دې دکوم نوم چه مسجد العریش دې. حضوریاك خوذَ يوځپر لاندې ناست وو هغه وخت نه جمات وو او نه چاردیواری وه. زه شاه فیصل په کال ۲۰۱۹ کښې دعمرې په موقع مقام بدر ته تلې ووم اوهلته هم دا جمات موجود دې.

**[۵۸۷۳]په جنګ بدر کښې د جبرائيل عليه السلام شرکت**

۵۸۷۳-() [۲] ① وَعَنْهُ، «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ يَوْمَ بَدْرٍ: ② (هَذَا جِبْرِيلُ آخِذٌ بِرَأْسِ فَرَسِهِ، ③ عَلَيْهِ أَدَاةُ الْحَرْبِ»). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ① او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی رسول الله ﷺ د جنګ بدر په ورځ وفرمایل ② دا جبرائیل دی چې د خپل آس سر یعنی واګي نیولو سره جنګ د پاره مستعد ولاړ دی ③ او د جنګ سامان یې اخستی دی. (بخاري)

**حل اللغات**:- ① أَدَاةُ الْحَرْبِ: أَيْ آلَتُهُ: د جنګ سامان او وسله.

**تسهیلات**:

**قوله**: هَذَا جِبْرِيلُ:

**دپه جنګ بدر کښې د فرشتو جنګیدل**: په جنګ بدرکښې باقاعده دَ جنګیدلودپاره یو زر فرښتې دَ آسمان نه راکوزې شوې وې. پنځه سوا دَ جبرئیل او پنځه سوا دَ میکائیل عليه السلام په معیت اوکمان کښې وې.

**قوله**: أَدَاةُ الْحَرْبِ:

**سامان جنګ سره د جبریل راتلل**: یعنی جبرئیل امین دَجنګ سامان اخستوسره ولاړ وو دَ حضوریاك حضرت جبرئیل عليه السلام کتل بیا دَ هغوی دَ امداددپاره دَ زرو فرښتو راکوزیدل دَ معجزه ظهور دې.

**[۵۸۷۴]دآسماني مدد مشاهده**

۵۸۷۴-( ) [۳] ① وَعَنْهُ، قَالَ: «بَيْنَمَا رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَوْمَئِذٍ يَشْتَدُّ فِي إِثْرِ رَجُلٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ أَمَامَهُ، ② إِذْ سَمِعَ ضَرْبَةً بِالسَّوْطِ فَوْقَهُ، ③ وَصَوْتُ الْفَارِسِ يَقُولُ: أَقْدِمْ حَيْزُومُ. ④ إِذْ نَظَرَ إِلَى الْمُشْرِكِ أَمَامَهُ خَرَّ مُسْتَلْقِيًا، ⑤ فَنَظَرَ إِلَيْهِ فَإِذَا هُوَ قَدْ خُطِمَ أَنْفُهُ وَشُقَّ وَجْهُهُ كَضَرْبَةِ السَّوْطِ، ⑥ فَاخْضَرَّ ذَلِكَ أَجْمَعُ، فَجَاءَ الْأَنْصَارِيُّ،

**ترجمه**: ① او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي د جنګ بدر په ورځ هرکله چې يو مسلمان د يو مشرك تعاقب كولي چې په مخه تښتيدی ② نو اچانك هغه مسلمان په هغه مشرك د

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب المغازي /باب شهود الملائكة بدرا (رقم-۳۹۹۵)

[2] ) اخرجه مسلم في كتاب الجهاد والسير /باب الإمداد بالملائكة في غزوة بدر. وإباحة الغنائم (رقم-۵۸ - (۱۷۶۳)

راتلود چابُك اواز واوريدى ۳ بيا هغه د يوسوار اواز واوريدى چې دايي وئيل حَيزُوم اقدام كوه ۴ بيا دهغه مسلمان نظر خپل مخكې تبنتيدونكى مشرك طرف ته لاړشى نو وي ليدل چې هغه په زمكه سم راغورځيدلى پروت دى ۵ هغه داهم وليدل چې د هغه مشرك په پوزه باندې نشان لګيدلى وو او د هغه مخ پرې شوى وو چې د چابك د وهلو علامه وه ٦ يعنى څرنګه چې يوځاى په كانړى وغيره لګيدلو سره شين شى دغه شان د هغه د پوزې هغه حصه چې په هغه د چابك هغه ننبه په نظر راتله شين شوى وو نو هغه انصاري مسلمان چې د مذكوره مشرك مذكوره حال ليدلى وو حضور ﷺ ته چې راغې

**حل اللغات:** - ① يَشْتَدُّ: أَيْ: يُسْرِعُ وَيَعْدُو: په تيزئ او په منډه باندې تلل مراد دى. ② ضَرْبَةً: أَيْ: صَوْتَ ضَرْبَةٍ: ضرب وهلوته وائى دلته ترې دوهلو آواز مراد دې. ③ السَّوْطِ: چابك او دَ لاس كوړې ته وائى ④ أَقْدِمْ: بِمَعْنَى تَقَدَّمْ: يعنى وړاندې شه. ⑤ حَيْزُومُ: وَهُوَ اسْمُ فَرَسِهِ: دَحضرت جبرائيل يا دَ بلې فرښتې دَ اس نوم حيزوم وو. ⑥ خَرَّ: أَيْ سَقَطَ: راغورځيدلې وو. ⑦ مُسْتَلْقِيًا: أَيْ عَلَى قَفَاهُ: نيغ په څټ طرف (پروت وو). ⑧ خُطِمَ أَنْفُهُ: وَهُوَ الْأَثَرُ عَلَى الْأَنْفِ: دَ مخ ماتول او شلولو دَپاره خطم لفظ استعماليږى (يعنى په پوزه نې د چابک د وهلو نشان وو). ⑨ شُقَّ: أَيْ: قُطِعَ، طُولًا: شليدلې وو په اوږدوالى باندې. ⑩ فَاخْضَرَّ: أَيِ أَخْضَرَ أَوْ أَسْوَدَ: تک شين شوې وو تور والى ته مائل وو. ⑪ أَجْمَعُ: أَيْ: مَوْضِعُ الضَّرْبِ كُلُّهُ: يعنى په وهلو سره نې پوره مخ تک شين اوتور شوې وو.

۱ فَحَدَّثَ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ۲ (صَدَقْتَ، ذَلِكَ مِنْ مَدَدِ السَّمَاءِ الثَّالِثَةِ) ۳ فَقَتَلُوا يَوْمَئِذٍ سَبْعِينَ وَأَسَرُوا سَبْعِينَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ نو داټوله واقعه يې ورته بيان كړله حضور ﷺ پوره واقعه اوريدو سره ورته وفرمايل ۲ ته رښتيا وايې هغه فرښته چې هغه مشرك يې چابك سره هلاك كې د دريم آسمان د فوځي كومك فرښته وه ۳ د هغه ورځې په جنګ كې مسلمانانو اويا كافران قتل كړل او اويا يې ګرفتار كړي وه (مسلم)

**حل اللغات:** - ③ مَدَدِ السَّمَاءِ: آسمان كومک (يعنى د دريم آسمان فوجى فرښته د مدد دپاره راغلې وه)

**تسهيلات:**

**قوله: فَاخْضَرَّ ذَلِكَ أَجْمَعُ.**

**د فرښتې دلاسه د كافر قتل:** چونكه دادَ فرښتې دَ لاس كوړه وه نو دَهغې زهرژن اثرښكاره شوه. صدقت يعنى دَ صحابى كرامت دَحضورپاك په بركت سره وو لهذا دادَحضورپاك په حق كښې معجزه وه يا داسې اوګڼرئى چه دَ فرښتو نازليدل دَحضورپاك دَ نبوت دَاثبات دَپاره معجزه وه په دې وجه داحديث معجزات كښې راغلو.

**[۵۸۷۵] د احد په جنګ کښې د فرښتو د مدد معجزه**

۵۸۷۵ - ()«[۸] [۱] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] رَأَيْتُ عَنْ يَمِينِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَعَنْ شِمَالِهِ يَوْمَ أُحُدٍ رَجُلَيْنِ، [۳] عَلَيْهِمَا ثِيَابٌ بِيضٌ، يُقَاتِلَانِ كَأَشَدِّ الْقِتَالِ، [۴] مَا رَأَيْتُهُمَا قَبْلُ وَلَا بَعْدُ يَعْنِي جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سعد ابن ابي وقاص ﷛ وايي [۲] ما د احد په جنګ کې د رسول الله ﷺ ښي او ګڅ طرف ته دوه سړي وليدل چې هغوئ کې يو د رسول الله ﷺ ښي طرف ته او يو ګڅ طرف ته وو [۳] هغوی دواړو سپينې جامې اغوستې وې او دواړه ډير په شدت سره زمونږ د دښمنانو سره جنګيدل [۴] هغه دواړه نه ما مخکې چيرته ليدلي وو او نه مې د هغه نه وروسته چيرته وليدل دي نه ثابته شوه چې هغه دواړه دراصل فرښتې يعنې حضرت جبرائيل او ميکائيل ﷣ وو. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: كَأَشَدِّ الْقِتَالِ:**

**د سخت جنګيدو مطلب:** فرښته چه کله دَ انسان په شکل کښې راځي نوبيا دَ انسان په صفاتو باندې متصف کيږي. په حديث کښې دَ سخت جنګيدو مطلب هم دغه دې چه دَ يوانسان په شان جنګيدلي ګني دَ فرښتې اصلي طاقت خوداسې دې چه دَ قوم لوط کلي ئې آسمان ته اوچت کړل او په زمکه ئې راګذار کړل. دغه شان جبرائيل ﷣ په قوم ثمود باندې يوه چغه اووهله په کومې سره چه ټول هلاك شو.

**په انساني شکل کښې په فرشته کښې انساني صفات پيدا کيدل:** بيا عجيبه خبره داده چه دَانسان په شکل کښې فرښته دَ انسان دَ حملې نښانه هم جوړيدې شي ځنګه چه حضرت موسى ﷣ دَ فرښتې نه سترګه اوويستله. حضرت سعد ﷛ ته کيدې شي چه رسول الله ﷺ پخپله خودلې وی چه دا دوه فرښتې جبرائيل اوميکائيل دی. بهرحال دَ فرښتو راتلل او دَ حضورپاك په حفاظت کښې دَ دفاع دَپاره جنګيدل دَمعجزه ظهوردې.

**[۵۸۷۶] د يوصحابي ﷛ ماته پښه روغيدل**

۵۸۷۶-()[۹] [۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «بَعَثَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَهْطًا إِلَى أَبِي رَافِعٍ، [۳] فَدَخَلَ عَلَيْهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَتِيكٍ بَيْتَهُ لَيْلًا وَهُوَ نَائِمٌ فَقَتَلَهُ، [۴] فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَتِيكٍ: فَوَضَعْتُ السَّيْفَ فِي بَطْنِهِ، [۵] حَتَّى أَخَذَ فِي ظَهْرِهِ، فَعَرَفْتُ أَنِّي قَتَلْتُهُ، [۶] فَجَعَلْتُ أَفْتَحُ الْأَبْوَابَ، حَتَّى انْتَهَيْتُ إِلَى دَرَجَةٍ، [۷] فَوَضَعْتُ رِجْلِي فَوَقَعْتُ، فِي لَيْلَةٍ مُقْمِرَةٍ، [۸] فَانْكَسَرَتْ سَاقِي، فَعَصَبْتُهَا بِعِمَامَةٍ،

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب غزوة أحد (رقم-۴۰۴۵) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب فی قتال جبريل وميكائيل عن النبی صلی الله عليه وسلم يوم أحد (رقم-۴۶ - (۲۳۰۶)

[۲] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسير/باب قتل المشرک النائم (رقم-۳۰۲۲)

**ترجمه:**① او حضرت براء ﷺ وايي ② رسول الله ﷺ د صحابه وو يوجماعت ابو رافع يهودي طرف ته وليږي هركله چې هغه جماعت د هغه قلعه ته ورسيدی ③ نو يوصحابي عبد الله ابن عيتك ﷺ شپې په وخت د ابورافع خوابگاه کې چې هغه اوده وو داخل شواو هغه يې قتل کی ④ عبد الله ابن عيتك ﷺ بيان وکړو ما د ابورافع په خيټه توره کينبودله ⑤ ددي پورې چې هغه د شا دطرف نه بهر راووتله هرکله چې زه پوهه شوم چې د هغه کار تول شوي دي ⑥ نو ما د قلعې دروازي خلاصول شروع کړل چې اد جماعت باقي خلق هم چې ما سره په دي مهم کې راغلي وه دننه رانتوځي او بيا) زه يوي پوړۍ ته ورسيدم ⑦ او په دي خيال چې مخکې زمکه ده څرنګه چې ماقدم کينبووی د سپوږمۍ خوره رڼا کې داسې راوغورځيدم ⑧ چې ځما پنډۍ ماته شوه ماپه خپلي لنګوټۍ سره پنډۍ وتړله

**حل اللغات:-** ① رَهْطًا: مَا دُونَ الْعَشَرَةِ مِنَ الرِّجَالِ: د دريو نه واخله تر لسو پورې د سړو جماعت او ډلې ته رهط وائی ② دَرَجَةِ: پاؤړۍ، د اندړيايه پاټکي، ③ فَوَقَعْتُ: أَيْ سَقَطْتُ: زه اوغورځيدم (د اندړيايه نه)، ④ لَيْلَةٍ مُقْمِرَةٍ: أَيْ: مُضِيئَةٌ: د سپوږمۍ رڼرانی شپه، ⑤ فَعَصَبْتُهَا: أَيْ: شَدَدْتُهَا: اومې تړله خپله پنډۍ.

① فَانْطَلَقْتُ إِلَى أَصْحَابِي فَانْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَحَدَّثْتُهُ ② فَقَالَ: (ابْسُطْ رِجْلَكَ). فَبَسَطْتُ رِجْلِي فَمَسَحَهَا، ③ فَكَأَنَّمَا لَمْ أَشْتَكِهَا قَطُّ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**① او خپلو ملګروته ورسيدم چې د قلعه لاندي ولاړ وه بيا زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم حضور ﷺ ته مي ټوله واقعه بيان کړه ② حضور ﷺ وفرمايل خپله پښه وغزوه ما خپله پښه وغزوله حضور ﷺ ځما په پښه خپل لاس مبارك راتير کړو ③ نو هغه وخت ځما پښه داسې روغه جوړه شوه لکه چې هغه ته څه تکليف نه وي رسيدلی (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله:** بَعَثَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَهْطًا إِلَى أَبِي رَافِعٍ:

**ابو رافع د قتل پس منظر:** په مدينه منوره کښې ابورافع يوخبيث يهودی وو لوئی سوداګر وو معاهد وو مګر هغه مسلمانانوسره معاهده ماته کړه اودَ اسلام او دَ مسلمانانو په بده وينا کولوکښې مصروف شو شرفسادئی خورولو دَمسلمانانو په بدئی کښې به ئی قصيدې وئيلې او په دغه قصيدو باندې به ئی مجلسونه ګرمول اوفتنې به ئی سازولې. دَ هغه کنيت ابوالحقيق وو ډير خراب باطن سړې وو. حضورپاك عبدالله بن عتيك ﷺ دَهغه دَ قتل دَپاره اوليګلو. حضرت عبدالله ﷺ په يوه بهانه سره قلعه کښې داخل شواوڅوکيدار چه چرته دَ قلعه چابيانې کيخودلې هغه ئی معلوم کړو اوبيائی چابيانې واخستې پورته بالاخانوته لاړو. اودَ ابورافع کمرې ته اورسيدو او په خوب ئی په هغه باندې

یوه حمله اوکړه چه ناکامه شو او بیائی دویمه حمله اوکړه او ابورافع ئی قتل کړو. واپسئی کښې دَ پاؤړو نه راپریوتلو په کوم سره چه ئی یوه خپه ماته شوه. حضورپاك له راغلو حضورپاك دم کړو خپه ئی بالکل ټیك شوه اودَ معجزه ظهوراوشو

**[۵۸۷۷] غزوه احزاب کښې د طعام زیاتیدل**

۵۸۷۷-( ) [۱۰] ۱ «وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: إِنَّا يَوْمَ الْخَنْدَقِ نَحْفِرُ، ۲ فَعَرَضَتْ كُدْيَةٌ شَدِيدَةٌ، فَجَاءُوا النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالُوا: ۳ هَذِهِ كُدْيَةٌ عَرَضَتْ فِي الْخَنْدَقِ. فَقَالَ: (أَنَا نَازِلٌ). ۴ ثُمَّ قَامَ وَبَطْنُهُ مَعْصُوبٌ بِحَجَرٍ. ۵ وَلَبِثْنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ لَا نَذُوقُ ذَوَاقًا، ۶ فَأَخَذَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمِعْوَلَ، ۷ فَضَرَبَ فَعَادَ كَثِيبًا أَهْيَلَ، ۸ فَانْكَفَأْتُ إِلَى امْرَأَتِي فَقُلْتُ: هَلْ عِنْدَكِ شَيْءٌ؟

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر رضی الله عنه وایې مونږ خلقو یعنی صحابه وو رضی الله عنهم د خندق په ورځ [یعنی د غزوه احزاب په موقع دښمنانو نه دحفاظت د پاره د مدیني چاپیره] خندق ؤېښکلي ۲ چې یوسخت کانی راوختی [چې په هیڅ شان نه ماتیدی صحابه وو رضی الله عنهم د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې راغلل عرض یې وکړو چې د کیندلوپه ځاي کې یوسخت کانی راختلی دی] حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل زه خپله په خندق کې خکته کیدو سره ګورم ۳ نو حضور صلی الله علیه وسلم سمدستي را پاځیدو هغه وخت د لوږي نه د حضور صلی الله علیه وسلم په خیټه مبارکه کانی ترلی وو ۵ او مونږ ټول خلق دریو ورځو نه په دي حال کې وو چې مونږ هیڅ نه وه خوړلي څه شی د څکلو هم نه وو ۶ حضور صلی الله علیه وسلم کُلنګ په لاس [ګرز] مبارك کې واخستی ۷ اود خندق کندي ته خکته کیدو سره په کاني یې یوداسي سخت ګذار وکی چې هغه کاني د بهیدلي ریګ په شان زره زره شو ۸ حضرت جابر رضی الله عنه وایې دي نه وروسته زه خپل کورته راغلم او خپلي ښځي سهیله بنت معوذ انصاریه رضی الله عنها نه مي پوښتنه وکړه آیا تا سره د خوراك څه شته.

**حل اللغات:-** ۱ نَحْفِرُ: مونږ کنستله زمکه. خندق مو کنستلو ۲ عَرَضَتْ: أَيْ: ظَهَرَتْ: رابـکاره شو، یعنی په پلنو مخي ته راغي او زمونږ په کارکښې رکاوټ شو ۳ كُدْيَةٌ: أَيْ: قِطْعَةٌ: سخته زمکه، کانړي (چه نه ماتیدلو) ۴ مَعْصُوبٌ: أَيْ: مَرْبُوطٌ: ترلی شوی وو ۵ لَا نَذُوقُ ذَوَاقًا: أَيْ مَأْكُولًا وَمَشْرُوبًا: فعال په معنی د مفعول سره دې. یعنی نه مو د خوراک څه شي خوړلي نه د څکاک ۶-الْمِعْوَلَ: هُوَ الْحَدِيدَةُ يُنْقَرُ بِهَا الْجِبَالُ: د اوسپني یوه آله ده چه غرونه پرې کنستلې شی په فارسی کښې ورته کُلَنګ وائی یعنی کوداله یا جبل ۷ فَعَادَ: أَيْ: انْقَلَبَ وَصَارَ: نو شو دغه کانړي. ۸ كَثِيبًا: أَيْ: رَمْلًا: ریزه ریزه، تکړې تکړې یعنی د شړې ډیرې ترې جوړ شو ۹ أَهْيَلَ: أَيْ سَائِلًا: نرمه، بهیدلې یعنی بیخی میده شوې. ۱۰ فَانْكَفَأْتُ: أَيْ: انْقَلَبْتُ: راواپس شوم، راغلم کورته،

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة الخندق وهي الأحزاب (رقم-۴۱۰۱)(رقم-۴۱۰۲) ومسلم في كتاب الأشربة/باب جواز استتباعه غيره إلى دار من يثق برضاه بذلك، وبتحققه تحققا تاما، واستحباب الاجتماع على الطعام (رقم-۱۴۱ - (۲۰۳۹)

... النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَمَصًا شَدِيدًا، فَأَخْرَجَتْ جِرَابًا فِيهِ صَاعٌ مِنْ شَعِيرٍ، ۳ وَلَنَا بُهَيْمَةٌ دَاجِنٌ فَذَبَحْتُهَا، وَطَحَنَتِ الشَّعِيرَ، ۴ حَتَّى جَعَلْنَا اللَّحْمَ فِي الْبُرْمَةِ، ۵ ثُمَّ جِئْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَسَارَرْتُهُ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ ۶ ذَبَحْنَا بُهَيْمَةً لَنَا، وَطَحَنْتُ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ، فَتَعَالَ أَنْتَ وَنَفَرٌ مَعَكَ، ۷ فَصَاحَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "يَا أَهْلَ الْخَنْدَقِ إِنَّ جَابِرًا صَنَعَ سُورًا فَحَيَّ هَلًا بِكُمْ"

**ترجمه:** ۱ ما رسول الله ﷺ باندې د لوږې سخت اثر لیدلی دی ۲ په دې اوریدو سره خما ښځې یوه تهیلی راوایستله په هغه کې تقریباً درې نیم سیره اوربشې وې ۳ او زمونږ کره د بزې (چیلۍ) یا کورنۍ میږې یو کوشنی شان بچی وو ما هغه بچی ذبح کی او خما ښځې وړه واغړل ۴ بیا ماغوښه په کټوۍ اچولو سره په نغري مې کیښودله ۵ بیا زه رسول الله ﷺ ته ورسیدم او پټ مې ورته عرض وکړو یارسول الله ۶ مونږ د بزې چیلۍ یو کوشنی بچی ذبح کړی دی او خما ښځې تقریباً درې نیم سیره اوربشې وړه کړې دې دغه شان څه خلقو د پاره خو ما طعام تیار کړی دی تاسو څو کسانو سره تشریف راوړی ۷ په دې اوریدو سره حضور ﷺ پورته اواز سره اعلان وکی خندق والاوو! راځئ جابر ﷺ ستاسو د میلمستیا د پاره طعام تیار کړی دی راځئ چې زر ورشو.

**حل اللغات:** - ۱ خَمَصًا: أَيْ: أَثَرُ الْجُوعِ: لوږه یا د لوږې اثرات (مثلاً خیټه کیناستل یا بې دمه کیدل یا د مخ زیروالي وغیره). ۲ جِرَابًا: بوجۍ، تهیلۍ، ۳ بُهَيْمَةٌ: دا د بَهْمَةٌ تصغیر دې ولَدُ الضَّأْنِ: یعنی د ګډې وروکی بچی ته وائي. ۴ دَاجِنٌ: مَا أَلِفَ الْبَيْتَ: د کور ساتلې شوې چیلۍ وغیره ته داجن وائي ۵ الْبُرْمَةِ: أَيْ: الْقِدْرُ مِنَ الْحَجَرِ: خورینه کټوۍ (چه د کانړي یا خاورې نه جوړه وه یا مطلق کټوۍ ۶ فَسَارَرْتُهُ: پټه خبره کولوته وائي پټه ئې خکه اوساتله چه خوراک کم وو. ۷ سُورًا: أَيْ ضِعَافًا: د میلمستیا طعام. یا فارسي یوقسم خوراک دې چه سور ورته وائي ۸ فَحَيَّ هَلًا: أَيْ: أَسْرِعُوا بِأَنْفُسِكُمْ إِلَيْهِ: خپل ځان هلته زر اورسوئ.

۱ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (لَا تُنْزِلُنَّ بُرْمَتَكُمْ وَلَا تَخْبِزُنَّ عَجِينَكُمْ حَتَّى أَجِيءَ) ۲ وَجَاءَ، فَأَخْرَجْتُ لَهُ عَجِينًا. فَبَصَقَ فِيهِ وَبَارَكَ، ۳ ثُمَّ عَمَدَ إِلَى بُرْمَتِنَا فَبَصَقَ وَبَارَكَ، ۴ ثُمَّ قَالَ: (ادْعُ خَابِزَةً فَلْتَخْبِزْ مَعَكِ، ۵ وَاقْدَحِي مِنْ بُرْمَتِكُمْ، وَلَا تُنْزِلُوهَا) ۶ وَهُمْ أَلْفٌ، فَأُقْسِمُ بِاللّٰهِ لَأَكَلُوا حَتَّى تَرَكُوهُ وَانْحَرَفُوا ۷ وَإِنَّ بُرْمَتَنَا لَتَغِطُّ كَمَا هِيَ ۸ وَإِنَّ عَجِينَنَا لَيُخْبَزُ كَمَا هُوَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ بیا حضور ﷺ ماته وفرمایل ته لاړ شه د طعام انتظام وکړه لیکن خپله کټوۍ د انغري نه مه خکته کوه او مه ډوډۍ پخوه د خوپوري چې زه رانشم ۲ بیا حضور ﷺ خپلو تولو ملګرو سره زمونږ کره تشریف راوړی ما اغښلې وړه د حضور ﷺ مخکې کیښودل نورسول الله ﷺ په هغه کې لاړې مبارکې واچولې اود برکت دعاېې وکړه ۳ بیا دکټوۍ طرف ته رامخکې شو او په هغه کې د خپلې خولې مبارکې لعاب واچول او د برکت دعایې وکړه ۴ دې نه وروسته حضور ﷺ خما ښځې ته وفرمایل چې روټۍ پخونکیه را وغواړه

چې تا سره روټۍ پخوې اوماته راکوي او [۵] په کاچوغې سره د کټوې نه سالن راباسه لیکن کټوی دې په نغري پرته وي [٦] حضرت جابر ﷜ وایي هغه وخت خندق والا یو زر نفر وه چې د دریو ورځو اوږي وه او زه په الله ﷻ قسم اخلم چې هغه ټولو هغه طعام په مړه خېټه وخوړلې [۷] لیکن طعام هم هغه شان پاتې شو هرکله چې ټول خلق لاړه نو کټوئ دغه شان په نغري پخیدله څرنګه چې مخکې وه [۸] او روټۍ هغه شان پخولی شوه څرنګه چې شروع کې وه . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ⑭فَبَصَقَ: أي رَمَى بِالْبُزَاقِ فِيهِ: لاړې ئې پکښې واچولې، ⑮وَاقْدَحِي: أي: اغْرِفِي: یعنی په څمڅئ سره ترکاری راوباسئ. ⑯لَتَغِطُّ: أيْ: لَتَفُورُوَتَغْلِيَ: دَ جوش وهلو په معنی کښې دې، یعنی کټوئ هم هغسې ډکه وه.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د ګرانو ټکو تشریح په حل اللغات کښې شوې ده اوباقی د حدیث مفهوم د حدیث د تشریحی ترجمې څخه واضح دې.

**[۵۸۷۸] د عمار ابن یاسر ﷜ په باره کښې پیشن ګوئي او د هغې واقع کیدل**

۵۸۷۸-()[١] [١]وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، [٢]«أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ لِعَمَّارٍ حِينَ يَحْفِرُ الْخَنْدَقَ [٣] فَجَعَلَ يَمْسَحُ رَأْسَهُ وَيَقُولُ: [٤](بُؤْسَ ابْنِ سُمَيَّةَ! تَقْتُلُكَ الْفِئَةُ الْبَاغِيَةُ)». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوقتاده ﷜ نه روایت دی [٢] چې عمار ابن یاسر ﷜ خندق ویستلې او رسول الله ﷺ عمار ته اوفرمایل [٣] او رسول الله ﷺ د هغه په سر لاس مبارک ګرځولو سره د هغه د سر نه یې خاوره ګرد څنډله او دایې فرمایل [٤] های د سمیه دځوی عمار ابن یاسر ﷜ سختې او مصیبته تا به د باغیانو یوه ډله قتل کوي (مسلم)

**حل اللغات:**- ①بُؤْسَ: بؤس وبأس دَ سختئ شدت اومصیبت په معنی کښې دې. ②ابْنِ سُمَيَّةَ: حضرت سُمیه ﷞ دَ حضرت عمار ﷜ دَ مورنوم دې چه دَ اسلام رومبئ شهیده ده. ③الْفِئَةُ: أي: الْجَمَاعَةُ: ډله. فرقه. ④الْبَاغِيَةُ: أي: الْخَارِجَةُ عَلَى إِمَامِ الْوَقْتِ: یعنی دَ وخت دَامام د اطاعت نه وتونکې او بغاوت کونکې فرقه.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْفِئَةُ الْبَاغِيَةُ.

**د فئه باغیه مصداق:** یعنی دَ وخت دَامام په اطاعت سره وتونکې فرقه به تاقتل کوی دَ اطاعت نه وتونکې فرقه دَحضرت معاویه ﷜ ملګری دی دَحضرت علی ﷜ په لاس ئې بیعت نه ووکړې او بیا دَحضرت علی ﷜ په مخالفت کښې راپاسیدلې وو حضرت

[١]) اخرجه مسلم فی صحیح رقم الحدیث ۷۰/ ۲۹۱۵ والترمذي فی السنن رقم الحدیث ۳۸۰۰

عمار رضي الله عنه حضرت علی رضي الله عنه سره وو او د دغه مخالفینو په لاس شهید شو. حضرت علی رضي الله عنه امام برحق وو او د حضرت معاویه رضي الله عنه نه اجتهادي غلطي شوې وه

**د مشاجراتو صحابؤ باره کښې نظریه سالمه:** دا د مشاجرات صحابه معامله ده. کله چه الله تعالی زمونږ لاسونه د دغه نفوس قدسیه د وینونه محفوظ کړل نو په مونږ باندې فرض دي چه مونږ د خپلو مسلمانانو رونړو په مینځ کښې کیدونکې د غه جنګ نه خپلې ژبې هم محفوظ اوساتو په جنګ جمل کښې نهه زره کسان مړه شوي وو. حضرت معاویه رضي الله عنه الباغیة په الفاظو کښې څه تاویل کولو. ملا علی قاري رحمه الله لیکلي دي دغه تاویلات نه دي نقل کول پکار. د حضرت عمار رضي الله عنه د شهادت د دې پیشنګوئی په پوره کیدو باندې د حضوپاك د معجزې ظهور او شو.

**[۵۸۷۹] د کافرانو د جنګ باره کښې پیشین ګوئي او د هغې واقع کیدل**

۵۸۸۰-() [۳] [۱] وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حِينَ أَجْلَى الْأَحْزَابَ عَنْهُ: [۳] (الْآنَ نَغْزُوهُمْ وَلَا يَغْزُونَا، نَحْنُ نَسِيرُ إِلَيْهِمْ)». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سلیمان ابن صرد رضي الله عنه وایي [۲] کوم وخت چې د غزوه احزاب نه د دښمنانو لښکر وتښتیدی او د مدیني منوري محاصره لرې شوه [۳] نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل اوس د ښمن په مونږ حمله نشي کولی هو مونږ به د هغوئ سره جهاد کوو او په هغوئ به لښکرکشي کوو. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① أَجْلَى: أي: تَفَرَّقَ وَانْكَشَفَ: لاړه، اوتختیده، ② الْأَحْزَابَ: غزوه خندق، د کافرانو ډلې ③ نَغْزُوهُمْ: أي: ابْتِدَاءً: تاسو به ورسره غزا کوئ (یعنی ابتداء او اقدام د جهاد به پرې تاسو کوئ) ④ نَسِيرُ: مونږ به ورځو. لښکر کشی به پرې کوو (جهاد به ورسره کوو او قتلوو به ئې)

**تسهیلات:**

**قوله:** قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حِينَ أَجْلَى الْأَحْزَابَ:

**د جنګ احزاب وحشت:** د ویرې ترهې په حواله سره غزوه خندق یعنی غزوه احزاب د ټولو نه زیات خطرناك جنګ وو. لکه څنګه چه د تنګئی او سختئی په حواله سره چه غزوه تبوك د ټولو نه زیات د مشقتونو والا غزوه وه

**قوله:** حِينَ أَجْلَى الْأَحْزَابَ عَنْهُ،

**د حدیث پس منظر:** په جنګ احزاب کښې د کافرانو مختلف قبائل رایوځائی شوي وو. د یوې میاشتې پورې د مدینې نه ګیره اچولې وه په آخره کښې کافران ناکامه شو واپس لاړل.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة الخندق وهي الأحزاب (رقم-۴۱۰۹) واحمد في المسند: ۴/۲۶۲

**قوله**: اَلْآنَ نَغْزُوهُمْ وَلَا يَغْزُونَا،

**د نبی علیه السلام د پیشنګوئی صداقت**: د"أجلي الاحزاب" مطلب هم دغه دې چه محاصره کله ختمه شوه او احزاب واپس لاړل نو حضورپاك پیشنګوئی وکړه چه بیابه په جزیرة العرب کښې په دې کافرانو باندې مونږ اقدام کوو اوس به دوی په مونږ باندې اقدام نه شي کولې خکه چه دَهغوی طاقت مات شوې دې. چنانچه دَ حضورپاك فرمان رښتیاثابت شو او اقدام هم دَ مسلمانانو دَ طرف نه اوشو او دَ حضورپاك دَمعجزه ظهوراوشو په تولو مسلمانانو باندې واضح کیدل پکاردی چه الله تعالی او دَهغه رسول ﷺ په آخره کښې مسلمانانو ته دکافرانوخلاف دَ اقدام حکم ورکړې دې. لهذا دَ دفاعی جنګ معذرت خواهانه پوزیشن دَدنیا په مخکښې نه دی پیش کول پکار. بل معجزې ته علم غیب وئیل دَعلم نه دَ لرېوالی نتیجه ده.

**[۵۸۸۰] جبرائیل علیه السلام او د فرښتو د مدد معجزه**

۵۸۸۰ – (۱)[۳]①«وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: " لَمَّا رَجَعَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنَ الْخَنْدَقِ②وَوَضَعَ السِّلَاحَ وَاغْتَسَلَ③أَتَاهُ جِبْرِيلُ وَهُوَ يَنْفُضُ رَأْسَهُ مِنَ الْغُبَارِ،④فَقَالَ: (قَدْ وَضَعْتَ السِّلَاحَ؟ وَاللَّهِ مَا وَضَعْتُهُ، اخْرُجْ إِلَيْهِمْ) .⑤فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (فَأَيْنَ) فَأَشَارَ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ،⑥فَخَرَجَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَيْهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**:① او دبی بی عائشې رضي الله عنها بیان دی رسول الله ﷺ د غزوه خندق نه واپس راغلو ② اود خپل جسم نه یې هتیار خکته کول او د غسل اراده یې کوله ③ چې حضرت جبرائیل علیه السلام د حضور ﷺ په خدمت کې راغې داسې حال کې چې حضور ﷺ د خپل سرمبارك نه غزوه خندق کې ګرد وغبار څنډلې ④ او هغه ورته اوویل تاسو خو هتیار خکته کولو سره کینوی او قسم په الله مالاتراوسه پورې هتیار نه دی خکته کړی ځرنګه چې تاسو ما وینئ راځئ اوس خو په کافرو باندې لښکر کشي کول دي ⑤ رسول الله ﷺ عرض وکړو چې چیرته ؟حضرت جبرائیل علیه السلام بني قریظه طرف ته اشاره وکړله ⑥ نو حضور ﷺ فوراً مسلح کیدو سره دخپلو اصحابو رضي الله عنهم سره بني قریظه طرف ته روان شو چې هلته الله جل جلاله حضور ﷺ ته فتح عطا کړله (بخاري)

**حل اللغات**:- ①يَنْفُضُ: څنډلو نې (یعنی جبرئیل علیه السلام دخپل سر نه خاورې څنډلې)

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب مرجع النبی صلی الله علیه وسلم من الأحزاب، ومخرجه إلی بنی قریظة ومحاصرته إیاهم (رقم-۴۱۱۷) ومسلم فی کتاب الجهاد والسیر/باب جواز قتال من نقض العهد، وجواز إنزال أهل الحصن علی حکم حاکم عدل أهل للحکم (رقم-۶۵ - (۱۷۶۹)

۵۸۸۱-()[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «قَالَ أَنَسٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: [۲] كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى الْغُبَارِ [۳] سَاطِعًا فِي زُقَاقِ بَنِي غَنْمٍ مَوْكِبَ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ [۴] حِينَ سَارَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ».

**ترجمه:**[۱] او د بخاري په يو حديث کې دحضرت انس ﷛ نه دا الفاظ هم منقول دي [۲] چې ګويا زه هغه غبار ګرد اوس هم وينم [۳] چې د بنو غنم په کوځو کې دحضرت جبرائيل ﷤ سره د تلونکو سورو فرشتو د جماعت په سبب هغه وخت پورته کيدی [۴] کوم وخت چې حضور ﷺ بنو قريظه طرف ته روان وو.

**حل اللغات:**- ①سَاطِعًا: أَيْ: مُرْتَفِعًا: پورته کيدلي، دوړې ختلي. ②زُقَاق: أي السِّكَّةُ: کوځې. ③ بَنِي غَنْمٍ: أي قَبِيلَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ: د انصارو يوه قبيله ده. ④مَوْكِب: أي جَمَاعَةُ رُكَّابٍ يَسِيرُونَ بِرِفْقٍ: په اسونو د سورو شهسوارانو جنګيالو ډله (د جبرئيل عليه السلام او دهغه دملګرو فرشتو ډله).

**تسهيلات:**

**قوله:** أَتَاهُ جِبْرِيلُ:

**دجبريل عليه السلام راتلل:** يعني دَ غزوه خندق دَ فارغيدونه پس حضورپاك وسله کوزه کړه اودَ غسل تيارى شروع کړه چه په دې کښې جبرائيل ﷤ راغلو او په دوړو او مسلح وو اووئې فرمائيل چه تاسو وسله کوزه کړه حالانکه فرښتې خولاتراوسه پورې مسلح دي؟ دَ فرښتوراتلل اومسلح کيدل اودَ حضورپاك امدادکول داد معجزه ظهوروو دَ غسل مطلب دانه دې چه حضورپاك غسل کړې وو بلکه دَغسل تيارى کوله چه جبرائيل ﷤ راغلو

### [۵۸۸۲] ګوتو مبارکو څخه داوبو وتلو معجزه

۵۸۸۲-()[۳][۱] «وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: عَطِشَ النَّاسُ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ [۲] وَرَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بَيْنَ يَدَيْهِ رِكْوَةٌ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا، [۳] ثُمَّ أَقْبَلَ النَّاسُ نَحْوَهُ، قَالُوا: [۴] لَيْسَ عِنْدَنَا مَاءٌ نَتَوَضَّأُ بِهِ وَنَشْرَبُ إِلَّا مَا فِي رِكْوَتِكَ، [۵] فَوَضَعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدَهُ فِي الرِّكْوَةِ، فَجَعَلَ الْمَاءُ يَفُورُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِهِ كَأَمْثَالِ الْعُيُونِ، [۶] قَالَ: فَشَرِبْنَا وَتَوَضَّأْنَا. [۷] قِيلَ لِجَابِرٍ: كَمْ كُنْتُمْ؟ [۸] قَالَ: لَوْ كُنَّا مِائَةَ أَلْفٍ لَكَفَانَا، كُنَّا خَمْسَ عَشْرَةَ مِائَةً». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت جابر ﷛ وايې مقام حديبيه کې يوه ورځ داسې وشوه چې د اوبو د شديد قلت په سبب خلق سخت تږي شول [۲] هغه وخت حضور ﷺ سره يوه لوټه وه هغه نه حضور ﷺ اودس وکړ او په هغه کې څه لږ اوبه پاتې شوې [۳] خلق د حضور ﷺ په خدمت کې حاضريدو سره عرض يې وکړو [۴] چې په لښکر کې دڅکلو او اودس کولو د پاره اوبه

[۱] ) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب مرجع النبي صلى الله عليه وسلم من الأحزاب، ومخرجه إلى بني قريظة ومحاصرته إياهم (رقم-۴۱۱۸) واحمد في المسند: ۲۱۳/۳

[۲] ) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة الحديبية (رقم-۴۱۵۲) ومسلم في كتاب الإمارة/باب استحباب مبايعة الإمام الجيش عند إرادة القتال، وبيان بيعة الرضوان تحت الشجرة (رقم-۷۳ - (۱۸۵۶) واحمد في المسند: ۳۲۹/۳

بالكل نشته بس هغه څه لږ اوبه دي چې ستاسو نه په لوټه کې پاتې شوي دي [اوښکاره ده چې په دې سره د ټولو خلقو کار نه کېږي]۵ حضور ﷺ په دې اوريدو سره خپل لاس مبارک هغه لوټه کې دننه کې نو د حضور ﷺ د ګوتو مبارکو نه اوبه داسې جاري شوي لکه دچشمې نه چې جاري شوي وي۶ د حضرت جابر ؓ بيان دی مونږ ټولو اوبه ښه وڅکلې او اودس مو وکې ۷ دحضرت جابر ؓ نه پوښتنه وشوه په هغه موقع تاسو څومره کسان وئ ۸ هغه اوويل که مونږ يولاک کسان وې نو هم هغه اوبه کافي کيدی هسې هغه وخت زمونږ تعداد پنځلس سوه وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ①رَكْوَةٌ: أَيْ: ظَرْفُ مَاءٍ: د اوبولوښی ته رکوه اوونيلې شو که هغه لوټا وی او که مشکيزه وی ②يَفُورُ: فوارې رواني شوې، اوبه راخوټکيدلې جاری شوې.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دې حديث تشريح په راروان حديث نمبر (۵۸۸۳) کښې اوګورئ

**[۵۸۸۲] د لیاروپه برکت وچ کوهي داوبو څخه ډکيدل**

۵۸۸۵-()[۵][۱]«وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَرْبَعَ عَشْرَةَ مِائَةً يَوْمَ حُدَيْبِيَةَ -[۲] وَالْحُدَيْبِيَةُ بِئْرٌ- فَنَزَحْنَاهَا، فَلَمْ نَتْرُكْ فِيهَا قَطْرَةً،[۳] فَبَلَغَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَتَاهَا، فَجَلَسَ عَلَى شَفِيرِهَا،[۴] ثُمَّ دَعَا بِإِنَاءٍ مِنْ مَاءٍ، فَتَوَضَّأَ،[۵] ثُمَّ مَضْمَضَ، وَدَعَا ثُمَّ صَبَّهُ فِيهَا،[۶] ثُمَّ قَالَ: (دَعُوهَا سَاعَةً)[۷] فَأَرْوَوْا أَنْفُسَهُمْ وَرِكَابَهُمْ حَتَّى ارْتَحَلُوا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت براء ابن عازب ؓ وايې په حديبيه کې رسول الله ﷺ سره مونږ څوارلس سوه افراد وو[۲] په حديبيه کې يو کوهي وو چې د هغه اوبه مونږ ټولو راايستلو سرد استعمال کړې وې او په هغه کې يوه قطره اوبه نه وې پاتې شوي [۳] رسول الله ﷺ ته چې معلومه شوه [چې کوهي وچ شوي دي او د اوبو ختميدلو په وجه د لښکر ټول خلق پريشانه دي] نو رسول الله ﷺ کوهي ته تشريف راوړی او د هغه په غاړه کينا ستې [۴] بيا حضور ﷺ د اودس د اوبو لوښي غوښتلو سره اودس وکې [۵] اودس نه وروسته خوله مبارکه کې اوبه واخستې او دعايې وکړله دې نه وروسته حضور ﷺ هغه آب دهن کوهي کې واچولې [۶] او وې فرمايل يوساعت د پاره کوهي پريږدئ [۷] بيا ايوساعت نه وروسته په کوهي کې دومره اوبه جمع شوي چې ا ټول لښکر والاو خپله هم وڅکلې د هغوئ څاروي هم ښه سيراب شوه او د هغه ځاي نه کوچ کولو پورې هغه کوهي نه يې اوبه اخستلې (بخاري)

**حل اللغات:-** ①فَنَزَحْنَاهَا: أَيْ: نَزَعْنَا مَاءَهَا: ټولې اوبه مو ترې راوويستلې ②شَفِيرِهَا: أَيْ: طَرَفُهَا: دونکاچې او دکوهي غاړې يا منډېر ته وائي ③مَضْمَضَ: خوله مبارکه کښې نې اوبه واچولې ④صَبَّهُ: أَيْ: مَجَّهُ: وائې چولې (يعنی دخولې مبارکې نه نې اوبه کوهی ته اوغورځولې) ⑤دَعُوهَا: أَيْ:

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب المغازي /باب غزوة الحديبية (رقم-۴۱۵۱)

اتْرُكُوهَا: پریږدئ دا کوهي، ⑥سَاعَةً: أي الْمُدَّةُ الْقَلِيلَةُ: لږوخت، ⑦فَأَرْوَوْا: أي: اسْقُوا سَقْيًا كَامِلًا: بنه ډیري ئي اوڅکلې، بنه سیراب شول ⑧ارْتَحَلُوا: أي: سَافَرُوا: واپس شو، کوچ ئي اوکړو.

**تسهیلات: قوله: شَفِيرِ:**

**د صلح حدیبیه د شرکاء په تعداد کښې تعارض:** په دې حدیث کښې دَ څوارلسو سوو دَتعداد ذکر دې خو دَ دې نه مخکښې حدیث کښې دَ پنځلسو سوو ذکر دې اودغه شان راتلونکې روایت کښې دَ څلویښتو سوو ذکر دې نو په ظاهره په دې احادیثو کښې تعارض دې؟ نو دَ دې مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.

**د اشکال درې جوابونه:** ① بعضې حضراتو وئیلی دی چه اصل تعداد دَ څوارلسو سوو نه زیات او دَ پنځلسو سوو نه کم وو. کوم راوی چه کسر شمیرکولو سره بیان کړې دې هغه دَ پنځلسو سوو بیان کړې دې او چا چه کسر حذف کړې دې هغه څوارلس سوه ذکر کړی دی.

② اهل حدیبیه په مختلف ډلو مشتمل وو. داسې به کیدل چه دَ اوبو دَ پاره به څه ډلې راتلې نو څه ډلې به اوبه اوړلو سره تللې. په دې صورت کښې به کله مجموعی تعداد پنځلس سوه کیدو نو کتونکی دَ پنځلسو سوو ذکر اوکړو او څه وخت به څوارلس سوه کیدو نو هغه راوی څوارلس سوه ذکر کړل. لکه چه دا دَ راویانو په مختلف احوالو باندې محمول دی.

③ هر یو راوی یقینی تعداد نه دې بیان کړې بلکه خپله خپله اندازه او تخمینه ئې لګولې ده. (التعلیق الصبیح: ۲۷۴/۷).

**قوله ثُمَّ قَالَ دَعُوهَا سَاعَةً:**

**د بلې معجزې ظهور:** دَدې مطلب دادې چه زما توکانړې کوهی کښې پریوتو سره فوری دَ کوهی نه اوبه راویستل مه شروع کوئی بلکه څه وخته پورې حصار شنی چه تبرک خپل اثر پوره کړی او کوهې ډك شی بیا اوبه راوباسئی. په دې حدیث کښې دَ یوې بلې معجزې ذکر کړې شوې دې کومه چه دَ ترجمې نه واضح ده.

**[۵۸۸۴] په اوبو کښې د برکت معجزه**

۵۸۸۴-(۱) [۱۰] ①وَعَنْ عَوْفٍ، عَنْ أَبِي رَجَاءٍ، «عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ، قَالَ: ② كُنَّا فِي سَفَرٍ مَعَ النَّبِيِّ فَاشْتَكَى إِلَيْهِ النَّاسُ مِنَ الْعَطَشِ، ③ فَنَزَلَ، فَدَعَا فُلَانًا -كَانَ يُسَمِّيهِ أَبُو رَجَاءٍ وَنَسِيَهُ عَوْفٌ- ④ وَدَعَا عَلِيًّا، فَقَالَ: (اذْهَبَا فَابْتَغِيَا الْمَاءَ). ⑤ فَانْطَلَقَا، فَتَلَقَّيَا امْرَأَةً بَيْنَ مَزَادَتَيْنِ أَوْ سَطِيحَتَيْنِ مِنْ مَاءٍ. ⑥ فَجَاءَا بِهَا إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَاسْتَنْزَلُوهَا عَنْ بَعِيرِهَا،

[۱] اخرجه البخاري في كتاب التيمم/باب: الصعيد الطيب وضوء المسلم، يكفيه من الماء(رقم-۳۴۴) ومسلم في كتاب المساجد/باب قضاء الصلاة الفائتة، واستحباب تعجيل قضائها (رقم-۳۱۲ - (۶۸۲)

**ترجمه:** ۱ او حضرت عوف تابعي رحمه الله د حضرت ابورجاء تابعي نه او هغه د حضرت عمران ابن حصين صحابي نه روايت کوي حضرت عمران بيان وکړو ۲ په يو سفر کې مونږ څه صحابه رضي الله عنهم رسول الله ﷺ سره وو په يوه موقع خلقود اوبو نه کيدو په سبب حضور ﷺ ته د تندې شکايت وکړ ۳ په دې اوريدو سره حضور ﷺ راکوزشو او فلانی سړی يې راوبللو د هغه فلاني سړي نوم ابورجاء خو بيان کړی وو ليکن هغه نه وروسته راوي عوف نه د هغه سړي نوم هير شو [څکه هغه هغه سړي په لفظ فلان سره تعبير وکړ] ۴ او حضور ﷺ حضرت علي رضي الله عنه هم طلب کړ او دواړو ته يې حکم وکړ چې لاړشئ او اوبه تلاش کړئ ۵ نو هغه سړي او حضرت علي دواړه د اوبو تلاش کې اخوا دېخوا ګرځيدل هغوئ يوځای کې يوه ښځه وليده چې په اوښ باندې زوړند دوه مشکيزو په منځ کې ناسته وه يا داچې د اوبو دوو سطيحو په منځ کې ناسته وه ۶ دواړو حضراتو هغه ښځه د هغه مشکيزو سره رسول الله ﷺ ته راوسته بيا هغه ښځه څرنګه چې بعضې حضراتو ويلي دي د هغې مشکيزې يې د اوښ نه خکته کړې.

**حل اللغات:-** ① الْعَطَشِ: تنده. ② مَزَادَتَيْنِ: دَ توښې کيخودلو لوښی ته وائی دلته مشکيزه مراد ده مزادة غټې مشکيزې ته وائی. ③ سَطِيحَتَيْنِ: دا هم مشکيزه ته وائی په کومه چه دَ څرمن لاندې باندې دوه مخونه وی. سطيحة وړې مشکيزې ته وائی. ④ فَاسْتَنْزَلُوهَا: أَيْ: طَلَبُوا مِنْهَا أَنْ تَنْزِلَ عَنِ الْبَعِيرِ: دهغې ښځې نه ئې مطالبه اوکړه چه د اوښ نه ښکته کوزه شی. په دې معنی سره ها ضمير المرأة ته راجع دې په دويمه معنی کښې ضمير الْمَزَادَةِ ته راګرځی.

۱ وَدَعَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِإِنَاءٍ، ۲ فَفَرَّغَ فِيهِ مِنْ أَفْوَاهِ الْمَزَادَتَيْنِ وَنُودِيَ فِي النَّاسِ: اسْقُوا، ۳ فَاسْتَقَوْا قَالَ: فَشَرِبْنَا عِطَاشًا أَرْبَعِينَ رَجُلًا، حَتَّى رَوِينَا، ۴ فَمَلَأْنَا كُلَّ قِرْبَةٍ مَعَنَا وَإِدَاوَةٍ، ۵ وَايْمُ اللَّهِ لَقَدْ أُقْلِعَ عَنْهَا ۶ وَإِنَّهُ لَيُخَيَّلُ إِلَيْنَا أَنَّهَا أَشَدُّ مِنْهَا حِينَ ابْتَدَأَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ رسول الله ﷺ يو لوښي را وغوښتلو ۲ او په هغه کې د دواړو مشکيزو د خلو نه د اوبو اچولو حکم وکړ او بيا خلقو ته اواز وشو چې راځئ اوبه اوڅکئ [او د خپل خپل ضرورت مطابق واخلئ] ۳ نو ټولو خلقو اوبه وڅکلې [او خپل خپل لوښي يې هم په ښه شان ډک کړل] حضرت عمران رضي الله عنه وايي هغه وخت مونږ خلق څلويښت کسان وو چې سخت تږي وو مونږ ټولو د هغه لوښي نه ښه په مړه خيټه اوبه وڅکلې ۴ او خپل خپل مشکونه او بټکان چې زمونږ سره وه هغه موډک کړه ۵ قسم په الله هرکله چې مونږ اوبه اخستو اخستو سره هغه مشکيزې نه لرې شو ۶ نو مونږ محسوسه کړه چې مشکيزه د مخکې نه زياته ډکه وه (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ⑤ فَفَرَّغَ: أَيْ: صَبَّ: راواني رولې، ⑥ رَوِينَا: په مړه خيټه مو اوبه اوڅکلې، ښه خړوب شو تنده مو ماته شوه. ⑦ وَايْمُ اللَّهِ: په الله قسم! ⑧ أُقْلِعَ: أَيْ: انْكَفَتِ الْجَمَاعَةُ: اخوا شو، جدا شو صحابه کرام. ⑨ لَيُخَيَّلُ: أَيْ: لَيُشَبَّهُ: مونږه محسوسه کړه.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَتَلَقَّيَا امْرَأَةً بَيْنَ مَزَادَتَيْنِ أَوْسَطِيحَتَيْنِ مِنْ مَاءٍ،

**د مشكيزې څخه د څلوېښتو كسانو اوبه څكل:** دلته دَ الفاظو په اداكولوكښې راوی ته شك شوې دې دَ هغه ښځې قصه په بخاری اومسلم شريف كښې ډيره اوږده ده مگر دلته مختصر ذكركړې شوې ده دَهغې دَمشكيزې نه ۴۰ صحابه كرامـو اوبـه اوڅكلې اوډيرزيات لوښي ترې هم ډك كړل مگر په اوبو كښې كمې رانغلو بلكه دَمعجزه په ظهورسره اوبو كښې زياتوالي اوشو.

**[۵۸۸۵]د و نود اطاعت معجزه**

۵۸۸۵-()[۱۷]﴿۱﴾«وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سِرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حَتَّى نَزَلْنَا وَادِيًا أَفْيَحَ ﴿۲﴾ فَذَهَبَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقْضِي حَاجَتَهُ، ﴿۳﴾ فَلَمْ يَرَ شَيْئًا يَسْتَتِرُ بِهِ، ﴿۴﴾ وَإِذَا شَجَرَتَيْنِ بِشَاطِئِ الْوَادِي، ﴿۵﴾ فَانْطَلَقَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَى إِحْدَاهُمَا فَأَخَذَ بِغُصْنٍ مِنْ أَغْصَانِهَا فَقَالَ: ﴿۶﴾ (انْقَادِي عَلَيَّ بِإِذْنِ اللَّهِ) ﴿۷﴾ فَانْقَادَتْ مَعَهُ كَالْبَعِيرِ الْمَخْشُوشِ الَّذِي يُصَانِعُ قَائِدَهُ،

**ترجمه:** ﴿۱﴾ او حضرت جابر ﷺ وايي يووار مونږ درسول الله ﷺ سره سفر كوی يوخاي ته رسيدو سره يو وسيع وعريض ميدان كې خكته شو ﴿۲﴾ او رسول الله ﷺ قضائي حاجت د پاره تشريف يووړلو ﴿۳﴾ هلته حضور ﷺ ته د پاڼوغونډي وغيره په شان څه شی په نظر رانغلی چې د هغه په پناه كې حضور ﷺ د خلقو د نظر نه پټيدو سره قضائي حاجت د پاره كيني ﴿۴﴾ اچانك دحضور ﷺ نظر په دوو ونو باندې راغې چې د ميدان په غاړه ولاړې وې ﴿۵﴾ رسول الله ﷺ په هغه كې يوې ونې ته ورسيدی او د هغه يوه څانگه نيولو سره يې وفرمايل ﴿۶﴾ د الله ﷺ په حكم سره پناه جوړولو د پاره څما اطاعت وكړه ﴿۷﴾ په دې اوريدو سره هغه و نه د حضور ﷺ مخې ته په زمكه داسې راټيټه شوه لكه مهار لگيدلی اوښ چې د خپل شړونكي اطاعت كوي

**حل اللغات:**- ① أَفْيَحَ: أَيْ: وَاسِعًا: وسيع وادئ ته وائی ② بِشَاطِئِ: أَيْ: بِطَرَفِهِ: په غاړه، په طرف، ③ انْقَادِي عَلَيَّ: زما اطاعت اوكړه ،يعنى په ما راټيټه شه چه پرده مې اوشي، ④ الْمَخْشُوشِ: وَهُوَ عُوَيْدَةٌ تُجْعَلُ فِي أَنْفِ الْبَعِيرِ: هغه وړوكى شان لرگې چه دَ اوښ په پوزه كښې لگوى دې دپاره چه هغه حكم منونكې وى اورابنكل نې آسان وى دپيزوان اچونكى اوښ سره تشبيه وركړې شوې ده ⑤ يُصَانِعُ: دَ اطاعت په معنى كښې دې أَيْ: يَنْقَادُلَهُ وَيُوَافِقُهُ: چه دهغه تابع وى ⑥ قَائِدَهُ: اوښ رابنكونكى ته قائدوائی

﴿۱﴾ حَتَّى أَتَى الشَّجَرَةَ الْأُخْرَى فَأَخَذَ بِغُصْنٍ مِنْ أَغْصَانِهَا، ﴿۲﴾ فَقَالَ: (انْقَادِي عَلَيَّ بِإِذْنِ اللَّهِ). فَانْقَادَتْ مَعَهُ كَذَلِكَ، ﴿۳﴾ حَتَّى إِذَا كَانَتْ بِالْمَنْصَفِ مِمَّا بَيْنَهُمَا قَالَ: ﴿۴﴾ (الْتَئِمَا عَلَيَّ بِإِذْنِ اللَّهِ). فَالْتَأَمَتَا، ﴿۵﴾ فَجَلَسْتُ أُحَدِّثُ

۱) اخرجه مسلم فى كتاب الزهد والرقائق/باب حديث جابر الطويل وقصة أبى اليسر (رقم-(۳۰۱۲)

نَفْسِي، فَحَانَتْ مِنِّي لَفْتَةٌ، ٦ فَإِذَا بِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُقْبِلًا، ٧ وَإِذَا الشَّجَرَتَيْنِ قَدِ افْتَرَقَتَا، ٨ فَقَامَتْ كُلُّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا عَلَى سَاقٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ بيا حضور ﷺ دويمې ونې ته ورسيدی او د هغه يوه څانګه نيولو سره يې وفرمايل ٢ د الله ﷻ په حکم سره څما اطاعت وکړه د مخکې ونې په شان دي ونې هم فورا اطاعت وکی [او په زمکه راکوزشوه] ٣ دي نه رسول الله ﷺ د هغه دواړو و نو د درمياني فاصلې منځ ته رسيدو سره وفرمايل ٤ اوس تاسو دواړي د الله ﷻ په حکم سره د يوبل ته نژدې راتلو سره څپلو کې داسې يوځاي شئ چې زه ستاسو لاندې پټ شم نو هغه دواړي ونې يوځاي شوې [او حضور ﷺ د هغه دواړو و نو پناه کې قضائي حاجت نه فارغه شو] ٥ حضرت جابر ﷺ وايي زه دا واقعه ليدو سره حيران وم او دي عجيبه غريبه کرشمې متعلق مې په څپل زړه کې خبرې کولې [يعنی د الله ﷻ په قدرت کې غور وفکر کولو سره سوچ مې کولو چې الله ﷻ د څپل محبوب نبي په ذريعه داڅرنګه معجزه ښکاره کړه يا داچې دي واقعې نه جدا زه په څپل شوچ کښې غرق پروت وم] ٦ چې اچانك [څما نظر يو طرف ته پورته شو نو] رسول الله ﷺ مې تشريف راوړلو سره اوليدلو ٧ او چې ګورم چې هغه دواړه ونې يوي بلې نه جدا کيدو سره په څپل څپل ځاي ولاړې دي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ⑥بِالْمَنْصَفِ: مينځ اوبيخ ته وائی. أى نِصْفُ الطَّرِيقِ: يعنی د لارې مينځ، ⑧الْتَأَمَا: أَيْ: تَقَارَبَا: رانزدې شي، يوځاي شئ دواړه، ⑨فَحَانَتْ: أَيْ: فَظَهَرَتْ: صادر شو واقع شو ⑩لَفْتَةٌ: ناڅاپه نظر، کتل.

**تسهيلات:** نوټ: د ګرانوټکووضاحت په حل اللغات کښې اوشو اودحديث مفهوم د تشريحی ترجمې څخه واضح دې.

**[٥٨٨٦] زخم څخه دشفا ملاويدو معجزه**

٥٨٨٦ - (١)[٨] ١ «وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ، قَالَ: رَأَيْتُ أَثَرَ ضَرْبَةٍ فِي سَاقِ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ٢ فَقُلْتُ: يَا أَبَا مُسْلِمٍ مَا هَذِهِ الضَّرْبَةُ؟ ٣ قَالَ: ضَرْبَةٌ أَصَابَتْنِي يَوْمَ خَيْبَرَ فَقَالَ النَّاسُ: ٤ أُصِيبَ سَلَمَةُ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَنَفَثَ فِيهِ ثَلَاثَ نَفَثَاتٍ، ٥ فَمَا اشْتَكَيْتُهَا حَتَّى السَّاعَةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ اوحضرت ابن ابي عبيد تابعي وايي يوه ورځ مادحضرت سلمه ابن اکوع پنډې باندې دزخم نښه ؤليده ٢ نو دهغه نه مې پوښتنه وکړه چې اې ابومسلم دزخم دا څرنګه نښه ده ٣ هغه اوويل دازخم دخيبرپه جنګ کښې راغلی ؤو اوزخم هم دومره سخت ؤو چې خلقو کښې مشهوره شوه ٤ چې سلمه په کار راغلی [يعنی دزخم تاب نه راوړلو سره شهيد شو ليکن وشوه داسې] چې زه دې زخم سره دنبي کريم ﷺ په خدمت کښې ورسيدم حضور ﷺ دازخم درې څله دم کړلې ٥ اودهغه ته برکته زخم يودم داسې ښه شو چې بياتر اوسه

(١) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة خيبر (رقم-٤٢٠٦) كتاب الطب/باب كيف الرقى (رقم-٣٨٩٤)

پورې ددي نه ماته هيڅ تکليف نه دی شوی. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① أَثَرَ ضَرْبَةٍ: د وهلو د زخم اثر. ② نَفَثَ: دم ئې کړو. ③ مَا اشْتَكَيْتُهَا: ما دهغې نه تر اوسه پورې څه فرياد اوشکايت نه دې کړې يعنی څه تکليف مې نه دې محسوس کړې.

**[۵۸۸۷] دنادیده واقعې خبر ورکولو واقعه**

۵۸۸۷-() [۴] ① وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «نَعَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - زَيْدًا وَجَعْفَرًا وَابْنَ رَوَاحَةَ لِلنَّاسِ قَبْلَ أَنْ يَأْتِيَهُمْ خَبَرُهُمْ فَقَالَ: ③ (أَخَذَ الرَّايَةَ زَيْدٌ فَأُصِيبَ، ④ ثُمَّ أَخَذَ جَعْفَرٌ فَأُصِيبَ، ⑤ ثُمَّ أَخَذَ ابْنُ رَوَاحَةَ فَأُصِيبَ - ⑥ وَعَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ - حَتَّى أَخَذَ الرَّايَةَ سَيْفٌ مِنْ سُيُوفِ اللَّهِ - ⑦ يَعْنِي خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ - حَتَّى فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ)». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1]

**ترجمه:** ① اوحضرت انس ﷛ وايي ② نبی کريم ﷺ دزيد ﷛ جعفر ﷛ اوابن رواحه ﷛ دشهادت حال ددي دري واړو باره کښې دخبر راتلوڅخه مخکې خلقوته اوروليو ③ چې زيد ﷛ جنډه اوچت کړې اوهغه شهيد شو ④ بيا جعفر ﷛ جنډه اوچت کړې اوهغه هم شهيد شو ⑤ بيا ابن رواحه ﷛ جنډه واخستې اوهغه هم شهيد شو ⑥ حضور ﷺ دابيان کوی اودهغه شهداؤ په غم کښې دسترګوڅخه اوښکې جاري وې بيا حضور ﷺ وفرمايل آخرهغه سړی جنډه واخستې چې دالله دتوروڅخه يوه توره ده ⑦ حضرت انس ﷛ ياوروسته ديوراوي بيان دی چې هغه نه دحضور ﷺ مراد دخالد ابن وليد ﷛ ذات ؤ ددې پورې چې الله تعالی مسلمانانو ته فتح عطاء کړله. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① نَعَى: دَ چا دَ مرګ خبر کول او خبر ورکولوته نعی وائی ② تَذْرِفَانِ: أَيْ تَسِيلَانِ دَمْعًا: اوښکې ئې بهيولې، ژړل ئې.

**تسهيلات:**

**قوله:** نَعَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - زَيْدًا وَجَعْفَرًا..الخ:

**د حديث پس منظر او غزوه موته:** داقصه غزوه موته سره متعلق ده دَ شام په زمکه باندې موته دَ يوځائی نوم دې. په دې مقام باندې په ۸ هجری کښې يوزبردست جنګ شوې وو دَ دريو زرو صحابه کرامو دَ دريو لاکهو نه زياتو روميانوسره مقابله شوې وه حضورپاك پخپله په مدينه کښې وو مګر دَ معجزه دَ ظهور په توګه الله تعالی دَ ميدان جنګ نه حجابات اخواکړل او حضورپاك منبرشريف باندې کيناستوسره ميدان کتلو.

**د دريو صحابؤ د شهادت خبر ورکول:** حضورپاك په ترتيب سره حضرت زيد ﷛ حضرت جعفر ﷛ او حضرت عبدالله بن رواحه ﷛ اميران جوړکړې وو. دا دريواړه شهيدان شو نو دې نه پس حضرت خالدبن وليد ﷛ جنګی کمان لاس کښې واخستو اوفتح حاصلولو سره واپس راغلو. فتح داسې چه دکافرانو دَ ګيرې نه مسلمانان بچ اووتل او کافران شاته شو.

[1] اخرجه البخاري فی کتاب المغازی/باب غزوة مؤتة من أرض الشام (رقم-۴۲۶۲)

## [۵۸۸۸] په غزوه حنين كښې واقع كيدونكې معجزه

۵۸۸۸ -() [۲۰] [۱] «وَعَنْ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ حُنَيْنٍ، [۲] فَلَمَّا الْتَقَى الْمُسْلِمُونَ وَالْكُفَّارُ [۳] وَلَّى الْمُسْلِمُونَ مُدْبِرِينَ، [۴] فَطَفِقَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَرْكُضُ بَغْلَتَهُ قِبَلَ الْكُفَّارِ [۵] وَأَنَا آخِذٌ بِلِجَامِ بَغْلَةِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۶] أَكُفُّهَا إِرَادَةَ أَنْ لَا تُسْرِعَ،

**ترجمه:** [۱] اوحضرت عباس ﷺ وايي زه د رسول كريم ﷺ سره غزوه حنين كښې شريک ووم [۲] يوه موقع باندې هركله چې د مسلمانانو اوكافرو په منځ كښې شديد خون ريزي وشوه [۳] نوشاكولو سره مسلمانان تيښتې ته تيار شول [۴] دانازک صورت حال ليدو سره رسول كريم ﷺ خپلې غاترې ته پونده وركړله او بلاخوف د كفارو طرف ته ورمخكې كيدل يې شروع كړل [۵] هغه وخت ما د رسول الله ﷺ د غاترې واګې نيولې وې [۶] اوپه دې خيال مې منع كوله چې هغه تيزي سره چيرته كافرو كښې ورننه ننو ځي.

**حل اللغات:-** ① فَطَفِقَ: أَيْ: شَرَعَ: شروع شو (نبی علیه السلام). ② يَرْكُضُ: أَيْ: يُحَرِّكُ بِرِجْلِهِ: اس له پونده وركولو سره زغلولو ته ركض وائي. دلته د قچر ذكر دې.

[۱] وَأَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ آخِذٌ بِرِكَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] (أَيْ عَبَّاسُ! نَادِ أَصْحَابَ السَّمُرَةِ). [۳] فَقَالَ عَبَّاسٌ - وَكَانَ رَجُلًا صَيِّتًا - فَقُلْتُ بِأَعْلَى صَوْتِي: [۴] أَيْنَ أَصْحَابُ السَّمُرَةِ؟ فَقَالَ: وَاللَّهِ لَكَأَنَّ عَطْفَتَهُمْ حِينَ سَمِعُوا صَوْتِي عَطْفَةُ الْبَقَرِ عَلَى أَوْلَادِهَا. [۵] فَقَالُوا: يَا لَبَّيْكَ يَا لَبَّيْكَ، قَالَ: فَاقْتَتَلُوا وَالْكُفَّارَ [۶] وَالدَّعْوَةُ فِي الْأَنْصَارِ يَقُولُونَ: يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ! يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ!

**ترجمه:** [۱] او د حضور ﷺ د تره زوی ابوسفيان بن الحارث [چې د هغه اصلي نوم مغيره بن حارث بن عبدالمطلب ؤو د اظهار عقيدت محبت او حفاظت په طور] د حضور ﷺ ركاب ټينګ نيولې ؤو د دې دوران كښې رسول كريم ﷺ زه مخاطب كولو سره راته وفرمايل [۲] اې عباس ﷺ اصحاب سمره ﷺ ته اواز وكې [۳] حضرت عباس ﷺ چې يو بلند اوازوالا سړى ؤو وايي ما د حضور ﷺ په حكم په چغه سره اوويل [۴] چيرته دي اصحاب سمره ﷺ اياتاسو خپل هغه بيعت هير كړې چې تاسو د حضور ﷺ د مدد او حفاظت د پاره د ونې لاندې كړې ؤو حضرت عباس ﷺ وايي قسم په الله زما د اواز اوريدو سره اصحاب سمره ﷺ داسې په منډه راواپس شو څرنګه چې غواګاني د زيات محبت او شوق نه خپلو بچو طرف ته په منډه واپس راځي [۵] اوهغه اصحاب سمره وو ﷺ ونيل اې قومه مونږ حاضر يو اې قومه مونږ حاضر يو نو مسلمانان د نوي سره همت او جوش سره كافرو سره په جنګ شو [۶] او انصار صحابه ﷺ خپلو كښې يو بل بللو او حوصلې وركولو د پاره د غازيانو په شان داسې بلنه شروع كړه چې اې د انصارو ډلې اې د انصارو ډلې

[۱] اخرجه مسلم في كتاب الجهاد والسير/باب في غزوة حنين (رقم-۷۶ - (۱۷۷۵) واحمد في المسند: ۱/۲۰۷

**حل اللغات:** -③أَصْحَابَ السَّمُرَةِ: سمرة دكيكر ونې ته وائي په حديبيه كښې د كيكر د ونې لاندې د مرګ بيعت كونكي صحابه كرام په اصحاب السمرة نوم سره يادولې شي. ④رَجُلًا صَيِّتًا: أَيْ: قَوِيُّ الصَّوْتِ: تيز آواز والا. ⑤عَطْفَتُهُمْ: عطفة واپس راتاويدوته وائي. أَيْ: رَجْعَتُهُمْ: دهغوى راواپس كيدل.

[۱]قَالَ: ثُمَّ قُصِرَتِ الدَّعْوَةُ عَلَى بَنِي الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ[۲]فَنَظَرَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ عَلَى بَغْلَتِهِ كَالْمُتَطَاوِلِ عَلَيْهَا إِلَى قِتَالِهِمْ.[۳] فَقَالَ: هٰذَا حِينَ حَمِيَ الْوَطِيسُ.[۴] ثُمَّ أَخَذَ حَصَيَاتٍ، فَرَمَى بِهِنَّ وُجُوهَ الْكُفَّارِ[۵] ثُمَّ قَالَ: (انْهَزَمُوا وَرَبِّ مُحَمَّدٍ)[۶] فَوَاللهِ مَا هُوَ إِلَّا أَنْ رَمَاهُمْ بِحَصَيَاتِهِ،[۷] فَمَا زِلْتُ أَرَى حَدَّهُمْ كَلِيلًا وَأَمْرَهُمْ مُدْبِرًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] همت نه كار واخلي اوپه دشمن وريرېوزي بيا داچغه قبيله بنو حارث بن خزرج پورې محدوده شوه ايعنې صرف اولاد حارث چې دانصارو دټولو نه لويه قبيله ده اې دحارث اولاده اې دحارث اولاده ويلو سره بلنه شروع شوه ا[۲] دې دوران كښې رسول كريم ﷺ په خپلې غاترې باندې ديو طاقتور اوقابو يافته سوار په شان جمع شوى ؤو جنګيدونكو مسلمانانو باندې نظراچولو [اوبعضې حضراتو دكالمتطاول دامعنى بيان كړې ده چې غاترې باندې څټ پورته كولو سره دليدونكو په شان ناست ؤو يعنى څرنګه چې څوک دځان نه لرې شى ليدو دپاره څټ پورته كولو سره نظر پرې اچوي دغه شان حضور ﷺ هم صحابه ﷺ ته څټ پورته كولو پورته كولو سره كتل ا[۳] اوفرمايل يې داوقت دجنګ دګرميدو دى [۴] بيا حضور ﷺ څه شګې په لاس كښې اوچتې كړلې [او شَاهَتِ الْوُجُوهُ ويلو سره هغه شګې] يې دكافرو طرف ته وويشتلې [۵][يا خو دتفاول له مخه ياپيش ګوئې په طور يې] وفرمايل دمحمد ﷺ په رب مې دې قسم وي كافروته شكست وشو[۶] حضرت عباس ﷺ وايي قسم په الله داشكست چې كافروته وشو دحضور ﷺ دشګې ويشتلو په سبب وشو[۷] شګې ويشتلو نه وروسته آخره پورې مابرابر كتل چې دكافرو تيزې اوشدت سره چليدونكې تورې سپكې اوپڅې كيدلې اودهغوى انجام دذلت اوخوارى نه ډک شوى وو

**حل اللغات:** -⑥قُصِرَتِ الدَّعْوَةُ: قُصرت دمجهول صيغه ده، أَيْ: اقْتَصَرَتْ وَانْحَصَرَتْ: محدوده شوه، بس والې اوشو ،يعنى د صحابو مختلف ډلې رابللې شوې خو د رابللو خبره په قبيله بنوحارث باندې اودريده بيا صرف هم دوى رابللې شو نورې نه، ⑦كَالْمُتَطَاوِلِ: ددې دوه مطلبه دى يا دا چه د يوطاقتور او قابوكونكي شهسوار په شان. يا دا چه شهسوار په اس ناست وى او څټ اوږد اوږد كوى ګورى چه جنګيالى كوم كوم ځاى كښې جنګيږى ⑧حَمِيَ الْوَطِيسُ: حمى ګرميدوته وائي، وطيس تنورته هم وائي اوپه هغې كښې د اورشغلوته هم وائي ،يعنى دا وقت جنګ ښه ګرم دې، ⑨ حَصَيَاتٍ: حصى نرو نرو كاڼرو ته وائي دلته ترې شګې مراد دى ⑩انْهَزَمُوا: ماتې يا شكست اوخوړلو كافرانو، ⑪ حَدَّهُمْ: أَيْ: بَأْسَهُمْ وَحِدَّتَهُمْ وَسُيُوفَهُمْ وَشِدَّتَهُمْ: يعنى دكافرانو جنګى سختوالې اود تورو تيزى. ⑫كَلِيلًا: أَيْ: ضَعِيفًا: د كمزورى كيدو او سست كيدوپه معنى كښې دې يعنى د هغوى تيزى سسته شوه. ⑬مُدْبِرًا: أَيْ: وَحَالَهُمْ ذَلِيلًا: يعنى دهغوى معامله شاته كيدو اود ذلت طرف ته لاړه

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَمَّا الْتَقَى الْمُسْلِمُونَ وَالْكُفَّارُ وَلَّى الْمُسْلِمُونَ مُدْبِرِينَ:

**د غزوه حنين مختصر بيان:** دَفتح مکه نه پس په ۸ هجری کښې دَ غزوه حنين واقعه پيښه شوه. دَهغه ځائې خلقو غوښتل چه په مسلمانانو باندې حمله اوکړی. رسول الله ﷺ روميې شو اودَدولس زرولښکر ئې واخستلواول ئې په حنين اوبيا اوطاس اوبياپه طائف کښې جنګ اوکړو. په وادی حنين کښې په شروع کښې عارضی ماتې خوړلې وه صحابه کرام ګډ وډ شوې وو. حضورپاك سره نيزدې يوځو صحابه کرام پاتې شوې وو. حضور پاك يوقدم شاته شوې نه دې بلکه هم وړاندې روان وو. حضرت عباس ؓ دَ منع کولوکوشش کولو بيادَ الله تعالى امداد راغلو او کافرانوماتې اوخوړله. حضورپاك يوموټې شګه په کافرانو باندې ورواشيندله. په دې سره دَمعجزې ظهوراوشو. دَ آسمان نه فرښتې راکوزې شوې دې سره هم دَ معجزې ظهوراوشو. هم دا قصه حضرت عباس ؓ بيان کړې ده.

**قوله:** عَطْفَةُ الْبَقَرِ:

**د عطفة البقر سره د تشبيه ورکولو وجه:** په ځناوروکښې غوا دَ خپل بچی دَپاره بالکل ليونې وی بعضې وخت دَ خپل کور ټول خلق هم وهی او په خپل وړوکی بچی باندې راتيته وی. دلته دَ صحابه کرامو په تيزئی سره راتلل اودَ حضورپاك نه چاپيره راجمع کيدل اوبيا دَ حضورپاك دَ حفاظت دَپاره لکه دَ ليونو اودريدلوته تشبيه دَ غوادَخپل بچی طرف ته متوجه کيدلوسره ورکړې شوې ده.

**قوله:** وَالدَّعْوَةُ فِي الْأَنْصَارِ:

**د مذکوره جملې مطلب:** يعنی صرف انصاروته دَ جنګيدلودعوت ورکړې کيدې شو چه اې انصارو وړاندې شئی اوښه اوجنګيږئی.

**قوله:** قُصِرَتِ الدَّعْوَةُ:

**د مخصوص دعوت آغاز:** يعنی انصاروته دَ جنګيدلودَعام دعوت ورکولونه پس بياداسې ترتيب جوړ کړې شو چه دَانصارودَخاص خاص قبيلوخلق به دَ جنګيدلودَپاره راغوښتلې شو مثلاً بنوحارث بن خزرج پورې دا دعوت محدودشو چه تاسو وړاندې شئی او ښه په زور اوشور سره او جنګيږئی.

**قوله:** كَالْمُتَطَاوِلِ:

**د جنګ نظاره کتل:** حضورپاك دَ جنګ نظاره کتل غوښتل په دې وجه ئې سټ مبارك اوچت کړو ميدان جنګ ته ئې کتل.

**قوله: هَذَا حِينَ حَمِيَ الْوَطِيسُ:**

د.. هذا.. په ترکیب کښې دوه اقوال: ① هذا اشاره ده کوم چه مبتداء ده. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه ډیر واضح دادی چه هذامبتداء وی اوحین دَدې خبروی لیکن حین به مبنی علی الفتح وی ځکه چه دا مبنی دَ اصل فعل طرف ته مضاف دې. حمی فعل دې اوالوطیس دَدې فاعل دې. عبارت به داسې شی ای هذاالزمان زمان اشتدادالحرب. یعنی دغه وخت جنګ ښه ګرم وو. وائی چه دا جمله دَ ټولونه اول حضورپاك استعمال کړې ده عربودانه پیژندله. دَحضورپاك دَاستعمال نه پس ډیره مشهوره شوه.

② علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دَدې خبر محذوف دې کوم چه القتال دې. عبارت داسې دې هذاالقتال حین حمی الوطیس ای هذاالقتال حین اشتدالحرب

**[۵۸۸۹]په غزوه حنین کښې د نبی کریم ﷺ ځوان مردي**

۵۸۸۹-()[۳۱] ① وَعَنْ أَبِي إِسْحَاقَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَجُلٌ لِلْبَرَاءِ: ② يَا أَبَا عُمَارَةَ! فَرَرْتُمْ يَوْمَ حُنَيْنٍ؟ ③ قَالَ: لَا وَاللَّهِ مَا وَلَّى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ④ وَلَكِنْ خَرَجَ شُبَّانُ أَصْحَابِهِ لَيْسَ عَلَيْهِمْ كَثِيرُ سِلَاحٍ، ⑤ فَلَقُوا قَوْمًا رُمَاةً لَا يَكَادُ يَسْقُطُ لَهُمْ سَهْمٌ، ⑥ فَرَشَقُوهُمْ رَشْقًا مَا يَكَادُونَ يُخْطِئُونَ، ⑦ فَأَقْبَلُوا هُنَاكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

**ترجمه:** ① اوحضرت ابو اسحاق تابعي روایت کوي په یوه موقع یوسړی حضرت براء ابن عازب صحابي رضی الله عنه نه پوښتنه وکړه ② اې ابوعماره ایادا رښتیادي چې تاسو خلق غزوه حنین کښې ددشمن دمقابلې نه تښتیدلی وئ ③ حضرت براء رضی الله عنه جواب ورکړو نه قسم په الله رسول کریم ﷺ هیڅ کله شا نه وه خو دلې ④ صرف دومره شوی وو چې دحضور ﷺ ځوخلمي صحابه چې هغوی سره زیات هتیار (اسلحه) نه وُو ⑤ اچانك یوتیر آنداز قوم بنو هوازن سره مقابله وشوه دهغه قوم خلق داسې خطرناک تیر آندازان وُو چې دهغوی تیربه په زمکه نه پریوتلې [یعنی نښه به یې خالي نه تله] ⑥ هغه خلقو په ځوانانو صحابه رضی الله عنهم باندې نیزې ورول شروع کړل نودهغوی هیڅ تیرنه خطاکیدې ⑦ هغه وخت چې ځلمي صحابه ددشمن دمخې نه اخوا کیدو سره رسول کریم ﷺ له ته راغلل.

**حل اللغات:-** ① مَاوَلَّى: شاکړې نې نه، تښتیدلې نه وو ② فَرَشَقُوهُمْ: أَيْ: فَرَمَوْهُمْ: هغوی یعنی کافرانو په غشو ویشتل شروع کړل صحابه کرامو له. ③ رَشْقًا: مفعول مطلق دې یعنی ډیر غشی نې پرې اوورولو، دغشو باران نې پرې اوکړو.

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب قول الله تعالی: {ویوم حنین إذ أعجبتكم كثرتكم فلم تغن عنكم شيئا وضاقت عليكم الأرض بما رحبت ثم وليتم مدبرين. ثم أنزل الله سكينته} [التوبة: ۲۶]- إلى قوله - {غفور رحيم} [البقرة: ۱۷۳][رقم-۴۳۱۵) ومسلم فی کتاب الجهاد والسیر /باب فی غزوة حنین (رقم-۷۸ - (۱۷۷۶)

١ وَرَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَأَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ يَقُودُهُ، ٢ فَنَزَلَ وَاسْتَنْصَرَ، وَقَالَ: ٣ «أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ» ثُمَّ صَفَّهُمْ». ٤ رَوَاهُ مُسْلِمٌ، وَلِلْبُخَارِيِّ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** ١ اوحضور ﷺ هغه وخت په خپل سپین قچر (دلدل) باندې سپوروو اوابوسفیان ابن حارث دغاتري واګې نیولی مخکې ؤو ٢ حضور ﷺ دجنګ داپریشان کن نقشه اودخپل صحابه ﷺ پریشاني لیدو سره دغاتري نه راکوزشو اوالله تعالی نه یې دمدد اوفتح دعا وغوښتله حضور ﷺ په اوچت اواز داهم وفرمایل ٣ زه نبي یم په دې کښې څه دروغ نشته زه دعبدالمطلب زوی یم [ددې سره همت اونوې جذبې سره مستعد شو اومذکوره خلمې حضور ﷺ ته راجمع شو] نوحضور ﷺ دټولو مجاهدینو صف بندې وکړله ٤ مسلم اوبخاري ددې مضمون روایت خپل جدا الفاظو کښې نقل کړې دې.

**حل اللغات:** -٣ بَغْلَتِهِ: خچر د نبی علیه السلام (سپین خچر چه دهغې نوم دلدل یا فِضّة وو). ٥ وَاسْتَنْصَرَ: أَيْ: طَلَبَ النَّصْرَ وَالْفَتْحَ: د مدد اوکامیابۍ سوال ئې اوکړو (دخپل امت دپاره).

٥٨٩٠-()١ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا، «قَالَ الْبَرَاءُ: ٢ كُنَّا وَاللَّهِ إِذَا احْمَرَّ الْبَأْسُ نَتَّقِي بِهِ، ٣ وَإِنَّ الشُّجَاعَ مِنَّا لَلَّذِي يُحَاذِيهِ، يَعْنِي: النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -».

**ترجمه:** ١ اودبخاري اومسلم یوبل روایت کښې داسې دي چې براءابن عازب ﷺ اوویل ٢ قسم په الله کوم وخت چې جنګ سخت شو [یعنی ددشمنانو حمله سخته شوه اومونږ د هتیارو دکمي یاڅه کمزوري په سبب زیات دباؤ محسوسولي] نوحضور ﷺ ته رسیدو سره خپل حفاظت به موکوي [ اود ذات ګرامي له برکته دمدد اونصرت به طلبګار کیدلو] ٣ بیشکه هغه وخت مونږ کښې زیات بهادر اوشجاع به هغه سړی ؤو چې درسول کریم ﷺ برابر کښې راتلو سره به اودریدلو.

**حل اللغات:** - ١ احْمَرَّ الْبَأْسُ: أَيْ: اشْتَدَّ الْحَرْبُ: دا دجنګ د سخت والی او ګرم والی نه کنایه ده. ٢ يُحَاذِيهِ: أَيْ: يُوَازِيهِ: یعنی برابر اوګه په اوګه به د نبی علیه السلام سره ولاړوو.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ:

**دجنګ څخه د نه تیختې دوه وجوهات:** ١ یعنی رښتونې نبی کله هم نه تختی. زه رښتونې نبی یم دَ تختیدو خوسوال نه پیدا کیږی.

٢ زه دَعبدالمطلب په شان دَ سردار خاندانی سړې یم دَداسې خاندان سړې هم چرته تختیدې نه شی.

---

١) اخرجه مسلم فی کتاب الجهاد والسیر /باب فی غزوة حنین (رقم-٧٩ - (١٧٧٦)

**د حديث په الفاظو کښې تعارض او د هغې دفع:**

**قوله: فَأَقْبَلُوا:** په دې جمله باندې سوال دادې چه دې نه مخکښې حديث نمبر(۵۸۸۸) کښې "ولى المسلمون مدبرين" الفاظ دی چه مسلمانان اوتختيدل اودلته په دې جمله کښې دادی چه مسلمانان دَحضورپاك طرف ته متوجه شو دا تعارض دې. دَدې جواب دادې چه په شروع کښې تازه کم عمره ځوانان اوتختيدل بيا پاخه کسان هم اوتختيدل بياچه کله حضورپاك راؤغوښتل نوفوری راغله نودَ "مدبرين" وخت جدادې اودَ "اقبلوا" جدا دې لهذا هيڅ تعارض نشته دې.

**قوله: احْمَرَّ الْبَأْسُ:** اي اشتد الحرب.

**جنګ ته د احمر وئيلو وجه:** په سخت جنګ کښې چونکه سره وينه بهيږی په دې وجه دې ته سور اووئيلې شو مرګ ته هم په دې وجه "الموت الاحمر" سور مرګ وائی.

**قوله: وَإِنَّ الشُّجَاعَ مِنَّا لَلَّذِي يُحَاذِيهِ،**

**د بهادر پيژندګلو:** يعنی په مونږ کښې به دَتولو نه زيات بهادر سړې هغه وو چه ميدان جنګ کښې به حضورپاك سره برابر راغلو اودَ دښمن مخې ته به اودريدو دَ حضورپاك هم دغه بهادری وه کومې چه دَ عربو دَ لوئی لوئی بهادرانو مخ خپل خان ته راګرځولې وو. که چرې خالد بن وليد رضي الله عنه او ضرار بن ازور رضي الله عنه نه حضورپاك زيات بهادر نه وې نودعربودې بهادرانو به دَ خپل خان نه کمتر سړی په لاس کښې کله هم لاس نه ورکولو

**[۵۸۹۱] يو موټې شګې د کافرانو ستر ګو ته رسيدل**

۵۸۹-()[۲۲] [۱] «وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حُنَيْنًا، [۳] فَوَلَّى صَحَابَةُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴] فَلَمَّا غَشُوا رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَزَلَ عَنِ الْبَغْلَةِ، [۵] ثُمَّ قَبَضَ قَبْضَةً مِنْ تُرَابٍ مِنَ الْأَرْضِ، [۶] ثُمَّ اسْتَقْبَلَ بِهِ وُجُوهَهُمْ،

**ترجمه:** [۱] اوحضرت سلمه ابن اکوع رضي الله عنه وايي [۲] مونږ درسول کريم ﷺ سره کافرو سره جهاد دپاره غزوه حنين کښې شريک ؤو [۳] دې غزاکې چې درسول کريم ﷺ بعضې صحابه ؤ ددشمن دمخې نه تښتيدل [۴] اوکافرو رسول کريم ﷺ ګير کړلو نوحضور ﷺ دخپلې غاترې نه راکوزشو [۵] اودزمکې نه يې يوموټې خاوره اوچته کړه چې هغه کښې شګې هم وې [۶] بياهغه خاورې اوشګې يې کافرو طرف ته وويشتلې

**حل اللغات:-** ① غَشُوا: ګير ئې کړو (نبی عليه السلام).

[۱] فَقَالَ: (شَاهَتِ الْوُجُوهُ)، [۲] فَمَا خَلَقَ اللَّهُ مِنْهُمْ إِنْسَانًا إِلَّا مَلَأَ عَيْنَيْهِ تُرَابًا بِتِلْكَ الْقَبْضَةِ، [۳] فَوَلَّوْا مُدْبِرِينَ فَهَزَمَهُمُ اللَّهُ، [۴] وَقَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - غَنَائِمَهُمْ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] اخرجه مسلم في كتاب الجهاد والسير /باب في غزوة حنين (رقم-۷۱ - (۱۷۷۶)

**ترجمه:** [۱] او وي فرمايل خراب شو دهغوى مخونه [۲] نوالله تعالى هغوى كښې داسې هيڅ انسان پيدا كړى نه ؤو [يعنې هغه وخت دشمنانو كښې داسې هيڅ سړى نه ؤو] چې دهغه دواړه سترګې الله تعالى هغه يوې موټې خاورې نه ډک کړې نه وي [۳] بيا خو ټول كافر وتښتيدل او الله تعالى هغوى ته شكست وركړى [۴] ددې نه وروسته رسول كريم ﷺ دهغوى مال چې بطور غنيمت حاصل شوى ؤو مسلمانانو كښې تقسيم كړى. (مسلم)

**حل اللغات:** - ۲ شَاهَتِ الْوُجُوهُ: أَيْ: تَغَيَّرَتْ وَقُبِّحَتْ: خراب شو اوبدل شو مخونه (دكافرانو). ۴ فَهَزَمَهُمْ: نو شكست ئې وركړو ډلو دكافرانو ته.

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ قَبَضَ قَبْضَةً مِنْ تُرَابٍ..الخ:

**د نبي عليه السلام درې معجزات:** ۱ هغه خاوره دَ ټولو كافرانو سترګو ته اورسيدله.

۲ په لړه شان خاورې دَ ځلورو زرو كافرانو سترګې ډكې شوې.

۳ دَظاهرى طاقت نه بغير صرف دَ هغه خاورې په ذريعه دومره لوئى لښكر ته ماتې اوشو او دَ غنيمت مال هم حاصل شو.

**[۵۸۹۲] د يو كس د جهنمى كيدو پيشن ګوئى او د هغې واقع كيدل**

۵۸۹۳-()[۳۳] [۱] «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: شَهِدْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حُنَيْنًا، [۲] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِرَجُلٍ مِمَّنْ مَعَهُ يَدَّعِي الْإِسْلَامَ: [۳] (هَذَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ) [۴] فَلَمَّا حَضَرَ الْقِتَالُ قَاتَلَ الرَّجُلُ مِنْ أَشَدِّ الْقِتَالِ، [۵] وَكَثُرَتْ بِهِ الْجِرَاحُ، [۶] فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَرَأَيْتَ الَّذِي تُحَدِّثُ أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ، [۷] قَدْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ مِنْ أَشَدِّ الْقِتَالِ فَكَثُرَتْ بِهِ الْجِرَاحُ

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي مونږ درسول الله ﷺ سره غزوه حنين كښې شريك ؤو [۲] هلته [جنګ شروع كيدو نه مخكې ميدان جنګ كښې] رسول كريم ﷺ دخپل لښكر په خلقو كښې ديو سړي باره كښې چې ځان ته يې مسلمان وئيل اوفرمايل [۳] چې دا سړى دوزخي دى [۴] بيا چې جنګ شروع شو نو هغه سړى ډير بهادري سره وجنګيدى [۵] اود هغه جسم دزخمونو څخه ډك شو اوبې تابه شو [۶] په دې ليدو سره صحابه ؤ كښې يو صاحب راتلو سره داظهار تعجب په طور عرض وكړ يارسول الله ﷺ دهغه سړي حقيقت حال ماته وښايئ چې دهغه باره كښې تاسو ﷺ فرمايلي وه چې هغه دوزخي دي [۷] او حال دا چې ظاهري حال يې دادى چې هغه دالله تعالى په لار كښې ډيرې بهادرۍ سره جنګيدلى دى او ډير زخمونه يې خوړلي دي نه خو دهغه جنتي كيدل معلوميږي.

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة خيبر (رقم-۴۲۰۳) ومسلم في كتاب الإيمان/باب غلظ تحريم قتل الإنسان نفسه. وأن من قتل نفسه بشيء عذب به في النار. وأنه لا يدخل الجنة إلا نفس مسلمة (رقم-۱۷۸ -(۱۱۱)) واحمد في المسند: ۳۰۹/۲

۱ فَقَالَ: (أَمَا إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ) ۲ فَكَادَ بَعْضُ النَّاسِ يَرْتَابُ، ۳ فَبَيْنَمَا هُوَ عَلَى ذٰلِكَ إِذْ وَجَدَ الرَّجُلُ أَلَمَ الْجِرَاحِ، ۴ فَأَهْوَى بِيَدِهِ إِلَى كِنَانَتِهِ ۵ فَانْتَزَعَ سَهْمًا فَانْتَحَرَ بِهَا، ۶ فَاشْتَدَّ رِجَالٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالُوا: ۷ يَا رَسُولَ اللّٰهِ! صَدَّقَ اللّٰهُ حَدِيثَكَ، ۸ قَدِ انْتَحَرَ فُلَانٌ وَقَتَلَ نَفْسَهُ.

**ترجمه:** ۱ حضور ﷺ ورته وفرمایل یادلره هغه ددوزخیانو څخه دی [یعنی حقیقت حال خو هغه دی کوم چې مامخکې خو دلې دي چې هغه سړی دومخې دي اګرکه دهغه ظاهر حال دهغه خلاف ولې په نظر را نشي خبره داده چې دآخرت متعلق دظاهري اعمالو څه اعتبار نشته اصل مدار حسن اعمال اوحسن خاتمه باندې دی] ۲ اوبیا نزدې وه چې بعضې [ضعیف الایمان] خلق [میدان جنګ کښې دحضور ﷺ دهغه ارشاد صداقت کښې] دشک شبهې ښکار شی ۳ لیکن هغه وخت [خلقو ولیدل چې اچانك هغه سړي دخپلو زخمونو دتکلیف نه بې ارامه کیدو سره خپل لاس ترکش طرف ته مخکې کی ۴ اویو تیر رابنکلو سره خپله سینه کښې یې پیوست کړي ددې په لیدلو] ډیر مسلمانان وویرېدل اورسول کریم ﷺ ته راغلل اوعرض یې وکی ۷ یارسول الله الله تعالی ستاسو داخبره رېښتیا کړله [چې هغه سړی دوزخي دی] ۸ هغه خپله سینه خو خپله شلولو سره خودکشي کړی ده.

**حل اللغات:** - ① يَرْتَابُ: أَيْ: يَشُكُّ: شک اوکړی (په فرمان دنبی علیه السلام کښې). ② فَأَهْوَى: أَيْ: قَصَدَ وَمَالَ: قصد ئې اوکړو، وربنکته شو، ③ كِنَانَتِهِ: أَيْ: إِلَى جُعْبَتِهِ: تیرکش یعنی د غشو تهیلی. ④ فَانْتَزَعَ: أَيْ: فَأَخْرَجَهُ: راویستلو غشي، ⑤ فَانْتَحَرَ: أَيْ: نَحَرَنَفْسَهُ: خپل ځان ئې پرې ذبح کړو.

۱ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (اللّٰهُ أَكْبَرُ ۲ أَشْهَدُ أَنِّي عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُولُهُ، ۳ يَا بِلَالُ قُمْ فَأَذِّنْ: لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا مُؤْمِنٌ، ۴ وَإِنَّ اللّٰهَ لَيُؤَيِّدُ هٰذَا الدِّينَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ) »رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ رسول الله ﷺ وفرمایل الله تعالی ډیر لوی دی ۲ زه ګواهي کوم چې زه دالله تعالی بنده اودهغه رسول یم [دالفاظ حضور ﷺ دهغه خوشحالي داظهار دپاره وفرمایل چې دحضور ﷺ وینا رېښتیني شوه هغه نه وروسته حضور ﷺ حکم وکی] ۳ اې بلاله لاړ شه ودریږه اوخلق اګاه کړه چې جنت کښې به صرف مؤمن داخلیږي ۴ اوداچې الله تعالی دادین دفاسق سړی په ذریعه هم مضبوطوي (بخاري)

**حل اللغات:** - ⑥ لَيُؤَيِّدُ: مضبوطوی.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَإِنَّ اللّٰهَ لَيُؤَيِّدُ هٰذَا الدِّينَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ،

**د رجل د فجور وجه:** یعنی دَ یوسړی باره کښې حضورپاك اوفرمائیل چه دې به دوزخ ته ځی حالانکه هغه دَ ټولو نه زیات په میدان جهاد کښې دَ کافرانو په مقابله کښې جنګیدلو.

اوريدونكي حيران شو چه دې به څنګه دوزخ ته ځي. دهغه سړي نوم قزمان وو. دې منافق وواوصرف د قوميت په بنيادباندې جنګيدلو. د منافق جهادهم معتبر نه دې اود قوميت دپاره جهادكول هم صحيح نه دی. دغه سړی انجام خودلوكښې دمعجزه ظهور اوشو.

**قوله:** فَانْتَحَرَ:

**په روایاتو کښې تعارض:** په يوروايت كښې دی چه هغه سړی په توره باندې خپل ځان ذبح كړو اودلته د غشی ذكردې دا تضاددې.

**د تعارض جواب:** اول دغه سړی په غشی باندې خپله مرئی پرې كړه مګر چه كله په دې سره په مرګ كښې تاخيركيدلو نوبيا هغه په توره باندې خپل ځان قتل كړو. دواړه خبرې صحيح دی هيڅ تضادنشته دې.

**قوله:** بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ:

**په فاجر د دین د نصرت وضاحت:** يعنی الله تعالى كله ددې دين كارد يوبې دين سړی نه هم اخلی. جهادخودد دښمن سره د جنګيدلونوم دې دكوم تعلق چه بدن سره دې. كه په بدنی توګه باندې سړی تيك وی نوهغه كافروژلې شي. كافرچه كله مړشی نودين ته به غلبه حاصله شی. اصل مقصودخود دين غلبه ده هغه د فاسق بلكه منافق اوكافرد لاس نه هم حاصليدې شی. كله چه غلبه حاصله شی نود فاسق اوفاجرپه لاس سره ددين امداد اوشی.

**[۵۸۹۳] دنبی کریم ﷺ د خپل مسحور کیدو خبر ورکول**

۵۸۹۳–()[۲۳][۱] «وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [۲] سُحِرَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى إِنَّهُ لَيُخَيَّلُ إِلَيْهِ [۳] أَنَّهُ فَعَلَ الشَّيْءَ وَمَا فَعَلَهُ. [۴] حَتَّى إِذَا كَانَ ذَاتَ يَوْمٍ عِنْدِي، دَعَا اللَّهَ وَدَعَاهُ، [۵] ثُمَّ قَالَ: (أَشَعَرْتِ يَا عَائِشَةُ أَنَّ اللَّهَ قَدْ أَفْتَانِي فِيمَا اسْتَفْتَيْتُهُ، [۶] جَاءَنِي رَجُلَانِ، جَلَسَ أَحَدُهُمَا عِنْدَ رَأْسِي وَالْآخَرُ عِنْدَ رِجْلِي، [۷] ثُمَّ قَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: مَا وَجَعُ الرَّجُلِ؟ [۸] قَالَ: مَطْبُوبٌ. قَالَ: وَمَنْ طَبَّهُ؟

**ترجمه:** [۱] او ام المؤمنين بي بي عائشه رضی الله عنها فرمايي [۲] كوم وخت چې رسول كريم ﷺ باندې جادو وشو نودحضور ﷺ داحالت ؤو چې دځه كار باره كښې دحضور ﷺ خيال ؤو [۳] چې كړی يې دې حالانكه هغه كار به يې نه ؤو كړی [كافي ورخو پورې داحالت ووا [۴] د دې پورې چې يوه ورځ هغه وخت چې حضور ﷺ ما سره وؤ حضور ﷺ دالله تعالى نه دعا وغوښتله اوبيايې دعا وكړه [۵] بيا حضور ﷺ ماته وفرمايل اې عائشې رضی الله عنها ايا تاته معلومه ده چې الله تعالى ماته هغه خبره خو دلې ده چې مادهغه نه معلومه كړې وه [۶] ادې نه وروسته حضور ﷺ بيان وكړی چې الله تعالى زما دحالت په باره كښې په ماباندې داسې منكشف كړل چې] ماته د سړوپه صورت كښې دوه فرښتې راغلې هغوی كښې يوه زما سرطرفته كيناستله اودويمه

[1]) اخرجه البخاری فی كتاب بدا الخلق/ باب صفة ابليس وجنود..... رقم الحديث ۳۲۶۸ ومسلم فی كتاب السلام/ باب السحر... رقم الحديث ۵۸۳۲

پښو طرف ته [۷] بيا هغې کښې يوي دويمي نه ما طرفته اشاره کولو سره پوښتنه وکړه دي سړي ته څه بيماري ده [۸] دويمي جواب ورکړی چې جادو په شوی دی بيا اولي پوښتنه وکړه چې چا په کړیدی.

**حل اللغات:-** ① أَشَعَرْتِ: أَيْ: أَعَلِمْتِ: آيا تاته معلومه ده، تاته پته شته، ② وَجَعٌ: درد، تکليف، ③ مَطْبُوبٌ: أَيْ هُوَ مَسْحُورٌ: جادو پرې شوی دی،

[۱] قَالَ: لَبِيدُ بْنُ الْأَعْصَمِ الْيَهُودِيُّ. [۲] قَالَ: فِي مَاذَا؟ قَالَ: فِي مُشْطٍ وَمُشَاطَةٍ [۳] وَجُفِّ طَلْعَةِ ذَكَرٍ [۴] قَالَ: فَأَيْنَ هُوَ؟ قَالَ: فِي بِئْرِ ذَرْوَانَ) [۵] فَذَهَبَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي أُنَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ إِلَى الْبِئْرِ. [۶] فَقَالَ: (هَذِهِ الْبِئْرُ الَّتِي أُرِيتُهَا وَكَأَنَّ مَاءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ [۷] وَكَأَنَّ نَخْلَهَا رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ) فَاسْتَخْرَجَهُ.» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] دويمي جواب ورکړی چې لبيد بن اعصم يهودي [۲] اولنی پوښتنه وکړه په څه شي کښې جادو شوي دي دويمي جواب ورکړی په ويښتو کښې هغه ويښته چې ږمونځي نه غورځيږي [۳] او دلوندو خورماو په پوستکي کښې دوړي چاپيره [۴] اولنی پوښتنه وکړه دا جادو کړي شوي څيزونه کوم ځاي کښې پراته دي ؟ دويمي جواب ورکړو د مديني يو کوهي ذروان کښې [۵] دي نه روسته حضور ﷺ د خپل څو مخصوصو صحابه ﷺ سره هغه کوهي ته تشريف يو وړی [۶] او وي فرمايل دا هغه کوهي دي چې ماته ښودل شوي دي د دي کوهي اوبه د نکروزو په شان سري وي [۷] او د خورماو هغه ونې چې په هغه کوهي کښې اچول شوي وي داسې وي لکه د شيطانانو سرونه نو حضور ﷺ هغه ټول څيزونه د هغه کوهي نه راوښکل. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ④ مُشْطٍ: آلَةٌ يُمْتَشَطُ بِهَا: د ويښتو ګمنزولو آله، يعنی ګمنز. ⑤ وَمُشَاطَةٍ: مَا سَقَطَ مِنْ شَعْرِ الرَّأْسِ أَوِ اللِّحْيَةِ عِنْدَ تَسْرِيحِهِ بِالْمُشْطِ: مشاطه هغه ويښتو ته وائی کوم چه د سر يا ږيرې ګمنزولو په وخت اوغورزيږي. ⑥ جُفِّ: په شروع کښې چه کله دَ کهجور غونچه راخی نو په هغې کښې غوټئی وی ګلونه وی اودې سره سره په هغې باندې غلاف اوپرده هم راخی نو جف دغه خول اوغلاف ته وائی په جيم باندې ضمه ده او فاء باندې شد دې. ⑦ طَلْعَةِ: وَهُوَ وِعَاءُ طَلْعِ النَّخْلِ: دا غوټۍ او سترګې ته وائی. ⑧ ذَكَرٍ: دا د طلعة دپاره مضاف اليه دې او دا اضافت بيانيه دې، دې نه فَحْلُ النَّخْلِ مراد دې يعنی نال کړې شوي کجوره. ⑨ بِئْرِ ذَرْوَانَ: په مدينه کښې د أَبِي زُرَيْقٍ په باغ کښې يو کوهي وو هغه مراد دې، يا ذروان د مديني نه يوه ګهنټه فاصله کښې دې چرته چه مسجد ضرار جوړ شوې وو هغې کوهی ته بِئْرِ ذَرْوَانَ وائی. ⑩ نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ: هغه اوبه چه نکريزې پکښې ګډ کړې شوی وی. ⑪ رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ: عربو به د بدشکله او ويريدونکو مناظرو تشبيه د رُءُوسِ الشَّيَاطِينِ سره ورکوله، دلته دا د کجورو اونې هم ځنګلی وحشتناک او بدشکله ښکاريدې لکه چه رُءُوسِ الشَّيَاطِينِ وی.

**تسهیلات: قوله**: سُحِرَرَسُولُ اللّٰهِ:

**نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې جادو کولو پس منظر**: حضورپاك چه کله دَ صلح حدیبیه نه واپس مدینې منورې ته تشریف راوړو نوذوالحجه ۶هجری کښې په حضورپاك باندې جادو اوکړې شو. دَ دغه جادو اثرداسې نه ووچه کوم سره چه په شرعی احکاماتوکښې خلل پریوتلو بلکه دَهغې اثر صرف په دنیاوی او بدنی امورو کښې وو. دَحضورپاك بدن مبارك ډیر ضعیف اوکمزورې شوې وو. اکثر به ورته خیال راتلو چه ما فلانکې کارکړې دې حالانکه حضورپاك به هغه نه وو کړې لکه چه په حضورپاك باندې دَ دغه جادودَ وجې نه دَ هیرې غلبه شوې وه.

**د جادوګر پیژندګلو**: یویهودی لبیدبن اعصم لونړو دا جادو کړې وو.

**په نبی علیه السلام د جادو د مودې په باره کښې تعارض**: ① بعضې روایاتوکښې څلوېښت ورځو باندې داثر باقی پاتې کیدو ذکر دې.

② بعضې روایاتوکښې شپږو میاشتو پورې دَاثرباقی پاتې کیدو ذکردې.

③ اوبعضې روایاتوکښې دَ یوکال پورې دَاثرباقی پاتې کیدو ذکردې.

**د تعارض جواب**: دَ جادو زیات زور ترڅلویښتو ورځوپورې وو اودَدرمیانه درجې اثر ترشپږو میاشتو پورې وو اولږ لږ اثر تریوکال پورې وو.

دحدیث څخه ثابتې شوې مسئلې: ① جادو یوواقعاتی حقیقت دې دکوم نه چه انکار نه شی کیدې. داڅه خیالی تصور نه دې بلکه دې حقیقت سره انبیاء کرام هم متاثرکیدې شی. معتزلو دَ سحرنه انکارکړې دې دادَهغوی دَ بدعاتونه یو بدعت دې اودَهغوی دَ باطل عقیدونه یوباطل عقیده ده.

② انبیاء کرام انسان اوبشر وو. کومه بیماری چه یوانسان متاثر کولې شی هغه انبیاء کرام هم متاثر کوی البته په انبیاء کرامو باندې داسې بیماری نه راځی چه دَ انسان دَپاره دَ شرم نفرت یا حقارت سبب وی. ملاعلی قاری رحمه الله په انبیاء کرامو باندې دَ سحر کیدو باره کښې لیکی "لان السحر انما یعمل فی ابدانهم وهم بشر یجوز علیهم من العلل والامراض ما یجوز علی غیرهم" ملاعلی قاری رحمه الله نور لیکی: "وفائدة الحلول (اي حلول السحر) تنبیه علی ان هذا بشر مثلکم وعلی ان السحر تأثیره حق فانه اذا اثر فی اکمل الانسان فکیف بغیره؟" (مرقات ۱۰/۲۱۷)

**قوله**: مَنْ طَبَّهُ:

**په جادو باندې د طب د اطلاق وجه**: یعنی داجادو چاکړې دې؟ مطبوب اوطب، دا طب په معنی دَ علاج دې. جادو ته طب په توګه دَ تفاؤل وئیلې شوې دې چه دَدې علاج لکه چه شوې دې. لکه څنګه چه دَمارخوړلی انسان ته سلیم وائی یعنی دا صحیح سالم اومحفوظ دې.

**قوله:** الْيَهُودِيُّ:

**د جادو گر تعين کښې تعارض اوتطبيق:** دَ دغه سړي کردار به خامخاوې اصل محرك به هم دغه خبيث وی مګر هغه خپلې لونړه په دې کارباندې لګولې وی هم په دې وجه قرآن کريم کښې ﴿ وَمِنْ شَرِّ النَّفّٰثٰتِ ﴾ آيت کښې دَ جادو نسبت دَ ښځو طرف ته کړې شوې دې مګر په دې حديث کښې دَ جادو ذمه وارې په دغه سړي باندې اچولې شوې ده.

**قوله:** طَلْعَةٍ:

**د طلعة معنی:** داغوټۍ او سترګې ته وائي. دا غوټۍ دَ نرکهجورې په ونه کښې هم وی او ماده کښې هم وی. دا فرق ښکاره کولودَپاره اوفرمائيلې شو چه دَ نرکهجورې غوټۍ غلاف کښې جادو کړې شوې دې نرکهجور په جادوکښې استعمال کړې شوې ده.

**قوله:** بِئْرِ ذَرْوَانَ:

**د ذروان محل وقوع:** په يوروايت کښې "بئرذی اروان" هم دې دواړه صحيح دی. مدينه منوره کښې دَ يوسړي ابوزريق په باغ کښې دا کوهې وو. "وهی بئرفی المدينة فی بستان ابی زريق". (مرقات).

**قوله:** نَخْلُهَا:

**د نخل څخه مراد:** يعنی دَ کهجورو غونچې ويرونکې وې. دَنخل نه دَ باغ دکهجورو ونې مراد نه دی بلکه هم هغه غونچه مرادده کومه چه په جادو کښې استعمال کړې شوې وه.

**قوله:** رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ:

**د شيطانانوسرونوسره د تشبيه وجه:** يعنی په وحشت دهشت کراهت اوقباحت کښې هغه غونچه دَ شيطان دَ سرونو په شان وه. عرب خلق چه کله دَ يوڅيز سخت قباحت اووحشت بيانوی نودَ هغې تشبيه دَ شيطان سر سره ورکوی.

بل دَ شيطان دَ سر اطلاق په مارانو باندې هم کيږی. بهرحال څه چه هم وی مګر يو ويرونکې نظاره خودلې کيږی. په دغه غونچوباندې خيودَ هغه جادو اثر هم وو او تړډير وخته پورې په اوبو کښې دَ ډوبيدو اثر هم وو په دې وجه دادَ کراهت او قباحت مجموعه جوړه شوې وه.

**د مذکوره واقعې تفصيل:** دې واقعه سره متعلق دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما يوروايت هم دې په هغې کښې دا تفصيل دې چه دَ دې کوهی خبر ملاويدو سره حضور پاك حضرت علی رضي الله عنه اوحضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه دغه کوهی طرف ته اوليګلو دې دَپاره چه دَ جادو دغه څيزونه راؤباسی. کله چه دې حضراتو دَ کهجورې دغه غونچه دَ کوهی نه راويستله نو دَهغې په خول کښې دَ مومو جوړه شوې يوه جثه اوبت ملاؤ شو دادَ حضورپاك مجسمه وه.

په دغه مسجمه کښې ستني ورتونبلې شوې وې او په هره ستن باندې يو تار وو چه دَ مجسمې نه راتاؤ کړې شوې وو. په کوم کښې چه يولس غوټې لګيدلې وې. حضرت جبرائيل ﷺ دغه يولس غوټو باندې معوذتين ونيل شروع کړه. دَ معوذتين آياتونه هم يولس دی. په يويو آيت باندې حضرت جبرائيل يوه يوه غوټه کولاوولـه او دَ مجسمې نه ئې ستنې هم راويستلې. چنانچه په دې سره به حضورپاك ته داسې آرام ملاويدلو لکه چه بنده کړې شوې رسئی نه حضورپاك خلاصولې شو. ونيلی شی چه حضورپاك پخپله هم دغه کوهی ته تلې وو مګر دننه نه وو تلې په څه فاصله باندې وو. حضورپاك دَ دغه يهودی خلاف هيڅ کاروائی اونه کړه بلکه دائی اوفرمائيل چه زه فتنه راؤچتول نه غوارم.

**په حديث کښې د دوو معجزاتو بيان:** ① په دې حديث کښې دَ فرښتو راتلل اودَ حضورپاك بيماری خودل بيا دَ هغه کوهی نښه خودل دَ يوقسم معجزې ظهور وو.

② دَ معوذتين نازليدل اودَ جبرائيل امين دم کول اودَ حضورپاك تيك کيدل.

**[٥٨٩٤] دخوارجو د ظهور باره کښې پيشن ګوئی کول**

| ٥٨٩٣-()[٢٥]① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: ② «بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③ وَهُوَ يَقْسِمُ قَسْمًا أَتَاهُ ذُو الْخُوَيْصِرَةِ، ④ وَهُوَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ⑤ اعْدِلْ. قَالَ: (وَيْلَكَ فَمَنْ يَعْدِلُ إِذَا لَمْ أَعْدِلْ؟) ⑥ قَدْ خِبْتَ وَخَسِرْتَ إِنْ لَمْ أَكُنْ أَعْدِلُ) ⑦ فَقَالَ عُمَرُ: ائْذَنْ لِي أَنْ أَضْرِبَ عُنُقَهُ. |
|---|

**ترجمه:** ① حضرت ابوسعيد خدري ﷺ وايي ② هغه وخت چې مونږ مقام جعرانه کښې رسول کريم ﷺ سره ؤو ③ اوحضور ﷺ غزوه حنين کښې حاصل شده مال غنيمت تقسيموی يوسړی چې دهغه نوم ذوالخويصره ؤو ④ چې د مشهوري قبيلي بني تميم سره يي تعلق لرلي دحضور ﷺ په خدمت کښې دراتلو سره يي اوويل يارسول الله ⑤ مال غنيمت تقسيمولو کښې دعدل اوانصاف نه کار واخلي حضور ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل په تا آفسوس دی چې زه عدل اوانصاف نه کوم نوڅوک به يي کوي ⑥ که زه دعدل اوانصاف نه کار وانخلم نويقينًا ته به محروم شی اوتاوان کښې به شي ⑦ حضرت عمر ﷺ بارګاه رسالت کښې دهغه سړي دا ګستاخانه الفاظو اوريدو سره عرض وکړو يارسول الله ﷺ اجازت راکړی چې د دي ګستاخ سر والوزم.

**حل اللغات:-** ① قَسْمًا: دا مصدر دې تقسيمدونکی څيز ته وائی، وَهُوَ الْغَنِيمَةُ: ددې نه مراد مال غنيمت دی. ② خِبْتَ وَخَسِرْتَ: محروم به شې اوپه تاوان کښې به شې.

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب علامات النبوة فی الإسلام (رقم-٣٦١٠) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب ذکر الخوارج وصفاتهم (رقم-١٤٣ - (١٠٦٤) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل ابن عباس (رقم-١٧١) واحمد فی المسند: ٥٦/٣

[۱] قَالَ: دَعْهُ، فَإِنَّ لَهُ أَصْحَابًا [۲] يَحْقِرُ أَحَدُكُمْ صَلَاتَهُ مَعَ صَلَاتِهِمْ وَصِيَامَهُ مَعَ صِيَامِهِمْ، [۳] يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ، [۴] يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ، [۵] يُنْظَرُ إِلَى نَصْلِهِ، إِلَى رُصَافِهِ إِلَى نَضِيِّهِ [۶] وَهُوَ قِدْحُهُ، إِلَى قُذَذِهِ [۷] فَلَا يُوجَدُ فِيهِ شَيْءٌ، [۸] قَدْ سَبَقَ الْفَرْثَ وَالدَّمَ، [۹] آيَتُهُمْ رَجُلٌ أَسْوَدُ، [۱۰] إِحْدَى عَضُدَيْهِ مِثْلُ ثَدْيِ الْمَرْأَةِ، [۱۱] أَوْ مِثْلُ الْبَضْعَةِ تَدَرْدَرُ، [۱۲] وَيَخْرُجُونَ عَلَى خَيْرِ فِرْقَةٍ مِنَ النَّاسِ».

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ ورته وفرمايل نه دي په خپل حال پرېږده ځکه چې ځه خلق به دده تابع وي [۲] چې دهغوي دمونځونو مقابله کښې به تاسو خپل مونځونه اودهغوي دروژو مقابله کښې به تاسو خپلي روژي حقيري سپکي ګڼي [۳] داخلق به قرآن وايي ليکن قرآن به ددوی حلق نه لاندي نه ځي [۴] اودوی به دين نه داسې اوځي ځرنګه چې تير ښکار شلولو سره بالکل تري اوځي [۵] خواه دهغه د تير (غشی) څوکه وکتل شي چې دهغه دپاسه حصه (واڼدې) وي [۶] اودا (نضية د غشی د څوکې نه) دهغه د وزر پورې حصې ته اوکتلې شی [۷] نو په هغې کښې چيرته هيڅ هم نه ليدل کيږي [۸] حالانکه هغه تيرد نجاست اووينې نه کيدو سره اوځي (تيريږي) [۹] اوددي سړي ذوالخويصرة دتابعدارو د سردار علامت دادی چې هغه به دتور رنګ سړی وي [۱۰] چې دهغه يوارخ کښې به دښځې دتيانو په شان راپورته شوی غوښه وی [۱۱] يا به دغوښې يوه ټکړه وي چې زړيږي به [په دي بناء هغه ته به ذوالثديه ويلی شي] [۱۲] اوهغه خلق يعنی دهغه سړی تابعدار به دخلقو يوه بهترينه طبقه [يعنی حضرت علي رضي الله عنه اودهغه دتابعدارو] خلاف بغاوت کوي.

**حل اللغات:** -(۲) يَحْقِرُ: سپک به ګڼړی. (۳) تَرَاقِيَهُمْ: جمع د تَرْقُوَة ده، وَهِيَ الْعِظَامُ بَيْنَ نُقْرَةِ الْحَلْقِ وَالْعَاتِقِ: دمرئ بهر راوتلی هډوکی ته وائی. (۵) يَمْرُقُونَ: أَيْ: يَخْرُجُونَ: مروق نه دي دَوتلو په معنی کښې دي. (۶) الرَّمِيَّةِ: وَهِيَ الصَّيْدُ: دا دَ مرمية په معنی کښې دي ښکارته وائی. (۷) نَصْلِهِ: دَ غشی مخ او پل ته وائی (۸) رُصَافِهِ: وَهُوَ عَصَبٌ يُلْوَي فَوْقَ مَدْخَلِ النَّصْلِ: رصاف هغه تسمې ته وائی کوم چه دَ غشی په مخ اودَدې دَ لرګی پيوند باندې تړلې شی. (۹) نَضِيِّهِ: وَهُوَ قِدْحُهُ: دَ غشی مخ اودَ دې دَ وزر په مينځ کښې چه دَ لرګی کومه حصه ده هغې ته قدح وائی لکه چه قدح دَ غشی دَ لرګی پوره حصې ته وائی. (۱۰) قُذَذِهِ: دا د قُذَّة جمع ده، أی ريش السَّهْمِ: دغشی وزرې. (۱۱) الْبَضْعَةِ: أَيْ قِطْعَةِ اللَّحْمِ: دغوښې ټکړه، (۱۲) تَدَرْدَرُ: أَيْ: تَضْطَرِبُ: خوزی به،

[۱] قَالَ أَبُو سَعِيدٍ: أَشْهَدُ أَنِّي سَمِعْتُ هَذَا الْحَدِيثَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] وَأَشْهَدُ أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ قَاتَلَهُمْ وَأَنَا مَعَهُ، [۳] فَأَمَرَ بِذَلِكَ الرَّجُلِ فَالْتُمِسَ، فَأُتِيَ بِهِ، [۴] نَظَرْتُ إِلَيْهِ عَلَى نَعْتِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الَّذِي نَعَتَهُ».

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابوسعيد رضي الله عنه بيان کوي زه شهادت ورکوم اوماخپله داحديث درسول کريم ﷺ نه اوريدلي دي [۲] اوبيا داشهادت ورکوم چې امير المؤمنين حضرت علي کرم الله وجهه ددي فرقي دخلقو سره چې هغوی طرف ته حضور ﷺ دي حديث کښې اشاره

وفرمایله جنګ وکړو اوزه هغه جنګ کښې حضرت علي ﷺ سره ملګري ووم ۳ حضرت علي ﷺ هغه جنګ کښې فتح یاب شو او د دشمنانو د پسپائي نه وروسته د هغه سړي د تلاش حکم یې وکړو چې د هغه باره کښې رسول کریم ﷺ پیشن ګویي فرمایلي وه نو مقتولین تلاش کولو سره حضرت علي ﷺ ته هغه سړی راوړل شو ۴ نو ما ولیدل چې نبی کریم ﷺ د هغه کوم علامت خودلي ؤو په هغه کښې موجود ؤو.

۱ وَفِي رِوَايَةٍ: «أَقْبَلَ رَجُلٌ غَائِرُ الْعَيْنَيْنِ، ۲ نَاتِئُ الْجَبْهَةِ، ۳ كَثُّ اللِّحْيَةِ، ۴ مُشْرِفُ الْوَجْنَتَيْنِ ۵ مَحْلُوقُ الرَّأْسِ، ۶ فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ اتَّقِ اللَّهَ. ۷ فَقَالَ: (فَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ إِذَا عَصَيْتُهُ! ۸ فَيَأْمَنُنِي اللَّهُ عَلَى أَهْلِ الْأَرْضِ وَلَا تَأْمَنُونِي) ۹ فَسَأَلَ رَجُلٌ قَتْلَهُ، فَمَنَعَهُ، ۱۰ فَلَمَّا وَلَّى قَالَ: (إِنَّ مِنْ ضِئْضِئِ هَذَا قَوْمًا يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ ۱۱ لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ، ۱۲ يَمْرُقُونَ مِنَ الْإِسْلَامِ مُرُوقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ، ۱۳ فَيَقْتُلُونَ أَهْلَ الْإِسْلَامِ، ۱۴ وَيَدَعُونَ أَهْلَ الْأَوْثَانِ، ۱۵ لَئِنْ أَدْرَكْتُهُمْ لَأَقْتُلَنَّهُمْ قَتْلَ عَادٍ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ او په یو روایت کښې [حضور ﷺ ته د ذوالخویصره د راتګ د ذکر په ځای] داسې مذکوردی [هغه وخت چې حضور ﷺ مال غنیمت تقسیموی] یو سړی د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو چې د هغه سترګې د ننه ننوتي وې ۲ تندي یې راپورته شوی ؤو ۳ ږیره یې ګڼه وه، ۴ بارخوګان (اننګی) یې را پورته شوی وو، ۵ سر یې خریلی وو ۶ هغه اوویل اې محمد ﷺ د الله نه ویریږه [یعنی د الله تعالی اطاعت وکړه او تقسیم کښې د عدل او انصاف نه کار واخله] ۷ حضور ﷺ ورته وفرمایل که زه د الله ﷻ نافرمانی وکړم نو بیا څوک به د الله تعالی اطاعت کوي [یعنی زه مقام نبوت او عصمت باندې د فائز کیدو په بناء د ټولو نه زیات ویره کونکي او د ټولو څخه زیات د هغه اطاعت کونکي یم ته ماته د اطاعت کولو څه سبق راکوي] ۸ زه الله تعالی په مخ د زمکې په خلقو کښې د ټولو څخه لوی منم [او مخلوق کښې عدل او انصاف قائمولو دپاره یې زه دي دنیاته رالیږلی یم] د اصرف ته یې چې ما امین نه ګڼي [او په ما اعتماد نه کوي] ۹ یو صحابي [یعنی حضرت عمر ﷺ د هغه سړي ګستاخي لیدو سره حضور ﷺ نه] د هغه سړي د سر پریکولو اجازت وغوښتل لیکن حضور ﷺ هغه منع کړو ۱۰ او هر کله چې هغه سړی واپس لاړلو نو وي فرمایل د دي سړي د اصل نه به یو قوم پیدا کیږي هغه خلق به قرآن کریم وایي ۱۱ لیکن قرآن کریم به د هغوی د حلق نه لاندې نه تیریږي ۱۲ اسلام [یعنی د کمال اسلام] د ائرې [یا د امام وخت د اطاعت] نه به هغوی داسې اوځي څرنګه چې تیر د ښکار نه اوځي ۱۳ بیا به هغه خلق [یعنی خارجیان] اهل اسلام خو به قتل کوي ۱۴ او بت پرست به د هغوی په حال پریږدي [مطلب دا چې کوم خلقو سره جنګ کول زیات اهم وي یعنی کافرو او بت پرستو سره هغوی سره خو به جنګ نه کوي البته د مسلمانانو خلاف به جنګ وجدل کښې مصروف وي] که زه هغه خلق بیا وومنم نو هغوی به داسې قتل کړم څرنګه چې د عاد قوم خلق قتل شوي ؤو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ⑫ غَائِرُ الْعَيْنَيْنِ: أَيْ: غَارَتْ عَيْنَاهُ وَدَخَلَتَا فِي رَأْسِهِ: ورننوتې سترګې. ⑬ نَاتِئُ الْجَبْهَةِ: رابهرشوې تندې. ⑮ مُشْرِفُ الْوَجْنَتَيْنِ: أَيْ: عَالِي الْخَدَّيْنِ: ډک راپړسیدلې مخ، ⑯ مَحْلُوقُ الرَّأْسِ: سر به خرائی یعنی دَ ویښته ساتل به جائز نه ګڼړی همیشه به سر خروی. ⑰ ضِئْضِئٍ: أَيْ: مِنْ أَصْلِهِ وَنَسَبِهِ وَعَقِبِهِ: اصل نسل، نسب اوخاندان (تابعدار او منونکی خلق مراد دی).

**تسهيلات: قوله:** أَتَاهُ ذُو الْخُوَيْصِرَةِ:

**د ذوالخویصره پیژندګلو:** دا سړې پوخ منافق وو. بنوتمیم سره دَده خاندانی تعلق وو. هغه دَحضورپاك په تقسیم باندې ډیرسخت اعتراض اوکړو. کله چه دَ حضرت علی ﷛ په زمانه کښې دَخوارجو ظهوراوشو اونهروان او حروراء مقام کښې ډیر زیات خوارج یوځائی شو نوبیا داسړې په پوره توګه راښکاره شو. هم دې سړی خوراج دَ حضرت علی ﷛ خلاف په بغاوت باندې راپاسول او په بنیادی توګه هم دې سړی دَ خوارجو بنیاد کیخودو. بیاحضرت علی ﷛ هغه په یوجنګ کښې قتل کړو.

**د ذوالخویصره د خوارجو سردار ګیدوقول:** دَ خوارج ظهور دَحضورپاك اوخلفاء ثلاثه په زمانه کښې نه وو شوې بلکه دَحضرت علی ﷛ په زمانه کښې شوې وو. لهذا دا وینا کول صحیح نه دی چه ذوالخویصرة دَخارجیانوسردار وو ځکه چه داسړې اول خارجی نه وو اودَ خارجیانودَ ظهورنه پس که چرته دَهغوی سردار جوړشوې وی نوجوړبه وی. دې سړی په حضورپاك دَ مال غنیمت په تقسیم کښې سخت اعتراضات کړې وو که چرې دې ئی قتل کړې وې نو قتل جائز وو مګرحضوراکرم ﷺ دَخپل کریمانه اخلاقودَ وجې هغه قتل نه کړو. فی الحال داسړې خارجی هم نه وو که چرې خارجی وې نوحضوراکرم ﷺ قسم خوړلې ووکه څوك خارجی ماته ملاؤ شو نوزه به هغه قتل کړم. دا اشاره دَ دغه سړی دَ اولادطرف ته وه اودَ هغه نه پس راتلونکې خارجیانو دَ نسل طرف ته وه. چنانچه حضرت علی ﷛ کاروائی اوکړه.

**قوله:** خِبْتَ وَخَسِرْتَ:

**د خبث اوخسران وجه:** خطاب سره کلام دې یعنی که ستاسو داعقیده وی چه زه انصاف نه کوم نوتاسودَدغه عقیدې دَ وجې نه تباه اوبربادشوئی لکه چه تاسو دَ همیشه دَپاره دَعدل نه محروم پاتې شوئی ځکه چه ماسره عدل نشته نوتاسوته به چرته عدل ملاؤشی؟ بل ځائی کښې خوهډوعدل شته نه.

**قوله:** أَنْ أَضْرِبَ عُنُقَهُ:

**اشکال:** دَ حضرت عمر ﷛ دَ اجازت غوښتونه باوجود حضورپاك دَ ذوالخویصره دَ قتل نه منع کړو حالانکه حضورپاك پخپله تمنا کوله چه که چرې ماته خوارج ملاؤ شو نوزه به هغوی قتل کوم.

**داشکال جواب:** دَ مخکښې نه شوې دې چه ذوالخویصره هغه وخت دَ خوارجو په صفونو کښې نه وو ښکاره شوې اونه هغه وخت دَ خوارجوځه زور وو. داسړې پخپله خارجي هم نه وو البته دَ هغه دَ نسل نه خوارج پیدا شو بیا دې دَ هغوی مشرشو. هغه وخت نه پس بیا دَحضرت علی رضی الله عنه دور ووحضورپاك دَ دغه روستو دور باره کښې دَهغه دَ قتل اوفرمائیل.

**قوله:** يُنْظَرُ إِلَى نَصْلِهِ،

دادَ مجهول صیغه ده یعنی چه اوکتلې شی نو چرته هم دَ غشی یوه حصه په څه څیزسره ککړه نه ښکاری حالانکه هغه دَ وینې او سوټو دَ مینځ نه تیریدوسره اوځی. نوچه څنګه غشې صفا صفا راوځی داخلق به هم دَاسلام نه دغه شان صفا صفا اوځی.

**قوله:** الْبَضْعَةِ:

**د بضعة وضاحت:** دَ غوښې زوړندې ټکړې ته وائی یعنی دابه تور سړې وی یومټ به ئی ناقص وی هغه به دغه شان زوړند وی لکه چه دَ ښځې سینه وی یا پړې کړې شوې دَ غوښې ټکړه وی. "تدردر" اي تضطرب تجئ وتذهب داسې به خوزیږی لکه چه یوه غوښه زوړندیدو سره وړاندې روستو ځی راځی.

**قوله:** عَلَى خَيْرِ فِرْقَةٍ:

**د حضرت علی رضی الله عنه د حقانیت دلیل:** یعنی دَمسلمانانودَ دوو ډلو په مینځ کښې دَاختلاف په وخت دَ خوارج دا فرقه خروج کوی مګر دَ دواړو ډلونه دَ ښه ډلې خلاف به خروج کوی. دَ ښه ډلې نه دَ حضرت علی رضی الله عنه جماعت مراد دې دویم فریق دَحضرت معاویه جماعت دې هغه خلق په اجتهادی خطاء باندې وو نویوه ډله ډیره ښه اوبله صرف ښه وی.

**قوله:** ضِئْضِئٍ:

**د نسل څخه مراد:** یعنی دَ هغه دَ اصل نه اودَ هغه دَ نسل نه به څه خلق راځی دَدغه اصل اونسل نه دَهغه حقیقی اولاد مراد نه دې بلکه دَهغه تابعدار اومنونکی مراد دی. دا قسم خلق هم دَدغه سړی په محنت سره روستو پیدا شو نودا اخباربالغیب وو هم په دې کښې دَمعجزه ظهور اوشو.

**[۵۸۹۵] د نبی علیه السلام په دعا د ابوهریره دمور اسلام راوړل**

٥٨٩٥ - ()[٢٦] [١] «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: كُنْتُ أَدْعُو أُمِّي إِلَى الْإِسْلَامِ وَهِيَ مُشْرِكَةٌ، [٢] فَدَعَوْتُهَا يَوْمًا، فَأَسْمَعَتْنِي فِي رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَا أَكْرَهُ، [٣] فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ وَأَنَا أَبْكِي، قُلْتُ: يَا رَسُولَ

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل أبی هریرة الدوسی رضی الله عنه (رقم-١٥٨ - (٢٤٩١) واحمد فی المسند:٢/٣٢٠ .

اللّٰهِ!۴ ادْعُ اللّٰهَ أَنْ يَهْدِيَ أُمَّ أَبِي هُرَيْرَةَ ۵ فَقَالَ: (اللّٰهُمَّ اهْدِ أُمَّ أَبِي هُرَيْرَةَ). ۶ فَخَرَجْتُ مُسْتَبْشِرًا بِدَعْوَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۷ فَلَمَّا صِرْتُ إِلَى الْبَابِ فَإِذَا هُوَ مُجَافٍ، فَسَمِعَتْ أُمِّي خَشْفَ قَدَمَيَّ

**ترجمه:** ۱ اوحضرت ابوهريره ﷺ وايي زما مور چې مشركه وه مابه هغه ته داسلام قبلولو تلقين كولي ۲ يوه ورځ ماهغه ته دمعمول مطابق داسلام قبلولو تلقين وكى نوهغه درسول الله ﷺ په شان مبارك كښې يوه داسې ګستاخانه خبره وكړه چې په ماسختته ناخوښه ولګيده بلكې زه خو اوس دهغه نقل كول هم مناسب نه ګڼم [هغه خبرې باندې غمجن كيدو سره چې هغه زما مخكې دومره خراب الفاظ دژبې نه وښكل اودمور كيدو په وجه زه دهغه بې ادبې هم نشم كولى] ۳ زه په ژړا درسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم اوعرض مې وكى يارسول الله ﷺ ۴ اوس خوتاسو ﷺ الله تعالى نه دعا وغواړى . چې دابوهريره ﷺ مورته هدايت وكړي ۵ حضور ﷺ دعا وكړله اې الله دابوهريره ﷺ مورته هدايت وكړي ۶ دنبې كريم ﷺ دعا نه ډير خوشحاله اواميد سره دبارګاه نبوت نه واپس راغلم ۷ كوم وخت چې دمور كورته راورسيدم نوڅه ګورم چې دروازه بنده ده ليكن زما مور زما دقدمونو اواز اوريدلى ؤو.

**حل اللغات:-** ① فَأَسْمَعَتْنِي: ماته ئې واؤروله، خبره ئې راته اوكړه. ② صِرْتُ: أَيْ: وَاصِلًا: اورسيدم. ③ مُجَافٍ: أَيْ مَرْدُودٌ: يعنى دروازه بنده وه. ④ خَشْفَ: أَيْ: صَوْتَهُمَا: دَ قدم كش كرپ آواز ته وائى.

۱ فَقَالَتْ: مَكَانَكَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ، ۲ وَسَمِعْتُ خَضْخَضَةَ الْمَاءِ، ۳ فَاغْتَسَلَتْ فَلَبِسَتْ دِرْعَهَا، وَعَجِلَتْ عَنْ خِمَارِهَا، ۴ فَفَتَحَتِ الْبَابَ، ثُمَّ قَالَتْ: ۵ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ ۶ فَرَجَعْتُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَنَا أَبْكِي مِنَ الْفَرَحِ ۷ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَقَالَ خَيْرًا.» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ هغه ددننه نه اواز وكى ابوهريره ﷺ انتظاروكه [يعنى اوس لاكورته مه راځه] ۲ بياما داوبو غورځيدو اواز واوريدى ۳ زما مور غسل وكى كپړې يې واچولې اوپه تلوار پوړنى يې لانه وو اچولې ۴ دروازه يې خلاصه كړه اوزما ليدو سره يې اوويل ۵ زه ګواهي كوم چې الله نه سوا بل معبود نشته اوګواهي كوم چې محمد ﷺ دالله تعالى بنده اورسول دى ۶ ما داليدو سره چې زما دخوږې مور هدايت نصيب شو اوهغې اسلام قبول كړى واپس دخوشحالى نه اوښكې تويولو سره درسول كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شوم ۷ حضور ﷺ دالله تعالى تعريف وكى اوزما دمور په اسلام يې شكر اداء كى اودخيرخبره يې وكړه. (مسلم).

**حل اللغات:** - ⑤خَضْخَضَةَ: أَيْ تَحْرِيكَهُ، وَقِيلَ: صَوْتُهُ: اوبو لـه حرکت ورکول، یـا د اوبـو د شرپیدو آواز تـه وائی. ⑨دِرْعَهَا: أَيْ قَمِيصَهَا: کمیص، جامې، ⑥خِمَارِهَا: څادر، پړونې.

**تسهیلات: قوله: عَجِلَتْ:**

**د نبی علیه السلام د معجزې ظهور:** یعنی دَ لوپتې اچولونه وړاندې بهر راوتله. دَحضرت ابوهریره ﷺ مورته دَ هدایت دعاوکړې شوه اوهدایت ورته ملاؤشو. په دې کښې دَ حضورپاك دَ معجزه ظهوراوشو.

**[۵۸۹۶] د ابوهریره ﷺ د حافظې قوي کیدو معجزه**

۵۸۹۶-(١) [٢٧] ①وَعَنْهُ، قَالَ: «إِنَّكُمْ تَقُولُونَ: أَكْثَرَ أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ②وَاللَّهُ الْمَوْعِدُ، وَإِنَّ إِخْوَتِي مِنَ الْمُهَاجِرِينَ كَانَ يَشْغَلُهُمُ الصَّفْقُ بِالْأَسْوَاقِ، ③ وَإِنَّ إِخْوَتِي مِنَ الْأَنْصَارِ كَانَ يَشْغَلُهُمْ عَمَلُ أَمْوَالِهِمْ، ④ وَكُنْتُ امْرَأً مِسْكِينًا أَلْزَمُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى مِلْءِ بَطْنِي،

**ترجمه:** ① اوحضرت ابوهریره ﷺ یوه ورځ تابعین مخاطب کولو سره یاځرنګه چې بعضې حضراتو ویلې دي متاخرین صحابه مخاطب کولو سره اوویل تاسو چې داوایې چې ابوهریره ﷺ دحضور ﷺ څخه ډیر زیات حدیثونه نقل کوي ② نو مخکې په دې پوهه شی چې دالله تعالی وعده برحق ده بیاداواوري زه دزیاتو حدیثونو بیانولو سبب تاسو ته بنایم چې زما مهاجر وروڼه خوبازار کښې خریدو فروخت مشغول کړی ؤو③ اوزما انصار وروڼوته دهغوی مزکې اوجائیداد فرصت نه ورکوی ④ اوهر چې زه یم نوزه یومفلس اومسکین سړی ووم په مړه خیټه طعام پیداکولو باندې قناعت کولو سره درسول کریم ﷺ په خدمت کښې به پروت ووم.

**حل اللغات:** - ①وَاللَّهُ الْمَوْعِدُ: ددې دوه معانې دی، ۱: الله مونږسره وعده کړې ده رپته به اولګی چه څوک رشتونې دې او څوک دروغجن. ۲: أَيْ لِقَاءُ اللَّهِ الْمَوْعِدُ: الله تعالی سره ملاویدلو وخت مقرردې یعنی ورځ دقیامت رکه زه څه کمې زیاتې کوم الله به ئې راسره حساب کتاب کوی). ② الصَّفْقُ: أَيْ: ضَرْبُ الْيَدِ عَلَى الْيَدِ عِنْدَ الْبَيْعِ: په وخت د بیع کښې یو لاس بل لاس ته په زور سره راپریخودل دا په اخستلو خرڅولو کښې د بیع منعقد کیدو څخه کنایه وی. ③ أَلْزَمُ: أَيْ: صُحْبَتَهُ وَخِدْمَتَهُ: یعنی هروخت به د نبی علیه السلام سره ووم اودهغوی خدمت به مې کولو.

① وَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمًا: ② «لَنْ يَبْسُطَ أَحَدٌ مِنْكُمْ ثَوْبَهُ حَتَّى أَقْضِيَ مَقَالَتِي هَذِهِ ④ ثُمَّ يَجْمَعَهُ إِلَى صَدْرِهِ فَيَنْسَى مِنْ مَقَالَتِي شَيْئًا أَبَدًا». ⑤ فَبَسَطْتُ نَمِرَةً لَيْسَ عَلَيَّ ثَوْبٌ غَيْرُهَا حَتَّى قَضَى النَّبِيُّ -صَلَّى

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب العلم/باب حفظ العلم (رقم-۱۱۸) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل جریر بن عبد الله رضی الله تعالی عنه (رقم-۱۳۶ - (۲۴۷۶) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب معاویة بن أبی سفیان رضی الله عنه (رقم-۳۸۴۲) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل جریر بن عبد الله البجلی (رقم-۱۵۹)

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَقَالَتَهُ، ⑥ ثُمَّ جَمَعْتُهَا إِلَى صَدْرِي، ⑦ فَوَالَّذِي بَعَثَهُ بِالْحَقِّ مَا نَسِيتُ مِنْ مَقَالَتِهِ ذٰلِكَ إِلَى يَوْمِي هٰذَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① بيا يوه ورځ داسې وشوه چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② که تاسو کښې يوسړی خپله کپړه خوره کړي اوهغه وقته پورې يې خوره کړي وي څوپورې چې زه خپله دعا پوره نه کړم ③ اوبيا هغه سړی خپله کپړه راغونډولو سره خپلې سينې سره ولګوي نو دا هيڅ کله نشي کيدی چې هغه دي زما حديث کلی طور سره ياجزوي طور سره کله هم هير کړي ⑤ نو ما فوراً خپل کمبله وغوړول چې دهغه نه علاوه ما سره بله څه کپړه نه وه اوهغه مې هغه وقته پورې خوره کړې وه ترڅو چې حضور ﷺ خپله خبره حديث پوره نه کړل ⑥ اوبيا هغه راغونډولو سره خپلې سينې سره مې ولګوله ⑦ قسم دي په هغه ذات چې حضور ﷺ يې په حق سره راليږلی دی دهغه نه وروسته ترننه پورې څه چې حضور ﷺ نه اورم هيڅ ارشاد يې نه هيروم. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** -④ أَقْضِيَ: أَيْ: أَفْرَغَ: پوره کړم، فارغ شم. ⑤ مَقَالَتِي: دخپلې خبرې نه (ددې نه مراد د ياد ساتلو اودحفظ کولو دعا ده يا هغه کلام دې کوم چه نبي عليه السلام شروع کړې وو. ⑥ نَمِرَةً: ددې جمع نِمَارٌ ده، أَيْ: شَمْلَةٌ مُخَطَّطَةٌ: برګ څادر، يا کمبل، (نَمِر ورته څکه وائی چې نمر پړانګ ته وائی اويه دې کښې هم لکه د پړانګ سپينې اوتورې کرښې وې).

**تسهيلات:**

**قوله:** أَكْثَرَ أَبُو هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ..الخ:

**د حضرت ابوهريره ﷛ په کم وخت کښې د زياتو احاديثو رانقل کولو وجوهات:** حضرت ابوهريره متأخر في الاسلام دې ليکن هغوی احاديث د ټولو نه زيات بيان کړی دی. په دې باندې په صحابه کرامو او تابعينو کښې يوشك موندلې شو چه دومره احاديث حضرت ابوهريره ﷛ څنګه بيان کړی دی. حضرت ابوهريره ﷛ ددې په بهادرئی سره جواب ورکړې دې. هغوی دوه قسمه جواب ورکړې دې.

(۱) اول جواب دا چه انصار او مهاجرين په خپلو کارونو کښې لګيا وو اوزه په اولګه تيرولو سره دَ حضورپاك په دروازه کښې پروت ووم اواحاديث به مې يادول په دې وجه زما احاديث زيات دی.

(۲) دويم جواب ئې دا ورکړې دې يوه ورځ حضورپاك اوفرمائيل چه زه څه وايم چاسره چه څادر وی راوړئ خور کړئ زه به په هغې باندې دم کوم. هغه سړې دې دغه څادر خپلې سينې سره اولګوی نو هغه به زما حديث کله هم هيرنه کړی. ما داسې اوکړه نود حضوراکرم ﷺ معجزه ښکاره شوه او زما حافظه داسې تيزه شوه چه دَ هغې نه پس مې دَ حضورپاك يو حديث چرته هير نه کړو.

## [۵۸۹۷]د جریر رضی الله عنه په حق کښې د دعا قبلیدو معجزه

۵۸۹۷- ()[۲۸] [۱]وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] (أَلَا تُرِيحُنِي مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ؟) [۳] فَقُلْتُ: بَلَى، وَكُنْتُ لَا أَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ، [۴] فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۵] فَضَرَبَ يَدَهُ عَلَى صَدْرِي حَتَّى رَأَيْتُ أَثَرَ يَدِهِ فِي صَدْرِي، [۶] وَقَالَ: (اللَّهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا). [۷] قَالَ: فَمَا وَقَعْتُ عَنْ فَرَسِي بَعْدُ، [۸] فَانْطَلَقَ فِي مِائَةٍ وَخَمْسِينَ فَارِسًا مِنْ أَحْمَسَ [۹] فَحَرَّقَهَا بِالنَّارِ وَكَسَّرَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** [۱] اوحضرت جریر ابن عبدالله بجلي وايي يوه ورځ رسول كريم ﷺ ماته وفرمايل [۲] اياته به ذوالخلصه ماتولو سره ماته راحت وه نه رسوي [۳] ما عرض وكی چې ها دهغه په ماتولو سره تاسو ته به ضرور راحت ورسوم ليكن زمادپاره يوه پريشاني داده چې زه دآس په سورلي پوره طور سره قادرنه ووم [او كله كله به ترې راوغورځيدم] [۴] ما نبي كريم ﷺ ته ددي ذكر وكی [چې ذوالخلصه ته رسيدو دپاره په آس سفر كول راځي اوزه دآس په سورلي پوره طور سره قادرنه يم] [۵] حضور ﷺ دي اوريدو سره زما په سينه دومره زور سره لاس مبارك راتيركړي چې مادهغه اثر سيني دننه پورې محسوس كړی [۶] اوبيايي زما په حق كښې دادعا وكړله اې الله جرير رضی الله عنه ظاهر اوباطن كښې ثابت اوقايم لري اودي هدايت ښوونكي اوهدايت پيداكونكي جوړ كړي [۷] حضرت جرير رضی الله عنه وايي دي دعا نه وروسته زه هيڅ كله دآس نه ونه غورځيدم [۸] اوبيادا احمس يونيم سل سوارهٔ اخستو سره جرير رضی الله عنه ذوالخلصه ماتولو دپاره روان شو [۹] هلته رسيدو سره هغوی ذوالخلصه تهاور ورته كړي اوهغه يي دړې وړې كړله (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَلَا تُرِيحُنِي: دا د إِرَاحَة نه دې، راحت وركولو ته وائي. أَيْ: أَلَا تُخَلِّصُنِي: ته به ماته خلاصې رانكړې (يعنى خلاص به مې نه كړې دهغې په سوزولو يا ورانولو سره). ② ذِي الْخَلَصَةِ: وَهُوَ بَيْتٌ كَانَ لِخَثْعَمَ: داد خثعم قبيلې مشهوره بت خانه وه دي ته به خلقو كَعْبَةُ الْيَمَامَةِ ونيل. ③ خَلَصَةُ: اسْمُ طَاغِيَتِهِمُ الَّتِي كَانَتْ فِيهِ: د يو بت نوم دي كوم چه په دغه بت خانه كښې وو ④ لَا أَثْبُتُ: ځانه نه شم مضبوطولي، ځان نه شم ټينګولي. ⑤ هَادِيًا: نورو ته هدايت ښودونكي ⑥ مَهْدِيًّا: په خپله هدايت حاصلونكي. ⑦ أَحْمَسَ: أَيْ: الشُّجَاعَةُ: بهادر (يعنى د قريشو شاه زلمي)

[1] اخرجه البخاری كتاب الجهاد والسير/باب حرق الدور والنخيل (رقم-۳۰۲۰) فی ومسلم فی كتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل جرير بن عبد الله رضی الله تعالی عنه (رقم-۱۳۶ - (۲٤۷۶) والترمذی فی كتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب معاوية بن أبی سفيان رضی الله عنه (رقم-۳۸٤۲) وابن ماجه فی كتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل جرير بن عبد الله البجلی (رقم-۱۵۹)

**تسهيلات: قوله:** مِنْ أَحْمَسَ:

**د احمس مصداق:** اي من قريش. قريش په تولو عربو كښې زيات بهادر مشهور وو په دې وجه هغوئ دَ احمس په نوم سره ياد كړې شو. بعضې وئيلي دي چه دا دَ حضرت جرير بن عبد الله ﷺ قبيله وه هيڅ تضاد نشته دي.

**[۵۸۹۸] د يو كس باره كښې د زمكې نه قبلولو معجزه**

۵۸۹۸-() [۲۹] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «إِنَّ رَجُلًا كَانَ يَكْتُبُ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَارْتَدَّ عَنِ الْإِسْلَامِ، وَلَحِقَ بِالْمُشْرِكِينَ، [۳] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِنَّ الْأَرْضَ لَا تَقْبَلُهُ). [۴] فَأَخْبَرَنِي أَبُو طَلْحَةَ أَنَّهُ أَتَى الْأَرْضَ الَّتِي مَاتَ فِيهَا فَوَجَدَهُ مَنْبُوذًا، [۵] فَقَالَ: مَا شَأْنُ هَذَا؟ فَقَالُوا: دَفَنَّاهُ مِرَارًا فَلَمْ تَقْبَلْهُ الْأَرْضُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت انس ﷺ وايي [۲] يو سړى چې دنبي كريم ﷺ وحي به يې ليكله مرتد شو اومشركانو سره يوځاي شو [۳] نبي كريم ﷺ ته چې دهغه باره كښې داطلاع ورسيده نوحضور ﷺ وفرمايل دي به زمكه قبول نه كړي [۴] دحضرت انس ﷺ بيان دی ابوطلحه ﷺ چې زما دمور خاوند ؤو ماته وښودل كوم وخت چې ابوطلحه ﷺ هغه مقام ته ورسيدی كوم ځاي چې هغه سړی مړ اودفن شوی وو نو وي ليدل چې هغه دقبر نه بهر پروت دی [۵] هغه دخلقو نه پوښتنه وكړه ده ته څه شوي دي چې دقبر نه بهر پروت دی خلقو جواب وركړی مونږ څوځلي داسړی دفن كړی دی ليكن زمكه يې نه قبلوي هر ځلي داسې وشي چې مونږ دی دفن كړو بيا چې راشو نو وينو چې بهر پروت دی اخر تنګ راتلو سره مونږ دده ښخول پريښي دي (بخاري مسلم).

**حل اللغات:** - ① فَارْتَدَّ: أَيْ: فَعَادَ نَصْرَانِيًّا: مرتد شو (اسلام ئې پريخودو او نصرانی جوړشو). ② مَنْبُوذًا: أَيْ مَطْرُوحًا: راغورزولې شوې (قبر به بهر راغورزولې وو).

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ الْأَرْضَ لَا تَقْبَلُهُ،

**د زمكې نه قبلول:** وئيلی شی دا سړې عيسائی ووبيا مسلمان شو بيا مرتد كيدو سره مشركينوسره ملاشو. حضورپاك اوفرمائيل زمكه به دا سړې قبول نه كړی. كيدې شی چه حضورپاك دغه وخت كښې څه بددعا هم كړې وی. اوس دَ مرګ نه پس قبر هغه قبول نه كړو. زمكې هغه بهر راګذار كړو. خلقو باربار ښخ كړو خوزمكې به هغه بهر راغورزولو بيا خلقو ښخول پريخودل.

[1] اخرجه البخاری فی كتاب المناقب/باب علامات النبوة فی الإسلام (رقم-۳۶۱۷) ومسلم فی كتاب صفات المنافقين واحكامهم (رقم-۱۴ - (۲۷۸۱) واحمد فی المسند: ۳ /۱۲۱

**[۵۸۹۹] ديهوديانو دقبرونو داحوالو كشف كيدو معجزه**

۵۸۹۹ -() [۳۰][۱]وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲]«خَرَجَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَقَدْ وَجَبَتِ الشَّمْسُ، [۳]فَسَمِعَ صَوْتًا، فَقَالَ: (يَهُودُ تُعَذَّبُ فِي قُبُورِهَا)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابوايوب انصاري ﷺ وايي[۲] يوه ورخ نبى كريم ﷺ نمر غرق يدو نه وروسته دكور نه اووتلو [۳] نويو آواز يې واوريدى هغه اواز اوريدو سره وي فرمايل دايهود دى يعنى دا آواز دهغه يهوديانو دي چې قبر كښې عذاب وركول كيږي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① وَجَبَتِ الشَّمْسُ: أَيْ سَقَطَتْ وَغَرَبَتْ: نمبر پريوتلي وو ، غروب شوې وو

**تسهيلات: قوله** فَسَمِعَ صَوْتًا:

**د آوازكونكى په مصداق كښې اقوال:** ① دا دَ هغه فرښتو آواز وو چه يهوديانوته نى په قبرونوكښې عذاب وركولو

② دا دَ هغه خلقو آواز ووچاته چه عذاب وركولې شو. يا دادَ عذاب دَ واقع كيدو آواز وو

**په حديث باندې اشكال:** په باب إثبات عذاب القبر كښې يو حديث تيرشوې دې په هغې كښې دى چه كله مړى ته په قبر كښې عذاب وركولې شى نو بغيردَ پيريانو او انسانانو نه نور ټول مخلوق دغه عذاب اورى خو دلته په حديث كښې دى چه حضورپاك دغه آواز اوريدلې دې. نو په ظاهره په دواړو احاديثوكښې تعارض دې؟

**د اشكال دوه جوابونه:** ① په هغه حديث كښې رسول الله ﷺ مستثنى دې چه كله الله تعالى غواړى نو حضورپاك ته دَ قبر عذاب ورښائى او چه كله نه غواړى نو نه ورښائى

② دَ رسول الله ﷺ يهوديانوته دَ عذاب كيدو آواز اوريدل دادَ رسول الله ﷺ دَمعجزاتو نه دى هم په دې وجه صاحب مشكوة دا په باب المعجزات كښې نقل كړې دې

**قوله:** يَهُودُ تُعَذَّبُ فِي قُبُورِهَا،

**د عذاب قبر خبر وركولو معجزه:** يعنى دَ قبر عذاب اودَ هغې احوال په حضورپاك باندې ښكاره شو په دې كښې دَ حضورپاك دَ معجزې ظهور اوشو

**[۵۹۰۰] سيلى ليدو سره ديومنافق دمرګ خبر وركولو معجزه**

۵۹۰۰-()[۳۱][۱]عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَدِمَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ سَفَرٍ، [۲]فَلَمَّا كَانَ قُرْبَ الْمَدِينَةِ هَاجَتْ رِيحٌ [۳]تَكَادُ أَنْ تَدْفِنَ الرَّاكِبَ، [۴]فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (بُعِثَتْ هَذِهِ الرِّيحُ لِمَوْتِ مُنَافِقٍ). [۵]فَقَدِمَ الْمَدِينَةَ، فَإِذَا عَظِيمٌ مِنَ الْمُنَافِقِينَ قَدْ مَاتَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الجنائز/باب التعوذ من عذاب القبر (رقم-۱۳۷۵) ومسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب عرض مقعد الميت من الجنة أو النار عليه. وإثبات عذاب القبر والتعوذ منه (رقم-۶۹ - (۲۸۶۹) والنسائى فى كتاب الجنائز/باب عذاب القبر (رقم-۲۰۵۹) واحمد فى المسند: ۴۱۷/۵

[۲] اخرجه مسلم فى كتاب صفات المنافقين وأحكامهم (رقم-۱۵ - (۲۷۸۲) واحمد فى المسند: ۳۱۵/۳

**ترجمه**:[۱] اوحضرت جابر ﷺ وايي يوه ورځ نبي كريم ﷺ دسفر نه مديني ته واپس راغلو [۲] مديني ته چې نژدې ورسيدى نوسخته سيلۍ راغله [۳] اوسخته هم دومره چې نژدې وو چې سواريه زمكه كښې دفن كړي ايعنى دهغه سيلۍ شدت اوتيزى ليدو سره داسې محسوسيده چې هيڅ سوار به په زمكه قائم نشى پاتې دطوفاني سيلۍ يوه سخته څپه به يې الوخولو سره يوسى اولري نامعلوم ځاى كښې به يې هلاک كړي[۴] حضور ﷺ په دي موقع وفرمايل داسيلۍ ديومنافق په مرګ راليږل شوي ده [۵] حضور ﷺ چې مديني ته داخل شو نومعلومه شوه چې دمنافقانو يولوى سردار مړشوي دي (مسلم)

**حل اللغات**:- ① هَاجَتْ: أَيْ: ثَارَتْ: راوالوته هوا ② تَدْفِنَ الرَّاكِبَ: أَيْ: أَنْ تَوَارِيَهُ: چه راوبه ئې غورځوى

**تسهيلات**:

**قوله**: هَاجَتْ رِيحٌ:

**د سختې هوا راوتل**: يعنى داسې سخته طوفانى هوا راوالوتله چه داسې معلوميدله چه يوسوربه هم په سورلئى باندې پرينږدى بلكه دَ سورلئى نه به ئې ښكته راګذاركړى او په زمكه كښې به ئې ورخښ كړى.

**قوله**: لِمَوْتِ مُنَافِقٍ:

**د بدكردار كس په مرګ هوا راوتل**: يعنى داسخته طوفانى هوادَيومنافق دَ مرګ دَوجې راغلې ده هغه داسې سپيره سړې وو چه دَهغه په مرګ باندې هم دَقدرت دَطرفه بدامنى، وحشت ګندګى اوبدحالى خوريدو قدرتى اظهار وو لكه دَ بدكردارحاكم په راتلوسره چه دَهغه خلاف مظاهره كيږى وائى چه دَدغه منافق نوم رفاعه بن دريدوو

**د منافق د مرګ خبرور كولو معجزه**: حضورپاك مديني ته دَرسيدونه وړاندې دَمعجزې په توګه دَهغه دَمرګ خبرور كړو داپه اخبار بالغيب كښې دَمعجزې ظهوروو

**[۵۹۰۱] د مديني دحفاظت په باره كښې د معجزې ښكاره كيدل**

[۵۹۰۱-(۱)] [۳۲] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حَتَّى قَدِمْنَا عُسْفَانَ، [۳] فَأَقَامَ بِهَا لَيَالِيَ، [۴] فَقَالَ النَّاسُ: مَا نَحْنُ هَاهُنَا فِي شَيْءٍ، [۵] وَإِنَّ عِيَالَنَا لَخُلُوفٌ مَا نَأْمَنُ عَلَيْهِمْ، [۶] فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ: (وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ [۷] مَا فِي الْمَدِينَةِ شِعْبٌ وَلَا نَقْبٌ إِلَّا عَلَيْهِ مَلَكَانِ [۸] يَحْرُسَانِهَا حَتَّى تَقْدَمُوا إِلَيْهَا)

**ترجمه**:[۱] اوحضرت ابوسعيد خدري ﷺ وايي[۲] مونږ نبى كريم ﷺ سره مكي نه مديني ته روان شو [دمكي نه تقريبًا (۳۶) ميله فاصله باندې] چې مقام عسفان ته ورسيدو [۳] نوحضور ﷺ هلته څوشپې قيام وكړى [۴] بعضې خلقو [يعنى منافقانو اوضعيف الاسلام

[۱] اخرجه مسلم فى باب الترغيب فى سكن المدينة والصبر على لأوائها(رقم-۴۷۵ - (۱۳۷۴) واحمد فى المسند:۲/۳۳۱

خلقو ددي خاي دقيام نه ويريدو سره؛ اوويل مونږ دلته بيكاره ولي پراته يو۵ هركله چې زمونږ اهل وعيال زمونږ نه لري مدينه كښې تنها دى اومونږ ته دهغوى په باره كښې اطمينان نشته (چې زمونږ دعدم موجودگي نه فائده اخستلو سره چيرته دښمن دهغوى لوټ مارته راخكته نشي) ٦ دهغه خلقو داخبره نبى كريم ﷺ ته هم ورسيده حضور ﷺ دي اوريدو سره وفرمايل قسم دي په هغه ذات چې دهغه قبضه كښې زما خان دى ٧ دمديني هيڅ لار اوهيڅ كوڅه داسې نشته چې په هغه دوه فرشتې مقررنه وي ٨ اوهغه فرشتې به دمديني دلارو اوكوڅو نگهباني اوحفاظت باندې هغه وقته پورې ماموره وي څو پورې چې تاسو مديني ته ونه رسيږئ

**حل اللغات:-** ① لَخُلُوفٌ: أَيْ نِسَاءٌ بِلَا رِجَالٍ: يواځې ښځې چه سړى ورسره نه وى. ② شِعْبٌ: طَرِيقٌ فِي الْجَبَلِ: د غر لار ته وائي ③ وَلَا نَقْبٌ: أَيْ: طَرِيقٌ بَيْنَ الْجَبَلَيْنِ: د دوه غرونو په مينځ كښې لار يعنى كندو ④ يَحْرُسَانِهَا: أَيْ: يَحْفَظَانِهَا: پهره دارى او حفاظت ئې كوى

> ١ ثُمَّ قَالَ: (ارْتَحِلُوا) فَارْتَحَلْنَا وَأَقْبَلْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ، ٢ فَوَالَّذِي يُحْلَفُ بِهِ مَا وَضَعْنَا رِحَالَنَا حِينَ دَخَلْنَا الْمَدِينَةَ ٣ حَتَّى أَغَارَ عَلَيْنَا بَنُو عَبْدِ اللَّهِ بْنِ غَطَفَانَ ٤ وَمَا يَهِيجُهُمْ قَبْلَ ذَلِكَ شَيْءٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ دي نه وروسته حضور ﷺ دهغه ځاي نه دكوچ كولو حكم وكى اومونږ روانيدو سره مديني ته ورسيدلو ٢ قسم دي په هغه ذات چې دهغه قسم خوړل كيږي يعنى په الله قسم مونږ مديني ته رسيدو سره لادخپلو اوښانو نه موخپل سامان خكته كړى نه ؤو ٣ چې اچانك بنو عبد الله بن عطفان پرمونږ اهل مدينه باندې راوختل ٤ حال دا چې زمونږ د راتلوڅخه مخكې څه داسې خبره نه وه پيښه شوى چې هغوى دي جنگ ته راوپاروي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ⑤ ارْتَحِلُوا: كوچ اوكړئ، ځئ روان شئ. ⑥ أَغَارَ: راوختل يعنى حمله ئې اوكړه (په مونږ مديني والو باندې) ⑦ وَمَا يَهِيجُهُمْ: مَا يُثِيرُ بَنِي عَبْدِ اللَّهِ: راپورته نه كړل هغوى لره (يعنى د عبد الله بن غطفان د حملې وس ئې اونشو)

**تسهيلات:**

**قوله: خُلُوفٌ:** يعنى هغه خلق خالى دى چرته دښمن حمله اونه كړى شعب كندې ته وائى نقب لارې ته وائى. بنوعبد الله. غطفان دَيوې قبيلې نوم دې

**قوله: مَا يَهِيجُهُمْ:**

**د نبى عليه السلام د معجزې ظهور:** يعنى هغه خلقوته زمونږ دَ رسيدونه وراندې په څه تيزباندې راؤچت نه كړل داد حضورپاك معجزه وه.

## [۵۹۰۲] باران سره متعلق دقبوليت دعا معجزه

۵۹۰۲-() [۳۳] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «أَصَابَتِ النَّاسَ سَنَةٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۲ فَبَيْنَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَخْطُبُ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ قَامَ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ: ۳ يَا رَسُولَ اللَّهِ! هَلَكَ الْمَالُ، وَجَاعَ الْعِيَالُ، فَادْعُ اللَّهَ لَنَا. ۴ فَرَفَعَ يَدَيْهِ وَمَا نَرَى فِي السَّمَاءِ قَزَعَةً، ۵ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا وَضَعَهَا حَتَّى ثَارَ السَّحَابُ أَمْثَالَ الْجِبَالِ،

**ترجمه:** ۱ اوحضرت انس ﷺ وايي درسول كريم ﷺ په زمانه كښې يو خل د باران نه كيدو په وجه قحط راغى ۲ په هغه ورځو كښې نبى كريم ﷺ دجمعې په ورځ خطبه وركوله چې يو باندچي (كليوال) اودريدلو عرض يې وكړو ۳ يارسول الله زمونږ مال اواسباب [يعنى كاشت ځاروي اودباغات داوبو نه حاصليدو په وجه] برباد شو اواهل وعيال مود لوږي نه په ژړادي الله تعالى نه زمونږ دپاره دعا وغواړه ۴ ددې په اوريدو سره حضور ﷺ دعا دپاره لاس مبارك اوچت كړل هغه وخت په آسمان باندې دوريځې يوه ټكړه ه مونږ ته په نظر نه راتله ۵ قسم دې په هغه ذات چې دهغه په قبضه كښې زما ساه ده حضور ﷺ دعا ختمولو سره اوس لاس مبارك لاته وو پريښى چې اچانك دغرونو په شان وريځ راپورته شوه

**حل اللغات:-** ① جَاعَ الْعِيَالُ: بال بچ مو اوږى ترږى شو (عيال هغې ته وائى دچا نفقه او خرچه چه په ده لازم وى) ② قَزَعَةً: أَيْ: قِطْعَةً مِنَ السَّحَابِ: د وريځې ټكړه. ③ ثَارَ: أَيْ: سَطَعَ وَظَهَرَ: وريځ راښكاره شوه، خوره شوه.

۱ ثُمَّ لَمْ يَنْزِلْ عَنْ مِنْبَرِهِ حَتَّى رَأَيْتُ الْمَطَرَ يَتَحَادَرُ عَلَى لِحْيَتِهِ، ۲ فَمُطِرْنَا يَوْمَنَا ذَلِكَ، وَمِنَ الْغَدِ، وَمِنْ بَعْدِ الْغَدِ حَتَّى الْجُمُعَةِ الْأُخْرَى، ۳ وَقَامَ ذَلِكَ الْأَعْرَابِيُّ -أَوْ غَيْرُهُ- فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! ۴ تَهَدَّمَ الْبِنَاءُ، وَغَرِقَ الْمَالُ، فَادْعُ اللَّهَ لَنَا ۵ فَرَفَعَ يَدَيْهِ فَقَالَ: (اللَّهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا). ۶ فَمَا يُشِيرُ إِلَى نَاحِيَةٍ مِنَ السَّحَابِ إِلَّا انْفَرَجَتْ ۷ وَصَارَتِ الْمَدِينَةُ مِثْلَ الْجَوْبَةِ، ۸ وَسَالَ الْوَادِي قَنَاةُ شَهْرًا، ۹ وَلَمْ يَجِئْ أَحَدٌ مِنْ نَاحِيَةٍ إِلَّا حَدَّثَ بِالْجَوْدِ.

**ترجمه:** ۱ اوحضور ﷺ لا دمنبر نه راكوز شوى نه ؤو ما وليدل چې داوبو قطري دحضور ﷺ په ږيره مباركه كښې څڅيدلي ۲ بيا دهغه جمعې په ورځ باقي حصه كښې اوبه ووريدلو په دويمه ورځ ووريدلو اوپه دريمه ورځ اووريدلو ددې پورې چې دويمې جمعې پورې دهغه باران سلسله جاري وه [اوهركله چې دمسلسل باران په وجه خلقوته نقصان كيدل شروع شو نوپه دويمه جمعه] ۳ دحضور ﷺ دخطبې په دوران كښې هغه باندچي (كليوال) يا يو دويم سړى اودريدلو اوعرض يې وكړ يارسول الله ۴ مكانات غورځيږي مال اواسباب غرقيږي تاسو ﷺ دالله تعالى نه زمونږ دپاره دعا وغواړئ [چې اوس باران اودريږي] ۵

---

[1] اخرجه البخارى فى كتاب الجمعة/باب الاستسقاء فى الخطبة يوم الجمعة (رقم-۹۳۳) ومسلم فى كتاب صلاة الاستسقاء/باب الدعاء فى الاستسقاء (رقم-۸ - (۸۹۷) والنسائى فى كتاب الاستسقاء/باب رفع الإمام يديه عند مسألة إمساك المطر (رقم-۱۵۲۸)واحمد فى المسند: ۳/۲۵۶

حضور ﷺ ددي په اوريدو سره خپل دواړه لاسونه مبارك اوچت كړل اودعا يې وكړله اې الله زمونږ په اطرافو كښې [يعنى كروندو اوباغاتو باندې] وورويږ زمونږ دپاسه [يعنى زمونږ په كورونو باندې يې] مه ورو ٦ ددې دعا نه وروسته حضور ﷺ چې به كوم طرف ته اشاره وكړله وريځ به هغه جانب نه خلاصيده ۷ ددې پورې چې مدينه ديو ګول كنډي په شان شوه [يعنى دمديني دښار بهرني حصه كښې څلور طرف ته وريځ وه اوباران كيدلې اوحال دا چې په منځ كښې دمديني دښار مطلع بالكل صاف وه اودپوره ابادي دپاسه دوريځې هيڅ ټکړه په نظر نه راتله] ۸ اودمديني بهر نورو اطرافو كښې دمسلسل باران په وجه هغه ناله چې دهغه نوم قناة ؤو يومياشت پورې بهيدله ۹ د اطرافوڅخه چې كوم سړي به دمديني ښار ته راتلو هغه به كثرت سره دباران خبرور كولي.

**حل اللغات:-** ④ يَتَحَادَرُ: دا تفاعل دې د حُدُور نه، ددې ضد صُعُود راځي. أَيْ يَنْزِلُ وَيَقْطُرُ: د باران څاڅكي رابهيدل (دباران اوبه چه كله په ږيره وغيره څه څيز باندې پريوځي او بهيږي نودې ته تحادر وائي) ⑤ تَهَدَّمَ: أَيْ: خَرِبَ: وران شو، خراب شو. ⑥ حَوَالَيْنَا: ګير چاپيره ځايونه زمونږ. ⑦ نَاحِيَةٍ: أَيْ: جَانِبٍ: طرف. ⑧ الْجَوْبَةِ: أي الْحُفْرَةِ الْمُسْتَدِيرَةِ: ډوغل، ګول او غونډئ كنده. ⑨ قَنَاةُ: دا يا بدل دې يا بيان دې د وادى دپاره، لښتي، خوړ. ⑩ بِالْجَوْدِ: أَيِ الْمَطَرِ الْكَثِيرِ: يعنى تولو اونيل چه ډير ښكلي اوزبردست باران اوشو.

---

۱ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: (اللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا، ۲ اللّٰهُمَّ عَلَى الْآكَامِ وَالظِّرَابِ ۳ وَبُطُونِ الْأَوْدِيَةِ، وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ) ۴ قَالَ: فَأَقْلَعَتْ، وَخَرَجْنَا نَمْشِي فِي الشَّمْسِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

**ترجمه:** ۱ اوپو روايت كښې دادى چې حضور ﷺ داسې دعا وكړله اې الله زمونږ اطرافو كښې ووروي په مونږ يې مه ورو ۲ اې الله غونډيو باندې غرونو باندې وورويږ ۳ ناليو كښې دننه اود ونو زرغونيدو په ځاي كښې [يعنى كروندو اوباغاتو باندې] يې وورويږ ۴ دحضرت انس رضي الله عنه بيان دى ددې دعا نه وروسته دښار بهر اطرافو كښې خوباران كيدى ليكن دآبادي په حصه كښې وريځ بالكل ختمه شوه اومونږ په داسې حال كښې بهرراووتلو چې په نمر كښې روان ؤو (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:-** ① الْآكَامِ: دا جمع ده اودې مفرد اكمة دې غونډئ ته وائي ② الظِّرَابِ: جمع ده اودې مفرد ظرب. كتف په وزن باندې دې، أَيْ: الْجِبَالِ الصِّغَارِ: وړوكى غرته وائي يعنى غونډئ. ③ بُطُونِ الْأَوْدِيَةِ: أَيْ: الْخَالِيَةِ عَنِ الْأَبْنِيَةِ: د واديانو په مينځ كښې علاقې كومې چه دَ آبادئى نه خالى وي. ④ مَنَابِتِ الشَّجَرِ: أَيْ: الْمُنْبِتِ لِلثَّمَرِ: مراد ځنګلات دى چرته چه ونې وى دهغې په جرړو كښې باران وى دې دپاره چه ونې ښه وده اوكړى. ⑤ فَأَقْلَعَتْ: ددې دوه معانې دى. ۱: أَيْ: كَفَّتِ السَّحَابُ: وريځ باران ورول بند كړل. ۲: أَيِ: انْكَشَفَتْ: اوريځ اخوا شوه.

**تسهیلات:**

**قوله**: اللَّهُمَّ حَوَالَيْنَا:

**د باران د مطلق بندیدو دعا نه غوښتل**: چونکه داباران به دَ حضورپاك په دعاسره راتلو په کوم کښې چه برکت اورحمت وو. په دې وجه حضورپاك دَ بندیدو دعا نه غوښتله بلکه فرمائیل به ئې چه اې الله په اطراف کښې اووروې په مونږ باندې نه.

**قوله**: قَنَاةُ:

**د قناة په تفسیر کښې دوه اقوال**: ① اوبه چه کله دَزمکې لاندې خې نودَ لختو شکل اختیاروی هم دغې ته قناة وائی فارسئی کښې دې ته کاریز وائی. قناة په اصل کښې نیزې ته وائی دا آوبه هم دَ نیزې په شان نیغې خې.

② قناة دَ یوې وادئی نوم هم کیدې شی.

**قوله**: فَأَقْلَعَتْ:

**په دعا کښې د لاسونو پورته کولو ثبوت**: په دې حدیث کښې تصریح ده چه دَدعا په وخت لاسونه اوچتول ثابت دی دادَ دعادَ آداب نه دی. ابوطالب دانظاره داسې پیش کړې ده:

وابیض یستسقی الغمام بوجهه ثمال الیتامی عصمة للارامل

بهرحال په دې حدیث کښې دَ باران متعلق دَ څو معجزاتو ظهور شوې دی.

**[۵۹۰۲] د نبی علیه السلام په فراق کښې داستوانه حنانه دژړا معجزه**

۵۹۰۳-()[۳۳] ① وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-إِذَا خَطَبَ اسْتَنَدَ إِلَى جِذْعِ نَخْلَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ، ③ فَلَمَّا صُنِعَ لَهُ الْمِنْبَرُ فَاسْتَوَى عَلَيْهِ، ④ صَاحَتِ النَّخْلَةُ الَّتِي كَانَ يَخْطُبُ عِنْدَهَا ⑤ حَتَّى كَادَتْ أَنْ تَنْشَقَّ، ⑥ فَنَزَلَ النَّبِيُّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-حَتَّى أَخَذَهَا فَضَمَّهَا إِلَيْهِ، ⑦ فَجَعَلَتْ تَئِنُّ أَنِينَ الصَّبِيِّ الَّذِي يُسَكَّتُ حَتَّى اسْتَقَرَّتْ، ⑧ قَالَ: (بَكَتْ عَلَى مَا كَانَتْ تَسْمَعُ مِنَ الذِّكْرِ)». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1]

**ترجمه**: ① اوحضرت جابر ﷺ وایي ② نبی کریم ﷺ چې به مسجد نبوي ﷺ کښې خطبه ورکوله نود کجوري هغه وچي تني سره څنګ وهلو سره به اودریدلو چې دیوي ستني ستون په طور مسجدکي ولاړه وه ③ بیا چې منبر تیار شو نوحضور ﷺ خطبه ویلو دپاره په هغه منبر اودریدلو ④ نود خورما هغه تنه چې هغه سره به شالګولو سره حضور ﷺ خطبه ورکوله په زوره زوره په ژړا شوله ⑤ او نزدې وه چې هغه دنبي کریم ﷺ دفراق جدایي اذیت دشدت نه وچوي ⑥ نبی کریم ﷺ منبر نه راکوزشو هغه ته ورغلی په لاسونو مبارکو سره یي ونیوله بیادهغه دتسلي دپاره هغه یي غاړې سره ولګوله ⑦ ددې نه وروسته هغه ستني دهغه بچي په شان ژړا شروع کړه چې هغه مختلف حیلو تدبیرونو سره چپ کولی شي اوهغه ژرنه چپ

[1] اخرجه البخاري في كتاب الجمعة /باب الخطبة على المنبر (رقم-۹۱۸)

کیږی اخر هغه ستني ته آرام راغی او هغه چپ شوه [٨] بیا حضور ﷺ د هغه ستني دژړا سبب دابیان کړي چې دي ستني په دي وجه وژړل چې د الله کوم ذکر یې اوریدی د هغه نه محرومه شوي ده (بخاري)

**حل اللغات:-** ① جِذْع: أَيْ: أَصْلِهَا وَسَاقِهَا: د ونې تنه، ② سَوَارِي: د سَارِيَة جمع ده، بِمَعْنَى الأُسْطُوَانَة: ستن (کومه چه چت ته اډانړې دپاره ولاړه وی) ③ صَاحَتْ: دَ ژړادَ وجې نه نې چغې کړې ④ تَنْشَقَّ: أَيْ: يَصْفَيْنِ أَوْقِطَعًا: دَ شلیدو په معنی کښې دې یعنی په منځ به اوچوی ⑤ فَضَمَّهَا: أَيْ: إِلَى نَفْسِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نبی علیه السلام خپل خان ته نزدې کړه (یعنی غاړه نې ورکړه چه تسلی نې اوشی) ⑥ تَئِنُّ: أَنَّ يَئِنُّ ضرب یضرب نه دې. ماشوم چه په ژړا ژړا کښې سلګۍ وهی هغې ته أَنِين وائی

**تسهیلات:**

**قوله:** صَاحَتِ النَّخْلَةُ الَّتِي كَانَ يَخْطُبُ عِنْدَهَا،

**د نبی علیه السلام په فراق د ونې ژړا کول:** په دغه ونه کښې دَمعجزه ظهور اوشو ونیلی شی چه دا ونه به جنت ته خی. لږ شان سوچ اوکړئی چه اوچه ونه دَ حضورپاك په فراق کښې ژاړی مګر غافل انسان په غفلت کښې پروت دې.

*سنگے وہانے کہ درو خاصیتے نیست — بہ زآدمی کہ درو معرفتے نیست*

**[٥٩٠٤] د بدعائي قبليدو معجزه**

٥٩٠٤-() [٣٥] [١] وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- «أَنَّ رَجُلًا أَكَلَ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِشِمَالِهِ [٢] فَقَالَ: (كُلْ بِيَمِينِكَ) [٣] قَالَ لَا أَسْتَطِيعُ. [٤] قَالَ: (لَا اسْتَطَعْتَ). [٥] مَا مَنَعَهُ إِلَّا الْكِبْرُ. [٦] قَالَ: فَمَا رَفَعَهَا إِلَى فِيهِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** [١] او حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه نه روایت دی یوسړي د رسول الله ﷺ مخکي په چپ لاس سره طعام خوړی [٢] حضور ﷺ ورته نصیحت وکړی چې ښي لاس سره خوره [٣] هغه سړی (په دی نصیحت باندي دعمل کولو په ځای) جواب ورکړی چې زه ښي لاس سره نشم خوړلی [٤] حضور ﷺ (د بد دعا په طور) وفرمایل تاته دي ښي لاس سره خوړلو باندې هیڅ کله قدرت نه وي [٥] (دراصل) هغه سړی غرور کښې راتلو سره ښي لاس سره یې طعام نه خوړلو [٦] راوي وايي دحضور ﷺ د هغه بد دعا په نتیجه کښې هغه سړی خپل ښي لاس خولي پورې پورته کولو باندې هم قادر نه شو (مسلم)

**تسهیلات:** **قوله:** قَالَ: (لَا اسْتَطَعْتَ)

**اشکال:** په حدیث الباب کښې دی جه حضورپاك دَ رحمة للعالمین کیدو باوجود دَ هغه سړی خلاف څنګه بد دعا اوکړه؟

---

[1] اخرجه مسلم کتاب الأشربة/باب آداب الطعام والشراب وأحكامهما (رقم-١٠٧ - (٢٠٢١)

**داشکال دوه جوابونه:** ① هغه سړي دَ حضورپاك نصيحت اوريدو سره دَ صحيح عمل كولو په ځائي دَ خپل غلط عمل دَ دروغو تاويل اوكړو
② هغه دَ څه مجبورئي په وجه نه بلکه دَ تكبر په وجه ئي داسې كول او دَ جاهليت په زمانه كښې مالدارانو او سردارانو خلقو به په الټه لاس سره دَ تكبر په توګه خوراك كولو په دې وجه هغه دَ رسول الله ﷺ په نصيحت باندې ډير په بې باكئي سره دکبر جواب ورکړو چه زما ښي لاس زما خلې ته نه رسيږي نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه راتلونکي وخت کښې به هم ته خپل لاس خلې ته اونه رسولې شې. هغه ډير زيات علاج اوکړو مګر دَ حضورپاك دَ بددعا دا اثر اوشو چه هغه تر مرګه پورې ښې لاس دَ خلې پورې نه شو اوچتولې. دا دَ رسول الله ﷺ معجزه وه.

**[۵۹۰۵] دنبی کریم ﷺ دسوریدو په وجه دلټي اوښې د تيزرفتاري معجزه**

٥٩٠٥-() [٣٦] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ أَهْلَ الْمَدِينَةِ فَزِعُوا مَرَّةً، [٢] فَرَكِبَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَرَسًا لِأَبِي طَلْحَةَ بَطِيئًا [٣] وَكَانَ يَقْطِفُ، فَلَمَّا رَجَعَ قَالَ: [٤] (وَجَدْنَا فَرَسَكُمْ هَذَا بَحْرًا) [٥]. فَكَانَ بَعْدَ ذَلِكَ لَا يُجَارَى. [٦] وَفِي رِوَايَةٍ: فَمَا سُبِقَ بَعْدَ ذَلِكَ الْيَوْمِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت انس ﷺ نه روايت دی يو ځل د شپې اهل مدينه دغلو ياددښمن خطره محسوسولو سره ووېرېدل [اوژړا فرياد يې شروع کړي] [٢] نبی کريم ﷺ دصورت حال تحقيق دپاره دابوطلحه ﷺ [په بربنډه شا] آس باندې سوريدو سره هغه طرف ته چې دهغه نه خطره محسوسيده تشريف يو وړی دغه اس ډيرسست رفتار ؤو [٣] واړه واړه قدمونه به ئې اخستل چې وروسته راغلی نوابوطلحه ﷺ ته يې وفرمايل [٤] مونږ خوستا آس داوبو په شان تيز رفتار اوکشاده قدم پيدا کړي [٥] نودحضور ﷺ دسورلې نه وروسته هغه آس داسې تيز رفتار شو چې هيڅ آس هغه سره تلې نه شو [٦] اوپه يو روايت کښې دالفاظ دي چې دهغه ورځې نه وروسته هيڅ آس دهغه نه مخکې کيدی نه شو. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① بَطِيئًا: أَيْ: فِي الْجَرْيِ وَالْمَشْيِ: يعنې سست رفتار اس وو ② يَقْطِفُ: أَيْ: يَتَقَارَبُ خُطَاهُ: نيزدې نيزدې قدم کېخودو سره تلونکی اس ته قطوف وائي ③ بَحْرًا: سمندر. دا کنايه ده د تيز رفتارئ نه. يعنې دا اس خودَ سمندر په شان تيز څي يا دَدې رفتارخودَسمندر غوندې يوشان روان دې کله ختميږي نه ④ لَا يُجَارَى: أَيْ: لَا يُغَالَبُ فِي الْجَرْيِ: دَ مجارات نه دې دَمقابله په معنی کښې دې يعنې يو اس دَ هغه مقابله نه شوه کولې ځکه چه دَ حضورپاك په سوريدو سره په دې کښې دَمعجزه ظهور اوشو.

[1] اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير /باب الفرس القطوف (رقم-٢٨٦٧) ومسلم في كتاب الفضائل /باب في شجاعة النبي عليه السلام وتقدمه للحرب (رقم-٤٩ - (٢٣٠٧) وابن ماجه في كتاب الجهاد /باب الخروج في النفير (رقم-٢٧٧٢) واحمد في المسند: ١٤٧/٣

**تسهیلات: قوله:** وَجَدْنَا فَرَسَكُمْ هَذَا بَحْرًا،

**د حدیث څخه د دوو مسئلو معلومیدل:** ① دَ یوڅیز په کمال باندې دَ هغې تعریف جائز دې ② په تعریف کښې مبالغه کول هم جائز دی خوچه په محدود دائره کښې وی.

**[۵۹۰٦] په تجورو کښې دبرکت معجزه**

۵۹۰٦-() [۳۷] ①«وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: تُوُفِّيَ أَبِي وَعَلَيْهِ دَيْنٌ، ② فَعَرَضْتُ عَلَى غُرَمَائِهِ أَنْ يَأْخُذُوا التَّمْرَ بِمَا عَلَيْهِ، فَأَبَوْا، ③ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقُلْتُ: ④ قَدْ عَلِمْتَ أَنَّ وَالِدِي اسْتُشْهِدَ يَوْمَ أُحُدٍ وَتَرَكَ دَيْنًا كَثِيرًا، ⑤ وَإِنِّي أُحِبُّ أَنْ يَرَاكَ الْغُرَمَاءُ، ⑥ فَقَالَ لِي: (اذْهَبْ فَبَيْدِرْ كُلَّ تَمْرٍ عَلَى نَاحِيَةٍ، ⑦ فَفَعَلْتُ، ثُمَّ دَعَوْتُهُ، ⑧ فَلَمَّا نَظَرُوا إِلَيْهِ كَأَنَّهُمْ أُغْرُوا بِي تِلْكَ السَّاعَةَ،

**ترجمه:** ① اوحضرت جابر بن عبد الله ﷺ وایي کوم وخت چې زما پلار وفات شو نو دهغه په ذمه ډیره قرضه وه ② ما هغه قرضدارو ته پیشکش وکی چې زمونږ سره خومره خورماوي دي هغه تولي زما دپلار دقرض په بدل کښې واخلي لیکن هغوی زما خبره منلو نه انکار وکی ③ څکه چې قرض خواه چې یهودیان ؤو هغه خورماوي یي دخپل قرض مقابله کښې ډیري کمي کڼلي اخر زه دنبي کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم اوعرض مي وکی یارسول الله ﷺ ④ تاسو ﷺ ته معلومه ده چې زما پلاریه جنګ احد کښې شهید شوي دي اوهغه ځان پسې ډیر قرض پریښی دي ⑤ زه غوارم چې قرض خواه تاسو ﷺ ما سره ووینې [یعني څه داسې صورت وي چې کله قرض خواه ماته راشي نو تاسو ﷺ تشریف فرمایي چې ستاسو ﷺ په لیدو سره ما سره څه رعایت وکړي] ⑥ حضور ﷺ دي اوریدو سره ماته وفرمایل لاړ شه اودهرقسم کجورو جدا جدا ډهیری ولګوه ⑦ نوما دغه شان وکړل [ما سره چې خومره خورماوي وي تولي مي جدا جدا کوړو کې کړلې] اودي نه وروسته مې حضور ﷺ ته دتشریف اوري اوویل ⑧ قرض خوا هانو د حضور ﷺ تشریف راوړل ولیدل نو هغه وخت فوراً داسې رویه یي اختیار کړله لکه چې هغوی په ماحاوي شوي وي [یعني هغوی داګمان وکی چې حضور ﷺ به کلي یاجزوي طور سره مونږته دقرض معاف کولو تلقین وکی یاڅه نورو ورځو پورې دصبر کولو مشوره به راکړي نودحضور ﷺ لیدو سره هغوی زما نه سخته لهجه کښې دقرض دواپسې مطالبه شروع کړله اودمخکي نه یي خپله رویه داسې ظاهره کړه لکه چې هغوی دابنودل غواړي چې دپوره قرض فوري واپسې نه علاوه بل هیڅ خبري ته تیارنه وي]

**حل اللغات:-** ① غُرَمَائِهِ: قرض خواهان، قرض غوښتونکی. ② فَبَيْدِرْ: دا دَ امرصیغه ده دَ ډهیری جوړولوپه معنی کښې دي «بَيْدَرْ: هغه ځاني ته واني چرته چه خوراک یا غله ډهیری کولې شي یعني

[1] اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۴۰۵۳

درمن، ③ أَغْرُوا: داد اغراء نه دي چا پسې سپی کولوته اغراء وائی أَيْ: لَجُّوا فِي مُطَالَبَتِي: يعنى زما په لټون پسې اولګيدل

١ فَلَمَّا رَأَى مَا يَصْنَعُونَ ٢ طَافَ حَوْلَ أَعْظَمِهَا بَيْدَرًا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ جَلَسَ عَلَيْهِ، ٣ ثُمَّ قَالَ: (ادْعُ لِي أَصْحَابَكَ). ٤ فَمَا زَالَ يَكِيلُ لَهُمْ حَتَّى أَدَّى اللهُ عَنْ وَالِدِي أَمَانَتَهُ، ٥ وَأَنَا أَرْضَى أَنْ يُؤَدِّيَ اللهُ أَمَانَةَ وَالِدِي ٦ وَلَا أَرْجِعُ إِلَى أَخَوَاتِي بِتَمْرَةٍ، ٧ فَسَلَّمَ اللهُ الْبَيَادِرَ كُلَّهَا، ٨ وَحَتَّى إِنِّي أَنْظُرُ إِلَى الْبَيْدَرِ الَّذِي كَانَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ٩ كَأَنَّهَا لَمْ تَنْقُصْ تَمْرَةً وَاحِدَةً». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضور ﷺ چې دهغه قرض خواهانو دا رويه وليده ٢ نو اهغوى ته څه ويلوڅخه بغير ا دټولو نه دلوى ډهيرى نه يې چاپيره درې چکره ولګول اوبيا هغه ډهيرى باندې کيناستلو ٣ او ماته يې وفرمايل خپل قرض خواه راوبله ٤ هر کله چې هغوى راغلل نو حضور ﷺ په حکم سره دهغه ډهيرى نه په ناپ تول سره قرض خواهوته ورکول شروع کړل ددې پورې چې الله تعالى زما دپلار ټوله قرضه اداکړله ٥ اګرکه زما دخوشحالي دپاره داڅه کم نه ؤو چې الله تعالى زما دهغه قجورو نه زما دپلار ټوله قرضه اداء کړله ٦ که خپلو خويندوته وړلو دپاره يوه قجوره هم نه وي بچ شوى ٧ ليکن الله تعالى خو اد حضور ﷺ معجزي سره ا ټول ډهيرى محفوظ وساتل ٨ اوپه کوم ډهيرى چې حضور ﷺ ناست ؤو ماهغه طرف ته نظر اوچت کړى ٩ نوداسې لګيده چې دهغه نه يوه قجوره هم نه ده کمه شوى ااوهر کله چې هغه ډهيرى نه هيڅ کم نه شو چې هغه نه دقرض خواهو دمطالبې په قدر ورکړل شو نوباقې ډهيرى خوبدرجه اولى سالم اومحفوظ پاتې شوا (بخاري)

**تسهيلات: قوله:** عَلَى غُرَمَائِهِ:

**دغرماؤ پيژندګلو:** يعنى د پلار قرض خواهانوته ما خپل باغ پيش کړومګر هغوى کم ګڼرلوسره انکاراوکړو دا قرض خواه يهوديان وو (مرقات)

**قوله:** أَغْرُوا بِي:

**دا غرو مفهوم:** يعنى حضور پاك ليدو سره هغه خلق ماسره ګرم شو اوپه کلام کښې سختى پيداکړه چه تاد سفارش دا صورت ولې جوړکړو؟ قرض خواه يهوديان وو يا ددې دپاره ګرم شوچه د دومره زياتو قرض خواهانودپاره دا دومره لږ شان مال دې پښتوکښې ددې ترجمه داده. لکه د سپو په شان ماپسې کړې شو.

**قوله:** أَعْظَمِهَا بَيْدَرًا:

**دنبى عليه السلام د ډيرې زياتولو دپاره عمل:** حضورپاك چه کله اوکتل چه دا يهودې فائدې بدتميزى کوى نو حضورپاك د کهجورو د لوئى ډهيرى نه چاپيره درې ځل راتاؤ شو اوبيا هغې سره کيناستو.

**قوله**: تَمْرَةً وَاحِدَةً:

**د نبی علیه السلام د معجزې ظهور**: یعنی ټول قرض ورکړې شو مګر د کهجورو دغه ډهیرۍ کښې داسې بنکاریدل چه د کهجورو یوه دانه هم نه وی کمه شوی ځکه چه د حضورپاك برکت سره په دې کښې د معجزه ظهور اوشو.

**[۵۹۰۷] دغوړو دمشکیزې نه تشیدو معجزه**

۵۹۰۷-() [۳۸] ① وَعَنْهُ، قَالَ: «إِنَّ أُمَّ مَالِكٍ كَانَتْ تُهْدِي لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي عُكَّةٍ لَهَا سَمْنًا، ② فَيَأْتِيهَا بَنُوهَا فَيَسْأَلُونَ الْأُدُمَ وَلَيْسَ عِنْدَهُمْ شَيْءٌ ③ فَتَعْمِدُ إِلَى الَّذِي كَانَتْ تُهْدِي فِيهِ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ④ فَتَجِدُ فِيهِ سَمْنًا، ⑤ فَمَا زَالَ يُقِيمُ لَهَا أُدُمَ بَيْتِهَا حَتَّى عَصَرَتْهُ، ⑥ فَأَتَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: (عَصَرْتِيهَا؟). قَالَتْ: نَعَمْ. ⑦ قَالَ: (لَوْ تَرَكْتِيهَا مَا زَالَ قَائِمًا)» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**توجمه**: ① اوحضرت جابر ﷺ بیان کوي یوه انصاریه صحابیه بي بي ام مالک ﷺ به د حضور ﷺ خدمت کښې یوې مشکیزې کښې دغوړو هدیه لیږله ② هغه مشکیزې کښې دومره برکت راغلی وو چې کله به دبي بي ام مالک ﷺ زامن کورته راتلل اود خوراک دپاره به یې څه سالن غوښتی اوهغه سره به څه سالن موجود نه وؤ ③ نو هغه به هغه مشکیزې ته ورتله چې په هغه کښې به یې نبی کریم ﷺ ته غوړي لیږل [یعنی هغې به هغه مشکیزه اوچتولو سره هغه کښې غوړي کتل] ④ اوهغې ته به دهغه نه غوړي حاصلیدل ⑤ کافي ورځو پورې داسلسله جاري وه [چې هغه مشکیزې سره لګیدلي غوړي دهغه پوره کور دپاره دسالن ضرورت پوره کوي بیا یوه ورځ داسې وشوه چې ام مالک ﷺ دزیاتو غوړو اخستلو په طمع] هغه مشکیزې کښې چې څه غوړي لګیدلي وه هغه نستیږلو سره ټول یې راوښکل [دهغه اثر داوسو چې هغه دهغه دبرکت نه محرومه شوه اوکوروالو ته روټۍ خوړلو دپاره چې دکوم شي سهاره وه هغه حاصلیدل بند شوځکه چې حرص اوطمع خویده بلاده چې هغه سره آخر الامرد محرومي نه علاوه هیڅ نه حاصلیږي] ⑥ ام مالک ﷺ دنبي کریم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه اوداقصه یې ورته بیان کړه حضور ﷺ تري پوښتنه وکړه ایاتاهغه مشکیزه بالکل نستیرلې ده؟ هغې اوویل چې ها ⑦ نو حضور ﷺ ورته وفرمایل که تا مشکیزه داسې نه وی نچوړ کړي نو همیشه به تاته ددې مشکیزې نه غوړي حاصلیدل [ځکه که هغه مشکیزه کښې څه لږ غوړي هم لګیدلي وې نو هغه کښې به برکت راځکته کیدي او هرکله چه په یوشي کښې برکت راځکته کیږی که هغه شی لږشان هم وي خوزیاتیږي] (مسلم)

**حل اللغات**: - ① عُكَّةٍ: أي قِرْبَةٌ صَغِيرَةٌ. وړوکې مکشیزه (هِيَ وِعَاءٌ مِنْ جِلْدٍ مُسْتَدِيرٍ: د څرمن نه جوړه شوې وړه شان مشکیزه چه غوړي یا شهد به پکښې اچولې شو). ② سَمْنًا: غوړي. ③ الْأُدُمَ: أَيِ الْإِدَامَ: سالن، ترکاري، اینګلې.

---

() اخرجه مسلم فی صحیح رقم الحدیث ۸/ ۲۲۸۰ واحمد فی المسند رقم الحدیث ۳/ ۳۴۰

**تسهيلات:**

**قوله: فِي عُكَّةٍ لَهَا سَمْنًا،**

**د غوړو د رياتيدو معجزه:** دَحديث مطلب دادې چه ام مالك به د غرمنې په يوه كسوړه كښې غوړي كيخودل اودَحضورپاك دَپاره به ئې دَ هديه په توګه راليګل كله به داسې اوشوچه دَام مالك خامن به راغلل تركارى به ئې غوښتله نوام مالك به هم دغه كسوړې طرف ته مخ كولو خكه چه دَ سالن اوتركارئې بل څه انتظام نه وو. البته په دغه كېنى كښې دَ معجزې ظهورشوې وو نو په دې كښې به هروخت غوړي ملاويدل. داسلسله هم روانه وه تردې چه يوه ورځ ام مالك دَدې نه ټول غوړي صفاكړل نودَ بركت اومعجزې دا سلسله بنده شوه.

**د الله تعالى خصوصى انعام پټ ساتل:** علماؤليكلى دى چه معجزه يوغيبى انتظام د داهم پټ ساتل پكاردى. دَ خوراك څښاك دَ څيزونو جوړه ښكاره كولوسره معجزه موقوف كيږي دَ خوراك څښاك په څيزونوكښې خو بركت او اضافه كيږي ليكن اصل ماده په ځائې ساتل ضروري وى.

**قوله: عَصَرْتِيهَا:**

**دمذكوره جملې مطلب:** آياتادغه كسوړه بالكل نچوړى كړه؟په دې صيغه كښې دَ "ى" لفظ دَ اشباع دَپاره دې اوپه تركتيهاكښې هم "ى" اشباع دَپاره ده دَدې مفهوم په ترجمه كولوسره واضحه كيږي دَدې تعلق دَ كلام لهجې سره دې.

**[۵۹۰۸] طعام كښې دبركت معجزه**

۵۹۰۸-() [۳۹] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ أَبُو طَلْحَةَ لِأُمِّ سُلَيْمٍ: ۲ لَقَدْ سَمِعْتُ صَوْتَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ضَعِيفًا أَعْرِفُ فِيهِ الْجُوعَ، ۳ فَهَلْ عِنْدَكِ مِنْ شَيْءٍ؟ فَقَالَتْ: نَعَمْ، ۴ فَأَخْرَجَتْ أَقْرَاصًا مِنْ شَعِيرٍ، ۵ ثُمَّ أَخْرَجَتْ خِمَارًا لَهَا فَلَفَّتِ الْخُبْزَ بِبَعْضِهِ، ۶ ثُمَّ دَسَّتْهُ تَحْتَ يَدِي وَلَاثَتْنِي بِبَعْضِهِ، ۷ ثُمَّ أَرْسَلَتْنِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَذَهَبْتُ بِهِ،

**ترجمه:** ۱ اوحضرت انس ﷺ وايي يوه ورځ ابوطلحه انصاري ﷺ چې زما پلندر ؤو كورته راتلو سره زما مور سليم ﷺ ته يي اوويل ۲ نن مادرسول الله ﷺ اواز كښې ډيره كمزوري محسوسه كړه چې هغه سره ماته اندازه وشوه چې حضور ﷺ اوږي دي ۳ اياتا سره دخوراك څه شى شته ام سليم ﷺ جواب وركړي چې شته ۴ بيا هغه داوربشو خوروټى راوښكلي ۵ خپل څادر يي رواخستي اودهغه يوه حصه كښې يي روټي. اونغښتلي ۶

---

[1] اخرجه البخارى كتاب المناقب/باب علامات النبوة فى الإسلام (رقم-۳۵۷۸) فى ومسلم فى كتاب الأشربة/باب جواز استتباعه غيره إلى دار من يثق برضاه بذلك، وبتحققه تحققا تاما، واستحباب الاجتماع على الطعام (رقم-۱۴۲ - (۲۰۴۰) ومالك فى الموطا كتاب صفة النبى صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى معى الكافر (رقم-۱۰)

اوبلې حصې سره يې زما سرپټ کړې اوبيا پرونې کښې انغښتې روټئ يې زما تر لاس لاندې پټې کړې [۷] اوزه يې د رسول کريم ﷺ په خدمت کښې وليږلم زه هغه ډوډيو سره ورسيدم

**حل اللغات:**- ① أقْرَاصًا: داد قرص جمع ده روټئ ته وائي ② خِمَارًا: وَهُوَمَاتَسْتُرُالْمَرْأَةُبِهٖرَأْسَهَا: هغه کپړه چه زنانه پرې سر پټوي يعنى لوپټه ③ فَلَفَّتْ: راوينغښتلې، پټې ئې کړې (روټئ) ④ دَسَّتْهُ: أَيْ: خَبَّأَتْهُ وَأَخْفَتْهُ: دس يدس نصر ينصر نه دباؤ کولو او پټولو په معنى کښې دې خاص کړ په موټى کښې زور ورکولو دپاره استعماليږي ⑤ وَلَاثَتْنِي: أَيْ: عَمَّتْنِي: نصر ينصر نه لوث رانغښتل اوپټکې جوړولو په معنى کښې راځي يعنى پټکې ئې راته اوتړلو

[۱] فَوَجَدْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْمَسْجِدِ [۲] وَمَعَهُ النَّاسُ فَقُمْتُ عَلَيْهِمْ، [۳] فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (أَرْسَلَكَ أَبُو طَلْحَةَ؟) . [۴] قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: (بِطَعَامٍ؟) قُلْتُ: نَعَمْ. [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِمَنْ مَعَهُ: (قُومُوا) . [۶] فَانْطَلَقَ وَانْطَلَقْتُ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ حَتَّى جِئْتُ أَبَا طَلْحَةَ. فَأَخْبَرْتُهُ،

**توجمه:** [۱] رسول کريم ﷺ هغه وخت په مسجد کښې تشريف فرماؤو [۲] او ډير خلق [اچې دهغوى تعداد داتيا ؤو]، حضور ﷺ سره ناست وو ماتولوته سلام وکى [۳] رسول کريم ﷺ دسلام جواب راکولوځخه وروسته زما نه پوښتنه وکړه اياته ابوطلحه ﷺ راليږلې يې ؟ [۴] ماعرض وکی جي هو حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې روټئ درکړې ده راليږلې يې ماوويل چې هو [۵] رسول کريم ﷺ زما جواب اوريدو سره هغه خلقوته چې رسول کريم ﷺ سره ناست وو وفرمايل را پاځي [ادابوطلحه ﷺ کورته ورځو] [۶] ددې نه وروسته حضور ﷺ اوهغه ټول خلق دابوطلحه ﷺ دکور طرف ته روان شو اوزه هم دحضور ﷺ مخکې روان شوم ځرنګه چې خادم اوکوربه مخکې ځي يابه دې خيال مخکې لاړلو چې مخکې رسيدو سره ابوطلحه ﷺ ته دحضور ﷺ دتشريف اوري خبر ورکړي.

[۱] فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ: يَا أُمَّ سُلَيْمٍ قَدْ جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالنَّاسِ وَلَيْسَ عِنْدَنَا مَا نُطْعِمُهُمْ [۲] فَقَالَتْ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ. [۳] فَانْطَلَقَ أَبُو طَلْحَةَ حَتَّى لَقِيَ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴] فَأَقْبَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَبُو طَلْحَةَ مَعَهُ. [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (هَلُمِّي يَا أُمَّ سُلَيْمٍ! مَا عِنْدَكِ) فَأَتَتْ بِذَٰلِكَ الْخُبْزِ،

**توجمه:** [۱] ابوطلحه ﷺ اچې حضور ﷺ سره ددومره ډيرو کسانو دراتلو خبر واوريدې نوهغه] اوويل اې ام سليم ﷺ رسول الله ﷺ تشريف راوړى اوحضور ﷺ سره صحابه ﷺ هم دې حال دا چې امونږ سره ددې څو ډوډيو څخه علاوه چې مونږ دحضور ﷺ په خدمت کښې ليږلې وې دومره ډيرو کسانو باندې دخوړولو دپاره] څه شى نشته [۲] ام سليم ﷺ جواب ورکړو الله اودهغه رسول ښه پوهيږي [۳] بيا ابو طلحه ﷺ دحضور ﷺ داستقبال دپاره دکور نه بهر ووتې اولاړ کښې رسيدو سره حضور ﷺ سره يې ملاقات وکى [۴] دې نه

وروسته رسول كريم ﷺ دابو طلحه ﷺ كورته تشريف راوړى ۵ او كورته رسيدو سره يې وفرمايل اې ام سليم ﷺ دروټئ دقسم نه څه چې تا سره وي هغه راوړه ام سليم ﷺ هغه روټئ چې هغه سره وي راوړې دحضور ﷺ مخكې يې كښيخو دلې.

**حل اللغات:** -۞ هَلُمِّي: أَيْ: عَجِّلِي وَأَحْضِرِي: زر راوړه، حاضر كړه.

١ فَأَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَفُتَّ، ٢ وَعَصَرَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ عُكَّةً فَأَدَمَتْهُ، ٣ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِيهِ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَقُولَ، ٤ ثُمَّ قَالَ: (ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ) فَأَذِنَ لَهُمْ ٥ فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا، ثُمَّ خَرَجُوا، ثُمَّ قَالَ: ٦ ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ فَأَذِنَ لَهُمْ، فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا، ثُمَّ خَرَجُوا، ٧ ثُمَّ قَالَ: ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ، فَأَذِنَ لَهُمْ فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا، ثُمَّ خَرَجُوا. ٨ ثُمَّ قَالَ: (ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ ثُمَّ لِعَشَرَةٍ) فَأَكَلَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ وَشَبِعُوا، ٩ وَالْقَوْمُ سَبْعُونَ أَوْ ثَمَانُونَ رَجُلًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضور ﷺ [ابو طلحه ﷺ ته يا بل چاته] حكم وكړ [چې هغه روټئ ميده كړې] نو هغه روټئ ميده كړل شوې ٢ او ام سليم ﷺ دغوړو مشكيزه نچوړولو سره غوړي راوښكل اوهغه يې دسالن په طور كېښودل ٣ دې نه وروسته رسول كريم ﷺ دهغه روټئ سالن په باره كښې هغه وفرمايل څه چې الله تعالى غوښتل ۴ بيا حضور ﷺ ماته يا ابو طلحه ﷺ ته يابل چاته حكم وكړ چې لس سړي راوغواړه نولس سړي راوغوښتي شول ۵ هغوى په مړه خيټه طعام وخوړلې بياچې هغوى لاړل نوحضور ﷺ وفرمايل ٦ چې لس سړي راوغواړه نولس سړي راوغوښتي شول هغوى په مړه خيټه طعام وخوړلې بياچې هغوى لاړل ٧ چې لس سړي راوغواړه نولس سړي راوغوښتي شول هغوى په مړه خيټه طعام وخوړلې بياچې هغوى لاړل نوحضور ﷺ وفرمايل ٨ نوحضور ﷺ وفرمايل لس لس كسان رابللو سره پرې خوروي [نولس لس سړي بللو سره موړېې طعام خورولو ددې پورې] چې هغه ټولو لښكر طعام په مړه خيټه وخوړلې ٩ اوداټول اويا يا اتيا سړي ؤو. (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** -۞ فَفُتَّ: أَيْ: جُعِلَ فَتِيتًا أَيْ قِطَعًا صِغَارًا: روټئ ئې وړه وړه كولو او چورى كولو سره ماته كړه. ۞ عَصَرَتْ: نچوړئې كړو مشكيزه د غوړو. ۞ عُكَّةً: أَيْ قِرْبَةً صَغِيرَةً: وړوكې مكشيزه (هِيَ وِعَاءٌ مِنْ جِلْدٍ مُسْتَدِيرٍ: د څرمن نه جوړه شوې وړه شان مشكيزه چه غوړى يا شهد به پكښې اچولې شو). ۞ فَأَدَمَتْهُ: أَيْ: جَعَلَتْ إِدَامًا: سالن ئې ترې جوړكړو (يعنى كوم غوړى ئې چه نچوړ كړل هغه ئې د ماته كړې روټئ دپاره ئې د سالن په طور پيش كړل).

١ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ أَنَّهُ قَالَ: ٢ («ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ) فَدَخَلُوا فَقَالَ: ٣ (كُلُوا وَسَمُّوا اللَّهَ) فَأَكَلُوا ۴ حَتَّى فَعَلَ ذَلِكَ بِثَمَانِينَ رَجُلًا ۵ ثُمَّ أَكَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَهْلُ الْبَيْتِ وَتَرَكَ سُؤْرًا». ٦ وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ قَالَ: "«أَدْخِلْ عَلَيَّ عَشَرَةً" ٧ حَتَّى عَدَّ أَرْبَعِينَ ثُمَّ أَكَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٨ فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ هَلْ نَقَصَ مِنْهَا شَيْءٌ؟». ٩ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: «ثُمَّ أَخَذَ مَا بَقِيَ فَجَمَعَهُ، ١٠ ثُمَّ دَعَا فِيهِ بِالْبَرَكَةِ فَعَادَ كَمَا كَانَ. فَقَالَ: (دُونَكُمْ هَذَا)».

**ترجمه:** ۱ او د مسلم يو روايت كښې داالفاظ دى چې حضور ﷺ وفرمايل ۲ لس خلق د طعام دپاره راوبلى هركله چې هغه لس خلق راغلل نو حضور ﷺ هغوى ته وفرمايل ۳ داالله تعالى نوم آخستو سره خورى نو هغوى داالله تعالى نوم اخستو سره طعام وخوړلي ۴ دغه شان لس لس كولو سره اتيا سړو باندې طعام وخوړل شو ۵ [هركله چې ټولو طعام وخوړلې نو آخر كښې] نبى كريم ﷺ او دكور خلقو طعام وخوړلي او بيا هم پسخورده (جوټه) باقي پاتې شوه. ۶ او د بخاري يو بل روايت كښې داسې دي حضور ﷺ وفرمايل لس خلق ماته راولى ۷ دغه شان لس لس خلق كولو سره څلويښت خلق يې شمير كړل او دهغوى نه وروسته خپله نبى كريم ﷺ طعام وخوړلي ۸ او ما مسلسل كتل چې د طعام نه څه كم شوي دي يا نه ليكن ماته قطعًا څه كمي په نظر نه راتلو ۹ او د مسلم په يو بل روايت كښې داالفاظ هم دى هركله چې ټول خلق په خيټه ماړه شول نو حضور ﷺ پسخورده (جوټه) او چتولو سره جمع كړه ۱۰ او هغه كښې د بركت دعا وكړله نو هغه هغه شان شوه څرنګه چې مخكې وه يعنى كوم مقدار كښې چې مخكې هغه طعام ؤو هغومره اوس هم شو بيا حضور ﷺ وفرمايل داوساتي او بيا يې وخوري.

**حل اللغات:** - ① سُؤْرًا: أَيْ بَقِيَّةٌ: پس خورده، باقى پاتې طعام.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَاثَتْنِي بِبَعْضِهِ،

**د مذكوره جملې مطلب:** حضرت انس رضي الله عنه دا وينا كول غواړي چه موربى بى دَ خپلې لوپټې په يوه حصه كښې روټئى ترلوسره زما په ترخ كښې راؤټونبله او دَ لوپټې دويم اړخ ئى زما په سرباندې راتاؤ كړو. داسې معلوميږي چه دادَ يخنئى موسم ووپه دې وجه دَ لوپټې نه دَ اغوستنې كار هم واخستلې شو.

**قوله:** اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ أَعْلَمُ:

**د ام سليم رضى الله عنها ايمانى قوت:** دَ ام سليم رضي الله عنها ايمانى قوت ته اوګورئى لږه شان هم پريشانه نه شوه بلكه ابوطلحه رضي الله عنه ته ئى تسلى وركړه دادَ رسول الله ﷺ ميلمانه دى هغوى پوهه شه او ميلمانه ئى پوهه شه. مونږ ولې پريشان كيږو هم دَهغه دَطرف نه به ټول انتظام كيږى.

**قوله:** اَلذَّنْ لِعَشَرَةٍ:

**د لسو كسانو پينډې ته دعوت وركول:** دادَ پخوانئى زمانې دَ دعوتونو دستور وو او اوس هم په عربو او قبائلو كښې بلكه زمونږ هم دستور دې چه لس كسان په يولوئى تهال باندې كينولو سره په يوځائى خوراك وركولې شى. دې ته پينډه وائى. بهرحال دَ دوه څلورو كسانو خوراك ۸۰ كسانو او خوړلو او بيا هم پاتې شو. دغه شان په دې خوراك كښې دَمعجزه ظهور اوشو.

## [۵۹۰۹] ګوتو مبارکو نه داوبو وتلو معجزه

۵۹۰۹-()[۳۰] ① وَعَنْهُ، قَالَ: «أُتِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِإِنَاءٍ وَهُوَ بِالزَّوْرَاءِ، ② فَوَضَعَ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ، ③ فَجَعَلَ الْمَاءُ يَنْبُعُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِهِ، فَتَوَضَّأَ الْقَوْمُ ④ قَالَ قَتَادَةُ: قُلْتُ لِأَنَسٍ: كَمْ كُنْتُمْ؟ قَالَ: ثَلَاثَمِائَةٍ ⑤ أَوْ زُهَاءَ ثَلَاثِمِائَةٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① اوحضرت انس ﷛ وايي په يوه موقع چې نبي کريم ﷺ مديني ته نزدې زوراء مقام کښې تشريف فرماوو دحضور ﷺ په خدمت کښې داوبو يو لوښى راوړل شو ② حضور ﷺ خپلي ګوتي مبارکي هغه لوښي کښې کيښودلى ③ اودګوتو مبارکو نه يې داوبوفواره بهيدل شروع شو پوره جماعت هغه اوبو سره اودس وکړى ④ دحديث يو راوي حضرت قتاده تابعي چې هغه دارِوايت دحضرت انس ﷛ نه نقل کړى دى وايي مادحضرت انس ﷛ نه پوښتنه وکړه په هغه موقع تاسو خلق څومره وئ؟ حضرت انس ﷛ جواب راکى درې سوه ⑤ ياندازټا درې شوه کسان وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① الزَّوْرَاءُ: مَوْضِعٌ قَرِيبٌ بِالْمَدِينَةِ: مديني سره نزدې د يوځائي نوم دى. ② يَنْبُعُ: د نَبَعَ يَنْبُعُ نه چينه جاري کيدو ته وائي. ③ زُهَاءَ: أَيْ: مِقْدَارُهَا: يعنى په اندازه او په مقدار (د دريو سوو برابر)

**تسهیلات:**

**قوله: فَوَضَعَ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ، فَجَعَلَ الْمَاءُ:**

**د اوبو راوتلو په محل کښې دوه اقوال:** ① هم پخپله دَ ګوتو مبارکو نه اوبه راوتلې وې هم دا قول دَ امام مزني ﷬ دې اودَ اکثرعلماؤ رجحان هم دې طرف ته دې. دارنګ دَدې تائيد په هغه روايت سره هم کيږى دَ کوم الفاظ چه دادى: «فرأيت الماء من أصابعه» يعنى ما دَ حضورپاك دَ ګوتو نه اوبه راخوټکيدونکې اوليدلې او په دې کښې دَ څه قسم شك شبه هم نشته دې اودَ حضورپاك دا معجزه دَ حضرت موسٰى ﷵ دَ معجزې نه افضل کيدل هم معلوميږى چه دَهغوى دَ همسا په وهلو سره دکانړى نه دَ اوبو چينې راؤخوټکيدې خودلته دَ رسول الله ﷺ دَ ګوتو مبارکو نه اوبه راؤوتلې

② په هغه لوښى کښې چه کومې اوبه موجود وې هغه دَلاس مبارك په برکت سره الله تعالى دومره زياتې کړې وې چه دَ حضورپاك دَ مبارکو ګوتو دَ مينځ نه دَ فوارې په شان اوبه راخوټکيدې دکوم تائيد چه دَ راتلونکى روايت نه هم کيږى

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب علامات النبوة في الإسلام (رقم-۳۵۷۲) ومسلم في كتاب الفضائل/باب في معجزات النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۶ - (۲۲۷۹) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۳۱) واحمد في المسند: ۱۴۷/۳

## [۵۹۱۰] طعام څخه دتسبیح اواز راتو معجزه

۵۹۱۰ - () [۳۱] ① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كُنَّا نَعُدُّ الْآيَاتِ بَرَكَةً، وَأَنْتُمْ تَعُدُّونَهَا تَخْوِيفًا. ③ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي سَفَرٍ. فَقَلَّ الْمَاءُ فَقَالَ: ④ (اطْلُبُوا فَضْلَةً مِنْ مَاءٍ) ⑤ فَجَاءُوا بِإِنَاءٍ فِيهِ مَاءٌ قَلِيلٌ فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ، ⑥ ثُمَّ قَالَ: (حَيَّ عَلَى الطَّهُورِ الْمُبَارَكِ، وَالْبَرَكَةُ مِنَ اللَّهِ) ⑦ وَلَقَدْ رَأَيْتُ الْمَاءَ يَنْبُعُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⑧ وَقَدْ كُنَّا نَسْمَعُ تَسْبِيحَ الطَّعَامِ وَهُوَ يُؤْكَلُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① اوحضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ نه روایت دی هغوی اوویل ② مونږ صحابه ﷺ خو ایات دبرکت اوخوشحالي سبب ګڼی او ای خلقو تاسو پوهیږی چې آیات بس دمنکرین صداقت دییر ولودپاره دی ③ دي نه وروسته حضرت ابن مسعود ﷺ یوه معجزه بیان کړه چې مونږ رسول کریم ﷺ سره یوسفر کنبې وو چې په لار کنبې داوبو دقلت مسئله پیدا شوه حضور ﷺ حکم وکی ④ چاسره چې لوښي کنبې لږي اوبه هم بچ شوي وي نوهغه ماته راوړی ⑤ نوصحابه ﷺ دحضور ﷺ په خدمت کنبې یوداسي لوښی راوړی چې په هغه کنبې ډیري لږ اوبه وي حضور ﷺ خپل لاس مبارك هغه لوښي کنبې واچوی ⑥ او وي فرمایل زر راځی اوداپاکي اوبابرکته اوبه حاصلي کړی [اوداهغه برکت دی چې څه ظاهري سبب اوذریعي سره نه بلکي دالله تعالٰی دطرف نه نازل شوي دي] ⑦ اوحضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ اوویل هغه وخت درسول کریم ﷺ دګوتو مبارکو نه دفواري په شان اوبه بهیدلي ماخپله ولیدل ⑧ اوابن مسعود ﷺ یوه معجزه دابیان کړه چې طعام خوړلو په وخت مونږ دطعام دتسبیح اواز اوریدی . (بخاري)

**حل اللغات:-** ① تَخْوِيفًا: أَيْ: إِنْذَارًا وَهَلَكَةً: ویره، هلاکت. ② يَنْبُعُ: د نَبَعَ يَنْبُعُ نه چینه جاری کیدو ته وائی ③ يُؤْكَلُ: دا خوراک به خوړلې کیدلو (د خوړلې کیدو په وخت به ئې تسبیح وئیلو)

**تسهیلات:**

**قوله:** كُنَّا نَعُدُّ الْآيَاتِ بَرَكَةً،

**معجزات برکت ګڼړل:** یعنی خلق خومعجزات هم دغې ته وائی په کوم کنبې چه تخویف ویره او عذاب وی حالانکه مونږ خلق خو معجزات رحمت اوبرکت ګڼړلو. اوس صورت حال دادي چه عاموخلقو ته هم هغه معجزه فائده ورکوی په کوم کنبې چه تخویف وی اوهغه معجزه هغوی رابنکلوسره راولی مګرخواص معجزه ته کتلوسره پخپله راځی اوایمان راوړی څکه چه هغوی دا برکت ګڼړی.

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب علامات النبوة فی الإسلام (رقم-۳۵۷۹) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۳۳)

## [۵۹۱۱] داوبو زياتيدو يوه بله معجزه

۵۹۱۱-()[۳۲]① وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ② (إِنَّكُمْ تَسِيرُونَ عَشِيَّتَكُمْ وَلَيْلَتَكُمْ، ③ وَتَأْتُونَ الْمَاءَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ غَدًا) ④ فَانْطَلَقَ النَّاسُ لَا يَلْوِي أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ. ⑤ قَالَ أَبُو قَتَادَةَ: فَبَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسِيرُ ⑥ حَتَّى ابْهَارَّ اللَّيْلُ فَمَالَ عَنِ الطَّرِيقِ، فَوَضَعَ رَأْسَهُ،

**ترجمه:** ① اوحضرت ابوقتاده ﷺ بيان كوي رسول كريم ﷺ ديوسفر په دوران كښې زمونږ مخكي خطبه وويله اوارشاد يي وفرمايي ② چې تاسو به ددي شپې په اوله حصه كې اوآخره حصه كښې يعنى ټوله شپه سفر كوى ③ اوانشاء الله صباته به تاسو اوبه پيدا كئ [يعنې حضور ﷺ كويا هغه اوبوطرف ته اشاره وفرمايله چې دمعجزي په طور حاصليدونكي وي اودهغه ذكر مخې ته راغې] ④ ټول خلق دغه شان بې تحاشا روان وو چاته دچا پروانه وه [خكه چې هرسړى باندې بس يوفكر سپور ؤو چې څرنګه به ژرتر ژره اوبوته ورسيږي اودي فكر كښې نه چاسره دچاديوخاي تلوخيال ؤو اونه څوك دخان سره آخستو سره تللو طرف ته يي خيال كولي بلكي هرسړى جدا جدا روان ؤو] ⑤ ابوقتاده ﷺ وايي په دغه شپه رسول كريم ﷺ هم روان ؤو ⑥ كوم وخت چې نيمه شپه تيره شوه نوحضور ﷺ د اوده كيدو په اراده دلاري نه اخوا كيدو سره يوي غاړې باندې خكته شو اوسرمبارك اينبودلو سره څملاستي.

**حل اللغات:-** ① تَسِيرُونَ: سفر او مزل به كوئ، ② عَشِيَّتَكُمْ: أَيْ: أَوَّلَ لَيْلَتِكُمْ: د شپې د شروع نه، ③ لَيْلَتَكُمْ: أَيْ: بَقِيَّتَهَا: باقي شپه، ټوله شپه، ④ لَايَلْوِي: أَيْ: لَايَلْتَفِتُ: توجه به ئې نه كوله (يعنى يوبل ته يا اخوا ديخوا ئې پام او پرواه نه وه، بس مسلسل ئې خپل سفر جارى ساتلې وو) ⑤ ابْهَارَّ: أَيْ: انْتَصَفَ وَتَوَسَّطَ: نيمه شپه شوه (نيمه شپه كله چه ستورى پرقارشروع كړى)

① ثُمَّ قَالَ: (احْفَظُوا عَلَيْنَا صَلَاتَنَا) ② فَكَانَ أَوَّلَ مَنِ اسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَالشَّمْسُ فِي ظَهْرِهِ، ③ ثُمَّ قَالَ: (ارْكَبُوا) فَرَكِبْنَا. ④ فَسِرْنَا حَتَّى إِذَا ارْتَفَعَتِ الشَّمْسُ نَزَلَ، ⑤ ثُمَّ دَعَا بِمِيضَأَةٍ كَانَتْ مَعِي فِيهَا شَيْءٌ مِنْ مَاءٍ، ⑥ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا وُضُوءًا دُونَ وُضُوءٍ. ⑦ قَالَ: وَبَقِيَ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ مَاءٍ. ⑧ ثُمَّ قَالَ: (احْفَظْ عَلَيْنَا مِيضَأَتَكَ فَسَيَكُونُ لَهَا نَبَأٌ) ⑨ ثُمَّ أَذَّنَ بِلَالٌ بِالصَّلَاةِ،

**ترجمه:** ① او [اوده كيدو څخه مخكي يوخادم ته يې] هدايت وفرمايي چې زمونږ دمونځ خيال ساته [چې داسې نه وي ټول خلق بې خبره اوده شي اوسحر وخت سترګي نه غړيدو په سبب مونځ قضاء شي ليكن دغه شان وشوه چې ټول خلق بې خبره شو اودخوب غلبې سره

[1] اخرجه مسلم فى كتاب المساجد/باب قضاء الصلاة الفائتة، واستحباب تعجيل قضائها (رقم-۳۱۱ - (۶۸۱))والترمذى فى كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن ساقى القوم آخرهم شربا (رقم-۱۸۹۴) وابن ماجه فى كتاب الأشربة/باب ساقى القوم آخرهم شربا (رقم-۳۴۳۴) واحمد فى المسند: ۳۵۴/۴

سحر وخت د هيڅ يا سترګي ونه غړيدي [۲] بيا د تولو نه مخکي رسول کريم ﷺ بيدار شو هرکله چې نمر دحضور ﷺ په شا مبارکه ولګيدي [۳] حضور ﷺ [ټول بيدارولو سره ورته] وفرمايل فوراً [تيار شي اوددي خاي نه] روان شي نو مونږ خلق په تلواري تلواري خپلو سورلو باندې کينا ستلو [۴] اودهغه خاي نه روان شو ددي پورې چې نمر ديوي نيزي په قدر يادي نه زيات بلند شو نوحضور ﷺ دسورلي نه راکوز شو [۵] بيا اودس لوښي يې وغوښتي چې ماسره وو اوپه هغه کښې لږ اوبه باقي وي [۶] اوهغه سره حضور ﷺ مختصر اودس وکی [يعنی کوم اعضاء چه دري دري خله وينځل وو داوبو دقلت په سبب يو يو خل يادوه دوه خله وينځلو باندې اکتفاء وکړله] [۷] ابوقتاده ﷺ وايي داودس نه وروسته څه لږ اوبه هغه لوښي کښې بچ شوي وي [۸] حضور ﷺ وفرمايل ددي لوښي اوبه حفاظت سره وساتي ځکه چې ډير نژدې دي اوبوڅخه به بطريق معجزه يوه اهمه اوعظيم الشانه خبره ښکاره کيږی چې دهغه لويه فائده به تاسوته رسيږي [۹] دي نه وروسته بلال ﷺ ما نځه دپاره اذان وکی

**حل اللغات:** -⑥ مِيضَأَةٍ: أي مَطْهَرَةٌ كَبِيرَةٌ يُتَوَضَّأُ مِنْهَا: د اوسپني غټ لوښي چه هغې څخه به نبی علیه السلام اودس کولو ⑥ نَبَأٌ: أي: خَبَرٌ عَظِيمٌ: لوئي خبر، لويه فائده يا معجزه.

> [۱] فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَكْعَتَيْنِ، [۲] ثُمَّ صَلَّى الْغَدَاةَ، وَرَكِبَ وَرَكِبْنَا مَعَهُ، [۳] فَانْتَهَيْنَا إِلَى النَّاسِ حِينَ امْتَدَّ النَّهَارُ [۴] وَحَمِيَ كُلُّ شَيْءٍ، وَهُمْ يَقُولُونَ: [۵] يَا رَسُولَ اللَّهِ! هَلَكْنَا وَعَطِشْنَا، [۶] فَقَالَ: (لَا هُلْكَ عَلَيْكُمْ) [۷] وَدَعَا بِالْمِيضَأَةِ فَجَعَلَ يَصُبُّ، وَأَبُو قَتَادَةَ يَسْقِيهِمْ، [۸] فَلَمْ يَعْدُ أَنْ رَأَى النَّاسُ مَاءً فِي الْمِيضَأَةِ تَكَابُّوا عَلَيْهَا، [۹] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (أَحْسِنُوا الْمَلَأَ، كُلُّكُمْ سَيُرْوَى)

**ترجمه:** [۱] اورسول کريم ﷺ سنت اداکړل دوه رکعاته [۲] اوصحابه ﷺ سره يې دسحر قضاء مونځ باجماعت اداء کی [ما نځه نه فارغيدو نه وروسته] حضور ﷺ سور شو اومونږ هم په خپلو سورلو کينا ستلو [او مخې ته سفر موشروع کړو] [۳] ترډي پورې چې مونږ دقافلي هغه خلقو سره يوځاي شو اچې زمونږ نه مخکي تلو سره خکته شوي وه] هغه وخت نمر پورته راختلی وو [۴] چې هغه سره هر شي ته ګرمي رسيده خلقو ونيل شروع کړل [۵] يارسول الله ﷺ مونږ خو هلاک شو [يعنی دګرمي څپېړو اوتيزي زمونږ بد حال کړی دی او اوبه نشته] ځکه دتندي شدت زياتيږي [۶] حضور ﷺ وفرمايل ستاسو دپاره هلاکت نشته [۷] بيا حضور ﷺ داودس داوبو هغه لوښی طلب کړواوهغه لوښي نه يې اوبه اچول شروع کړل اوابوقتاده ﷺ خلقو باندې څکول شروع کړل [۸] اهل قافله چه څرنګه هغه لوښي نه اوبه غورځيدي اوخلق يې په څکولو وليدل نودتولو نه مخکي يودم رامات شوه اوتر يوبل اوريدل شروع شو. [۹] حضور ﷺ دهغوی بې صبري ليدو سره وفرمايل ښه طريقه اختيار کړي اوداخلاقو نه کار واخلی تاسو ټول به دي اوبو سره سيراب شي [نوسمدستي خلقو ښه طريقه اختيار کړه اوجدا جدا کيدو سره په وقار اوقطار سره ودريدل].

**حل اللغات:** -⑧ اِمْتَدَّ: أَي: اِرْتَفَعَ: راوړده شوه، اوچته شوه ⑨ تَمَرَ: ګرم شو ⑩ يَصُبُّ: راړولې او اچولې نې اوبه، ⑪ تَكَابُّوا: أَي: تَزَاحَمُوا: په اوبوباندې بهيره جوړولوسره په دې باندې ورپريوتل ⑫ أَحْسِنُوا الْمَلَأَ: أَي: الْخُلُقَ: يعنې اخلاق ښه ساتئ عادتونه ښه ساتئ ⑬ سَيُرْوَى: أَي: جَمِيعُكُمْ تَرْوُونَ: يعنې تولو ته به اوبه اورسيږي، تول به خړوب شي، رواء: ښه خړوب کيدو ته وائي

> ① قَالَ: فَفَعَلُوا، فَجَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَصُبُّ وَأَسْقِيهِمْ، ② حَتَّى مَا بَقِيَ غَيْرِي وَغَيْرُ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③ ثُمَّ صَبَّ فَقَالَ لِيَ: (اشْرَبْ) ④ فَقُلْتُ: لَا أَشْرَبُ حَتَّى تَشْرَبَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ⑤ فَقَالَ: (إِنَّ سَاقِيَ الْقَوْمِ آخِرُهُمْ). ⑥ قَالَ: فَشَرِبْتُ وَشَرِبَ، ⑦ قَالَ: فَأَتَى النَّاسُ الْمَاءَ جَامِّينَ رِوَاءً». ⑧ رَوَاهُ مُسْلِمٌ هٰكَذَا فِي (صَحِيحِهِ) وَكَذَا فِي (كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ)، وَ(جَامِعِ الْأُصُولِ). ⑨ وَزَادَ فِي (الْمَصَابِيحِ) بَعْدَ قَوْلِهِ: (آخِرُهُمْ) لَفْظَةَ: (شُرْبًا).

**ترجمه:** ① بيا رسول کريم ﷺ اوبه اچول اومايه خلقو اوبه څکول شروع کړل ② ددې پورې [چې تول خلق سيراب شول] اوزما اورسول الله ﷺ نه سوا هيڅوک باقي پاتي نه شو ③ نو حضور ﷺ اوبه واچولې اوماته يې وفرمايل واخله اوڅکه ④ ما عرض وکړ زه هغه وقته پورې نشم څکلی څوپورې چې تاسو ﷺ يې ونه څښئ ⑤ رسول الله ﷺ وفرمايل دخلقو ساقي دهغوی آخري سړی وي [يعنې کوم سړی چې خلقو باندې څکي هغه خپله دټولو څخه وروسته څښي څکه چې دا دآدابو څخه دی چې ساقي تول اوبه کړي بيا يې خپله څکي] ⑥ حضرت ابوقتاده ﷺ وايي دارشاد ګرامي اتباع کښې ما اوبه وڅکلې بيا حضور ﷺ اوبه نوش کړلې ⑦ ابوقتاده ﷺ وايي دې نه وروسته اهل قافله داوبو ځاي ته داسې حال کښې ورسيدل چې اوبه شوي وو اوراحت يې پيدا کړي ⑧ داروايت مسلم نقل کړی دی اوصحيح مسلم کښې داسې منقول دی اوکتاب حميدي اوجامع الاصول کښې هم داروايت دی الفاظو سره منقول دی ⑨ البته مصابيح کښې إِنَّ سَاقِيَ الْقَوْمِ آخِرُهُمْ نه وروسته شربًا لفظ مزيد دی

**حل اللغات:** -⑬ جَامِّينَ رِوَاءً: أَي: مُسْتَرِيحِينَ: يعنې خلق په ډير راحت اومزه کښې وو

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث کښې د ګرانو ټکو معنی په حل اللغات کښې حل شو، اودحديث مفهوم د تشريحي ترجمې څخه واضح دې

**[۵۹۱۲] تبوک کښې په طعام کښې دبرکت معجزه**

> ۵۹۱۲-(¹) [۳۳] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «لَمَّا كَانَ يَوْمُ غَزْوَةِ تَبُوكَ، أَصَابَ النَّاسَ الْمَجَاعَةُ. ③ فَقَالَ عُمَرُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ادْعُهُمْ بِفَضْلِ أَزْوَادِهِمْ، ④ ثُمَّ ادْعُ اللّٰهَ لَهُمْ عَلَيْهَا بِالْبَرَكَةِ. فَقَالَ: (نَعَمْ). ⑤ فَدَعَا

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب من لقى الله بالإيمان وهو غير شاك فيه دخل الجنة وحرم على النار(رقم-٤٥ - (٢٧))واحمد فى المسند:١١/٣

بِنِطَعٍ، فَبُسِطَ، ⑥ ثُمَّ دَعَا بِفَضْلِ أَزْوَادِهِمْ، ⑦ فَجَعَلَ الرَّجُلُ يَجِيءُ بِكَفِّ ذُرَةٍ، ⑧ وَيَجِيءُ الْآخَرُ بِكَفِّ تَمْرٍ، ⑨ وَيَجِيءُ الْآخَرُ بِكِسْرَةٍ، ⑩ حَتَّى اجْتَمَعَ عَلَى النِّطَعِ شَيْءٌ يَسِيرٌ، ⑪ فَدَعَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْبَرَكَةِ، ⑫ ثُمَّ قَالَ (خُذُوا فِي أَوْعِيَتِكُمْ) ⑬ فَأَخَذُوا فِي أَوْعِيَتِهِمْ مَا تَرَكُوا فِي الْعَسْكَرِ وِعَاءً إِلَّا مَلَئُوهُ. ⑭ قَالَ: فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا، وَفَضَلَتْ فَضْلَةٌ. ⑮ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ، ⑯ لَا يَلْقَى اللَّهَ بِهِمَا عَبْدٌ غَيْرُ شَاكٍّ فَيُحْجَبَ عَنِ الْجَنَّةِ)». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① اوحضرت ابوهریره ﷺ وايي ② دغزوه تبوک په ورځ دتوښي دکمي په سبب هرکله چې سختي لوږي خلق تنګ کړل ③ نوحضرت عمر ﷺ عرض وکړی یارسول الله ﷺ لږ ډیره توښه چې دخلقو سره بچ شوي ده هغه راوغواړي ④ اوبیاپه هغه توښه هغوی دپاره الله تعالی نه دبرکت دعا وکړي حضور ﷺ وفرمایل ښه ⑤ بیا حضور ﷺ دڅمړې دسترخوان راوغوښتي نوهغه خور کړل شو ⑥ اوخلقوته یې دبچ شوی توښي راوړلو دپاره اوویل ⑦ نوخلقو څیزونه راوړل شروع کړل چایوموټي برابر جواري راوړل ⑧ چا موټي برابر خورماوي راوړې ⑨ چا دروټۍ ټکړه راوړه ⑩ دغه شان په هغه دستر خوان څه لږ څیزونه جمع شول ⑪ نو رسول کریم ﷺ دنزول برکت دعا وکړله ⑫ بیاټولو خلقو ته یې وفرمایل دچاچي خومره زړه غواړي دي نه دي خپل لوښي ډک کړي ⑬ نوخلقو خپل خپل لوښي آخستل شروع کړل ددي پورې چې لښکر کښې هیڅ داسې لوښي پاتي نه شو چې ډک نه شو ⑭ حضرت ابوهریره ﷺ وایي بیاټول لښکر (چې تقریبًا یولاک مجاهدینو باندي مشتمل ؤو) په ډکه خیټه طعام وخوړلي بیاهم ډیر طعام پاتې شو ⑮ دي نه وروسته رسول کریم ﷺ وفرمایل زه شاهدي کوم چې الله تعالی نه سوا بل معبود نشته اوداچې بلاشبه زه دالله تعالی رسول یم ⑯ اویاد لرئ داسې هیڅ کله نشي کیدی چې یوسړی ددي دوو ګواهیو سره چې هیڅ شک شبه پکښې نشته دالله تعالی سره یوځاي شي اوبیاهغه جنت ته دتلو نه منع کړل شي (مسلم)

**حل اللغات:-** ① اَلْمَجَاعَةُ: أَيْ: جُوعٌ شَدِيدٌ: سخته لوږه ② أَزْوَادِهِمْ: دخوراک څکاک څیزونه، توښه ③ نِطَعٍ: أَي بِسَاطٌ مِنَ الْأَدِيمِ: دَ څرمن دسترخوان ته نطع وائي ④ ذُرَةٍ: ددي اصل ذُرَوٌ دي، أي كُتْبَةُ حَبٍّ: یو موټی جوار، یعنی یوسړی یوموټي جوارراوړل ⑤ بِكِسْرَةٍ: أَيْ: بِقِطْعَةٍ مِنَ الْخُبْزِ: یعنی چادَ روټۍ یوه ټکړه راوړله یا یو موټي کهجوري راوړي ⑥ غَيْرُ شَاكٍّ: هیڅ شک شبه پکښې نه کوی ⑦ فَيُحْجَبَ: أَيْ: فَيُمْنَعَ: منع کړې شی (دجنت نه).

**تسهیلات: نوټ:** د ګرانوټکوتشریح په حل اللغات کښې شوې ده اوباقی د حدیث مفهوم د حدیث د تشریحی ترجمې څخه واضح دي.

## [۵۹۱۴] د زینب په ولیمه کښې د برکت معجزه؟

(۵۹۱۴-۳۳) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَرُوسًا بِزَيْنَبَ، [۲] فَعَمَدَتْ أُمِّي أُمُّ سُلَيْمٍ إِلَى تَمْرٍ وَسَمْنٍ وَأَقِطٍ، [۳] فَصَنَعَتْ حَيْسًا فَجَعَلَتْهُ فِي تَوْرٍ فَقَالَتْ: [۴] يَا أَنَسُ اذْهَبْ بِهَذَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقُلْ: [۵] بَعَثَتْ بِهَذَا إِلَيْكَ أُمِّي، وَهِيَ تُقْرِئُكَ السَّلَامَ [۶] وَتَقُولُ: إِنَّ هَذَا لَكَ مِنَّا قَلِيلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ! فَذَهَبْتُ فَقُلْتُ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷛ وايي د رسول کريم ﷺ ام المؤمنين بي بي زينب ﷛ سره نکاح وشوه [۲] نو (دواده د شپې نه وروسته) زما مور ام سليم ﷛ خورماوي، غوړي او کورت پنير راواخستل [۳] نو ماليده يې جوړه کړه اويوه پياله کښې واچوله او ماته يې اوويل [۴] انس ﷛ دا د رسول کريم ﷺ په خدمت کښې يوسه او ورته اووايه [۵] چې زما مور دا [حقيره شان] هديه ستاسو ﷺ په خدمت کښې راليږلي ده اوتاسو ﷺ ته يې سلام عرض کړی دی [۶] او ويلي يې دي چې يارسول الله ﷺ دا لږه هديه زمونږ د طرف نه ستاسو د پاره ده [که څه هم ستاسو ﷺ د شان لائقه نه ده ليکن ستاسو د الطاف کريمه نه دا اميد دی چې قبوله به يې کړي] نو ما هغه واخسته د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او څه چې زما مور ويلي وو عرض مې کړل.

**حل اللغات:-** ① عَرُوسًا: أي زَوْجًا جَدِيدًا: نوې واده او نکاح ته وائی. ② أَقِطٍ: أي: لَبَنٍ مُجَفَّفٍ: اوچ کړې شوی پۍ يعنی پنير. ③ حَيْسًا: هُوَ تَمْرٌ مَعَ سَمْنٍ أَوْ أَقِطٍ: د کجورو، غوړو او پنيرنه، يا اوړه، کجورې اوغوړو نه جوړه شوې حلوه، ④ تَوْرٍ: أي إِنَاءٌ كَالْقَدَحِ: د پيالې په شان يو لوښې، کټورې،

[۱] فَقَالَ: (ضَعْهُ) ثُمَّ قَالَ: [۲] (اذْهَبْ فَادْعُ لِي فُلَانًا وَفُلَانًا وَفُلَانًا) رِجَالًا سَمَّاهُمْ [۳] (وَادْعُ مَنْ لَقِيتَ) فَدَعَوْتُ مَنْ سَمَّى وَمَنْ لَقِيتُ، [۴] فَرَجَعْتُ فَإِذَا الْبَيْتُ غَاصٌّ بِأَهْلِهِ. [۵] قِيلَ لِأَنَسٍ: عَدَدُكُمْ كَمْ كَانُوا؟ [۶] قَالَ: زُهَاءَ ثَلَاثِمِائَةٍ. [۷] فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَضَعَ يَدَهُ عَلَى تِلْكَ الْحَيْسَةِ، وَتَكَلَّمَ بِمَا شَاءَ اللَّهُ، [۸] ثُمَّ جَعَلَ يَدْعُو عَشَرَةً عَشَرَةً يَأْكُلُونَ مِنْهُ، [۹] وَيَقُولُ لَهُمْ: (اذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ، وَلْيَأْكُلْ كُلُّ رَجُلٍ مِمَّا يَلِيهِ)

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ [دير په روڼ تندي سره قبلولو سره] وفرمايل چې دا کيږده اوبيا يې وفرمايل [۲] فلانی فلانی فلانی سړی چې د هغوی نومونه حضور ﷺ راته وښودل ورشه راوله [۳] او وګوره لار کښې چې کوم سړی درسره ملاؤ شي هغه هم د خان سره راوله نوزه لاړم اوهغه خلق اوکوم چې په لار کښې راسره ملاؤ شوه هغه مې راوستل [۴] کوم وخت چې زه کورته واپس راغلم نو پوره کور د خلقو نه ډک وو [۵] حضرت انس ﷛ نه پوښتنه وشوه هغه

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب النکاح/باب الهدية للعروس (رقم-۵۱۶۳) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب زواج زينب بنت جحش، ونزول الحجاب، وإثبات وليمة العرس (رقم-۹۴ - (۱۴۲۸) والترمذی فی کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الأحزاب (رقم-۳۲۱۸) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب الهدية لمن عرس (رقم-۳۳۸۷) واحمد فی المسند: ۱۱/۳

وخت تاسو څومره خلق وی؟[٦] حضرت انس ﷺ جواب ورکړو دري سوو (۳۰۰) ته نزدې [۷] بیا ماولیدل چې نبی کریم ﷺ هغه مالیده باندې لاس مبارك ایښودلو سره هغه څه اوویل څه چې الله تعالی غوښتل [یعنی دخیر اوبرکت دعایي وکړه][۸] ددي نه وروسته حضورﷺ لس لس سړي رابلل شروع کړل اوهغوی [یوبل پسي لس لس سړي راتلل] خوراک به یې تري کولو[۹] [اوڅوک چې به طعام دپاره راتلل] حضور ﷺ به ورته وفرمایل دالله تعالی نوم آخستو سره خوري اوهرسړی ته دخپل مخ نه خوړل پکار دی [څکه چې دخوراک دامسنون طریقه ده چې دتهذیب اوسړیتوب اظهار تري کیږی اوطعام کښې خیر اوبرکت هم نازلیږي]

**حل اللغات:** -⑤غَاصٌ: أَيْ: مُمْتَلِئٌ: ډک وو(کور دخلقو نه ډک وو) ⑥زُهَاءً: أَيْ: عَدَدُنَا مِقْدَارُ: د شمیر مقدار او اندازې دپاره استعمال شوې دی.

| [۱] قَالَ: فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا، [۲] فَخَرَجَتْ طَائِفَةٌ، وَدَخَلَتْ طَائِفَةٌ، حَتَّى أَكَلُوا كُلُّهُمْ. [۳] قَالَ لِي: (يَا أَنَسُ! ارْفَعْ) فَرَفَعْتُ، [۴] فَمَا أَدْرِي حِينَ وَضَعْتُ كَانَ أَكْثَرَ أَمْ حِينَ رَفَعْتُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] حضرت انس ﷺ وایي چې ټولو خلقو په ډکه خیټه هغه طعام وخوړلي[۲] دلس سړو جماعت چې به طعام خوړلو نه فارغ شو نودلسو سړو بل جماعت به راتلو ددي پورې چې ټولو خلقو [په ډکه خیټه] هغه طعام وخوړلي [۳] بیاحضور ﷺ ماته وفرمایل انس ﷺ [ټول خلق دطعام نه فارغ شوي دي] اوس داکاسه اوچته کړه ماکاسه اوچته کړه [۴] زه نشم ویلی چې کوم وخت ماکاسه راوړلوسره ایښي وه هغه وخت مالیده زیاته وه یاهغه وخت چې [ټول خلق دطعام نه فارغ شو او] ماهغه اوچته کړه هغه وخت مالیده زیاته وه (بخاري مسلم)

**تسهیلات:** **قوله:** غَاصٌ:

**په طعام کښې د برکت معجزه:** دغه لړه شان مالیده دریو سوو کسانو اوخوړله اوبیاهم پاتې شوه څکه چه په هغې کښې دمعجزه ظهور اوشو. دَ مالیده واقعه جدا اودَ حضرت زینب ﷺ دَ ولیمه واقعه جدا ده. دا مالیده دَ زلمی او ناوې دعوت ووکوم چه حضرت ام سلیم ﷺ تیار کړې وو

**[۵۹۱٤] دلټ اوښ د تیز رفتاری معجزه**

| ۵۹۱۳-(۱)[۳۵][۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَنَا عَلَى نَاضِحٍ قَدْ أَعْيَا، [۳] فَلَا يَكَادُ يَسِيرُ، فَتَلَاحَقَ بِيَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۴] فَقَالَ: (مَا لِبَعِيرِكَ؟) قُلْتُ: قَدْ عَيِيَ، [۵] فَتَخَلَّفَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَزَجَرَهُ فَدَعَا لَهُ، [۶] فَمَا زَالَ بَيْنَ يَدَيِ الْإِبِلِ قُدَّامَهَا يَسِيرُ فَقَالَ لِي: (كَيْفَ تَرَى بَعِيرَكَ؟) |
|---|

[۱] اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب شراء الإمام الحوائج بنفسه وقال ابن عمر رضي الله عنهما: اشترى النبي صلى الله عليه وسلم [ص:۶۲] (رقم-۲۰۹۷) ومسلم في كتاب المساقاة/باب بيع البعير واستثناء ركوبه (رقم-۱۱۰۰ - (۷۱۵)

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ﷺ وايي ② زه ديوجهاد په سفر کښې درسول کريم ﷺ سره ملګرى ووم او آبکش اوښ باندې سپور ووم هغه اوښ دومره زيات ستړى شوى وو ③ چې څرنګه هغه ته تلل پکار ؤو هغه شان تلو باندې قادرنه ؤو يوخاي ته رسيدو سره زه نبى کريم ﷺ سره ملګرى شوم ④ حضور ﷺ وفرمايل ستاپه اوښ څه شوي دي چې په ښه طريقه نه ځي ماعرض وکى ستړى شوي دي ⑤ دي اوريدو سره حضور ﷺ زما داوښ نه شا طرفته راغلى اوايا خوځه شي سره وهلو سره يامحض داواز په ذريعه] هغه يې وشړي او بيا دهغه په حق کښې دتيز روى دعا وکړه ⑥ دهغه اثر داشو چې زما اوښ دټولو نه مخکې شو بياحضور ﷺ پوښتنه وکړه وايه ستا داوښ څه حال دى

**حل اللغات:** - ① نَاضِحٍ: أَيْ: رَاكِبٌ عَلَى بَعِيرٍ يَسْتَقِي: اوبه راښکونکى راوړونکى اوښ ته ناضح وائى ② أَعْيَا: أَيْ: عَجَزَ عَنِ الْمَشْيِ: دتلو نه عاجزشوې وو يعني ستړې شوې وو ③ فَتَلَاحَقَ: أَيْ: لَحِقَ: حضورپاك دَ شانه راغلو ماسره ملاؤشو ④ فَزَجَرَهُ: أَيْ: بِالضَّرْبِ أَوِ الصَّوْتِ: په آواز سره يا چوکه سره ئى اوشړلو

> ① قُلْتُ: بِخَيْرٍ، قَدْ أَصَابَتْهُ بَرَكَتُكَ. ② قَالَ: (أَفَتَبِيعُنِيهِ بِوُقِيَّةٍ؟) . ③ فَبِعْتُهُ عَلَى أَنَّ لِي فَقَارَ ظَهْرِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ ④ فَلَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمَدِينَةَ غَدَوْتُ عَلَيْهِ بِالْبَعِيرِ ⑤ فَأَعْطَانِي ثَمَنَهُ وَرَدَّهُ عَلَيَّ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ما عرض وکى ستاسو ﷺ ددعا له برکته اوس هغه ښه تيزځي ② حضور ﷺ وفرمايل اياته دااوښ په څلويښت درهمه خرڅوې ③ ما عرض وکى زه په دې شرط باندې دا اوښ په تاسو ﷺ خرڅوم چې مديني پورې به دااوښ زما سورلي کښې وي ④ بيا رسول کريم ﷺ اومونږ خلق مديني ته راورسيدو نودراتلونکي ورځ په سحر کښې ما اوښ اخستو سره درسول کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم [چې اوښ حواله کولو سره فيصله شوې رقم ترې واخلم] ⑤ حضور ﷺ دمعاملي مطابق ماته قيمت عطاء کى ليکن دمهرباني له مخه هغه اوښ يې هم ماته عطاء کړى (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** - ⑤ وُقِيَّةٍ: هِيَ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا: څلويښت درهمه ⑥ فَقَارَ ظَهْرِهِ: أَيْ: رُكُوبَ: د شا هډوکى ته فقار وائى دلته ترې رکوب يعنى سوريدل مراد دي

**تسهیلات:** قوله: فَقَارَ ظَهْرِهِ:

**اشکال:** په مذکوره حديث کښې په عقد د بيع کښې مديني پورې دَ سوريدو شرط دلګولې شوې دې کوم چې د بيع د اصولو څخه خلاف دې نودا بيع څنګه جائز شوه

**داشکال درې جوابونه:** ① دَ مخکښې وخت واقعه ده کومه چه منسوخ ده
② حضورپاك دَدغه محتاج صحابى دَعزت په توګه سره دَهغه امدادکول غوښتل نوصورةً ئى دَ بيع صورت جوړ کړو په حقيقت کښې داهبه وه
③ دا په صلب عقد کښې نه وو په دې وجه جائز شو

## [۵۹۱۵] دغزوه تبوک په موقع د معجزو ښکاره کیدل

۵۹۱۵-()[۳۶] [۱] وَعَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- غَزْوَةَ تَبُوكَ [۳] فَأَتَيْنَا وَادِيَ الْقُرَى عَلَى حَدِيقَةٍ لِامْرَأَةٍ [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (اخْرُصُوهَا) فَخَرَصْنَاهَا، [۵] وَخَرَصَهَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَشَرَةَ أَوْسُقٍ وَقَالَ: [۶] (أَحْصِيهَا حَتَّى نَرْجِعَ إِلَيْكِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ) [۷] وَانْطَلَقْنَا، حَتَّى قَدِمْنَا تَبُوكَ،

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابوحمید ساعدي ﷺ وايي [۲] مونږ درسول کریم ﷺ سره د غزوه تبوک دپاره [دمديني نه] روان شو [۳] کوم وخت چې [مديني نه ددري ورځو په مسافت واقع] وادي قُرٰی ته ورسیدو نوپه يوباغ تير شو چې ديوي ښځي وو [۴] رسول کریم ﷺ هغه باغ ته رسيدو سره مونږ خلقوته وفرمايل اندازه کولو سره وښايي چې په دي باغ کښې به خومره ميوه وي مونږ ټولو خپله خپله اندازه وښودله [دچا اندازه څه اودچاڅه وه] [۵] بيارسول کريم ﷺ هم اندازه وکړله او وي فرمايل په دي باغ کښې به لس وسق ميوه وي دي نه وروسته هغه ښځي ته يي وفرمايل [۶] کله چې ميوه وشکوي او وزن يي کړي نوهغه وزن يادساته ددي پورې چې مونږ وروسته راشو انشاءالله [۷] دهغه ځاي نه روانيدو سره چې مونږ تبوک ته ورسيدو.

**حل اللغات:-** ① اخْرُصُوهَا: أَيْ: قَدِّرُوا وَخَمِّنُوا ثَمَرَهَا: په اندازه او تخميه سره اوښايئ چه په دي کښې به اندازًتا څومره ميوې وی.

[۱] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (سَتَهُبُّ عَلَيْكُمُ اللَّيْلَةَ رِيحٌ شَدِيدَةٌ) [۲] فَلَا يَقُمْ فِيهَا أَحَدٌ [۳] فَمَنْ كَانَ لَهُ بَعِيرٌ فَلْيَشُدَّ عِقَالَهُ). [۴] فَهَبَّتْ رِيحٌ شَدِيدَةٌ. [۵] فَقَامَ رَجُلٌ فَحَمَلَتْهُ الرِّيحُ حَتَّى أَلْقَتْهُ بِجَبَلَيْ طَيِّئٍ. [۶] ثُمَّ أَقْبَلْنَا حَتَّى قَدِمْنَا وَادِيَ الْقُرَى، [۷] فَسَأَلَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْمَرْأَةَ عَنْ حَدِيقَتِهَا [۹] (كَمْ بَلَغَ ثَمَرُهَا؟) فَقَالَتْ عَشَرَةُ أَوْسُقٍ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] نو رسول کريم ﷺ وفرمايل نن شپه به په تاسو سخته سيلئ راځي [۲] هغه وخت دي هيڅ سړی د خپل ځايه نه پاڅي [۳] اوچاسره چې اوښ وي هغه دي په رسئ سره مضبوط وتړي [مطلب داچې سيلئ نه دحفاظت پيش نظر هلته دي نه څوک سړی ګرځي راګرځي اونه دي خپل اوښ خلاص ځاي باندي پريږدی نودغه شان وشو] [۴] دشپې دومره سخته سيلئ راغله [۵] چې يوسړی چې دحضور ﷺ دهدايت خلاف دريدلی وو هغه يي والوځوي اود طی غرونوپه منځ کښې يي وغورځوي [۶] مونږ چې غزوه تبوک نه فارغ شو اومديني ته وروسته راتلو او وادي قری ته راورسيدو [۷] نورسول کريم ﷺ دهغه ښځي نه دباغ په باره کښې پوښتنه وکړه [۹] چې وښايه څومره ميوه وشوه هغې اوويل لس وسقه. بخاري مسلم.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب خرص الثمر (رقم-۱۴۸۱) ومسلم فی کتاب الفضائل/باب فی معجزات النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۱۱ - (۱۳۹۲) واحمد فی المسند: ۴۲۴/۵

**حل اللغات:** -② سَتُهْبُ: أَيْ: سَتَمُرُّ: راځي به، رالوځي به. ③ فَلْيَشُدَّ: أَيْ: فَلْيَرْبِطْ: اودي تړي، مضبوطه دي اوتړي. ④ عِقَالَهُ: مَا يُرْبَطُ بِهِ وَظِيفُ الْبَعِيرِ: هغه رسئ ته وائي کوم سره چه د اوښ يا اس وغيره خپې تړلې شي د څرن کولو دپاره.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَهَبَّتْ رِيحٌ شَدِيدَةٌ،

**ه دوو معجزاتو ظهور:** ① دَ باغ دَميوو متعلق دَهغې مقدار خودل.

② دَ شپې وخت کښې دَ سيلئى چليدل په کوم سره چه داسې تباهي اوشوه چه څوك مخې ته راغلو هغه ئې راغورزولو سره والوزولو.

**[٥٩١٦] دمصر دفتح پيشن ګويي**

٥٩١٦ -( )[٣٧] ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②« (إِنَّكُمْ سَتَفْتَحُونَ مِصْرَ، ③ وَهِيَ أَرْضٌ يُسَمَّى فِيهَا الْقِيرَاطُ، ④ فَإِذَا فَتَحْتُمُوهَا فَأَحْسِنُوا إِلَى أَهْلِهَا فَإِنَّ لَهَا ذِمَّةً وَرَحِمًا - ⑤ أَوْ قَالَ: ذِمَّةً وَصِهْرًا - ⑥ فَإِذَا رَأَيْتُمْ رَجُلَيْنِ يَخْتَصِمَانِ فِي مَوْضِعِ لَبِنَةٍ فَاخْرُجْ مِنْهَا). ⑦ قَالَ: فَرَأَيْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ شُرَحْبِيلَ بْنِ حَسَنَةَ وَأَخَاهُ رَبِيعَةَ يَخْتَصِمَانِ فِي مَوْضِعِ لَبِنَةٍ، ⑧ فَخَرَجْتُ مِنْهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابوذر ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② يقيناً هغه وخت نزدې دي هرکله چې تاسو به مصر فتح کړي ③ اومصر هغه زمکه ده چې هلته دقيراط ذکربه کثرت سره کيږي ④ هرکله چې تاسو مصر فتح کړي نو دهغه ځاي خلقو سره نيک سلوک کوي ځکه چې هغوی ته امان دی اوهغوی سره قرابت دي ⑤ يادايي وفرمايل هغوی ته آمان دي اوهغوی سره د خسرګني رشته ده ⑥ اوهرکله چې تاسو خلق ووينی چې هلته دوه سړي ديوي ښختي په ځاي جګړه کوي نو تاسو دهغه ځاي نه راوځي ⑦ حضرت ابوذر ﷺ وايي مادخپل قيام مصرپه دوران کښې عبدالرحمٰن بن شرحبيل ابن حسنه اودهغه ورور ربيعه ديوي خښتي په ځاي جګړه کولو وليدل ⑧ نودمصر د زمکې نه راووتلم. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْقِيرَاطُ: وَهُوَ نِصْفُ عُشْرِ دِينَارٍ: د دينار د لسمې حصې نيمه يعنى د دينار شلمه حصه. ② ذِمَّةً: أَيْ: حُرْمَةً وَأَمَانًا: امان ③ رَحِمًا: أَيْ: قَرَابَةً: رشته داری (په وجه د هاجره أم إسماعيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ځکه چه هاجره رضی الله عنها د قبط قوم وه). ④ صِهْرًا: سخرګنئ (په وجه د ماريه رضی الله عنها ځکه چه دا هم د قبط قوم وه).

---

[1] اخرجه مسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم /باب وصية النبى صلى الله عليه وسلم بأهل مصر (رقم- ٢٢٧ - (٢٥٤٣) واحمد في المسند: ٣٢٠/٤

**تسهيلات: قوله**: سَتَفْتَحُونَ مِصْرَ:

**د مصر فتح اود معجزې ظهور**: دَ پيشنګوئي په رڼا کښې مصرفتح شو او دَمعجزې ظهوراوشو حضرت عمروبن العاص ﷺ دَ يرومشقتونونه پس مصرفتح کړې وو.

**قوله**: فِيهَا الْقِيرَاطُ:

**د قيراط په مصداق کښې دوه اقوال**: ① يعنی دَحرص اولالچ نه ډکه علاقه ده. هلته به دَمال دومره محبت وی چه دَهرسړی په خله به قيراط قيراط ګردان شروع وی. په دغه خلقو کښې به دَ مال محبت ورلړلې شوې وی. هروخت اوپه هره معامله کښې به بس قيراط قيراط تذکره وی.

② علامه طحاوی ﷫ چونکه پخپله مصری دې هغه فرمائی چه دې حديث کښې دَ قيراط نه کنځل مراددی ځکه چه دَ قيراط لفظ دَ کنځلوپه توګه استعمالولې شی دَمصرخلق وائی اعطيت فلاناالقراريط يعنی فلانکی ته ئی کنځلې اوکړې.

**قوله**: فَإِنَّ لَهَا ذِمَّةً وَرَحِمًا - أَوْقَالَ: ذِمَّةً وَصِهْرًا،

**د رحما او صهر څخه مراد**: مطلب دا چه په قوم کښې به کنځلې بدې ردې اوفحش خبرې وی دَ ژبې بدزبانی به وی کمينه اورذيل خلق به وی. دَدې کمزورئی سره چه کله تاسو دافتح کړئی نو په هغې کښې زما دَ صله رحمی او سخرګنئی خيال اوساتئی. صله رحمی خودَ حضرت هاجره دَ وجې نه ده اوسخرګنئی دَ ماريه قبطيه دَ وجې نه ده. دادَ حضورپاك وينځه وه هم دَدې نه ابراهيم بن محمد ﷺ پيدا شوې وو.

**قوله**: لَبِنَةٍ:

**په حديث د دوه معجزاتو ظهور**: خښتې ته وائی يعنی چه کله يوې خښتې سره دوه کسان په جګړه اوګورئی نودَهغه ځائی نه تختئی.

① په دې حديث کښې يوخودَمصردَ فتح کيدوخبره ده په دې کښې هم دَمعجزې ظهوراوشو

② اوبله خبره حضورپاك دَ جګړې کړې ده هغه هم ابوذر ﷺ اوليدله. په دې کښې دَدويمې معجزې ظهوراوشو

**د مصر څخه د بن سبا د فتنې راوتل**: دَ حضرت عثمان بن عفان ﷺ په دورکښې هم دې مصرنه ابن سباپه مدينه باندې حمله کړې وه اودَحضرت عثمان ﷺ دَشهيدکولو منصوبه ئی جوړه کړې وه. بهرحال مصرسره دَدې چه ام الدنيادې اودَاسلام پخوانې ښاردې مګر عام فتنې هم دَدې نه پيدا شوی دی اوپيدا کيږی به.

## [۵۹۱۷] دمنافقانو عبرتناک انجام پیشن ګوئی

۵۹۱۷-(١) [٣٨] ١ وَعَنْ حُذَيْفَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ٢ «فِي أَصْحَابِي -وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: فِي أُمَّتِي- اثْنَا عَشَرَ مُنَافِقًا لَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ، ٣ وَلَا يَجِدُونَ رِيحَهَا حَتَّى يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ، ٤ ثَمَانِيَةٌ مِنْهُمْ تَكْفِيهِمُ الدُّبَيْلَةُ: ٥ سِرَاجٌ مِنْ نَارٍ يَظْهَرُ فِي أَكْتَافِهِمْ حَتَّى تَنْجُمَ فِي صُدُورِهِمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ اوحضرت حذيفه رضي الله عنه دنبي كريم ﷺ نه روايت كوي حضور ﷺ وفرمايل ٢ زما صحابه ؤ كښې او په يو روايت كښې دادي چې زما په امت كښې دولس منافقين دي چې په جنت كښې به نه داخليږي ٣ بلكې دجنت بوى به هم نه كى پيدا ، څو پورې چې دستنې په سورې كښې اوښ تير نشي ٤ اوپه دي دولسو كښې به اته منافقان خو دبيله ختم كړي [يعنى هغوى به هلاک كړي اودهغوى شر اوفتنه به ختمه كړي] ٥ هغه (دبيله) به داور يوه شعله وي چې دهغوى اوږو كښې به پيدا شي اوبيا به سينو يعنى خيټو ته ورسيږي (مسلم)

**حل اللغات:-** ① يَلِجَ: أَيْ: يَدْخُلَ: چه داخل شى، ② سَمِّ الْخِيَاطِ: أَيْ: ثُقْبِ الْإِبْرَةِ: سَم د سن سورى ته وائى او خياط د ګنډلو ستن ته وائى. يعنى د ګنډلو د ستن سوره ③ الدُّبَيْلَةُ: دا د دِبْل تصغير دي. دا يوه زهرژنه پولئ ده كوم ته چه سره مخه او لمبه وائى ④ تَنْجُمَ: أَيْ: تَظْهَرَ: نجم د ظهور په معنى كښې دي يعنى سينې ته په تلو كښې به ښكاره كيږي

١ وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ: ٢ (لَأُعْطِيَنَّ هَذِهِ الرَّايَةَ غَدًا) فِي (بَابِ مَنَاقِبِ عَلِيٍّ) رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. ٣ وَحَدِيثَ جَابِرٍ (مَنْ يَصْعَدُ الثَّنِيَّةَ) فِي (بَابِ الْمَنَاقِبِ) إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** ١ اومونږ به دحضرت سهل ابن سعد روايت (لَأُعْطِيَنَّ هَذِهِ الرَّايَةَ غَدًا) دحضرت علي رضي الله عنه په مناقبو كښې ٣ اودحضرت جابر رضي الله عنه روايت من يصدع الثنية جامع المناقب كښې نقل كړو انشاء الله تعالى.

**حل اللغات:-** ⑤ الثَّنِيَّةَ: هِيَ الطَّرِيقُ الْعَالِي فِي الْجَبَلِ: په غر كښې اوچتې لارې ته وائى.

**تسهيلات: قوله:** اثْنَا عَشَرَ مُنَافِقًا:

**د نبى عليه السلام د قتلولو دپاره د دولسو منافقانو سازش:** دغزوه تبوک نه په واپسئى باندې دولسو منافقانو د شپې د رسول الله ﷺ د شهيد كولو دپاره خائى په نښه كړې وو دا اشاره هم د هغوى طرف ته ده.

**قوله:** حَتَّى تَنْجُمَ فِي صُدُورِهِمْ،

**د پيشنګوئى ظهور:** بهرحال دا طاعونى پولئى ده كوم چه يو آفت او هلاکت دې دا پيشنګوئى چه څنګه اوكړې شوه هم دغه شان واقعه پيښه شوه او د معجزې ظهور اوشو

¹) اخرجه مسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب وصية النبى صلى الله عليه وسلم بأهل مصر (رقم- ۲۲۷ - (۲۵۴۳) واحمد في المسند: ۴/ ۳۲۰

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۵۹۱۸] د بحيرا راهب په خوله د نبي عليه السلام د پيغمبرۍ پيش ګوئي**

۵۹۱۸-()[۳۹] ۱ عَنْ أَبِي مُوسَى -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ۲ «خَرَجَ أَبُو طَالِبٍ إِلَى الشَّامِ، وَخَرَجَ مَعَهُ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي أَشْيَاخٍ مِنْ قُرَيْشٍ، ۳ فَلَمَّا أَشْرَفُوا عَلَى الرَّاهِبِ هَبَطُوا، فَحَلُّوا رِحَالَهُمْ، ۴ فَخَرَجَ إِلَيْهِمُ الرَّاهِبُ، ۵ وَكَانُوا قَبْلَ ذَلِكَ يَمُرُّونَ بِهِ فَلَا يَخْرُجُ إِلَيْهِمْ، ۶ قَالَ: فَهُمْ يَحُلُّونَ رِحَالَهُمْ، فَجَعَلَ يَتَخَلَّلُهُمُ الرَّاهِبُ، ۷ حَتَّى جَاءَ فَأَخَذَ بِيَدِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۸ قَالَ: هَذَا سَيِّدُ الْعَالَمِينَ، هَذَا سَيِّدُ الْعَالَمِينَ، ۹ يَبْعَثُهُ اللّٰهُ رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابو موسیٰ اشعري رضي الله عنه بيان كوي ۲ يو ځل ابوطالب د تجارت په غرض د شام سفر وكړ نو نبي كريم ﷺ هم ورسره لاړلو [چې هغه وخت د دولسو كالو ؤو] ۳ دا تجارتي قافله د شام ملك [يو مقام بصرى] كښې د يو راهب [يعنى عيسايي پادري] سره مقيم شوه او ټولو خپلې كجاوې خلاصې كړې ۴ راهب د هغوى ملاقات ته خپله راغى ۵ حالانكه دې نه مخكې چې كله داخلق اخوا تير يدل نو هغه راهب سره به يې قيام كوى هغه چيرته هم بهر راتلو سره د هغوى سره ملاقات نه ؤو كړى ۶ راوي وايي دي خلقو خپلې كجاوې خلاصولې او راهب د هغوى په منځ كښې څوك تلاش كوى ۷ د دې پورې چې هغه راتلو سره د نبي كريم ﷺ لاس مبارك اونيولو ۸ او هغه ونيل دا دې د ټولو جهانونو سردار دادى د ټولو جهانونو د پروردګار رسول [چې د انسانيت عامه د هدايت د پاره] راغلى دى ۹ دا هغه سړى دى چې الله تعالىٰ د ټول جهان د پاره د رحمت او راحت ذريعه جوړولو سره راليږلي دي

**حل اللغات:**- ۱ أَشْيَاخٍ: أَيْ: أَكَابِرُهُمْ: مشران، ۲ أَشْرَفُوا: أَيْ: طَلَعُوا: اشراف ظاهر كيدو او ښكاره كيدو ته وائى ۳ هَبَطُوا: أَيْ: نَزَلُوا: كوز شو، پړاؤ ئې واچولو ۴ يَتَخَلَّلُهُمْ: أَيْ: يَمْشِي فِيمَا بَيْنَ الْقَوْمِ: يعنى راهب د دغه قافلې په مينځ كښې ګرځيدو او حضورپاك ئې لټولو.

۱ فَقَالَ لَهُ أَشْيَاخٌ مِنْ قُرَيْشٍ: مَا عِلْمُكَ؟ ۲ فَقَالَ: إِنَّكُمْ حِينَ أَشْرَفْتُمْ مِنَ الْعَقَبَةِ لَمْ يَبْقَ شَجَرٌ وَلَا حَجَرٌ إِلَّا خَرَّ سَاجِدًا. ۳ وَلَا يَسْجُدَانِ إِلَّا لِنَبِيٍّ، ۴ وَإِنِّي أَعْرِفُهُ بِخَاتَمِ النُّبُوَّةِ أَسْفَلَ مِنْ غُضْرُوفِ كَتِفِهِ مِثْلَ التُّفَّاحَةِ، ۵ ثُمَّ رَجَعَ فَصَنَعَ لَهُمْ طَعَامًا ۶ فَلَمَّا أَتَاهُمْ بِهِ، وَكَانَ هُوَ فِي رِعْيَةِ الْإِبِلِ، ۷ فَقَالَ: أَرْسِلُوا إِلَيْهِ فَأَقْبَلَ وَعَلَيْهِ غَمَامَةٌ تُظِلُّهُ. ۸ فَلَمَّا دَنَا مِنَ الْقَوْمِ وَجَدَهُمْ قَدْ سَبَقُوهُ إِلَى فَيْءِ شَجَرَةٍ، ۹ فَلَمَّا جَلَسَ مَالَ فَيْءُ الشَّجَرَةِ عَلَيْهِ،

**ترجمه:** ۱ د قريشو شيخانو چې راهب نه دا واوريدل نو يو شيخ د هغه نه پوښتنه وكړه چې ته د دې نو عمر هلك په باره كښې دا ټولې خبرې د كوم ځاى نه پيژنې؟ ۲ راهب جواب وركړو

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في بدء نبوة النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۶۲۰)

هر کله چې تاسو د دوو غرونو د منځ واله لارې نه راوتلو سره مخې ته راغلاست نوما د دې خایه کتل چې هیڅ و نه اوکانې داسې نه ؤو چې په سجده نه وې پریوتلې [۳] او ونې اوکانې دلویې پیغمبر نه علاوه بل چاته سجده نه کوي [۴] اوماداسړی د هغه مهر نبوت په ذریعه هم پیژندلی دې چې د هغه داوږې د هډوکې لاندې د سیب په شان واقع دی [۵] بیاهغه راهب خپل کورته لاړلو اوقافلې والو دپاره یې طعام تیار کړو [۶] اوهرکله چې هغه طعام اخستو سره هغوی ته راغی نوحضور ﷺ اوښان څرول [۷] راهب قافلې والوته اوویل داسړی راوغواړی اخکه چې زما مهمانخصوصي اصل کښې داسړی دی اودهغه په اعزاز کښې ماطعام تیار کړی دی نوپه بلنه باندې یاخپله حضور ﷺ تشریف راوړی اوکوم وخت چې حضور ﷺ راتلو نودوریځې یوې تکړې په حضور ﷺ سایه (سوری) کړې وه [۸] بیاچې حضور ﷺ خلقوته راورسیدی نو وي لیدل داسې خایونو باندې چیرته چې د ونو سوری وه هغه خلقو قبضه کولو سره ناست ؤو اوحضور ﷺ دپاره څه سایه (سوری) دارخالي خاي نه ؤو

**حل اللغات:** -⑤الْعَقَبَةِ: دعقبه معنی ده غریزه کنده. کنډو ⑥خَرَّ: أَيْ سَقَطَ: پریوتلو. غورزیدلو ⑦غُضْرُوفِ: وَهُوَرَأْسُ لَوْحِ الْكَتِفِ: د وولی دهډوکی سر. کچه او نری هډوکی ته وائی ⑧رِعْيَةِ الْإِبِلِ: أَيْ: فِي رِعَايَتِهَا: د اوښانو نګران او حفاظت کونکي. ⑨فَيْءِ: أَيْ: إِلَى ظِلِّهَا: سوری. سایه.

> [۱]فَقَالَ: انْظُرُوا إِلَى فَيْءِ الشَّجَرَةِ مَالَ عَلَيْهِ.[۲]فَقَالَ: أَنْشُدُكُمُ اللَّهَ أَيُّكُمْ وَلِيُّهُ؟[۳] قَالُوا: أَبُو طَالِبٍ. فَلَمْ يَزَلْ يُنَاشِدُهُ حَتَّى رَدَّهُ أَبُو طَالِبٍ[۴]وَبَعَثَ مَعَهُ أَبُو بَكْرٍ بِلَالًا وَزَوَّدَهُ الرَّاهِبُ مِنَ الْكَعْكِ وَالزَّيْتِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ یوغیر سایه دار(سوری) خاي باندې کیناستلو نوسمدستي د ونو دښاخونو نه یوښاخ په حضور ﷺ سوري وکړی[۲] دا ماجرا لیدو سره هغه راهب [قافلې والوته] اوویل [د ونې سایې ته وګوری چې دې سړي باندې راکوزشوي ده بیاهغه اوویل] زه تاسو خلقوته د قسم درکولو سره درنه پوښتنه کوم چې تاسو کښې کوم سړی ددې نوعمر سړ پرست دی؟[۳] خلقو اوویل ابوطالب دی په دې اوریدو سره راهب [ډیر وخته پورې ابوطالب په دې خبره پوهولې او] قسم یې ورکولې اچې حضور ﷺ مکې ته واپس ولیږی] آخر ابوطالب حضور ﷺ مکې ته واپس ولیږی[۴] اوابوبکر ؓ بلال ؓ حضور ﷺ سره ملګري کړي اوراهب دغنمو روټۍ اود روغن زیتون توښه حضور ته ﷺ ورکړه (ترمذي)

**حل اللغات:** -⑩يُنَاشِدُهُ: قسمونه ئې ورکول ابوطالب ته ⑪زَوَّدَهُ: د سفر دخوراک څکاک سامان یعنی توښه ⑫الْكَعْكِ: وَهُوَالْخُبْزُ الْغَلِيظُ: دکې او پیړې روټۍ ته وائی یعنی کیک یا ډبل روټۍ

**تسهیلات:**

**قوله:** أَشْرَفُوا: یعنی دَ قریشو قافله چه کله بحیراراهب مخې ته راغله نوهم په هغه خائی کښې کوزشو او کجاوې کولاؤ کړې

**قوله**: مِثْلَ التُّفَّاحَةِ:

**د تفاحة مفهوم**: دا يوتمثيل دې، يومثال دې حقيقي كلام نه دې يعني دَخاتم نبوت حجم وروكې منړې په شان وو

**قوله**: وَبَعَثَ مَعَهُ أَبُوبَكْرٍ بِلَالًا،

**اشكال**: يعني ابوبكر رضي الله عنه حضرت بلال رضي الله عنه رسول الله ﷺ سره واپس مكې ته روان كړو سوال دادې چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه دَ حضورپاك نه دوه كاله كشر دې هغه وخت ابوبكر رضي الله عنه دَ ۱۱ كالووو اوحضرت بلال رضي الله عنه خوبه كيدې شي هغه وخت پيدا شوې هم نه وې نود ليګلو اليګلو دَدې خبرې څه مطلب دې؟

**داشكال جواب**: ابن حجر رحمه الله فرمائي باقي حديث صحيح دې صرف داجمله دَ يوراوي دَ طرف نه درج ده كومه چه مقبول نه ده. دَدې حديث او واقعه نه دَمستقبل معجزه خو ثابته كيدې شي اودَ حضوراكرم ﷺ د نبوت طرف ته اشاره هم كيدې شي مګر في الحال چه كوم دا خارق عادت امور مخې ته شوي دي دادَ ارهاصات دَ قبيل نه دي دكوم ذكر چه شوې دې راتلونكي حديث نمبر (۵۹۱۹) كښې هم ارهاص ذكر دی

**[۵۹۱۹] دونو دسلام كولو معجزه**

| ۵۹۱۹-()[۵] ⓵ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ⓶ «كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمَكَّةَ، فَخَرَجْنَا فِي بَعْضِ نَوَاحِيهَا، ⓷ فَمَا اسْتَقْبَلَهُ جَبَلٌ وَلَا شَجَرٌ إِلَّا وَهُوَ يَقُولُ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ. |
|---|

**ترجمه**: ⓵ اوحضرت علي ابن ابي طالب وايي ⓶ زه نبي كريم ﷺ سره مكه كښې ووم يوه ورځ چې مونږ دمكي اطرافو كښې يوطرف ته لاړلو ⓷ نوكوم غر (يعني كاڼي او ونې) چې مخې ته راتله هغې به وئيل السلام عليك يارسول الله (ترمذي دارمي)

**تسهيلات**:

**قوله**: فَمَا اسْتَقْبَلَهُ جَبَلٌ وَلَا شَجَرٌ إِلَّا وَهُوَ يَقُولُ..الخ:

**دحضرت علي رضي الله عنه د كاڼرو او بوټو دسلام اوريدلو توجيه**: زيات صحيح خودا دي چه حضرت علي رضي الله عنه به دَ كاڼړي او ونې دَ سلام آواز اوريدلو په دې اعتبار سره دا واقعه معجزه او كرامت دواړه ښكاره كوي معجزه دَ رسول الله ﷺ په نسبت سره او كرامت دَ حضرت علي رضي الله عنه په نسبت سره يا حضرت علي رضي الله عنه پخپله آواز نه وو اوريدلي بلكه حضورپاك به هغوی ته خودلي وی (التعليق الصبيح ۲۰۱/۷)

[۱] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۲۶)

## [۵۹۲۰] د براق د تابع کيدو معجزه

۵۹۲۰-(١) [٥١] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أُتِيَ بِالْبُرَاقِ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ [٢] مُلْجَمًا مُسْرَجًا، [٣] فَاسْتَصْعَبَ عَلَيْهِ، [٤] فَقَالَ لَهُ جِبْرِيلُ: أَبِمُحَمَّدٍ تَفْعَلُ هَذَا؟ [٥] قَالَ: فَمَا رَكِبَكَ أَحَدٌ أَكْرَمُ عَلَى اللَّهِ مِنْهُ. [٦] قَالَ: فَارْفَضَّ عَرَقًا». [٧] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت انس ﷺ نه روايت دى شب معراج کښې چې دنبي کريم ﷺ د سورلي دپاره براق را وستل شو [٢] چې هغه زين شوى اوقيزي لګيدلى وي [٣] اوحضور ﷺ په هغه سوَريدى نوهغه شوخي کول شروع کړل اچې د هغه په وجه حضور ﷺ ته سوَريدل مشکل شول [٤] نوجبرائيل عليه السلام هغه براق مخاطب کولو سره ورته اوويل اې محمد ﷺ سره دا شوخي کوي اهرکله چې دي نه مخکې تاهيڅ نبي سره شوخي نه ده کړې اوکه مخکينو نبيانو سره دي هم شوخي کړې وى نودوى سره يعنى محمد ﷺ سره شوخي کول بالکل نه دي پکار نو هغوى سره هم شوخي کول هيڅ کله نه وو پکار خکه چې دا هغه ذات ګرامي دى [٥] چې دالله په نظر کښې دده نه بهتر هيڅوک په تاسور شوى نه دى [٦] د راوي بيان دى دحضرت جبرائيل عليه السلام داخبره اوريدو سره براق خوله خوله شو [٧] داروايت ترمذي نقل کړى دى اوويلي يي دي چې داحديث غريب دى.

**حل اللغات:** - ① أُسْرِيَ بِهِ: چه بوتلې شو نبى عليه السلام (په شپه دمعراج). ② مُلْجَمًا: أَيْ: مَوْضُوعًا عَلَيْهِ اللِّجَامُ: چه واګې ورته اچولې شوې وې، ③ مُسْرَجًا: أَيْ: مَوْضُوعًا عَلَيْهِ السَّرْجُ: زين يعنى ګدۍ پرې ايخودې شوې وه ④ فَاسْتَصْعَبَ: أَيْ صَعُبَ عَلَيْهِ رُكُوبُهُ بِاسْتِعْصَائِهِ: براق مستى شروع کړه نو نبى عليه السلام ته په هغې باندې سوريدل او ځان تينګول مشکل شو ⑤ فَارْفَضَّ عَرَقًا: ددې جملې په اوريدو سره براق خولې خولې شو.

**تسهيلات:** **قوله:** فَارْفَضَّ عَرَقًا:

**دمعجزې ظهور:** په دې کښې دَ معجزې ظهور اوشو دې نه مخکښې خو براق سرکشي کوله

## [۵۹۲۱] د نبى عليه السلام دپاره په ګوته کښې سورې کول

۵۹۲۱-(٢) [٥٢] [١] وَعَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «لَمَّا انْتَهَيْنَا إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ قَالَ جِبْرِيلُ بِأُصْبُعِهِ [٣] فَخَرَقَ بِهَا الْحَجَرَ، فَشَدَّ بِهِ الْبُرَاقَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت بريده ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] دمعراج په شپه چې زه بيت المقدس ته ورسيدم نوحضرت جبرائيل عليه السلام خپلې ګوتې سره اشاره وکړله [٣] اوهغه اشارې په ذريعه کانې کښې سورې وشو اوبيا ماهغه سورې کړى کانې سره براق وتړى (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① فَخَرَقَ: نو کهلاؤ شو، سورې پکښې اوشو

---

(١) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٦٣١)

(٢) اخرجه احمد فى المسند: ٣/١٦٤

**تسهيلات: قوله:** فَخَرَقَ بِهَا الْحَجَرَ

**په اشاري سره په کاڼي کښې سوري کيدل:** چونکه سوري دَ خاوري دَ وجې نه بند شوي وو په دې وجه هغه کولاوول شو. که جبرائيل په اشاره سره سوري کولاؤ کړي وی نو دا يوه معجزه وه دکومې تعلق چه حضورپاك سره کيدي شي. علماؤ ليکلی دی چه اوس په دغه خائی کښې دَ پيتلو يوه کړه ده اودا خائی په مسجداقصٰی کښې ګس طرف ته واقع ده. اوس دا خائی دَ زمکې لاندې دې تياره وی رنړا کولوسره نفل کولې شی. په دې باندې دَ اسرائيلو قبضه ده. دَ جمات انتظام دَمسلمانانو په لاس کښې دې.

**[۵۹۲۲] داوښ د شکايت معجزه**

۵۹۲۲-(¹) [۵۳] [۱] وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ الثَّقَفِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «ثَلَاثَةُ أَشْيَاءَ رَأَيْتُهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۳] بَيْنَا نَحْنُ نَسِيرُ مَعَهُ إِذْ مَرَرْنَا بِبَعِيرٍ يُسْنَى عَلَيْهِ [۴] فَلَمَّا رَآهُ الْبَعِيرُ جَرْجَرَ [۵] فَوَضَعَ جِرَانَهُ، فَوَقَفَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۶] فَقَالَ: (أَيْنَ صَاحِبُ هَذَا الْبَعِيرِ؟) فَجَاءَهُ، [۷] فَقَالَ: (بِعْنِيهِ) فَقَالَ: بَلْ نَهَبُهُ لَكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ! [۸] وَإِنَّهُ لِأَهْلِ بَيْتٍ مَا لَهُمْ مَعِيشَةٌ غَيْرُهُ.

**ترجمه:** [۱] حضرت يعلي ابن مره ثقفي ﷺ وايي [۲] ما يو سفرکي درسول کريم ﷺ معجزاتو کښې دري څيزونه وليدل [۳] هغه داسې چې مونږ حضور ﷺ سره روان وُو چې اچانك آب کش اوبو راکښوونکي اوښ باندې تير شو [۴] هغه اوښ چې حضور ﷺ اوليدلو نو بړبړ يې شروع کړل [۵] او خپل څټ يي په زمکه کيښوو نبی کريم ﷺ هغه سره ودريدلو [۶] او پوښتنه يې وکړه ددي اوښ مالک چيرته دی مالک حاضر شو [۷] نوحضور ﷺ ورته وفرمايل دااوښ په ماخرڅ کړه هغه عرض وکړو يارسول الله زه دا اوښ [خو خرڅومه نه خوستاسو دزړې مبارکي نه دوتلی الفاظوپه احترام کښې دی] ستاسو خدمت کښې بلا قيمت نذر کوم هسي [۸] دی عرض کولو کښې څه مضائقه نشته چې دا اوښ زما د کور والو دی يعنی زما اوزما داهل وعيال يوه ذريعه معاش دی اوښ نه علاوه نورهيڅ نشته.

**حل اللغات:-** ① يُسْنَى: أَيْ: يُسْتَقَى: يعنی دَدغه اوښ نه به دَ اوبودَ رابنکلوکار اخستلې شو. ② جَرْجَرَ: وَهِيَ صَوْتٌ تَرَدَّدُ الْبَعِيرُ فِي حَلْقِهِ: دَ اوښ آواز چه په مرئ کښې تاويدو سره ئې بهر راوباسی، يعنی د اوښ براری ته وائی. ③ جِرَانَهُ: أَيْ مُقَدَّمَ عُنُقِهِ، وَقِيلَ: بَاطِنُ عُنُقِهِ: سټ ته جران وائی او مرئ ته هم وائی.

[۱] قَالَ: أَمَا إِذْ ذَكَرْتَ هَذَا مِنْ أَمْرِهِ، [۲] فَإِنَّهُ شَكَا كَثْرَةَ الْعَمَلِ وَقِلَّةَ الْعَلَفِ، فَأَحْسِنُوا إِلَيْهِ، [۳] ثُمَّ سِرْنَا حَتَّى نَزَلْنَا مَنْزِلًا، فَنَامَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۴] فَجَاءَتْ شَجَرَةٌ تَشُقُّ الْأَرْضَ حَتَّى غَشِيَتْهُ، [۵] ثُمَّ رَجَعَتْ إِلَى مَكَانِهَا، [۶] فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ذَكَرْتُ لَهُ. [۷] فَقَالَ: (هِيَ شَجَرَةٌ اسْتَأْذَنَتْ رَبَّهَا فِي أَنْ تُسَلِّمَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَأَذِنَ لَهَا).

¹) اخرجه احمد فی المسند: ۱۷۰/۴

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ دي اوريدو سره ورته وفرمايل هرکله چې تاددي اوښ باره کښې حقيقت حال بيان کړو[۲] نو اوازه هم تاته دابنودل غواړم چې ماخپل ضرورت دپاره دا اوښ اخستل نه غوښتل بلکي اصل مقصد دی اوښ ته دتنگی اومصيبت نه نجات ورکول ؤوا خکه چې دي اوښ درحقيقت ماته شکايت کړی دی چې دده نه کار زيات اخستل کيږي اوخوراک کم ورکولی شي اکه ته دا اوښ خرخولو سره خان نه جدا کولی نه شي نوداخو کولی شي چې ا ده سره ښه سلوک کوه ايعنی ده ته خوراک دانه ښه ورکوه اوکار تري کم اخله اګرکه زيات خوراک ورکولو سره زيات کار اخستل تري جائز دی اوکه دزياتخوراک ورکولو وس دی نشته اوزيات کار تري اخلې نو دادظلم خبره ده چې په خوروي کم اوکار تري زيات اخلې ا [۳] دي نه وروسته حضرت يعلي ﷺ دويمه معجزه بيان کړه چې بيامونږ روان شو ددي پوري چې يوخاي کښې خکته کيدو سره آرام مو کوی اونبي کريم ﷺ اوده شو[۴] اهغه وخت ماوليدل چې ا يوه و نه زمکه شلولو سره راغله اوپه حضور ﷺ راکوزشوله [۵] اوبيا خپل خاي ته واپس لاړه [۶] کوم وخت چې رسول کريم ﷺ بيدار شو نوماحضور ﷺ ته دهغه ونی دراتلو او واپس تلو ذکر وکی [۷] حضور ﷺ اپوره واقعه اوريدو سره ا وفرمايل داهغه و نه ده چې خپل پروردګار نه يي دي باره کښې اجازت غوښتی وه چې هغه رسول الله ﷺ ته سلام وکړو نوالله تعالی هغه ته اجازت ورکړه اوهغه زما په سلام کولو راغلي وه

**حل اللغات:** -④ الْعَلَفِ: دخاروو خوراک يعنی چاره، ونړه، ⑤ تَشُقُّ: أَيْ: تَقْطَعُهَا: يعنی زمکه خيرونکې ونه راغله سلام ئي اوکړو بيا لاړه.

[۱] قَالَ: ثُمَّ سِرْنَا فَمَرَرْنَا بِمَاءٍ فَأَتَتْهُ امْرَأَةٌ بِابْنٍ لَهَا بِهِ جِنَّةٌ [۲] فَأَخَذَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمَنْخِرِهِ ثُمَّ قَالَ: [۳] (اخْرُجْ فَإِنِّي مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ) [۴] ثُمَّ سِرْنَا فَلَمَّا رَجَعْنَا مَرَرْنَا بِذَلِكَ الْمَاءِ فَسَأَلَهَا عَنِ الصَّبِيِّ [۵] فَقَالَتْ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا رَأَيْنَا فِيهِ رَيْبًا بَعْدَكَ». رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** [۱] احضرت يعلى ﷺ دريمه بيانولو سره ا وايي بيامونږ مخې ته ولاړو اويو داسې ابادي ته ورسيدو چې هلته اوبه وي هلته يوي ښخي خپل زوی اخستو سره رسول الله ﷺ ته راغله په هغه هلک ليونتوب خور ؤو ايعنی دخه جن ياشيطان بد واثراتو کښې ګرفتار ؤوا [۲] حضور ﷺ هغه هلک دپوزي نه نيولو سره هغه اجن ياشيطانا ته يي اوويل [۳] ووخه زه محمد دالله رسول يم [۴] دي نه وروسته مونږ مخې ته سفر پوره کړو واپسې کښې هغه اوبو واله ابادي باندي بيارا تيريدلو نوحضور ﷺ دهغه ښخي نه دهغه د زوی حال معلوم کړی [۵] هغه عرض وکی په هغه ذات مي دي قسم وي چې تاسو ﷺ يي په حق سره راليږلي يي مونږ ستاسو دتلوخخه وروسته استاسو د دعا نه پسا په دي هلک کښې هيڅ دپريشانی خبره نه ده ليدلي ايعنی هغه بالکل ښه شوي دي اوټول بد اثرات تري زائل شوي- دي دا روايت بغوي شرح السنه کښې نقل کړي دي ا

**حل اللغات:** -⑨ جِنَّةٌ: أَيْ جُنُونٌ: لیونتوب ⑦ يَمْغِرِهِ: سپیرمي، د پوزې سوری (یعنی د پوزې د هډوکی نه حضورپاك دا لیوني اونیولو او پیری ته نی حکم اوکړو چه اوخه) ⑧ رَيِّمَا: أَيْ شَيْئًا نَكْرَهُهُ: ناخوښه کار، د پریشانئ خبره (یعنی د دغه علاج نه پس مونږ په دغه هلك کښې د تشویش هیڅ خبره اونه لیدله)

**تسهیلات:**

**قوله:** لِأَهْلِ بَيْتٍ:

**د اهل بیت څخه مراد:** دې نه هغه سړی خپله کورنئی مراداخستې ده لکه چه هغه د نه خرڅولو د وجې دې طرف ته معمولی شان اشاره کړې ده. چونکه دغه اوبښ سره متعلق د معجزې ظهور شوې وو په دې وجه حضورپاك مبارك ګنړلوسره د اخستلو اراده اوکړه

**قوله:** أَمَا إِذْ ذَكَرْتَ:

**د مذکوره جملې مطلب:** یعنی تاچه کومه وجه بیان کړې ده دا معقول وجه ده مه خرڅه وه لیکن اوبښ شکایت کړې دې چه کار زیات دې ګیاکمه ده لهذا کار ترې کم اخله اوګیا زیاته ورکوه.

**د درې معجزاتو ثبوت:** ① د اوبښ سره متعلق ښکاره شوه
② دویمه د ونې متعلق ښکاره شوه
③ د لیونی هلك سره متعلق ښکاره شوه

**[۵۹۲۲] دیویل هلک د شیطانی اثر څخه د خلاصیدو معجزه**

٥٩٢٢-()[٥٣][١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [٢]«إِنَّ امْرَأَةً جَاءَتْ بِابْنٍ لَهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَتْ: [٣] يَا رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِنَّ ابْنِي بِهِ جُنُونٌ [٤] وَإِنَّهُ لَيَأْخُذُهُ عِنْدَ غَدَائِنَا وَعَشَائِنَا [٥] فَيَخْبُثُ عَلَيْنَا فَمَسَحَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- صَدْرَهُ وَدَعَا، [٦] فَثَعَّ ثَعَّةً وَخَرَجَ مِنْ جَوْفِهِ مِثْلُ الْجِرْوِ الْأَسْوَدِ يَسْعَى». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت ابن عباس ﷺ وایي [٢] یوه ورځ یوه ښځه خپل زوی آخستو سره دنبي کریم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه اوهغې اوویل [٣] یارسول الله زما په دې زوی دجنون (لیونتوب) اثردی [٤] چې دهغه دوره پرې هره ورځ دغرمې په وخت یادشپې دطعام خوړلو په وخت [سهار اودمابنام په وخت] کښې راځي [٥] حضور ﷺ دې اوریدو سره دهغه هلک په سینه خپل لاس مبارك کینبووی اودعایې ورته وکړله [٦] نوهغه هلک یولوی قی وکی چې دهغه په ذریعه دهغه دنس نه داسې هیبتناک شی راووتلو لکه چې زغلیدونکې تور کوترې وي. (دارمي)

---

) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ١٩واحمد في المسند: ٢٥٤/١

**حل اللغات:** - ① فَنَغْبُتُ: يعنى عبادت به ني كولو ② فَثَعَّ: أَيْ: قَاءَ: قي ني اوكړو ③ الجِرْوِ: أَيْ: وَلَدِ الكَلْبِ: د سپي بچي، كوتري (د غوښي پله يعنى توخوري)

**تسهيلات: قوله:** وَإِنَّهُ لَيَأْخُذُهُ عِنْدَ غَدَائِنَا وَعَشَائِنَا،

**په غدا او عشاء كښي دوه احتمالات:**

① دَ صبا او بيګاه په وخت يعنى سحر مانېام به هغه باندي دَ ليونتوب دوري راتلي

② دَ سحر دَ خوراك په وخت او دَ مانېام دَ خوراك په وخت به دوري شروع كيدي

**قوله:** وَخَرَجَ مِنْ جَوْفِهِ مِثْلُ الْجِرْوِ الأَسْوَدِ يَسْعَى،

**د معجزي ظهور:** يعنى دَ قي په ذريعه دَ دغه هلك دَ خولي نه توركوتري بهر راووتلو هم دغه دَدي هلك بيماري وه په دي واقعه كښي دَ لوئي معجزي ظهور اوشو

**[٥٩٢٤] د نبى عليه السلام په رابللو د وني د راتلو معجزه**

> ٥٩٢٤-()[٥٥] ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «جَاءَ جِبْرِيلُ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ جَالِسٌ حَزِينٌ، ③ قَدْ تَخَضَّبَ بِالدَّمِ مِنْ فِعْلِ أَهْلِ مَكَّةَ، ④ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ تُحِبُّ أَنْ نُرِيَكَ آيَةً؟ قَالَ: (نَعَمْ). ⑤ فَنَظَرَ إِلَى شَجَرَةٍ مِنْ وَرَائِهِ فَقَالَ: ادْعُ بِهَا، ⑥ فَدَعَا بِهَا، فَجَاءَتْ، فَقَامَتْ بَيْنَ يَدَيْهِ فَقَالَ: ⑦ مُرْهَا فَلْتَرْجِعْ، فَأَمَرَهَا، فَرَجَعَتْ. ⑧ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (حَسْبِي حَسْبِي).» رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① اوحضرت انس ﷺ وايي ② حضرت جبرائيل عليه السلام دحضور ﷺ په خدمت كښي حاضر شو دغه وخت نبى كريم ﷺ ډير غمګين ناست وو ③ اودزخمونو په وينه كښي رنګ شوى كوم چي اهل مكه ورته رسولي وو④ اوهغه اوويل يارسول الله كه تاسو ﷺ خوښوى نوزه تاسو ته ستاسو يوه معجزه ښايم چي ستاسو دنبوت اورسالت علامه به وي (اوهغه سره به تاسو ته تسلي وشي چي دالله تعالى په لاره كښي دا اذيت اوپريشاني برداشت كول ستاسو ﷺ دمراتبو اودرجاتو بلندي كښي داضافي باعث دي) حضور ﷺ ورته وفرمايل ضرور وښايي ⑤ نوجبرائيل عليه السلام هغه ونى طرف ته وكتل چي دهغه شاته وه بياحضور ﷺ ته يي اوويل دا و نه وبلى ⑥ حضور ﷺ هغه و نه وبلله نوهغه دحضور ﷺ مخكي دتابعدارو په شان راتلو سره ودريدله حضرت جبرائيل عليه السلام ورته اوويل ⑦ اوس دي ته واپس دتلو حكم وكى حضور ﷺ هغه ته دواپسي حكم وكى نوهغه واپس لاړله ⑧ رسول كريم ﷺ دي ليدو سره وفرمايل ماته كافي ده ماته كافي ده (دارمي)

**حل اللغات:** - ① حَزِينٌ: غمجن. ② تَخَضَّبَ: أَيْ: تَلَوَّثَ: په وينه رنګ كيدوته وائي (په غزوه احد كښي د نبى عليه السلام رباعى غابنونه مات شوى وودهغي وينه وه) ③ آيَةً: أَيْ: عَلَامَةً مِنْكَ عَلَى نُبُوَّتِكَ: علامه اونخښه په نبوت د نبى عليه السلام (چه تسلي اوشي اوتاسو سره مينه اومحبت نور هم زيات شي)

[¹] اخرجه الدارمى فى السنن رقم الحديث ٢٣ واحمد فى المسند: ١١٣/٣

**تسهیلات:**

**قوله: أَهْلِ مَكَّةَ:**

**دحدیث پس منظر:** دَاهل مکه نه کفار قریش مراد دی. هغوی حضورپاك په جنگ احد کښې په وینورنګ کړې وو علامه سیوطی رحمه الله لیکلی دی چه دَحضورپاك په مخ مبارك باندې کافرانواوياګذاره دَتورې کړې وو مګر الله تعالی دَحضورپاك حفاظت کړې وو.

**قوله: هَلْ تُحِبُّ أَنْ نُرِيَكَ آيَةً؟**

**دوني د نبی علیه السلام خدمت کښې حاضریدل:** دَدې واقعې نه پس حضورپاك خفه ناست وو چه په دې کښې حضرت جبرائیل علیه السلام د الله تعالی دَطرف نه دَ تسلئی ورکولو دَپاره راغلووئی فرمائیل چه دا ونه راؤغواړه. حضورپاك راؤغوښتله نوهغه ونه راغله بيائی ورته دَ واپس تلودَپاره اوفرمائیل نو واپس لاړه. حضورپاك اوفرمائیل بس بس کافی دی تسلی اوشوه. په دې واقعه کښې دَ رسول الله ﷺ دَمعجزې ظهور اوشو.

**[۵۹۲۵] دکیکردونې دنبی کریم ﷺ درسالت ګواهي ورکول**

٥٩٢٥-(١) [٥١] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: «كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي سَفَرٍ [٢] فَأَقْبَلَ أَعْرَابِيٌّ فَلَمَّا دَنَا قَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٣] (تَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ؟). [٤] قَالَ: وَمَنْ يَشْهَدُ عَلَى مَا تَقُولُ؟ [٥] قَالَ: (هَذِهِ السَّلَمَةُ) فَدَعَاهَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-.

**ترجمه:** [١] اوحضرت ابن عمر رضی الله عنه وايي مونږ درسول الله ﷺ سره دجهاد په يوسفر کښې ؤو [٢] چې لښکر ته يوباندچي (کليوال) راغی کوم وخت چې رسول کريم ﷺ ته نزدې راورسیدی نوحضور ﷺ ورته وفرمايل [٣] ايا ته ددې امر شاهدي کوې چې الله نه سوا بل معبود نشته چې يودې اودهغه څوک شريک نشته اودا چې محمد ﷺ دهغه بنده اورسول دی [٤] باندچي (کليوال) اوويل تاسو ﷺ چې څه ويلې دې [يعنی دنبوت اورسالت دعوٰی مو کړې ده] ددې شهادت اوشاهدي ورکونکي دنوع انساني نه علاوه بل څوک هم شته [٥] حضور ﷺ ورته وفرمايل دادکيکر و نه چې مخې ته ولاړه ده شاهدي به وکړي بيا حضور ﷺ هغه د کيکر ونه راوبلله،

[١] وَهُوَ بِشَاطِئِ الْوَادِي، [٢] فَأَقْبَلَتْ تَخُدُّ الْأَرْضَ حَتَّى قَامَتْ بَيْنَ يَدَيْهِ، [٣] فَاسْتَشْهَدَهَا ثَلَاثًا، فَشَهِدَتْ ثَلَاثًا. أَنَّهُ كَمَا قَالَ، [٤] ثُمَّ رَجَعَتْ إِلَى مَنْبَتِهَا». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] هغه وخت حضور ﷺ د يوې وادي په غاړه ايسار شوی وو [٢] د کيکر ونه دحضور ﷺ حکم اوريدو سره زمکه شلولو سره راغله اوحضور ﷺ مخې ته ودريده [٣] حضور ﷺ

[١] ) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ٢٤

هغه ته دري سره شاهدي ورکړلي نو هغي دري سره ګواهي اداکړي چې تاسو ﷺ په هغه دعوی کښې رېښتيني يې (اويقينًا درب العٰلمين رسول يې) [۴] دي نه وروسته هغه ونه خپل ځاي ته واپس لاړه (دارمي)

**حل اللغات:-** ① بِشَاطِئِ: أي طَرَفِهِ: طرف، غاړه ② تَخُدُّ: أيْ: تَشُقُّهَا أُخْدُودًا: زمکه ني اوشلوله (زمکه څيرلواو کنده جوړولوسره راتلوته واني) ③ مَنْبِتِهَا: أي: مَوْضِعُ نَبَاتِهَا: خاني د راختلو خپل (يعنی کوم خاني چه راختلې هم هلته واپس لاړه)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَشَهِدَتْ ثَلَاثًا،

**د نبی عليه السلام په رسالت د ونې شهادت:** دَ کومې ونې پانړوته چه قرظ واني دکوم نه چه دَ څرمن دَدباغت کاراخستې شي هم دَهغه ونې نوم سلمه ده دَدې ترجمه دَ جهاؤ ونې سره هم کولې شي او کيکرسره هم کولې شي.

**[۵۹۲۶] د ځجورې د څانګې د نبی عليه السلام د رسالت ګواهی ورکول**

٥٩٢٦-([۱]) [۵۰] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۳] بِمَا أَعْرِفُ أَنَّكَ نَبِيٌّ؟ [۴] قَالَ: (إِنْ دَعَوْتُ هَذَا الْعِذْقَ مِنْ هَذِهِ النَّخْلَةِ يَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ) [۵] فَدَعَاهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَجَعَلَ يَنْزِلُ مِنَ النَّخْلَةِ [۶] حَتَّى سَقَطَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۷] ثُمَّ قَالَ: (ارْجِعْ) فَعَادَ، فَأَسْلَمَ الْأَعْرَابِيُّ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي [۲] يوه ورځ دنبي کريم ﷺ په خدمت کښې يوباندچي (کليوال) راغی اوهغه اوويل [۳] زما دپاره په دي خبره دپوهيدلو اويقين کولو ذريعه څه ده چې ته دالله نبي يي [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل په دي ذريعي سره چې زه اوس د خورماوو دي ونی باندې لګيدلي غنچګ راوبلم هغه به دلته راتلو سره شاهدي وکړي چې زه دالله نبي اورسول يم [۵] نوحضور ﷺ هغه غنچګ دخورماوو د ونوڅخه راوبلي هغه په جدا کيدو سره راکوزشو [۶] اودنبي کريم ﷺ نزدې په زمکه راپريوتي (اودحضور ﷺ دنبوت اورسالت شاهدي يي ورکړله [۷] بيا حضور ﷺ ورته حکم وکی چې واپس لاړ شه نوهغه غنچګ خپل ځاي ته واپس لاړله. دي ليدو سره هغه باندچي (کليوال) باندچي فوراً اسلام قبول کی دا روايت ترمذي نقل کړی دی اوصحيح يي ګرځولی دی

**حل اللغات:-** ① الْعِذْقَ: وَهُوَ الْعُرْجُونُ بِمَا فِيهِ مِنَ الثِّمَارِيخِ: دکهجورې غونچې اوګوچی ته عذق واني

**تسهيلات:** **نوټ:** د ګرانوټکوتشريح په حل اللغات کښې شوې ده اوباقی د حديث مفهوم د حديث د تشريحی ترجمې څخه واضح دې

---

[۱]) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۶۲۸

**[۵۹۲۷] د نبی علیه السلام په رسالت د شرمخ ګواهی کول**

۵۹۲۷-()[۵۸] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «جَاءَ ذِئْبٌ إِلَى رَاعِي غَنَمٍ فَأَخَذَ مِنْهَا شَاةً، ٣ فَطَلَبَهُ الرَّاعِي حَتَّى انْتَزَعَهَا مِنْهُ، ٤ قَالَ: فَصَعِدَ الذِّئْبُ عَلَى تَلٍّ فَأَقْعَى وَاسْتَثْفَرَ ٥ وَقَالَ: قَدْ عَمَدْتُ إِلَى رِزْقٍ رَزَقَنِيهِ اللّٰهُ أَخَذْتُهُ، ٦ ثُمَّ انْتَزَعْتَهُ مِنِّي؟ ! ٧ فَقَالَ الرَّجُلُ: تَاللّٰهِ إِنْ رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ ذِئْبٌ يَتَكَلَّمُ! ٨ فَقَالَ الذِّئْبُ: أَعْجَبُ مِنْ هَذَا رَجُلٌ فِي النَّخَلَاتِ بَيْنَ الْحَرَّتَيْنِ ٩ يُخْبِرُكُمْ بِمَا مَضَى وَبِمَا هُوَ كَائِنٌ بَعْدَكُمْ.

**ترجمه:** ١ اوحضرت ابوهریره ﷺ وایي یو شرمخ دبزو په یوه رمه کښې چې د هغه شپونکي هم موجود ؤو رانوتي اوهغه نه یې یوه بزه (چیلۍ) وتښتوله شپونکي د هغه تعاقب وکی اوآخر هغه بزه (چیلۍ) یې د شرمخ نه خلاصه کړله دحضرت ابوهریره ﷺ بیان دی بیا هغه شرمخ یوي غونډۍ ته وختلو اوهلته داسې کیناستلو څرنګه چې یوشرمخ دکوناتو په سر کیني اودواړه پښې یې ودرولي خپله لکۍ یې ددواړو پښو په منځ کښې داخله کړه اوشپونکي یې په زور سره مخاطب کولوسره ورته اوویل ماخپل هغه رزق اخستلي چې الله تعالی ماته عطا کړی دی لیکن تا زما رزق زما نه په زور واخستی شپونکي چې شرمخ په خبرو کولو اولیدلو نوحیران پاتې شو نوهغه شرمخ مخاطب کولو سره ورته اوویل قسم په الله څرنګه عجیبه واقعه چې مانن لیدلي ده داسې مې هیڅ کله نه ده لیدلي چې یو شرمخ دسړي په شان خبري کوي شرمخ ورته اوویل دې نه زیاته عجیبه واقعه خو دهغه سړي حضرت محمد ﷺ حال دی چې دخورماوو د و نو شاته ددوه سنګستا نونو منځ کښې یعنی مدینه کښې اوسیږي هغه سړی به تاسو ته هغه خبري وښایي چې تاسو ته مخکې تیري شوي وي اوهغه خبري به درته وښایي چې ستاسو نه وروسته واقع کیدونکي دي

**حل اللغات:-** ① تَلٍّ: أَيْ: مَكَانٍ مُرْتَفِعٍ: دامفرد دې جمع تلول ده غونډۍ اواوچت ځائی ته وائی ② فَأَقْعَى: بِأَنْ قَعَدَ عَلَى وَرِكَيْهِ وَنَصَبَ يَدَيْهِ: سپي وغیره درنده چه کله په خپله کونه باندې کینی دې ته اقعاء وائی په مانخه کښې داسې کیناستل منع دی ③ اسْتَثْفَرَ: أَيْ: أَدْخَلَ ذَنَبَهُ بَيْنَ رِجْلَيْهِ: د سپي وغیره درنده عادت دې چه کله په کونه کینی نولکې دکونې لاندې کوی اومخې ته نی رااوباسی د خپو مینځ کښې کوی هم دغه استشفاردې ④ النَّخَلَاتِ: أَيْ: نَخِيلُ الْمَدِينَةِ: د مدینې منورې نخلستان مراد دې ⑤ الْحَرَّتَيْنِ: دمدینې منورې د دوو غرونو په منځ کښې صحرانی او کاڼیجنه زمکې طرف ته اشاره ده

١ قَالَ: فَكَانَ الرَّجُلُ يَهُودِيًّا، فَجَاءَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ فَأَخْبَرَهُ، وَأَسْلَمَ، فَصَدَّقَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِنَّهَا أَمَارَاتٌ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ، ٤ قَدْ أَوْشَكَ الرَّجُلُ أَنْ يَخْرُجَ فَلَا يَرْجِعُ ٥ حَتَّى يُحَدِّثَهُ نَعْلَاهُ وَسَوْطُهُ بِمَا أَحْدَثَ أَهْلُهُ بَعْدَهُ» ). رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

[۱] اخرجه احمد فی المسند:۲/۳۰۶

**ترجمه:**[۱] حضرت ابوهريره ﷺ وايي هغه سړی (شپونکي) چې يوېهودي ؤو د شرمخ خبري په اوريدو سره دنبي کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اوحضور ﷺ مخکې د شرمخ واقعه بيانولو سره مسلمان شو. نبي کريم ﷺ دهغه بيان کړده قصه درست تسليم کړله بيا نبي کريم ﷺ وفرمايل داسې خبري دقيامت نه مخکې يعنی دقرب قيامت علامتونه دي هغه وخت ډير نزدې دي چې سړی به دخپل کور نه بهر وزي اوهرکله چې واپس کورته راشي نودهغه څوتې اودهغه کوړه وغيره به هغه ته هغه ټولي خبري ښايي چې دهغه کوروالو دهغه په عدم موجود ګي کښې کړي وي. (شرح السنه)

**حل اللغات:** -⑨ أَمَارَاتٌ: أي عَلَامَاتٌ: نخښې، علامات.

**تسهيلات: قوله:** بِمَا هُوَ كَائِنٌ:

**د قيامت د ورځې پورې پيشنګوايانې:** يعنی دَ راتلونکوخلقواحوال اودآخرت دَ احوالو په ذريعه اوبه ذريعه دَ معجزاتو ټول هرڅه اوخودل. کله چه دَ وحی په ذريعه حضورﷺ ته اوخودل نوهغه علم غيب پاتې نه شو. يوطرف ته دَ قرآن علوم دي په کوم کښې چه دَعلم غيب دَمخلوق نه نفی کړې شوې ده بل طرف ته دَ ليوه اوشرمخ مجمل خبره ده

**[۵۹۲۸] کاسې د طعام سره د ډکيدو معجزه**

۵۹۲۸-( )[مد][۱] وَعَنْ أَبِي الْعَلَاءِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ:[۲] «كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-نَتَدَاوَلُ مِنْ قَصْعَةٍ،[۳] مِنْ غُدْوَةٍ حَتَّى اللَّيْلِ،[۴] يَقُومُ عَشَرَةٌ وَيَقْعُدُ عَشَرَةٌ[۵] قُلْنَا: فَمَا كَانَتْ تُمَدُّ؟ قَالَ: مِنْ أَيِّ شَيْءٍ تَعْجَبُ؟[۶] مَا كَانَتْ تُمَدُّ إِلَّا مِنْ هَاهُنَا وَأَشَارَ بِيَدِهِ إِلَى السَّمَاءِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:**[۱] اوحضرت ابو العلاء تابعي دسمره ابن جندب صحابي ﷺ نه روايت کوی هغه بيان وکی دمعجزې ظاهريدو په وخت مونږ ټول نبي کريم ﷺ سره يوی لويې کاسې نه لس لس سړي نمبر په نمبر دسهار نه ترمابنامه پورې يعنی پوره ورځ طعام خوړی داسې چې لس سړو به طعام خوړلو نه وروسته پاڅيدل اودهغوی په ځاي به نور لس سړي راتلو سره کينا ستل مونږ دحضرت سمره ﷺ نه پوښتنه وکړه آخر هغه څه شی ؤو چې دهغه په ذريعه دکاسې مدد کيدلي يعنی هغه پياله کښې طعام دکوم شي په ذريعه اودکوم ځاي نه دومره زياتيدي حضرت سمره ﷺ جواب ورکړو ستا دپاره دي کښې دتعجب څه خبره ده ؟ هغه پياله کښې دطعام ډيريدل دهغه ځاي نه کيدل دي ويلو سره هغه اسمان طرف ته اشاره وکړله .ترمذي دارمي)

**حل اللغات:** - ①-نَتَدَاوَلُ: نَتَنَاوَبُ أَخْذَ الطَّعَامِ وَأَكْلَهُ: دخوراک دپاره به مو راخستل او خوړلو به مو ②قَصْعَةٍ: أَيْ مِنْ صَحْفَةٍ كَبِيرَةٍ: لويه کاسه ③تُمَدُّ: د مجهول صيفه ده.

---

( ) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب في آيات نبوة النبي صلى الله عليه وسلم وما قد خصه الله عز وجل به (رقم ۳۶۲۵)

**تسهيلات: قوله:** تَتَدَاوَلُ مِنْ قَصْعَةٍ مِنْ غُدْوَةٍ حَتَّى اللَّيْلِ،

**د يوې کاسې څخه پېښې موېدل:** دګرخولو راګرخولو په معنی کښې دې مګر دلته مطلب دادې چه مونږ خلق د سحرنه ترماښام پورې د يوې کاسې نه چاپېره جمع وو لسو کسانو به خوړله پاسيدل به نونور لس به راتلل دا تداول دې. په دې باندې يوتابعي سوال اوکړو چه دا نور خوراك به دکوم ځائې نه راتلو.

**قوله:** فَمِنْ أَيْنَ كَانَتْ تُمَدُّ؟

**د مکالمې کونکې حضرات:** هم دَدغه امداد اوزياتي په معنی کښې دې صحابي جواب ورکړو د آسمان نه به راتلو ځکه چه "وفي السمآء رزقكم" وعده ده. راجح هم دغه دی چه دا سوال او جواب د صحابي اوتابعي په مينځ کښې شوې دې چونکه دا واقعه د حضورپاك په زمانه مبارکه کښې وه په دې وجه دامعجزه اوګرځيده په کوم کښې چه د حضورپاك د معجزه ظهور اوشو.

**[۵۹۲۹] جنګ بدر کښې دقبوليت دعا معجزه**

٥٩٢٩-()[١٠][١]وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-[٢]أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-«خَرَجَ يَوْمَ بَدْرٍ فِي ثَلَاثِمِائَةٍ وَخَمْسَةَ عَشَرَ.[٣] قَالَ: (اللَّهُمَّ إِنَّهُمْ حُفَاةٌ فَاحْمِلْهُمْ،[٤] اللَّهُمَّ إِنَّهُمْ عُرَاةٌ فَاكْسُهُمْ،[٥] اللَّهُمَّ إِنَّهُمْ جِيَاعٌ فَأَشْبِعْهُمْ)[٦]فَفَتَحَ اللَّهُ لَهُ،[٧]فَانْقَلَبُوا وَمَا مِنْهُمْ رَجُلٌ إِلَّا وَقَدْ رَجَعَ بِجَمَلٍ أَوْ جَمَلَيْنِ وَاكْتَسَوْا، وَشَبِعُوا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:**[١] اوحضرت عبدالله ابن عمر ﷺ نه روايت دې نبی کريم ﷺ دجنګ بدر په ورځ درې شوه پنځلس سرې آخستو سره ووتلې اودعايې وکړله اې الله زما صحابه ستا په لار کښې جنګ دپاره وتلی دې خپې آبلې ښې دې دوې ته سورلې ورکړې اې الله دوی برېنډ دې ددوی په جسم دتهبند (لنګ) نه علاوه څه بله کپړه نشته دوی ته لباس ورکړې اې الله دوی اوږې دې دوی ظاهري اوباطني طور سره په خېټه ماړه کړې چې دوی ته ستا دطاعت اوعبادت طاقت حاصل وې نوالله تعالی حضور ﷺ دمکې دمشرکينو مقابله کښې فتح ياب کې ددښمن اوياسرې ووژل شول او اويا سرې دجنګې قيديانو په طور په لاس ورغلل اوداسلام مجاهدين داسې حالت کښې راواپس شول چې هغوی کښې هيڅ سرې داسې نه ؤو چې هغه سره يو يادوه اوښان نه وې اودټولو لباس هم نصيب شو اوټول په خېټه هم ماړه شول (ابوداود).

**حل اللغات:-** ① حُفَاةٌ: د حَافٍ جمع ده، وَهُوَ مَنْ لَا نَعْلَ لَهُ: برېنډې خپې مراددی يعنی خپې آبلې، ② عُرَاةٌ: د عَارٍ جمع ده، أَيْ: عُرْيَانٌ: برېنډ بدن مراد دې ③ فَاحْمِلْهُمْ: أَی أَعْطِ كُلًّا مِنْهُمُ الْمَرْكُوبَ: په سورولو کښې ددوی مدد اوکړې يعنی هر يوکس ته سورلی ورکړې ④ اكْتَسَوْا: لباس او جامې ورته ملاؤ شوې.

[١]) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الجهاد/باب فی نفل السرية تخرج من العسكر (رقم-٢٧٤٧)

**تسهیلات:**

**قوله**: ثَلَاثِمِائَةٍ وَخَمْسَةَ عَشَرَ:

**اشکال اودهغې حل**: په جنګ بدر کښې ټول شمیر ۳۱۳ وو مګر ممکن ده چه خادمان په شمیر کښې راوستلو سره تعداد ۳۱۵ شوې وی

**[۵۹۲۰] د فتحې او هدایت پیشن ګوئی کول**

۵۹۲۰-() [۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] («إِنَّكُمْ مَنْصُورُونَ وَمُصِيبُونَ وَمَفْتُوحٌ لَكُمْ [۳] فَمَنْ أَدْرَكَ ذَلِكَ مِنْكُمْ فَلْيَتَّقِ اللَّهَ [۴] وَلْيَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَلْيَنْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [۱] اوحضرت ابن مسعود ﷺ درسول کریم ﷺ نه روایت کوي چې حضور ﷺ آینده زمانه کښې دواقع کیدونکو واقعاتو پیش خبري اودهغه واقعاتو په نتیجه کښې د حاصلیدونکو فائدو دبشارت په توګه صحابه ﷺ مخاطب کولو سره ورته وفرمایل یقیناً تاسو ته به ددښمنانو په مقابله کې مدد اونصرت راشی تاسو ته به دمال غنیمت صورت کښې ډیر څه حاصل شي او ستاسو په لاس به ډیري لوی لوی علاقې اودمال ودولت نه ډک ښارونه فتح شی نو تاسو کښې چې کوم سری دی څیزونو سره سرفراز شی هغه ته پکار دی چې هغه درجه کمال ته رسیدو دپاره خپل ټول دیني اودنیاوي معاملاتو اومشاغلو کښې الله تعالی نه ویره کوي خلقوته دنیکي هدایت اوتلقین کوي اودخرابو خبرو نه یې دبچ کولو کوشش کوي

**حل اللغات**:- ① مَنْصُورُونَ: أَيْ: عَلَى الْأَعْدَاءِ: ستاسو مدد به اوکړی شی د دشمن په مقابله کښې یعنی تاسوته به فتوحات ملاویږی ، ② مُصِيبُونَ: أَيْ: لِلْغَنَائِمِ: اوبه رسیږئ یعنی حاصل به شی تاسوته مال غنیمت

**تسهیلات:**

**قوله**: وَلْيَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَلْيَنْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ

**امر بالمعروف څخه مراد**: دامر بالمعروف تفسیر شاه عبدالقادر ﷫ او فخرالدین رازی ﷫ اوعلامه جصاص ﷫ په خپلو تفاسیرو کښې جهاد سره کړي دې یعنی دفتوحاتو او غنائم حاصلولو نه پس تاسو امربالمعروف مه هیروئی ځکه چه د فتوحاتو منشاء معروف عام کول اومنکر ختمول دی

[۱]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۲۵۷)واحمد فی المسند:۳۸۹/۱

## [۵۹۳۱] دزهرو ملاو شوې غوښې خبر ورکولو معجزه

۵۹۳۱-( ) [۲] ﴿۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ﴿۲﴾ «أَنَّ يَهُودِيَّةً مِنْ أَهْلِ خَيْبَرَ سَمَّتْ شَاةً مَصْلِيَّةً، ﴿۳﴾ ثُمَّ أَهْدَتْهَا لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ﴿۴﴾ فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الذِّرَاعَ، ﴿۵﴾ فَأَكَلَ مِنْهَا وَأَكَلَ رَهْطٌ مِنْ أَصْحَابِهِ مَعَهُ، ﴿۶﴾ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (ارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ) ﴿۷﴾ وَأَرْسَلَ إِلَى الْيَهُودِيَّةِ فَدَعَاهَا.

**ترجمه:** ﴿۱﴾ او حضرت جابر ﷺ نه روایت دی اهل خیبر کښې یوې یهودي ښځې پخه کړې بزه (چیلۍ) کښې زهر یوځاي کړل او بیا هغه یې د رسول کریم ﷺ په خدمت کښې بطور هدیه پیش کړله رسول کریم ﷺ د هغه بزې (چیلۍ) نه یو ورون اخستو سره خپله یې هم خوړل شروع کړل او حضور ﷺ سره د صحابه ﷺ یو جماعت هم خوړل شروع کړل بیا یو دم رسول الله ﷺ وفرمایل لاس ونیسی دي نه هیڅ مه خوری دي نه پس حضور ﷺ د هغه یهود نړی رابللو د پاره یو سړی ولیږی هغه راغله

**حل اللغات:-** ① يَهُودِيَّةً: دغه ښځې نوم زَيْنَبُ بِنْتُ الْحَارِث وو دا د مشهورپهلوان مرحب خوروه دا د خیبریوه یهودی ښخه وه. ② سَمَّتْ: أَيْ: جَعَلَتْهَا مَسْمُومَةً: زهر ئې پکښې ګډ کړی وو (یعنی غوښه ئې زهر جنه کړې وه) ③ مَصْلِيَّةً: أَيْ مَشْوِيَّةً: په اور وریته کړې غوښه. ④ رَهْطٌ: أَيْ: جَمَاعَةٌ: ډله. جماعت.

﴿۱﴾ فَقَالَ: أَسَمَمْتِ هَذِهِ الشَّاةَ؟ ﴿۲﴾ فَقَالَتْ: مَنْ أَخْبَرَكَ؟ قَالَ: (أَخْبَرَتْنِي هَذِهِ فِي يَدِي) لِلذِّرَاعِ قَالَتْ: نَعَمْ، ﴿۳﴾ قُلْتُ: إِنْ كَانَ نَبِيًّا فَلَنْ تَضُرَّهُ، ﴿۴﴾ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ نَبِيًّا اسْتَرَحْنَا مِنْهُ ﴿۵﴾ فَعَفَا عَنْهَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَلَمْ يُعَاقِبْهَا، ﴿۶﴾ وَتُوُفِّيَ أَصْحَابُهُ الَّذِينَ أَكَلُوا مِنَ الشَّاةِ، ﴿۷﴾ وَاحْتَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى كَاهِلِهِ مِنْ أَجْلِ الَّذِي أَكَلَ مِنَ الشَّاةِ، ﴿۸﴾ حَجَمَهُ أَبُو هِنْدٍ بِالْقَرْنِ وَالشَّفْرَةِ، وَهُوَ مَوْلًى لِبَنِي بَيَاضَةَ مِنَ الْأَنْصَارِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ﴿۱﴾ نو حضور ﷺ ورته وفرمایل ایا تا دي بزي (چیلۍ) کښې زهر یوځاي کړي دي ښځې اوویل تاسو ته څرنګه معلومه شوه ستاسو الله تعالی درته خو دلي دي یا مخلوق کښې یوچا؟ حضور ﷺ ورته وفرمایل ماته دي راخو دلي دي چې زما په لاس کښې دي داخبره حضور ﷺ ورون طرف ته اشاره کولو سره اوویل سا هغه ښځې اشاره کولو سره اوویل هو ما دا بزه (چیلۍ) یعنی غوښه زهر الوده کړي وه آو ما سوچ کړی ؤو که محمد ﷺ نبي وي نو زهر آلوده بزه (چیلۍ) ورته هیڅ نقصان نشی رسولی او که نبي نه وي نو د زهرو اثر سره به ختم شي او مونږ ته به تری نجات او راحت حاصل شي نو رسول کریم ﷺ هغه ښځه معاف کړله او هیڅ سزایي ورنه کړله او صحابه ؤ ﷺ کښې چې چا د هغه بزي (چیلۍ) غوښه خوړلي وه هغوی کښې یو صحابي حضرت بشر ﷺ مړسو او رسول کریم ﷺ هم د هغه زهر

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب العتق/باب فی العتق وفضله وقوله تعالی: {فک رقبة. أو إطعام فی یوم ذی مسغبة. یتیما ذا مقربة} [البلد: ۱۴] (رقم-۲۵۱۷) وابوداود فی کتاب الدیات/باب فیمن سقی رجلا سما أو اطعمه فمات أیقاد منه (رقم-۴۵۱۰)

آلود بزي (چیلئ) غوښنه خوړلي وه دهغه داثراتو دفع کولو دپاره داوږوپه منځ کښې وینې کښلو دپاره ښکر ولګوي اوابوهند ﷺ چې دهغه اصل نوم یسار حجام ؤو اودیوانصاري قبیلي بنوبیاضه ازادکرده غلام ؤو دښکر اوپلني چاړه په ذریعه وینه وښکل (ابوداؤد دارمي)

**حل اللغات:**-⑤ احْتَجَمَ: دَ زهرو اثرختمولودپاره حضورپاك دَ اوګو په مینځ کښې ښکرې اولګولې یعنی ښکر لګولو سره ئې وینه اوویسته ⑥أَبُوهِنْدٍ: ابوهنددَ بنو بیاضه خاندان آزادکړې شوې غلام وو دده نوم يَسَارٌ الْحَجَّامُ وو ⑦ كَاهِلِهِ: أَيْ: بَيْنَ كَتِفَيْهِ: د اوګو یعنی د اولو په مینځ کښې ځائې ته کاهله وائی. ⑧ الْقَرْنِ: أَيْ: كَانَتِ الْمِحْجَمَةُ قَرْنًا: یعنی کوم څه سره چه وینه اوویستلې شوه هغه ښکر وو یعنی د ښکر په ذریعه ئې وینه اوویستله ⑨ الشَّفْرَةُ: هغه چاړه چه دَ وینې ویستلودپاره په زخم کښې استعمال شی ⑩ الْبِضْعَةُ: السِّكِّينُ الْعَرِيضُ: پلنه چاړه.

**تسهیلات:**

**قوله: فَعَفَا عَنْهَا:**

**په روایاتو کښې تعارض:** حضورپاك دغه ښځه معاف کړه اوس سوال دادې چه بعضې روایاتونه دَدغه ښځې دَقتل کولوذکرملاویږی داتعارض دې.

**د تعارض جواب:** اول حضورپاك دغه ښځه معاف کړه خوچه کله بشربن علاء ﷺ په دغه زهروسره شهید شو نوبیاقصاصًا حضورپاك دغه ښځه قتل کړه.

**[۵۹۳۲] دغزوه حنین دغنیمت حاصلیدو خبر ورکولو معجزه**

(۳-)[۳] ① وَعَنْ سَهْلِ بْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ، «أَنَّهُمْ سَارُوا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ حُنَيْنٍ، ② فَأَطْنَبُوا السَّيْرَ حَتَّى كَانَ عَشِيَّةً، ③ فَجَاءَ فَارِسٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ. ④ إِنِّي طَلَعْتُ عَلَى جَبَلِ كَذَا وَكَذَا، ⑤ فَإِذَا أَنَا بِهَوَازِنَ عَلَى بَكْرَةِ أَبِيهِمْ. ⑥ بِظُعُنِهِمْ وَنَعَمِهِمْ اجْتَمَعُوا إِلَى حُنَيْنٍ، ⑦ فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَقَالَ: ⑧ (تِلْكَ غَنِيمَةُ الْمُسْلِمِينَ غَدًا إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى) ⑨ قَالَ: (مَنْ يَحْرُسُنَا اللَّيْلَةَ) ⑩ قَالَ أَنَسُ بْنُ أَبِي مَرْثَدٍ الْغَنَوِيُّ: أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ.

**ترجمه:** ① اوحضرت سهل ابن حنظلیه ﷺ نه روایت دی چې دغزوه حنین په موقع حنین مقام ته تلو دپاره صحابه کرام ﷺ رسول کریم ﷺ سره روان شو نودسفر سلسله اوږده شوه یعنی حصاریدو نه بغیر مسلسل تلو ددې پورې چې شپه راغلمه نویوخاي ته رسیدو سره چې پړاؤ اچول وو یوسوارسړې درسول کریم ﷺ په خدمت اقدس کښې حاضر شو اوعرض یې وکړ یارسول الله زه په یوداسې اوداسې غر اوختلم اوددښمن جائزه مې اخستله چې اچانك ماولیدل چې هوازن چې مشهوره اوډیره لویه قبیله ده دخپل پلار په اوبښ راغلي دي یعنی دقبیلې ټول خلق راغلي دي هغوی سره دهغوی ښځې هم دي اودهغوی څاروي هم

¹) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الجهاد/باب في فضل الحرس في سبيل الله تعالى (رقم-۲۵۰۱)

دي اوهغوی تول دحنين په مقام جمع شوي دي حضور ﷺ دي اوریدو سره مسکي شواو وفرمایل انشاء الله داټول څیزونه به صباله دمسلمانانو مال د غنیمت وي ددي نه وروسته حضور ﷺ ټول اهل لښکر مخاطب کولو سره وفرمایل نن شپه زمونږ دنګهباني ذمه څوک اخلي یوصحابي حضرت انس ابن ابي مرثد اوویل داذمه واري زه اخلم

**حل اللغات:** - ① فَأَطْنَبُوا: أَيْ: أَطَالُوا وَبَالَغُوا فِيهِ: د سفر سلسله اوږده شوه یعنی بغیر دمه کولونه ئې مسلسل سفرجاري اوساتلو ② بِكَرَةِ: أَيْ: كُلُّهُمْ مُجْتَمِعِينَ: دا د عربو محاوره ده. د ټولو خلقود راتلو د پاره ئې استعمالوی یعنی ټول خاندان او قبیلې والاراغلی وو. ③ بِظُعُنِهِمْ: دا جمع د ظَعِينَة ده، کجاوه یا په کجاوه کښې ناستې ښځې ته وائی خو دلته ترې مراد ښځې دی، أَيْ: بِنِسَائِهِمْ: یعنی سره دخپلو ښځو راغلل ④ تَحْرُسُنَا: أَيْ: يَحْفَظُ عَسْكَرَنَا: چه زمونږ نګهبانی او نګرانی اوکړی یعنی پهره داری اوکړی.

① قَالَ: (ارْكَبْ) فَرَكِبَ فَرَسًا لَهُ. ② قَالَ: (اسْتَقْبِلْ هَذَا الشِّعْبَ حَتَّى تَكُونَ فِي أَعْلَاهُ) ③ فَلَمَّا أَصْبَحْنَا خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى مُصَلَّاهُ ④ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ قَالَ: ⑤ (هَلْ حَسَسْتُمْ فَارِسَكُمْ) فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! مَا حَسَسْنَا، ⑥ فَثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ يُصَلِّي يَلْتَفِتُ إِلَى الشِّعْبِ، ⑦ حَتَّى إِذَا قَضَى الصَّلَاةَ قَالَ: ⑧ (أَبْشِرُوا، فَقَدْ جَاءَ فَارِسُكُمْ) ⑨ فَجَعَلْنَا نَنْظُرُ إِلَى خِلَالِ الشَّجَرِ فِي الشِّعْبِ، فَإِذَا هُوَ قَدْ جَاءَ،

**ترجمه:** ① حضور ﷺ دي اوریدو سره وفرمایل ښه ده بیاته سپور شه انس ﷺ چې خپل آس باندې سور شو نوحضور ﷺ ورته فرمائل ته دي غریزه لار باندې تللو سره دهغه غر څوکې ته ورسیږه اوهلته په دښمن نظر ساته بیاچې سهار شو نو رسول کریم ﷺ دمونځ کولو ځاي ته تشریف راؤړی چې مخکې نه مقرر ؤو حضور ﷺ دسهار سنت دوه رکعاته وکړل اوخپل لښکر مخاطب کولو سره یې وفرمایل ایا تاسو دخپل سور څه کش کرپ اوریدلی دی یعنی تاسو کښې چاهغه په راتلو لیدلی دي یادهغه اواز چا اوریدلی دی چې هغه نه معلومیږي چې هغه په کوم حال کښې دی یوسړی عرض وکی یارسول الله په مونږ کښې هیچاهغه کش کرپ نه دی اوریدلی پدې کښې دسهارد مونځ تکبیر وشو اومونځ شروع شو درسول کریم ﷺ داضطراب پریشاني داحال ؤو چې دما نځه په دوران کښې به یې هم دسترګو ترګوټ انو هغه غریزې لارې طرف ته کتل ددي پورې چې دما نځه نه فارغ شو نو وي فرمایل خوشحاله شي ستاسو هغه سوار راروان دی چې ستاسو نګهباني یې کوله نومونږ خلقو هغه دغریزې لارې په و نو کښې کتل شروع کړل ددي پورې چې هغه سوار راتلونکې ولیدل شو

**حل اللغات:** - ⑤ الشِّعْبَ: وَهُوَ الطَّرِيقُ بَيْنَ الْجَبَلَيْنِ: د دوه غرونو په مینځ کښې لار، غرنیزه لار. ⑥ هَلْ حَسَسْتُمْ: أَيْ: أَدْرَكْتُمْ بِالْحِسِّ: آیا تاسو محسوس کرو څه کش کرپ (یعنی څه په پته پوهه شوئ). ⑦ فَثُوِّبَ: أَيْ أُقِيمَ: اقامت اوشو. ⑧ خِلَالِ: وَهُوَ الْفُرْجَةُ بَيْنَ الشَّيْئَيْنِ: د دوه څیزونو په مینځ کښې خالی ځائې

[١]حَتَّى وَقَفَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢]فَقَالَ: إِنِّي انْطَلَقْتُ حَتَّى كُنْتُ فِي أَعْلَى هَذَا الشِّعْبِ، حَيْثُ أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣]فَلَمَّا أَصْبَحْتُ طَلَعْتُ الشِّعْبَيْنِ كِلَيْهِمَا، [٤]فَلَمْ أَرَ أَحَدًا فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٥](هَلْ نَزَلْتَ اللَّيْلَةَ) قَالَ: لَا إِلَّا مُصَلِّيًا أَوْ قَاضِيَ حَاجَةٍ. [٦]فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (فَلَا عَلَيْكَ أَنْ لَا تَعْمَلَ بَعْدَهَا)». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [١] اوبيا هغه راتلو سره درسول كريم ﷺ مخې ته اودريدلو اوبيان يې وكړو چې زه دلته دروانيدو سره په غريزي لار تلو سره دغر هغه څوكي ته ورسيدم چيرته دتلو چې راته رسول كريم ﷺ حكم كړى ؤو اوپوره شپه په هغه ځاي كې ولاړ نګراني مې كوله بياچې سهار شو نوزه دغرپه دواړو لارو اودهغه خواؤ شا كنډونو كښې راغلم چې ددې خبرې په بنه شان اندازه ولګوم چې ددشمن څه خلق اخواديخوا پټ شوى خونه دي ليكن ماهلته هيڅوك ونه ليدل رسول كريم ﷺ انس بن مرثد ﷺ نه پوښتنه وكړه اياته دشپې دآس نه ښكته شوى يې؟ هغه اوويل صرف ما نځه دپاره ياتقاضي دپاره لږوخت دپاره ښكته شوى ووم ګيني پوره شپه دآس په شاناست نګراني مې كوله حضور ﷺ دي اوريدو سره وفرمايل بياخودي كښې هيڅ حرج نشته چې دي شپې نه وروسته هيڅ عمل ونه كړى (ابوداؤد)

**تسهيلات**:

**قوله**: عَلَى بَكْرَةِ أَبِيهِمْ:

**د على بكرة ابيهم تحقيق**: على، دَمع په معنى كښې دې. اى معبكرة ابيهم ملاعلى قاري ﷺ فرمائي "كلمة للعرب يريدون بها الكثرة". "وقال القاضي جاء القوم على بكرة ابيهم اى جاؤا باجمعهم" بكرة په اصل كښې خوانې اوښې ته وائې.

**د مذكوره جملې ضرب المثل كرځيدلو واقعه**: دَدې متل سبب اوشان داسې دې چه دَ يومقام نه عرب وتل دَهغوى يوكس هم شاته پاتې نه شو تردې چه دَهغوى دَپلار يوه اوښه وه هغه ئې هم اوچته كړه يوړې نو نورو عربوا وونيل جاءوا على بكرة ابيهم يعني دَپلار اوښه ئې هم ځان سره بوتله.

**قوله**: وَنَعَمِهِمْ:

**د نَعَمِهِمْ هم مصداق**: مال اوځناور مراددي. دادَ افغان خانه بدوشو دَ ترك په شان دى په كوم كښې چه هرڅه باركوى اوړى تردې چه يوبيكاره سپې هم اوچتوى اوړى.

**قوله**: فَلَا عَلَيْكَ أَنْ لَا تَعْمَلَ بَعْدَهَا،

**دعدم عمل مصداق**: يعنى دَنن نه پس كه په نوافل كښې هيڅ عمل هم اونه كړې نوستابه هيڅ نقصان نه وى. دې عمل نه فرائض مرادنه دى نوافل مراددى. حضورپاك دَ دغه صحابى دَ راتلونه وراندې خبر وركړو په دې كښې دَمعجزې ظهوروو.

## [۵۹۳۳] په تجورو کښې د برکت معجزه

۵۹۳۳-(¹)[۳] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «أَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِتَمَرَاتٍ، ③ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، ادْعُ اللَّهَ فِيهِنَّ بِالْبَرَكَةِ، ④ فَضَمَّهُنَّ، ثُمَّ دَعَا لِي فِيهِنَّ بِالْبَرَكَةِ، ⑤ قَالَ: (خُذْهُنَّ فَاجْعَلْهُنَّ فِي مِزْوَدِكَ، ⑥ كُلَّمَا أَرَدْتَ أَنْ تَأْخُذَ مِنْهُ شَيْئًا فَأَدْخِلْ فِيهِ يَدَكَ فَخُذْهُ وَلَا تَنْثُرْهُ نَثْرًا).

**ترجمه**: ① او حضرت ابوهریره ﷺ وایي یوه ورځ زه رسول کریم ﷺ ته یو څو خورماوو اخستو سره ورغلم او عرض مي وکی یارسول الله ﷺ ته په دي خورماوو کښې د برکت دعا وکړه حضور ﷺ هغه خورماوي خپل لاس مبارک کښې واخستي یا داچي په هغه یې خپل لاس مبارک کېښووی او بیا یې زما دپاره هغه خورماوو کښې د برکت او هغه خورماوو خوړلو کښې د کثرت او دخیر او دهغه دباقي پاتي کیدو دعا وفرمایله او دي نه وروسته یې وفرمایل واخله او دا خورماوي خپل توښه دان کښې کښېږده هرکله چي ته د دي نه څه اخستل غواړي نو توښه دان کښې خپل لاس اچوه او راکاږه او دا توښه دان هیڅ کله مه خلاصوه

**حل اللغات**:- ① فَضَمَّهُنَّ: أَيْ: فَأَخَذَهُنَّ بِيَدِهِ: په خپل موټی کښې ني واخستې. یا داچه خپل لاس نې په هغې کیخوده ② مِزْوَدِكَ: وَهُوَ مَا يُجْعَلُ فِيهِ الزَّادُ: هغه تهیلۍ چه د خوراک څیزونه پکښې اېښودې شي ③ وَلَا تَنْثُرْهُ: مه ئي څنډه، مه کهلاوهه دا تهیلۍ

① فَقَدْ حَمَلْتُ مِنْ ذَلِكَ التَّمْرِ كَذَا وَكَذَا مِنْ وَسْقٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، ② فَكُنَّا نَأْكُلُ مِنْهُ وَنُطْعِمُ، ③ وَكَانَ لَا يُفَارِقُ حَقْوِي ④ حَتَّى كَانَ يَوْمُ قَتْلِ عُثْمَانَ فَإِنَّهُ انْقَطَعَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ① حضرت ابوهریره ﷺ وایي ما د حضور ﷺ دحکم مطابق هغه خورماوي یو توښه دان کښې کېښووی او بیا هغه څو خورماو کښې مي دومره برکت اولیدلو چي هغه توښه دان نه راکښلو سره دومره دومره وسق خورماوي خومي د ﷲ په لار کښې خرچ کړي او مونږ یعني زما دوستان او احباب به د هغه خورماوو نه خوړلي هغه توښه دان به زما د ملا سره تړلی ؤو هغه مي هیڅ وخت نه جدا کوی د دي پورې چي د حضرت عثمان ﷺ د شهید کیدو په ورځ هغه توښه دان زما د ملا نه خلاصیدو سره وغورځیدی او ضائع شو (ترمذي)

**حل اللغات**:- ③ لَا يُفَارِقُ حَقْوِي: نړی ملا یا د ملا مینځ ته حقوه واني (اصل کښې حقوه ازار یعنی لنګ ته واني خو دلته تړي د لنګ تړلو ځاني مراد دي په وجه د اتصال او مجاورت نه

**تسهیلات**: **قوله**: وَلَا تَنْثُرْهُ:

**د غیبي مدد ظهور**: یعني دا خوره مه تهیلنی څنډه مه دمعجزه ظهور دي کوم چه دغیب نظام دي پټ ساتل پکار دی

¹) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب ابی سریرة رضی الله عنه (رقم-۳۸۳۹)

**قوله**: يَوْمُ قُتِلَ عُثْمَانَ:

**د شهادت عثمان په ورځ د تیلی ورکیدل**: یعنی په کومه ورځ چه حضرت عثمان رضي الله عنه شهید کړي شو هغه وخت دا تهیلئی پخپله کټ شوه اورکه شوه پخپله به حضرت ابوهریره رضي الله عنه دافسوس په توګه دا شعرونیلو

للنَّاسِ هَمٌّ وَلِي هَمَّانِ فَقْدُ جِرَابِي وَمَوْتُ شَيْخِ عُثْمَانِ

دَ حضرت عثمان رضي الله عنه دَ شهادت دَوجي نه ډیرزیات برکتونه دامت نه اوچت کړي شو په هغې کښې یوه دا تهیلئی وه

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۵۹۳٤] د قریشو د قتل منصوبې څخه د خبریدو معجزه

۵۹۳۴-()[۱۵] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ۲ «تَشَاوَرَتْ قُرَيْشٌ لَيْلَةً بِمَكَّةَ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: ۳ إِذَا أَصْبَحَ فَأَثْبِتُوهُ بِالْوِثَاقِ يُرِيدُونَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۴ فَقَالَ بَعْضُهُمْ: بَلِ اقْتُلُوهُ. ۵ وَقَالَ بَعْضُهُمْ: بَلْ أَخْرِجُوهُ. ۶ فَأَطْلَعَ اللَّهُ نَبِيَّهُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى ذَلِكَ، ۷ فَبَاتَ عَلِيٌّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَلَى فِرَاشِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تِلْكَ اللَّيْلَةَ،

**ترجمه**: ۱ حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي دمکي قريشو یو خل دشپې وخت دارالندوه کښې خپل مجلس مشاورت منعقد کړو چې په هغه کښې ابلیس شیطان هم دیونجدي شیخ په صورت کښې شریک شو بعضو دامشوره ورکړه چې سهار کیدو سره ددي سړي لاسونه وتړي یعنی په رسو تړلو سره یې قید کړي دي سړي نه دهغوی مراد دنبي کریم ﷺ ذات ګرامي ؤو بعضو دا رایې ورکړه چې نه بلکې قتل یې کړی اوبعضویه حقارت سره دا اوویل چې دي خپل زمکي نه ویستلو سره بهر کړی یعنی جلا وطن یې کړی الله تعالی دحضرت جبرائیل عليه السلام په ذریعه خپل نبي ﷺ دمکي دقریشو دمشوري اوفیصلي نه اګاه کړل اوحکم یې ورکړو چې حضور ﷺ د نن شپه په خپله بستره حضرت علي رضي الله عنه څملوی

**حل اللغات**:- ① فَأَثْبِتُوهُ: أَيْ: فَارْبُطُوهُ: اوني تړئ ② الْوِثَاقِ: هُوَ مَا يُشَدُّ بِهِ: کوم څیز سره چه تړل کیږی یعنی رسی.

۱ وَخَرَجَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى لَحِقَ بِالْغَارِ. ۲ وَبَاتَ الْمُشْرِكُونَ يَحْرُسُونَ عَلِيًّا يَحْسَبُونَهُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۳ فَلَمَّا أَصْبَحُوا ثَارُوا عَلَيْهِ، ۴ فَلَمَّا رَأَوْا عَلِيًّا رَدَّ اللَّهُ مَكْرَهُمْ ۵ فَقَالُوا: أَيْنَ صَاحِبُكَ هَذَا، قَالَ: لَا أَدْرِي. ۶ فَاقْتَصُّوا أَثَرَهُ فَلَمَّا بَلَغُوا الْجَبَلَ اخْتَلَطَ عَلَيْهِمْ ۷ فَصَعِدُوا الْجَبَلَ، فَمَرُّوا بِالْغَارِ، ۸ فَرَأَوْا عَلَى بَابِهِ نَسْجَ الْعَنْكَبُوتِ فَقَالُوا: ۹ لَوْ دَخَلَ هَاهُنَا لَمْ يَكُنْ نَسْجُ الْعَنْكَبُوتِ عَلَى بَابِهِ، ۱۰ فَمَكَثَ فِيهِ ثَلَاثَ لَيَالٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: ۱ اوخپله دي حضرت ابوبکر رضي الله عنه خان سره کړي دهجرت په اراده دي دمکي نه روان شي نوپه دغه شپه حضرت علي رضي الله عنه د نبی کریم ﷺ په بستره اوده شو اوحضور

[1]) اخرجه احمد فی المسند: ۳٤٨/۱

ابوبکر ﷺ خان سره کړي اودمکي نه ووتل اوغار ثور کښې پټ شول . علی ﷺ اوده شوی وو اودمکي قریشو توله شپه په دي خیال چې دلته نبي ﷺ اوده دي دکور نګراني کوله ددي پورې چې سهار شو نو د مکي قریش په هغه بستره چې حضرت علي ﷺ پرې اوده ؤو دحضور ﷺ ګمان کولو سره حمله پرې وکړله خوهغوی چې هلته دحضور ﷺ په ځاې حضرت علي ﷺ اولیدلو اوالله دهغوی بدخواهي په هغوی وروګرځوله نوهغوی ډیر پریشان شول اوحضرت علي ﷺ نه یي پوښتنه وکړه چې ستا دا دوست چې دهغه دابستره ده یعنی محمد ﷺ چیرته لاړلو حضرت علي ﷺ جواب ورکړو ماته نه ده معلومه دمکي قریش په صورت حال باندې پوهیدو سره فوراً حرکت کښې راغلل اودحضور ﷺ تلاش کولو اونیولو دپاره دحضور ﷺ د قدمونو په نښه دحضور ﷺ په تعاقب کښې ووتل ددي پورې چې هغه خلق جبل ثورته ورسیدل دهغوی ګمان وو چې حضور ﷺ به پدې غره کښې پټ شوی وي لیکن هغوی چې د غار په خوله دغښې ځاله ولیده نوهغوی اوویل که محمد ﷺ پدي غار کښې داخل شوی وي نو ددي په خولبه دغښې (جولاګې) ځاله نه وای دغه شان هغه خلق دهغه ځاې نه ناامیده کیدو سره وروسته شو اوحضور ﷺ دري شپې ورځې هغه غار کښې پټ وو. (احمد)

**حل اللغات:**-③ يَحْرُسُونَ: نګرانی ئې کوله، ④ ثَارُوا: أَيْ وَثَبُوا: حمله ئې پرې اوکړه. ⑤ مَكْرَهُمْ: بد خواهی دهغه، ⑥ فَاقْتَصُّوا: أَيْ تَتَبَّعُوا: لټون او تلاش ئې کولو (یعنی قریشو دحضورپاك دقدم نښانات او علامات لټول). ⑦ اخْتَلَطَ: أَيْ: اشْتَبَهَ أَمْرُ الْأَثَرِ: ګډ وډ شو یعنی دهغوی دخپو نښاناتو په لټون کښې مشتبه اوپه شک کښې شو. ⑧ نَسْجَ: د جولاګې جاله.

**تسهيلات: قوله:** نَسْجُ الْعَنْكَبُوتِ:

**د جولاګې جاله اوچول:** جولاګې جاله جوړه کړه، کونترې هګئې واچولې علامه بوصیری ﷺ فرمائي:

| | |
|---|---|
| فالصدق فی الغار والصدیق لم یریا | وهم یقولون ما بالغار من ارم |
| ظنوا الحمام وظنوا العنکبوت علی | خیر البریة لم تنسج ولم تحم |

**[۵۹۳۵] دخیبر یهودیا نو سره متعلق معجزه**

۵۹۳۵-(۱)[۲۲] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - شَاةٌ فِيهَا سُمٌّ ③ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (اجْمَعُوا إِلَيَّ مَنْ كَانَ هَاهُنَا مِنَ الْيَهُودِ). ④ فَجُمِعُوا لَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⑤ (إِنِّي سَائِلُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَهَلْ أَنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ عَنْهُ؟). ⑥ قَالُوا: نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ. فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (مَنْ أَبُوكُمْ؟)

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الجزیة/باب إذا غدر المشرکون بالمسلمین، هل یعفی عنهم (رقم-۳۱۶۹) واحمد فی المسند: ۴۵۱/۲

**ترجمه:**۱ اوحضرت ابوهریره ﷺ وايي کوم وخت چې خیبر فتح شو نودرسول کریم ﷺ په خدمت کښې یوه پخه بزه (چیلۍ) دهديې په طور پیش کړل شوه چې په هغه کښې زهر اچول شوي وو رسول کریم ﷺ حکم وکړ دلته خیبر کښې چې څومره یهودیان دي تول ماته راولی نوتول یهودیان جمع کولو سره دحضور ﷺ په خدمت کښې پیش کړل شو رسول کریم ﷺ هغه یهودیانوته وفرمایل زه ستاسو نه دیوې خبرې پوښتنه کوماوهغه داکه تاسو زما دسوال غلط جواب راکړې اوزه دهغه تردید وکړم نو تاسو به زما په خبره باور وکړئ یهودیانو اوویل هو ابو القاسم مونږ به ستاسو دسوال جواب درکړو اوکه تاسو زمونږ دجواب صحیح تردیدوکړي مونږ به په هغه باور وکړو نورسول کریم ﷺ هغوی نه پوښتنه وکړه چې ستاسو پلار یعنی ستاسو جدِ اعلی چې هغه ته دقبیلې پلار ونیل کیږي څوک دي ؟

۱ قَالُوا: فُلَانٌ. قَالَ: (كَذَبْتُمْ، بَلْ أَبُوكُمْ فُلَانٌ) ۲ قَالُوا: صَدَقْتَ وَبَرِرْتَ. ۳ قَالَ: (فَهَلْ أَنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ؟) . ۴ قَالُوا: نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ، ۵ وَإِنْ كَذَبْنَاكَ عَرَفْتَ كَمَا عَرَفْتَهُ فِي أَبِينَا ۶ فَقَالَ لَهُمْ: (مَنْ أَهْلُ النَّارِ؟) ۷ قَالُوا: نَكُونُ فِيهَا يَسِيرًا ثُمَّ تَخْلُفُونَا فِيهَا. ۸ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (اخْسَئُوا فِيهَا، وَاللَّهِ لَا نَخْلُفُكُمْ فِيهَا أَبَدًا).

**ترجمه:**۱ یهودیانو دحضور ﷺ ازمایلو دپاره دخپل جدِ اعلی نوم صحیح ونه ښوده بلکې غلط طور سره یې څه بل نوم آخستو سره اوویل چې فلانی سړی دی حضور ﷺ ورته وفرمایل تاسو غلط وایئ ستاسو پلار خو فلانی سړی دی یهودیانو اوویل تاسو رښتیا وفرمایل اوپه ځاي مو وفرمایل بیاحضور ﷺ هغوی ته وفرمایل که زه در نه څه بل سوال وکړم او ستاسو دغلط جواب تردید کولو سره صحیح خبره درته وښایم نوآیاتاسوبه زما په هغه خبره باور وکړی یهودیانو اوویل هو اې ابوالقاسم که مونږ دروغ اوویل او تاسو ته زمونږ دروغ معلوم شوه څرنګه چې تاسو ته زمونږ دپلار باره کښې زمونږ غلط جواب معلوم شوی وونومونږبه بالکل ستاتصدیق وکړي حضور ﷺ دهغوی نه پوښتنه وکړه نوبیا وښایې دوزخي څوک دی ؟ یهودیانو جواب ورکړو څو ورځې خوبه مونږ خلق یو اوبیاچې مونږ دوزخ نه بهر راووځو نوزمونږ جانشین به تاسو خلق یئ رسول کریم ﷺ ورته وفرمایل اې کم بختو چخې شئ ددوزخ په باره کښې دومره دروغ خبره مه وایئ قسم په الله مونږ به دوزخ کښې هیڅ کله ستاسو جانشین نه یو

**حل اللغات:**- ۱ بَرِرْتَ: أَيْ: أَحْسَنْتَ: ښه خبره مو اوکړه. ۲ تَخْلُفُونَا: أَيْ: تَعْقُبُونَنَا: مونږ پسې به تاسو راځئ. ۳ اخْسَئُوا: چخې شئ، کورې شئ (د سپي شړلو او دفع کولو د پاره دا لفظ استعمالیږي).

۱ ثُمَّ قَالَ: (هَلْ أَنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ؟) . ۲ فَقَالُوا: نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ. ۳ قَالَ: (هَلْ جَعَلْتُمْ فِي هَذِهِ الشَّاةِ سُمًّا؟) قَالُوا: نَعَمْ. ۴ قَالَ: (فَمَا حَمَلَكُمْ عَلَى ذَلِكَ؟) ، ۵ قَالُوا: أَرَدْنَا إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا أَنْ نَسْتَرِيحَ مِنْكَ، ۶ وَإِنْ كُنْتَ صَادِقًا لَمْ يَضُرَّكَ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[۱] دي نه وروسته حضور ﷺ هغوی ته وفرمایل که زه ستاسو نه څه بل سوال وکړم او ستاسو د غلط جواب تردید کولو سره صحیح خبره درته ونښایم نوآیاتاسوبه زما دخبري باور وکړی یهودیانو اوویل هو ای ابوالقاسم حضور ﷺ دهغوی نه پوښتنه وکړه ښه ونښایي ایا تاسو دي بزي (چیلی) کښې زهر اچولی دی ؟ هغوی جواب ورکړو هو حضور ﷺ تري پوښتنه وکړه تاسو څه شی پردی ذلیل حرکت باندي آماده کړلئ ؟ هغوی اوویل دراصل مونږ سوچ کړی ؤو که ستاسو دعوی دنبوت دروغ وي نودازهر به ستاسو دهلاکت سبب جوړ شي اومونږ به ستاسو نه نجات اوراحت حاصل کړو اوکه تاسو خپله دعوی کښې ریښتیني یي نودا زهر تاسو ته هیڅ ضرر نشي رسولی (بخاري)

**تسهیلات:**

**قوله:** اخْسَئُوا: حضورپاك نوم په نوم دهغوی د نیکونو بیان اوکړو په کوم سره چه د حضورپاك د معجزه ظهور اوشو.

**قوله:** قَالُوا: نَكُونُ فِيهَا يَسِيرًا ثُمَّ تَخْلُفُونَا فِيهَا.

**د یهودو باطله عقیده:** په حدیث الباب کښې دی چه یهودیانو به مسلمانانو ته دا وئیل چه د جنت اصلی مستحق هم مونږ یو که چرې مونږ د څه بدعملئ د وجې نه فرض کړه دوزخ کښې داخل هم شو نو د یو څو ورځو د پاره به یو کله چه مونږ دخپلې سزا موده پوره کړو نو د دوزخ نه به راویستلې شو نو بیا به تاسو مسلمانان د همیشه د پاره په دوزخ کښې واچولی شئ د یهودیانو ددې قول طرف ته قرآن پاك اشاره اوکړه ﴿لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَعْدُودَةً﴾ (الآیه) دا د یهودیانو باطل اعتقاد او فاسد عقیده وه کومه چه هیڅ اهمیت نه لری

**د معجزې ښکاره کیدو باوجود د یهودیانوایمان نه راوړل:** باقی د یهودیانو دا وینا چه مونږ د چیلئ په غوښه کښې زهر ملاؤ کړل په دې وجه چه که چرې دې دروغژن نبی وی نو د ده نه به خلق آزاد شی اوکه چرې رښتونې نبی وی نو هغه ته به زهر څه نقصان اونه رسولې شی په دې صورت کښې به مونږ په نبی باندې ایمان راوړو لیکن حضورپاك ته چه کله څه نقصان اونه رسیدو نو بیا به هم دې یهودیانو د ضد او عناد په وجه ایمان رانوړو او نه دوی د مسلمانانو او د اسلام د دښمننی نه منع شو

**[۵۹۲٦] قیامته پورې داهمو واقعاتو خبر ورکولو معجزه**

۵۹۲٦-( )[٦٧][۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ أَخْطَبَ الْأَنْصَارِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ:[۲] «صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمًا[۳] وَصَعِدَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَخَطَبَنَا، حَتَّى حَضَرَتِ الظُّهْرُ[۴] فَنَزَلَ فَصَلَّى، ثُمَّ صَعِدَ الْمِنْبَرَ، فَخَطَبَنَا،

( ) اخرجه مسلم فی کتاب الفتن وأشراط الساعة /باب إخبار النبی صلی الله علیه وسلم فیما یکون إلی قیام الساعة (رقم- ۲۵ - (۲۸۹۲) واحمد فی المسند: ۳٤۱/۵

حَتَّى الْعَصْرِ، [۵] ثُمَّ نَزَلَ فَصَلَّى، ثُمَّ صَعِدَ الْمِنْبَرَ، حَتَّى غَرَبَتِ الشَّمْسُ، [۶] فَأَخْبَرَنَا بِمَا هُوَ كَائِنٌ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ فَأَعْلَمُنَا أَحْفَظُنَا»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عمرو ابن اخطب انصاري ﷺ وايي يوه ورځ نبي کريم ﷺ مونږته دسهار مونځ راکړی اوبيا منبر ته ختلو سره زمونږ مخکښي يې وعظ ارشاد وفرمايي چې دهغه سلسله ماپښينه پورې جاري وه بيامنبر نه خکته شو حضور ﷺ دماپښين مونځ راکی بيامنبر ته ختلو سره وعظ يې ارشاد فرمايلي ددي پورې چې دمازيګر وخت شو نومنبر نه خکته شو دمازيګر مونځ يې راکی بيامنبر ته ختلو سره وعظ يې فرمايي اودوعظ داسلسله نمر غرق يدو باندې ختمه شوه ګويا پوره ورځ وعظ کښې تيره شوه ددې وعظ په دوران کښې حضور ﷺ دهغه ټولو خبروڅخه مونږ اګاه کړلو چې قيامته پورې پيښيدونکي دي دا روايت بيانولو نه وروسته حضرت عمرو بن اخطب ﷺ اوويل په مونږ کښې ددې ټولو خبرو دټولوڅخه زيات يادلرونکي هغه سړی دی چې نن صبا په مونږ کښې دا ناتردي (مسلم)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت عمرو بن اخطب: نام:** عمرو، کنيت ابوخطب جليل القدر صحابي دې، انصاري دې، ديارلسو غزواتو کښې شريک شوی دی، يو موقع باندې حضرت نبي کريم ﷺ ددوی په سر مبارک لاس رانښکلې وو او دعائې فرمائيلې وه.

وفات ددوی عمر يو سل شل (۱۲۰) کاله وو او بيا هم ددوی سر مبارک کښې څو سپين ويښته وو. دا هم دحضرت نبي کريم ﷺ د دعا برکت وو

**مرويات:** دوی نه څلور احاديث مروی دی.

**[۵۹۳۷] دوني په ذريعه د جناتو راتلو خبر ورکيدو معجزه**

۵۹۳۷-( ) [۶۸] [۱] «وَعَنْ مَعْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي قَالَ: سَأَلْتُ مَسْرُوقًا: [۲] مَنْ آذَنَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْجِنِّ لَيْلَةَ اسْتَمَعُوا الْقُرْآنَ؟ [۳] قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُوكَ - يَعْنِي - عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ - أَنَّهُ قَالَ: آذَنَتْ بِهِمْ شَجَرَةٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت معن ابن عبدالرحمن تابعي چې دحضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ لمسی دی وايي مادخپل پلار حضرت عبدالرحمن نه واوريدل فرمايل يې هرکله چې مادجليل القدر تابعي حضرت مسروق نه پوښتنه وکړه چې په هغه شپه کښې چې جناتو قرآن مجيد واوريدي دهغه جناتو دراتګ اطلاع نبي کريم ﷺ ته چاورکړي وه نوحضرت مسروق اوويل ماته ستا پلار يعنی حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ بيان وکی چې حضور ﷺ ته دجناتو پيريانو دراتلو خبر يوې وني ورکړي وو (بخاري مسلم)

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المناقب /باب ذكر الجن وقول الله تعالى: {قل أوحي إلى أنه استمع نفر من الجن} [الجن: ۱] (رقم ۳۸۵۹) ومسلم في كتاب الصلاة. باب الجهر بالقراءة في الصبح والقراءة على الجن. رقم (۱۵۳ - (۴۵۰))

**تسهيلات: قوله:** مَعْنٍ:

**د معن تعارف:** دا د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نمسي دې هغه د خپل پلار نه بيان اوکړو د هغه د پلار نوم عبدالرحمن دې.

**قوله:** آذَنَتْ بِهِمْ شَجَرَةٌ،

**نبی علیه السلام ته د ونې خبر ورکول:** يعنی مسروق په جواب کښې اووئيل چه ستا پلار عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ماته اوخودل چه يوې ونې حضورپاک ته خبر ورکړې وو په کومه کښې چه د معجزه ظهورشوې.

**[۵۹۳۸] د مقتولينو بدر پيشن ګوئي معجزه**

۵۹۳۸-()[۲۱]① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كُنَّا مَعَ عُمَرَ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ، فَتَرَاءَيْنَا الْهِلَالَ، ③ وَكُنْتُ رَجُلًا حَدِيدَ الْبَصَرِ، ④ فَرَأَيْتُهُ وَلَيْسَ أَحَدٌ يَزْعُمُ أَنَّهُ رَآهُ غَيْرِي، ⑤ فَجَعَلْتُ أَقُولُ لِعُمَرَ: أَمَا تَرَاهُ؟ ⑥ فَجَعَلَ لَا يَرَاهُ ⑦ قَالَ: يَقُولُ عُمَرُ: سَأَرَاهُ وَأَنَا مُسْتَلْقٍ عَلَى فِرَاشِي، ⑧ ثُمَّ أَنْشَأَ يُحَدِّثُنَا عَنْ أَهْلِ بَدْرٍ ⑨ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يُرِينَا مَصَارِعَ أَهْلِ بَدْرٍ بِالْأَمْسِ،

**ترجمه:** ① اوحضرت انس رضی الله عنه وايي ديوسفر په موقع مونږ خلقو دحضرت عمر ابن خطاب رضی الله عنه سره دمکي اومديني په منځ کښې په يوځاي پړاؤ اچولی ؤو چې هلته مونږ دنوي مياشتي ليدلو کوشش وکی زه يو تيز نظره سړی ووم نوما مياشت وليده زما نه علاوه بل سړی داسي نه ؤو چې هغه داويلي وې چې هغه مياشت ما ليدلي ده ماحضرت عمر رضی الله عنه ته دمياشتي ښودلو کوشش کولو سره هغوی ته اوويل چې آيا تاسو ته مياشت په نظر نه راځي ګوری هغه ده ليکن هغوی مياشت نه ليده حضرت انس رضی الله عنه وايي زما په بار بار ښودلو چې حضرت عمر رضی الله عنه ته مياشت په نظر رانغله نوهغوی اوويل بس پريږده زه به ډير نزدې په خپله بستره پروت دامياشت به ووينم دي نه وروسته حضرت عمر رضی الله عنه زمونږ مخکښې د کافروځخه دهغه اهل بدر ذکر شروع کړو چې جنګ بدر کښې وژل شوی ؤو اوبيان يې وکی چې رسول کريم ﷺ دجنګ نه يوه ورځ مخکښې دقتليدونکي مشرکينو ځايونه مونږ ته وښودل

**حل اللغات:-** ① حَدِيدَ الْبَصَرِ: تيز نظر والا، ② مُسْتَلْقٍ: پروت به يم، ملاست به يم ③ مَصَارِعَ: أيْ: مَوَاضِعَ طَرْحِهِمْ: د راغورزيدو او قتل کيدو ځايونه.

① يَقُولُ: (هَذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ غَدًا إِنْ شَاءَ اللَّهُ، ② وَهَذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ كَذَا إِنْ شَاءَ اللَّهُ). ③ قَالَ عُمَرُ: وَالَّذِي بَعَثَهُ بِالْحَقِّ مَا أَخْطَأُوا الْحُدُودَ الَّتِي حَدَّهَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ④ قَالَ فَجُعِلُوا فِي بِئْرٍ، بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ، ⑤ فَانْطَلَقَ رَسُولُ اللَّهِ حَتَّى انْتَهَى إِلَيْهِمْ، ⑥ قَالَ: (يَا فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ وَيَا فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ! هَلْ وَجَدْتُمْ مَا وَعَدَكُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ حَقًّا؟ ⑦ فَإِنِّي قَدْ وَجَدْتُ مَا وَعَدَنِي اللَّهُ حَقًّا).

[۱] اخرجه مسلم فی كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب عرض مقعد الميت من الجنة أو النار عليه، وإثبات عذاب القبر والتعوذ منه (رقم-۷۶ (۲۸۷۳)والنسائی فی كتاب الجنائز/باب أرواح المؤمنين (رقم-۲۰۷٤) واحمد فی المسند:۱/۲٦

**ترجمه:**[۱] حضور ﷺ يو يوخاي طرف ته اشاره كولو سره فرمايل چې گوري داهغه خاي دى چيرته چې به صباله انشاالله فلانى مشرك وژل كيږي اوداهغه خاي دى چيرته چې به انشاالله فلانى مشرك وژلى پروت وي گويا حضور ﷺ داهل اسلام دلاسه دقتليدونكو مشركانو نومونه اخستو اخستو سره دهغوى نشاندهي كړي وه بلكې هغوى كښې دهريوه دپاره جدا جدا خايونه پوري متعين كولو سره بيان كړى ؤو بيا حضرت عمر ﷺ اوويل قسم دي په هغه ذات چې حضور ﷺ يې په حق سره راليږلى دى رسول كريم ﷺ چې كوم خايونه متعين كولو سره بيان كړي ؤو قتليدونكي مشركان هغه نه ذره هم اخوا ديخوا نه شول يعنى حضور ﷺ چې دكوم مشرك باره كښې كوم خاي متعين كولو سره خو دلى هغه قتليدوسره تيک په هغه خاي وغورخيدل بياچې دهغه مشركانو لاسونه يودبل دپاسه اچولو سره هغه كوهي كښې وغورخول شو چې اوبو اخستو دپاره په كار نه راتلو نو رسول كريم ﷺ تلو سره هغې كوهي ته راغى اودهغه مشركانو نوم اخستو اخستو سره هغوى يې مخاطب كړل او وي فرمايل اې فلان ابن فلان اواى فلان ابن فلان اياتاسو هغه شى حق اوږشتيا پيدا كړل چې دهغه ستاسو سره الله اوداالله رسول وعده كړي وه ماخوهغه شى حق پيدا كړي چې دكم شي ما سره زما الله وعده كړي وه

> [۱] فَقَالَ عُمَرُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! كَيْفَ تُكَلِّمُ أَجْسَادًا لَا أَرْوَاحَ فِيهَا؟[۲] قَالَ: «مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ»[۳] غَيْرَ أَنَّهُمْ لَا يَسْتَطِيعُونَ أَنْ يَرُدُّوا عَلَيَّ شَيْئًا»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] حضرت عمر ﷺ دابيان هم وكى چې ماحضور ﷺ دمشركانو لاشونو ته داسې مخاطب ليدو سره عرض وكى اې رسول الله تاسو داسې جسمونو ته څرنګه مخاطب يې چې روحونوڅخه خالي دي ؟ حضور ﷺ وفرمايل زه چې څه وايم هغه تاسو ددوى نه زيات اوريدونكي نه يئ هو هغوى دجواب راكولو قدرت نه لري مطلب داچې زما داخبره څرنګه چې تا اوريدلي ده هغه شان دي تولو هم اوريدلي ده بس فرق دادى چې دجواب وركولو قدرت دوى ته حاصل نه دى ،مسلم،

**تسهيلات:**

**قوله:** يَقُولُ عُمَرُ: سَأَرَاهُ وَأَنَا مُسْتَلْقٍ عَلَى فِرَاشِي،

**د سپوږمۍ ليدل بلې شپې ته پريخودل:** يعنى اوس سپوږمنى وړه ده په نظرنه راخي زه ولې محنت اوكړم صبابل صبا چه كله غټه شي نوزه به ملاست يم اومخې ته به مې راشي ددې كلام مكمل كيدونه پس بيا حضرت عمر ﷺ دَ جنګ بدرقصه بيان كړه اودَ حضورپاك دَ معجزې ظهورني بيان كړو يافلان يافلان دَ بدر دَمقتولينونه تقريبًا ۲۱ يا ۲۲ لوئي لوئي صناديد قريش رابنكلې شو اودَ بدر په شاړكوهي كښې اچولې شوې وو. دَهغوى دَ نورتذليل دَپاره حضورپاك دكوهي غاړې ته راغلو هغوى سره خبرې اوكړې.

**د جنګ بدر باره کښې د حسان بن ثابت اشعار:** حضرت حسان رضی الله عنه په خپله قصیده کښې دغه منظر پیش کړې دې یو څو اشعار اوګورئ

ففادرنا اباجهل صريعا وعتبة قد تركنا بالجبوب

یعنی مونږ ابوجهل راغورزار کړې شوې پریخودو او عتبه موږ په کانړېژنه زمکه باندې راغورزولې پریخودو

يناديهم رسول الله لما قذفناهم كباكب في القلب

یعنی کله چه مونږ دغه کافران په قلیب بدر کښې اوغورزول نو رسول الله ﷺ هغوی سره داسې خبرې اترې اوکړې

الم تجدوا كلامي كان حقا وامر الله يأخذ بالقلوب

یعنی آیا تاسو زما کلام رښتونې اوموندلو؟ حالانکه د الله تعالی حکم خو زړونو ته ورکوزیږی

فما نطقوا ولو نطقوا لقالوا صدقت وكنت ذا رائي مصيب

یعنی د قریشو کافرانو هیڅ خبره اونه کړه که چرې خبرې کولې نو په جواب کښې به ئې وئیل چه تاسو رښتیا وئیلی وو او تاسو د ټیک رائې مالك یئ

**[۵۹۳۹] د دراز عمری خبر ورکولو معجزه**

۵۹۳۹ (  )[۷۰] [۱] وَعَنْ أُنَيْسَةَ بِنْتِ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، عَنْ أَبِيهَا - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دَخَلَ عَلَى زَيْدٍ يَعُودُهُ مِنْ مَرَضٍ كَانَ بِهِ، [۳] قَالَ: (لَيْسَ عَلَيْكَ مِنْ مَرَضِكَ بَأْسٌ، [۴] وَلَكِنْ كَيْفَ لَكَ إِذَا عُمِّرْتَ بَعْدِي فَعَمِيتَ؟) . [۵] قَالَ: أَحْتَسِبُ وَأَصْبِرُ. [۶] قَالَ: (إِذًا تَدْخُلِ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ) . [۷] قَالَ: فَعَمِيَ بَعْدَمَا مَاتَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۸] ثُمَّ رَدَّ اللَّهُ عَلَيْهِ بَصَرَهُ ثُمَّ مَاتَ».

**ترجمه:** [۱] او د حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه لور بي بي انیسه رضی الله عنها د خپل پلار حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه نه روایت کوي چې نبی کریم ﷺ د زید بن ارقم عیادت پوښتنې دپاره تشریف یو وړی چې بیمار شوی وو حضور ﷺ هغه ته تسلي تشفي ورکولو سره وفرمایل د دې مرض تاته هیڅ خوف کول نه دی پکار ځکه چې ته به بالکل ښه شې لیکن هغه وخت به ستاڅه حال وي هرکله چې ته زما نه وروسته ژوندی پاتې شې اوستا بینایي لاړه شي زید بن ارقم رضی الله عنه عرض وکی زه به د ثواب ارزو مندیم او د خپل رب په حکم به صابر اوراضي یم حضور ﷺ د هغه دا جواب اوریدو سره وفرمایل بیا خو به بې حسابه او بې کتابه جنت ته ځې راوي که هغه بي بي انیسه رضی الله عنها وي یا بل څوک بیان کړی دی چې زید بن ارقم رضی الله عنه د حضور ﷺ د وفات نه وروسته ړوند شوی وو بیا ډیره زمانه وروسته الله تعالی د هغه بینایي دوباره کړله او بیا هغه وفات شو

---

[۱] ) اخرجه البیهقی فی دلائل النبوة رقم الحدیث ۶/ ۴۷۹

**حل اللغات:-** ① عُمِّرْتَ: أَيْ: طَالَ عُمْرُكَ: عمر دې زيات شي، ژوندې پاتې شې ② أَحْتَسِبُ: أَيْ: أَطْلُبُ الثَّوَابَ: د ثواب آرزومند به يم ③ وَأَصْبِرُ: أَيْ عَلِمَ حُكْمَ رَبِّ الْأَرْبَابِ: يعنې د خپل رب په حکم به صبر کوم او راضي به يم.

**تسهیلات:**

**قوله: كَيْفَ لَكَ إِذَا عُمِّرْتَ بَعْدِي فَعَمِيتَ؟..الخ:**

**د نبی علیه السلام د پیشنګوئی ظهور:** په حديث الباب کښې ذکر شوې پيشنګوئی تکې په تکې پوره شوه چه حضورپاك دَ حضرت زيد ﷺ دَ بيمارئی دَ تپوس دَ پاره لاړو نو حضرت زيد ﷺ جوړ شو او بيا دَ حضورپاك دَوفات نه پس دَ هغوی نظر ختم شو او بيا دَ څه زمانې نه پس دَ هغوی نظر واپس راغلو او بيا دَ هغوی انتقال اوشو. دا دَ حضورپاك معجزه وه

**[۵۹۴۰] نبی علیه السلام باندې دروغ جوړونکی ته دبدعا کولو معجزه**

۵۹۴۰-() [۱] ⑴ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⑵ «مَنْ تَقَوَّلَ عَلَيَّ مَا لَمْ أَقُلْ ⑶ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ». ⑷ وَذَلِكَ أَنَّهُ بَعَثَ رَجُلًا، فَكَذَبَ عَلَيْهِ، ⑸ فَدَعَا عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَوُجِدَ مَيِّتًا، ⑹ وَقَدِ انْشَقَّ بَطْنُهُ، وَلَمْ تَقْبَلْهُ الْأَرْضُ». رَوَاهَا الْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ).

**ترجمه:** ⑴ اوحضرت اسامه ابن زيد ﷺ وايي درسول کريم ﷺ ارشاد دی کوم سړی چې قصداً زما طرف ته څه داسې خبره منسوب کړي چې مانه وي کړي نو هغه ته پکار دی چې خپله ټيکانه دوزخ کښې تياره وګڼي اوودي ارشاد ګرامي پس منظر دادی چې يو ځل حضور ﷺ يو سړی څه خلقو طرف ته يايوسړی طرف ته ليږلي ؤو هغه دحضور ﷺ دطرف نه څه دروغ خبره جوړولو سره وکړله هرکله چې حضور ﷺ باندې هغه منکشف شو ياپه څه ذريعې سره حضور ﷺ ته دهغه خبرې اطلاع وشوه حضور ﷺ دهغه سړي په حق کښې بد دعا وکړله نوهغه سړي يوه ورځ داسې حال کښې مرده پيدا شو چې دهغه خيټه شليدلې وه اوهرکله چې هغه دفن کړل شو نو زمکې هغه قبول نه کړو دواړه روايتونه بيهقي دلائل النبوة کښې نقل کړي دي

**حل اللغات:-** ① تَقَوَّلَ: أَيْ: مَنْ كَذَبَ وَافْتَرَى: څوک په ما دروغ اووائی. څه خبره راباندې اوتړی يعنې دڅه خبرې نسبت راته اوکړی ② مَقْعَدَهُ: دکيناستو يعنې د اوسيدو ځائې

**تسهیلات: قوله:** وَلَمْ تَقْبَلْهُ الْأَرْضُ

**د زمکې نه قبلولو د واقعه په تعدد کښې دوه اقوال:** حديث الباب په آخر کښې دی چه دَهغه نعش زمکې هم قبول نه کړو دغه شان يو بل حديث مخکښې هم تيرشوې دې چه يو سړې

---
[۱] ) اخرجه البيهقي في دلائل النبوة رقم الحديث ۶/ ۲۴۵

دَ حضورپاك دَ بددعا دَ وجې نه زمكې نه وو قبول كړې د بعضو پَ نيز دا دواړه يوه واقعه ده ② د بعضو په نيزدا جدا جدا واقعات دى اوراجح هم دا قول دې چې دا جدا جدا واقعات دى.

## [٥٩٤١] د په طعام كښې د بركت معجزه

٥٩٤١-(١) [٤٧] ١ وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- جَاءَهُ رَجُلٌ يَسْتَطْعِمُهُ، ٢ فَأَطْعَمَهُ شَطْرَ وَسْقِ شَعِيرٍ ٣ فَمَا زَالَ الرَّجُلُ يَأْكُلُ مِنْهُ وَامْرَأَتُهُ وَضَيْفُهُمَا ٤ حَتَّى كَالَهُ فَفَنِيَ فَأَتَى النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ٥ فَقَالَ: (لَوْ لَمْ تَكِلْهُ لَأَكَلْتُمْ مِنْهُ وَلَقَامَ لَكُمْ)». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ اوحضرت جابر ﷺ نه روايت دى يوه ورځ درسول كريم ﷺ په خدمت كښې يوسړى حاضر شو اوطعام يې وغوښتى حضور ﷺ هغه ته نيم وسق اوربشې عطاء كړلې هغه وربشې آخستوسره كوركې كښيخو دلې اوبيا ، نه صرف خپله هغه سړي بلكې دهغه ښځې اوهغوى ته تلونكو راتلونكو ميلمنو به هم دهغه وربشوځخه اخستلو سره خوړلې ليكن هغه وربشې نه ختميدى ددې پورې چې يوه ورځ هغه سړى باقيمانده وربشې تول كړلې دهغه اثر داشو چې بياهغه ډير ژرختمې شوي دي نه وروسته هغه سړى دنبي كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو اوصورت حال يې عرض كړو حضور ﷺ ورته وفرمايل كه تاهغه وربشې نه وې تللې نو تاسو خلقو بههميشه دهغه وربشو نه اخستلو سره خوړلې اوزما دبركت په سبب هغه به هم هغه شان تا سره باقي پاتې وى. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① شَطْرَ: أَيْ: نِصْفَ: نيمه حصه. ② وَسْقٍ: هُوَ سِتُّونَ صَاعًا: شپيته صاع. ③ كَالَهُ: أَيْ: بَقِيَّةَ الْمَأْكُولِ: يعنى باقى وربشې ئې اوتللې. ④ فَفَنِيَ: أَيْ نَفِدَ سَرِيعًا: ډير زر ختمې شوې.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَوْ لَمْ تَكِلْهُ لَأَكَلْتُمْ مِنْهُ وَلَقَامَ لَكُمْ،

**بلا ضرورته يو څيز ناپ تول كولو سره بې بركتى راتلل:** په حديث الباب كښې دى چه دا هم دَ نبى كريم ﷺ معجزه ده چه دَ حضورپاك په بركت په لړه شان غله كښې الله تعالى بركت واچولو چونكه دا سې څيزونه ناپ كول دَتوكل خلاف دى په دې وجه دَ ناپ كولو په صورت كښې دَ داسې څيزونو نه بركت ختميږى

## [٥٩٤٢] په مشتبه خوراك د خبريدو معجزه

٥٩٤٢-(٢) [٤٨] ١ وَعَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، قَالَ: ٢ «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي جَنَازَةٍ، فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ٣ وَهُوَ عَلَى الْقَبْرِ يُوصِي الْحَافِرَ يَقُولُ: ٤

---

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الفضائل/باب فى معجزات النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-٩ - (٢٢٨١) واحمد فى المسند: ٣/٣٣٧
[2] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب البيوع/باب فى اجتناب الشبهات (رقم-٣٣٣٢)

(أَوْسِعْ مِنْ قِبَلِ رِجْلَيْهِ، أَوْسِعْ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ) ۵ فَلَمَّا رَجَعَ اسْتَقْبَلَهُ دَاعِيَ امْرَأَتِهِ، ٦ فَأَجَابَ وَنَحْنُ مَعَهُ، فَجِيءَ بِالطَّعَامِ،

**ترجمه:** ۱ اوحضرت عاصم ابن كليب تابعي دخپل پلار نه اوهغه ديوانصاري صحابي ﷺ نه روايت كوي هغه بيان كوي يوه ورځ مونږ رسول كريم ﷺ سره ديوي جنازي مونځ اودفن كولو كښې شركت دپاره لاړو قبرستان ته رسيدو سره مارسول كريم ﷺ اوليدلو چې حضور ﷺ دقبر په غاړه كيناستلو اوګوركن ته فرمايي چې پښو طرف ته قبر كشاده كړه اوسرجانب ته يې نوركشاده كړه بياچي حضور ﷺ تدفين نه فارغيدو سره واپس تلي نومخې ته ورته يوسړى راغى حضور ﷺ ته يې دمړي دښځي دطرف نه دطعام دعوت وركړى چې حضور ﷺ قبول كړو حضور ﷺ هغه كورته تشريف يو وړى اومونږ هم ورسره شو ځكه چې ياخو هغه ښځي جماعت سره حضور ﷺ طعام دپاره بللي ؤو ياداچې مونږ خلق دحضور ﷺ طفيل كښې ورسره شو هركله چې طعام راوړل شو

**حل اللغات:** - ① الْحَافِرَ: غاړه، ② أَوْسِعْ: فراخه كړه، كهلاؤ كړه.

۱ فَوَضَعَ يَدَهُ، ثُمَّ وَضَعَ الْقَوْمُ، فَأَكَلُوا، ۲ فَنَظَرْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَلُوكُ لُقْمَةً فِي فِيهِ، ۳ ثُمَّ قَالَ: (أَجِدُ لَحْمَ شَاةٍ أُخِذَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ أَهْلِهَا). ۴ فَأَرْسَلَتِ الْمَرْأَةُ تَقُولُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ: إِنِّي أَرْسَلْتُ إِلَى النَّقِيعِ -۵ وَهُوَ مَوْضِعٌ يُبَاعُ فِيهِ الْغَنَمُ -٦ لِيُشْتَرَى لِي شَاةٌ، فَلَمْ تُوجَدْ، ۷ فَأَرْسَلْتُ إِلَى جَارٍ لِي قَدِ اشْتَرَى شَاةً أَنْ يُرْسِلَ بِهَا إِلَيَّ بِثَمَنِهَا، فَلَمْ يُوجَدْ، ۸ فَأَرْسَلْتُ إِلَى امْرَأَتِهِ، فَأَرْسَلَتْ إِلَيَّ بِهَا.

**ترجمه:** ۱ نوحضور ﷺ طعام طرف ته لاس ورمخكې كړو اوطعام خوړل يې شروع كړل ليكن بيا طعام خوړلو كښې مونږ رسول الله ﷺ اوليدلو چې حضور ﷺ كومه اولنى نمړئ خوله مباركه كښې اچولي وه هغه يې ميده كوله يعني خپله خوله مباركه كښې اخوا ديخوا تاوولـه اوس مونږ حيرت سره داكتل چې حضور ﷺ وفرمايل زه داغوښه ديوي داسې بزي (چيلي) محسوسوم چې دهغه دمالک داجازي اورضا نه بغير اخستل شوي ده هغه ښځي ته دحضور ﷺ ددي خبري علم وشو نوهغه سړى ليږلو سره صورت حال عرض كړو چې يارسول الله مادبزي (چيلي) دپاره يوسړى نقيع ته ليږلي ؤو نقيع ديوځاي نوم دى چيرته چې دبزو خريد وفروخت كيږي ليكن هلته بزه (چيلي) دستياب نه شوه نوماخپل ګاونډى ته سړي وليږلو چې هغه يوه بزه (چيلي) وركړي او ورته مي اوويل چې هغه په كوم قيمت بزه (چيلي) آخستي ده په هغه قيمت دي هغه بزه (چيلي) په ماخرڅه كړي ليكن هغه ګاونډى هم خپل كور كښې نه ووبيامادهغه ګاونډي ښځي ته سړى وليږى اوهغي دغه بزه (چيلي) ماته راوليږله

**حل اللغات:** - ③ يَلُوكُ: إِدَارَةُ الشَّيْءِ فِي الْفَمِ: خوله كښې يوڅيز اړولو راړولو ته لوک وائي يعني نبي عليه السلام په خوله مباركه كښې نمړئ تاؤوله راتاؤوله ④ النَّقِيعِ: وَهُوَ مَوْضِعٌ يُبَاعُ فِيهِ الْغَنَمُ: نقيع ديوځاي نوم دى چيرته چې د چيلو بزو اخستل خرڅول كيږى.

① فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "② أَطْعِمِي هَذَا الطَّعَامَ الْأَسْرَى». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.

**ترجمه:** ① داتفصيل اوريدو سره رسول كريم ﷺ وفرمايل داطعام قيديانو باندې وخوره. دا روايت ابوداؤد اودلائل النبوة كښې بيهقي نقل كړى دى.

**حل اللغات:** -⑤ الأَسْرَى: د أسير جمع ده، قيديان.

**تسهيلات:**

**قوله: أَجِدُ لَحْمَ شَاةٍ أُخِذَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ أَهْلِهَا،**

**دچليې د حرمت خبر وركولو معجزه:** يعني دمړي والاد كورنه دهغه د بي بي قاصد دخوراك ددعوت وركولودپاره راغلو. حضورپاك هم لاړو اويوڅوصحابه كرام هم لاړل. حضورپاك په خله مباركه كښې نوړئي اچولوسره شخوند وهل شروع كړه خونوړئي تيره نه كړه اوونې فرمائيل چه داغوښه د داسې چيلئى ده چه دمالك د اجازت نه بغيرحاصله كړې شوې ده دكور د بي بي نه معلومه كړې شوه نوهغې دعدم اجازت اعتراف كولوسره وجه هم اوخودله. دغه شان دحضورپاك د معجزې ظهوراوشو.

**د مړى دكور خوراك كولو حكم:** په ((امرأته)) كښې كوم ضميرراګرځي دادمړي طرف ته راګرځي يعني دمړي والابنځي هم په هغه ورځ په كومه ورځ چه دهغه انتقال شوې وو دخوراك اهتمام كړې وو. ملاعلي قاري رحمه الله ليكي چه دمړي دخوراك كولو په سلسله كښې د فقهاء كرام چه كوم اقوال دي هغه ددې حديث خلاف دي اوداحديث په ظاهره دهغه اقوالوخلاف دې.

**د مړى د كور څخه د خوراک كولوپه كراهت كښې اقوال:** ① خلاصة الفتاوى كښې په دريمه ورځ دخوراك اهتمام كول اوخلق خوراك ته راغوښتل مباح نه دى.

② بزازيه كښې ليكلي دي چه دمړي د وارثانود طرف نه په ړومبې ورځ يا دريمه ورځ اويا په اوومه ورځ خوراك كول مكروه دي.

③ ابن همام رحمه الله هم ليكلي دي چه داهل بيت ميلمستيا كول مكروه دي. ابن همام رحمه الله داهم ليكلي دي چه دا ضيافت بدعت سيئه دې.

④ زيلعي رحمه الله ونيلي دي چه دريوورځوپورې دغم كولودپاره په كيناستوكښې څه مضائقه نشته دې په دې شرط چه دممنوع څيزونوارتكاب نه وي. لكه قالين خوروُل ميلمستيا كول. ⑤ د حضرت جرير بن عبدالله په روايت كښې صفاذكردي چه دمړي ضيافت مونږ لكه نوحه په شان حرام ګنړله.

**د حديث د مخالفت څخه جواب:** دغه ښځه دمړي والابي بي نه وه بلكه د جنازې نه په

واپسنی باندې دَ یوې بلې ښځې قاصد راغلو دَمړي والا دَ ښځې نه وو. چنانچه ابوداؤد ج۲ص۱۱۷ باندې دَداعی امرأة لفظ دې چه دَ یوې ښځې قاصدوو. لهذا دَ مشکوة په دې روایت کښې دَ یوکاتب نه سهوشوې ده

**د مړی د کور څخه دخوراک کولو دوه صورتونه:** زمونږ په علاقه پېښور چارسده وغیره کښې د مړی په کور کښې د جنازې اوفاتحې راغلو میلمنو دپاره د روټۍ انتظام کولې شی اوس ددې دوه صورتونه دی

① د مړی کور والا پخپله د راغلو میلمنو دپاره د روټۍ انتظام اوکړی نودا مکروه دی

② په بعضې خاندانونو کښې اوپه ګاونډیانو کښې دا طریقه وی دغه شان په بعضې علاقو کښې کمیټیانې جوړې شوې وی چې هغوی هره میاشت څه چنده راغونډوی اوچې کله غم پیښ شی نو د هغې د فنډ څخه خرچ کوی نوکه په دې درې واړو طریقو سره یا په بله طریقه سره د مړی جنازې دپاره راتلونکو میلمنودپاره د خوراک انتظام اوکړې شی نو په دې کښې څخه قباحت نشته بلکه دا عمل به ښه وی ځکه چې په دې کښې د یوبل سره د مینې محبت او همدردۍ اظهار دې

**د دریمې رسم:** زمونږ په علاقو کښې په موجوده وخت کښې د دریمې رسم ترقی کړې ده اوباقاعده خلقو ته د دریمې ورځې د روټۍ دعوت ورکولې شی دا ټیک نه ده البته که څوک په خپله په دریمه ورځ د روټۍ په وخت کښې راشی اود هغوی د روټۍ انتظام ګاونډیانو یا خپلو خپلوانو کړی وی نوپه دې کښې څخه قباحت نشته

**قوله:** الْأَسْرَى:

**د قیدیانو څخه مراد:** ددې قیدیان هغه کافران مراد ووکوم چې د مسلمانانو په قبضه کښې وو. ددې څخه دا معلومه شوه چې په دغه کافرانو قیدیانو باندې خوراک خوړل مناسب وو ځکه نبی علیه السلام د حکم ورکړو

**[۵۹۴۲] د چیلی د ہیوز یاتیدو معجزه**

۵۹۴۲-(۱) [ح-] ۱ وَعَنْ حِزَامِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ حُبَيْشِ بْنِ خَالِدٍ - وَهُوَ أَخُو أُمِّ مَعْبَدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ۲ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حِينَ أُخْرِجَ مِنْ مَكَّةَ ۳ خَرَجَ مُهَاجِرًا إِلَى الْمَدِينَةِ، هُوَ وَأَبُو بَكْرٍ، وَمَوْلَى أَبِي بَكْرٍ عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ وَدَلِيلُهُمَا عَبْدُ اللَّهِ اللَّيْثِيُّ، ۴ مَرُّوا عَلَى خَيْمَتَيْ أُمِّ مَعْبَدٍ، ۵ فَسَأَلُوهَا لَحْمًا وَتَمْرًا لِيَشْتَرُوا مِنْهَا، ۶ فَلَمْ يُصِيبُوا عِنْدَهَا شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ، ۷ كَانَ الْقَوْمُ مُرْمِلِينَ مُسْنِتِينَ،

**ترجمه:** ۱ اوحضرت حزام ابن هشام دخپل پلار حضرت هشام نه اوهغه دحزام دنیکه دادا یعنی خپل پلار حبیش ﷺ نه چې دام معبد ﷺ ورور دی روایت کوي چې رسول کریم ﷺ

---

[۱] اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحدیث ۳۷۰۴

ته دمکي دپریښودو حکم وشو اوهجرت دپاره مديني ته روان شو نودحضور ﷺ سره حضرت ابوبکر ﷺ اودحضرت ابوبکر ﷺ ازاد کرده غلام عامر ابن فهیره ﷺ اودي دواړو یعني حضور ﷺ اوابوبکر ﷺ ته لاربنوونکي عبدالله لیثي ددي ځلورو تیریدل دمديني په لار کښي یوځاي دام معبد په دوو خیمو وشول چي هغه صحرا کښي قیام پذیروه دي حضراتو دااهل خیمه نه څه غوښه اوخورما رانیول وغوښتل لیکن دواړوحضراتو ته دام معبد سره هیڅ شی په لاس نه ورغلي ځکه چي په هغه زمانه کښي عام طور سره خلق دقحط زدګي اوبی سرو ساماني ښکار ؤو

**حل اللغات:-** ① دَلِيلُهُمَا: أَيْ: مُرْشِدٌ: لار ښودونکي ② خَيْمَتَيْ: دخيمة تثنيه ده يعني دوه خيمي ③ مُرْمِلِينَ: أَيْ: فَاقِدِينَ الزَّادَ: دَ چادَ لاري خوراکه چه ختمه وی هغه مرمل وی (يعني دوی سره هم د خوراک هیڅ نه وو) ④ مُسْنِتِينَ: أَيْ أَصَابَهُمُ الْقَحْطُ: يعني په اوچ کالئ کښي اخته شوی قحط وهلی وو

> ① فَنَظَرَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى شَاةٍ فِي كِسْرِ الْخَيْمَةِ، ② فَقَالَ: (مَا هَذِهِ الشَّاةُ يَا أُمَّ مَعْبَدٍ؟) ③ قَالَتْ: شَاةٌ خَلَّفَهَا الْجَهْدُ عَنِ الْغَنَمِ. ④ قَالَ: (هَلْ بِهَا مِنْ لَبَنٍ؟) ⑤ قَالَتْ: هِيَ أَجْهَدُ مِنْ ذَلِكَ. ⑥ قَالَ: (أَتَأْذَنِينَ لِي أَنْ أَحْلِبَهَا؟) ⑦ قَالَتْ: بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي إِنْ رَأَيْتَ بِهَا حَلْبًا فَاحْلِبْهَا. ⑧ فَدَعَا بِهَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَمَسَحَ بِيَدِهِ ضَرْعَهَا. ⑧ وَسَمَّى اللَّهَ تَعَالَى، وَدَعَا لَهَا فِي شَاتِهَا، فَتَفَاجَّتْ عَلَيْهِ ⑨ وَدَرَّتْ وَاجْتَرَّتْ،

**ترجمه:** ① دي کښي اچانك درسول کريم ﷺ نظرپر یوي بزي (چیلئ) ولګیدي چي دخیمي یوجانب ته تړلی ولاړه وه حضور ﷺ بزي (چیلئ) لیدو سره پوښتنه وکړه جي ام معبد یدي بزي (چیلئ) څه شوي دي ام معبد ﷺ جواب ورکړو ددي کمزوري دا درمي نه جدا کړي ده يعني دومره کمزوري ده چي څريدو دپاره نورو بزو سره ورشو (چراګاه) ته تلو باندي قادره نه ده حضور ﷺ پوښتنه آیا دا اولشوم ام معبد ﷺ اوویل کوم مصیبت کښي چي دا مبتلاده په هغه کښي پئي دکوم ځایه دي مطلب داچي یوه ذره دسیدو ورکولو صلاحیت هم په دي کښي موجودنه دي حضور ﷺ ورته وفرمایل ایاته ماته اجازت راکوي چي زه ددي پئي ولوشم ام معبد ﷺ اوویل زما مور وپلاردي په تا سو ﷺ قربان وي که تاسو ﷺ ته په دي کښي پئي معلوميږي نوضرور وي لوشي يعني هرکله چي دي کښي دسره پئي نشته نو تاسو به څه ولوشي رسول کريم ﷺ دااوریدو سره بزه (چیلئ) راوغوښتله بیاحضور ﷺ دهغه په غلانزه خپل لاس مبارك راکښ کی بسم الله يي وويله او ام معبد ﷺ دپاره دهغه بزي (چیلئ) په حق کښي دبرکت دعا وکړله نوبزي (چیلئ) پئي ورکولو دپاره خپلي پښي دحضور ﷺ مخکي کشاده خلاصي کړلي څرنګه چي د شودو (پیو) ورکونکو څاروي عادت وي چي دلوشلو په وخت خپلي دواړه پښي کشاده کوي بیاهغه بزي (چیلئ) پئي بهیول اوشخوند وهل شروع کړل

**حل اللغات:** -⑤ كِسْرِ الْخَيْمَةِ: أَيْ جَانِبِهَا: دخيمې يو طرف، اړخ ⑥ خَلَّفَهَا: أَيْ تَرَكَهَا: وروستو ئې پرېښودې ده (يعنې د تلو نه روستو پاتې شوې ده) ⑦ الْجَهْدُ: أَيِ الْهُزَالُ: كمزوري، ډنګر ⑧ فَتَفَاجَتْ: أَيْ فَتَحَتْ مَا بَيْنَ رِجْلَيْهَا لِلْحَلَبِ: دَ پېنوور كولودپاره ئې دواړه خپې كولاؤكړې ⑨ دَرَّتْ: أَيْ أَرْسَلَتِ الدَّرَّ: ډيرو پېنو راپرېښودو ته وائي ⑩ اجْتَرَّتْ: شخوند وهل ئې شروع كړو (اوښ چه دخيټې نه واښه راوباسي اوپه هغې شخوند وهي اوبيا ئې تيروي هغې ته جرة وائي)

> ① فَدَعَا بِإِنَاءٍ يُرْبِضُ الرَّهْطَ، فَحَلَبَ فِيهِ ثَجًّا ② حَتَّى عَلَاهَا الْبَهَاءُ ثُمَّ سَقَاهَا حَتَّى رَوِيَتْ، ③ وَسَقَى أَصْحَابَهُ حَتَّى رَوُوا ④ ثُمَّ شَرِبَ آخِرَهُمْ ⑤ ثُمَّ حَلَبَ فِيهِ ثَانِيًا بَعْدَ بَدْءٍ، حَتَّى مَلَأَ الْإِنَاءَ ⑥ ثُمَّ غَادَرَهُ عِنْدَهَا، وَبَايَعَهَا، ⑦ وَارْتَحَلُوا عَنْهَا». ⑧ رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ) وَابْنُ عَبْدِ الْبَرِّ فِي (الِاسْتِيعَابِ) وَابْنُ الْجَوْزِيِّ فِي كِتَابِ (الْوَفَاءِ) وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ.

**ترجمه:** ① حضور ﷺ يودومره لوى لوښى وغوښتى چې ديوجماعت خيټه به مړه كړي (وهغه لوښى كښې ښه بهيدونكي پئې او ولوشلى ددې پورې چې د شودو پيو ځګ دلوښي په سر راغلي دي نه وروسته حضور ﷺ پئې مخكې ام معبد ﷺ باندې وڅخو دلې چې هغې ښه ډيرې وڅكلې بيايې په هغه ملګرو باندې وڅخو دلې هغوى هم په ښه شان ماړه شول اوبيادټولو نه وروسته حضور ﷺ په خپله وڅكلې څكه چې دحضور ﷺ ارشاد دى په خلقو څكونكي دټولوځخه وروسته څكي بيا په اولنى ځل دلوشلو نه وروسته لږ وخت وروسته حضور ﷺ دوباره هغه لوښي كښې بزه (چيلئ) ولوشله چې هغه لوښي دسيدو نه ډک شو اوهغه پئې حضور ﷺ ام معبد ﷺ سره پرېښودلې چې خپل خاوند ته هم دامعجزه وښايې بيا حضور ﷺ ام معبد مسلمانه كړه اودهغې نه روان شو دا روايت بغوي شرح السنه كښې ابن عبدالبر استيعاب كښې اوابن جوزي كتاب الوفاء كښې نقل كړى دى اوحديث كښې دواقعې نورهم تفصيل شته

**حل اللغات:** -① يُرْبِضُ: أَيْ يَرْوِيهِمْ وَيُثْقِلُهُمْ: چه ددوى خيټه مړه او درنې ئې كړى او د دروندوالى په وجه وله خوب ورغي ② الرَّهْطَ: ډله. جماعت (د دريو نه تر لسو كسانو پورې جماعت ته رهط وائي) ③ ثَجًّا: أَيْ حَلَبًا ذَا سَيَلَانٍ: په زورداره اوپه زيات مقدار سره د پېنو راويستلو ته وائي ④ عَلَاهَا: أَيْ ظَهَرَ عَلَى الْإِنَاءِ: د لوښى يا د پنيو دپاسه. ⑤ الْبَهَاءُ: أَيِ الزَّبَدُ يَعْلُو الشَّيْءَ عِنْدَ غَلَيَانِهِ: دځه ځيز د جوشيدلو او خوټكيدلو په وخت چه كوم ځګ راخى هغې ته بهاء وائي. دلته دَ پېنوويستلو په وخت چه په پېنوباندې ځګ راخى هغه مراد دى ⑥ رَوِيَتْ: دَ خروب كيدلوپه معنى كښې دي ⑦ غَادَرَهُ: أَيْ تَرَكَهُ: دَ پريخودلوپه معنى كښې دي

**تسهيلات: قوله: أُمِّ مَعْبَدٍ:**

**ه ام معبد تعارف:** دَيوې ښځې كنيت دې چاسره چه حضورپاك دَ هجرت په سفركښې دَ غارثورنه پس كوزشوې وو اودَ هغې په چيلئ كښې دَمعجزې ظهوراوشو.

**قوله: غَادَرَهُ:**

**ام معبد کښې د پیغ پریخودل:** دَ برکت دَپاره نی معجزاتی پیئی دوباره راویستلوسره هغوی کره پریخودل ام معبد مسلمانه شوه خاوندچه کله کورته راغلو پیئی اولیدل نوتپوس نی او کړوداځه دی؟ام معبد قصه واؤروله نوهغه اوونیل په الله قسم دا په مکه کښې راښکاره کیدونکې نبی وو ماارادہ کړې وه چه دَ ده ملګرتیااوکړم مګر هغه وخت اونه شوه اوس که مې هغه اولیدلونو ایمان به راوړم. بل طرف دَاهل مکه په وړاندې یوغیبی آواز په زوره زوره اشعار اولوستل چه اهل مکه واؤریدل

# [۸]بَابُ الْكَرَامَاتِ

## دَکراماتوبیان

**خلاصة الباب:**

**فيه اثنا عشرحديثاً مشتملة على نحو تسعة من الكرامات:**

① ضوء العصا: ١.

② الإخبار الصادق عن المستقبل: ٢.

③ تكثير الطعام: ٣.

④ وجود النور على قبر النجاشي: ٤، ٧، ١٢.

⑤ سماع الصوت من جانب الغيب : ٥، ٨.

⑥ صيرورة الأسد محافظاً لسفينة رضي الله عنه: ٦.

⑦ كثرة الفواكه وريح المسك بسبب دعاء النبي صلى الله عليه وسلم: ٩.

⑧ إجابة دعاء سعيد بن زيد على امرأة: ١٠.

⑨ بلوغ صوت النبي ﷺ إلى بعيد: ١١.

**د کرامت لغوی معنی:** کرامات جمع ده دَدې مفرد کرامة دې کوم چه دَ اکرام اوتکریم په معنی کښې دې په لغت کښې کرامت عزت عظمت اودَ توقیرپه معنی کښې دې

**د کرامت اصطلاحی تعریف:** په اصطلاح کښې کرامت دَهغه خرق عادت دَکارنوم دې چه دَ یونیکوکار پرهیزګار مؤمن په لاس باندې ښکاره شی لیکن هغه دَ نبوت دعویدارنه وی بلکه دَ سنت تابعداروی.

**د قرآن څخه د اولیاء د کراماتو ثبوت:** دَاهل سنت والجماعة په دې باندې اتفاق دې چه دَاولیاء الله کرامت حق دې البته معتزله دَ کرامت دَ ظهورنه انکار کوی په قرآن عظیم کښې الله تعالی دَغیرانبیاء دکرامتونو ذکر کړې دې

① دَ آصف بن برخیا کرامت چې د بلقیس تخت ئې په سترګه رپ کښې د حضرت سلیمان علیه السلام په خدمت کښې پیش کړې وو.
② که حضرت خضر علیه السلام نبي اونه ګڼړلې شي نو د هغوی کرامات کوم چې په قرآن کښې ذکر دی. دا خبره دې واضحه وی چه حضرت خضر دَ یوخفیه نظام نبي وو دهغوی په لاس بعضې کارونه الله تعالی څرګند کړی وو.
③ دَ اصحاب کهف کرامت چې درې سوه کاله پس دوباره راژوندی شوی وو
④ دَخاوند او چا سړی سره د جنسي تعلق ساتلوڅخه بغیرد بي بي مریم څخه د حضرت عیسی علیه السلام پیدا کیدل

**کرامت د ولی په اختیار کښې نه وی:** کرامت دَ یوولي په اختیار کښې نه وی کله کله خوصاحب دَ ولایت ته دَ خپل کرامت پته هم نه وی. البته بعضې دا ممکن ده چې بعضې وخت یوکرامت دَ یوولي په اختیار کښې وی مګر په عام توګه باندې داسې نه وی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۵۹۴۴] د همسا څخه د رڼا کیدو کرامت

۵۹۴۴-()[۱] ۱ عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ۲ أَنَّ أُسَيْدَ بْنَ حُضَيْرٍ وَعَبَّادَ بْنَ بِشْرٍ تَحَدَّثَا عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي حَاجَةٍ لَهُمَا، ۳ حَتَّى ذَهَبَ مِنَ اللَّيْلِ سَاعَةٌ، ۴ فِي لَيْلَةٍ شَدِيدَةِ الظُّلْمَةِ، ۵ ثُمَّ خَرَجَا مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَنْقَلِبَانِ، ۶ وَبِيَدِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عُصَيَّةٌ، ۷ فَأَضَاءَتْ عَصَا أَحَدِهِمَا لَهُمَا حَتَّى مَشَيَا فِي ضَوْئِهَا،

**ترجمه:** ۱ حضرت انس رضی الله عنه بیان کوي یوه ورځ دوه جلیل القدر صحابان حضرت اُسید ابن حُضیر رضی الله عنه او حضرت عبّاد ابن بشر رضی الله عنه دنبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې ناست ؤ خپلې اهمې معاملې کې خبرې یې کولو او هغه خبرې دومره اُوږدی شوی چې دهغه سلسله ډیر ساعت یعنی د شپې تر ډیرې حصې پورې جاری وه او هغه شپه هم ډیره تیاره (تاریکه) وه کله چې دا دواړه حضرات خپلو کورونو ته دواپس تلو دپاره دنبي کریم صلی الله علیه وسلم نه پاڅیدو سره د باندې ووتل نو هغه وخت دهغو دواړو سره دهر یوه په لاس کې همسا وه هغوی دواړو نه دیوه په لاس کې همسا روښانه شوه او دهغې په رڼاکې هغوی تلل

**حل اللغات:**- ① عُصَيَّةٌ: دا د عَصَاة تصغیر دې. امسا او کونې نه واې ② ضَوْئِهَا: رڼا د امسا.

۱ حَتَّى إِذَا افْتَرَقَتْ بِهِمَا الطَّرِيقُ أَضَاءَتْ لِلْآخَرِ عَصَاهُ، ۲ فَمَشَى كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي ضَوْءِ عَصَاهُ حَتَّى بَلَغَ أَهْلَهُ، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب منقبة أسید بن حضیر. وعباد بن بشر رضی الله عنهما (رقم-۳۸۰۵) واحمد فی المسند: ۱۳۷/۳

**ترجمه:**[۱] ددي پورې چې د دواړو لاري جدا شوی یعنی هغوی ځاي ته ورسیدل چیرته چې دهریو کور طرف ته جدا جدا لار تللي وه نو د هغه دویم همسا هم روښانه شوه بیا هغوی دواړه دخپلي خپلي لکړي په رڼا کې تلو سره خپل اهل وعیال یعنی خپلو کورونو ته اورسیدل (بخاری رحمه الله)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَأَضَاءَتْ عَصَا أَحَدِهِمَا لَهُمَا حَتَّى مَشَيَا فِي ضَوْئِهَا،

**د همسا څخه د رڼا ښکاره کیدل:** یعنی دَ حضورپاك دَمجلس نه واپس کورته راغله هغه وخت دَ یوې همسا نه دَ رڼا کار روان وو نو په دویمه کښې رڼا نه وه دادې خبرې طرف ته اشاره ده چه اسراف جائز نه دې لیکن چه کله جدا شو نوبل ته دَ رڼا ضرورت شو نودَهغه په همسا کښې هم رڼا راغله اوکرامت ښکاره شو. کرامت دَ یو ولی دَ ولایت اوعظمت دلیل وی دَ خداینی نه.

### [۵۹۴۵]د خپل شهید کیدو خبر ورکولو کرامت

۵۹۳۵ -() [۲][۱]وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: لَمَّا حَضَرَ أُحُدٌ دَعَانِي أَبِي مِنَ اللَّيْلِ،[۲] فَقَالَ: مَا أُرَانِي إِلَّا مَقْتُولًا فِي أَوَّلِ مَنْ يُقْتَلُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۳] وَإِنِّي لَا أَتْرُكُ بَعْدِي أَعَزَّ عَلَيَّ مِنْكَ غَيْرَ نَفْسِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۴] وَإِنَّ عَلَيَّ دَيْنًا فَاقْضِ،[۵] وَاسْتَوْصِ بِأَخَوَاتِكَ خَيْرًا.[۶] فَأَصْبَحْنَا فَكَانَ أَوَّلَ قَتِيلٍ،[۷] وَدَفَنْتُهُ مَعَ آخَرَ فِي قَبْرٍ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وایی ، کوم وخت چی جنګ احد پیښ شو ، نودشپی زه خپل پلار را وغوښتم او هغه راته اوویل ، زما خیال دی ، چی په دی جنګ کی دنبی کریم ﷺ کوم صحابه وژل کیږي په هغوی کی دټولو نه اول وژل شوی سړی به زه یم ، او په دی کی شك نشته چی زه په ځان پسی هیڅ داسی سړی نه پریږدم چی ماته درتا زیات عزیز وی . سوا درسول کریم ﷺ دذات ګرامی نه (یعنی یو دحضور ﷺ ذات ګرامی داسی دی چی ماته دټولو خلقو نه زیات عزیزدی ، بلکه دخپل ځان نه هم را ته زیات عزیز او محبوب دی) باقی زما پسمانده ګانو کی ته یو داسی سړی یی ، چی ما ته زیات عزیز یی ، نو ددې خصوصی تعلق په بناء تاته ونیل غواړم . چی ځما په ذمه ډیره قرضه ده ، هغه زر تر ژره اداء کړه ، او دخپلو خوندو په حق کی (چی نه ۹ دی) ځما دا وصیت واوره چی دهغوی سره ښه سلوك کوه (حضرت جابر رضی الله عنه وایی) دهغه شپی نه وروسته چی سهار شو ، او دجنګ میدان ګرم شو ، نوځما پلار شهید کیدونکو کی اول سړی وو ، او ما هغه دیو بل سړی سره په قبر کی یوځاي دفن کی ، (بخاری)

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الجنائز/باب باب: هل یخرج المیت من القبر واللحد لعلة (رقم-۱۳۵۱)

**حل اللغات:-** ① أَعَزَّ: زيات عزت والا ② فَاقْضِ: أَيْ سَرِيعًا: يعنى ادا ئې کړه زر ترزره. ③ اسْتَوْصِ: أَيْ اقْبَلْ وَصِيَّتِي: زما وصيت واوْره، اوئې منه.

**تسهيلات:**

**قوله: أَوَّلِ مَنْ يُقْتَلُ:**

**د عبدالله رضى الله عنه په څوله د كرامت ظهور:** يعنى دَ شپې په وخت دَحضرت جابر رضي الله عنه پلار حضرت عبدالله رضي الله عنه خپل ځوئى ته اووئيل چه دَ صبا مقتولينو شهداء نه به ټولو كښې ړومبې هم زه يم اوهم دغه شان اوشو. په دې جمله كښې كرامت ښكاره شو ځكه چه څه ئې وئيلى وو هم هغه اوشو.

**[٥٩٤٦] په طعام كښې بركت كرامت**

٥٩٤٦-()[٣] ①وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ②إِنَّ أَصْحَابَ الصُّفَّةِ كَانُوا أُنَاسًا فُقَرَاءَ، ③وَإِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ④(«مَنْ كَانَ عِنْدَهُ طَعَامُ اثْنَيْنِ فَلْيَذْهَبْ بِثَالِثٍ، ⑤وَمَنْ كَانَ عِنْدَهُ طَعَامُ أَرْبَعَةٍ فَلْيَذْهَبْ بِخَامِسٍ أَوْسَادِسٍ»). ⑥وَإِنَّ أَبَا بَكْرٍ جَاءَ بِثَلَاثَةٍ ⑦وَانْطَلَقَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِعَشَرَةٍ، ⑧وَإِنَّ أَبَا بَكْرٍ تَعَشَّى عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⑨ثُمَّ لَبِثَ حَتَّى صُلِّيَتِ الْعِشَاءُ،

**ترجمه:** ① او حضرت عبدالرحمٰن ابن ابى بكر رضي الله عنه وايي چې اصحاب صفه مفلس خلق وه (د هغوى دخوړ دونوش انتظام ټولو مسلمانانو دخپل خپل حيثيت او استطاعت مطابق كولي) يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه رضي الله عنهم ته وفرمايل كوم سړى سره چې دخپل اهل وعيال د دوؤ خلقو طعام وي هغه دي دريم سړى داصحاب صفه نه بوزي او كوم سړى سره چې د څلورو خلقو طعام وي هغه دي پنځم سړى د اصحاب صفه نه بوزي دي آوريدو سره حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه دري خلق بوتلل او نبي كريم لس ۱۰ كسان بو تلل او ابوبكر رضي الله عنه دنبي كريم ﷺ سره طعام وخوړلي او هلته طعام خوړلو نه وروسته هم د حضور ﷺ په خدمت كې حاضرؤ تر دي چې د ماسخوتن مونځ وشو نو هغه دما نخه نه وروسته هم خپل كورو ته نه لاړي بلكه د حضور ﷺ كور ته راغي

①ثُمَّ رَجَعَ فَلَبِثَ حَتَّى تَعَشَّى النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②فَجَاءَ بَعْدَ مَا مَضَى مِنَ اللَّيْلِ مَا شَاءَ اللّٰهُ. ③قَالَتْ لَهُ امْرَأَتُهُ: مَا حَبَسَكَ عَنْ أَضْيَافِكَ؟ ④قَالَ: أَوَمَا عَشَّيْتِيهِمْ؟ ⑤قَالَتْ: أَبَوْا حَتَّى تَجِيءَ، فَغَضِبَ وَقَالَ: ⑥وَاللّٰهِ لَا أَطْعَمُهُ أَبَدًا، ⑦فَحَلَفَتِ الْمَرْأَةُ أَنْ لَا تَطْعَمَهُ، ⑧وَحَلَفَ الْأَضْيَافُ أَنْ لَا يَطْعَمُوهُ. ⑨ قَالَ أَبُو بَكْرٍ: كَانَ هٰذَا مِنَ الشَّيْطَانِ، ⑩فَدَعَا بِالطَّعَامِ، فَأَكَلَ وَأَكَلُوا، ⑪فَجَعَلُوا لَا يَرْفَعُونَ لُقْمَةً إِلَّا رَبَتْ مِنْ أَسْفَلِهَا أَكْثَرَ مِنْهَا.

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب علامات النبوة في الإسلام (رقم ٣٥٨١) ومسلم في كتاب الأشربة/باب إكرام الضيف وفضل إيثاره (رقم ١٧٦ - (٢٠٥٧) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في فضل لا حول ولا قوة إلا بالله (رقم-٣٥٨١) وابن ماجه في كتاب الأطعمة/باب طعام الواحد يكفي الاثنين (رقم ٣٢٥٥) واحمد في المسند: ١٩٨/١

**ترجمه:** [١] او هغه وقته پورې خدمت اقدس کې حاضرۀ تر څو پورې چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم (تنها يا خپلو ميلمنو سره) طعام نۀ خوړلی دغه شان حضرت ابوبکر رضي الله عنه چې خپل کور ته اورسيدي نو دشپې څومره حصه چې الله تعالی غوښتنه تيره شوی وه او تر هغه وقته پورې نه صرف دهغه اهل وعيال بلکه دهغه ميلمنو هم کور کې ناست د هغه انتظار کوی کور کې د هغوئ داخليدو سره دهغوئ ښځي ورته اوويل څه شی تاسو دخپلو ميلمنو نه منع کړی وئ يعنی تاسو کور ته راتلو کې دومره ځنډيدل ولې وکړه هر کله چې ستاسو ميلمانه طعام خوړلو دپاره ستاسو انتظار کې ناست دي حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوويل آيا تا تر اوسه پورې ميلمنوته ډوډۍ نه ده ورکړې ښځې ورته اوويل دی ميلمنو ستاسو راتلو پورې د ډوډوي خوړلو نه انکار کړی ۀ چې طعام کې تاسو هم ورسره شريك شي حضرت ابوبکر رضي الله عنه دی آوريدو سره خپل کوروالا باندې سخت غضبناك شو څکه چې دهغوئ دا خيال راغې چې د کوروالو کوتاهي ده چې هغوئ اصرار کولو سره ميلمنو باندې طعام ولې اونه خوړلي نو هغوئ دخپلي ناراضگئ اظهار کولو دپاره اوويل قسم په الله زه دا طعام هيڅ کله نه خورم بياد هغه ښځي هم قسم وخوړلو چې هغه هم هيڅ کله دا طعام نه خوري او ميلمنو هم قسم وخوړلو چې هغوئ هم هغه طعام يا خو مطلق يا تنها نه خوري بيا څو لمحو نه وروسته حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوويل زما داسې غضبناك کيدل او قسم خوړل څه مناسب خبره نه وه بلکه دشيطان دوسوسي په سبب وه چې په هغه ماته اوس سخته پښيمانی ده او زه خپل الله ته توبه او استغفار کوم دی ويلو سره هغوئ طعام راوغوښتي او بيا ټولو خلقو يعنی خپله هغه او هغه دکوروالا او دهغه ميلمنو طعام وخوړلو د طعام خوړلو دوران کې داعجيبه خبره په نظر راغله چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه او دهغوی ميلمنو لوښي نه خولي ته نوړئ اوچتوله دهغي په ځاي به طعام نور زياتيدلو

**حل اللغات:-** ① أَوَمَا عَشَّيْتِهِمْ؟: أي مَا أَطْعَمْتِيهِمْ عَشَاءَهُمْ: آيا تا تر اوسه پورې دوی ته د ماښام روټئ نه ده ورکړې؟ ② رَبَتْ: أي: زَادَتِ اللُّقْمَةُ: يعنی د پورته نه مونږ خوړله او لاندې نه به خوراك راپيداکيدو

> [١] فَقَالَ لِامْرَأَتِهِ: يَا أُخْتَ بَنِي فِرَاسٍ مَا هَذَا!؟ [٢] قَالَتْ: وَقُرَّةِ عَيْنِي إِنَّهَا الْآنَ لَأَكْثَرُ مِنْهَا قَبْلَ ذَلِكَ بِثَلَاثِ مِرَارٍ، [٣] فَأَكَلُوا، وَبَعَثَ بِهَا إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٤] فَذُكِرَ أَنَّهُ أَكَلَ مِنْهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [٥] وَذُكِرَ حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ: كُنَّا نَسْمَعُ تَسْبِيحَ الطَّعَامِ فِي (الْمُعْجِزَاتِ).

**ترجمه:** [١] حضرت ابوبکر رضي الله عنه دا حيرت انگيزه خبره ليدو سره خپله ښځه مخاطب کولو سره ورته اوويل اې دبنوفراس خور! لږ اوگوره دا څه عجيبه معامله ده ښځي ورته اوويل دخپلو سترگو په يخوالی مې قسم زه هم حيرت سره گورم دا دطعام لوښي څومره چې مخکې ډك ۀ هغې نه سه چنده (يعنی درې چنده) اوس زيات ډك دي بهر حال ټولو په ماړه نس (خيټه) طعام وخوړلو بيا حضرت ابوبکر رضي الله عنه هغه طعام د نبي کريم صلی الله عليه

وسلم خدمت کې هم ولیږلو او بیان کیږي چې حضور ﷺ هم دهغې طعام نه وخوړلو بخاري ﷺ و مسلم ﷺ) او دحضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ نه روایت دي كُنَّا نَسْمَعُ تَسْبِيحَ الطَّعَامِ باب المعجزات کې نقل شوی دي

**حل اللغات:-**④ قُرَّةٌ: دا د قرّ نه ماخوذ دې بَرْد یعنی یخوالی ته وائی ددې نه مراد سُرور او خوشحالی ده هم په دې وجه وئیلې شی چه دَمْعَةُ السُّرُورِ بَارِدَةٌ: د خوشحالۍ اوښکې یخې وی

**تسهيلات: قوله: أَصْحَابَ الصُّفَّةِ:**

**د اصحاب صفه تعارف:** دادَ حضورپاك دَ مدرسې دَ طالبانو تعارف دې صفه دونكاچه ته وائی نن صبا په مسجد نبوی کښې یو دَمربع شکل ځائی هم دَدغې نوم صفه دې دا ځائی دَ حضورپاك دَ روضې شاته دې. دامدرسه دَمختلف اغراضو دَپاره قائم کړې شوې وه په ایمرجنسی کښې دا جهادی مدرسه وه طالبان به جهاد له وتل لکه دادَ محاذ جنګ دَپاره انتظارګاه وه. که دَ جنګ زمانه به نه وه نودې طالبانو به دَ حضورپاك نه علم زده کولو دَ خپلې خیتې دَ ساتلو دَپاره به ئی دَ ځنګل نه لرګی پرې کول او بازار کښې به ئی خرڅول دَدې طالبانو شمیر به ۸۰ اوکله ځلورسوو ته رسیدلو حضرت ابوهریره ﷺ هم په دغه ځائی کښې طالب علم وو. رسول الله ﷺ دَ محلې په خلقو باندې دَ دوی خوراك مقرر کړې وو چه په کوم کور کښې دَ څومره کسانو خوراك تیاریږی هغه دې خپل ځان سره دَ اصحاب صفه نه یو طالب علم هم بوځی اوخوراك دې پرې کوی.

**د محلې په خلقو د وظیفې مقرر کولو ثبوت:** په زیربحث قصه کښې حضرت صدیق اکبر ﷺ خپل ځان سره درې بوتلل اونبی کریم ﷺ لس کسان بوتلل دَدې نه دَ نن صبا دَطالبانو وظیفه جمع کول اودَ کورونو نه راوړلو فی الجمله ثبوت ملاویږی لکه څنګه چه په مختلفو علاقو وغیره کښې دی سره دَدې چه اصحاب صفه به کورونو ته بوتلې شو مګر په محلې والو باندې دهغوی وظیفه مقرروه بهرحال چه کوم ثبوت ملاویږی کافی دې

**د محلې په خلقو د طالبانو د روټۍ مقرر کولو یوه مناسبه طریقه:** پخواه زمانه کښې به خلقو د طالبانو ډیر قدر اواحترام کولو اوس هغه قدر اواحترام نشته نو د کورونو څخه د طالبانو دپاره د وظیفې راغونډولو کښې د علم یو قسمت توهین کیږی بعضې وخت د کور پاتې شوې او زړې ترکاریانې طالبانو ته ورکولې شی ددې وجې ما خپلو مقتدیاتو ته وئیلی دی چې په ستاسو د محلې په جمات کښې چې کوم نائب یا طالبان اوسیږی په تاسو باندې به په میاشت کښې صرف یو نوبت راځي تاسو به د دوی دپاره روټۍ راوړې الحمد لله زما مقتدیانو ما سره دا خبره منلې ده او په میاشت کښې په یو یو کور باندې صرف یونوبت او نمبر راځی اوخه په خوشحالۍ سره دا عمل روان دې تاسو هم که په خپلو محلو کښې دا طریقه شروع کړه نو ډیره به ښه وی.

**قوله:** يَا أُخْتَ بَنِي فِرَاسٍ:

**د اخت فراس څخه مراد:** حضرت ام رومان رضي الله عنها دَ حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه بي بي وه دَحضرت عائشه رضي الله عنها مور وه اودَ بني فراس قبيلې سره دَ هغې تعلق وو هم په دې نسبت حضرت ابوبکر رضي الله عنه آواز ورکړو په دې قصه کښې کرامت ښکاره شو

**[۵۹٤۷]د نجاشي د قبر څخه د رڼا ښکاره کيدو کرامت**

۵۹۴۷-()[۳][۱]عَنْ عَائِشَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲]لَمَّا مَاتَ النَّجَاشِيُّ كُنَّا نَتَحَدَّثُ أَنَّهُ لَا يَزَالُ يُرَى عَلَى قَبْرِهِ نُورٌ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[۱] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي دنجاشي د وفات نه وروسته زمونږ په منځ کې د دې خبرې چرچاوه چې د نجاشي په قبر هميشه نُور ښکاريږي (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَّهُ لَا يَزَالُ يُرَى عَلَى قَبْرِهِ نُورٌ

**د نجاشي د قبر څخه د نور شعلې اوچتيدل:** نجاشي دَحبشه بادشاه وو مسلمان شوې وو دَصحابه کرامو خدمت ئې کړې وو. په وفات باندې حضورپاك جنازه اوکړه فرښتو جنازه مخې ته راوړه کيخوده يا حجابات اوچت کړې شو. دَهغوی دَمرګ نه پس دَهغوی دَقبر نه دَ نور شعلې اوچتيدلې. دَمديني منورې خلقو په تګ راتګ کښې دا نور اوليدلو هم داحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها بيانوی. په دې کښې کرامت ښکاره شو

**[۵۹٤۸]د نبي عليه السلام غاسلينو ته د غيب څخه آواز اوريدو هدايت**

۵۹۴۸-()[د][۱]وَعَنْهَا، قَالَتْ: «لَمَّا أَرَادُوا غُسْلَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲]قَالُوا: لَا نَدْرِي أَنُجَرِّدُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مِنْ ثِيَابِهِ كَمَا نُجَرِّدُ مَوْتَانَا أَمْ نُغَسِّلُهُ وَعَلَيْهِ ثِيَابُهُ؛ [۳]فَلَمَّا اخْتَلَفُوا أَلْقَى اللهُ عَلَيْهِمُ النَّوْمَ، [۴]حَتَّى مَا مِنْهُمْ رَجُلٌ إِلَّا وَذَقْنُهُ فِي صَدْرِهِ، [۵]ثُمَّ كَلَّمَهُمْ مُكَلِّمٌ مِنْ نَاحِيَةِ الْبَيْتِ، لَا يَدْرُونَ مَنْ هُوَ؟:

**ترجمه:**[۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي دوفات نه وروسته چې د نبي کريم ﷺ جسد اطهر ته دغسل ورکولو اراده وکړه [۲] نو هلته موجود صحابه يا د اهل بيتو په منځ کې داسوال راپورته شو چې آيا د رسول الله صلی الله عليه وسلم کپړې دې هم داسې وايستل شي لکه څرنګه چې مونږ غسل ورکولو دپاره د مُرده ګانو کپړې خيني کاږو چې صرف ترستر پورته يوه کپړه پريږدو نور يې ټول بدن بربنډ وي يا حضور ﷺ ته د حضور ﷺ د خصوصيت په بناء د کالو سره غسل ورکول شي [۳]هر کله چې دې سوال باندې صحابه رضي الله عنهم کې داختلاف رايې اظهار وشو، چې خيني خلقو مړی ته د غسل ور کولو مروج طريقه

---

[۱] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجهاد /باب فى النور يرى عند قبر الشهيد (رقم-۲۵۲۳)

[۲] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الجنائز /باب فى ستر الميت عند غسله (رقم-۳۱٤۱)

باندې قياس کولو سره دجسد اطهر نه د کپړو ويستلو مشوره ورکړله او بعضې حضراتو جسم پاك بربنډول مناسب ونه ګنړل او دټولو په يو خبره اتفاق اونه شو نو (اچانك) الله تعالی هغه ټولو خلقو باندې خوب راوستي ۴ دي پورې چې هلته هيڅ يو سړی پاتې نه شو چې د هغه زنه د هغه سينه باندې نه وي راغلی (مطلب دا چې خوب ټول غافل کړل) ۵ او بيا هغه خلقو د کور ديو ګوټ نه يو داسې ويونکې آواز واوريدی چې هغه نه هغه خلق بالکل نا واقف ؤو.

**حل اللغات:-** ① أُجَرِّدُ: آيا مونږ ئې بربنډ کړو، کپړې ترې اوباسو. ② ذَقَنُهُ: د مخ د دواړو طرفونو ږيره چه کوم ځائې يوځائې کيږی هغې ته وائی يعنی ذنه.

۱ اغْسِلُوا النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَعَلَيْهِ ثِيَابُهُ، ۲ فَقَامُوا، فَغَسَّلُوهُ وَعَلَيْهِ قَمِيصُهُ، ۳ يَصُبُّونَ الْمَاءَ فَوْقَ الْقَمِيصِ وَيُدَلِّكُونَهُ بِالْقَمِيصِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ).

**ترجمه:** ۱ هغه اوويل نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته کالو کې د ننه غسل ورکړی ۲ نو هغه ټول خلق دا آواز آوريدوسره هوښيار شو او راپاڅيدل او د حضور ﷺ جسم مبارك ته يې کپړو کې د ننه داسې غسل ورکړلو ۳ چې هغه وخت جسم اطهر باندې کوم قميص ؤ په هغه به يې اوبه اچولې او په قميص به يې بدن مبارك مښلو دا روايت بيهقي د لائل النبوة کې نقل کړی دی

**تسهيلات:**

**قوله:** اغْسِلُوا:

**نبی عليه السلام ته د غسل ورکولو خودنه:** کوم کس چه په غائبانه توګه باندې لارخودنه کړې وه علماؤ ليکلی دی چه دا حضرت خضرو. په صحابه کرامو باندې دَ خوب راتلل اودکور دَ ګوټ نه آواز راتلل داټول کرامات دی. دَدې نسبت که چرې حضورپاك طرف ته اوکړې شی نوَ معجزه ده اوکه چرې دَدې نسبت دَصحابه کرامو طرف ته اوکړې شی نو داکرامت دې علماؤ ليکلی دی دَامت دَ يو کس نه دکرامت ښکاره کيدل دَنبی دَپاره دَ معجزې حيثيت لری.

**نبی عليه السلام ته جامو سره دغسل ورکولو روايت:** په زيربحث حديث کښې تصريح ده چه حضورپاك ته دَ کپړوسره غسل ورکړې شو سره دَدې چه علامه نووی رحمه الله ليکلی دی چه کپړو سره حضورپاك ته غسل نه دې ورکړې شوې زيربحث حديث ضعيف دې. بهرحال دادَ علامه نووی رحمه الله خيال دې اودَ هغه تحقيق دې. ملاعلی قاری رحمه الله وغيره په دې باندې هيڅ نه دی ليکلی.

## [۵۹۴۹] سفینه رضی الله عنه د پاره د ځنګل زمري تابع کيدل

۵۹۴۹-()[۲] ۱ وَعَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ، «أَنَّ سَفِينَةَ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَخْطَأَ الْجَيْشَ بِأَرْضِ الرُّومِ أَوْ أُسِرَ، ۲ فَانْطَلَقَ هَارِبًا يَلْتَمِسُ الْجَيْشَ، فَإِذَا هُوَ بِالْأَسَدِ. ۳ فَقَالَ: يَا أَبَا الْحَارِثِ! أَنَا مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ مِنْ أَمْرِي كَيْتَ وَكَيْتَ، ۴ فَأَقْبَلَ الْأَسَدُ، لَهُ بَصْبَصَةٌ حَتَّى قَامَ إِلَى جَنْبِهِ، كُلَّمَا سَمِعَ صَوْتًا أَهْوَى إِلَيْهِ، ۵ ثُمَّ أَقْبَلَ يَمْشِي إِلَى جَنْبِهِ حَتَّى بَلَغَ الْجَيْشَ، ثُمَّ رَجَعَ الْأَسَدُ». رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:** ۱ او جلیل القدر تابعي ابن منکدر رحمه الله بیان کوي یو ځل د رسول الله صلی الله علیه وسلم آزاد کرده غلام حضرت سفینه رضی الله عنه رومي علاقه کې د لښکر لار نري غلطه شوه یا د دښمن په لاس ونیول شو ۲ بیا هغه د دښمن د قبضې نه اوتښتیدي او د خپل لښکر په تلاش پسې شو دي دوران کې (یو ځنګل کې) هغه یو لوئی زمري سره مخ شو ۳ هغه نه صرف داچې یو خطر ناك زمري لیدو سره خپل اوسان یي بحال اوساتل بلکه هغه یي د هغه د کنیت په ذریعه مخاطب کولو سره ورته اوویل اې ابوحارث! زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم آزاد کرده غلام یم او ماته دا واقعه پیښه شوې ده چې زه نه د خپل لښکر لار ورکه شوې ده یا دا چې د دښمن دلاسه بندي شوی ووم اوس د هغوی د قبضې نه راتښتیدلي یم او د خپل لښکر تلاش کې سرګردان یم ۴ زمري د دې اوریدو سره لکۍ اوخوزوله (چې د یو ځناور د فرمانبردار کیدو علامت دي) راغې د هغه سره اودریدلو بیا چې دیو طرف نه به د څه خوفناك درنده وغیره آواز راغې نو زمري به د هغه دفعني دپاره د هغه آواز طرف نه ورمنډه کړل او بیا به وروسته راتلو ۵ دغه شان هغه زمري (د یو محافظ او رهبر په شان د سفینه رضی الله عنه سره بغل په بغل ورسره تلی تر دي چې سفینه خپل لښکر ته ورسیدی او زمري واپس ځیني لاړلو (شرح السنة)

**حل اللغات:-** ۱ أَخْطَأَ: أَيْ: أَضَلَّ طَرِيقَهُ: لاره تري غلطه شوه ۲ هَارِبًا: اوتښتیده. ۳ بَصْبَصَةٌ: أَيْ: تَحْرِيكُ ذَنَبٍ: لکۍ نې خوزوله (دا د ځناورو د عاجزۍ کولو او تابعدارۍ علامت دي) ۴ أَهْوَى: أَيْ: قَصَدَهُ: قصد او اراده نې اوکړه (د دفع کولو د زمري)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَّ سَفِينَةَ أَخْطَأَ الْجَيْشَ،

**د حدیث پس منظر او مفهوم:** د حضرت ام سلمه رضی الله عنها یو غلام وو ام سلمه رضی الله عنها غوښتل چه دې آزاد کړی مګر شرط نی داکیخودو چه د حضورپاك په خدمت کښې به اوسیږي هغه اوویل چه تاسو ما آزاد کړئی او شرط مه لګوئی زه به د شرط نه بغیر د حضورپاك په خدمت کښې یم هغه غلام حضرت سفینه رضی الله عنه وه بهرحال حضرت سفینه رضی الله عنه ته آزادي ملاؤ شوه

[۱]) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحدیث ۳۷۳۲

بيا دَ شام په زمکه باندې صحابه کراموسره په يوجهاد کښې دَهرقل فوجيانو يوڅوصحابه کراموسره دا هم گرفتاره کړه دَ شپې وخت کښې حضرت سفينه رضي الله عنه دَ کافرانودَقيدنه په څه چل سره راخلاص شو اودَ مسلمانانودَ کيمپ طرف ته راغله دَ شپې تياره وه لار ترې هيره شوه ځنګل ته اورسيده هلته دَ ځناورو ويره ورسره شوه نوحضرت سفينه رضي الله عنه ازمرى سره خبرې اوکړې او صورت حال ئې ورته اوخودلو چه اې ابوالحارث زه دَ رسول الله ﷺ غلام يم لار رانه هيره شوې ده په دې باندې ازمرى لکئى اوخوزوله اودَهغې دَحفاظت دَپاره ئې پهره ورکول شروع کړه کله به وراندې شو اوکله به شاته شو چه څه ځناور ورته نقصان اونه رسوى تردې چه فوجى کيمپ ته ئى رااورسوله دَ کومې نه چه دَ حضورپاك دَ غلام حضرت سفينه رضي الله عنه کرامت ښکاره شو

**د حضرت سفينه وجه تسميه**:دَحضرت سفينه رضي الله عنه اصل نوم چاته معلوم نه دې دَ جهادپه سفرکښې هغه خپل سامان سره دَ ملګروسامان هم اوچت کړې وو بيابه يويوملګرې وراندې کيدواوخپل سامان به ئى پرې باركوو اوده به اوچتولو په دې حال کښې حضورپاك اوفرمائيل "انت السفينة" يعنى په سامان اوچتولو کښې خوته جهازاوکشتئى ئى دَدغه وخت نه دَهغې نوم غيب شو اوهم دغه لقب ئى مشهورشو

**قوله**:لَهُ بَصْبَصَةٌ حَتّٰى قَامَ إِلٰى جَنْبِهِ،

**د بصبصه معنى**:سپې يا ازمرې يا ليوه چه کله دَ تابعدارئى اوخوشحالئى اظهاركوى نوهغه لکئى خوزوى هم دې ته بصبصة وائى يعنى ازمرې لکئى خوزونکې راغلو اودَهغې حفاظت ئى کولو

**[۵۹۵۰] د قبر ښکاره کولو سره د باران کيدو خبر ورکولو کرامت**

حدـ( ) [ء] [۱] وَعَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ، قَالَ: قُحِطَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ قَحْطًا شَدِيدًا، [۲] فَشَكَوْا إِلَى عَائِشَةَ فَقَالَتْ: انْظُرُوا قَبْرَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۳] فَاجْعَلُوا مِنْهُ كُوًى إِلَى السَّمَاءِ، حَتَّى لَا يَكُونَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ السَّمَاءِ سَقْفٌ. [۴] فَفَعَلُوا، فَمُطِرُوا مَطَرًا حَتَّى نَبَتَ الْعُشْبُ، وَسَمِنَتِ الْإِبِلُ، [۵] حَتَّى تَفَتَّقَتْ مِنَ الشَّحْمِ، فَسُمِّيَ عَامَ الْفَتْقِ، رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**:[۱] او مشهور تابعي ابو الجواز رحمه الله وايي يو ځل دخشك سالئ په وجه مديني والا سخت قحط كي مبتلا شو [۲] نو هغوى أمّ المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها ته د خپل مُصيبتونو او پريشانيو ذكر اوكړو چې هغه باران دپاره دُعا وكړى ، او څه تدبير اوښايي، بي بي عائشي ورته اوويل داسې وكړى چې ناسود نبي كريم صلى الله عليه وسلم قبر مبارك ته رجوع وكړى او دحجري دبام (چت) نه څه سورى (سوراخ) آسمان طرف ته داسې خلاص پريږدي چې د قبر شريف او آسمان په منځ كې بام (چت) حائل نشي [۳] نو خلقو د بي بي

( ) اخرجه البغوى فى السنن رقم الحديث ۵۲

عائشې ﷞ دوينا مطابق عمل وكړى، [۲]بيا چې باران وشو نو دومره شينكى راشنه شو (چې ښه ډير خوړلو سره)، أوښان ځرب شوه ددي پورې چې دوازګي د زياتي په وجه د هغوى تشي اوپړسيدل او دهغه كال نوم (فتق) كيخودل شو (دارمى ﷫)

**حل اللغات:**- ① كُوًى: نَقْبُ الْبَيْتِ: دكوټې روشندان يا كړكۍ ته وائى ② نَبَتَ: راوختل، رازرغون شو ③ الْعُشْبُ: أي: الْعَلَفُ: وابنه، گيا ④ سَمِنَتْ: ځورب شو ⑤ تَفَتَّقَتْ: أي: انْتَفَخَتْ خَوَاصِرُهَا: اوپړسيدل تشي د ځاروو

**تسهيلات:**

**قوله: فَاجْعَلُوا مِنْهُ كُوًى إِلَى السَّمَاءِ**

**د عائشې رضى الله عنها د قول په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① دَ حضرت عائشه ﷞ مطلب داوو چه حضورپاك به دَهغوى په ژوند كښې سفارش پيش كولې شو نو باران به كيدلو اوس چه دَ شفاعت په توګه كله قبر ښكاره كولې شى نوباران به كيږى هم دغه شان اوشو

② دَحضرت عائشه ﷞ مطلب خوداوو چه لكه آسمان دَ حضورپاك قبرته ګورى نو ژاړى به نوباران به كيږى دَ كوم "فمابكت عليهم السماء" نه اشاره ملاويږى چه دَ انبياء اوصلحاء دَپاره آسمان ژاړى

په دي كښې دَحضرت عائشه ﷞ هم كرامت دې اودَ روضهٔ اطهرهم كرامت دې چه په حقيقت كښې دَ نبى معجزه ده.

**[۵۹۵۱] د نبى عليه السلام د قبر څخه د پست آواز اوريدل**

(۱) [۸] [۱]وَعَنْ سَعْدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، قَالَ: [۲]لَمَّا كَانَ أَيَّامُ الْحَرَّةِ لَمْ يُؤَذَّنْ فِي مَسْجِدِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ثَلَاثًا وَلَمْ يُقَمْ، [۳] وَلَمْ يَبْرَحْ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ الْمَسْجِدَ، [۴]وَكَانَ لَا يَعْرِفُ وَقْتَ الصَّلَاةِ إِلَّا بِهَمْهَمَةٍ [۵] يَسْمَعُهَا مِنْ قَبْرِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سعيد ابن عبدالعزيز ﷫ (چې جليل القدر تبع تابعينو نه دي چې نه صرف زبردست فقيه ؤ او حديث صحت سره بيانولو كې يې امتيازى حيثيت لرى بلكه ګريان و ترسان بزرګ هم ؤ، بيان يې كوي [۲]چې دواقعه حره ورخو كې دري ورخو پورې مسجد نبوي ﷺ كې نه اذان وشو او نه تكبير وشو [۳]او نه حضرت سعيد ابن مسيب ﷫ مسجد نه د باندى راوتلاى شو ځكه چې هغه ورخو كې مسجد ته تلل راتلل بالكل بند شوى ؤ، [۴]حضرت سعيد ابن مسيب ﷫ به، هغه دمصيبت په ورخو كې، د مونځ وخت صرف هغه قلار (آهسته) ګنګنړ په شان آواز نه شناخت كولو [۵]چې د حضور ﷺ د قبر مبارك د ننه نه راتلو سره به يې اوريدى (دارمى ﷫)

[۱] ) اخرجه الدارمى فى السنن رقم الحديث ۹۳

**حل اللغات:-** ① أَيَّامُ الْحَرَّةِ: حره دمدینې هغه زمکې ته وائي چه تور کاڼړي پکښې ډیر دي په دغه ځائې کښې د یزید د شامي فوج او دصحابه کرامو جنګ شوې وو په دې وجه دغه جنګ ته حره وائي اوپه کومو ورځو کښې جنګ شوې هغې ته ایام حره وائي ② لَمْ يُقَمْ: نه اقامت شوې وو (د مونځ دپاره تکبیرهم نه وو ونیلې شوې)، ③ لَمْ يَبْرَحْ: لَمْ يُفَارِقْ: نه شو جدا کیدې یعنی نه شو راوتلې ④ بِهَمْهَمَةٍ: أَيْ: بِصَوْتٍ خَفِيٍّ لَا يُفْهَمُ: رو آواز چه څوک پرې نه پوهیږي، ګنګنړ کول.

**تسهیلات:**

**قوله: أَيَّامُ الْحَرَّةِ:**

**د ایام الحرة پس منظر:** یزید بدقسمته دَ شام نه یولښکر لیګلې وو دې دَپاره چه دَ اهل مدینه نه دَ یزید دَپاره بیعت واخلی ګنی په هغوی به حمله کولې شی اومدینه به دړې وړې کړی نو په واقعه حره کښې اهل مدینه سره دَ شامیانو زبردست جنګ اوشو اودَمدینې لوئی لوئی صحابه کرام شهیدان شول. په دې موقع مدینه په تیاروکښې ډوبه شوه نه به دَ ورځې پته لګیده اونه دَ شپې. په دې کښې دَ مونځونو دَ وختونو مسئله پینه شوه نودَ روضهٔ اطهرنه به دَ مونځ په وخت کښې دَ یوفریاد آواز راؤچتیدو دَ کوم نه چه به اندازه لګیدله چه دَ مونځ وخت شو.

**د یزید په باره کښې د علامه آلوسی رحمه الله رائې:** علامه آلوسی رحمه الله په خپل تفسیر روح المعانی پاره ۲۶ص ۷۲ باندې دَ یزید دَ ظلمونو ذکر کړې دې او په کربلاکښې دَ شهیدانوسرونه په شام کښې یزیدله دَ لیګلو اودَ یزید دَ خوشحالیدلو یعنی دکفرکلمه ونیل داسې بیان کړی دی. یوڅو اشعار اوګورئی.

لما بدت تلك الحمول واشرفت　　　تلك الرؤس علی شفا جيرون

**ترجمه:** کله چه دَ علاقه جیرون په غاړه باندې دا سورلئی اوپه دې باندې بارکړې شوې دا سرونه ښکاره شو.

نعب الغراب فقلت قل اولا تقل　　　فقد اقتضيت من الرسول ديوني

**ترجمه:** نوکارغه کائین کائین کولو ما هغه ته ونیل چه ته کائین کائین کوه یا مه کوه ما دَ رسول الله نه دَ خپلو مقتولینوبدله واخستله.

دَعلامه آلوسی رحمه الله خیال دې چه دا اشعارثابت دی لهذا یزید کافردې لیکن دَجمهور علماؤپه نیزیزید فاسق او فاجردې. دا اشعار تفسیرمظهری هم ج۵ص۲۷ باندې لیکلی دی.

**د یزید د قسطنطنیه په جهاد کښې د شرکت څخه معذرت کول:** دَ قسطنطنیه په جهاد کښې حضرت معاویه رضی الله عنه یزید اولیګلو خوهغه بهانه جوړه کړه اوونی ونیل چه زه بیمار یم. هلته لښکرته سخت تکلیف اورسیدو نویزید دَ خوشحالئی نه شعرونه اوونیل

لست ابالي بما لاقت جموعهم　　　بالفرقدونة من حمّى ومن حوم

**ترجمه** په مقام فرقدونه کښې مجاهدينو ته کومه تبه راپيدا شوه اودَهغوی شونډې اوچاؤدې زما په دې باندې هيڅ پرواه نشته.

اذا جلست على الانماء متكأ بدير مروان عند ام كلثوم

**ترجمه** کله چه زه په دير مروان کښې په قالينونو باندې ام کلثوم سره ډېره لګولوسره کينم حضرت امير معاويه رضي الله عنه ته چه کله معلومه شوه چه دې دهوکه کولوسره شاته پاتې شوې دې نوهغوی دوباره حکم جاری کړو اوهغه نې دې غزوه ته اوليګلو دې اميرهم پاتې دې خو اعتبار دَ آخرانجام دې. ده ته څه حق حاصل وو چه حضرت امام حسين عليه السلام وژلوسره نې حکومت کولو او په بيت الله باندې بمباری کولوسره حکومت حاصل کړو. دَحره دا واقعه ۶۳هجری کښې پيښه شوې وه اوڅه وخت پس بيا يزيد مړشو څه تفصيلات آننده فضائل حسين رضي الله عنه لاندې راځی

**[۵۹۵۲] دانس رضي الله عنه دباغ هر کال دوه ځله ميوې کول**

۵۹۵۲-() [۹] [۱]وَعَنْ أَبِي خَلْدَةَ، قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي الْعَالِيَةِ: [۲]سَمِعَ أَنَسٌ مِنَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ [۳]قَالَ: خَدَمَهُ عَشْرَ سِنِينَ، وَدَعَا لَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴]وَكَانَ لَهُ بُسْتَانٌ يَحْمِلُ فِي كُلِّ سَنَةٍ الْفَاكِهَةَ مَرَّتَيْنِ، [۵]وَإِنَّ فِيهَا رَيْحَانٌ يَجِيءُ مِنْهُ رِيحُ الْمِسْكِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوخلده (تابعي رحمه الله) وايي ما د (بزرګ تابعي) حضرت ابوالعاليه رحمه الله نه پوښتنه وکړه [۲] آيا حضرت انس رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه حديثونه آوريدلي دي؟ [۳]حضرت ابوالعاليه رحمه الله جواب راکړي، حضرت انس رضي الله عنه ته د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت کې د لس ۱۰ کاله پاتي کيدو شرف حاصل شوی دي او هغه ته د حضور صلى الله عليه وسلم دُعا قبوله شوی ده [۴]د هغه چې کوم باغ ؤ هغه به په کال کې دوه ځله ميوه کوله [۵]او هغه باغ کې چې کوم ګلونه ؤ هغه نه به د مشکو په شان خوشبويي راتله دا روايت ترمذی رحمه الله نقل کړی دي او ويلي يې دي چې داحديث حسن غريب دي.

**حل اللغات:-** ① يَحْمِلُ : أَيْ: يُثْمِرُ: يعنى ميوې به نې نيولې ② رَيْحَانٌ : يو بوټي دې چه بنانسته خوشبو کوی. د کشمالو بوټي

**تسهيلات:**

**قوله:** وَدَعَا لَهُ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-..الخ:

**د انس رضی الله عنه دپاره په مال او اولاد کښې د برکت دعا:** رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ حضرت انس رضي الله عنه دَ پاره په مال دولت او اولاد کښې دَ برکت دعا فرمائيلې وه نودَ حضرت انس رضي الله عنه

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أنس بن مالک رضی الله عنه (رقم-۳۸۳۳)

عمر د سلو کالو نه زیات وو. د هغوی په ژوند کښې د هغوی د اولاد بیا د اولاد د اولاد تر سلو پورې رسیدلی وو په کوم کښې چه ۷۳ هلکان او ۲۷ جینکئی وې. او د مال برکت په حدیث الباب کښې ذکر دې چه په یو کال کښې به د هغه باغ دوه خل میوه ورکوله. په عمر، اولاد او مال کښې برکت د رسول الله ﷺ معجزات او د حضرت انس رضی الله عنه کرامات دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵۹۵۲] د سعید ابن زید رضی الله عنه د بدعا نې قبلیدل

۵۹۵۲ - () [۱۰] [۱] عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ سَعِيدَ بْنَ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] خَاصَمَتْهُ أَرْوَى بِنْتُ أُوَيْسٍ إِلَى مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ، وَادَّعَتْ أَنَّهُ أَخَذَ شَيْئًا مِنْ أَرْضِهَا، [۳] فَقَالَ سَعِيدٌ: أَنَا كُنْتُ آخُذُ مِنْ أَرْضِهَا شَيْئًا بَعْدَ الَّذِي سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟! قَالَ: مَاذَا سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ [۴] قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

**ترجمه:** [۱] حضرت عروه ابن زبیر بن العوام (چې د پورته درجې تابعینو نه دي او عشره مبشره کې د یو مشهور صحابی حضرت زبیر بن العوام رضی الله عنه زوي دي) بیان کوي [۲] چې دیوې ښځې اروی بنت أوس حضرت سعید ابن زید ابن عمر و ابن نفیل رضی الله عنه سره جګړه وشوه نو د هغه خلاف فریاد اخستلو سره دمروان ابن حکم عدالت ته ورغله (چې د حضرت معاویه رضی الله عنه د طرف نه د مدینې حاکم ؤ) اروی دعوه وکړه چې سعید ابن زید رضی الله عنه زما یوه ټوټه زمکه په زور (بدماشي) لاندې کړې ده [۳] حضرت سعید رضی الله عنه دا دعوی آوریدو سره بعید از امکان ګرخولو دپاره یې اوویل د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ارشاد آوریدو نه وروسته دا څرنګه کیدی شي چې زه د دې ښځې زمکه لاندې کړم (په زور ونیسم) [۴] مروان پوښتنه وکړه تا د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه څه اوریدلي دي حضرت سعید رضی الله عنه ورته بیان وکړو ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا آوریدلي دي

[۱] يَقُولُ: («مَنْ أَخَذَ شِبْرًا مِنَ الْأَرْضِ ظُلْمًا طُوِّقَهُ إِلَى سَبْعِ أَرَضِينَ») [۲] فَقَالَ لَهُ مَرْوَانُ: لَا أَسْأَلُكَ بَيِّنَةً بَعْدَ هَذَا. [۳] فَقَالَ سَعِيدٌ: اللَّهُمَّ إِنْ كَانَتْ كَاذِبَةً فَأَعْمِ بَصَرَهَا وَاقْتُلْهَا فِي أَرْضِهَا [۴] قَالَ: فَمَا مَاتَتْ حَتَّى ذَهَبَ بَصَرُهَا [۵] وَبَيْنَمَا هِيَ تَمْشِي فِي أَرْضِهَا إِذْ وَقَعَتْ فِي حُفْرَةٍ فَمَاتَتْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] که یو سړی دچا یوه لویشت اندازه زمکه هم په زور سره ونیسي نو (د قیامت په ورځ به) الله تعالی د هغه زمکې د اوو ۷ طبقو طوق جوړولو سره د هغه سړی په غاړه کې واچوی [۲] مروان (دی آوریدو سره) حضرت سعید رضی الله عنه ته اوویل دې دلیل نه وروسته زه د دې څه ضرورت نه لرم چې ستا نه نوره ګواهي طلب کړم [۳] خو بیا هم حضرت سعید رضی الله عنه

[1] اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب ما جاء فی سبع أرضین (رقم-۳۱۹۸) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب تحریم الظلم وغصب الأرض وغیرها (رقم-۱۳۹ - (۱۶۱۰)) واحمد فی المسند: ۱۸۷/۱

دزمكي هغه تكره د هغه ښځي حق كي پريښودو او هغه اوويل اې الله! كه دا ښځه دروغجنه ده نو بينايي يې واخلى او د دې په زمكه كې مرګ وركړى [۴] حضرت عروه رحمه الله بيان كوي د مرګ نه مخكې هغه ښځه ړنده شوى وه [۵] يوه ورځ مذكوره زمكه كې روانه وه اچانك يوه كنده كې وغورځيده او هم هلته مړه شوه. (بخارى رحمه الله و مسلم رحمه الله)

**حل اللغات:** - ① شِبْرًا: يوه لويشت (ددې نه مراد معمولى مقدار دې). ② طُوِّقَهُ: په غاړه كښې به ورته واچولې شى (دا زمكه). ③ فَأَعْمِ: أَيْ: اجْعَلْ بَصَرَهَا أَعْمَى: يعنى ستركې ئې ړندې كړې.

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ بِمَعْنَاهُ، [۲] وَأَنَّهُ رَآهَا عَمْيَاءَ تَلْتَمِسُ الْجُدُرَ، تَقُولُ: [۳] أَصَابَتْنِي دَعْوَةُ سَعِيدٍ، [۴] وَأَنَّهَا مَرَّتْ عَلَى بِئْرٍ فِي الدَّارِ الَّتِي خَاصَمَتْهُ فِيهَا، فَوَقَعَتْ فِيهَا، فَكَانَتْ قَبْرَهَا.

**ترجمه:** [۱] او مسلم رحمه الله يو روايت كې چې حضرت محمد رضي الله عنه ابن زيد ابن عبدالله ابن عمر (تابعي) نه د دې روايت هم معنى منقول دى داسې دى [۲] چې محمد رحمه الله ابن زيد يوه ورځ وليدل چې هغه ښځه ړنده شوى وه او ديو ديوال په سهاره (لاس كړولو سره) روانه وه او وئيل يې [۳] چې ماته د سعيد ابن زيد رضي الله عنه بد دعا رسيدلى ده [۴] او بيا داسې اوسو چې يوه ورځ هغه هغه كوهي (يعني ژوري كندى) سره تيريدله چې هغه مذكوره زمكه كې واقع ؤ ناڅا په هغه كې ولويده او هغه كوهي د هغې قبر جوړ شو

**تسهيلات: قوله:** وَادَّعَتْ أَنَّهُ أَخَذَ شَيْئًا مِنْ أَرْضِهَا. . الخ:

حضرت سعيدبن زيد رضي الله عنه يود لوئى شان والاصحابى دې. دعشره مبشره نه دې مذكوره ښځې په هغه باندې دعوىٰ كړې وه چه ده زما زمكه په زوره اخستې ده.

**قوله:** فَأَعْمِ بَصَرَهَا وَاقْتُلْهَا فِي أَرْضِهَا،

**د حضرت سعيد بن زيد رضى الله عنه د خيرو قبليدل:** يعنى زه منم چه دا حديث يادولوسره هغه زمكه نه وه اخستې (ليكن د ضابطه كاروائى ضرورى ده يا ګواه وى يا قسم وى، په دې باندې حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه هم زمكه ترك كړه اودغه بد قسمته ښځې ته ئې بد دعا اوكړه د كوم نتيجه چه دا راووتله چه هم هغه زمكه د هغه ښځې قبرجوړ شو او بغير كفن هغه په دغه تياره كنده كوهي كښې پريوتلوسره مړه شوه

**[۵۹۵۴] د لرې ځخه د لښكر ښكاريدو كرامت**

۵۹۵۵—(¹) [۸] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - أَنَّ عُمَرَ بَعَثَ جَيْشًا [۲] وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ رَجُلًا يُدْعَى سَارِيَةَ، فَبَيْنَمَا عُمَرُ يَخْطُبُ، [۳] فَجَعَلَ يَصِيحُ: يَا سَارِيَ! الْجَبَلَ فَقَدِمَ رَسُولٌ مِنَ الْجَيْشِ [۴] فَقَالَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ لَقِيَنَا عَدُوُّنَا فَهَزَمُونَا، فَإِذَا بِصَائِحٍ يَصِيحُ: يَا سَارِيَ! الْجَبَلَ. [۵] فَأَسْنَدْنَا ظُهُورَنَا إِلَى الْجَبَلِ، فَهَزَمَهُمُ اللَّهُ - تَعَالَى. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ).

¹) اخرجه البيهقي في دلائل النبوة رقم الحديث ۶/ ۳۷۰

**ترجمه:**① او حضرت ابن عمر رضی الله عنه را وی دي چې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه (د ایران صوبه همدان جنوب کې واقع مقام نهاوند ته) کوم لښکر لیږلي ؤ ②د هغه دیوي حصي دفوج سپه سالار ساریه نومي یو سړی جوړ کړی ؤ (یوه ورځ) چې فاروق اعظم رضی الله عنه (مسجد نبوی ﷺ کې) خطبه ارشاد فرمائیله (او حاضرینو کې اکابر صحابه حضرت عثمان رضی الله عنه او حضرت علی رضی الله عنه نه علاوه نور صحابه او تابعین هم ؤ) ③نو هغوی (دوران خطبه کې) اچانك په چغه وئیل شروع کړل چې ساریه! دغره طرف ته لاړ شه (یعني د میدان جنګ موجوده مور چې پریښودو سره دغر لمن ته لاړ شه او غر پُشت بان جوړولو سره نوی مورچه جوړه کړه دي آوریدو سره خلقوته ډیر تعجب اوشو اوبیا څو ورځي وروسته لښکر نه چې یو قاصد راغي ④او هغه د میدان جنګ حالات آورولو سره اوویل چې امیرالمؤمنین! دښمن خو مونږ راګیر کړی ؤ او مونږ شکست سره مخ کیدونکي ؤ چې اچانك زمونږ په غوږونو کې د یو سړی آواز راغي چې په چغه یي اوویل ساریه! دغره طرف ته لاړ شه ⑤(دا آواز آوریدو سره) مونږ خپله مور چې پریښوده او غره طرف ته تللو سره غر مي خپل پشت پناه جوړ کړلو او بیا الله تعالی دشمنانو ته شکست ورکړلو . دا روایت بیهقي رحمه الله د لائل النبوة کې نقل کړی دي.

**حل اللغات:-** ①يُدْعَى: أيْ: يُمَّى: آواز به ورته کولې شو، نوم به ورته اخستلې شو ②سَارِيَةَ: أي سَارِيَةَ ابْنَ زَنيم: دا یو صحابی دي. ③فَهَزَمُونَا: أيْ: فَغَلَبُونَا أَوَّلًا: هغوی په مونږ باندې غالب راغلل ④فَأَسْنَدْنَا: مونږ خپل شاته راوستل (یعنی مونږ غر ته شا کړه نو غر زمونږ پناه جوړ شو)

**تسهیلات: قوله:** يَاسَارِيَ:

**حضرت ساری ته آواز:** دَ دغه صحابی نوم ساریه وو مګردلته دَترخیم المنادیٰ په توګه دَهغه نوم یاساری اوونیلې شو

**قوله:** الْجَبَلَ:

**د عمر فاروق رضی الله عنه د فرمان پس منظر:** یعنی دَ غرطرف ته شه غردَ شا ارخ ته کړه. دَ فارس په معرکوکښې دَقادسیه معرکه اودَ نهاوند معرکه دَ ډیرو مشهورو معرکونه ده. دَ نهاوند په معرکه کښې دښمن دَ شانه حمله کونکې وو حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په خطبه کښې دَ منبرنبوی دپاسه کیناستوسره آواز ورکړو دَ غرطرف ته شاکړه یانی اوفرمائیل دَغرطرف نه خطره ده. خلق په دې بې جوړه کلام باندې حیران شو چه دَ جمعې په خطبه کښې دَدې کلام څه مطلب دې؟ خوچه کله دَهغه خائی نه خلق راغلل او په میدان جنګ کښې دَآواز اوریدو قصه بیان کړه نوبیاحقیقت مخې ته راغلو

**د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه درې کرامتونه:**

په دې یوه واقعه کښې دَ حضرت عمرفاروق رضی الله عنه څومره کرامات ښکاره شو.

① هغوی دَ نهاوند دَميدان جنګ نقشه دَ زرګونه ميله لرې نه اوليدله.
② دَ مدينې نه دَهغوی آواز دومره لرې پورې رسيدل.
③ دا چه دَ جنګ نقشه هغوی دَمدينې نه بدله کړه دکوم په برکت چه الله تعالی فتح ورنصيب کړه

**[۵۹۵۵] د نبی علیه السلام قبر ته روزانه د اویا زره فرښتو راتلو خبر ورکول**

۵۹۵۵-(١) [٣] ①وَعَنْ نُبَيْهَةَ بْنِ وَهْبٍ، أَنَّ كَعْبًا دَخَلَ عَلَى عَائِشَةَ، ②فَذَكَرُوا رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ كَعْبٌ: ③مَا مِنْ يَوْمٍ يَطْلُعُ إِلَّا نَزَلَ سَبْعُونَ أَلْفًا مِنَ الْمَلَائِكَةِ حَتَّى يَحُفُّوا بِقَبْرِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ④يَضْرِبُونَ بِأَجْنِحَتِهِمْ، وَيُصَلُّونَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ⑤حَتَّى إِذَا أَمْسَوْا عَرَجُوا وَهَبَطَ مِثْلُهُمْ فَصَنَعُوا مِثْلَ ذَلِكَ، ⑥حَتَّى إِذَا انْشَقَّتْ عَنْهُ الْأَرْضُ خَرَجَ فِي سَبْعِينَ أَلْفًا مِنَ الْمَلَائِكَةِ يَزِفُّونَهُ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت نبيهه ابن وهب (تابعي رحمه الله) بيان کوي چې يوه ورځ حضرت کعب احبار رضی الله عنه د أم المؤمنين بي بي عائشې رضی الله عنها په خدمت کې حاضر شو ② او هر کله چې هغه مجلس کې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د بعضې صفاتو او خصوصياتو يا د حضور ﷺ دوصال د حالاتو ذکر وشو ③ نو حضرت کعب رضی الله عنه اوويل هيڅ ورځ داسې نه تيريږي مګر نمرختو سره اويازره ۷۰۰۰۰ فرښتي د آسمان نه راخکته کيږي او هغه فرښتي د رسول الله صلی الله عليه وسلم قبر شريف باندې راکوزشي ④ او د قبر د پاسه نه ګرد وغبار صاف کولو دپاره يا انوار قبر نه برکت او قُرب حاصلولو دپاره خپل وزرونه په قبر شريف ووهي او رسول الله صلی الله عليه وسلم باندې درود شريف اووائي ⑤ددي پورې چې مابنام شی نو هغه فرښتي آسمان ته لاړې شی او (د هغوئ په شان اويا زره ۷۰۰۰۰) نورې فرښتي راخکته کيږي چې د هغه ورځي واله فرښتو په شان سحر پورې دغه شان کوي (يعني قبر شريف باندې راخوريږي او په هغه خپل وزرونه وهي او د رُو وايي داسلسله (يعني هره ورځ سهار مابنام دغه شان د اويازره فرښتو راخکته کيدل به هغه وقته پورې وي ⑥هر کله چې د قيامت په ورځ شپيلۍ پُوك وهلې شي او قبر شريف شق شی وچوي او حضور ﷺ د قبر نه راپورته کيږي او اويا زره ۷۰۰۰۰) فرښتي خان سره آخستو سره محبوب جيب ته ورسوي (دارمی رحمه الله)

**حل اللغات:-** ① يَحُفُّوا: أَيْ: يُحِيطُوا: پېټوی ② عَرَجُوا: أَيْ: صَعَدُوا: پورته خيجی (يعنی آسمان ته) ③ هَبَطَ: أَيْ: نَزَلَ: راکوزيږی (دآسمان نه) ④ يَزِفُّونَهُ: أَيْ: يَهْدُونَ الْمَحْبُوبَ إِلَى الْحَبِيبِ: محبوب به خپل حبيب ته رسوی؟

(١) اخرجه الدارمي في السنن رقم الحديث ٩٤

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ كَعْبٌ:**

**كعب الاحبار ته فرښتي د نزول علم:** كعب احبار ﷫ دَ تورات حافظ او دَ يهودولوني عالم وو بيا دَ حضورپاك دَ وفات نه پس مسلمان شوې وو لهذا تابعي دې صحابي نه دې كه چرې كعب احبار ﷫ ته د كشف په ذريعه دَهغه فرښتو پته لګيدلې وه نو داد هغوى كرامت دې او كه چرې دَ پخوانو آسماني كتابونو نه معلومه شوې ده نو بيا كرامت نه دې بلكه علم دې دا روايت د كراماتو په باب كښې ذكركولو نه معلومه شوه چه كعب ﷫ ته دَ كشف نه معلومه شوه.

**قوله: يَزُفُّونَهُ:**

**د نبي عليه السلام ميدان حشرته د فرشتو په جلوس كښې تلل:** يعني څنګه چه يو محبوب دَ بل محبوب دَپاره دَ جلوس په شكل كښې بوتلې شي هم دغه شان به فرښتې دَ قيامت په ورځ حضورپاك دَ الله تعالى طرف ته دَعزت نه ډك جلوس كښې بوځي شي

# [ ۹ ] بَابُ وَفَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## دَنبي كريم ﷺ دَوفات بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه سبعة عشر حديثاً مشتملة على ثماني مسائل:**

① ذكر هجرة النبي ﷺ والصحابة: ۱، ۷.
② إخبار النبي ﷺ عن موته إشارةً أوصريحاً: ۲، ۳، ۵، ۱۳، ۱۵، ۱۶، ۱۷.
③ ذكر موت النبي ﷺ : ۴، ۶، ۹.
④ ذكر دفن النبي ﷺ: ۸.
⑤ سبب موت النبي ﷺ : ۱۰.
⑥ ذكر ما وقع عند موت النبي ﷺ : ۱۱.
⑦ اغتمام الصحابة بموت النبي ﷺ : ۲، ۱۲.
⑧ طلب الملك الخيار في قبض الروح عن النبي ﷺ : ۱۷.

**يوه ضروري خبره:** دلته دا باب دَعنوان نه بغير منعقد شوې دې صاحب مشكوة كله كله داسې كوي چه دا قسم بلاعنوان باب دَ سابقه باب لاندې مضمون باندې مشتمل وي ليكن دلته دې باب ته دَ سابقه باب ذيلي مضمون نه شي وېلې كيدې خكه چه سابقه باب په كرامتونو باندې مشتمل دې او دا ـ ب وفات النبي ﷺ احاديثو باندې مشتمل دې

لهذا ټولو شارحينو وئيلي دی چه دَدې بلاعنوان باب عنوان یقینا هم دغه دې. باب وفات النبی ﷺ. دې نه پس هم یوباب بلا عنوان راځی لیکن دَهغې عنوان پخپله احادیثوته په کتلوسره په پوهه کښې راځی. چه دَدې باب عنوان ترکة النبی ﷺ دې لهذا هغه باب دې مذکوره باب سره بالکل ملحق اومناسب دې. دَهغې ټول احادیث ترکه سره متعلق دی. هغه باب دَ سابقه باب دَپاره په توګه دَ ذیل دې

**د نبی علیه السلام د وفات واقعه:** ۲۸صفر ۱۱هجری کښې دَ حضورك پاك دَبیمارئی شروع اوشوه اوڅوارلس ورځې بیمار پاتې کیدوسره ۱۲ربیع الاول دَ دوشنبه په ورځ دَحضورپاك وصال اوشو. په دې تاریخ کښې څه اختلاف یا ترددنشته دې. په دې وجه دَ ربیع الاول نوم وړاندې خلقوکښې په باره وفات مشهورروو. دَحضورپاك دَ ولادت باسعادت تاریخ ۸ربیع الاول دې بعضې اهل تحقیق ۹ربیع الاول خودلې دې. ۹ربیع الاول دَ تاریخ سند دَ مضبوطیا په لحاظ سره اګرچه راجح دې لیکن دَ عوام الناس عمل ۱۲ربیع الاول متعین کړې دې. ګنی په تاریخی لحاظ سره دا تاریخ کمزورې دې

**د نبی کریم علیه السلام د پیدائش اووفات د تاریخ په یووالی کښې حکمت:** مګر که وفات اوولادت هم په یو تاریخ کښې چرې اوشی نو په دې سره امت مسلمه ته کیدې شی دا پیغام ورکول مقصودوی چه نه دا ورځ دَ ماتم په توګه یادوی اومه دَ جشن په توګه څکه چه کوم سرې دَ حضورپاك په وفات باندې ماتم کول غواړی هغه ته به وئیلی شی ماتم مه کوه په دې ورځ خودَ حضورپاك دَ ولادت خوشحالی هم ده اوکوم سړې چه جشن کول غواړی هغه ته به وئیلی شی چه جشن مه کوه څکه چه په دې ورځ خودَحضورپاك انتقال هم شوې دې بهرحال دَ بیمارئی په دې ورځو کښې حضورپاك پخپله مونخونه نه دی ورکړی بلکه حضرت ابوبکرصدیق ﷺ نی دَ امامت دَپاره مقررکړې. دَ ۱۷ مونخونوامامت حضرت ابوبکرصدیق ﷺ کړې دې

دَ وفات نه وړاندې دَحضورپاك دَغزواتو په سلسله کښې آخری لښکر جیش اسامه روان کړې اوپه خپل لاس مبارك ئی دَهغوی جنګی جهنډا ترلې. دَامت دَپاره دَحضورپاك آخری جمله دَ مونځ متعلق داوه "الصلوٰة وماملكت ايمانكم" یعنی دَمونځ پابندی کوئی اوماتحتوباندې ظلم مه کوئی. دې نه پس حضورپاك خپل رب سره مناجات اوکړه وئی فرمائیل "اللهم الرفيق الاعلیٰ" دا دَ حضورپاك دَ ژبې مبارکې نه وتونکې دَ ژوند آخری کلمه ده

**د نبی کریم صلی الله علیه وسلم آخری وصیتونه:**

دَحضورپاك په وصیتونو کښې آخری درې وصیتونه دا وو

① دَ جزیره عرب نه یهودیان اوباسئی

② جیش اسامه روان کړئی.

④ وفد هم په دغه اعزاز اواکرام سره رخصت کوئی څنګه اکرام چه زه کوم.

**د نبی علیه السلام د تجهیز او تکفین مراسم:** حضورپاك په دريو تاريزو سپينو کپړو کښې کفن کولوسره دفن کړې شو دَ پيراونهې دوه ورځې دَ جنازې کولو اهتمام اوکړې شو اودَ چارشنبې په شپه قبر کښې کوز کړې شو دَحضورپاك قبرمبارك دَ لحد په شکل کښې وو دَ عائشه بی بی په حجره کښې کوم ځائې چه وفات شو هم هغه ځائې کښې دفن کړې شو دَحضورپاك دَ جنازې دَپاره يوامام مقرر کړې شوې نه وو بلکه هغوی پخپله امام وو اوخلق به راتلل او انفرادی توګه به نبی جنازه کوله اوتلل به. دټولو نه اول فرښتې راغلې بيا انسانانوجنازه اوکړه جناتو هم جنازه اوکړه اوبياتدفين اوشو

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [٥٩٥٦] دانصارو د نبی علیه السلام په هجرت باندې خوشحالی

٥٩٥٦-() [١] عَنِ الْبَرَاءِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] أَوَّلُ مَنْ قَدِمَ عَلَيْنَا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ، فَجَعَلَا يُقْرِآنِنَا الْقُرْآنَ، [٣] ثُمَّ جَاءَ عَمَّارٌ وَبِلَالٌ وَسَعْدٌ، ثُمَّ جَاءَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فِي عِشْرِينَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٤] ثُمَّ جَاءَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَمَا رَأَيْتُ أَهْلَ الْمَدِينَةِ فَرِحُوا بِشَيْءٍ، فَرَحَهُمْ بِهِ،

**ترجمه:** [١] حضرت براء ابن عازب رضی الله عنه (چې د مديني د انصارو نه مشهور ترين صحابی دې) وايي [٢] د نبوی ﷺ د هجرت نه مخکې، د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه ؤ کې چې کوم حضرات د ټولو نه مخکې مونږ ته (يعنې مديني ته) راغلل هغه حضرت مصعب ابن عمير رضی الله عنه او حضرت ابن أُم مکتوم رضی الله عنه ؤ دې دواړو حضراتو راتلو سره مونږ ته د قرآن تعليم راکول شروع کړی ؤو [٣] بيا حضرت عمار ابن ياسر رضی الله عنه حضرت بلال ابن رباح رضی الله عنه او حضرت سعد ابن ابی وقاص رضی الله عنه راغلل اوبيا حضرت عمر ابن خطاب رضی الله عنه د نبی کريم صلی الله علیه وسلم شل صحابه رضی الله عنهم سره تشريف راوړی [٤] دوئ نه وروسته نبی کريم صلی الله علیه وسلم د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه سره تشريف راوړی حقيقت دادې په هغه ورځ چې د اهل مدينه نصيب ويښ شوی ؤ مامديني واله د حضور ﷺ په تشريف آوري څومره خوشحاله ليدلي ؤ دومره لويه خوشحالی د څه لوی نه لوی خوشحالی په موقع هم ورته نه وه حاصله شوی

[١] حَتَّى رَأَيْتُ الْوَلَائِدَ وَالصِّبْيَانَ يَقُولُونَ: هٰذَا رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٢] قَدْ جَاءَ فَمَا جَاءَ حَتَّى قَرَأْتُ: ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى﴾ [الأعلى: ١] فِي سُوَرٍ مِثْلِهَا مِنَ الْمُفَصَّلِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] مادې پورې وليدل چې وړو وړو هلکانو او جينکو د ډيرې خوشحالی نه دانعرې

[1] اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب سورة سبح اسم ربک الأعلى (رقم-٤٩٤١) واحمد فی المسند: ٤/٢٨٤

وهلي دا د الله ﷻ رسول دي چې زمونږ کلي ته يې تشريف راوړی دي [۲] او ما د حضور ﷺ د تشريف اوړئ نه مخکې د مفصل (يعني اوساط مفصل) هم مثل شورتونو نه سورة سبح اسم ربك الاعلى زده کړې وُ (يا داچې د اوساط مفصل نورو هم مثل شورتونو سره سره سورة سبح اسم ربك الاعلى مې زده کړې وُ. (بخاری رحمه الله)

**حل اللغات:-** ① الْوَلَائِدَ: دَ وَلِيدَةٍ جمع ده، وَهِيَ الْجَارِيَةُ الصَّغِيرَةُ: جينکو ته وائی.

**تسهیلات:** **نوټ:** د ګرانو ټکو تشريح په حل اللغات کښې شوې ده او باقی د حديث مفهوم د حديث د تشريحی ترجمې څخه واضح دی.

## [۵۹۵۷] د صديق اکبر رضي الله عنه فراست

۵۹۵۷-() [۲] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ: [۳] «إِنَّ عَبْدًا خَيَّرَهُ اللَّهُ بَيْنَ أَنْ يُؤْتِيَهُ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا مَا شَاءَ، وَبَيْنَ مَا عِنْدَهُ، فَاخْتَارَ مَا عِنْدَهُ». [۴] فَبَكَى أَبُو بَكْرٍ قَالَ: فَدَيْنَاكَ بِآبَائِنَا وَأُمَّهَاتِنَا، فَعَجِبْنَا لَهُ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد خدری رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلى الله عليه وسلم [۲] دوفات د مرض په ورځو کې يوه ورځ يا څرنګه چې يو روايت کې وضاحت هم دي دوفات نه پنځه ۵ ورځې مخکې منبر باندې تشريف راوړی او مونږ ته يې خطاب کولو سره وفرمايل [۳] الله تعالى يو بنده ته دوو ۲ څيزونو په منځ کې اختيار ورکړی دي که هغه د دې دنيا زيب وزينت اختيار کړی يا هغه شی اختيار کړی چې دالله تعالى سره دي (يعني د آخرت نعمتونه او اجر او ثواب څکه چې اصل او ابدی نعمتونه خو د آخرت دي [۴] حضرت ابوبکر رضي الله عنه د حضور ﷺ دا ارشاد آوريدو سره يو دم په ژړا شو او عرض يې وکړی يا رسول الله! که زمونږ نذرانه څه په کارراتلی شي مونږ او زمونږ مور او پلار دي په تاسو قربان وي نو مونږ خلقو (يعني هلته موجود صحابه رضي الله عنهم) ته په حضرت ابوبکر رضي الله عنه سخت تعجب وشو (چې آخر په دې موقع د خانونو د نذرانې پيښ کولو باعث څه شی دي)

[۱] فَقَالَ النَّاسُ: انْظُرُوا إِلَى هَذَا الشَّيْخِ يُخْبِرُ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ عَبْدٍ [۲] خَيَّرَهُ اللَّهُ بَيْنَ أَنْ يُؤْتِيَهُ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا وَبَيْنَ مَا عِنْدَهُ، [۳] وَهُوَ يَقُولُ: فَدَيْنَاكَ بِآبَائِنَا وَأُمَّهَاتِنَا! ! [۴] فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ هُوَ الْمُخَيَّرَ، وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ أَعْلَمَنَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] خني خلقو خپلو کې يو بل ته داهم اوويل لږ دې مشر سړی ته وګورئ چې د دومره پوخ عمر او عقل لرلو باوجود څرنګه بې موقع خبره کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم خو د يو بنده حال بيانوي [۲] چې الله تعالى هغه ته د دوه څيزونو اختيار ورکړی دي

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب هجرة النبی صلى الله عليه وسلم وأصحابه إلى المدينة (رقم-۳۹۰۴) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالى عنهم/باب من فضائل أبي بكر الصديق رضی الله عنه (رقم-۲ - (۲۳۸۲)

که د دنيا بهار اختيار کړی که دالله تعالی سره نعمتونه [۳] ودامشر سړی وايي چې يا رسول الله! مونږ او زمونږ مور او پلار دي په تاسو قربان وي [۴] ليکن وروسته مونږ باندې داسې حال ښکاره شو چې، کوم بنده ته اختيار ورکړی شوی ؤ هغه خپله رسول الله صلی الله عليه وسلم ؤ او ديو بنده نه د حضور ﷺ مراد خپل ذات مبارك ؤ بلاشبه حضرت ابوبكر ﷺ زمونږ ټولو خلقو نه زيات داناؤ (هغوی شروع کې دا راز او پيژندلو چې کوم بنده ته د اختيار ورکولو ذکر کيږي هغه خپله حضور ﷺ دي) (بخاری مسلم)

**حل اللغات:-** ② زَهْرَةِ: أَيْ: بَهْجَتِهَا وَحُسْنِهَا: ددنيا زيب اوزينت او ښائست ③ فَدَيْنَاكَ: مونږ قربان کوو په تا باندې

**تسهيلات: قوله: فَبَكَىٰ أَبُوبَكْرٍ قَالَ: فَدَيْنَاكَ بِآبَائِنَا وَأُمَّهَاتِنَا،**

**د حضرت ابوبكر رضی الله عنه د ژړا وجه:** دَ سورت نصر په نازليدو باندې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه الله تعالی دَيو بنده په دنيا کښې دَ پاتې کيدو يا اوچتيدو اختيار ورکړې دې داحضورپاك دَخپل خان متعلق فرمائيل چه حضورپاك په دعوتی مشن جزيرهٔ عرب کښې دَ پوره کيدو مرحلې ته اورسيدو اوس هغه په زمکه باندې دَ باقی پاتې کيدو په ځائې آسمانونو ته اوچتول پکاردی دې دَپاره چه رفيق اعلی سره ملاقات اوشی دا اشاره او دقيق اوعميق علم باندې صرف ابوبكرصديق ﷺ پوهه شو لهذا په ژړا شو په دې سره صحابه کرامو ﷺ ته معلومه شوه چه په دوی کښې صديق اكبر ﷺ دَ ټولو نه زيات علم والا دې

**[۵۹۵۸] د نبی علیه السلام دآخری مونځ**

| ۵۹۵۸-(۱) [۳] [۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ - صلى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى قَتْلَى أُحُدٍ بَعْدَ ثَمَانِ سِنِينَ، [۳] كَالْمُوَدِّعِ لِلْأَحْيَاءِ وَالْأَمْوَاتِ، [۴] ثُمَّ طَلَعَ الْمِنْبَرَ فَقَالَ: [۵] (إِنِّي بَيْنَ أَيْدِيكُمْ فَرَطٌ، [۶] وَأَنَا عَلَيْكُمْ شَهِيدٌ، [۷] وَإِنَّ مَوْعِدَكُمُ الْحَوْضُ [۸] وَإِنِّي لَأَنْظُرُ إِلَيْهِ وَأَنَا فِي مَقَامِي هَذَا، |
|---|

**ترجمه:** [۱] او حضرت عقبه ابن عامر ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ د اُحد شهيدانو باندې دهغوی دتدفين نه اته ۸ کاله وروسته مونځ وکړو [۳] ديو داسې سړی په شان چې ژوندو اومړو نه رخصت کيږي [۴] بيا منبرته ختو سره مونږ ته خطاب کولو سره وي فرمايل [۵] زه ستاسو مخکې ستاسو امير منزل يم [۶] زه ستاسو شاهد يم [۷] ستاسو سره کړی وعده پوره کولو ځاي حوض کوثر دي او يقين وکړی [۸] زه داوقت هم خپل منبر باندې ناست حوض کوثر وينم

**حل اللغات:-** ① كَالْمُوَدِّعِ: په شان دهغه کس چه رخصتی اخلی، ② فَرَطٌ: دا فَعَلٌ په معنی د فَاعِلٌ دې، ميرمنزل يعنی د راتلونکی لښکر دپاره مخکښې نه د سامان انتظام کونکې.

[۱] اخرجه البخاری فی كتاب المغازی/باب غزوة أحد (رقم-۴۰۴۲) ومسلم فی كتاب الفضائل/باب إثبات حوض نبينا صلی الله عليه وسلم وصفاته (رقم-۳۰ - (۲۲۹۶)

۱ وَإِنِّي قَدْ أُعْطِيتُ مَفَاتِيحَ خَزَائِنِ الْأَرْضِ، ۲ وَإِنِّي لَسْتُ أَخْشَى عَلَيْكُمْ أَنْ تُشْرِكُوا بَعْدِي، ۳ وَلَكِنِّي أَخْشَى عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا أَنْ تَنَافَسُوا فِيهَا» ). ۴ وَزَادَ بَعْضُهُمْ: ( «فَتَقْتَتِلُوا، فَتَهْلِكُوا ۵ كَمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱ اودي کې څه شك شبه نشته چې ماته دزمکي دخزانو کلياني راکړې شوي دي ۲ وزه دي خبري نه خونه ويريږم چې تاسو به ز ما نه وروسته کفر اوشرك اختيار کړئ ۳ البته ما سره داويره ضرور ده چې دُنيا کې به ستاسو دلچسپي زياته شي ۴ **بعضې** رواياتو کي دلته دا الفاظ هم نقل کړې دي اودنيا کې ستاسو دلچسپي دحد نه زياتيدو نتيجه به ..وي چې تاسو به ( دملك و دولت او حکومت او اقتدار آخستوکې) ديو بل قتلول شروع کړې اوبيا به ستاسو خلق هم داسې دهلاکت او تباهي ښکار شي ۵ **څرنګه چې** مخکنی خلق هلاك او تباه شوي ؤ. (بخاري رحمه الله ومسلم رحمه الله)

**حل اللغات**: - ۳ تَنَافَسُوا: أَيْ تَرْغَبُوا: چه تاسو به دلچسپي اومينه محبت اولرئ.

**تسهيلات**:

**قوله**: صَلَّى رَسُولُ اللهِ عَلَى قَتْلَى أُحُدٍ بَعْدَ ثَمَانِ سِنِينَ،

**د درې ورځو څخه پس په قبر د جنازې د مونځ کولو حکم**: دَ تدفين نه پس دَ دريو ورځونه زيات تيريدونه پس په يوقبرباندې دَ جنازه مونځ نه کيږي بل چه دَ چاجنازه شوې وی دَهغه په قبرباندې هم جنازه نه کيږي. دلته چه کوم څه شوی دی دَ حضورپاك دَ خصوصيات نه دی. بعضې عالمانو صلي په معنی دَدعااخستې دې نوبيا خوڅه خبره نشته.

**قوله**: كَالْمُوَدِّعِ لِلْأَحْيَاءِ وَالْأَمْوَاتِ، كَالْمُوَدِّعِ:

**د مړو رخصت کولو مطلب**: ژوندی رخصت کول خو واضح دی اودَمړو دَ رخصت کولو مطلب دادې چه دَمړو په قبرونوباندې راتلل اودَهغوی دَپاره دعاګانې کولودا سلسله اوس ختمه شوه لکه چه هغوی دا تول رخصت کړل

**قوله**: إِنِّي بَيْنَ أَيْدِيكُمْ فَرَطٌ،

**د فرط لغوی تحقيق**: هغه سړی ته وائی چه دَ يوراتلونکی کس دَپاره دَ اول نه دَخائی اوسامان انتظام اوکړی دلته مير منزل يعنی دَ لښکرنه وړاندې تلونکی اوانتظام کونکې سړې مراد دې حضورپاك دپوره امت دَپاره په توګه دَ شفيع المذنبين مخکښې تلې دې

**قوله**: وَأَنَا عَلَيْكُمْ شَهِيدٌ، وَإِنَّ مَوْعِدَكُمُ الْحَوْضُ وَإِنِّي لَأَنْظُرُ إِلَيْهِ وَأَنَا فِي مَقَامِي هَذَا، فَرَطٌ:

**په حديث کښې دشهيد مفهوم**: دَشهيد مطلب دادې چې امت کله په پخوانوامتونو باندې ګواهي ورکوی نوهغه خلق به جرح کوی او وائی به چه زمونږ په زمانه کښې خوداخلق نه وو په مونږ باندې دَدوی ګواهي غلطه ده. دَ دې جرح دتزکيه دَپاره به حضورپاك ګواهي

ورکوی چه زما امت صحیح ونیلی دی لکه چه قرآن کښې دی ﴿لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا﴾ که چرې دَ شهيد معنی حاضر اوناظر وی نو بیاخو دا امت دَخپل نبی نه زیات حاضر اوناظر شو ځکه چه امت خو په ټولو انسانانو باندې ګواه دې او نبی مکرم ﷺ صرف په خپل امت باندې ګواه دې.

**قوله**: وَإِنِّي قَدْ أُعْطِيتُ مَفَاتِيحَ خَزَائِنِ الْأَرْضِ،

**دخزانو څخه مراد**: یعنی دَدنیاخزانې به زما امت ته ملاؤ شی ځکه چه دوی به جهاد کوی نوخزانې به ملاویږی اومال غنیمت به ورته په لاس راځی.

**[۵۹۵۹] د نبي علی عليه السلام دژوند آخري لمحات**

۵۹۵۹-()[۳] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «إِنَّ مِنْ نِعَمِ اللّٰهِ عَلَيَّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تُوُفِّيَ فِي بَيْتِي وَفِي يَوْمِي وَبَيْنَ سَحْرِي وَنَحْرِي، [۳] وَإِنَّ اللّٰهَ جَمَعَ بَيْنَ رِيقِي وَرِيقِهِ عِنْدَ مَوْتِهِ، [۴] دَخَلَ عَلَيَّ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ وَبِيَدِهِ سِوَاكٌ وَأَنَا مُسْنِدَةٌ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۵] فَرَأَيْتُهُ يَنْظُرُ إِلَيْهِ، وَعَرَفْتُ أَنَّهُ يُحِبُّ السِّوَاكَ،

**ترجمه**: [۱] او بي بي عائشه رضی الله عنها وايي [۲] الله تعالى چې خپلو کومو انعاماتو سره زه خصوصی طور سره ونوازلم هغه کې يو داهم دي چې رسول الله ﷺ زما کور کې او زما دنمبر په ورځ وفات شو، حضور ﷺ زما دسيني او اوږی په منځ کې خپل ځان حق تعالى ته وسپارى [۳] او الله تعالى د حضور ﷺ دوفات په وخت زما او دحضور ﷺ لعاب دهن (د خولي ناړی) جمع کړی وي [۴] د هغه صورت داسوی ؤ چې هغه آخري لمحاتو کې زما عزيز ورور عبد الرحمن ابن ابي بکر رضی الله عنه چې ماته راغي نو د هغه لاس کې مسواك ؤ او رسول الله صلى الله عليه وسلم زما سيني سره ځنګ لګولي ناست ؤو [۵] ما وليدل چې د حضور ﷺ نظر بار بار عبد الرحمن طرف ته يا د هغه دمسواك طرفته پورته کيدي زه په دي خبره پوهيدم چې حضور ﷺ به (عام طور سره يا ذائقي د تبديلۍ دپاره خاص طور سره) مسواك ډير خوښوي

**حل اللغات**: - ① سَحْرِي: أَيِ الصَّدْرُ: سينه (د خيټې نه پورته اوسيني نه لاندې حصه مراد ده)، ② نَحْرِي: هُوَ مَوْضِعُ الْقِلَادَةِ مِنْ أَعْلَى الصَّدْرِ: د سيني نه پورته په کوم ځاى چه اميل راځوړند وی هغې ته وائی ③ رِيقِي: أَيْ مَاءُ الْفَمِ: د خولي اوبه يعنی لاړې ④ مُسْنِدَةٌ: تکيه.

[۱] فَقُلْتُ: آخُذُهُ لَكَ؟ فَأَشَارَ بِرَأْسِهِ أَنْ نَعَمْ [۲] فَتَنَاوَلْتُهُ، فَاشْتَدَّ عَلَيْهِ، وَقُلْتُ: أُلَيِّنُهُ لَكَ؟ [۳] فَأَشَارَ بِرَأْسِهِ أَنْ نَعَمْ، فَلَيَّنْتُهُ، فَأَمَرَّهُ [۴] وَبَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ فِيهَا مَاءٌ، فَجَعَلَ يُدْخِلُ يَدَيْهِ فِي الْمَاءِ فَيَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ، [۵] وَيَقُولُ: (لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ، إِنَّ لِلْمَوْتِ سَكَرَاتٍ)، ثُمَّ نَصَبَ يَدَيْهِ، [۶] فَجَعَلَ يَقُولُ: (فِي الرَّفِيقِ الْأَعْلَى). حَتَّى قُبِضَ وَمَالَتْ يَدُهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب مرض النبی صلی الله علیه وسلم ووفاته (رقم-٤٤٤٩) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب فی فضل عائشة رضی الله تعالی عنها (رقم-٨٤ - (٢٤٤٣) واحمد فی المسند: ٤٨/٦

**ترجمه:** [۱] څکه ماترې پوښتنه وکړه چې آیا عبدالرحمٰن نه دا مسواك ستاسو دپاره واخلم حضور ﷺ د سر مبارك په اشاره سره یې وښودل چې هو څینې راوایې خله [۲] ما د عبدالرحمٰن نه مسواك آخستوسره حضور ﷺ ته ورکړې حضور ﷺ وهل وغوښتل د هغه د سخت کیدو په وجه دشوارې یې محسوس کړه ماعرض وکړې آیا ستاسو آسانی دپاره دامسواك خپلو غاښونو سره نرم (پوست) [۳] کړم حضور ﷺ د سر مبارك په اشاره سره یې اجازت راکړه نو ما مسواك نرم کړې او حضور ﷺ هغه مسواك خپلو غاښونو مبارکو باندې راتیروی [۴] بالکل آخري لمحات داسې تیر شو چې هغه وقت، دحضور ﷺ مخې ته د اوبو یو لوښي ایښودل شوی ؤ هغه ابو کې به حضور ﷺ خپل دواړه لاسونه مبارك اچول او لوندولو سره به یې هغه په خپل مخ مبارك راتیر ول [۵] او فرمایل به یې: لااله الاالله: د مرګ په وخت سختي وي بیا حضور ﷺ ددُعا دپاره یا آسمان طرف ته اشاره کولو دپاره لاس مبارك یې پورته کړي [۶] او دا ونیل یې شروع کړه اې الله ! مارفیق اعلی کې شامل کړې تر دې حالـه چې روح مبارك یې پرواز وکړي او دحضور ﷺ لاس مبارك خکته راکوږسو (بخاری رحمه الله)

**حل اللغات:**-⑤ أَلِيْنُهُ: أَيْ: لَيِّنْتُ السِّوَاكَ: آیا زه دا مسواک ستاسو دپاره نرم کړم⑥ فَأَمَرَّهُ: دا د إِمْرَار نه دې، په خله کښې مسواك تاؤ راتاؤ کولو ته وائی.⑦ رَكْوَةٌ: أَيْ: ظَرْفٌ: د اوبو لوښې، پیالې، ⑧ سَكَرَاتِ: د سَكْرَة جمع ده، أَيْ: شَدَائِدَ: سختې، تکلیفونه، ⑨ الرَّفِيقُ الْأَعْلَى: اې الله ، مارفیق اعلی کې شامل کړې، رفیق د لارې ملګری ته وائی (د رفیق اعلی نه مراد هغه ځائې دې چرته چه انبیاء کرام اوسیږی یعنی أَعْلَى عِلِّيِّيْنَ ، یا ددې نه مراد مقام محمود دې، یا ددې نه مراد جنت دې.⑩ مَالَتْ: راکوږ شو (لاس د نبی علیه السلام)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنَّ مِنْ نِعَمِ اللهِ عَلَيَّ،

**د عائشې رضی الله عنها په څلورو خصوصیاتو فخر کول:**

① د نبی علیه السلام وفات د دوی په حجره کښې شوې وو.
② د نبی علیه السلام وفات د دوی په نوبت کښې شوې وو.
③ د نبی علیه السلام وفات د دوی په غیږ کښې شوې وو
④ د نبی علیه السلام دخولې لیاړې د دوی د لیاړو سره یوځائې شوې وو.

## [۵۹۶۰] پیغمبرانو ته د مرګ او ژوند اختیار ملاویدل

۵۹۶۰-()[ه]① وَعَنْهَا، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ②(«مَا مِنْ نَبِيٍّ يَمْرَضُ إِلَّا خُيِّرَ بَيْنَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ). ③ وَكَانَ فِي شَكْوَاهُ الَّذِي قُبِضَ أَخَذَتْهُ بُحَّةٌ شَدِيدَةٌ، فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: ④ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ، ⑤ فَعَلِمْتُ أَنَّهُ خُيِّرَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** ① بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ما د رسول الله ﷺ نه دا واوریدل ② هر نبي ته د هغه په مرض الموت کې د دنيا او آخرت په منځ کې اختيار ورکول کيږي که هغه څه موده دُنيا کې ژوند اختيار کړي که د عالم آخرت سفر اختيار کړي ليکن هميشه داسې وشو چې هر نبي د دُنيا ژوند رد ولو سره الله رب العزت ته تلل اختيار کړل ځکه چې څه الله سره دي اصل نعمت هغه دي او هغه ته دوام او قرار دي ③ بيا چې حضور ﷺ په مرض الموت مبتلا شو او هغه مرحله راغله چې آواز يې سخت دروند شو څرنګه چې د مرګ په وخت ساه يا بلغم حلق کې ومښلي او په دې وجه آواز کې خرهاري او دروند والى پيدا شي نو هغه وخت ما واوريدل چې د حضور ﷺ په ژبه مباركه دا الفاظ ؤو ④ الهٰی! ما هغه په خلقوکي شامل کړی چې تا پرې فضل او انعام کړی دي چې هغه انبياء صديقين شهداء او صالحين دي (داخلق ښه رفيق دي) دي دُعائيه الفاظو نه ⑤ زه پوهه شوم چې حضور ﷺ ته (دُنياوی ژوند او عالم آخرت نه د يو منتخب کولو) اختيار ورکړی شويدي، اوحضور ﷺ دنياوی ژوند پرينبودلو سره عالم آخرت منتخب کړی دی. (بخاری مسلم)

**حل اللغات:-** ① شَكْوَاهُ: أَيْ: فِي مَرَضِهِ: بيماری د نبی عليه السلام. ② بُحَّةٌ: هِيَ شَيْءٌ يَعُوضُ فِي الْحَلْقِ فَيَتَغَيَّرُ لَهُ الصَّوْتُ فَيَغْلُظُ: په حلق کښې توخې شان پيدا کيدل چه آواز ورسره پيړ اوبدل شی

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا خُيِّرَ بَيْنَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ،

**پيغمبرانو څخه د روح قبض کولو اجازت غوښتل:** په دنيا کښې چه څومره هم انسانان راغلی دی دَمرګ په وخت فرښته تول رابنکلوسره اوړی اوهيڅ مهلت نه شی ورکولې صرف انبياء کرام عليهم السلام ته دا اعزاز حاصل دې چه دَمرګ نه مخکښې فرښته دَ الله تعالى پيغام راوړی چه دَ نبی څه خيال دې زما طرف ته راځی که په دنيا کښې پاتې کيدل غواړی؟ تولو پيغمبرانو دَ الله تعالى طرف ته تلل اختيارکړی دی. دا اجازت صرف يو اعزاز اواکرام دې هم دغه معامله حضورپاك سره هم اوشوه لکه څنګه چه په راتلونکی حديث کښې راځی.

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب {فأولئک مع الذين أنعم الله عليهم من النبيين} [النساء: ۶۹] (رقم-۴۵۸۶) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالى عنهم/باب فی فضل عائشة رضی الله تعالى عنها (رقم-۸۶ - (۲۴۴۴)

**[۵۹٦۱] د نبی علیه السلام په وفات د فاطمه رضی الله عنها غم او حزن**

۵۹٦۱-(۱) [۲] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «لَمَّا ثَقُلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَعَلَ يَتَغَشَّاهُ الْكَرْبُ. [۳] فَقَالَتْ فَاطِمَةُ: وَاكَرْبَ أَبَاهُ فَقَالَ لَهَا: [۴] (لَيْسَ عَلَى أَبِيكِ كَرْبٌ بَعْدَ الْيَوْمِ). فَلَمَّا مَاتَ قَالَتْ: [۵] يَا أَبَتَاهُ! أَجَابَ رَبًّا دَعَاهُ، يَا أَبَتَاهُ! مَنْ جَنَّةُ الْفِرْدَوْسِ مَأْوَاهُ، يَا أَبَتَاهُ! إِلَى جِبْرِيلَ نَنْعَاهُ. [٦] فَلَمَّا دُفِنَ قَالَتْ فَاطِمَةُ: يَا أَنَسُ! أَطَابَتْ أَنْفُسُكُمْ أَنْ تَحْثُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - التُّرَابَ» ؟ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضی الله عنه بیان کوی [۲] دوفات په ورځ چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم حالت ډیر بدل شو او د مرض د سختی نه به هر ګړی بیهوشي راتله [۳] نو بي بي فاطمي رضی الله عنها به (بي تابه کیدو سره) دا وئیل های زما بابا جان څرنګه سختي نیولي دي [۴] حضور صلی الله علیه وسلم چې دا واوریدل نو هغه مخاطب کولو سره ورته يي وفرمايل د نن ورځي نه وروسته ستا بابا جان ته هيڅ سختي نشته مطلب داؤ چې سختي د مرض د شدت دوجي نه ده او د دې سختي احساس او اظهار جسم سره د تعلق لرلو په سبب دي ليکن د نن ورځي نه وروسته هر کله چې دي جسم سره تعلق ختم شي او صرف روحاني او معنوي علائق پاتي شي نو بيا به سکون او سکون وي [۵] او بيا چې حضور صلی الله علیه وسلم وفات شو نو د بي بي فاطمي رضی الله عنها د ژبي نه دا الفاظ ووتل اې زما بابا جانه ! الله جل جلاله ته خان ته وبللي او تاسو هغه دعوت قبلولو سره خپل پروردګار ته لاړی اې زما بابا جانه ! اې هغه مقدس ذات ! چې د هغه مستقر جنت الفردوس دي اې زما بابا جانه ! مونږ ستاسو دوفات خبر جبرایل علیه السلام ته رسو [٦] وروسته چې حضور صلی الله علیه وسلم د فن کړل شو نو بي بي فاطمي رضی الله عنها بي اختياره کيدو سره اوويل اې انس رضی الله عنه (او اې د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابي) تاسو خلقو دا څرنګه برداشت کړه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې مو خاوري واچولي (بخاری رحمه الله)

**حل اللغات:-** ① يَتَغَشَّاهُ: أَيْ: يَتَغَطَّى: دَ پټولو په معنی کښې دي (دلته بي هوشه کيدل مراد دی) ② الْكَرْبُ: کرب ناقابل برداشت سخت غم ته وائي. ③ وَاكَرْبَ أَبَاهُ: هايې زما بابا جان څرنګه سختي نيولي دي ④ أَجَابَ رَبًّا دَعَاهُ: اې زما بابا جانه ! الله جل جلاله ته خان ته وبللي او تاسو هغه دعوت قبلولو سره خپل پروردګار ته لاړي. ⑤ مَأْوَاهُ: مستقر او خاني د اوسيدو . ⑥ نَنْعَاهُ: أَيْ: نُظْهِرُ خَبَرَ مَوْتِهِ إِلَيْهِ: مونږ دوفات خبر ورکوو جبرئيل عليه السلام ته ⑦ تَحْثُوا: أَيْ: تَكُبُّوا: تاسو خاوري واړولي

**تسهیلات:**

**قوله: يَتَغَشَّاهُ الْكَرْبُ:**

**په هرې موالمو کښې دفاطمې اظهار غم** :په حضورپاك به چه کله دَ مرض دَ سختوالى نه

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب مرض النبی صلی الله علیه وسلم ووفاته (رقم-٤٤٦٢) ومالک فی الموطا کتاب الجنائز/باب جامع الجنائز (رقم-٤٦) واحمد فی المسند:١٧٦/٦

رچيدل شروع شو نو فاطمة الزهراء رضي الله عنها به فرياد كولو او فرمائيل به ئې "واكرب اباه" افسوس زما دَ باباجان تكليفه. حضرت فاطمه په دريو مراحلو كښې حضورپاك سره په جدا جدا انداز سره دَ غم اظهار فرمائيلې دې.

① و دَ بيمارئ په مرحله كښې

② دَ وفات په مرحله كښې

③ تدفين په مرحله كښې دَ ډيرزيات غم په اندازكښې اظهار فرمائيلې "لىس على ابىك" حضورپاك حضرت فاطمه رضي الله عنها ته تسلي وركړه چه دَنن نه پس به ستا په پلار باندې هيڅ مصيبت نه راځي دا بدنی بوج دې چه كله ختم شو نودَ هميشه دَپاره به ختم شي

**قوله: أَطَابَتْ أَنْفُسُكُمْ:**

**دنبي عليه السلام د قبر سره دغم اشعار وئيل:** يعني اې انس رضي الله عنه ستاسو زړونو دا څنګه برداشت كړه چه په خپل لاسونو باندې مو دَ حضرت په قبر باندې خاورې واچولې حضرت فاطمه رضي الله عنها دَ حضورپاك دَتدفين نه پس قبر له لاړه او په ژړا ژړا ئې دا شعرونه اوونيل

ماذا على من شم تربة احمد ان لا يشم مدي الزمان غواليا

صبت على مصائب لو انها صبت على الايام صرن لياليا

وئيلى شي چه دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها په دې سخت غم كښې دَ حضورپاك دَ تره خوئ ابوسفيان بن حارث دَتسلئ په توګه حضرت فاطمه رضي الله عنها سره داسې تعزيت اوكړو

افاطم ان جزعت فذاك عذر وان لم تجزعي ذاك السبيل

فقبر ابيك سيد كل قبر وفيه سيد الناس الرسول

يوعاشق رسول شاعر په روضهٔ اقدس باندې حاضرى اوكړه نوحضورپاك ئې مخاطب كړو وئې وئيل، ترننه پورې دا اشعار دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم په روضه مباركه باندې ليكلى شوى دى سره دَترجمه اوګورئ:

ياخير من دفنت بالقاع اعظمه فطاب من طيبهن القاع والاكم

**ترجمه:** اې رسول الله صلى الله عليه وسلم دَچا بدن مبارك چه په كولاؤ ميدان كښې دفن كړې شوې دې. دَچا په خوشبوئى سره چه ميدان اوغونډئ خوشبوداره شوې.

نفسي الفداء لقبر انت ساكنه فيه العفاف وفيه الجود والكرم

**ترجمه:** زما ځان دې په دې قبرباندې قربان شي په كوم كښې چه تاسو آرام كوئ. لكه چه په قبركښې شرافت سخاوت اوعظمت موجود دې.

## [٥٩٦٢]د نبی علیه السلام مدینې ته په راتلو د خوشحالۍ لوبې

٥٩٦٢ -() [٧] ١ عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمَدِينَةَ ٣ لَعِبَتِ الْحَبَشَةُ بِحِرَابِهِمْ فَرَحًا بِقُدُومِهِ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. ٤ وَفِي رِوَايَةِ الدَّارِمِيِّ قَالَ: مَا رَأَيْتُ يَوْمًا قَطُّ أَحْسَنَ وَلَا أَضْوَأَ مِنْ يَوْمٍ دَخَلَ عَلَيْنَا فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٥ وَمَا رَأَيْتُ يَوْمًا كَانَ أَقْبَحَ وَلَا أَظْلَمَ مِنْ يَوْمٍ مَاتَ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -.

**ترجمه:** ١ حضرت انس رضي الله عنه وايي ٢ کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په مدینه کې نزول اجلال فرمایلي ؤ (تشریف راوړی ؤ) ٣ نو ټولو خلقو د بې پناه خوشحالۍ اظهار وکړی ددي پورې چې حبشیانو (هم جشن مسرت کولو په طور) د نیزه بازۍ کرتب خو دلی ؤ دا روایت ابوداؤد رحمه الله نقل کړی دي ٤ او دارمی رحمه الله چې کوم روایت نقل کړی دي هغه کې داسې دي چې حضرت انس رضي الله عنه اوویل ما دهغه ورځې نه زیاته حسینه او روښانه ورځ هیڅ کله نه وه لیدلي په کومه ورځ چې مدینه کې زمونږ په منځ رسول الله صلی الله علیه وسلم تشریف راوړی ٥ او ما دهغه ورځې نه زیاته خرابه او تیاره (تاریکه) ورځ بله نه وه لیدلي په کومه ورځ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفات شو

**حل اللغات:-** ① بِحِرَابِهِمْ: د حَرْبَة جمع ده، وَهِيَ رُمْحٌ قَصِيرٌ: وړې نیزې ته وانی ② أَضْوَأَ: أَيْ: نُورِ الظَّاهِرِ: ښائسته او روښانه ورځ. ③ أَقْبَحَ: أَيْ: أَسْوَأَ: خرابه او تیاره ورځ.

١ وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ قَالَ: ٢ لَمَّا كَانَ الْيَوْمُ الَّذِي دَخَلَ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمَدِينَةَ ٣ أَضَاءَ مِنْهَا كُلُّ شَيْءٍ، ٤ فَلَمَّا كَانَ الْيَوْمُ الَّذِي مَاتَ فِيهِ أَظْلَمَ مِنْهَا كُلُّ شَيْءٍ، ٥ وَمَا نَفَضْنَا أَيْدِيَنَا عَنِ التُّرَابِ وَإِنَّا لَفِي دَفْنِهِ، حَتَّى أَنْكَرْنَا قُلُوبَنَا.

**ترجمه:** ١ او د ترمذی روایت کې دي حضرت انس رضي الله عنه اوویل ٢ هر کله چې هغه ورځ راغله چې حضور صلی الله علیه وسلم مدینې ته تشریف راوړی ٣ نو دمدینې هر شی (یعني دروازه او دیوال او نور و...) باندې نور وغوړیدی ٤ او هر کله چې هغه ورځ راغله چې حضور صلی الله علیه وسلم وفات شو نو هر شی (د غم او اندوه) تیاره (تاریکی) کې غرق شو ٥ او د حضور صلی الله علیه وسلم د دفن کولو نه وروسته مونږ د خپلو لاسونو نه خاورې هم لانه وې څنډلي بلکه د حضور صلی الله علیه وسلم د دفن کولو کې مشغول ؤ چې خپلو زړونو کې مو دیوبل نه نا آشنایي محسوسه کړی وه نو معنی دا شوه چې زمونږ د زړونو هغه پاکیزګي او نورانیت چې د ذات رسالت د مشاهدې او صحبت نتیجه کې حاصلیدل. دهغه سلسله منقطع شوی ده. او زمونږ زړونو کې د صدق او اخلاص او مهر و وفا هغه وړینې واله کیفیت باقي نه دي پاتې شوی

[١] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی النهی عن الغناء (رقم-٤٩٢٣) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٣٦١٨) وابن ماجه فی کتاب الجنائز/باب ذکر وفاته ودفنه صلی الله علیه وسلم (رقم-١٦٣١) واحمد فی المسند: ١٦١/٣

**حل اللغات**: -④ وَمَا نَفَضْنَا: دا د نَفْض نه دې، وَهُوَ تَحْرِيكُ الشَّيْءِ لِيَزُولَ مَا عَلَيْهِ مِنَ التُّرَابِ: دڅه څيز ښنډلو ته وائي چه خاوره ترې اوغورزيږي

**تسهيلات**:

**قوله**: حَتَّى أَنْكَرْنَا قُلُوبَنَا،

**د نبي عليه السلام په وفات په روحانيت کښې کمې محسوسول**: رسول الله ﷺ وفات سره دومره روحاني اثر اوشو چه د لاسونونه د خاورې ښنډلونه مخکښې مخکښې د ژوندو خلقو په زړونوباندې اثر اوشو اود مخکښې په شان روحانيت پاتې نه شو نو نن صبا پنځلس سوه کاله پس به د خلقو څه حال وي؟

**[۵۹٦۲] د نبي عليه السلام په تدفين کښې د صحابو اختلاف رائي**

٥٩٦٣-() [۸] ① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: لَمَّا قُبِضَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② اخْتَلَفُوا فِي دَفْنِهِ. فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- شَيْئًا. ③ قَالَ: (« مَا قَبَضَ اللهُ نَبِيًّا إِلَّا فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي يَجِبُ أَنْ يُدْفَنَ فِيهِ »). ④ ادْفِنُوهُ فِي مَوْضِعِ الْفِرَاشِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه**: ① او بي بي عائشه ﷞ وايي رسول الله چې وفات شو او ② د حضور ﷺ د تدفين په باره کې د صحابه ﷡ په منځ کې اختلاف را پيدا شونوابوبکرصديق ﷛ وفرمايل چې ما په دې سلسله کې خپله د رسول الله ﷺ نه يوه خبره آوريدلي وه ③ حضور ﷺ فرمايلي ؤ الله تعالى د هر نبي روح هغه ځاى کې قبض کوي چيرته چې هغه نبي وغواړى يا داچې چيرته الله تعالى د هغه نبي دفن کيدل خوښوي ④ نو حضور ﷺ هغه ځاى کې دفن کول پکار دي چيرته چې حضور ﷺ د مرګ په بستر باندې ؤ اوچيرته چې حضور ﷺ وفات شوى دي (ترمذى)

**تسهيلات**:

**قوله**: اخْتَلَفُوا:

**د نبي عليه السلام په مدفن کښې څلور رائي**: يعنى د حضورپاك د تدفين باره کښې د صحابه کرامو ﷡ په مينځ کښې اختلاف پيدا شو

① نبي عليه السلام په مکه مکرمه کښې دفن کول پکار دى.

① نبي عليه السلام په بيت المقدس کښې دفن کول پکار دى

③ نبي عليه السلام په مدينه کښې بقيع مرقد کښې دفن کول پکار دى.

④ په کوم ځاى کښې چې پيغمبروفات شي هلته دفن کول پکار دى.

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في دفن النبي صلى الله عليه وسلم حيث قبض (رقم-۱۰۱۸) ومالک في الموطا في كتاب الجنائز /باب ما جاء في دفن الميت (رقم-۲۷)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۵۹٦٤] پيغمبر ته دوفات څخه وړاندې د هغه مستقر خودل

۵۹٦۳-() [۱] ۱ وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ۲ «كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ وَهُوَ صَحِيحٌ: ۳ (إِنَّهُ لَنْ يُقْبَضَ نَبِيٌّ حَتَّى يُرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُخَيَّرَ). ۴ قَالَتْ عَائِشَةُ: فَلَمَّا نَزَلَ بِهِ، وَرَأْسُهُ عَلَى فَخِذِي غُشِيَ عَلَيْهِ، ۵ ثُمَّ أَفَاقَ، فَأَشْخَصَ بَصَرَهُ إِلَى السَّقْفِ ٦ ثُمَّ قَالَ: (اللّٰهُمَّ الرَّفِيقَ الْأَعْلَى). ۷ قُلْتُ: إِذَنْ لَا يَخْتَارُنَا.

**ترجمه:** ۱ د بي بي عائشي رضي الله عنها بيان دي ۲ د رسول الله صلى الله عليه وسلم مرض الموت کې مبتلا کيدو نه مخکې د خپلي تندرستى په زمانه کې به يي فرمايل ۳ د هيڅ نبي روح هغه وقته پورې نه قبض کيږي څو پورې چې جنت کې د هغه مستقر يعنى هغه منازل عاليه چې د هغه دپاره جنت کې مخصوص دي هغه ته ښودلو سره هغه ته اختيار ورنکړو شي چې که اوس لا نور دُنيا کې وسيدل غواړي يا که زمونږ بارګار ته راځي، ۴ د دي نه وروسته بي بي عائشي رضي الله عنها بيان وکړى هر کله چې مرض الموت کې د حضور ﷺ دوفات وخت نژدې راغى نو هغه وخت د حضور ﷺ سر مبارك زما په ورانه ؤ او د مرض د شدت نه حضور ﷺ هر کړى بيهوشه کيدى ۵ بيا خل چې هوش کې راغې نو حضور ﷺ چت يعنى آسمان طرف ته نظر پورته کړ يعنى د آسمان وخواته يي وکتله ٦ وي فرمايل الهٰى ! زه رفيق اعلىٰ خوښوم (ما رفيق اعلىٰ کې شامل کړى) ۷ ما د حضور ﷺ دا الفاظ آوريدو سره اوويل اوس حضور ﷺ زمونږ يعنى د دُنيا ژوند ناخوښه کړى دي او دعالم آخرت ژوند يي اختيار کړى دي

**حل اللغات:** - ① غُشِيَ: أَيْ: أُغْمِيَ: بي هوشى پرې راغله ② أَفَاقَ: د بې هوشئ نه په هوش کښې راتلو ته وائى ③ فَأَشْخَصَ: أَيْ: رَفَعَ بَصَرَهُ: نظر ئې اوچت کړو.

۱ قَالَتْ: وَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَدِيثُ الَّذِي كَانَ يُحَدِّثُنَا بِهِ وَهُوَ صَحِيحٌ فِي قَوْلِهِ: ۲ (إِنَّهُ لَنْ يُقْبَضَ نَبِيٌّ قَطُّ حَتَّى يُرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ يُخَيَّرَ) ۳ قَالَتْ عَائِشَةُ: فَكَانَ آخِرُ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۴ قَوْلَهُ: (اللّٰهُمَّ الرَّفِيقَ الْأَعْلَى)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ څکه چې ما ته هغه ارشاد ګرامى رایاد شو چې حضور ﷺ د تندرستئ په زمانه کې فرمايلي ؤ ۲ چې د هيڅ نبى روح هغه وقته پورې نه قبض کيږي څو پورې چې جنت کې د هغه مستقر ورته ښودلو سره اختيار ورنکړو شى نو د حضور ﷺ آسمان طرف ته کتل يعنى په جنت کې خپل مستقر خاي ليدل ؤ او داللهم رفيق الاعلىٰ الفاظ د حضور ﷺ ددې فيصلي اعلان دي چې دحاصل شوى اختيار لاندې ما د دُنيا ژوند پرېښودو سره عالم

---

[1] اخرجه البخارى فى كتاب الرقاق/باب من أحب لقاء الله أحب الله لقاءه (رقم-۶۵۰۹) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فى فضل عائشة رضى الله تعالى عنها (رقم-۸۷ - (۲٤٤٤)

آخرت خوښ کړی دی[۳] بي بي عائشه رضي الله عنها بيان کوي د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ژبي مبارکي نه چې کوم آخری الفاظ وختل[۴] هغه دا اللهم رفيق الاعلى الفاظ ؤ (بخاری مسلم)

**تسهيلات:**

**نوټ:** د ګرانو ټکو تشريح په حل اللغات کښې شوې ده اوباقي د حديث مفهوم د حديث د تشريحی ترجمې څخه واضح دی.

**[۵۹۶۵] په مرض الوفات کښې د زهر اثر محسوسول**

| |
|---|
| ۵۹۶۵-()[۱۰][۱]وَعَنْهَا، قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ: [۲](يَا عَائِشَةُ! مَا أَزَالُ أَجِدُ أَلَمَ الطَّعَامِ الَّذِي أَكَلْتُ بِخَيْبَرَ، [۳]وَهَذَا أَوَانُ وَجَدْتُ انْقِطَاعَ أَبْهَرِي مِنْ ذَلِكَ السُّمِّ» ) رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |

**ترجمه:**[۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي رسول الله ﷺ به خپل دوفات مرض کې (ماته) فرمايل [۲] ې عائشي رضي الله عنها! خيبر کې چې ما کوم زهر آلود طعام خوړلی ؤ د هغه مضر اثرات خو مې هروخت محسوسول [۳] اوس دي مرض کې راته داسې معلوميږي چې د هغه زهر و د اثر نه به زما دزړه رګ پريکړل شي. (بخاری)

**حل اللغات:**- ① أَلَمَ: درد اوتکليف ته الم وائي. ② أَوَانُ: أي زَمَانُ: يعنى په دې وخت کښې. ③ انْقِطَاعَ: پريکول، کټ کيدل. ④ أَبْهَرِي: وَهُوَ عِرْقٌ يَتَعَلَّقُ بِهِ الْقَلْبُ: د زړه رګ (چه ددې په شليدو سره مرګ واقع کيږی).

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا أَزَالُ أَجِدُ أَلَمَ الطَّعَامِ الَّذِي أَكَلْتُ بِخَيْبَرَ،

**د خيبر د زهرو په وجه د نبی عليه السلام وفات:** دجنګ خيبر په موقع باندې يويهودی ښځې د چيلئی په غوښه کښې زهرملاوولوسره حضوراکرم ﷺ باندې خوړلې وو الله تعالى دزهرو اثر نه کولوحکم ورکړو چنانچه ددې اثر يومقرروخت پورې محدود پيمانه باندې موقوف شومګر کله چه د حضورپاك د ژوند ورځې پوره شوې نوالله تعالى ددغه زهرو پوره اثر ظاهرکړو په کوم سره چه دحضورپاك د سا رګ کټ شواووفات شو دغه شان په خاموش زهرو سره د صديق اکبر رضي الله عنه مرګ هم واقع شودادکامل رفاقت طرف ته اشاره ده

**قوله:** وَهَذَا أَوَانُ وَجَدْتُ انْقِطَاعَ أَبْهَرِي مِنْ ذَلِكَ السُّمِّ.

**د ابهر رګ په تفسير کښې دوه اقوال:** ①دا د هغه رګ نوم دی دکوم تعلق چه زړه سره دی دهغې په کټ کيدو سره سړی مړکيږی دی ته د سا رګ وائی

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب مرض النبی صلی الله علیه وسلم ووفاته (رقم-۴۴۲۸)وابوداود فی کتاب الدیات/باب فیمن سقی رجلا سما أو أطعمه فمات أیقاد منه (رقم-۴۵۱۳) واحمد فی المسند:۱۸/۶

ملاعلی قاری ﷫ دَدې رګ دویم تفسیر داکړې دې چه دا رګ په بدن کښې دَ قدم پورې لاندې تلې دې. بیا دَدې نه واړه واړه رګونه پوره بدن کښې خواره شوی دی.

**د رګونو په نومونو کښې دوه اقوال:** ① یوقول دا دې چې دا رګ چه کله په دماغو کښې وی نودې ته نامه وائی کله چه دا رګ مرئی ته راځی نودې ته ورید وائی کله چه دا رګ دَمرئی نه لاندې سینې ته رسی نودې ته ابهر وائی. کله چه دا رګ ښکته خپې ته ځی نو دې ته صافن وائی.

② بعضې وئیلی دی چه کله دا رګ سټ کښې وی نو دې ته اُبهر وائی. کله چه په مټ او زنګون کښې وی نودې ته اکحل وائی کله چه په خپه کښې وی نودې ته عرق النساء وائی بهر حال هم دغه رګ دَ سا دې.

**[۵۹٦٦] مرض الوفاة کښې د خط لیکلو اراده کول**

٥٩٦٦-() [٥] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ② «لَمَّا حُضِرَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ وَفِي الْبَيْتِ رِجَالٌ، فِيهِمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، ④ قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (هَلُمُّوا أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ). ⑤ فَقَالَ عُمَرُ: قَدْ غَلَبَ عَلَيْهِ الْوَجَعُ، وَعِنْدَكُمُ الْقُرْآنُ، ⑥ حَسْبُكُمْ كِتَابُ اللّٰهِ، فَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْبَيْتِ وَاخْتَصَمُوا،

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس ﵄ وایي ② د یوم وفات یعنی دوشنبه(پیر) نه درې ورځې مخکې د زیارت (جمعرات) په ورځ هغه وخت چې رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې د شدید مرض غلبه وه ③ او کور کې د حضور ﷺ دمرض وبستر ته نژدې حضرت عمر خطاب ﵁ سره ډیر خلق موجود ؤو ④ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نا به بره وفرمایل راوړی چې زه ستاسو دپاره یو تحریر ولیکم چې ددې نه وروسته ستاسو دګمراهی څه سوال پیدا نشی ⑤ حضرت عمر ﵁ دې خبرې اوریدوسره هلته موجود خلقو ته اوویل دا وخت حضور ﷺ باندې دمریضی شدیده غلبه ده هسې تاسو خلقو سره قرآن مجید دې ⑥ او تاسو ته (صراط مستقیم باندې ګامزن کیدو دپاره) د الله تعالی دا کتاب ډیر کافی دې لیکن هغه خلق چې د اهل بیتوڅخه هم ؤ او دنورو صحابه ﷺ ؤ نه هم او هغه وخت کور کې موجود ؤ دې مسئله کې خاموشی اختیارولو په ځاې خپلو کې بحث مباحثه کول شروع کړل.

**حل اللغات:** - ① هَلُمُّوا: أَيْ تَعَالَوْا: راشئ. ② الْوَجَعُ: درد، تکلیف.

① فَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ: قَرِّبُوا يَكْتُبْ لَكُمْ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ② وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ مَا قَالَ عُمَرُ: ③ فَلَمَّا أَكْثَرُوا اللَّغَطَ وَالِاخْتِلَافَ، ④ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (قُومُوا عَنِّي») ⑤ قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ:

اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب مرض النبی صلی الله علیه وسلم ووفاته (رقم-٤٤٣٢) ومسلم فی کتاب الوصیة/باب ترک الوصیة لمن لیس له شیء یوصی فیه (رقم-٢٠ - (١٦٣٧) واحمد فی المسند:١/٢٢٢

فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ: [٦] إِنَّ الرَّزِيئَةَ كُلَّ الرَّزِيئَةِ مَا حَالَ بَيْنَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَبَيْنَ أَنْ يَكْتُبَ لَهُمْ ذٰلِكَ الْكِتَابَ لِاخْتِلَافِهِمْ وَلَغَطِهِمْ.

**ترجمه:** [۱] هغوی کې ځنې خلقو داخبره کوله چې د ليکلو سامان راوړلو سره مخې ته اېښودل پکار دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ستاسو دپاره څه تحرير مرتب کړي [۲] او څه خلقو هغه خبره کوله کومه چې حضرت عمر ﷺ کړې وه چې د مرض شدت ليدو سره دا وخت حضور ﷺ ته څه زحمت نه دي ورکول پکار [۳] اوبيا چې د هغه خلقو د اختلاف رايه اظهار زياتيدي او کافي شور وشغب جوړ شو [۴] نو حضور ﷺ وفرمايل بنه اوس تاسو خلق زما نه لاړ شئ ما دڅه شي ليکلو اراده ترک کړې ده ځکه چې د کتاب وسنت موجودګي به ستاسو د رهنمايي دپاره کافي وي، [۵] عبيدالله ﷫ چې حضرت ابن عباس ﷠ نه د دې حديث راويت کوي وايي چې حضرت ابن عباس ﷠ به «دا واقعه بيانولو سره» ونيل مصيبت دي پوره مصيبت چې د دې خلقو د اختلاف او شوربه صورت کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د هغوی ﷺ دوصيت نامه ليکلو دارادې په منځ کې حائل شوی ؤ «کاش چې هغه خلقو دغه شان د اختلاف اظهار او شور وشغب نه کولي نو حضور ﷺ به څه داسې وصيت نامه ضرور مرتب فرمايلي وه چې په هره مرحله به يې زمونږ رهنمايي کوله»

**حل اللغات:** - ③ قَرِّبُوا: رانزدې کړئ «يعني دوات اوقلم راوړئ» ⓜ اللَّغَطُ: أَيْ: الصَّوْتُ الَّذِي لَا يُفْهَمُ: دا هغه شور ته وائي دکوم مفهوم چه په پوهه کښې نه راځي صرف دَ شور آوازونه اوريدلې شي ⑤ الرَّزِيئَةُ: أَيِ الْمُصِيبَةُ: مصيبت ته رزيه وائي يعني مکمل مصيبت هغه وخت راغلې وو

[۱] وَفِي رِوَايَةِ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي مُسْلِمٍ الْأَحْوَلِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: [۲] يَوْمُ الْخَمِيسِ، وَمَا يَوْمُ الْخَمِيسِ؟ [۳] ثُمَّ بَكَى حَتَّى بَلَّ دَمْعُهُ الْحَصَى. [۴] قُلْتُ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ! وَمَا يَوْمُ الْخَمِيسِ؟ [۵] قَالَ: اشْتَدَّ بِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَجَعُهُ فَقَالَ: [٦] («ائْتُونِي بِكَتِفٍ أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَا تَضِلُّوا بَعْدَهُ أَبَدًا»). [٧] فَتَنَازَعُوا وَلَا يَنْبَغِي عِنْدَ نَبِيٍّ تَنَازُعٌ.

**ترجمه:** [۱] او دسيلمان ابن مسلم احول ﷫ «چې ثقات او د دين د آئمه ؤ نه دي» روايت کې داسې دي چې حضرت ابن عباس ﷠ اوويل [۲] «آه» د زيارت «جمعرات» ورځ هغه د زيارت ورځ څه عجيبه وه هر کله چې يوه زبر دسته الميه واقع شوی وه، [۳] او دې ويلو سره هغه په ژړاسو او دونه يې وژړل چې هلته پرتې شګې هم د هغه په وښکو سره لندې شوې [۴] ما عرض وکړې «راوی وايي» ابن عباس ﷠! د کوم زيارت دورځ ذکر دي او په هغه ورځ څه شوی ؤ چې تاسو دومره آفسوسناک آنداز کې د هغه بيان کوئ [۵] حضرت ابن عباس ﷠ وفرمايل دا دهغه زيارت «جمعرات» ورځې ذکر دي هر کله چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم مريضي ډير خطر ناک صورت حال اختيار کړی ؤ او حضور ﷺ فرمايلي ؤو، ماته دوږۍ هډوکي راوړی چې زه ستاسو دپاره يوه داسې نوشته وليکم چې د هغه نه وروسته تاسو هيڅ کله ګمراه نه شي [٧] هغه وخت حضور ﷺ سره موجود خلقو داخبره آوريدو سره د

اختلاف او نزاع اظهار شروع كړى حالانكه ديو نبى په مخكې د اختلاف او نزاع اظهار مناسب نه دي

**حل اللغات:-** ⑨ بَلَّ دَمْعُهُ الحَصَى: بل لمد يدو ته وائى اودمع اوښكو ته وائى اوالحصى وړو كاڼوته وائى يعنى د هغوى په اوښكو كاڼړى لامده شو. ⑩ بكِيف: د چيلئ د اوګي هډوكي.

[١] فَقَالُوا: مَا شَأْنُهُ؟! أَهَجَرَ؟[٢] اسْتَفْهِمُوهُ، فَذَهَبُوا يَرُدُّونَ عَلَيْهِ.[٣] فَقَالَ: ((دَعُونِي، ذَرُونِي،[٤] فَالَّذِي أَنَا فِيهِ خَيْرٌ مِمَّا تَدْعُونَنِي إِلَيْهِ)). [٥] فَأَمَرَهُمْ بِثَلَاثٍ: فَقَالَ: [٦] ((أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ، [٧] وَأَجِيزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ أُجِيزُهُمْ)). [٨] وَسَكَتَ عَنِ الثَّالِثَةِ، أَوْ قَالَهَا فَنَسِيتُهَا، [٩] قَالَ سُفْيَانُ: هَذَا مِنْ قَوْلِ سُلَيْمَانَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] هغوى كې څه خلقو ويلى ؤ چې خبره د حضور ﷺ د كوم حالت غمازه ده؟ آيا حضور ﷺ دُنيا پريږدي [٢] حضور ﷺ نه معلومول پكار دي چې تاسو ﷺ څه وايئ او ستاسو ﷺ وينا څه ده؟ او بيا هغوى كې بعضې خلقو حضور ﷺ سره تكرار شروع كړى ؤ. [٣] آخر رسول اكرم ﷺ وفرمايل ما په خپل حالت پريږدي يعنى دا وخت زما مخكې شور ماشور مه كوى او ما نورو خبرو كې مه مبتلا كوئ [٤] ځكه چې داوقت زه كوم حالت كې يم د هغه حالت نه بهتر اوافضل دي چې هغه طرف ته تاسو ما متوجه كوى [٥] دي نه وروسته چې خلقو بحث او تكرار ختم كړى او ذات رسالت ته متوجه شو نو حضور ﷺ ورته د درې خبرو حكم وكړو ، [٦] ① يو خو داچې مشركان د جزيره عرب نه وباسى [٧] ② دويم داچې د نورو ملكونو او حكومتونو كوم قاصدان راشي نو هغه سره دعزت او احترام سلوك كوى ځرنګه چې به ما كوى. [٨] ③ او دريمه خبره باندې ابن عباس رضي الله عنهما (يا خو دهيريدو په وجه يا دلنډيدو په خاطر) خاموشى اختيار كړه يا داچې ابن عباس رضي الله عنهما هغه دريمه خبره هم بيان كړى وه ليكن ما نه هيره شوه [٩] سفيان ابن عيينه رحمه الله وايي دا الفاظ (چې ابن عباس رضي الله عنهما خاموشى اختيار كړه يا داچې ما نه هيره شوه) دسليمان احول رحمه الله دي. (بخارى رحمه الله و مسلم رحمه الله)

**حل اللغات:-** ⑧ أَهَجَرَ: آيا پريږدى (نبى عليه السلام دې دنيا لره). ⑨ دَعُونِي: أي اتْرُكُونِي: پريږدئ ما (په خپل حال) ⑩ ذَرُونِي: دا هم د دَعُونِي په معنى كښې دې او دهغې دپاره تاكيد دې. ⑪ أَجِيزُوا: أَيْ: أَكْرِمُوا: عزت كوئ.

**تسهيلات: قوله: أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا:**

**د خط په مضمون كښې اختلاف:** يعنى يو كاغذ راوړئ دې دپاره چه زه ستاسو دپاره يو خط اوليكم دې دپاره چه تاسو ګمراه نه شئ. دامشهور حديث دې چه دحديث قرطاس په نوم باندې مشهور دې اوس سوال دادې چه دا ليك د كوم څيز سره متعلق وو؟ په دې كښې څو اقوال دى مګر په خلقو كښې مشهور هم دغه دى چه خلافت سره متعلق داتحرير وو سره دَدې چه ملاعلى قارى رحمه الله دې ته ډير بعيدوئيلي دي.

**د خط د مضمون باره کښې د شیعه ګانو دعوی**:شیعه ګان ډیر شور کوی چه دلته دَ حضرت علی ﷺ دَپاره دَخلافت وصیت لیکلې شو مګر حضرت عمر ﷺ پرینخودو.

**د شیعه ګانو دعوی تردید**: ① تیك ده دغه وخت حضرت عمرفاروق ﷺ دَ لیکلونه منع کړو نودې نه پس خو هم رسول الله ﷺ تر دریو ورځوپورې په دنیاکښې موجود وو نوبیاکوم یوڅیز مانع جوړشو، دا واقعه دَ جمعرات یعنی زیارت دَ ورځې ده او حضورپاك درې ورځې پس دَ پیر په ورځ وفات شوې وو که چرته دا څه ضروری اوواجب حکم وو نوحضورپاك به روستو بیالیکلې وو

② شیعه ګان خووائی چه حضرت علی ﷺ ته غدیر خم کښې خلافت ملاؤ شوې وو بیا دلته کوم یوخلافت ملاویدونکې وو کوم چه شیعه ګان ژاړی؟

③ دادې چه دَدغه لیك په منع کولوکښې حضرت عمرفاروق ﷺ یوازې خو نه وو په کورکښې دَ اهل بیت نور خلق هم وو نوصرف حضرت عمر فاروق ﷺ ولې په نښه کولې شی دَحضرت عمر فاروق ﷺ خو به دا خیال وی چه شریعت مکمل شوې دې قرآن نازل شوې دې دَ احادیثو ذخیره موجود ده اوس هیڅ ضروری کارباقی پاتې نه دې دکوم لیکل چه دې وخت کښې ضروری وی. بل طرف ته حضورپاك ته تکلیف کیدلو دَدې وجې نه عمر فاروق ﷺ منع کړو. په دې نیکه اراده کښې په هغه باندې لعن طعن کول داسې دی لکه چه شاعر اوونیل:

فعين الرضا عن كل عيب كليلة ولكن عين السخط تبدي المساويا

**ترجمه** یعنی چه کله نیت صفا وی نوسترګې دَهرې بدئی نه ړندیږی لیکن که نیت خراب وی نودَسترګو په وړاندې صرف بدئی وی.

④ دادَ خلافت دَ لیکلو معامله وه مګر دَ حضورپاك رائې بدله شوه اودادَ خلافت لیکلو اراده دَ حضرت علی ﷺ دَپاره نه وه بلکه دَحضرت ابوبکرصدیق ﷺ دَپاره وه په کوم چه څومره روایات واضح دلالت کوی لکه "يأبى الله والمؤمنون الا ابابكر" که چرې حضورپاك دَ حضرت ابوبکرصدیق ﷺ دَپاره دَ خلافت تحریر لیکلو اودَهغې نه پس شیعه ګانوانکارکولو نوشیعه ګان به ډېل کافران جوړیدل. شیعه روافض له خودَ حضرت عمر فاروق ﷺ شکریه اداکول پکاردی چه هغوی دَ ډبل کافرانو جوړیدونه بچ کړل. اوس دوی هم سنګل کافران پاتې شو بهر حال دَ صحابه کرامو رائې سره دَحضورپاك رائې بدله شوه. هسې خو هم موافقات عمر مشهور دی داهم دَموافقات عمر نه یودې چونکه دَ الله تعالی په نیز دا منظور وو چه دَ خلافت معامله داسې حل شی چه آزادانه توګه باندې ټخپله مسلمانان دَدې فیصله اوکړی اوابوبکر ﷺ ټخپله مسلمانان خوښ کړی. ټخپله حضورپاك اوفرمائیل الله تعالی او مسلمانان دَ ابوبکرصدیق نه بغیر نور څوك نه خوښوی.

**دعمر رضی الله په منع کولو اعتراض:** دحضوراکرم ﷺ چه کله حکم وو نوعمر فاروق رضی الله عنه ولې انکاراوکړو؟ ولې دا ناجائز نه وو؟

**د اعتراض جواب:** حضرت عمرفاروق رضی الله عنه د رسول الله ﷺ د راحت په غرض سره انکاراوکړو اومنع ئې کړو که چرې دانقصان وې اوناجائز وې نو صلح حدیبیه کښې چه کله حضرت علی رضی الله عنه ته حضورپاك دمعاهده دتحریر نه څه الفاظ ورانولو دپاره اوفرمائیل نوحضرت علی رضی الله عنه ولې انکاراوکړو؟ هغه انکارخوددې انکارنه زیات وو د شیعه ګانو په نیز هلته خو هیڅ اونه شو اودلته هرڅه کیږی دا بغض اوعناد ولې دې؟

**د ابن عباس د ژړا وجه:** د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ژړل د حضورپاك آخری ورځې یاد راتلوسره وو په دې نه وو چه لیکلې ولې اونه شو اوکیدې شی چه دڅه بل څه وجې نه ئې ژړلې وی د ژړا اسباب خومختلف کیدې شی

**قوله:** بِكَتِفٍ:

**د لیکلودپاره د اوږې د هډوکی استعمال:** په هغه زمانه کښې کاغذ نه وو څرمن یا پوستکی یا لرګی یا کاڼړی یا هډوکی باندې به لیکل کیدل دلته هم دغه هډوکي مراد دې د چیلئی د متې هډوکې پلن وی کوم چه د لیکلودپاره مناسب وی د اوګې دویم هډوکې هم مراد کیدې شی

**قوله:** أَهَجَرَاسْتَفْهِمُوهُ:

**د مذکوره لفظ د ضبط تحقیق:** اهجر لفظ کښې صحیح روایت هم دغه دې چه همزه استفهام موجود دې په دې باندې فتحه ده په هاء باندې هم زبر دې او جیم او راء باندې هم فتحه ده

**دهجر په معنی کښې اقوال:** ① دد لفظ یو دا مطلب بیانولې شی چه خلقو اووئیل آیا حضرت ګډې وډې خبرې کوی؟ په څه بحرانی کیفیت کښې راګیر دې؟ په څه هذیان کښې مصروف دې؟ دا مفهوم د نبی معصوم باره کښې بالکل غلط دې اونه داسې څه نسبت مسلمان د خپل پیغمبر باره کښې کولې شی نوڅه به په امیرالمؤمنین سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه باندې دا الزام اولګوی یا په یوصحابی باندې څه بهتان اوتړلې شی شیعه ګانو ددې لفظ څخه دا مطلب اخستې دې اوحضرت عمر رضی الله عنه یو مورد اعتراض ګرځولې دې چې دوی نبی علیه السلام ته دا د ګډو وډو ونیلو نسبت کړې دې

**د مذکوره قول تضعیف:** خودا معنی د شیعه ګانو د شیخینو سره په عداوت او دښمنی باندې مبنی معنی ده هرکله چې یو لفظ په یوصحیح معنی باندې حمل کولو کښې څه بعد نه وی نو ولې غلطه معنی باندې حمل کولې شی ددې لفظ په صحیح معانیو باندې د حمل کولو ګنجائش شته کوم چې لاندې ذکر کولې شی

② دعربو محاوره او عربو د دستور مطابق کلام دې په کوم کښې چه خبرې خوکیږې مګر په پوهه کښې نه راځي داسې کلام کولو کښې د مریض څه توهین او تحقیر څه اړخ نه وی بلکه د تبې د سختنی د وجې نه بعضې وخت مریض داسې قسم کلام کوی دې ته پښتو کښې ګنګوره وائی مطلب دادې چه ویونکې وائی چه د څه پوهیدلو کوشش اوکړه نبی مکرم ګنګوره فرمائی ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کښې لیکلی "والمراد به هنا ما يقع من كلام المريض مما لا ينتظم" داکلام په حقیقت کښې د قاضی عیاض دې سره د دې چه دا هم رد کړې شوې دې مګر د دې توجیهه نه بهتر توجیهه نشته دې دا د قبلو خلق ډیر نه پیژنی
③ داکلام په استفهام انکاری باندې محمول دې او د دې کلام کونکې هغه خلق راتی او وائی چه آیا نبی مکرم څه غلطه خبره کوی یا د څه بحرانی کیفیت خبره کوی؟ یا څه فضول خبره کوی؟ داسې نه ده بلکه د نبی معصوم کلام دې دا واورئی او په دې باندې د پوهیدلو کوشش اوکړئی

**قوله: يَرُدُّونَ عَلَيْهِ:**

**د مذکوره قول مطلب:** یعنی صحابه او اهل بیت چه په دغه کور کښې موجود وو هغوی به د حضورپاك کلام د هغوی طرف ته واپس راګرځولو چه د دې کلام ضرورت نشته دې ګورئی دا د عام اهل بیت او کور کښې د موجود صحابه کرامو خبره ده په دې کښې خو تصریح شته او عمر فاروق خو صرف اشاره کړې ده

**[٥٩٦٧] دوحي د نزول د منقطع کیدو غم**

| ٥٩٦٧-( ) [٣] ① وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ② قَالَ أَبُو بَكْرٍ لِعُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- بَعْدَ وَفَاةِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ③ انْطَلِقْ إِلَى أُمِّ أَيْمَنَ نَزُورُهَا كَمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَزُورُهَا، ④ فَلَمَّا انْتَهَيْنَا إِلَيْهَا بَكَتْ. فَقَالَا لَهَا: مَا يُبْكِيكِ؟ ⑤ أَمَا تَعْلَمِينَ أَنَّ مَا عِنْدَ اللَّهِ خَيْرٌ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضي الله عنه بیان کوي ② د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات نه وروسته یوه ورځ حضرت ابوبکر رضي الله عنه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته اوویل ③ راځه چې اُم ایمن رضي الله عنها ته ور شو او د هغه زیارت وکړي څرنګه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به د هغه ملاقات ته تشریف وړی ④ نو مونږ دري سره یعني زه او حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه، اُم ایمن رضي الله عنها ته ورسیدو هغه زمو لیدو سره په ژړا شوه حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنه دواړو ورته اوویل ولي ژاړی ⑤ آیا تا نه معلومه نه ده چې د الله جل جلاله د رسول صلی الله علیه وسلم دپاره د الله جل جلاله په نزد درجات او مراتب او اعزاز د انعام په صورت کي، چې څه دي هغه بهتر نه بهتر دي

**حل اللغات:** - ① انْطَلِقْ: راځه چه لاړ شو

اخرجه مسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل أم أيمن رضى الله عنها (رقم ١٠٣ (٢٤٥٤) وابن ماجه في كتاب الجنائز/باب ذكر وفاته ودفنه صلى الله عليه وسلم (رقم -١٦٣٥)

[۱] قَالَتْ: إِنِّي لَا أَبْكِي أَنِّي لَا أَعْلَمُ أَنَّ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ لِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] وَلَكِنْ أَبْكِي أَنَّ الْوَحْيَ قَدِ انْقَطَعَ مِنَ السَّمَاءِ، [۳] فَهَيَّجَتْهُمَا عَلَى الْبُكَاءِ، فَجَعَلَا يَبْكِيَانِ مَعَهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] أم يمن رضي الله عنها اوویل زما د ژړا سبب دانه دي چې زه دي خبري نه لاعلمه يم چې د الله تعالی په نزد رسول الله صلی الله علیه وسلم دپاره چې څه دي هغه بهتر نه بهتر دي (خکه چې داخو بالکل ظاهر شی دي او هر سړی پرې پوهيږي) [۲] بلکه زه ځکه ژاړم چې آسمان نه دوحي راتلو سلسله ختمه شوې ده (او مونږ دُنيا واله د هغه د برکتونو نه محروم شوی يو) [۳] د أم ايمن رضي الله عنها دي الفاظو حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه باندې هم رقت وغوروی او هغه دواړه حضرات هم په ژړا شول. (مسلم رحمه الله)

**حل اللغات:** -(۳) فَهَيَّجَتْهُمَا: أي: فَحَمَلَتْهُمَا: نو ما هغوی دواړه په ژړا باندې شروع کړو

**تسهيلات:**

**قوله:** تَزُورُهَا:

**دام ايمن تعارف:** ام ايمن رضي الله عنها دَ حضورپاك رضاعي مور ده او دَحضرت اسامه رضي الله عنه مور بی بی ده. دادَ خواجه بدالله وينځه وه. کله چه دَ بی بی آمنه انتقال اوشو نودَمدينې منورې نه حضورپاك ام ايمن خپل ځان سره کړو مکې مکرمې ته ئی راوړلې وو. دَ ام ايمن رضي الله عنها اصل نوم برکه وو.

**شيخين او دام ايمن زيارت ته تلل:** دا حضورپاك ته دَميراث په توګه ملاؤشوه نوحضورپاك هغه آزاده کړه. حضورپاك به دَدې ډير زيات تعظيم توقير اوعزت اواحترام کولو هم دَدې احترام دَوجې نه حضرت ابوبکر صديق حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما دَدې احترام کولو اوکله کله به ملاقات له ورتلل. په زيربحث حديث کښې هم دَدې بيان دي. حضرت ام ايمن رضي الله عنها يوه داسې دَدردنه ډکه جمله اداکړه چه دواړه خلفاء ئی بنه اوژړول اوپخپله ئی هم اوژړل

**[۵۹٦۸] د مسجد نبوی صلی الله علیه وسلم په منبر آخري خطبه**

۵۹٦۸ -(۱) [۳] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ، [۳] وَنَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ، عَاصِبًا رَأْسَهُ بِخِرْقَةٍ، [۴] حَتَّى أَهْوَى نَحْوَ الْمِنْبَرِ، فَاسْتَوَى عَلَيْهِ وَاتَّبَعْنَاهُ، قَالَ: [۵] (وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنِّي لَأَنْظُرُ إِلَى الْحَوْضِ مِنْ مَقَامِي هَذَا) [٦] ثُمَّ قَالَ: (إِنَّ عَبْدًا عُرِضَتْ عَلَيْهِ الدُّنْيَا وَزِينَتُهَا، فَاخْتَارَ الْآخِرَةَ)

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعيد خدری رضي الله عنه وايي [۲] رسول الله صلی الله علیه وسلم دوفات په مرض کې (يوه ورځ) د خپلې حجرې نه وتلو سره مسجد نبوی صلی الله علیه وسلم ته تشريف راوړی چيرته چې مونږ (دمخکې نه) ناست وُو [۳] هغه وخت حضور صلی الله علیه وسلم خپل سر مبارك په کپړه

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم باب باب (رقم -۳٦۵۹) واحمد فی المسند: ۹۱/۳

تړلی ؤ څرنګه چې د سردرد والامريض خپل سر تړی، [۲] بيا حضور ﷺ منبر طرف ته لاړلو او په هغه باندې اودريدلو حضور ﷺ سره مونږ هم مخکې کيدو سره د حضور ﷺ مخې ته کينا ستلو هغه وخت حضور ﷺ (حمد وثنا نه وروسته) وفرمايل [۵] قسم دي په هغه ذات چې د هغه قبضه کې زما ساه ده زه داوقت پردي خپل خاي (يعني دي منبر) باندې ولاړ حوض کوثر وينم [٦] بيا يې وفرمايل يو بنده دي چې د هغه مخکې (فاني) دُنيا او د دنيا (فاني) زيب وزينت پيش شو ليکن هغه (فاني) دُنيا باندې د آخرت (نه فنا کيدونکو) نعمتونو ته ترجيح ورکړله

**حل اللغات:-** ① عَاصِبًا: أَيْ: رَابِطًا رَأْسَهُ: عاصب دَ اسم فاعل صيغه ده چه په سرباندې کپړه تړونکی سړی ته وائی. ② بِخِرْقَةٍ: أَيْ: عِصَابَةٍ: کپړه. ③ أَهْوَى: دَ متوجه کيدو په معنى کښې دې ④ فَلَمْ يَفْطِنْ: پوهه نه شو. ⑤ نَفْدِيكَ: مونږ قربان کوو په تاسو باندې، ⑥ فَذَرَفَتْ: أَيْ سَالَتْ دُمُوعُ أَبِي بَكْرٍ: اوبهيدې اوښکې دابوبکر صديق رضى الله عنه.

[۱] قَالَ: فَلَمْ يَفْطِنْ لَهَا أَحَدٌ غَيْرُ أَبِي بَكْرٍ، [۲] فَذَرَفَتْ عَيْنَاهُ، فَبَكَى، ثُمَّ قَالَ: [۳] بَلْ نَفْدِيكَ بِآبَائِنَا وَأُمَّهَاتِنَا وَأَنْفُسِنَا وَأَمْوَالِنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ! [۴] قَالَ: ثُمَّ هَبَطَ فَمَا قَامَ عَلَيْهِ حَتَّى السَّاعَةِ». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوسعيد رضي الله عنه وايي د دې ارشاد ګرامی په رازباندې سواد ابوبکر رضي الله عنه نه بل څوك پوه نه شو [۲] نو (درسول ﷺ دژبې نه دا الفاظ آوريدو سره) د ابوبکر رضي الله عنه د سترګو نه وښکي جاري شوی او په ژړا شو بيا يې اوويل [۳] (نه) داسې دلسوزه خبره مه کوي، مونږ خپل پلرونه خپلې ميندې خپل ځانونه او خپل مالونه په تاسو ﷺ صدقه کوؤ [۴] حضرت ابوسعيد رضي الله عنه وايي دي نه وروسته حضور ﷺ منبر نه خکته کيدو سره تشريف يوورلو او تر دې وقته پورې بيا هيڅ کله په دې منبر ونه دريدی (يعني په هغه ورځ د حضور ﷺ په منبر دريدل آخري دريدل ؤ. (دارمي رحمه الله)

**حل اللغات:-** ⑦ هَبَطَ: أَيْ: نَزَلَ: راکوز شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَمَا قَامَ عَلَيْهِ حَتَّى السَّاعَةِ،

**د ساعة په مصداق کښې دوه اقوال:** ① يعنى دَهغې نه پس تراوسه پورې حضورپاك په دغه منبراونه دريدو په دې صورت کښې به دَساعت ترجمه ګهړئ سره کولې شی

② دې نه پس دَ قيامت پورې حضورپاك په دې منبرباندې نه اودريږي. دا دَحضورپاك آخرى قيام او خطبه وه.

## [۵۹۶۹] بي بي فاطمي رضی الله عنها ته دوفات پيشن ګويي

۵۹۶۹-() [۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «لَمَّا نَزَلَتْ: ﴿إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ﴾ [الفاتحة: -۳] [۳] دَعَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَاطِمَةَ قَالَ: [۴] (نُعِيَتْ إِلَيَّ نَفْسِي) فَبَكَتْ قَالَ: [۵] (لَا تَبْكِي فَإِنَّكِ أَوَّلُ أَهْلِي لَاحِقٌ بِي) فَضَحِكَتْ، [۶] فَرَآهَا بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۷] فَقُلْنَ: يَا فَاطِمَةُ رَأَيْنَاكِ بَكَيْتِ ثُمَّ ضَحِكْتِ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما بيان کوي [۲] کوم وخت چې سورة اذاجا نصرالله والفتح نازل شو [۳] نو رسول الله صلى الله عليه وسلم بي بي فاطمه رضی الله عنها راوغوښته او ورته يې وفرمايل [۴] ماته زما دمرګ خبر راکول شوی دی بي بي فاطمي رضی الله عنها دي خبري اوريدوسره د حضور ﷺ د دايمي جدايي احساس کولو سره، په ژړا شوله [۵] حضور ﷺ ورته وفرمايل زما لوري ! ژاړ مه زما په اهل بيتو کې به د ټولو نه مخکې ته زما سره يو ځاي شي (دي آوريدو سره د خوشحالى په وجه بي بي فاطمه رضی الله عنها په خندا شوه [۶] (هلته موجود) بعضي ازواج مطهراتو بي بي فاطمه رضی الله عنها چې د غسي (مخکې په ژړا او بيا په خندا) وليده [۷] نو پوښتنه يې ځيني وکړه چې فاطمي ' دا څه خبره وه چې مونږ ته مخکې په ژړا او بيا په خندا اوليدلو

**حل اللغات**:- ① نُعِيَتْ: أَيْ: أُخْبِرْتُ بِأَنِّي أَمُوتُ: يعنى ماته زما د مرګ خبر راکړې شوي دې

[۱] قَالَتْ: إِنَّهُ أَخْبَرَنِي أَنَّهُ قَدْ نُعِيَتْ إِلَيْهِ نَفْسُهُ فَبَكَيْتُ، [۲] فَقَالَ لِي: لَا تَبْكِي فَإِنَّكِ أَوَّلُ أَهْلِي لَاحِقٌ بِي فَضَحِكْتُ. [۳] وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ﴿إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ﴾ [النصر: ۱]، [۴] وَجَاءَ أَهْلُ الْيَمَنِ، هُمْ أَرَقُّ أَفْئِدَةً، وَالْإِيمَانُ يَمَانٍ، وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ)». رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [۱] بي بي فاطمه رضی الله عنها ورته اوويل حضور ﷺ مخکې ماته داوښودل چې حضور ﷺ ته دمرګ خبر ورکول شوی دي دي آوريدو سره زه په ژړا شوم [۲] او بيا راته حضور ﷺ وفرمايل چې ژاړه مه زما اهل بيتو کې به ته د ټولو نه مخکې زما سره يو ځاي شي نو زه په خندا شوم [۳] او رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل هر کله چې د الله تعالى مدد او دمکي فتح حاصله شوه [۴] او د يمن خلق راغلل چې د زړونو نرم دي. [۵] ايمان يمني دي او حکمت هم يمني دي (دارمی رحمه الله)

**حل اللغات**:- ② أَرَقُّ: أَيْ: أَرْحَمُ قُلُوبًا وَأَلْيَنُ صُدُورًا: نرم اومهربانه زړونو والا. ③ أَفْئِدَةً: جمع د فواد ده .زړونه.

**تسهيلات**: **قوله**: فَقُلْنَ:

**د قلن د قائل څخه مراد**: دې نه هم حضرت عائشه رضی الله عنها مراد ده مګر جمع دَ اکرام او احترام په توګه ده داهم احتمال دي چه نورې بيبيانې هم هلته موجود وې

[۱] اخرجه الدارمى فى السنن رقم الحديث ۷۹

**قوله**: وَالْإِيمَانُ يَمَانٍ:

د اهل يمن څخه په مراد کښې درې اقوال ① يعنى ايمان خوداَهل يمن دې. دې نه هم دَيمن خلق مراددى په هغوى کښې يوڅوخصوصيات دى چه دَخصوصى امتيازدَ وجې نه دَهغوى ايمان ستائيلې شوې دې مګر يادلرئى چه دادَ هغه وخت دَمسلمانانوتعريف دې دَ قيامت پورې راتلونکى يمنيانو تعريف نه دې.

② دَ يمان نه انصارمدينه مراد دى څکه چه دَهغوى اصل اودَ هغوى نسل دَيمن نه دې. لکه چه دادَ انصارو تعريف دې. بهرحال رومبې قول حقيقت دې باقى مجاز په يمن کښې خيردې نن صبا اسامه بن لادن حفظ الله هم دَيمن دې.

③ دويم قول دادې چه دَاهل يمن نه مراد اهل مکه دى اوچونکه دا حديث حضورپاك دَ تبوك په مقام باندې ارشاد اوفرمائيلو اودَ يمن طرف ته ئى اشاره هم اوفرمائيله چه دې طرف ته مکه اومدينه واقع دى نويمن وئيلوسره ئى مکه اومدينه مراد اخستې دى هسې يمان جانب يمين ته هم وائى اومکه اومدينه په جانب يمين کښې وو په دې وجه دَ يمان نه اهل مکه اواهل مدينه مراد دى. په دې توجيه سره به داحديث هم په پوهه کښې راشى اوتعارض به هم ختم شى. په کوم حديث کښې چه دا الفاظ دى "الايمان في الحجاز"

**قوله**: وَالْحِكْمَةُ:

**د حکمة څخه مراد**: دَ مستقبل باره کښې په ښه سوچ اوفکر فيصله کولوته حکمت وائى حکمت دَ هوښيارتوب عقل او تدبرنوم دې اوحقائق بيخ ته رسول دَعلم اومعرفت نوم دې دَ يمن په خلقوکښې داخيززيات دې.

**[۵۹۷۰] د ابوبکر رضي الله عنه د خلافت په باره کښې وصيت**

۵۹۷۰-( ) [۵] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- أَنَّهَا قَالَتْ: «وَارَأْسَاهُ [۲] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (ذَاكِ لَوْكَانَ وَأَنَا حَيٌّ فَأَسْتَغْفِرُ لَكِ وَأَدْعُو لَكِ) [۳] فَقَالَتْ عَائِشَةُ: وَاثُكْلِيَاهُ! وَاللّٰهِ إِنِّي لَأَظُنُّكَ تُحِبُّ مَوْتِي، [۴] فَلَوْكَانَ ذٰلِكَ لَظَلِلْتَ آخِرَ يَوْمِكَ مُعْرِسًا بِبَعْضِ أَزْوَاجِكَ

**ترجمه**: [۱] او بي بي عائشې رضي الله عنها نه روايت دې چې هغه يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ناسته وه د خپل سر د درد دسختې ښکاره کيدو سره يې اوويل هاى زما سر (چوى) [۲] رسول الله صلى الله عليه وسلم دې آورديدو سره ورته اوويل (اې عائشې رضي الله عنها) هغه (يعنې ستا مرګ) که داسې صورت کې راغى چې زه ژوندى پاتې شوم نوستا دپاره به (دسيناتوڅخه) د مغفرت او بخښش دُعا غواړم او ستا د درجاتو او مراتبو دبلندى دپاره به هم دُعا کوم [۳] بي بي عائشې رضي الله عنها اوويل هاى زما د سر د درد مصيبته قسم په الله زما خو

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المرضى /باب قول المريض: " إني وجع. أو وا رأساه. أو اشتد بي الوجع (رقم-۵۶۶۶)

خيال دي چې تاسو زما مرګ خوښوی ④ که داسې وشو (چې زه مړه شوم) نو تاسو ﷺ به د
هغه ورځې آخری حصه کې خپلې يوې بې بې سره شپه تيرول وفرمايې

**حل اللغات:-** ① وَارَأْسَاهُ: هائې زما سرخوږدرد نه ماتيږی ② مُعْرِسًا: أَيْ عَرِيسًا: دادَ عرو نه دې، واده کونکې

① فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (بَلْ أَنَا وَارَأْسَاهُ ② لَقَدْ هَمَمْتُ - أَوْ أَرَدْتُ - أَنْ أُرْسِلَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ وَابْنِهِ وَأَعْهَدَ، ③ أَنْ يَقُولَ الْقَائِلُونَ، أَوْ يَتَمَنَّى الْمُتَمَنُّونَ، ثُمَّ قُلْتُ: ④ يَأْبَى اللهُ وَيَدْفَعُ الْمُؤْمِنُونَ، أَوْ يَدْفَعُ اللهُ وَيَأْبَى الْمُؤْمِنُونَ»). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل اې عائشې ﷞ دا خبره پريږده او واوره ② زما قصد ؤ يا حضور ﷺ دا وفرمايل چې زما اراده وه چې زه ستا پلار ابوبکر ﷛ او د هغه زوی (يعني ستا عزيز ورور عبدالرحمن) را وغوارم او د هغوی په حق کې وصيت وکړم چې ③ بيا څوك ويونکي هيڅ ونه وايې يا حضور ﷺ دا وفرمايل چې متمنی خلق (د ابوبکر ﷛ په ځاي ځان دپاره يا بل چا دپاره د خلافت) د آرزو اظهار ونه کړی بيا ما په خپل زړه کې اوويل ④ چې خپله به الله تعالی (د ابوبکر نه علاوه د بل چا خلافت) منظور نه کړی او مسلمانان به هم مدافعت کوي يا حضور ﷺ داسې وفرمايل چې خپله به الله تعالی مدافعت کوي او مسلمانان به هم بل څوك نه مني. (بخاری ﷫)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَاثُكْلِيَاهْ:

**د مذکوره کلمې د استعمال دوه مواقع:** ① ثکل مرګ او هلاکت ته هم وائی او دَخوئی ② محبوب ورکيدو ته هم وائی. مطلب داچه هائې زما مصيبت. دا کلمه دَمصيبت په وخت کښې وئيلی شي

**قوله:** بَلْ أَنَا وَارَأْسَاهُ:

**د نبی عليه السلام مرګ ته اشاره:** حضورپاك او فرمائيل چه په حقيقت کښې خوږدردنه زما سر ماتيږی. په دې کښې يوه پټه اشاره ده چه په حقيقت کښې خو مرګ زما په سرباندې تاويږی. راتلونکی حديث کښې دَدې تفصيل دې

**دمحب او محبوب په يو وخت په يو تکليف کښې اخته کيدل:** ملاعلی قاری ﷫ ليکلی دی چه دَحضورپاك او حضرت عائشه ﷞ دَ سر درد په يوځائی شروع کيدو کښې لکه څنګه چه په کمال محبت کښې دَمجنون دَ بدن نه خپل پخپله وينه بهيدله کوم وخت چه ليلا دَ خپل بدن په رګ کښې نشتر وهلو سره وينه راؤويستله لکه څنګه چه په عوامو کښې مشهوره ده.

**قوله:** وَأَعْهَدَ:

**ابوبکر خلافت:** یعنی دَ صدیق اکبر ﷺ دَپاره دَ خلافت وصیت اوکړم بیا ما سوچ اوکړو چه الله تعالی اوبیا مسلمانان دَ ابوبکر ﷺ نه بغیر څوك خلیفه نه جوړوی

**قوله:** أَنْ يَقُولَ

**محذوف عبارت:** دلته "لا" محذوف دی اي لئلا يقول القائلون اولئلا يتمنى المتمنون

**[۵۹۷۱] د مرض وفات ابتداء**

٥٩٧١-(١) [٢٨] [١] وَعَنْهَا: قَالَتْ: «رَجَعَ إِلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ذَاتَ يَوْمٍ مِنْ جَنَازَةٍ مِنَ الْبَقِيعِ [٢] فَوَجَدَنِي وَأَنَا أَجِدُ صُدَاعًا، [٣] وَأَنَا أَقُولُ: وَارَأْسَاهُ! قَالَ: "بَلْ أَنَا يَا عَائِشَةُ! وَارَأْسَاهُ! [٤] قَالَ: (وَمَا ضَرَّكِ لَوْ مِتِّ قَبْلِي، [٥] فَغَسَّلْتُكِ وَكَفَّنْتُكِ، [٦] وَصَلَّيْتُ عَلَيْكِ، وَدَفَنْتُكِ؟) [٧] قُلْتُ: لَكَأَنِّي بِكَ وَاللّٰهِ لَوْ فَعَلْتَ ذٰلِكَ لَرَجَعْتَ إِلَى بَيْتِي [٨] فَعَرَّسْتَ فِيهِ بِبَعْضِ نِسَائِكَ، [٩] فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ثُمَّ بُدِئَ فِي وَجَعِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ» رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] او بي بي عائشه ﷺ وايي يوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم د مدینې قبرستان، بقیع کې یوه جنازه دفن کولو سره ماته تشریف راوړی [٢] نو زه یې دې حالت کې ولیدم چې زه د سر په درد مبتلا وم [٣] او ما وئیل های زما سر چوی حضور ﷺ زه دې حالت کې لیدو سره او زما دا الفاظ آوریدو سره وفرمایل اې عائشې ﷺ ته خان ته څه وایې زه وایم چې زما سر درد کوي [٤] بیا ډیر محبت سره د مسخرو په طور، حضور ﷺ اوویل دې کې نقصان څه دې که ته زما نه مخکې مړه شوی [٥] نو زه به غسل درکړم او کفن به درکړم [٦] اودجنازې مونځ به درباندې وکړم اودفن به دې کړم ، [٧] دې اوریدو سره ماوویل قسم په الله دا خو ماته ستاسو په باره کې داوس نه په نظر راځي که تاسو داسې وکړل ، یعنی داسې نوبت راغی چې زه ستاسو مخکې مړه شوم او تاسو زما تجهیز او تکفین او تدفین وغیره وکړی نو تاسو دې أمورو نه فارغیدو سره [٨] زما کور ته واپس راتلو سره خپلې څه بلې ښځې سره به شپه تیره کړی [٩] حضور ﷺ زما دا الفاظ آوریدو سره چې زما غیرت او حمیت باندې د لالت کوي په خندا شو او بیا ( هغه ورځې نه) د حضور ﷺ د مریضی سلسله شروع شوه چې هغه کې حضور ﷺ وفات شو (دارمی)

**حل اللغات:-** ① صُدَاعًا: اي وَجَعِ رَأْسِي: دسر درد. ② وَمَا ضَرَّكِ: تاته څه ضرر اونقصان دی ③ فَعَرَّسْتَ: دلته د تعریس نه مراد یا شپه تیرول دی یا دا کنایه ده دجماع نه

**تسهيلات: قوله** فَغَسَّلْتُكِ

**د نبی علیه السلام عائشې ته دغسل ورکولو خوشخبری ورکول:** اې عائشه زما په ژوند کښې

[١] ) اخرجه الدارمی فی السنن رقم الحديث ٨٠

ستا فوت کیدل ستا په حق کښې بهتر دی ځکه چه ته به زما په لاس باندې غسل، کفن او دَ جنازې مونځ حاصل کړې

**یواشکال اودهغې جواب:** دا دې واضحه وی چه دا دَ رسول کریم ﷺ خصوصیت دې چه حضورپاك خپلو ازواجو مطهراتو ته دَ وفات نه پس غسل اوکفن ورکولې شی ځکه چه دَ رسول الله ﷺ په وفات سره دَ هغوی نکاح نه ماتیږی هم په دې وجه ازواج مطهرات دَ رسول الله ﷺ په نکاح کښې پاتې کیدو دَ وجې بله نکاح نه ده کړې خودَ حضورپاك نه علاوه مسئله هم دغه ده چه خاوند دَ خپلې بی بی ته دَ وفات نه پس غسل اوکفن نه شی ورکولې

**خاوند ته د غسل ورکولو جواز:** او ښځه چونکه دَ خاوند په عدت کښې وی په دې وجه هغه خپل مړ خاوندته غسل هم ورکولې شی اوکفن هم لکه چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته دَ هغوی بی بی حضرت اسماء بنت عمیس رضی الله عنها غسل ورکړې وو

**[۵۹۷۲] د نبی علیه السام په وفات د خضر علیه السلام تعزیت**

۵۹۷۲-() [۱۰] ⑴ وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - ⑵ أَنَّ رَجُلًا مِنْ قُرَيْشٍ دَخَلَ عَلَى أَبِيهِ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ، فَقَالَ: ⑶ أَلَا أُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ ⑷ قَالَ: بَلَى حَدِّثْنَا عَنْ أَبِي الْقَاسِمِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -! ⑸ قَالَ: «لَمَّا مَرِضَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَتَاهُ جِبْرِيلُ فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ! ⑹ إِنَّ اللّٰهَ أَرْسَلَنِي إِلَيْكَ تَكْرِيمًا لَكَ، وَتَشْرِيفًا لَكَ، ⑺ خَاصَّةً لَكَ يَسْأَلُكَ عَمَّا هُوَ أَعْلَمُ بِهِ مِنْكَ،

**ترجمه:** ⑴ او حضرت امام جعفر صادق ابن محمد خپل والد (حضرت امام باقر رحمه الله) نه روایت کوي ⑵ چې قریشو نه یو سړی د هغه والد حضرت امام علی زین العابدین ابن حسین (لمسی د حضرت علی کرم الله وجهه) په خدمت کې حاضر شو نو حضرت امام علی زین العابدین رحمه الله هغه ته اوویل ⑶ آیا زه ستامخکې د رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث بیان کړم ⑷ هغه سړی اوویل هو زمونږ مخکې د حضرت ابو القاسم (محمد ﷺ) حدیث ضرور بیان کړی ⑸ نو امام علی زین العابدین رحمه الله ورته بیان وکړی کوم وخت چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مریض شو نو حضرت جبرائیل علیه السلام (پوښتنه کوله او خداوندی پیغام رسولو دپاره) حضور ﷺ ته راغی او عرض یې وکړي اې محمد ﷺ ⑹ الله تعالی ستاسو د تکریم او تعظیم دپاره زه ستاسو په خدمت کې رالیږلی یم او دا تعظیم وتکریم (چې د کومې خبرې صورت کې دې هغه صرف) ستا ﷺ دپاره مخصوص دې ⑺ او هغه خبره داده چې) الله تعالی ستا نه هغه شی پوښتې چې هغه یې ستا نه زیات پیژني (ځکه چې د ظاهر او باطن یو شی د هغه نه پټ نه دي)

**حل اللغات:-** ① تَكْرِيمًا: د عزت دپاره ② تَشْرِيفًا: أَيْ: تَعْظِيمًا: د احترام دپاره، د عظمت دپاره.

[۱] ) اخرجه البیهقی فی دلائل النبوة رقم الحدیث ۷/ ۲۶۷

[۱] يَقُولُ: كَيْفَ تَجِدُكَ، قَالَ: أَجِدُنِي يَا جِبْرِيلُ! مَغْمُومًا، [۲] وَأَجِدُنِي يَا جِبْرِيلُ! مَكْرُوبًا). [۳] ثُمَّ جَاءَهُ الْيَوْمَ الثَّانِي، فَقَالَ لَهُ ذٰلِكَ، [۴] فَرَدَّ عَلَيْهِ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَمَا رَدَّ أَوَّلَ يَوْمٍ، [۵] ثُمَّ جَاءَهُ الْيَوْمَ الثَّالِثَ، فَقَالَ لَهُ كَمَا قَالَ أَوَّلَ يَوْمٍ، [٦] وَرَدَّ عَلَيْهِ كَمَا رَدَّ عَلَيْهِ، [۷] وَجَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ يُقَالُ لَهُ: إِسْمَاعِيلُ عَلَى مِائَةِ أَلْفِ مَلَكٍ، [۸] كُلُّ مَلَكٍ عَلَى مِائَةِ أَلْفِ مَلَكٍ، فَاسْتَأْذَنَ عَلَيْهِ، فَسَأَلَهُ عَنْهُ،

**ترجمه**: [۱] هغه پوښتنه کوي چې تاسو خپل ځان څرنګه پیدا کوي یعنی ستاسو څه حال دي؟ حضور ﷺ وفرمایل جبرائیل! زه خپل ځان غم زده پیدا کونکي بیا وینم [۲] او اې جبرائیل! زه خپل ځان مضطرب او پریشانی کې وینم [۳] حضرت جبرائیل، داجواب آخستو سره لاړلو او، بیا په دویمه ورځ د حضور ﷺ خدمت کې حاضر شو او هغه الفاظ یې اوویل کوم چې په اولنی ورځ یې ویلي ؤو [۴] نبی کریم صلی الله علیه وسلم هم جواب کې هغه خبره وکړه کومه چې یې مخکې کړې وه [۵] په دریمه ورځ حضرت جبرائیل علیه السلام بیا د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو او هغه الفاظ یې اوویل کوم چې یې مخکې ویلي ؤو [٦] نبی کریم صلی الله علیه وسلم هم هغه خبره وکړه کومه چې مخکې کړې وه [۷] او په هغه ورځ یې د هغه ورځې نه وروسته په یوه بله ورځ حضرت جبرائیل سره یوه بله فرشته هم ورسره وه چې اسمٰعیل یې ورته وئیل چې داسې دیو لاک فریشتو افسره ده [۸] چې په هغوی کې یوه یوه فریشته د یو یو لاک فریشتو افسره ده هغه اسمٰعیل فریشتې د حضور ﷺ خدمت کې د حاضریدو اجازت وغوښتې، حضور ﷺ د جبرائیل نه د هغه فریشتې په باره کې پوښتنه وکړه، او هر کله چې جبرائیل د هغه پوره تعریف وکړې چې دا اسمٰعیل فریشته ده او د هغه داحیثیت دي نو حضوراسماعیل فریشتې ته د حاضریدو اجازت ورکړې

**حل اللغات**: - ⓶ مَغْمُومًا: أَيْ: مَهْمُومًا: دغم نه ډک، غمجن. ⓷ مَكْرُوبًا: أَيْ: مَحْزُونًا: په تکلیف کښې. پریشانه

[۱] ثُمَّ قَالَ: هٰذَا مَلَكُ الْمَوْتِ يَسْتَأْذِنُ عَلَيْكَ. [۲] مَا اسْتَأْذَنَ عَلَى آدَمِيٍّ قَبْلَكَ، وَلَا يَسْتَأْذِنُ عَلَى آدَمِيٍّ بَعْدَكَ. [۳] فَقَالَ: ائْذَنْ لَهُ، فَأَذِنَ لَهُ، فَسَلَّمَ عَلَيْهِ، [۴] ثُمَّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ! إِنَّ اللّٰهَ أَرْسَلَنِي إِلَيْكَ، [۵] فَإِنْ أَمَرْتَنِي أَنْ أَقْبِضَ رُوحَكَ قَبَضْتُ، [٦] وَإِنْ أَمَرْتَنِي أَنْ أَتْرُكَهُ تَرَكْتُهُ [۷] فَقَالَ: وَتَفْعَلُ يَا مَلَكَ الْمَوْتِ؟ [۸] قَالَ: نَعَمْ، بِذٰلِكَ أُمِرْتُ، وَأُمِرْتُ أَنْ أُطِيعَكَ،

**ترجمه**: [۱] او بیا حضرت جبرائیل د څه توقف نه وروسته اوویل چې دا د مرګ فریشته (عزرایل) هم حاضر دي او د حاضرې اجازت غواړی [۲] حالانکه هغه فریښته د مرګ نه چیرته د حضور ﷺ نه مخکې اجازت غوښتې دي او نه به د حضور ﷺ نه وروسته د هیڅ چا نه اجازت وغواړی، یعنی داصرف ستاسو اعزاز او شرف دي، چې هغه ته ستاسو نه د اجازت غوښتو ضرورت شوی دي ګینې په نورو خلقو خو اچانک راځي او روح ځینې قبضه وي [۳] حضور ﷺ وفرمایل هغه ته اجازت ورکړه نو حضرت جبرائیل علیه السلام ملک الموت

ددي اجازت نه خبر کړی او هغه د حضور ﷺ خدمت کښې حاضریدو سره سلام عرض کړی ④ وبيايي اوويل ای محمد ﷺ الله تعالى زه ستاسو خدمت کښې راليږلي يم ⑤ که تاسو دروح قبض کولو حکم راکوی نو قبض به يي کړم ⑥ او که تاسو داحکم راکوی چې زه تاسو پريږدم نو زه مو پريږدم ⑦ حضور ﷺ ورته وفرمايل اې د مرګ فرښتي! آيا ته به هغه کوي څه چې زه درته حکم درکړم د مرګ ⑧ فرښتي جواب ورکړی بيشکه ماته خو حکم دا راکړی شوی دي (چې تاسو ته اختيار درکړم) او څه چې تاسو فرمايې د هغه اطاعت کوم

① قَالَ: فَنَظَرَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَى جِبْرَئِيلَ -عَلَيْهِ السَّلَامُ- ② فَقَالَ جِبْرَئِيلُ: يَا مُحَمَّدُ! إِنَّ اللهَ قَدِ اشْتَاقَ إِلَى لِقَائِكَ، ③ فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِمَلَكِ الْمَوْتِ: (امْضِ لِمَا أُمِرْتَ بِهِ) ④ فَقَبَضَ رُوحَهُ، ⑤ فَلَمَّا تُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَجَاءَتِ التَّعْزِيَةُ ⑥ سَمِعُوا صَوْتًا مِنْ نَاحِيَةِ الْبَيْتِ:

**ترجمه:** ① امام علی زين العابد بن وايي نبی کريم صلی الله عليه وسلم د مرګ د فرښتي دا خبره آوريدو سره حضرت جبرائيل ② طرف ته وکتل لکه چې هغوی نه يي مشوره وغوښته چې وښايه ماته څه کول پکار دي حضرت جبرائيل عليه السلام عرض وکړی اې محمد ﷺ! حقيقت خو دادي چې الله تعالى ستاسو د ملاقات مشتاق دي ③ حضور ﷺ چې دا واوريدل نو بلا تأمل د مرګ فرښتي ته يي وفرمايل د کومي خبري چې تاته حکم شوی دي په هغه عمل وکړه ⑤ نو فرښتي د حضور ﷺ روح مبارک قبض کړی هر کله چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم وصال وشو نو يو تعزيت کونکي اهل بيت ته تسلی ورکولو دپاره راغی ⑥ خلقو د کور د يو ګوټ نه آواز راتلو سره واوريدل چې يو سړی وايي

**حل اللغات:** -⑤ اشْتَاقَ: شوق لری، خوښوی، ⑨ امْضِ: أي: انْفُذْ: نافذ اوکړه، عمل اوکړه، ⑥ التَّعْزِيَةُ: تعزيت کونکي، تسلی ورکونکي.

① السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ، ② إِنَّ فِي اللهِ عَزَاءً مِنْ كُلِّ مُصِيبَةٍ، ③ وَخَلَفًا مِنْ كُلِّ هَالِكٍ، ④ وَدَرَكًا مِنْ كُلِّ فَائِتٍ، ⑤ فَبِاللهِ فَاتَّقُوا، ⑥ وَإِيَّاهُ فَارْجُوا، ⑦ فَإِنَّمَا الْمُصَابُ مَنْ حُرِمَ الثَّوَابَ. ⑧ فَقَالَ عَلِيٌّ: أَتَدْرُونَ مَنْ هَذَا؟ هُوَ الْخَضِرُ -عَلَيْهِ السَّلَامُ»- رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ).

**ترجمه:** ① اې اهل بيتو! کوم خلق چې دلته موجود دي په تاسي دي سلامتياوي اود الله تعالى رحمت دي وي اود هغه برکتونه دي وي ② بيشکه دالله تعالى په يادولو کښې تسلي ده د هر مصيبت څخه ③ او الله تعالى د هر هلاك کيدو شی بدله ورکونکي ④ او د هر فوت کيدونکي شی تدارك کونکي دي ⑤ هر کله چې صورت دادي نو د الله مدد سره تقوی حاصله کړی ⑥ هغه نه اُميد ساتي ⑦ مصيبت زده ده حقيقت کښې هغه سړی دي چې د ثواب نه محروم کړی شی ⑧ حضرت علی ﷺ اوويل تاسو خلق پوهيږئ (د تعزيت او تسلی الفاظ ويونکي) دا سړی څوك دي دا حضرت خضر عليه السلام دي دا روايت بيهقي ﷺ د لائل النبوة کښې نقل کړی دي.

**حل اللغات:** -⑧ عَزَاءٌ: أَيْ تَسْلِيَةٌ: تسلي، سكون، ⑨ خَلَفًا: أَيْ: عِوَضًا: بدله وركونكي (قائم مقام ته هم وائی خو دلته عوض مراد دي)، ⑩ دَرَكًا: أَيْ: تَدَارُكًا: بيامو ندل، حاصلول ⑪ الْمُصَابُ: مصيبت زده، مصيبت وهلي يعنى چاته چه مصيبت اورسيږی.

**تسهيلات:**

**قوله: أَجِدُنِي يَاجِبْرِيلُ! مَغْمُومًا،**

**د تكليف د اظهار حكم:** يعنى خپل ځان خفه اودلګير ګنړم ليکن دا شکايت دَالله تعالى په وړاندې دې ﴿إِنَّمَا أَشْكُو بَثِّي وَحُزْنِي إِلَى اللَّهِ﴾ تاهم په هرحال کښې دَالله تعالى شکراداکوم اووايم الحمدلله.

**قوله: هٰذَا مَلَكُ الْمَوْتِ:**

**د نبي عليه السلام څخه د روح قبض کولو اجازت غوښتل:** يعنى دَ روحونو په قبض کولو باندې مقرر فرښتونه عظيم الشان فرښته ده چه دې نه وړاندې چاله نه ده راغلې اونه به بيادَ چادپاره راشي. نه ده دَ چانه دَ دننه راتلو اجازت غوښتې دې اونه به دَچانه اجازت اوغواړی. صرف تاسونه دَ راتلو اجازت غواړی.

**قوله: فَقَالَ عَلِيٌّ:**

**د على څخه مراد:** دې نه زين العابدين هم مراد کيدې شي او حضرت على مرتضى رضي الله عنه هم مراد کيدې شي. دويم زيات واضح دې چه هم حضرت على رضي الله عنه مراد دې

**قوله: هُوَ الْخَضِرُ:**

**د خضر عليه السلام په وفات اوحيات کښې مذاهب:**

① دَعامو مشائخواوصوفياؤ په نيزهغه ژوندې دې

② نور علماء دَ هغه دَ مرګ قائل دی

**داول فريق دليل:** دَزير بحث حديث نه واضح کيږی چه حضرت خضر ژوندې دې د اوهغه دَ رجال الغيب دَ کسانونه دې دَ تکوينى نظام سره متعلق دې په هغه باندې دَ ظاهری نظام او ظاهری شريعت احکام نه شی نافذ کولې

دواړو طرفونه دلائل دی.

**د دويم فريق دلائل:** ① که چرې خضر عليه السلام ژوندې وې نوهغه به حضورپاك سره ملاقات کړې وې په حضورپاك باندې به ئې ايمان راوړلو او په غزواتو کښې به شريکيدلو.

② په يوحديث کښې دی چه حضورپاك فرمائيلی نن چه دَ زمکې په مخ څوك ژوندې هغه به دَ سلوکالونه پس ختم شي. خضر که دغه وخت کښې موجود وې نويقيناً دَ سلوکالونه پس به مړشوې وی.

**د اول فریق د طرفه جواب:** صوفیاء کرام جواب ورکوی چه ګورئی دَحضرت خضر علیه السلام دَ ظاهری نظام سره هیڅ تعلق نشته دې هغه دَ باطن اوتکوینی نظام سره دې په هغه باندې ظاهری نصوص نافذ کیدې نه شی

**په زمکه او آسمانونوکښې د څلورو پیغمبرانو حیات:** ملا علی قاری رحمه الله لیکلی دی چه څلور انبیاء کرام دې وخت کښې ژوندی دی

**دوه آسمانی ژوندی پیغمبران:** دوه په آسمانونوکښې دی ① حضرت عیسی علیه السلام ② حضرت ادریس علیه السلام

**دوه زمینی ژوندی پیغمبران:** اودوه په زمکه باندې دی ① حضرت الیاس علیه السلام ② حضرت خضر علیه السلام

# [۱۰] باب ترکة النبی ﷺ

## دَرسول الله ﷺ دَترکې په بیان کښې

**خلاصة الباب:**

**فیه ستة عشر أحادیث مشتملة علی أربع مسائل:**

① عدم ترک النبي ﷺ شیئا من المیراث.: ۱، ۲.

② کون ترك النبي ﷺ صدقة: ۲، ۳، ۴.

③ کون النبي ﷺ فرطاً لأمته : ۵.

④ تمنی الأمة الآتية رؤية النبي صلی الله علیه وسلم بعد وفاته: ۶.

**د باب وجود او عدم وجود:** دلته دا باب دَعنوان نه بغیردې لکه چه دا دَ وفات النبی ﷺ دَ پاره په توګه دَ تابع او په توګه دَتکمیل دې لیکن په دې باب کښې څومره احادیث دی دَهغې د ټولو تعلق دَ حضورپاك دَ ترکې سره دې په دې وجه شارحینو باب ترکة النبی ﷺ باب اوتړلو دلته هم دا طریقه اختیار کړې شوې ده په دې باب کښې فصل ثانی اوفصل ثالث نشته دې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۵۹۷۳] د نبی علیه السلام میراث نه پریخودل

۵۹۷۳-( ) [۱] عَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] «مَا تَرَكَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دِينَارًا وَلَا دِرْهَمًا وَلَا شَاةً وَلَا بَعِيرًا، [۳] وَلَا أَوْصَى بِشَيْءٍ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الوصیة/باب ترک الوصیة لمن لیس له شیء یوصی فیه (رقم-۱۸ - (۱۶۳۵)وابن ماجه فی کتاب الحدود/باب من سرق من الحرز(رقم ۲۵۹۵) واحمد فی المسند: ۶/۴۴

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي [۲] رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل وفات نه وروسته نه څه دينار پريښودل نه څه درهم نه څه بزي (چيلې) او نه اوښ پريښودل [۳] او نه حضور ﷺ د څه شي وصيت وکړی (مسلم رحمه الله)

**حل اللغات:-** ① بَعِيرًا: اوښ

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَاأَوْصَى:

**د نبی علیه السلام د مال باره کښې عدم وصيت:** يعنی حضورپاك هيڅ داسې وصيت نه دې کړې دکوم تعلق چه مال اوجائيداد سره وی او دَ دين متعلق حضورپاك په خپل آخری وخت کښې وصيتونه فرمائيلی دی چونکه حضورپاك هيڅ څه مال دَ خپل خان سره نه وو ايږدلې په دې وجه دَ وصيت ضرورت نه وو. کوم څه چه حضورپاك سره وو هغه حضورپاك په خپل ژوند کښې صدقه کړې وو صرف يوڅو جهادی وسلې نبی پريخودې وې دغه شان حضورپاك دَخپل وفات نه پس هيڅوك وصی نه وومقرر کړې اونه ئې دَ خلافت دَپاره څوك خوښ کړې وو. په دې جمله دَ شيعه ګانو هغه غلطه عقيده رد کول مقصوددی په کوم کښې شيعه وائی چه حضرت علی رضي الله عنه دَحضوراکرم ﷺ مالی وصی وو اودَ خلافت وصيت هم دَدوی دَپاره کړې شوی وو. شيعه ګان په اذانونو کښې دَ خپلې دغه غلطې عقيدې ترويج کوی او وائی اشهدان علياولی الله ووصی رسول الله،

**[٥٩٧٤] د نبی کريم ﷺ په ميراث کښې د اوښې پريخودل**

متفق-() [٢] [١] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ أَخِي جُوَيْرِيَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «مَا تَرَكَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عِنْدَ مَوْتِهِ دِينَارًا وَلَا دِرْهَمًا [٣] وَلَا عَبْدًا وَلَا أَمَةً وَلَا شَيْئًا [٤] إِلَّا بَغْلَتَهُ الْبَيْضَاءَ وَسِلَاحَهُ [٥] وَأَرْضًا جَعَلَهَا صَدَقَةً». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمرو ابن حارث رضي الله عنه چې (صحابی دي او، د أم المؤمنين بي بي جويريه رضي الله عنها ورور دي وايي [۲] رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل وفات په وخت نه څه دينار اودرهم پريښودل [۳] نه څه غلام او وينزي يي پريښودي او نه څه بل شي يي پريښودي [۴] البته د حضور ﷺ يوه سپينه غاتره وه (چې هغه ته به يي دلدل ونيل چې مقوقس حاکم اسکندريه د تحفي په طور د حضور ﷺ په خدمت کې راليږلي وه د حضور ﷺ څه هتيار ؤو [۵] او څه زمکه وه چې هغه هم حضور ﷺ صدقه کړی وه (بخاری رحمه الله)

**حل اللغات:-** ① بَغْلَتَهُ: اوښه (د نبی علیه السلام)

[1] اخرجه البخاري في كتاب الوصايا/باب الوصايا وقول النبي صلى الله عليه وسلم: «وصية الرجل مكتوبة عنده» (رقم-٢٧٣٩) والنسائي في كتاب الأحباس (رقم-٣٥٩٤)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت عمرو بن الحارث:** نوم عمرو او دَپلار نوم حارث بن ابی ضرار دې. دَ خزاعه قبیلې سره تعلق لری اودَ حضرت ام المؤمنین عائشه ﷝ رور دې. په اهل کوفه کښې دَده شمیر کیدې دې. دَ ده نه همیشه ابووائل شقیق بن سلمه اوابواسحاق سهیعی روایت کوی. حافظ ابن حجر فرمائی چه دا دَ رسول الله ﷺ صحابی ﷜ دې دَدوی نه صرف هم دا یو روایت په بخاری کښې نقل شوې دې.(تقریب) او یو روایت په مسلم کښې هم دې. نودَده تول دوه احایث نقل کړې شوی دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَأَرْضًا جَعَلَهَا صَدَقَةً.

**د فدک زمکه:** دا وقف شوې زمکه وه چه دَ فدك او بنونضیر په علاقه کښې وه دکوم نه چه دَ حضورپاك دَ اهل وعیال خرچه وتله.

**د غلامانوپه ترکه کښې د نه پریخودو وجه:** په حدیث الباب کښې دی چه رسول الله ﷺ په خپله ترکه کښې نه غلامان پریخودی وو او نه وینځې. دَدې وجه داده چه دَ حضورپاك په ژوند مبارك کښې کوم غلامان وغیره وو هغه دَ حضورپاك په ژوندمبارك کښې وفات شوی وو یا حضورپاك هغه آزاد کړې وو.

**قوله** وَسِلَاحَهُ:

**د وسلې نه مراد:** دَ حضورپاك دَ وسلې نه مراد هغه ده کومه چه به خاص دَ حضورپاك په استعمال کښې وو. لکه توره، نیزې، زغرې، دَ اوسپنې ټوپئی، سنګین او نیزه او په یو روایت کښې صرف دَ یوې زغرې ذکر دې کوم چه دَ وفات په وخت کښې حضورپاك پریخودی وه او هغه ئی هم یو یهودی سره ګانړه کیخودې وو. یاد لرئی چه په حدیث کښې چه کوم حصر دې هغه اضافی دې او په دې خبره باندې مبنی دی چه دَ استعمالو کړو او دَ معمولی کورنې سامان لکه لږ ډیر څیزونه اعتبار نه کیږی اونه دغه څیزونه په مال او دولت کښې شمیرکولې شی.

**قوله** جَعَلَهَا صَدَقَةً.

**د ها ضمیرپه مرجع کښې دوه اقوال:**

① بعضې حضراتو دَ جعلها ضمیر دَ ذکرشوو ټولو څیزونو طرف ته راګرځولې دې.

② بعضې حضراتو وینلی دی چه دَ ضمیر مرجع صرف دَ زمکې طرف ته ده چه کومه زمکه دَ حضورپاك په ملکیت کښې وه هغه هم حضورپاك صدقه کړې وه هم دغه قول دَ امام عسقلانی ﷫ دې.

**دنبي عليه السلام په ملكيت كښې څلور قسمه زمكې:**

① دَ باغ فدك نيمه حصه

② دَ وادي قرىٰ دريمه حصه

③ دَ خيبر پنځمه حصه

④ اودَ بنو نضير دَ زمكې ځه حصه.

**د ميراث په طور اهل بيتو ته د زمكو نه ملاويدل:** دَ دغه ټولو زمكو منفعت رسول الله ﷺ صدقه كړې وو. لهذا دلته صدقه دَ وقف په معنى كښې ده په دې وجه ذكر شوې زمكې دَ حضورپاك دَ وصال سره وقف شوې وې.

① په دې وجه دَ رسول كريم ﷺ دَ وصال نه پس حضرت فاطمه رضي الله عنها او ازواج مطهرات په توګه دَ ميراث دَ حضرت ابوبكر رضي الله عنه نه غوښتنه اوكړه نوحضرت ابوبكر رضي الله عنه دَ صحابه كرامو دَمشورې نه پس دَميراث په توګه دَ وركولو نه انكار كړې وو.

② حضرت عمر رضي الله عنه دَ دغه زمكو توليت حضرت عباس او حضرت على رضي الله عنهما له وركړې وو. روستو چه كله دواړو حضراتو دَ تقسيم درخواست اوكړو نوحضرت عمر رضي الله عنه دَ تقسيم نه انكاراوكړو.

③ دغه شان دَ ټولو خلفاؤ په زمانه كښې دغه زمكې هم وقف پاتې وې.

④ مروان په مذكوره زمكوباندې قبضه اوكړه نو حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله دَ مروان دَ ظلمونو خاتمه اوكړه او سره هغه زمكې ئې راخلاصې كړې او دوباره ئې وقف كړې

**[۵۹۷۵]د نبي كريم ﷺ په تركه كښې عدم ميراث**

۵۹۷۵-(۱) [۳] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② «لَا يَقْتَسِمُ وَرَثَتِي دِينَارًا، ③ مَا تَرَكْتُ بَعْدَ نَفَقَةِ نِسَائِي وَمُؤْنَةِ عَامِلِي فَهُوَ صَدَقَةٌ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② زما دوفات نه وروسته زما وارثان به دينار نه تقسيموي ③ زما چې څه ميراث وي هغه به د ښځو د خرڅ او د عامل د أجرت نه وروسته باقي ټول صدقه وي (بخارى و مسلم)

**حل اللغات:-** ① مُؤْنَةِ: مؤنة بوج او خرچې ته وائي. ② عَامِلِي: عامل ذمه وار ته وائي.

[1] اخرجه البخارى كتاب الوصايا/باب نفقة القيم للوقف (رقم-۲۷۷۶) فى ومسلم فى كتاب الجهاد والسير/باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: «لا نورث ما تركنا فهو صدقة» (رقم-۵۵ - (۱۷۶۰))وابوداود فى كتاب الخراج والإمارة والفيء/باب فى صفايا رسول الله صلى الله عليه وسلم من الأموال (رقم-۲۹۷٤) ومالك فى الموطا كتاب الكلام/باب ما جاء فى تركة النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-۲۸) واحمد فى المسند:۲/٤٦٤

**تسهیلات:**

**قوله:** نَفَقَةِ نِسَائِي:

**د وفات النبی نه پس د ازواجو مطهراتو د خرڅې انتظام:** حضورپاك دَ "صفی" په توګه فدك کښې اودغه شان دَ بنونضیر په علاقه کښې څه زمکې اخستې وې دکومې نه چه دَ حضورپاك دَاهل وعیال خرڅه وتله اودې نه چه به څه بچ کیدل هغه به مسلمانانوباندې تقسیم کیدل دَ حضورپاك دَ بیبیانو دَپاره دَ هغوی دَوفات نه پس نکاح کول منع وو ځکه چه دَ حضورپاك دَ حیات بزرخی اثرپه دنیا باندې پریوځی. لهذا دَ ازواج مطهرات حیثیت داسې وو لکه چه هغه په عدت کښې ناستې وې په دې وجه دَهغوی خرڅه دَ حضورپاك په ذمه باندې وه.

**قوله:** وَمُؤْنَةِ عَامِلِي:

**د عامل څخه مراد:** اودَعامل نه مراد دَ حضورپاك نه پس خلفاء دی لکه ابوبکرصدیق رضی الله عنه دَ حضورپاك دَ دې وقف شوې زمکې خیال ساتلو. بیا حضرت عمرفاروق رضی الله عنه خیال ساتلو بیا حضرت عثمان رضی الله عنه دَدې تولیت مروان ته حواله کړو بیا په دې کښې څه ذاتی قبضه راغله بیا حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله دا قبضه خلاصه کړه اووقفی جوړه کړه بیا چه څه اوشو هغه الله تعالی ته معلوم دی. دَدې حدیث نور تفصیل مناقب عمرفاروق رضی الله عنه کښې ان شاء الله راځی.

**[۵۹۷۶] د نبي علیه السلام په ترکه کښې صدقه**

| ۵۹۷۶-(۱) [۳] [۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«لَا نُورَثُ، مَا تَرَكْنَاهُ صَدَقَةٌ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوبکر رضی الله عنه وایي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] مونږ انبیاء، چې څه زمکه جائیداد پریږدو هغه کې میراث نه جاري کیږي بلکه هغه صدقه ده (بخاری رحمه الله و مسلم رحمه الله)

**تسهیلات: قوله:** لَا نُورَثُ:

**د انبیاء په مال کښې عدم وراثت:** یعنی مونږ دَ انبیاء کرامو جماعت نه دَچا وارثان کیږو چه دَمیراث مال واخلو اونه زمونږ څوك وارث کیدې شی چه زمونږ دَ مال نه حصه دَ میراث واخلی مونږ چه کوم څه ترکه پریخوده هغه دَ عام مسلمانانو دَپاره وقف شوې صدقه ده.

---

حرجه البخاری فی کتاب الفرائض/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «لا نورث ما ترکنا صدقة» (رقم-۶۷۲۶)
مسلم فی کتاب الجهاد والسیر/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «لا نورث ما ترکنا فهو صدقة» (رقم-۵۶ - (۱۷۶۱)
وابوداود فی کتاب الخراج والإمارة والفیء/باب فی صفایا رسول الله صلی الله علیه وسلم من الأموال (رقم-۲۹۷۴)
ومالک فی الموطا کتاب الکلام/باب ما جاء فی ترکة النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۲۷) واحمد فی المسند:۱۴۵/۶

حضرت صديق اكبر رضي الله عنه دا حديث هغه وخت په توګه د دليل بيان كړو كوم وخت چه حضرت فاطمه رضي الله عنها د حضورپاك د فدك باغ او اموال د بنى نضير مطالبه اوكړه. د صديق اكبر رضي الله عنه دا فيصله د هغوى ذاتي رائې نه وه بلكه د صحابه كرامو يولونى ګنړې دا فيصله منظوركړې وه اوحديث په دې باندې دلالت كولو

**د نبى عليه السلام په مال كښې د عدم وراثت وجه:** ملاعلى قارى رحمه الله مرقات كښې يوخاني كښې ليكلى دى چه د حضورپاك په مال كښې ميراث ځكه نه چليږى چه حضورپاك حيات دې لكه چه د هغوى د لاس نه مال هډو وتلې نه دې هم د غه وجه ده چه ازواج سره نكاح كول حرام وو

**د عدم وراثت د تعميم او تخصيص بحث:** ملاعلى قارى رحمه الله دابحث هم چيړلې دې چه آيا دا حكم د ټولو انبياء كرامو د مال دې يا حضورپاك سره خاص دې راجح او معتدل قول هم دغه دې چه دا د ټولو انبياء كرامو د پاره عام حكم دې. علماؤ ليكلى دى چه د حضورپاك په مال كښې ميراث په دې وجه هم نه جارى كيدلو چه د نبى په مرګ باندې خوشحاله نه شى چه د نبى د مال نه به ميراث ملاؤ شى.

**[۵۹۷۷]د نبى په مخكښې وفات كيدو كښې د امت خيريت**

[۱]وَعَنْ أَبِي مُوسَى -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنَّهُ قَالَ: [۲]«إِنَّ اللَّهَ إِذَا أَرَادَ رَحْمَةَ أُمَّةٍ مِنْ عِبَادِهِ [۳]قَبَضَ نَبِيَّهَا قَبْلَهَا فَجَعَلَهُ لَهَا فَرَطًا وَسَلَفًا بَيْنَ يَدَيْهَا، [۴]وَإِذَا أَرَادَ هَلَكَةَ أُمَّةٍ عَذَّبَهَا وَنَبِيُّهَا حَيٌّ فَأَهْلَكَهَا [۵]وَهُوَ يَنْظُرُ، فَأَقَرَّ عَيْنَيْهِ بِهَلَكَتِهَا حِينَ كَذَّبُوهُ وَعَصَوْا أَمْرَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالى چې خپلو بنده ګانو كې د كوم أمت په باره كې د خپل رحمت او مهربانى اراده وكړي [۳] نو د هغه أمت نبى د أمت، د مجموعي هلاكت، نه مخكې پورته كوي د غه شان الله تعالى هغه نبى د أمت امير منزل او پيش رو جوړوي، يعنى كه هغه نبي د خپل أمت نه راضي او خوشحاله وي نو آخرت كې د خپل أمت شافع وي، [۴] او هر كله چې الله تعالى يو أمت هلاكول غواړي نو هغه أمت باندې د هغه نبي په ژوند كې عذاب مسلط كوي نو هغه أمت د هلاكت او تباهى ښكار كيږي [۵] او هغه نبى د خپل أمت هلاكت او تباهي په خپلو سترګو سره ويني او خپلي سترګي پرې يخوي يعنى خوشحاليږي ځكه چې هغه أمت خپل نبي دروغجن كولي او د هغه د احكامو نا فرمانى به يې كوله (مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَرَطًا وَسَلَفًا: د پيش رو او شفيع په معنى كښې دي ② فَأَقَرَّ أَيْ: أَبْرَدَهُمَا: يخوى يعنى خوشحالوى الله تعالى دواړه سترګي د هغوى.

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الفضائل/باب إذا أراد الله تعالى رحمة أمة قبض نبيها قبلها (رقم ۲۴ (۲۲۸۸)

**تسهيلات:**

**قوله فَرَطًا وَسَلَفًا:**

**دهلاكت و نجات په اعتبار سره د امتونو دوه قسمونه:** ① مطلب دا چه کله نبی دَخپل امت نه راضی وی وفات شی نو الله پاك دغه نبی دَ هغه دَ امت دپاره شفيع جوړوی اوکوم نبی چه دَ خپل امت نه خوشحال نه وی نو الله پاك دَ دغه نبی په مخکښې دَ هغه په امت باندې عذاب نازلوی. کله چه هغه نبی دَ نافرمان امت تباهی په خپلو سترگو سره گوری نو هغه خوشحالیږی او خپلې سترگې یخوی. دَدې نه معلومه شوه چه مخکینی امتونه دَ انبیاء کرام علیهم السلام په مخکښې هلاکولو سره الله تعالی دَ هغه انبیاء کرامو سترگې یخې کړې ② خودَ رسول کریم ﷺ په وړاندې دَ هغوی امت ته ئی هدایت ورکړو او تابعدار ئې جوړکړو او دَ رسول الله ﷺ سترگې ئی یخې کړې نولکه څنگه چه نبی کریم ﷺ دَ مؤمنانو دَ سترگو یخوالې دې دغه شان دَ حضورپاك تابعدار امت هم دَ حضورپاك دَ سترگو یخوالې دې. لهذا دَ مخکیې تیرشوی انبیاء کرامو دَ سترگو یخوالې څه بل څیز دې او دَ رسول الله ﷺ دَ سترگو یخوالې څه بل دې.

**[۵۹۷۸] دراتلونکی امت نبی علیه السلام سره عقیدت**

> ۵۹۷۸-() [۶] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ [۳] لَيَأْتِيَنَّ عَلَى أَحَدِكُمْ يَوْمٌ وَلَا يَرَانِي، [۴] ثُمَّ لَأَنْ يَرَانِي أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ أَهْلِهِ وَمَالِهِ مَعَهُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [۵] [وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِي وَالثَّالِثِ]

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] قسم دي په هغه ذات چې دهغه په قبضه کې د محمد ﷺ ساه ده [۳] یوه ورځ به په تاسو باندې داسې راشي چې کوم سړی ما ونهویني [۴] وبیا هغه ته به زما لیدل د دې نه زیات خوښ وي چې هغه خپل اهل وعیال اوخپل مال ومتاع وویني. (مسلم رحمه الله)

**تسهيلات:**

**قوله: لَيَأْتِيَنَّ:**

**د نبی علیه السلام سره د امت د محبت مثال:** دا خطاب صحابه کراموته دې اوبیاپوره امت ته هم دې یعنی یوه زمانه به داسې راځی چه زما دَ وفات نه پس به زماسره محبت کونکی داسې خلق وی چه داخبره به غواړی چه دَهغوی اهل وعیال مال حال ټول هرڅه دې قربان شی مگر دَحضورپاك دیدار هغوی ته نصیب شی.

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الفضائل/باب فضل النظر إليه صلى الله عليه وسلم وتمنيه (رقم-۱۴۲ - (۲۳۶۴)) واحمد فی المسند: ۷۱/۳

**قوله: مَعَهُمْ:**

**په معهم کښې تاکيد:** دالفظ دَتاکيد په توګه لګولې شوې دې يعنی اهل وعيال سره مال هم قربان دې. دې سره موجوده صحابه کرامو ته ترغيب ورکول دی چه دې دولت عظمیٰ او نعمت کبریٰ نه دَزيات نه زيات فائده اوچته کړئ اوسستی مه کوئی ګنی صباله به ارمان کوئ.

# [۱۱]بَابُ مَنَاقِبِ قُرَيْشٍ وَذِكْرِ الْقَبَائِلِ]

**دقريشو مناقب او دقبائلو دذکر بيان**

**خلاصة الباب:**

**فيه سبعة وعشرون حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① مدح النبي ﷺ قريشاً والدعاء لهم: ۱، ۲، ۱۱، ۲۳.

② كون الخلافة في قريش: ۳، ۴، ۵، ۲۲.

③ العقوبة بإهانة القريش: ۱۰.

④ مدح بعض القبائل والدعاء لهم: ۷، ۸، ۹، ۱۲، ۱۳، ۱۶، ۱۷، ۲۲، ۲۶.

⑤ ذم بعض القبائل: ۶، ۱۴، ۱۵، ۱۸، ۲۴، ۲۵. هذا من توابع: ۲۴.

⑥ الزجربغض العرب والحث بحبهم: ۱۹، ۲۰، ۲۷.

⑦ كون هلاك العرب علامة الساعة: ۲۱.

**قوله: مَنَاقِبِ قُرَيْشٍ ،**

**د مناقب تعريف او معنی:** مناقب دَ منقبة جمع ده منقبت هغه فضيلت برزګنی او اوچتوالی ته وائی دکوم په ذريعه چه انسان دَالله تعالی په حضور کښې دَعظمت اوشرافت والا جوړيږی اومخلوق خدا په نيزهم عزت کاميابی اورفعت او لوړ مقام حاصلوی. کوم سړی ته چه دَالله تعالی په حضور دَعزت اوشرافت مقام ملاؤشی هغه دمخلوق په نيزهم اوچت مقام حاصلوی.

**فائده:** البته دَمخلوق په نيز معززکيدل دَالله تعالی په نيزدَمقبول کيدو دليل نه دې بلکه دَالله تعالی په نيز چه کله دَمقبوليت مقام وی نودَمخلوق په نيزبه هم دَمقبوليت اعتبار وی ګنی نه به وی.

**د قريش وجه تسميه:** قريش دَعربودَ يوې مشهورې معروف قبيلې نوم دې په حقيقت کښې قريش دَسمندر هغه لوئی کب ته وائی چه په سمندرکښې په ټولو کبانوباندې غالب وی. داقبيله هم دَ عربو په ټولو قبائلوباندې غالب وه. لفظ قريش دَ نضر بن کنانه لقب وو. دَهغوی په اولاد کښې چه څومره قبائل وو په هغوی باندې دَ قريشو اطلاق اوکړې شو کوم

عرب چه دَ نضربن کنانه په اولاد کښې نه دی هغه قریش نه دی

**قوله:** وَذِكْرِ الْقَبَائِلِ،

**د قبائل معنی او دې څخه مراد:** قبائل جمع ده دَدې مفرد قبیله ده. دلته په دې باب کښې دَحضرت آدم علیه السلام دَ اولاد دَمختلفو قبائلو خصوصیات امتیازات ښه والی اوبدوالی په اجمالی توګه باندې بیان کړې شوي دې

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### [۵۹۷۹] قریشو پسې اقتداء

۵۹۷۹ -() [۱] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «النَّاسُ تَبَعٌ لِقُرَيْشٍ فِي هَذَا الشَّأْنِ، [۳] مُسْلِمُهُمْ تَبَعٌ لِمُسْلِمِهِمْ، [۴] وَكَافِرُهُمْ تَبَعٌ لِكَافِرِهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] په دې خبره کښې خلق د قریشو تابع دي [۳] غیرقریشي مسلمانان د قریشي مسلمانانو [۴] وغیرقریشي کافران دقریشي کافرانو تابع دي. (بخاری مسلم)

**حل اللغات:-** ① تَبَعٌ: د تَابِع جمع ده، تابعداری کونکی.

**تسهیلات: قوله:** النَّاسُ تَبَعٌ:

**د مذکوره جملې مفهوم او مطلب:** یعنی خلق ټول په ټول دَ قریشوتابع دی دَ قریشو مسلمانان دَغیرقریش مسلمانانو سرداران او خلیفه ګان دی اودَ قریشو کافران دَهغوی دکافرانو سرداران دی دَدې مطلب دادې چه کوم وخت قریشو اسلام نه وو قبول کړې نوعرب په دې انتظار کښې وو چه آیا قریش اسلام قبلوی که نه؟ کله چه قریشو اسلام قبول کړو اومکه فتح شوه نوټول عرب په اسلام کښې داخل شو دې نه معلومه شوه چه قریش دکفرپه حالت کښې هم سرداران دی او په حالت دَاسلام کښې هم سرداران دی لکه چه قیادت سیادت حکومت او دَخلافت صلاحیت اواستعداد الله تعالی په قریشو کښې کیخودي دې لهذا غیرقریش ټول دَدوی تابع دی

### د خلافت دپاره د قریشی کیدو په شرطیت کښې دوه مذاهب:

① په دې حدیث کښې امامت کبری یعنی حکومت اوخلافت طرف ته اشاره ده چه په دې کښې به خلق دَ قریشو تابع وی حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه دَ انصارو په مخکښې هم په دې حدیث سره په قیادت دَ قریش باندې استدلال فرمائیلې وو چه "الائمة من قریش" په دې

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب قول الله تعالی: {یا أیها الناس إنا خلقناکم من ذکر وأنثی وجعلناکم شعوبا وقبائل لتعارفوا إن أکرمکم عند الله أتقاکم} [الحجرات: ۱۳] (رقم-۳٤۹۵) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب الناس تبع لقریش، والخلافة فی قریش (رقم-۲ - (۱۸۱۸) واحمد فی المسند: ۱۰۱/۱

حديث کښې دَ قريشو تقدم اومقدم کولوترغيب دې چه خلقو له پکاردی چه دَقريشو دَ قيادت خيال اوکړی که چادَ دې خصوصيت خيال اونه ساتلو نودَ دې مطلب دانه دې چه دَغيرقريش قيادت صحيح نه دې قيادت اوخلافت صحيح دې. البته دَ کوم خصوصيات حامل چه يو قريشی کيدې شی غيرقريشی نه شی کيدې. نو په دې حديث کښې دَ قريشو دَخصوصيات امتيازات اولياقت ذکردې اودَ قريشو اهميت او اهليت اودَهغوی دَ صفتونو ذکردې. دَدې مطلب دانه دې چه غيرقريشی دَدې اهل نه شی گڼړلې بلکه په حديث کښې دَ قريش دَ يواستحقاق اوترجيح ذکر دې که چرته په دنياکښې دَ قريش دوه کسان هم پاتې شی نويودې اميرجوړشی اوبل دې مامورجوړشی داهم دَدې حديث يوه تشريح ده.

② نورو علماؤ اوفقهاؤ ليکلی دی چه دَ خليفه کيدودَپاره دَ قريشی کيدل لازمی دې دَغيرقريشی بادشاه جوړول دَ مسلمانانودَپاره جائز نه دی ځکه چه په دې باندې اجماع شوې ده. صحابه کرامو هم دغه شان فيصله کړې ده اوفقهاؤ هم داسې ليکلی دی. لهذا دَ قريشی دَ موجودکيدو په صورت کښې غيرقريشی صحيح نه دې. اوکه چرته قريشی موجودنه وی نوبيا دکنانه څوك سړې خليفه جوړکړئی که هغه ملاؤ نه شی نو بيا دَعرب بنواسماعيل نه څوك خليفه جوړکړئی اوکه چرته دَهغوی نه هم څوك ملاؤ نه شی نوبيا څوك عجمی سړې راولئی. بهرحال دَ خليفة المسلمين دَپاره قريشی کيدلو شرط ټولو کتابونو اواحاديثوکښې دې البته بعضې شيعه گان، معتزله، مبتدعه او مودوديانودَ دې شرط نه انکار کړې دې.

**[۵۹۸۰] دقريشو سرداری**

۵۹۸۰-(١)[٢] ۱ وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: ۲ «النَّاسُ تَبَعٌ لِقُرَيْشٍ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر نه روايت دې چې نبی کريم ﷺ وفرمايل ۲ چې خلق په خير او شر (دواړو حالاتو) کې د قريشو تابع دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** النَّاسُ تَبَعٌ لِقُرَيْشٍ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ

**دخير اوشر مصداق:** -أي الإسلام- دَخير نه مراد اسلام دې.

**قوله:** وفي الشر: دَ "شر" نه مراد کفر دې (کمافی المرقاة) مطلب دادې چه دَ قريشو کافران دَ نورو کافرانو سرداران او مؤمنان قريش دَ نورو مؤمنانو سرداران دی.

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب الناس تبع لقريش. والخلافة فی قريش (رقم-٢ - (١٨١٩) واحمد فی المسند:٣/٣٧٩

## [۵۹۸۱] په قریشو کښې د خلافت حقداری

۵۹۸۰-(۱)[۳] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: ② («لَا يَزَالُ هٰذَا الْأَمْرُ فِي قُرَيْشٍ مَا بَقِيَ مِنْهُمُ اثْنَانِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او حضرت جابر ﷛ نه روایت دي نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② دا امر یعنی خلافت به همیشه قریشو کې وي څو پورې چې هغوی کې دوه خلق هم پاتې وي (بخاری مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله مَا بَقِيَ مِنْهُمُ اثْنَانِ:**

**د خلافت دپاره د قریشي کیدو دلیل**: دَ دې حدیث لاندې امام نووی ﷫ فرمائی چه دَدې په شان نور احادیث په کوم کښې چه دَ خلافت حق دَ قریشودپاره ذکرکړې شوي دې دَدې خبرې واضح دلیل دې چه دَ خلافت منصب دَ قریشو دپاره مخصوص دې. غیرقریش خلیفة المسلمین جوړول جائز نه دی. هم په دې باندې دَ صحابه کرامو او روستو دَ امت مسلمه اجماع ده.

د نبی علیه السلام د فرمان په حیثیت کښې درې احتمالات. ① امام نووی ﷫ داهم لیکلی دی چه حضور پاك دَدې ارشاد مبارك په ذریعه دا خبر ورکړې دې چه دا حکم به دَ آخری زمانې پورې برابر جاری او نافذ وی ترکومې پورې چه په دې دنیا کښې دوه کسان هم باقی وی. نوګویا دا د نبی علیه السلام د طرفه پیشنګوئی ده.

② تحقیقی قول دادې چه داخبر په اصل کښې دَ امر یعنی دَحکم په معنی کښې دې لکه چه حضورپاك دَ خبر په اسلوب کښې داحکم ورکړې دې چه په هر مؤمن باندې لازم دی چه هغه قریش خپل سرداران اومنی دَهغوی اتباع اوکړی اودَ هغوی دَ امامت او قیادت نه انحراف اونه کړی.

③ دا هم ونیلې شی چه دَ حضورپاك دا ارشاد مبارك په خپله ظاهری معنی باندې محمول دې مګر "ما اقاموا الدین" الفاظو سره مقید دې لکه چه راتلونکی روایت کښې دی. په دې صورت، کښې به دَ حدیث مطلب دا شی چه دَ خلافت منصب او امارت به تر هغه وخته پورې برابر په قریشو کښې وی ترکومې پورې چه قریش دین، عدل او انصاف قائم ساتی. کله چه قریشو دین، عدل او انصاف پریخودو نو خلافت به دَ قریشو نه اوخی.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب قریش (رقم-۳۵۰۱) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب الناس تبع لقریش، والخلافة فی قریش (رقم-۴ - (۱۸۲۰)

**[۵۹۸۲]د دين د تابعدارۍ په صورت کښې د قريشو د خلافت مشروعيت**

۵۹۸۲-()[۳][۱]وَعَنْ مُعَاوِيَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۳]«إِنَّ هَذَا الْأَمْرَ فِي قُرَيْشٍ، [۴]لَا يُعَادِيهِمْ أَحَدٌ إِلَّا كَبَّهُ اللَّهُ عَلَى وَجْهِهِ، مَا أَقَامُوا الدِّينَ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت امير معاويه ﷺ وايي [۲]ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا واوريدل [۳]بلا شبه دا امر يعنى منصب خلافت به قريشو کې وي څو پورې چې هغوی په دين قائم وي [۴]او کوم سړی چې د قريشو سره د ښمني او عداوت لري الله تعالى به هغه پرمخې وغورځوي (يعني د ذلت او خوارۍ طوق به د هغه په غاړه کې واچوي . ( بخاري)

**حل اللغات:-** ① كَبَّهُ: أَيْ: أَسْقَطَه: پرمخې او اپوته زوړندولو په معنى کښې دې (يعنى الله پاک به ني پرمخې اپوته په دوزخ کښې اوغورځوي). ②لَايُعَادِيهِمْ: دادَ عداوت اودښمنۍ په معنى کښې دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا أَقَامُوا الدِّينَ:

**د قريشو د خلافت شرط:** يعنى دَ قريشو دَخلافت استحقاق دې خبرې سره مشروط دې چه هغوى به شريعت نافذ کوى. دَدين دَ حدودو حفاظت کوى. چونکه دَخلافت اصل مقصد دَدين تنفيذ اودَ اسلام جنډا اوچتول دى. که چرې قريشو دا کارپريخودو نوبيابه دَخلافت مستحق پاتې نه شى بلکه هغوى به واجب العزل شى.

**د تارک الصلاة بادشاه د معزوله کولو حکم:** بعضې رواياتو کښې "مااقامو الصلوة" الفاظ راغلى دى. لهذا شارحينوليکلى دى که يوبادشاه پخپله مونځ نه کوى اودَمونځ کولودپاره څه نظام هم نه قائم کوى نوهغه هم واجب العزل دې. نوچه تنفيذ دَ شريعت او اقامت الصلوة که چرته په يوبادشاه کښې نه وى نوهغه واجب العزل دې اودَهغه خلاف خروج او بغاوت ضرورى دې.

**[۵۹۸۳]په قريشو کښې د دولسو خليفه ګانو راتلل**

۵۹۸۳-()[۵][۱]وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲]«لَا يَزَالُ الْإِسْلَامُ عَزِيزًا إِلَى اثْنَيْ عَشَرَ خَلِيفَةً [۳]كُلُّهُمْ مِنْ قُرَيْشٍ». [۴]وَفِي رِوَايَةٍ: «لَا يَزَالُ أَمْرُ النَّاسِ مَاضِيًا مَا وَلِيَهُمُ اثْنَا عَشَرَ رَجُلًا [۵]كُلُّهُمْ مِنْ قُرَيْشٍ». [۶]وَفِي رِوَايَةٍ: «لَا يَزَالُ الدِّينُ قَائِمًا حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ [۷]أَوْ يَكُونَ عَلَيْهِمُ اثْنَا عَشَرَ خَلِيفَةً كُلُّهُمْ مِنْ قُرَيْشٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت جابر ابن سمره ﷺ وايي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل [۲]اسلام ته به دولس ۱۲ خلفاؤ پورې قوت او غلبه حاصليږي [۳]او ټول به قريشو

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب المناقب/باب مناقب قريش (رقم-۳۵۰۰)

[۲] اخرجه البخارى فى كتاب الأحكام/باب الاستخلاف (رقم-۷۲۲۲) ومسلم فى كتاب الإمارة/باب الناس تبع لقريش، والخلافة فى قريش (رقم-۷ - (۱۸۲۱) واحمد فى المسند: ۱۰۱/۵

نه وي ④یو روایت کې داسې دي (حضور ﷺ وفرمایل) د خلقو دیني او مذهبي أمورو کې استقامت ملي او ملکي معاملاتو کې استحکام او عام نظم ونسق کې عدل او انصاف او حق و راستي باندې مبني، د نظام کار سلسله به هغه وقته پورې قائمه وي څو پورې چې د هغوئ دولس حاکمان وي ⑤او د هغوئ تولوتعلق د قریشو سره وي ⑥او یو روایت کې داسې دي (حضور ﷺ وفرمایل) دین به برابر قائم وي تر دې چې قیامت راشي ⑦ویا په خلقو ددې دولسوخلیفه ګانو حکومت قائم وي چې هغه به قریشو نه وي (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:**- ① عَزِيزًا : أَيْ: قَوِيًّا شَدِيدًا: قوت اوغلبه حاصلونکې، یا په دیني او ملکي امورو کښې استقامت او استحکام مراد دې.

**تسهیلات:**

**قوله: اثْنَا عَشَرَ خَلِيفَةً**: یعنی قیامت به ترهغه وخته پورې نه راځي ترکومې چه دَ قریشو ۱۲ خلیفه ګان ښکاره نه شي. په دې حدیث باندې پوهیدل اودَدې مصداق متعین کول کافي مشکل دی.

**د دولسو خلیفه ګانو په مصداق کښې اقوال**: په دې وجه به دَ څه تفصیل ضرورت پیښیږي. لهذا په دې ځان پوهه کول پکاردی چه په دې حدیث کښې ذکر شوو دولسوخلیفه ګانونه دامراد نه دې چه هغوی به دَحضورپاك نه پس متصلاً وار په وار راځي ځکه چه دَ حضورپاك نه پس متصلاً خلافت علی منهاج النبوة خودَحدیث پیشنګوئی مطابق صرف دیرش کالوپورې پاتې دې. دې نه پس خلافت علی العموم سلسله شروع شوې وه. لهذا په دې حدیث کښې دَ ۱۲ خلیفه ګانونه مراد داسې خلفاء دی چه دَقیامته پورې به په مختلف وختونو کښې راځي دَچادَ عدل او انصاف چه مشهور وو. هم دَدې په رنړا کښې دلته دَ دې حدیث په تشریح کښې یوڅو اقوال دی.

① دَ دغه دولسوخلیفه ګانونه مراد هغه خلیفه ګان دی کوم چه عادل متقي پرهیزګار وی. تسلسل سره به نه وی بلکه دَقیامت پورې به دا قسم دولس عادل خلیفه ګان پوره کیږی نوبیابه قیامت راځي دَ پوهې په اعتبارسره دا قول آسان دې.

② قاضي عیاض مالکي ؒ فرمائي دَ دولسو خلفاء نه مراد هغه خلفاء دی چه دَ حضورپاك دَزمانې نه پس دَ بنوامیه دَ دور پورې دوولس خلیفه ګان جوړشوی دی دَهغوی مجموعي حالات ښه وو سره دَدې چه بعضې په هغوی کښې خراب راغلي مګر دَ هغوی اعتبارنشته دې.

③ دَ دغه دولسوخلیفه ګانونه هم دَ یوې زمانې داسې خلیفه ګان مراد دی چه په اسلامي ښاریو کښې په مختلف ملکونوکښې به حاکمان وی. دهغوی وجود دَ اتفاق اواتحاد سبب نه بلکه دَ بې اتفاقئ اوجګړې سبب به وی. دَ حدیث مطلب به داشي چه دَهغوی دَ راتلونه

مخکښې به عدل او انصاف وي مګر دَهغوي دَ راتلونه پس به دَ طوائف الملوکی دور شروع کيږي او اختلافات به وي.

④ دَ دغه دولسو خليفه ګانو نه مراد هغه خليفه ګان دي کوم چه دَ حضرت مهدی نه پس به شروع کيږي هغه به دَمهدی په اولاد کښې وي او يونيم سل کاله پوري به په ډير عدل او انصاف سره حکومت کوي. لکه چه داد قيامت دَعلاماتونه يوه علامه ده چه دَ قرب قيامت په وخت به ښکاره کيږي.

**حديث الباب نه د شيعه ګانو استدلال او د هغې جواب:**

**د شيعه ګانو استدلال:** شيعه ګان دخپلو دولسو امامانو دپاره دې حديث څخه استدلال کوي چې په دې کښې د کومو دولسو امامانو ذکر دې هغه زمونږ امامان دي

**داستدلال جواب:** په حديث شريف کښې دَهغوی دَ دولسو امامانو طرف ته اشاره قدري نشته دې صرف دَ اثنی عشر لفظ دې. هغوی خپل ځان ته اثناعشريه اووئيل او دَ يو اختلافي جماعت بنياد ئې کيخودو. داخلق په دې حديث کښې تحريف کوي اوظلم کوي. حيرانتياخو په دې ده چه دَهغوی په دولسو امامانو کښې حضرت علی رضي الله عنه اوحضرت حسن رضي الله عنه نه علاوه څوك خليفه هم نه شو. کوم سړی چه يوه ورځ هم خلافت نه دې کړې هغه ته خليفه وئيل څومره لوئې دروغ دی. که حقيقت ته اوکتلې شی نودَ روافض دَمذهب بنياد په دروغو کيخودې شوې دې دَ چا قرآن چه تراوسه پورې غائب دې نودَهغوی دين به کوم ځائې وي؟

**[٥٩٨٤] دعرب بعضې قبيلوته دعا**

٥٩٨٤-(١) [١] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②(«غِفَارٌ غَفَرَ اللّٰهُ لَهَا) ③ وَأَسْلَمُ سَالَمَهَا اللّٰهُ، ④ وَعُصَيَّةُ عَصَتِ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل ② (قبيله) غفارته دي الله تعالی مغفرت وفرمايي ③ او قبيله اسلم دي الله سلامته ولري ④ عصيه (خو هغه قبيله ده) چي د الله جل جلاله او د الله د رسول الله صلی الله عليه وسلم معصيت کي مبتلا شوه. (بخاری رحمه الله و مسلم رحمه الله)

**حل اللغات:-** ① غِفَارٌ: عَلَمُ قَبِيلَةٍ: غفار د يوې قبيلې نوم دې کومې نه چه مشهور صحابی ابوذر غفاری رضي الله عنه هم دي ② أَسْلَمُ: داهم د يوې قبيلې نوم دې ③ عُصَيَّةُ: داهم د يوې قبيلې نوم دې

[١] ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب ذکر أسلم وغفار ومزينة وجهينة وأشجع (رقم-٣٥١٣) والترمذی فی السنن رقم الحديث ٣٩٤٨

**تسهيلات:**

**قوله: غِفَارُ غَفَرَ اللهُ:**

**بنو غفار د پاره د مغفرت دعا:** غفار په غين باندې كسره ده. د عربو يوه مشهوره قبيله ده په كومه كښې چه مشهور صحابي ابوذر غفاري رضي الله عنه پيدا شوې وو. حضورپاك د دې قبيلې د نوم مبدء اشتقاق غفران ته كتلو سره د هغه د پاره د مغفرت دعا اوكړه. په كال ۲۰۱۹ كښې د عمرې په غرض حرمينو ته الله تعالى بوتلې وو م. هلته د مكې څخه مدينه ته ډرائيور په جدا لاره باندې بوتلو څه تاريخي مقامات ئې راته خودلې وو په هغې كښې د سړك په غاړه د ابوذرغفاري د قبيلې د كورونو كنډرات ئې راته هم خودلې وو.

**قوله: أَسْلَمُ:**

**د جنګ څخه بغير د اسلم قبيلې اسلام قبلول:** سلامتيه دې قبيلې د جنګ او جهاد نه بغير اسلام قبول كړې وو. حضورپاك د هغوى د نوم مبدأ اشتقاق ته كتلو سره د هغوى د پاره هم د سلامتيا دعا اوكړه.

**قوله: عُصَيَّةُ:**

**د عصيه قبيلې د پاره خيرې كول:** دا د هغه بدبخت قبيلې نوم دې چا چه اويا صحابه قاريان په بيرمعونه كښې په دهوكه سره شهيدان كړې وو. حضورپاك د هغوى د نوم مبدأ اشتقاق ته كتلو سره د هغوى د پاره د هغوى د ګناه د وجې نه بددعا اوكړه.

**[۵۹۸۵] د عربو د بعضې قبيلو فضيلت**

۵۹۸۵-() [ع] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] ((«قُرَيْشٌ وَالْأَنْصَارُ وَجُهَيْنَةُ وَمُزَيْنَةُ وَأَسْلَمُ وَغِفَارُ وَأَشْجَعُ مَوَالِيَّ، [۳] لَيْسَ لَهُمْ مَوْلًى دُونَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ»)). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل قريش [۲] (مسلمان يعنى اهل مكه او نور) انصار يعنى اهل مدينه) او قبيله جهينه (مسلمانان) او قبيله اسلم (مسلمانان) اوقبيله غفار (مسلمانان) او قبيله اشجع (مسلمانان) زما دوست او مدد ګار دي [۳] د هغوى مدد ګار اودوست د الله جل جلاله اود رسول الله صلى الله عليه وسلم نه ماسوا بل څوك نشته. (بخاري و مسلم)

**حل اللغات:** - ① مَوَالِيَّ: د ياء متكلم طرف ته مضاف دي دا د مولى جمع ده د دوست په معنى كښې دي.

---

[1] اخرجه البخاري فى كتاب المناقب/باب ذكر أسلم وغفار ومزينة وجهينة وأشجع (رقم-۳۵۱۲) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل غفار، وأسلم، وجهينة، وأشجع، ومزينة، وتميم، ودوس، وطيئ (رقم-۱۸۸ - (۲۵۱۹)

**تسهيلات: قوله: مَوَالِيَّ**

**د مذكوره قبيلې ستائينه:** يعنې دا قبائل زما دوستان دي اوددوی دوستان صرف الله تعالی اودهغه رسول دي.

## [۵۹۸٦] د عربي قبيلو د خيريت ترتيب

۵۹۸٦-() [۸] [۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «أَسْلَمُ وَغِفَارُ وَمُزَيْنَةُ وَجُهَيْنَةُ، خَيْرٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ وَمِنْ بَنِي عَامِرٍ وَالْحَلِيفَيْنِ بَنِي أَسَدٍ وَغَطَفَانَ» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوبکره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] اسلم غفار مزينه او جهينه دا تولي قبيلي دبنو تميم او بني عامر رضي الله عنه دواړو حليف قبيلو يعني بنواسد او غطفان نه بهتر دي. (بخاري رحمه الله مسلم رحمه الله)

**حل اللغات:** - ① الْحَلِيفَيْنِ: يَعْنِي الْمُتَحَالِفَيْنِ: معاهده اوصلح کونکی دوه قبيلي.

**تسهيلات:**

**قوله: وَمِنْ بَنِي عَامِرٍ:**

**د بعضې قبيلو په بعضو فوقيت بيانول:** يعنې دَ بنوتميم او بنوعامر دواړو قبيلونه اسلم غفار وجهينه اومزينه قبائل بهتر دي بل چه خپل مينځ کښې کومې دوه قبيلې حليف جوړې شوی دی يعنی بنواسد اوغطفان دَهغوی نه هم دغه پورته ذکر شوې څلور قبيلې بنه دی ځکه چه هغوی دَ اسلام په قبلولو کښې سبقت اختيار کړې اودهغوی دَ راتلونکی وخت احوال به هم بنه وی.

**قوله: بَنِي أَسَدٍ وَغَطَفَانَ:**

**د ذالحليفين څخه مراد:** من دَ بيان دَپاره دي چه دَ الحليفين دَپاره بيان واقع دي. دَجاهليت په زمانه کښې بنواسد او غطفان معاهده شوې وه لهذا الحليفين نه بنواسد او غطفان مراد دی.

## [۵۹۸۷] د بنوتميم فضيلت

۵۹۸۸-() [۹] [۱] «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] مَا زِلْتُ أُحِبُّ بَنِي تَمِيمٍ مُنْذُ ثَلَاثٍ سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ فِيهِمْ [۳] سَمِعْتُهُ يَقُولُ: (هُمْ أَشَدُّ أُمَّتِي عَلَى الدَّجَّالِ) [۴] قَالَ:

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب ذکر أسلم وغفار ومزينة وجهينة وأشجع (رقم-۳۵۱۵) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل غفار، وأسلم، وجهينة، وأشجع، ومزينة، وتميم، ودوس، وطيئ (رقم-۱۹٤ - (۲۵۲۲)

[2] (اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب ذکر أسلم وغفار ومزينة وجهينة وأشجع (رقم-۳۵۱۵) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل غفار، وأسلم، وجهينة، وأشجع، ومزينة، وتميم، ودوس، وطيئ (رقم-۱۹٤ - (۲۵۲۲))

وَجَاءَتْ صَدَقَاتُهُمْ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۵](هٰذِهِ صَدَقَاتُ قَوْمِنَا)[۶] وَكَانَتْ سَبِيَّةٌ مِنْهُمْ عِنْدَ عَائِشَةَ، [۷]فَقَالَ: (اعْتِقِيهَا فَإِنَّهَا مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمایي [۲]زه بنوتمیم د هغه وخت نه همیشه عزیز او دوست لرم هر کله چې ما دهغوی د دري خاصو خوبیانو ذکر د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه آوریدلي دي [۳](دهغوی د اولنی خوبي په باره کې) حضور صلی الله علیه وسلم نه مي دا واوریدل چې زما په اُمت کې بنوتمیم هغه خلق دي چې د دجال مقابله کې به د ټولو نه زیات سخت او زړه ور ثابت شي [۴]حضرت ابوهریره رضي الله عنه (دهغوی د دویمي خوبی په باره کې دا) بیان وکړی چې (یو ځل د بنی تمیمو د طرف نه) صدقات (یعنی د زکات اموال او څاروي او نور) راغلل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۵]دا زمونږ د قوم د طرف نه راغلی صدقات دي [۶]او (دهغوی دریمه خوبی داسې ښکاره شوه چې) بنی تمیم سره تعلق لرونکي یوه وینزه بي بي عائشې رضي الله عنها سره وه [۷]د هغه په باره کې حضور صلی الله علیه وسلم بي بي عائشې رضي الله عنها ته وفرمایل چې دا وینزه آزاده کړه ځکه چې دا دحضرت اسمٰعیل علیه السلام د اولاد نه ده. (بخاری مسلم)

**حل اللغات:**- ①سَبِيَّةٌ: أَيْ: أَسِيرَةٌ: قید شوي وینزه.

**تسهیلات: قوله:** مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ:

**بنوتمیم په ولد اسماعیل کښې د شمارلووجه:** ټول عرب دَحضرت اسماعیل علیه السلام دَ اولاد نه دی مګر دلته دَ بنوتمیم قدر اومنزلت ښکاره کولو په غرض سره حضورپاك هغوی ته "من ولداسماعیل" اوفرمائیل.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### [۵۹۸۸]د قریشوپه حق کښی دُعا

۵۹۸۸-(۱)[۲][۱]عَنْ سَعْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲](«مَنْ يُرِدْ هَوَانَ قُرَيْشٍ أَهَانَهُ اللّٰهُ») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[۱] حضرت سعد رضي الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲]کوم سړی چې د قریشو ذلت او خواری او غوښته الله تعالی به هغه ذلیل او خوار کړی. (ترمذی)

**حل اللغات:**- ①هَوَانَ: أَيْ: ذُلَّهُمْ وَإِهَانَتَهُمْ: ذلت او سپکوالي. ②أَهَانَهُ: أَيْ: أَذَلَّهُ وَأَخْزَاهُ: الله تعالی به ئې ذلیله کړی اوبه ئې شرموی.

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی فضل الأنصار وقریش (رقم-۳۹۰۵) واحمد فی المسند:۱/۱۷۱

تسهیلات:

**قوله:** مَنْ يُرِدْ هَوَانَ قُرَيْشٍ أَهَانَهُ اللهُ،

**د قریشو اهانت څخه ممانعت:** دا ارادهٔ دَ باب افعال نه دی او دَشرط دَ وجې نه مضارع مجزوم دی یعنی دَ قریشو تذلیل او سپکاوی مه کونی که هغه حاکم وی او که محکوم وی. که دَدوی سپکاوی کونی نو الله تعالی به ناراض شی او تاسو به ذلیل او رسوا کړی.

**[۵۹۸۹] د قریشو د نسلونو دپاره دعا**

۵۹۸۹-( ) [۱] ①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②(«اللَّهُمَّ أَذَقْتَ أَوَّلَ قُرَيْشٍ نَكَالًا، ③فَأَذِقْ آخِرَهُمْ نَوَالًا»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وایی رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې دعا وکړه ② ای الله تا قریشو باندې ابتداء کې (دغزوه بدر او غزوه احزاب په موقع د شکست او تباهی) عذاب او څکولو (هر کله چې هغوی د حق دین مخالفت او ستاسو رسول سره د عداوت لار اختیار کړی وه) ③ خو اوس چې هغوی اسلام قبلولو سره او ستا د رسول الله صلی الله علیه وسلم اطاعت اختیارولو سره دین او مسلمانانو ته تقویت او مدد رسولې دې نو آخر کې هغوی په ورکړې او بخشش سره اولمانځې. (ترمذی)

**حل اللغات:-** ① أَذَقْتَ: تا اوڅکولو ② نَكَالًا: أَيْ: بَلَاءً وَوَبَالًا: ازمانش او مصیبت د شکست ③ نَوَالًا: أَيْ: إِنْعَامًا وَعَطَاءً: ورکړه او انعامات او فتوحات مراد دی

تسهیلات:

**قوله:** أَوَّلَ قُرَيْشٍ:

**قریشو ته په اول کښې د سزا ورکولو مطلب:** دَقریشو ابتدائی خلق او ابتدائی حصه دَهغه خلقو وه چه بدر ته راغله او هغوی ته عبرتناک سزا ملاؤ شوه

**قوله:** نَوَالًا:

**قریشو ته په آخر کښې د خوشحالی حاصلیدو دعا:** دَقریشو آخری حصې ته دا نعمتونه دَ اسلام دَ غلبه دَ وجې نه ملاؤ شوی وو قریش چونکه دَ بیت الله متولی وو په دې وجه دَهغوی یو مقام وو کله چه ئې دَ کفر نه توبه اوکړه نو دَ دعا مستحق شو

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی فضل الأنصار وقریش (رقم-۳۹۰۸) واحمد فی المسند:۱/۲۴۲

## [٥٩٩٠] د يمنی قبیلو خویې او د هغوی تعریف

٥٩٩٠-(١) [٣] ① وَعَنْ أَبِي عَامِرٍ الْأَشْعَرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «نِعْمَ الْحَيُّ الْأَسْدُ وَالْأَشْعَرُونَ ③ لَا يَفِرُّونَ فِي الْقِتَالِ وَلَا يَغُلُّونَ، ④ هُمْ مِنِّي وَأَنَا مِنْهُمْ» ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوعامر اشعری رضی الله عنه (چې دابوموسی اشعری رضی الله عنه تره دی) بیان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② أسد او اشعری ډیرې ښې قبیلې دي ③ دا دواړې قبیلې نه د کفارو مقابله کې دجنګ نه تښتي او نه مال غنیمت کې خیانت کوي ④ هغوی زما نه دي او زه د هغوی نه یم دا روایت ترمذی رحمه الله نقل کړی دی او ویلې یې دي چې داحدیث غریب دي.

**حل اللغات:** - ① نِعْمَ: ډیر ښه، ② الْحَيُّ: أَي: الْقَبِيلَةُ: قبیله، ③ لَا يَفِرُّونَ: تیښته نه کوی (دمیدان جنګ نه)، ④ لَا يَغُلُّونَ: أَيْ: وَلَا يَخُونُونَ: خیانت نه کوی.

**تسهیلات:**

**قوله:** نِعْمَ الْحَيُّ الْأَسْدُ وَالْأَشْعَرُونَ،

**داسد قبیلې تعارف:** دَ یمن دَ قبیلې دَ لوئی سردار نوم اسد وو هم دَ دغه سړی په نوم سره اسد قبیله متعارف او مشهوره شوه. هم دې قبیلې ته ازد هم وائی او "ازدشنوئة" هم ورته وائی. دَ مدینې دَانصارو ټول تعلق هم دې قبیلې سره وو.

**د اشعری قبیلې تعارف:** هم په دې قبیله کښې یو بل سردار وو دکوم نوم چه عمرو بن حارثه وو او لقب ئې اشعر وو. هم دغه اشعر طرف ته منسوب خلقو ته اشعری اشعرون او اشعریون وائی حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه هم دَدې قبیلې نه وو. لکه چه اسد، ازدشنوه، ازدالله او اشعرون ټول هم دَیوې قبیلې نومونه دی.

## [٥٩٩١] د الله لښکر

٥٩٩١-(٢) [٣] ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «الْأَزْدُ أَزْدُ اللَّهِ فِي الْأَرْضِ، ③ يُرِيدُ النَّاسُ أَنْ يَضَعُوهُمْ وَيَأْبَى اللَّهُ إِلَّا أَنْ يَرْفَعَهُمْ، ④ وَلَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يَقُولُ الرَّجُلُ: ⑤ يَا لَيْتَ أَبِي كَانَ أَزْدِيًّا، وَيَا لَيْتَ أُمِّي كَانَتْ أَزْدِيَّةً» ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② د قبیله ازد خلق د زمکې په مخ باندې د الله ازد (یعنې د الله لښکر او د هغه د دین معاون او مدد

---

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی ثقیف وبنی حنیفة (رقم-٣٩٤٧) واحمد فی المسند: ٤/١٢٩

[٢] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی فضل الیمن (رقم-٣٩٣٧)

ګار) دي ③خلق دا قبيله ذليل او خوار کول غواړي او الله تعالی د هغوی بر خلاف د دې قبيلې خلقو ته عزت او بلندی ورکول غواړي ④يقيناً خلقو باندې هغه زمانه راتلونکې ده هر کله چې سړی به دې ويلو باندی په نظر راځي ⑤چې کاش (آرمان) زما پلار ازدی وې او کاش زما مور د قبيله ازد نه وې دا روايت ترمذی رحمه الله نقل کړی دی او ويلې يې دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:-** ①أَزْدُ: دا مشهوره قبيله ده داد ازد بن غوث نه دی د انصار مدينه تعلق هم دې قبيلې سره دی.

**قوله:** الْأَزْدُ أَزْدُ اللّٰهِ فِي الْأَرْضِ،

**د ازد قبيلې الله تعالی طرف ته نسبت کښې درې اقوال:** امام طيبی رحمه الله فرمائی چه د ازد قبيلې نسبت د الله تعالی طرف ته کول د مختلف وجوهاتو په وجه دی.

① دا خلق د مخکښې نه ډير بهادر، په جنګ کښې ثابت قدم پاتې کيدونکی وو د اسلام په خورولوکښې د انصارو ډير لوئی خدمات دی. په دې اعتبار سره د دې قبيلې خلق د الله تعالی د دين او د رسول مددګار کيدو په حيثيت سره د الله تعالی لښکر ثابت شو په دې وجه د هغوی فضل اوعزت ښکاره کولو د پاره د هغوی د قبيلې نسبت د الله تعالی طرف ته اوکړې شو.

② بعضې حضراتو وئيلی دی چه د دې اضافت او تخصيص او تشريف د پاره دې لکه بيت الله، ناقة الله کښې چه اضافت دې.

③ د اضافت نسبت د بهادرئی او تکړه والی د وجې نه دې. په دې صورت کښې به دا کلام د تشبيه په توګه وی. مطلب به دا شی چه د قبيله ازد خلق د بهادرئی په جنګ کښې د الله تعالی ازمری ثابت شوی دی. (مرقاة ايضاً)

**قوله:** يُرِيدُ النَّاسُ أَنْ يَضَعُوهُمْ،

**انصارو ته د الله تعالی د طرفه عزت ملاويدل:** کافران به هغوی ذليل کول غواړی مګر الله تعالی به هغوی هميشه غالب او د عزت والاساتی. چنانچه هم دغه شان اوشوه. تراوسه پورې د انصارو ډير لوئی احترام دې او په آخرت کښې به په درجهٔ اولی وی

**قوله:** وَلَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ

**په آخره زمانه کښې د ازد قبيلې په عزت اضافه کيدل:** يوه زمانه به داسې راشی چه د قبيله ازد به دومره زيات عزت وی چه خلق به هغوی ته پسخيږی او ترديې چه د ډير عزت والا انسان به هم دا وائی چه افسوس مونږ هم ازديان وې. د دې نه معلومه شوه چه د قبيله ازدی به ډير لوئی عزت وی. بهرحال د دې نه مراد دينی او اخروی شرافت دې.

## [۵۹۹۲] د درې قبيلو په باره کښې د ناخوښۍ اظهار

۵۹۹۲ - () [۳] [۱] وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] مَاتَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ يَكْرَهُ ثَلَاثَةَ أَحْيَاءٍ: ثَقِيفٍ، وَبَنِي حَنِيفَةَ، وَبَنِي أُمَيَّةَ. [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت عمران ابن حصين رضی الله عنه وايي [۲] رسول الله صلی الله عليه وسلم د درو قبيلو ثقيف بنو حنيفه او بنو أميه نه ناخوښه ددې دنيا نه تشريف يوړی [۳] دا روايت ترمذي رحمه الله نقل کړې دې او ويلې يې دی چې دا حديث غريب دې

**حل اللغات**: - ① أَحْيَاءٍ: جَمْعُ حَيٍّ بِمَعْنَى قَبِيلَةٍ: ددې جمع حیٔ راځی قبيلې ته وائی.

**تسهيلات**:

**قوله**: وَهُوَ يَكْرَهُ ثَلَاثَةَ أَحْيَاءٍ:

**د نبی عليه السلام د درې قبيلو د ناخوښۍ وجوهات**: ① **ثقيف**: په دې قبيله کښې مشهور ظالم حجاج بن يوسف پيدا شوې وو چا چه يو لاکهـ او شل زره بې گناه اسنانان ترلوسره قتل کړې وو. اوس مخکښې دَهغوی حالات راځی.

② **بنو حنيفه**: په دې قبيله کښې مشهور کذاب اودَ دروغو دَ نبوت دعويدار مسيلمه کذاب پيدا شو.

③ **بنو أُمَيَّة**: په دې قبيله کښې عبدالله بن زياد اويزيد اونور درغوړن پيداشوی دی دَدغه ناخوښه کسانودَ وجې نه دَحضورپاك دغه قبائل ناخوښه وو.

## [۵۹۹۳] په بنو ثقيف کښې د کذاب اوسفاك پيشن کونی

۵۹۹۳ - () [۵] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «فِي ثَقِيفٍ كَذَّابٌ وَمُبِيرٌ» [۳] قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عِصْمَةَ: يُقَالُ: الْكَذَّابُ هُوَ الْمُخْتَارُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ، [۴] وَالْمُبِيرُ هُوَ الْحَجَّاجُ بْنُ يُوسُفَ، [۵] وَقَالَ هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ: أَحْصَوْا مَا قَتَلَ الْحَجَّاجُ صَبْرًا [۶] فَبَلَغَ مِائَةَ أَلْفٍ وَعِشْرِينَ أَلْفًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عمر رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل [۲] د ثقيف قبيله کې به د انتها درجې يو دروغجن سړی پيدا شي او د يو انتها درجې مفسد او هلاکو [۳] حضرت عبيدالله ابن عصمه تابعي رحمه الله (د هغه دروغجن سړی دتعين په باره کې وايي چې د علماؤ وينا ده چې دروغجن سړی نه مراد مختار ابن عبيد [۴] ومفسد او هلاکوځخه مراد حجاج ابن يوسف (مشهور ظالم) دي [۵] و د هشام ابن حسان رضی الله عنه (چې د

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب فی ثقیف وبنی حنیفة (رقم-۳۹۴۳)

[۲] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب فی ثقیف وبنی حنیفة (رقم-۳۹۴۴) واحمد فی المسند: ۲۶/۲

پورته درجي فقيه او حديث علم کې زبردست مهارت لرونکي يو مشهور متقي او بزرگ دي او د هغه شمير آئمه حديث کې کيږي بيان دي چې حجاج ابن يوسف چې څومره خلق (جنګ ومعرکه کې نه) بلکه دغه شان نيولو نيولو سره او قيد خانه کې اچولو سره قتل کړي دي [٦] د هغوی تعداد خلقو شميرلي دي چې يولاك شل زره ۱۲۰۰۰۰) دي دا روايت ترمذی رحمه الله نقل کړی دي

**حل اللغات:**- ① مُبِيرٌ: دا د بَوَار نه دي، أَيْ: مُفْسِدٌ وَمُهْلِكٌ: فساد کونکي او هلاکونکي. ② أَحْصَوْا: أَيْ: اضْبُطُوا وَعَدُّوا: ذکرکړی او شميرکړی ئي دی. ③ صَبْرًا: أَيْ: مَصْبُورًا يَعْنِي مَحْبُوسًا مَأْسُورًا: په نيولو اوقيد کولوسره (يعنی په جنګ کښې د قتلونکو تعداد په دې کښې شامل نه دې).

۵۹۹۴-() [١] وَرَوَى مُسْلِمٌ فِي (الصَّحِيحِ) حِينَ قَتَلَ الْحَجَّاجُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ [٢] قَالَتْ أَسْمَاءُ: «إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَدَّثَنَا [٣] (أَنَّ فِي ثَقِيفٍ كَذَّابًا وَمُبِيرًا) [٤] فَأَمَّا الْكَذَّابُ فَرَأَيْنَاهُ، [٥] وَأَمَّا الْمُبِيرُ فَلَا إِخَالُكَ إِلَّا إِيَّاهُ» [٦] وَسَيَجِيءُ تَمَامُ الْحَدِيثِ فِي الْفَصْلِ الثَّالِثِ.

**ترجمه:** [١] او امام مسلم رحمه الله خپل صحيح کې دا روايت نقل کړی دي چې کومه ورځ حجاج ابن يوسف حضرت عبدالله ابن زبير رضي الله عنه شهيد کړی [٢] نو بي بي اسماء (چې د حضرت عبدالله ابن زبير رضي الله عنه مور او د حضرت ابوبکر رضي الله عنه لور ده) اوويل مونږ ته رسول الله صلی الله عليه وسلم بيان کړی ؤو [٣] چې بنو ثقيف کې به د انتها درجې يو دروغجن سړی پيدا کيږي او يو لوی مفسد او هلاکو [٤] هر چې دروغجن سړی دي نو هغه مونږ اوليدلو [٥] او س پاتې شوه د مفسد اوهلاکو خبره نو زما خيال دي چې اې حجاج! هغه مفسد او هلاکوته يې [٦] دا پوره حديث دريم فصل کې را روان دي.

**حل اللغات:**- ① فَلَا إِخَالُكَ: زما خيال نه دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** يُقَالُ: الْكَذَّابُ هُوَ الْمُخْتَارُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ،

**د مختار بن عبيد ثقفي:** دَمختار بن عبيد ثقفی تفصيل دې نه مخکښې کتاب الملاحم کښې تيرشوې دې هلته اوګورئ.

**قوله:** وَالْمُبِيرُ هُوَ الْحَجَّاجُ بْنُ يُوسُفَ،

**دحجاج بن يوسف تعارف:** حجاج بن يوسف قبيله ثقيف سره تعلق لرلو اول دې دَ عبدالملك بن مروان ګورنر وو عراق اوخراسان دَ ده نه لاندې وو بيا دې په حجاز باندې هم ګورنرشو دَعبدالملك نه پس وليدبن عبدالملك په بادشاهئ کښې هم حجاج ګورنر وو اوظلم ئې کولو بيا په ۹۵ھ کښې دَ ۵۴ کالو په عمر کښې انتقال شو.

---

[١] ) اخرجه مسلم فی صحيحه رقم الحديث ۲۲۹/ ۲۵٤۵ واحمد فی المسند رقم الحديث ۲/ ۸۷

**د حجاج د مور د پیۍ نه څکلو عجیبه واقعه:** ونیلی شی چه کله حجاج پیداشو نو ده د مور پیئی نه څکل ابلیس دَ یوحکیم په شکل کښې راغلو اودَ ده مور ته ئې اوونیل چه یوه توره چیلئې ذبح کړه اودَهغې په وینه کښې حجاج لړپړکړه اوڅه وینه په ده باندې اوڅکه دې به په پینوڅکلو راشی چنانچه مورئې هم داسې اوکړه دکوم په وجه چه حجاج دَ انسانی وینې عادت شو پخپله به ئې وئیل چه ماله هغه وخت خوراك خوند راکوی چه اول څوك قتل کړم

**د عبدالملک د ښځې په خپل خاوند دحجاج په ناسته ویره:** یوخل حجاج بن یوسف خلیفه عبدالملك سره په کمره کښې یوازې ناست وو. دَ خلیفه عبدالملك ښځې خپل خاوند راؤغوښتلو اودَخطره اظهارئې اوکړو. عبدالملك وئیل هیڅ خطره نشته خپل سړی حجاج سره ناست یم. ښځې وئیل ماته عزرائیل سره کیناستوکښې دومره خطره نشته څومره خطره چه حجاج سره ځان له کیناستو کښې ده.

**دحجاج د جیلخانې نقشه:** حجاج یولاکهه او شل زره بې ګناه کسان وژلی دی. څوك چه ئې اول په جیل کښې بند کړل اوبیائې خپې لاسونه تړلوسره مړه کړه. دَحجاج دَ جیل به چت نه وو بلکه په ګرمئی اویخنئی کښې به قیدیان ښکاره دآسمان لاندې ژوند تیرولو. په جنګونوکښې چه حجاج څومره کسان وژلی دی دَهغې حساب لګول مشکل دی.

**د حجاج د جیل څخه د پنځوسوزرو نعشونو راوتل:** دابومسلم خارسانی څخه وئیلی شی چه ابومسلم خراسانی شیعه شپږ لاکهه انسانان بې ګناه وژلې وو لیکن دَ ظلم په حواله سره حجاج دَهغه نه ډیر وړاندې وو. وئیلی شی چه دَ حجاج دَ جیل نه دَپنځوسو زرو کسانو نعشونه صرف په یووخت کښې راوتلی وو. دې سړی ډیرزیات صحابه کرام هم شهیدان کړی وو او سیدالتابعین حضرت سعیدبن جبیر رحمه الله دَقتل واقعه مشهوره ده.

**دابن عمر رضی الله عنه قتلول:** حضرت ابن عمر رضی الله عنه چه کله په سولئی باندې زوړندشوې دَ حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه نعش ته تعزیت اوکړو نوحجاج غصه شو او په دهوکه باندې حضرت ابن عمر رضی الله عنه شهید کړو.

دَ ابن زبیر رضی الله عنه دَ شهادت نه پس حجاج حضرت اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنها راؤغوښتله چه زما دفتر ته راشه هغې انکار اوکړو بیا حجاج پخپله لاړو اوونی وئیل چه ما ستا ځوئی څنګه قتل کړو؟ هغې جواب ورکړو تازما دَ خوئی دنیا برباد کړه اوزما خوئی ستا آخرت بربادکړو. بیائی دازیربحث حدیث واؤرولو. نورتفصیل دمشکاة فصل ثالث کښې موجود دی.

**په جمات کښې اوده کس ذبح کول:** یوخل په جمات کښې یوسړې پروت وو حجاج دَ هغه په سینه باندې کیناستو هغه ئې ذبح کولوهغه سړی وئیل په قیامت کښې به الله تعالی ته څه جواب ورکوې؟ حجاج دَ یوساعت دپاره اخوا شو اوسوچ ئې اوکړو اوبیاراغلو وئې وئیل چه الله تعالی ته به وایم داسړې په جمات کښې اوده کیدو چه ګناه ده. دې وینا کولوسره ئې

ذبح کړو. دا سړې پخپله ډیر بزدل وو مګر ډیر لوئی ظالم وو.

**په قرآن پاک باندې د اعراب لګولو کارنامه:** په قرآن کریم کښې اعراب او رکوع ګانې لګولو باندې هغه علماء مامور کړه په دې کښې ئی هم خلق قتل کړل.

**د حجاج په مرګ د یو عالم د خوشحالۍ واقعه:** یوخل ئی یوعالم ته اووئیل "فرجة"په غین باندې څواعراب راتلې شی هغه وئیل ماته مهلت راکړه حجاج وئیل درې ورځې مهلت دې جواب راکړه ګنی مرګ دې. هغه سړې کلو ته لاړو چه دَدې اعراب پته اولګوی. په ځنګل کښې یو ګډبه دا شعر وئیلو:

ربما تکره النفوس من الامر    لها فرجة کحل العقال

دې عالم دَ دغه خالص عربی بدو نه تپوس اوکړو په دې شعر کښې دَ فرجة په فاء باندې څومره حرکات راتلې شی. هغه وئیل دَ فعلة په وزن باندې چه څومره کلمات وی دَهغې په فاء کلمه باندې درېواړه حرکات راتلې شی. عالم دَ خوشحالئی نه ټوپونه اووهل اوبیائی داتپوس اوکړو چه تادا شعر ولې اووئیل؟ هغه سړی اووئیل چه هم اوس خبرراغلو چه حجاج مړشو ما په دې مناسبت سره دا شعر وئیلې دې چه بعضې وخت انسان په ډیر تکلیف اوغم کښې اخته وی لیکن ناځاپی دَ هغه مصیبت نه داسې خلاص شی لکه چه ترلې شوې اوښ دَ رسئی نه خلاص شی. دغه عالم وئیل چه ماته نه ده معلومه چه زه دَدې لغت په ملاویدوسره ډیر خوشحال شوم که دَ حجاج په مرګ سره ډیرخوشحال شوم.

**د حجاج مرض الوفات:** کله چه حجاج بیمارشو نودَهغه په خیټه کښې به سوزیدل کیدل. هغه طبیبانو راؤغوښتل یو طبیب تار سره غوښه اوتړله او خیټې ته ئی ورکوزه کړه کله چه ئی رابنکله نوهغې پورې چینجی انختې وو. طبیب وئیل دا ستا بیماری ده. بیا به حجاج خیټه اور ته نیزدې کوله چه ګرمیدو سره چینجی اوتختی.

یوخل حسن بصری رحمه الله هغه له لاړو اوهغه ته ئی اووئیل چه ما ته منع کړې وې چه صحابه کرام مه تنګه وه اوس ستا عذاب شروع شوې دې.

**حجاج بن یوسف د جنازې موقع:** دَمرګ نه پس چاهم دَهغه جنازه نه کوله صرف حسن بصری رحمه الله دَ جنازې کولو دَپاره تیارشو او وئی فرمائیل چه دَ مرګ په وخت ده استغفار کړې دې هیڅ لرې نه ده چه الله تعالی دې معاف کړی.

**دمرګ څخه روسته د خوب کښې لیدل:** دَمرګ نه پس چا په خوب کښې اولیدلو او تپوس ئی ترې اوکړو چه الله تعالی درسره څه معامله اوکړه؟ جواب ملاؤ شو چه زه دَ هرمقتول په بدله کښې یویوخل قتل کولې شم لیکن دَ سعیدبن جبیر رحمه الله په بدله کښې زه اویاځل قتل کړې شوم اوبیا راژوندې کړې شوم. تپوس کونکی تپوس اوکړو چه ستا څه ګمان دې. وئیل امیدلرم چه آخر به زما رب ما معاف کړی.

## [۵۹۹۵] د ثقيف دپاره د هدايت دُعاء

۵۹۹۵-( )[۳] ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ② أَحْرَقَتْنَا نِبَالُ ثَقِيفٍ، ③ فَادْعُ اللّٰهَ عَلَيْهِمْ قَالَ: ④ (اللّٰهُمَّ اهْدِ ثَقِيفًا)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر رضي الله عنه وايي يوه ورځ خني صحابو رضي الله عنهم عرض وکړې يا رسول الله! ② د قبيله ثقيف غشو مونږ وسوزولو ③ د هغوی دپاره د الله جل جلاله نه بد دعا وغواړې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل ④ ې الله! قبيله ثقيف ته د (قبول اسلام او اطاعت احکام) هدايت او توفيق ورکړې (ترمذی رحمه الله)

**حل اللغات:-** ① أَحْرَقَتْنَا: اوسوزولو مونږ لره. ② نِبَالُ: دا جمع د نِبل ده. أي: سِهَامُهُمْ: غشې (د بنو ثقيف قبيلې)

**تسهيلات:**

**قوله:** اللّٰهُمَّ اهْدِ ثَقِيفًا

**بنو ثقيف ته د خيرو به ځائې دعا کول:** دَغزوه حنين نه پس دَ طائف دَ قلعه محاصره شوې وه دَ دننه نه به دَ ثقيف والو غشي ورول. کله چه مسلمانانوته دَ بنو ثقيف نه ډير تکليف اورسيدو خو رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ خپل کريمانه او رحيمانه اخلاقو دَ وجې دَبنو ثقيف خلاف دَ بددعا په ځائې دَ بنو ثقيف په حق کښې دعا اوکړه. نودَ حضورپاك دَ دعا په برکت سره بنو ثقيف مسلمانان شوې وو. بيا هم په دوی کښې محمد بن قاسم رحمه الله جنګې سپه سالار جوړيدو سره راوچت شو اودَ اسلام دَ سرلوړنی سبب جوړشو

## [۵۹۹۶] د حمير قبيلې دپاره دُعاء

۵۹۹۶-( )[۲] ① عَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مِينَاءَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَجَاءَهُ رَجُلٌ أَحْسَبُهُ مِنْ قَيْسٍ ③ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! الْعَنْ حِمْيَرًا فَأَعْرَضَ عَنْهُ، ④ ثُمَّ جَاءَهُ مِنَ الشِّقِّ الْآخَرِ، فَأَعْرَضَ عَنْهُ، ⑤ ثُمَّ جَاءَهُ مِنَ الشِّقِّ الْآخَرِ، فَأَعْرَضَ عَنْهُ،

**ترجمه:** ① او حضرت عبدالرزاق ابن همام رحمه الله (چې جليل القدر عالم او فقيه او کثير التصانيف بزرګ دي، خپل والد مکرم (حضرت همام ابن الحارث نخعی تابعی رحمه الله) نه او هغه د حضرت ميناء رحمه الله نه او هغه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه نقل کوی چې هغوی يعنی (حضرت ابوهريره رضي الله عنه) بيان وکړی ② يوه ورځ مونږ خلق د نبی کريم صلى الله عليه وسلم په مجلس مبارك کې حاضر ؤ يو سړی حضور صلى الله عليه وسلم ته راغی د هغه په باره کې زما ګمان دي

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في ثقيف وبني حنيفة (رقم-۳۹۴۲) واحمد في المسند: ۳/۳۴۳

[2] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في فضل اليمن (رقم-۳۹۳۹) واحمد في المسند: ۲/۲۷۸

چې هغه قبیله قیس سره تعلق لرلو [۳]هغه اوویل یا رسول الله ! قبیله حمیر باندې لعنت اووایه یعنې د هغوئ په حق کې بد دُعا وکړه چې الله تعالیٰ دا قبیله د خپل رحمت نه لرې کړي حضور ﷺ (چې دا واؤریدل نو) د هغه سړي نه یې مخ واړولو [۴]هغه سړی بیا دویم طرف نه د حضور ﷺ مخې ته راغلو حضور ﷺ د هغې خوا نه هم مخ واړولو بیا [۵]هغه سړی دویم طرف نه د حضور ﷺ مخې ته راغلو نو حضور ﷺ د هغه طرف نه هم مخ واړولو یعنې حضور ﷺ په هیڅ شان هغه طرف ته متوجه نه شو او د هغه خبرې منلو ته تیار نه شو

**حل اللغات:-** ① الْعَنْ: أَيْ: ادْعُ عَلَيْهِمْ بِالْبُعْدِ عَنِ الرَّحْمَةِ: لعنت پرې اووایه یعنې د رحمت نه د لرې کیدو خیرې ورته اوکړه ② حِمْيَرًا: صعنعاء یمن مغربی طرف ته یوه قبیله ده دهغې پلار دې دهغه په نوم دا قبیله یادیږی ③ الشِّقِّ: أي الْجَانِب طرف.

[۱]فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (رَحِمَ اللَّهُ حِمْيَرًا، [۲]أَفْوَاهُهُمْ سَلَامٌ، [۳]وَأَيْدِيهِمْ طَعَامٌ، [۴]وَهُمْ أَهْلُ أَمْنٍ وَإِيمَانٍ) » رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، [۵]وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّزَّاقِ وَيُرْوَى عَنْ مِينَاءَ هَذَا أَحَادِيثُ مَنَاكِيرُ.

**ترجمه:**[۱] او بیا حضور ﷺ وفرمایل الله تعالیٰ دې حمیر باندې خپل رحمت نازل کړی [۲]د هغوی خلې سلام دي [۳]د هغوی لاسونه طعام دي [۴]و هغوی اهل امن هم دي او اهل ایمان هم دا روایت ترمذی رحمه الله نقل کړی دي [۵]او ویلې یې دی چې دا حدیث غریب دي دا روایت مونږ ته د عبدالرازق ابن همام رحمه الله نه علاوه بل هیڅ ذریعې سره معلوم نه دي او میناء رحمه الله نه نقل کیدونکې روایتونه منکر دي (مطلب دا که عبدالرزاق ابن همام مسلمه فقیه او محدث او قوی ثقه راوی دي خو میناء رحمه الله یو ضعیف راوی دي

**حل اللغات:-** ③ سَلَامٌ: أَيْ: ذَاتُ سَلَامٍ: سلامتیا والا، یعنې أَنَّهُمْ يَفْشُونَ السَّلَامَ: سلام خورونکي عام کوی ⑤ طَعَامٌ: أَيْ: ذَاتُ طَعَامٍ: خوراک والا یعنې يُطْعِمُونَ الطَّعَامَ: په خلقو خوراک خورونکي

**تسهیلات:**

**قوله:** رَحِمَ اللَّهُ حِمْيَرًا، أَفْوَاهُهُمْ سَلَامٌ،

**د حمیر قبیلې ښه صفات:** د ژبونه هروخت دهغوی نه د اسلام خبرې کیدې اوبه لاسونو باندې په خلقو خوراك کول او دسترخوانونه بنائسته کول او په زړونو کښې د ایمان چراغونه بلیدل لهذا دوی د بددعا مستحق نه دی

**[۵۹۹۷] د دوس قبیلې دپاره دعا**

۵۹۹۷ -(۱) [۱۸][۱]وَعَنْهُ، قَالَ: «قَالَ لِي النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲](مِمَّنْ أَنْتَ؟) قُلْتُ: مِنْ دَوْسٍ. [۳]قَالَ: (مَا كُنْتُ أَرَى أَنَّ فِي دَوْسٍ أَحَدًا فِيهِ خَيْرٌ)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب أبی هریرة رضی الله عنه(رقم۳۸۳۸)

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي (يوه ورځ) نبي كريم صلى الله عليه وسلم زما نه پوښتنه وكړه [۲] ته د كومي قبيلي نه يې ما عرض وكړي (ديمن د مشهور قبيله ازد يو شاخ) دوس سره تعلق لرم [۳] حضور ﷺ (حيرت ظاهر ولو سره وفرمايل ماته گمان هم نه ؤ چې قبيله دوس كې څوك داسې هم كيدى شي چې هغه كې خير او نيكى وي (ترمذي رحمه الله)

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا كُنْتُ أَرَى أَنَّ فِي دَوْسٍ أَحَدًا فِيهِ خَيْرٌ،

**د دوس قبيلې په باره كښې د نبي عليه السلام د سوچ بدليدل:** يعنى اې ابوهريره تاته په كتوسره ماته اندازه اوشوه چه په قبيله دوس كښې څه نا څه خيرشته گنى دې نه مخكښې خوزما خيال وو چه په دې خلقو كښې هيڅ خير اونيكى نشته دې

**[۵۹۹۸] د عربو سره دښمني نبي كريم ﷺ سره د ښمني مترادف**

۵۹۹۸-() [۹] [۱] وَعَنْ سَلْمَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "لَا تُبْغِضْنِي فَتُفَارِقَ دِينَكَ [۳] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! كَيْفَ أُبْغِضُكَ وَبِكَ هَدَانَا اللَّهُ؟ [۴] قَالَ: (تُبْغِضُ الْعَرَبَ فَتُبْغِضُنِي)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت سلمان رضي الله عنه وايي (يوه ورځ) رسول الله صلى الله عليه وسلم ماته وفرمايل [۲] زما سره د ښمنى مه ساته كنى ته به خپل دين نه جدا شي [۳] ما، دې خبرې اوريدوسره حيرانتيا سره عرض وكړي يا رسول الله! دا څرنگه كيدى شي چې زه ستاسو سره د ښمني څه چې د دښمني تصور هم اوساتم حالانكه د الله جل جلاله حبيب يې د خپل پوره أمت محبوب يې او ستاسو په ذريعه الله جل جلاله مونږ ته د اسلام او ښو كارونو سيده لار وښودله [۴] حضور ﷺ وفرمايل كه ته د عربو سره د ښمني كوي نو لكه چې زما سره دښمني كوي دا روايت ترمذي رحمه الله نقل كړ دي او ويلي يې دي چې داحديث غريب دي

**حل اللغات:** - ① لَا تُبْغِضْنِي: ما سره بغض. د ښمنى مه ساته ② فَتُفَارِقَ: كنى ته به دخپل دين نه جدا شې

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تُبْغِضْنِي فَتُفَارِقَ دِينَكَ..الخ:

**د عربو سره د بغض كولو څخه منع كولو كښې دوه احتمالات:**

① حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه د فارس وو اود فارس د ژبې او وطنيت تقاضا وه چه عربو سره دې د هغوى بغض اود ښمنى پيدا شى كه هغه په راتلونكى وخت كښې ولې نه وى

② داهم ممكن ده چه په حضرت سلمان رضي الله عنه كښې څه شك ليدلې شوې وى په دې باندې

---

[۱] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في فضل العرب (رقم-۳۹۲۷) واحمد في المسند:۵/۴۴۰

حضور پاك عربو سره بغض او عداوت دَ ايمان دَ زوال سبب او خود لو
**تولو عربو سره د بغض کولو ممانعت**: دَحديث نه معلومه شوه چه عربو سره بغض حضور پاك سره بغض دي لهذا هر مسلمان له دَعربو احترام كول پكار دي راقم الحروف عرض كوي چه ما كتلي دي چه كوم خلق دَ دين اسلام دښمنان وي هغوي دَعربو خلاف په بدو خبرو كولو كښې مصروف وي

**[۵۹۹۹] عربو سره دهوکه د نبی علیه السلام د شفاعت څخه د محرومتیا سبب**

۵۹۹۹-() [۲۰] [۱] وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ غَشَّ الْعَرَبَ لَمْ يَدْخُلْ فِي شَفَاعَتِي، [۳] وَلَمْ تَنَلْهُ مَوَدَّتِي» ). [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حُصَيْنِ بْنِ عُمَرَ، [۵] وَلَيْسَ هُوَ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ بِذَاكَ الْقَوِيِّ.[1]

**ترجمه**: [۱] او حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه وايي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] كوم سړى چي عربو سره فريب او دهوكه بازى كوي هغه به زما شفاعت كي نه داخليږي [۳] او نه به هغه ته زما د دوستى سعادت حاصل شي [۴] دا روايت ترمذى رحمه الله نقل كړى دي او ويلي يي دي چي دا حديث غريب دي دا روايت مونږ د حصين ابن عمر نه علاوه بل هيڅ ذريعي سره نه پيژنو [۵] او د محدثينو په نزد د هغه (حصين ابن عمر) د دي درجي قوي نه دي (ترمذى رحمه الله)

**حل اللغات**:- ① غَشَّ: أَيْ: أَبْغَضَهُمْ: بغض كوى، دهوكه يا خيانت كوى ② لَمْ تَنَلْهُ: أَيْ: لَمْ تُصِبْهُ: حاصل به نه شي. نصيب به نه شي هغه ته، ③ مَوَدَّتِي: أَيْ: مَحَبَّتِي: محبت زما

**تسهيلات**:

**قوله**: مَنْ غَشَّ الْعَرَبَ لَمْ يَدْخُلْ فِي شَفَاعَتِي،

**د غش څخه مراد**: ① دَ "غش" مطلب دهوكه او فراډ هم كيدي شي
② بغض او عداوت هم كيدي شي. دَعجم نه علاوه هغه ټول خلق عرب دى كه هغه په ښاريو كښې او سيږي او كه په كلو كښې وي

**عربو سره د دهوكي صورتونه**: ① دهوكه فريب او دغا بازى ته غش وائى عربو سره دهوكه داده چه هغوى سره په ذاتى توګه باندي خيانت او كړې شي
② دَهغوى په داخلى پاليسئى كښې ردوبدل كولو سره دكافرانو ملګرى جوړ كړى يا داسې بين الاقوامى معاهدې او كړې شي په كوم سره چه عرب دَ غلامئى په زنځيرونو كښې راګير كړې شي

---
[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في فضل العرب (رقم-۳۹۲۸) واحمد في المسند:۱/۷۲

④ په اجتماعي توګه خيانت اوکړي شي. دَهغوی خارجه پاليسی بدلولوسره دکافرانوتابع جوړه کړي شي

**قوله**: وَلَيْسَ هُوَعِنْدَأَهْلِ الْحَدِيثِ بِذَاكَ الْقَوِيِّ

**د ذاک القوی مطلب**: يعنی دَ محدثينو په نيزدا حديث پوره شان سره قوی نه دی بلکه ضعيف دي. علماؤ ليکلی دی چه فضائل اعمال کښې ضعيف حديث قبلولې شی. بل

**عربوسره د محبت باره کښې بعضې روايات**: ملاعلی قاری رحمه الله ليکلی دی چه عربو سره محبت ساتلو متعلق ډيرزيات احاديث دی په کوم سره چه دا حديث دَحسن په درجه کښې قوی کيږی. مثلاً مستدرك حاکم کښې دی ((حب القريش إيمان وبغضهم كفر وحب العرب إيمان وبغضهم كفر فمن أحب العرب فقد أحبني ومن أبغض العرب فقد أبغضني)) طبرانی کښې يوحديث دې ((أحبوا قريشاً فإنه من أحبهم أحبه الله)) او يو مشهور حديث دې ((أحبوا العرب لثلاث)) کوم چه راتلونکی حديث نمبر(۶۰۰۶) کښې راځی. لهذا ملاعلی قاری رحمه الله دَ زير بحث حديث متعلق فرمائی "واقل مرتبة اسانيده ان يكون حسنافالحديث حسن لغيره" (مرقات. ۱/۳۴۶)

### [۶۰۰۰] دعربو دهلاکت پيشن ګويی

۶۰۰۰-() [۳۱] [۱] وَعَنْ أُمِّ الْحَرِيرِ، مَوْلَاةِ طَلْحَةَ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَتْ: [۲] سَمِعْتُ مَوْلَايَ يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] «مِنِ اقْتِرَابِ السَّاعَةِ هَلَاكُ الْعَرَبِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او بي بي اُم حرير تابعيه رحمها الله چې د يو صحابی حضرت طلحه ابن مالك رضی الله عنه آزاد کرده وينزه ده وايي [۲] ما د خپل آقا (حضرت طلحه رضی الله عنه) نه واوريدل د رسول الله صلی الله عليه وسلم ارشاد ګرامي دي [۳] د قرب قيامت د علامتونو نه يو علامت د اهل عربو هلاك کيدل دي. (ترمذی رحمه الله)

**تسهيلات**:

**قوله** مِنِ اقْتِرَابِ السَّاعَةِ هَلَاكُ الْعَرَبِ.

**دعربوسيادت ختميدل اوقيامت**: دَ اهل عرب نه مراد ياخو مسلمانان عرب دی يا جنس عرب دی. مطلب دادي چه کله اهل عرب دَدې دنيا نه اوچت شی نو پوهه شئ چه قيامت راغلو. دَدې نه معلومه شوه چه دَ ټولو ملکونو نه به په آخره کښې عرب فنا کيږی. دارنګ په دې حديث کښې اشاره ده چه عربو ته په قيادت او سياست کښې مقام حاصل دې ټول غير عرب دَ هغوی تابع دی. (مرقاة ۱۱/۲۶۷)

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی فضل العرب (رقم-۳۹۲۹)

**[۶۰۰۱] د بعضې شرعي منصبونو تقسيم**

۶۰۰۱-( ) [۲۲] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ ‹‹الْمُلْكُ فِي قُرَيْشٍ وَالْقَضَاءُ فِي الْأَنْصَارِ، ۳ وَالْأَذَانُ فِي الْحَبَشَةِ، وَالْأَمَانَةُ فِي الْأَزْدِ›› ) يَعْنِي الْيَمَنَ. ۴ وَفِي رِوَايَةٍ مَوْقُوفًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا أَصَحُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ۲ خلافت او بادشاهي قريشو کې ده قضاء انصارو کې ده ۳ اذان حبشانو کې دي او امانت په ازد، يعنى ازد شنوه، کې دي (چې د يمن يوه قبيله ده يا داچې) دازد نه د حضور ﷺ مراد ټول اهل يمن وو ۴ يو روايت کې داحديث د حضرت ابوهريره رضي الله عنه موقوف حديث په طور منقول دي او ترمذى رحمه الله چې د دې روايت ناقل (نقل کونکي) دي ويلي دي دا خبره زياته صحيح ده، يعنى دسند د اعتبار نه هغه روايت زيات صحيح دي چې د حديث موقوف په طور نقل شوى وي

**حل اللغات:-** ① الْمُلْكُ: أَيِ الْخِلَافَةُ: خلافت، بادشاهي (يعنى ددې حقدار) ② الْقَضَاءُ: أَيِ الْحُكْمُ الْجُزْئِيُّ: قضاء اوعدالت، فيصله کول

**تسهيلات: قوله:** الْمُلْكُ فِي قُرَيْشٍ..الخ:

**په حديث د صحابؤ عمل:** ① حکومت قريش کښې دي. صحابه کرامو هم داسې فيصله اوکړه اوحکومت ئې حضرت صديق اکبر رضي الله عنه ته حواله کړو چه دَ قريشو نه وو

② قضاء اوعدالت په انصار کښې دي. صحابه کرامو هم داسې اوکړه اوحضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه دَ يمن قاضي مقررشو کوم چه انصاري وو.

③ اذان حبشه کښې دي. صحابه کرامو هم داسې اوکړه اوحضرت بلال په منصب دَ اذان مقررشو چه دَحبشه وو

④ امانت په ازد کښې دي. ازدقبيله دَيمن مشهوره قبيله ده دې نه مراد اهل يمن دى اودَ يمن ديانت معروف دې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۶۰۰۲] د قريشو په قيدو بند سره د نه قتل کيدو پيش کوني**

۶۰۰۲-( ) [۲۳] ۱ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُطِيعٍ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ: ۳ ‹‹لَا يُقْتَلُ قُرَشِيٌّ صَبْرًا بَعْدَ هَذَا الْيَوْمِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ›› ) رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[1] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى فضل اليمن (رقم-۳۹۳۶)واحمد في المسند:۲/۳۶۴

[2] اخرجه مسلم فى كتاب الجهاد والسير/ باب لا يقتل قرشي صبرا بعد الفتح... رقم الحديث ۴۷۲۷

**ترجمه**: ۱ حضرت عبد الله ابن مطیع تابعی رحمه الله (چې دسادات قریش نه دي) خپل پلار حضرت مطیع صحابي رضی الله عنه نه چې د هغه اصل نوم عاصي یا عاص ؤ او حضور ﷺ د هغه نوم بدل کړو او نوم یې مطیع ورباندې کیښودی هغه اوویل ۲ ماد رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د مکې د فتح په ورځ آوریدلي دي فرمائیل ۳ چې نن (دمکې د فتح ورځ) نه وروسته د قیامت د ورځې پورې هیڅ قریش به حبس او قیدولو سره نه ووژل شي (دا جدا خبره ده) چې د خپل دښمن مقابله کې جنګ وجدل کې ووژل شي (مسلم رحمه الله)

**حل اللغات**:- ① صَبْرًا: أَيْ: مَصْبُورًا يَعْنِي مَحْبُوسًا مَأْسُورًا: په نیولو او قید کولو سره (اوکه په جنګ کښې یا د دښمن په مقابله کښې ووژلې شي نودا جدا خبره ده).

**تسهیلات**:

**قوله**: لَا يُقْتَلُ قُرَشِيٌّ صَبْرًا بَعْدَ هَذَا الْيَوْمِ

**د قتل صبر نه څه مراد دی**، یعنې یوقریشی په تړلوسره نه دی قتل کول پکار په دې وجه نن دَ فتح مکه نه پس دَ قیامته پورې یوقریشی صبراً مه قتل کوئی.

**د عدم قتل په مفهوم کښې دوه اقوال**: ① علامه طیبی رحمه الله فرمائی دلته نفی دَ نهی په معنی کښې ده یعنی چه یوقریشی اول په جیل کښې اچولوسره قید کړې شی اوبیا په تړلوسره قتل کړې شی داسې مه کوئی. خو ملاعلی قاری رحمه الله په دې توجیه باندې سخت اعتراض کړې دې خوپه ظاهره دَعلامه طیبی رحمه الله خبره حدیث سره زیاته نیزدې معلومیږی ② ملا علی قاری رحمه الله فرمائی په دې حدیث کښې حضورپاك یو پیشنګوئی کړې ده چه داسې به اوس نه کیږی چه یوقریشی دَ اسلام راوړلونه پس مرتدشی اودَارتدادنه پس هغه قیدکولوسره صبرًا قتل کړې شی داسې به نه کیږی. ملاعلی قاری رحمه الله دا مطلب خکه اختیارکړې دې چه په تاریخ کښې داخبره په کثرت سره ملاویږی چه قریشی په تړلوسره قتل کړې شوې وی مګر داخبره نه ملاویږی چه دَاسلام نه پس یوقریشی مرتدشوې وی اوبیا هغه په تړلوسره قتل کړې شوې وی. خودحدیث د ظاهرڅخه د ملاعلی قاری رحمه الله توجیه لرې معلومیږی

**[۶۰۰۳] د عبدالله بن عمر ابن زبیر ته په مړو لو خطاب**

۶۰۰۳-(۱) [۲۳] ۱ وَعَنْ أَبِي نَوْفَلٍ، مُعَاوِيَةَ بْنِ مُسْلِمٍ، قَالَ: ۲ رَأَيْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ عَلَى عَقَبَةِ الْمَدِينَةِ، ۳ قَالَ: فَجَعَلَتْ قُرَيْشٌ تَمُرُّ عَلَيْهِ وَالنَّاسُ، ۴ حَتَّى مَرَّ عَلَيْهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - فَوَقَفَ عَلَيْهِ، ۵ قَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكَ أَبَا خُبَيْبٍ! السَّلَامُ عَلَيْكَ أَبَا خُبَيْبٍ! السَّلَامُ عَلَيْكَ أَبَا خُبَيْبٍ. ۶ أَمَا وَاللَّهِ لَقَدْ كُنْتُ أَنْهَاكَ عَنْ هَذَا،

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم /باب ذکر کذاب ثقیف ومبیرها (رقم-۲۲۹ - (۲۵۴۵)

**ترجمه:** [۱] حضرت ابونوفل معاويه ابن مسلم تابعی رحمه الله بيان كوي [۲] ما د حضرت عبدالله ابن زبير رضي الله عنه (لاش) د مديني (لار باندې واقع د مكې كنډاؤ كې يو (تخت دار باندې ځړيدلې) وليدلو [۳] ابونوفل رحمه الله وايي قريش خلقو هغه لاش ته تلل راتلل شروع كړه او نور خلق به هم ورتلل [۴] ددې پورې چې حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه هم هلته راغي او د لاش مخكې اودريدو [۵] او داسې اوويل السلام عليك اي ابوخبيب! السلام عليك اي ابوخبيب! السلام عليك اي ابوخبيب! [۶] آگاه شه قسم په الله ماته ددې كار نه منع كولې (درې خله دا الفاظ ويلو نه وروسته بيا هغه اوويل)

> [۱] أَمَا وَاللَّهِ لَقَدْ كُنْتُ أَنْهَاكَ عَنْ هَذَا، [۲] أَمَا وَاللَّهِ لَقَدْ كُنْتُ أَنْهَاكَ عَنْ هَذَا، [۳] أَمَا وَاللَّهِ إِنْ كُنْتَ مَا عَلِمْتُ [۴] صَوَّامًا قَوَّامًا وَصُولًا لِلرَّحِمِ، [۵] أَمَا وَاللَّهِ لَأُمَّةٌ أَنْتَ شَرُّهَا لَأُمَّةُ سَوْءٍ- [۶] وَفِي رِوَايَةٍ لَأُمَّةٌ خَيْرٌ- ثُمَّ نَفَذَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ [۷] فَبَلَغَ الْحَجَّاجَ مَوْقِفُ عَبْدِ اللَّهِ وَقَوْلُهُ،

**ترجمه:** [۱] آگاه شه قسم په الله بلاشبهه ته هغه سړی وې چې ما پيژندلې [۲] چې ته ډير زيات روژې نيونكې وې ډير زيات شب بيداري كونكې او اهل قرابت سره ډيره زيات احسان اوسلوك كونكې وې، [۳] آگاه شه قسم په الله قسم چې هغه ډله چې د هغه په نظر كې ته ډير خراب يې يقيناً يوه خرابه او بدتره ډله ده [۴] او يو روايت كې (لامة سوء، په ځاي (لامة خير) الفاظ دي اوبيادا الفاظ يې بطوراستهزااوويل يعنی چې هركله ابن زبيرشر شونودا امت به نو ډير ښه وي؟ دي نه وروسته حضرت ابن عمر رضي الله عنه هغه ځاي نه لاړلو [۵] بيا چې داخبره حجاج ته ورسيدله چې عبدالله ابن عمر رضي الله عنه (دعبدالله ابن زبير رضي الله عنه لاش ته) ودريدو سره داسې ويلي دي)

> [۱] فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ، فَأُنْزِلَ عَنْ جِذْعِهِ، [۲] فَأُلْقِيَ فِي قُبُورِ الْيَهُودِ، [۳] ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَى أُمِّهِ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، فَأَبَتْ أَنْ تَأْتِيَهُ، [۴] فَأَعَادَ عَلَيْهَا الرَّسُولَ لَتَأْتِيَنِّي [۵] أَوْ لَأَبْعَثَنَّ إِلَيْكِ مَنْ يَسْحَبُكِ بِقُرُونِكِ،

**ترجمه:** [۱] (نو حجاج فوراً) يو سړی راوليرلو او لاش يې د هغه لرگي (يعنی تخت دار) نه ښكته كولو [۲] سره د يهوديانو په قبرستان كې يې وغورځوي [۳] بيا حجاج د ابن زبير رضي الله عنه والده بي بي اسماء رضي الله عنها (لور د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه) ته يو سړی ورولیږی، او هغه يې طلب كړله) بي بي اسماء هغه ته د ورتللو نه انكار وكړو [۴] حجاج دويم ځل بيا سړی وروا ستول ورته يې اوويل يا خو سمدستي په سمه راشه [۵] گيني زه به يو داسې سړی در وليږم چې هغه به دې د سر د كونڅيو نه نيولې په راښكلو راښكلو به دې دلته راولي

**حل اللغات:** - ① صَوَّامًا: أَيْ: كَثِيرَ الصِّيَامِ: ډيرې روژې نيونكې. ② قَوَّامًا: كَثِيرَ الْقِيَامِ فِي اللَّيْلِ: دشپې ډير اودريدونكې، يعنی عبادتگذار، تهجدگذار. ③ وَصُولًا: دا دمبالغې صيغه ده، أَيْ: مُبَالِغًا فِي الصِّلَةِ: ډير زيات صله رحمی كونكې ④ لَأُمَّةٌ: أَيْ: لَجَمَاعَةٌ: ډله، جماعت. ⑤ نَفَذَ: أَيْ: ذَهَبَ: لاړو. ⑥ جِذْعِهِ: د اونې تنه (هغه تنه چه عبدالله بن زبير پكښې په سولۍ شوې يعنی پهانسی شوې وو، ⑦

فَأُلْقِيَ: دمجهول صيغه ده، أي: فُطِرَحَ: اوغورزولي شو ⑧ يَسْحَبُكِ: أي: يَجُرُّكِ: دَ ويښتونه نيولوسره رابنكل مراد دى ⑨ بِقُرُونِكِ: دَ قرن جمع ده أي: بِضَفَائِرِ شَعْرِكِ: دَ سردَ ويښتو كمسئ مراد دى

[۱] قَالَ: فَأَبَتْ وَقَالَتْ: وَاللهِ لَا آتِيكَ [۲] حَتّٰى تَبْعَثَ إِلَيَّ مَنْ يَسْحَبُنِي بِقُرُونِي [۳] وَقَالَ: فَقَالَ: أَرُونِي سِبْتَيَّ، [۴] فَأَخَذَ نَعْلَيْهِ، [۵] ثُمَّ انْطَلَقَ يَتَوَذَّفُ حَتّٰى دَخَلَ عَلَيْهَا [۶] فَقَالَ: كَيْفَ رَأَيْتِنِي صَنَعْتُ بِعَدُوِّ اللهِ؟ [۷] قَالَتْ: رَأَيْتُكَ أَفْسَدْتَ عَلَيْهِ دُنْيَاهُ [۸] وَأَفْسَدَ عَلَيْكَ آخِرَتَكَ،

**ترجمه:** [۱] ابو نوفل رحمه الله وايي بي بي اسماء رضي الله عنها بيا انكار وكړو او حجاج ته يې جواب ورواستوو چې قسم په الله زه تاته هيڅ كله نه درځم [۲] وس خو ته يو داسې سړى پيدا كړه چې هغه ما د سر دكونځو نه نيولې درولي [۳] راوي وايي حجاج چې دا واوريدل نو په ډيره غصه سره يې اوويل زما پيزار راوړى او زما په مخكې يې كيږ دئ [۴] بيا هغه خپل پيزار په پښو كې واچولو [۵] او په كبر سره تيز تيز تللو سره بي بي آسماء نه ورسيدو [۶] او زهريلا لهجه كې يې هغې ته اوويل راته اووايه چې تا دې دښمن خدا يعني خپل زوى ابن زبير رضي الله عنه سره په سلوك كولو كې زه څرنګه وليدم؟ [۷] بي بي آسماء ورته اوويل زه خو داسې وينم چې تا د هغه دنيا تباه كړه [۸] او هغه ستا آخرت تباه كړى يعني دې ظالمانه قتل ته د عذاب دوزخ مستحق جوړ كړى يې

[۱] بَلَغَنِي أَنَّكَ تَقُولُ لَهُ: يَا ابْنَ ذَاتِ النِّطَاقَيْنِ! [۲] أَنَا وَاللهِ ذَاتُ النِّطَاقَيْنِ، [۳] أَمَّا أَحَدُهُمَا: فَكُنْتُ أَرْفَعُ بِهِ طَعَامَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَطَعَامَ أَبِي بَكْرٍ مِنَ الدَّوَابِّ،

**ترجمه:** [۱] او ماته معلومه شوې ده چې تابه زما زوى زبير رضي الله عنه د هغه په ژوند كې يا د هغه د شهادت نه وروسته، د د دوؤ كمر بند ښځي زوى سره مخاطب كوى [۲] نو واوره، قسم په الله زه بلا شبه دوه كمر بند واله ښځه يم [۳] داسې دوه كمربند چې هغه كې يو كمربند خو هغه ؤ چې د هغه په ذريعه به ما د حضور صلى الله عليه وسلم او حضرت ابوبكر رضي الله عنه طعام د ځناورو نه محفوظ ساتلې

**حل اللغات:** - ⑩ سِبْتَيَّ: دا دَ سبتية تثنيه ده، أي: نَعْلَيَّ: زما پيزار. څپلې، سبت هغه څپلې ته وائى چه دَدباغت شوې څرمن نه جوړه كړې شوې وى، ⑪ يَتَوَذَّفُ: أي يُسْرِعُ: يعنى نيزدې نيزدې قدم كيخودو سره تيزتيزتګ ته يتوذف وائى، كبر سره تلو ته هم وائى، ⑫ النِّطَاقَيْنِ: دا د نطاق تثنيه ده، وَهُوَ مَا تَشُدُّ بِهِ الْمَرْأَةُ وَسْطَهَا: زنانه چه په كومه كپړه خپله ملا ترى هغې ته نطاق وائى يعنى كمربند

[۱] وَأَمَّا الْآخَرُ: فَنِطَاقُ الْمَرْأَةِ الَّتِي لَا تَسْتَغْنِي عَنْهُ، [۲] أَمَا إِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَدَّثَنَا: «إِنَّ فِي ثَقِيفٍ كَذَّابًا وَمُبِيرًا» [۳] فَأَمَّا الْكَذَّابُ فَرَأَيْنَاهُ [۴] وَأَمَّا الْمُبِيرُ فَلَا إِخَالُكَ إِلَّا إِيَّاهُ [۵] قَالَ: فَقَامَ عَنْهَا فَلَمْ يُرَاجِعْهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او دويم كمربند دښځي هغه كمر بند ؤ چې هغه نه يوه ښځه بې پرواكيدى نه شي [۲] او ياد لره مونږ ته حضور صلى الله عليه وسلم داحديث ارشاد فرمايلي ؤ چې قبيله ثقيف كې به يود

نهايت درجي دروغجن سړی پیدا کیږي او يو د نهايت درجي مفسد او هلاکو ③پس هر چې نهايت دروغجن دي نوهغه مونږ وليدلو ④وهر چې مفسد دي نو ستا په باره کې زما خيال دي چې هغه مفسد او هلاکو هم ته يې دکوم خبر چې حضور ﷺ ورکړی وؤ ⑤د روای ابونوفل رحمه الله بيان دي دا الفاظ آوريدو سره حجاج د بي بي آسماء نه لاړلو او هغې ته يې هيڅ جواب ورنکړو (مسلم)

**تسهيلات: قوله**: عَقَبَةِ الْمَدِينَةِ:

**د عقبة المدينه څخه مراد**: دې نه هغه لار مراد ده چه دَمکې نه مدينې منورې ته خی داخائی په مکه کښې دې په مدينه کښې نه دې.

**قوله**: أَمَا وَاللَّهِ لَأُمَّةٌ أَنْتَ شَرُّهَا لَأُمَّةُ سَوْءٍ–

**د مذکوره جملې مطلب**: يعنی لامة انت شرها يعنی هغه خلق دَچا په نظر کښې چه ته ډيرخراب سړې وې هغه خلق ډير خراب دی. يعنی دَحجاج بن يوسف خلقو هغه ډيرخراب سړې ګنړلو مګر هغوی پخپله خراب دی

**قوله**: وَفِي رِوَايَةٍ لَأُمَّةُ خَيْرٍ،

**د دويم روايت مطلب**: يوروايت کښې لامة خير الفاظ راغلی دی يعنی کوم خلق چه تاخراب سړې ګنړی هغوی ډير ښه او پاك خلق دی. يعنی حجاج بن يوسف او دَ هغه پارټی

**د ابن عمر رضی الله عنه دخبرې مقصود**: په دې کلام کښې حضرت ابن عمر رضی الله عنه په حجاج بن يوسف باندې طنز کول غواړی چه ابن زبير خوداسې خراب سړې وو څوك چه ژوندې پريخودلې نه شو اوچا چه قتل کړې دې هغوی خوپاك خلق وو که نه؟

**قوله**: قُبُورِ الْيَهُودِ:

**د يهوديانو د قبرونو څخه مراد**: دې نه مراد هغه قبرونه دی په کومو کښې چه په هغه زمانه کښې يهوديان دفن کولې شو. دَ اسلام راتلو نه پس هلته دَ يهوديانو وجودپاتې نه شو مسلمانانو روستو بيا حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنه دَهغه ځائی نه راوويستلو او په جنت المعلا کښې يې دفن کړو دَهغوی دَ مور بی بی حضرت اسماء رضی الله عنها قبر هم هغه سره دې

**قوله**: يَا ابْنَ ذَاتِ النِّطَاقَيْنِ:

**د ذات النطاقين څخه دحجاج مراد**: يعنی ماته معلومه شوې ده چه ته زما خونی ته ذات النطاقين دَ ښځې دَخوئی په نوم باندې رابلل کوې؟ نطاق کمربندته وائی په عربو کښې به دغه شان دوه کمربند ښځوتړل کومې چه به دَ نورو خادمانې وې. دَ حجاج مطلب هم دغه وو

**د ذات النطاقين تسميه اصلی وجه**: مګر حضرت اسماء رضی الله عنها دَ اصل مطلب وضاحت اوکړو په کوم کښې چه دَهغې اعزاز وو په دې باندې به عبدالله بن زبير رضی الله عنه فخر کولو.

## [٦٠٠٤] د خلافت دعوٰی کولو څخه د عبدالله ابن عمر رضي الله عنه انکار

٦٠٠٣-( ) [٥٥] ① وَعَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ أَتَاهُ رَجُلَانِ فِي فِتْنَةِ ابْنِ الزُّبَيْرِ، فَقَالَا: ② إِنَّ النَّاسَ صَنَعُوا مَا تَرَى، ③ وَأَنْتَ ابْنُ عُمَرَ، وَصَاحِبُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَمَا يَمْنَعُكَ أَنْ تَخْرُجَ؟ ④ فَقَالَ: يَمْنَعُنِي أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ عَلَيَّ دَمَ أَخِي الْمُسْلِمِ. ⑤ قَالَا: أَلَمْ يَقُلِ اللَّهُ تَعَالَى: ﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾ [البقرة: ١٩٣]

**ترجمه:** ① او حضرت نافع رحمه الله (چې د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه آزاد کړده غلام دې) روايت کوي چې حضرت عبدالله ابن زبير رضي الله عنه سره متعلق د هنګامه آرائي زمانه کې (د هغوی د شهادت نه مخکې) دوه خلق حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه ته راغلل هغوی اوويل ② چې خلقو (دخلافت او امارت په باره کې د اختلاف ونزاع او هنګامه آرائي په صورت کې) چې څه کړی دې هغه تاسو وليدل ③ تاسو د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه زوی يې چې خليفه ؤ او ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابي هم يې، دې اعتبار نه د عبدالملك ابن مروان مقابله کې تاسو ډير زيات مستحق يې چې د خلافت دعوٰی وکړې چې د هغه د نا اهليت د ټولو نه لوی ثبوت دادې چې هغه امراؤ او ګورنرانو کې د حجاج ابن يوسف په شان ظالم سړی دې، بيا آخر څه شی مانع دې چې تاسو (دخلافت دعوی او ظالمانو نه د بدله آخستو د اعلان په ذريعه خروج وتل نه کوئ ④ حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه (دې آوريدو سره) ورته وفرمايل کوم شی چې زما دپاره مانع دې هغه زما داعلم دې چې د مسلمان ورور وينه (خون) بهيول الله تعالى زما دپاره حرام کړی دې ⑤ هغه دواړو اوويل آيا الله تعالى دانه دې فرمايلي چې وقاتلوهم حتى لاتكون فتنه خلقو سره تر دې حاله پورې جنګيږئ تر څو فتنه ختمه شي

**حل اللغات:-** ① صَنَعُوا: اوني کړو (اختلاف او هنګامه وغيره)

① فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: قَدْ قَاتَلْنَا حَتَّى لَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ وَكَانَ الدِّينُ لِلَّهِ، ② وَأَنْتُمْ تُرِيدُونَ أَنْ تُقَاتِلُوا حَتَّى تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِغَيْرِ اللَّهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عمر رضي الله عنه ورته وفرمايل (د حضور صلى الله عليه وسلم او خلفائي راشدينو په ملګرتيا کې د هغه خلقو سره يقينًا وجنګيدو د دې پورې چې فتنه يعنې د کفر اوشرك خاتمه وشوه او صرف د الله دين اسلام پاتې شو ② او (اوس) تاسو داغواړئ چې تاسو جنګ وجدال کوئ تر دې چې په مسلمانانو کې فتنه خوره شي او د غير الله دين قائم شي بخاري

**تسهيلات: قوله:** أَنْ تَخْرُجَ:

**عبدالله بن عمر ته د خلافت دعوی کولو مشوره:** دادَ خروج نه دې دَ بغاوت په معنی کښې دې په حقيقت کښې دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنه په موجودګئ کښې عبدالملك بن مروان

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب باب ذكر أسلم وغفار ومزينة وجهينة وأشجع (رقم-٣٥١٣)

خلیفه وو اوډ هغه ډطرف نه حجاج بن یوسف ګورنرمقررو صحابه کرامو او تابعینو حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته مشوره ورکړه چه ډدې ظالم حجاج په مقابله کښې ته خروج ولې نه کوې؟ ستاسو په خروج سره به ډ حجاج ظلم ختم شي اوډ عبدالملك په ځائې به تاسو خلیفه شئ حضرت ابن عمر رضي الله عنه نیغ جواب ورکړو چه داسې نه کیږی ډهغوی نظریه داده چه دکورترمخې پورې چه کله جنګ راشی نوهله دفاع کوه ګنی جنګ مه کوه څه صحابه داسې وو چه ډ دفاع هم قائل نه وو اوڅه صحابه ډحق ملګرتیا کولودپاره میدان جنګ ته ډ وتلو قائل وو ډ رسول الله ﷺ په مختلف فرامینو باندې صحابه عمل کونکی وو تفصیل لیکلې شوې دې

**قوله: صَنَعُوا مَا تَرَى:**

**د مذکوره جملې مطلب:** ډ زیر بحث حدیث خلاصه داده چه خلقو ابن عمر رضي الله عنه ته اوفرمائیل په خلقوکښې چه کومه فتنه راوچته شوې ده اویوشان جګړه روانه ده تاسو دا وینئ بیاتاسو ډحضرت عمرفاروق رضي الله عنه ځوئی یئ ته ډ عبدالله بن زبیر ډخلافت حمایت ولې نه کوې؟ اوډ حجاج خلاف خروج ولې نه کوې؟

**قوله: قَدْ قَاتَلْنَا حَتَّى لَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ وَكَانَ الدِّينُ لِلَّهِ،**

**د عبدالله عمر جواب:** حضرت ابن عمر رضي الله عنه دامعذرت اوکړوچه داډ مسلمانانوډخپل مینځ جګړې دی زه ډ یومسلمان قتل نه غوارم کوم وخت چه دکافرانو فتنه وه نوهغه مونږ ختمه کړه اوس تاسوډدې دپاره جنګیږئی چه فتنه نوره هم زیاته شي اودین ډالله په ځائې ډغیرالله شي

**[۶۰۰۵] د قبیله دوس په حق کښې دُعا**

۶۰۰۵-(۱) [۲۶] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «جَاءَ الطُّفَيْلُ بْنُ عَمْرٍو الدَّوْسِيُّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] فَقَالَ: إِنَّ دَوْسًا قَدْ هَلَكَتْ، عَصَتْ وَأَبَتْ، [۳] فَادْعُ اللَّهَ عَلَيْهِمْ، فَظَنَّ النَّاسُ أَنَّهُ يَدْعُو عَلَيْهِمْ، [۴] فَقَالَ: (اللَّهُمَّ اهْدِ دَوْسًا وَائْتِ بِهِمْ)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایې چې طفیل ابن عمرو دوسي رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شو [۲] او عرض یې وکړی یا رسول الله ماته یقین دی چې قبیله دوس هلاك شو، یعني د دې قبیلي خلقو قبول اسلام او اطاعت دین نه انکار کولو سره خان د هلاکت او تباهي مستحق ګرځولي دي، [۳] نو تاسو دي قبیلي دپاره بد دُعا وکړی، (چې الله تعالی پرې عذاب مسلط کړی، خلقو د ا آوریدو سره) خیال وکړی چې حضور ﷺ به دې قبیلې دپاره بد دُعا وکړي [۴] لیکن حضور ﷺ خو رحمة للعلمین دي او

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب قصة دوس، والطفیل بن عمرو الدوسی (رقم-۴۳۹۲) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل غفار، وأسلم، وجهینة، وأشجع، ومزینة، وتمیم، ودوس، وطیئ (رقم-۱۹۷-۲۵۲۴) واحمد فی المسند:۲/۲۴۳

خلقو ته سيدها لار ښودلو سره فلاح ونجات سره كامياب كولو دپاره دي دنيا ته راوليږلي شو نه چې بد دعا كولو سره تباه او برباد كولو دپاره، ځكه حضور ﷺ دعا وفرمايله چې الهي! قبيله دوس ته سيدها لار وښائي او د دې قبيلې خلق مديني جانب ته راولي (يعني اسلام قبلولو نه وروسته د هجرت توفيق هم ورعطا كړې يا داچې هغوی د اسلام طور طريقو طرف ته مائل كړې او د هغوی زړونه قبول اسلام طرف ته وګرځوی (بخاری مسلم)

**حل اللغات:** - ① عَصَتْ: نافرماني ئې اوكړه (اسلام ئې قبول نه كړو) ② أَبَتْ: أي: اِمْتَنَعَتْ: انكار ئې اوكړو، منع شو (يعني اطاعت ئې اونه كړو)

**تسهيلات:**

**قوله:** جَاءَ الطُّفَيْلُ بْنُ عَمْرٍو الدَّوْسِيُّ:

**د طفيل بن عمرو تعارف:** حضرت طفيل ابن عمرو دوسی ﷺ يو جليل القدر صحابی دې قبيله دوس سره ئې تعلق لرلو او په اهل حجاز كښې شميرلې كيدو په مكه كښې ئې اسلام راوړلو او بيا خپلې قبيلې ته واپس لاړو. خو چه كله حضورپاك هجرت اوكړو او مدينې منورې ته ئې تشريف راوړلو نو بيا دوی خپله قبيله او وطن پريخودو اوهجرت ئې اوكړو او د حضورپاك په خدمت كښې په هغه موقع باندې حاضر شو بيا د حضورپاك د وصال پورې په مدينه منوره كښې حضورپاك سره وو.

**د ذوالنور لقب ملاويد وجه:** هغوی ته د ذوالنور لقب حاصل وو او هم په دې لقب باندې مشهور شو اودا لقب د مشهوريدو وجه دا ده چه كله حضورپاك دوی لره د اسلام د تبليغ دپاره د هغه د قبيلې طرف ته روان كړو نو هغوی عرض اوكړو يا رسول الله ﷺ ماته يوه داسې نښه راكړئې دكوم په كتو سره چه خلق زما تصديق اوكړی حضورپاك دعا اوكړه چه يا الله ده ته نور وركړې الله تعالى دعا قبوله كړه او هغه ته ئې د دواړو سترګو په مينځ كښې په تندی باندې ځړقيدونكی رڼړا وركړه هغه عرض اوكړو يا رسول الله زه ويريږم چه خلق دا نور زما په بد شكلئی باندې محمول نه كړی بيا د رسول الله ﷺ په دعا سره دغه نور د هغه همسا ته منتقل شو كله چه به هغه په تياره شپه كښې تلو نو هغه همسا به رڼړا كوله

**دحضرت طفيل خپله قبيله كښې د اسلام دعوت وركول:** كله چه حضرت طفيل ﷺ خپلې قبيلې ته اورسيدو او د اسلام د تبليغ دعوت ئې وركړو نود هغه پلار په اسلام كښې داخل شو ليكن مور او باقی قبيلې والو اسلام قبول نه كړو او حضرت ابوهريره ﷺ هم د هغوی په تبليغ سره اسلام راوړو. دا حديث د حضرت طفيل ﷺ سابقين اسلام كيدو باندې دليل دې. (مرقاة: ۱۱/ ۲۷۱)

## [٦٠٠٦]عربو سره د محبت كولو وجه

٦٠٠٦ –(١) [٢٧] [١]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢]( «أَحِبُّوا الْعَرَبَ لِثَلَاثٍ: [٣]لِأَنِّي عَرَبِيٌّ، وَالْقُرْآنُ عَرَبِيٌّ، وَكَلَامُ أَهْلِ الْجَنَّةِ عَرَبِيٌّ» ) . رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:**[١] او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢]د دري اسبابو په بناء تاسو ته دعربو سره محبت ساتل پكار دي

[٣]يو خو په دي وجه چې زه د عربو نه يم (او ظاهره ده چې كوم شى دحبيب طرف ته منسوب وي هغه محبوب كيدل پكار دي دويم په دي وجه چې قرآن عربي ژبه كې دي (يعنى قرآن كريم هغه ژبه كې نازل شوى دي چې دعربو ژبه وه او دهغوى د ژبي اولغت په ذريعه د دي فصاحت او بلاغت منلي شي) او دريم ٣ په دي وجه چې د جنتيانو ژبه عربي ده. دا روايت بيهقي شعب الايمان كې نقل كړى دي.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَحِبُّوا الْعَرَبَ لِثَلَاثٍ

**عربو سره د دري وجې محبت كول:**① نبى عليه السلام عربى دي (او ظاهره ده چې كوم شى دحبيب طرف ته منسوب وي هغه محبوب كيدل پكار دي

② قرآن عربي ژبه كې دي (يعنى قرآن كريم هغه ژبه كې نازل شوى دي چې دعربو ژبه وه او دهغوى د ژبي اولغت په ذريعه د دي فصاحت او بلاغت منلي شي)

③د جنتيانو ژبه عربي ده.

[1]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ١٦٠٠

# [۱۲] باب مناقب الصحابة رضي الله عنهم

## دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم مناقب

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على ثماني مسائل:**

① المنع عن سب الصحابة والأمر بإكرامهم: ۱، ۵، ۷، ۱۰۔

② كون الصحابة أمنة للأمة: ۲۔

③ ذكر الفتوحات للصحابة: ۳۔

④ خيرية قرن الصحابة: ۴، ۵۔

⑤ سلامة الصحابة عن مس النار: ۶۔

⑥ كون حب الصحابة وبغضهم مدار حب النبي ﷺ وبغضه: ۷۔

⑦ كون الصحابة سبباً لصلاح الأمة: ۸۔

⑧ قيادة الصحابة رضي الله عنهم أجمعين و نورانيتهم للناس: ۹، ۱۱۔

**د منقبت د اعتبار معیار**: دلته داخبره په ذهن کښې ساتل پکار دی چه شرف اوعزت اودَ دغه منقبت اورفعت اعتباربه هله کیږی چه دَالله تعالی په نیزدغه سړی ته دامقام حاصل وی. که چرې دَالله تعالی په نیزورته دامقام حاصل نه وی نوصرف دَمخلوق په نیزبه دَدغه شرف او مقام هیڅ اعتبارنه وی. بیا داخبره هم ضروری ده چه دَدې منقبت اوشرف منزلت تعین حضورپاك فرمائیلې وی چه داکاردَ فضیلت سبب دې. دَعوام الناس دَ تعین هیڅ اعتبارنشته دې دې نه وراندې باب مناقب قریش کښې تفصیل لیکلې شوې دې.

**قوله: الصحابة:**

**دصحابی په تعریف کښې درې شرطونه**: داجمع ده دَدې مفرد صحابی دې

① صحابی هغه وی چاچه په حالت دَ بیدارئی کښې رسول الله ﷺ لیدلې وی

② په نبی علیه السلام باندې ئې ایمان راوړې وی

③ دَ وفات پورې په ایمان باندې قائم پاتې وی

**دصحابؓ باره کښې عقیده ساتل**: صحابه کرام ټول په ټول عادلان دی اودَانجام په اعتبارسره مامون اومحفوظ اوجنتیان دی. دَالله تعالی اودَهغه دَ رسول ﷺ په نیز اودَ قرآن اوحدیث دَتعلیماتو مطابق دَدوی لوئی شان دې

**دصحابؓ په فضیلت کښې ترتیب**: ① دَټولو نه غوره حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه دې.

② خلفاء راشدین رضي الله عنهم دی.

③ بیا عشره مبشره دی ④ بیا اهل بدر دی
⑤ بیا ورپسې بیعت رضوان حدیبیه والا دی.
⑥ بیا اهل قبلتین دی
⑦ بیا دَ فتح مکه نه وړاندې اسلام قبلونکی صحابه کرام دی.
⑦ السابقون الاولون والا هم دَ شان والا صحابه دی.

**د سابقون اولون په مصداق کښې څلور اقوال:**

① د بیعت عقبه شرکاء سابقون اولون دی.
② دَ واقعه بدر نه وړاندې صحابه دی
③ دَفتح مکه نه وړاندې والا صحابه دی.
④ ټول صحابه سابقین اولین دی.

**د صحابه کرامو د عدالت دلائل:** ① صحابه کرام نیغ په نیغه دَرسول الله ﷺ شاګردان دی. که چرې صحابه کرامو ته خراب اووئیلې شی نو دا به په حضورپاك باندې اعتراض وی چه په ۲۳ کاله کښې حضورپاك قابل اعتماد شاګردان پیدا نه کړه.

② که چرې صحابه کرامو ته خراب یا العیاذبالله ګمراه اووئیلې شی نو دَقیامته پورې به ټول خلق خراب او ګمراه وی ځکه چه که دَ اوبو تالاب ګنده شی نو په نلکو کښې به هم ګنده اوبه راځی.

③ صحابه کرام ټول په ټول عادلان دی او زمونږ دَدین ګواهان دی. هم دَدوی په ذریعه مونږ ته کلمه طیبه او قرآن رسیدلې دې. دَ قرآن په نقل کولو کښې دَ صحابه کرامو پوره طبقه شریکه ده. که چرې دَ صحابه کرامو طبقه بې اعتمادشی نو په قرآن باندې به اعتماد ختم شی. دَ یوځو کسانو په ګواهئی سره دَ قرآن پاك اعتماد بحال کیدې نه شی.

**دصحابؓ باره کښې د اهل سنت والجماعت عقیده:** هم په دې وجه اهل سنت والجماعت عقیده ده چه صحابه کرام دَ هدایت ستنې وې او دَامت دَپاره دَحق معیار وو. دَ چاچه صحابه کرامو سره بغض دې هغه کافران وو.

**دمشاجرات صحابؓ باره کښې سکوت اختیارول:** باقی دَ صحابه کرامو په خپل مینځ کښې اختلاف هم راغلې دې په خپل مینځ کښې جنګونه هم کړی دی دا مشاجرات صحابه دی دَهرې ولې نیت ښه وو لکه چه هغه دَ رونړو اختلاف وو بل دریم فریق له په مینځ کښې راتلوسره دَ یورور حمایت اودَ بل رور مخالفت غیرمعقول دې.

بل په اجتهادی غلطئی باندې مواخذه نشته دې. که یو فریق په حق باندې وو نوبل دَ اجتهادی غلطئی ښکار وو. دَ جمهوراهل حق هم دغه مسلك دې.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۶۰۰۷] د صحابۀ رضی الله عنهم د کنځلو څخه ممانعت**

۶۰۰۷-()[۱] ①عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②(«لَا تَسُبُّوا أَصْحَابِي، ③فَلَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ أَنْفَقَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا ④مَا بَلَغَ مُدَّ أَحَدِهِمْ وَلَا نَصِيفَهُ») مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنه وايي رسول الله ﷺ وفرمايل ② تاسو زما صحابه ؤ ته بد مه وايئ ③ حقيقت دادي که په تاسو کې يو سړی د اُحد دغره برابر سونا (سره زر) د الله په لار کې خرڅ کړی ④ نو د هغه ثواب زما د صحابه ؤ د يو صاع څلورمي حصي د ثواب برابر هم نشي رسيدی اونه دصاع دنيمايي حصي ثواب ته (بخاري و مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَا تَسُبُّوا: کنځل مه کوئ، بد رد مه وايئ. ② مُدّ: د ناپ کولو يو مقدار او پيمانه ده چه د دوه رطلو يعنی د دوؤ پونډونو برابر دي، ③ نَصِيفَهُ: أَيْ: نِصْفَهُ: نيمه حصه دهغې (مُد د غنمو، وربشو وغيره)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَسُبُّوا أَصْحَابِي:

**د مذکوره خطاب په مخاطبينو کښې دوه اقوال:** ① داخطاب دَ صحابه کرامو جماعت ته هم کيدې شی چه تاسو کښې بعضې پاسيدوسره زما بعضې صحابه کرامو ته بدمه وايئ ونيلی شی چه حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ته حضرت خالد رضي الله عنه يو څل څه سخت کلمات ونيلی وو په دې باندې حضورپاك دا ممانعت اوفرمائيلو

② راجح اوواضح دادی چه دا خطاب دَ صحابه کرامونه پس راتلونکی ټول امت ته عام دی چه تاسو زما صحابه کراموته کنځلې مه کوئ. ځکه چه دَ صحابه کرامو شان ډير اوچت دې

**صحابۀ ته د کنځلو کولو حکم:** ① دَ حضورپاك دَدې ارشاد په رنړا کښې شارحين حديث ليکلی دی چه صحابه کرامو ته بد ونيل حرام اودَ غټو فواحشونه دی

**صحابۀ ته د کنځلو کولو په سزا کښې اقوال:** ① دَجمهور علماؤ مذهب دادې چه کوم سړې صحابه کرامو ته کنځلې اوکړی هغه ته دَتعزير په توګه سزا ورکړنی.

② قاضی عياض مالکی رحمه الله ونيلی دی چه يوصحابی ته بد ونيل ګناه کبيره او حرام دی داسې سړی ته سزا ورکړنی

③ بعضې مالکيه ونيلی دی هغه قتل کړنی علامه طيبی رحمه الله هم داسې ليکلی دی.

---

[۱] ) اخرجه البخاري فی کتاب المناقب/ رقم الحديث ۳۶۷۳ ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم (رقم-۲۲۲ - (۲۵۴۱) واحمد فی المسند: ۱۱/۳

**شیخینو ته کنځلې کولو شرعي حکم:** ① دَائمه احناف بعضې علماؤ وئیلي دي چه کوم سړې شیخین ته کنځلې اوکړي هغه واجب القتل دې. الاشباه والنظائر کښې لیکلي دي چه کوم سړې شیخین ته کنځلې کوي یا په هغوی باندې لعنت وائي هغه کافر دې
② کوم سړې چه حضرت علي رضي الله عنه ته په شیخین باندې فضیلت ورکوي هغه مبتدع دې.
③ دَائمه احناف او جمهور فقهاؤ دامسلك دې چه صحابه کرام ته کنځلې کونکې سړي ته به دَتعزیرات لاندې سزا ورکولې شي اودَ تعزیر نوبت دَ قتل پورې هم رسیدې شي.

**صدیقي خلافت ته نا جائز ویونکي حکم:** ① حضرت شاه عبد العزیز رحمه الله لیکلي دي چه په دې کښې هیڅ شك نشته دې چه دَ فرقۀ امامیه خلق دَحضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه دَخلافت منکردي اودَ فقه کتابونو کښې لیکلي دي چه کوم سړې دَ خلافت صدیق نه انکار اوکړي هغه په اجماع قطعي سره منکر ګرځولې شوې دې اودَ اجماع قطعي منکر کافر کیږي چنانچه فتاویٰ عالمګیري کښې داسې فتویٰ ده "الرافضي اذا کان یسب الشیخین ویلعنهما والعیاذ بالله فهو کافر وان کان یفضل علیاً علی ابي بکر لا یکون کافراً لکنه مبتدع ولو قذف عائشة کفر بالله تعالی" (فتاویٰ عالمګیري)
② دَحضرت سهل بن عبد الله تستري رحمه الله قول دې چه کوم سړې دَ صحابه کرامو تعظیم اوتوقیر اونه کړي دې سړي ته په حضورپاك باندې ایمان راوړونکې نه شي وئیلې
③ ابن عساکر رحمه الله دا روایت نقل کړې دې "ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال حب ابي بکر وعمر ایمان وبغضهما کفر"
④ امام ابوزر عهرازي رحمه الله فرمائي چه که چرې یو سړې دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو نه دَ چا تنقیص او توهین اوکړي نو بیشکه هغه زندیق دې
⑤ محیط کتاب کښې امام محمد رحمه الله دا قول نقل دې چه رافضیانو پسې مونځ کول جائز نه دي ځکه چه هغوی دَ ابوبکر صدیق رضي الله عنه دَ خلافت منکردي خلاصة الفتاویٰ کښې لیکلي دي چه "من انکر خلافة الصدیق فهو کافر"
⑥ قاضي عیاض رحمه الله نور لیکي چه دَامام مالك رحمه الله قول دادې چه "من غاظه اصحاب محمد صلی الله علیه وسلم فهو کافر قال الله تعالی لیغیظ بهم الکفار" دَامام مالك رحمه الله یو قول داسې هم دې "فان قال (قائل) کانوا علی ضلال اوکفر قتل".
⑦ قاضي عیاض رحمه الله په شفاء کښې لیکلي دي چه دَامام مالك مسلك دې چه "من ابغض الصحابة وسبهم فلیس له في فئ المسلمین حق" یعنی کوم سړې چه صحابه کرامو سره بغض ساتي اوهغوی ته کنځلې کوي نودَ مسلمانانو بیت المال او مال غنیمت کښې دَهغه حق نشته دې دا ټول تفصیلات اودَې حواله جات مظاهرحق جدید کښې دي.

## [۶۰۰۸] صحابه دامت د سلامتيا سبب

۶۰۰۸-() [۲][۱]وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: رَفَعَ - يَعْنِي النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ،[۲]وَكَانَ كَثِيرًا مِمَّا يَرْفَعُ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ.[۳]فَقَالَ: (« النُّجُومُ أَمَنَةٌ لِلسَّمَاءِ،[۴]فَإِذَا ذَهَبَتِ النُّجُومُ أَتَى السَّمَاءَ مَا تُوعَدُ،[۵]وَأَنَا أَمَنَةٌ أَصْحَابِي،[۶]فَإِذَا ذَهَبْتُ أَنَا أَتَى أَصْحَابِي مَا يُوعَدُونَ،[۷]وَأَصْحَابِي أَمَنَةٌ لِأُمَّتِي،[۸] فَإِذَا ذَهَبَ أَصْحَابِي أَتَى أُمَّتِي مَا يُوعَدُونَ »). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[۱] اوحضرت ابوبرده رضي الله عنه خپل والد حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه نه روايت کوي چې هغوی يعنی حضرت ابوموسی رضي الله عنه بيان وکی يوه ورځ نبی کريم ﷺ اسمان طرف ته کتل سرمبارك يې اوچت کړو [۲] وحضور ﷺ به اکثر دوحي په انتظار کښې اسمان طرف ته کتل [۳] وبيايې وفرمايل ستوري داسمان دپاره دامن اوسلامتيا باعث دي [۴]کوم وخت چې داستوري لاړ شي نواسمان ته به هغه شی راشي چې موعود اومقدر دی [۵]اوزه دخپلو صحابه وو رضي الله عنهم دپاره دامن اوسلامتيا باعث يم [۶]کله چې ددي دنيا نه لاړ شم نوزما صحابه رضي الله عنهم ته به هغه شي راشي چې ددوي سره ئې وعده شوې ده [۷]اوزماصحابه زما دامت دپاره دامن اوسلامتي باعث دي [۸]هرکله چې زما صحابه ددنيا نه رخصت شي نوزما امت باندې به هغه شی راشي چې هغوئ دپاره موعود اومقدر دی . (مسلم)

**حل اللغات:**- ① أَمَنَةٌ: أَمَانٌ وَمَرْحَمَةٌ: رحمت، امن اوسلامتيا ، ② يُوعَدُونَ: چه وعده ئې ورسره شوې ده (فتنې اوفسادونه، مخالفت اوجهګړې وغيره).

**تسهيلات: قوله:** رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ:"

**آسمان ته د سراوچتولووجه:** يعنی حضورپاك به خپل سر دَ آسمان طرف ته دَ الله تعالی دَ وحی اودَ فرښتې دَ نازليدو دَ ډير انتظار په وجه اوچتولو .

**قوله:** كَثِيرًا مِمَّا:

**د ما په نوعيت کښې دوه اقوال :**

① امام طيبی رحمه الله فرمائی چه من بيانيه دې دَ کثيراً بيان دې

② من زائده وی په دې صورت کښې به دادَ کان خبر وی عبارت به داسې شی "أي كان كثيرًا رفع رأسه" رسول الله ﷺ به خپل سر مبارك اکثر (دَ وحی دَ شوق دَ وجې) آسمان طرف ته اوچتولو او ما مصدريه ده جمله معترضه حاليه ده

**قوله:** فَقَالَ النُّجُومُ أَمَنَةٌ لِلسَّمَاءِ:

**د ستورو څخه مراد:** ستوری دَ آسمان دَ پاره دَ امن او سلامتيا سبب دي لکه چه دلته دَ

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم /باب بيان أن بقاء النبی صلی الله عليه وسلم أمان لأصحابه، وبقاء أصحابه أمان للأمة (رقم-۲۰۷ - (۲۵۳۱)

ستوری لفظ نمر او سپوږمئی ته هم شامل دی اوډ ستورونه مراد ډ نمر سپوږمئی اوډ ټولو ستور بې نوره کيدل ماتيدل او پريوتل او ختميدل اوډ قيامت راتلل دی. لکه چه قرآن کښې دی: ﴿إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ۝ وَإِذَا النُّجُومُ انكَدَرَتْ ۝﴾.

**قوله:** أَتَى السَّمَاءَ مَا تُوعَدُ.

**د آسمان څخه مراد:** ډدې نه مراد ډ ستورو بې نوره کيدل او پريوتل اوډ آسمان شليدل او ټکړې ټکړې کيدل اوډ مالوچو ډ پومبې په شان الوتل دی لکه چه قرآن کريم کښې دی: ﴿إِذَا السَّمَاءُ انفَطَرَتْ ۝﴾.

**قوله:** وَأَنَا أَمَنَةٌ أَصْحَابِي:

**نبی عليه السلام ته د امن په نسبت کښې دوه اقوال:** امام طيبی رحمه الله فرمائی چه کله ډ "امنة" نسبت ډ حضورپاك طرف ته اوکړې شو نوډدې دوه صورتونه دی.

① دا جمله به ئې ډ مبالغې په توګه فرمائيلې وی "نحورجل عدل"

② ډ رسول الله ﷺ دا ارشاد به ډ جماعت په توګه باندې وی په دې صورت کښې به دا ارشاد ډ الله تعالی ډدې فرمان ﴿إِنَّ إِبْرَاهِيمَ كَانَ أُمَّةً قَانِتًا﴾ په شان شی په دې کښې حضرت ابراهيم عليه السلام ته امت ونيلې شوې دې نو حضورپاك ډ امنةٌ لاصحابه" نه پوره جماعت مراد اخستې دې.

**قوله:** فَإِذَا ذَهَبْتُ أَنَا أَتَى أَصْحَابِي مَا يُوعَدُونَ،

**نبی عليه السلام د امت د امن ذريعه:** دې نه مراد فتنه اوفساد ،اختلافات او جګړې، په خپل مينځ کښې جنګ جګړې دی. نو په دې کښې دې طرف ته هم اشاره ده چه ډ اهل خير وجود ډ شر ډ لارې ډ ټولونه لوئی بنديز دې. کله چه اهل خير اوچت کړې شی نو اهل شر ته موقع ملاويږی. چنانچه ډ حضورپاك وجود ډ هغوی ډ صحابه کرامو ډ پاره ډ شر نه ډ حفاظت مکمل ضامن او ديوال وو ليکن چه کله حضورپاك ډدې دنيا نه لاړو نو صورت حال مختلف شو ليکن بياهم صحابه کرامو ډ رسول الله ﷺ ډ ارشاداتو په رڼا کښې اختلافات راپيدا کيدو نه منع کړل او فتنې او بدئی ئې زياتې خوريدو ته پرينخودې

**قوله:** فَإِذَا ذَهَبَ أَصْحَابِي أَتَى أُمَّتِي مَا يُوعَدُونَ

**صحابه کرام د امت د امن ذريعه:** بيا چه کله صحابه کرام هم ډ دې دنيا نه لاړل نو په انوارو او برکتونو کښې نورهم کمې راغلو او ډ تيارو ډ خوريدو نوره موقع ملاؤ شوه دا حقيقت حضورپاك ډ ستورو او آسمانونو ډ مثال په ذريعه ډ مخکښې نه بيان کړې وو چه دا هم داسې دی لکه چه ډ آسمان وجود ترهغه وخته پورې دې ترکومې پورې چه نمر سپوږمئی او ستوری موجود دی کله چه ډ قيامت ډ دهشت ډ وجې نه سپوږمئی نمر اوستوری ختم شی

نو دَ آسمان دَ وجود دَ ختمیدو وخت به راشي نوچه کله دَ آسمان وجود ختم شي نو پوره کائنات به دَ خپل عدم په تیاره کښې ورك شي

**د صحابؓ تشبیه د ستورو سره:** دغه شان رسول الله ﷺ دَ صحابه کرامو ؓ دَ خوبیانو دَ وجې نه هغه صحابه دَ ستورو په شان اوگرځول دکوم نه چه کائناتو ته رڼړا ملاویږي. کمافي الحدیث ((أصحابي كالنجوم فبأيهم اقتديتم اهتديتم)) (مرقاة: ۲۷۴/۱۱)

**[۶۰۰۹] دصحابؓ په برکت فتوحات ملاویدل**

۶۰۰۹-() [۳] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ فَيَغْزُو فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ، [۳] فَيَقُولُونَ: هَلْ فِيكُمْ مَنْ صَاحَبَ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۴] فَيَقُولُونَ: نَعَمْ، فَيُفْتَحُ لَهُمْ، ثُمَّ يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ، فَيَغْزُو فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوسعید خدري ؓ وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] په خلقو به یوه داسې زمانه راشي چې دخلقو یوجماعت به جهاد دپاره ووزي [۳] وبیا به هغه خلق خپلو کښې یوبل نه پوښتنه کوي ایاتاسو کښې څوک داسې سړی هم موجود دی چې هغه ته درسول الله ﷺ دصحبت شرف حاصل شوی وي [۴] هغوی به جواب کښې وایي چې هو زمونږ په منځ کښې د رسول الله ﷺ صحابه موجود دی نوهغه خلقو دپاره به دقلعه اوښار دروازي خلاصي شي یعنی دصحابه ؓ برکت اوشوکت سره ددښمنانو مقابله کښې به هغوی ته فتح حاصله شي بیابه په هغوی داسې زمانه راشي چې دخلقو یوجماعت به جهاد دپاره ووزي

**حل اللغات:-** ① فَيَغْزُو: أَيْ: يَقْتُلُ: جهاد به کوی، قتل وقتال به کوی. ② فِئَامٌ: أَيْ: جَمَاعَةٌ: دانسانانولوئی جماعت ته وائی

[۱] يُقَالُ: هَلْ فِيكُمْ مَنْ صَاحَبَ أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-؟ [۲] فَيَقُولُونَ: نَعَمْ، فَيُفْتَحُ لَهُمْ، [۳] ثُمَّ يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ فَيَغْزُو فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ، [۴] فَيُقَالُ: هَلْ فِيكُمْ مَنْ صَاحَبَ مَنْ صَاحَبَ أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-؟ [۵] فَيَقُولُونَ: نَعَمْ، فَيُفْتَحُ لَهُمْ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** [۱] اوبیابه هغوی خپلو کښې یوبل نه پوښتنه کوي ایا ستاسو منځ کښې څوک داسې سړی موجود دی چې هغه ته درسول کریم ﷺ دصحابه ؓ دصحبت شرف حاصل شوی وي چې هغه ته تابعي وایي [۲] هغوی به جواب کښې وایي چې هو زمونږ په منځ کښې تابعین موجود دی نودتابعینو دبرکته د هغوی دپاره به دښار اوقلعه دروازي خلاصي شي [۳] بیابه داسې زمانه راشي چې هغوی به خپلو کښې یوبل نه پوښتنه کوي ایا ستاسو منځ

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب فضائل أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم « ومن صحب النبی صلی الله علیه وسلم، أو رآه من المسلمین، فهو من أصحابه» (رقم-۳۶۴۹) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب فضل الصحابة ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم (رقم-۲۰۹ - (۲۵۳۲) واحمد فی المسند: ۷/۳

کښې څوک داسې سړی هم شته چې هغه دحضور ﷺ دصحابه ؤ دتربيت يافته حضراتو تابعينو دصحبت شرف حاصل کړی وي چې هغه ته تبع تابعين وايي ④هغوی به جواب ورکړي چې هو زمونږ په منځ کښې تبع تابعين موجود دي ⑤نو دتبع تابعينو له برکته به هغه خلقو دپاره دقلعه اوښار دروازې خلاصې شي. (بخاري مسلم)

①وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ: («يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يُبْعَثُ مِنْهُمُ الْبَعْثُ ②فَيَقُولُونَ: انْظُرُوا هَلْ تَجِدُونَ فِيكُمْ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ ③فَيُوجَدُ الرَّجُلُ، فَيُفْتَحُ لَهُمْ بِهِ، ④ثُمَّ يُبْعَثُ الْبَعْثُ الثَّانِي فَيَقُولُونَ: ⑤هَلْ فِيهِمْ مَنْ رَأَى أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟

**ترجمه:** ① او دمسلم يوروايت کښې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل په خلقو به يوه داسې زمانه راشي چې هغه وخت به دخلقو نه يولښکر ددشمنانو مقابلې ته جنګ دپاره وليږل شي ② وبيابه هغه اهل لښکر خپلو کې يوبل نه پوښتنه کوي لږ وګورئ چې ستاسو منځ کښې درسول کريم ﷺ دصحابه ﷺ نه څوک موجود دی يانه؟ ③تلاش کولو نه وروسته به معلومه شي چې لښکر کښې يوصحابي ﷺ موجود دی نو دهغه صحابي ﷺ له برکته به هغه لښکر ته فتح حاصله شي ④ددي نه پس يوه زمانه کښې به يودويم لښکر څه دويمې علاقې طرف ته ددښمنانو مقابلې دپاره وليږل شي اوبيابه هغه اهل لښکر خپلو کښې يوبل نه پوښتنه کوي ⑤لږ وګورئ ستاسو منځ کښې څوک داسې سړی موجود دی يانه چې هغه درسول الله ﷺ صحابه ليدلی وي تلاش کولو باندې به معلومه شي چې لښکر کښې يوداسې سړی يعنی تابعي موجود دی

**حل اللغات:** - ③ الْبَعْثُ: په معنی د مفعول سره، أَي: الْمَبْعُوثُ وَهُوَ الْجَيْشُ: دا فوجی دستې ته وائی چه دَدښمن طرف ته دَ جنګ دَپاره روانولې شي.

①فَيُفْتَحُ لَهُمْ بِهِ ثُمَّ يُبْعَثُ الْبَعْثُ الثَّالِثُ فَيُقَالُ: ②انْظُرُوا، هَلْ تَرَوْنَ فِيهِمْ مَنْ رَأَى مَنْ رَأَى أَصْحَابَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -; ③ثُمَّ يَكُونُ الْبَعْثُ الرَّابِعُ فَيُقَالُ: ④انْظُرُوا هَلْ تَرَوْنَ فِيهِمْ أَحَدًا رَأَى مَنْ رَأَى أَحَدًا رَأَى أَصْحَابَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَيُوجَدُ الرَّجُلُ فَيُفْتَحُ لَهُمْ بِهِ»).

**ترجمه:** ① نو دهغه تابعي له برکته به لښکر ته فتح حاصله شي بيا ددي نه وروسته يوه بله زمانه کښې به يودريم لښکروليږل شي اوبيابه هغه اهل لښکر خپلو کښې يوبل ته وايي لږ وګورئ ستاسو منځ کښې څوک داسې سړی موجود دی يانه چې هغه يوداسې سړی ليدلی وي چې هغه درسول کريم ﷺ صحابه ﷺ ليدلی وي تلاش کولو څخه وروسته به معلومه شي چې لښکر کښې يوداسې سړی موجود دی نو دهغه د برکته به هغه لښکر ته فتح حاصله شي بيابه ددي نه وروسته يوه بله زمانه کښې يوڅلورم لښکر وليږل شي اوبيابه هغه اهل لښکر خپلو کښې يوبل ته وايي لږ وګورئ ستاسو منځ کښې څه داسې سړي موجود دی يانه چې هغه سړي يو داسې سړی ليدلی وي چې هغه درسول کريم ﷺ صحابه

ﷺ ليدونكي څوک سړي ليدلی وي تلاش کولو باندې به معلومه شي چې لښکر کښې يو داسې سړی موجود دی نو دهغه د برکته به هغه لښکر ته فتح حاصله شي

**تسهيلات:**

**قوله:** فَيُفْتَحُ لَهُمْ

**د خير القرون فضيلت:** په دې حديث کښې په دورصحابه کښې بيا په دورد تابعينو کښې بيا په دور د تبع تابعينو کښې د برکت اوفضيلت بيان دې دې نه پس به عموماً اهل خير نه ملاوېږي په دې وجه دهغوی ذکرنشته دې

**قوله:** وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ

**په روايتونو کښې اختلاف اوپه هغې کښې تطبيق:** پورته دواړو روايتونو کښې دومره فرق دې چه په اول روايت کښې د دريو قرنونو ذکردې اودويم روايت کښې د څلورم قرن ذکرهم دې مګرياد لرئی چه په دې کښې خير اوبرکت د نادر په درجه کښې وو په دې وجه په رومبی روايت کښې د دريو قرنونو بيان باندې اکتفا کړې شوې ده اودا نادر نی نه دې ذکرکړې اودا زيات واضح دی. دمسلم دا روايت شاذ دې

**[۶۰۱۰] دَدريم قرن څخه روسته د فساد پيدا کيدل**

۶۰۱۰-(۱) [۳] [۱] وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ([۲] «خَيْرُ أُمَّتِي قَرْنِي، [۳] ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، [۴] ثُمَّ إِنَّ بَعْدَهُمْ قَوْمًا يَشْهَدُونَ وَلَا يُسْتَشْهَدُونَ، [۵] وَيَخُونُونَ وَلَا يُؤْتَمَنُونَ، [۶] وَيَنْذُرُونَ، وَلَا يُوفُونَ [۷] وَيَظْهَرُ فِيهِمُ السِّمَنُ» ). [۸] وَفِي رِوَايَةٍ ( «وَيَحْلِفُونَ وَلَا يُسْتَحْلَفُونَ» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت عمران ابن حصين ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] زما دامت بهترين خلق زما دپېرې خلق يعنی صحابه ﷺ دي [۳] بيا هغه خلق چې هغوی ته متصل دي يعنی تابعين بيا هغه خلق چې هغوی ته متصل دی يعنی تبع تابعين [۴] وبيا ددې پيرېو څخه وروسته چې دکومو خلقو زمانه راځي هغوی کښې به داسې خلق هم وي چې خپله به ګواهي ورکوي اوڅوک به دهغوی ګواهي نه غواړي [۵] داسې خلق به هم وي چې خيانت به کوي اودهغوی په ديانت اوامانت به اعتماد نه کېږی [۶] داسې خلق به هم وي نذر به مني اوخپل نذر به نه پوره کوي [۷] وهغوی کښې به چاغ والی پيدا کېږي [۸] اويوروايت

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب فضائل أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم ، ومن صحب النبي صلى الله عليه وسلم. أو رآه من المسلمين. فهو من أصحابه» (رقم-۳۶۵۰) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فضل الصحابة ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم (رقم-۲۱٤ - (۲۵۳۵) وابوداود في كتاب السنة/باب في فضل أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-۴۶۵۷) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل من رأى النبي صلى الله عليه وسلم وصحبه (رقم-۳۸۵۹)

کښې داهم دي اوداسي خلق به وي چې بلاضرورته اوبلاوجهې قسمونه به خوري حالانکه هغوی نه به قسم نوي اخستل شوی .(بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① قَرْنِي: قرن زماني ته وائی (ددې نه د نبی علیه السلام د ژوند زمانه مراد ده) په دې کښې مزید اقوالو دپاره اوګورئ حدیث نمبر(۲۶٤٧) ② يَلُونَهُمْ: أَيْ يَقْرُبُونَهُمْ: چه نزدې وی دوی ته (يعنی د صحابو زماني ته يعنی تابعين)، ③ يَشْهَدُونَ: په خپله به ګواهی ورکوی (حالانکه ګواهی به ترې نه وی غوښتلې شوې). ④ يَخُونُونَ: خيانت به کوی ⑤ لَايُؤْتَمَنُونَ: وَلَا يُجْعَلُونَ أُمَنَاءَ: هغوی امانت دار به نه شي جوړولې يا دهغوی په امانت او ديانت به اعتماد نه شی کولې ⑥ يَنْذُرُونَ: أَيْ: يُوجِبُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَشْيَاءَ: په ځان به څه ځيز واجب کوی يعنی منخته او نذر به منی ⑦ لَايُوفُونَ: دا د وَفَاء نه دې، أَيْ: لَايَقُومُونَ: نه به ئې قائموی، نه به ئې پوره کوی ⑧ السِّمَنُ: دا د سَمِنَ نه مصدر دې، څرب او غټې بدن ته وائی (يعنی ډير خوراک څکاک به کوی چه دا سبب دې د بدن د غټوالی او دا کنايه ده د دين د غفلت نه) ⑨ يَحْلِفُونَ: ډير قسمونه به خوری (بغير ضرورته) ⑩ لَايُسْتَحْلَفُونَ: د استفعال نه دې، يعنی د قسم غوښتنه اوطلب به ترې نه وی شوې

٦٠١١-(١) [١] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: [٢] «ثُمَّ يَخْلُفُ قَوْمٌ يُحِبُّونَ السِّمَانَةَ».

**ترجمه:** [١] او د مسلم په يو روايت کښې دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه منقول داالفاظ دی [٢] چې بيا دهغه خلقو څخه وروسته به داسې خلق پيدا شي چې چاغ والی غټ والی به خوښوي

**حل اللغات:-** ① يَخْلُفُ: أَيْ يَعْقُبُهُمْ: وروستو دهغوی به راشی (نور خلق) ② السِّمَانَةَ: غټ والي، څرب والي

**تسهيلات: قوله:** خَيْرُ أُمَّتِي قَرْنِي،

**د قرن په مقدار کښې اقوال:**

① بعضې سل کاله خودلي دي

② بعضې اتيا کاله خودلي دي

③ دبعضې علماؤ په نيز څلويښت کاله دي

④ دَ بعضې علماؤ خيال دې چه په قرن کښې هيڅ تحديد اويقين نشته دې بلکه دَ يودور نوم قرن دي

**دقرون ثلاثو تاريخونه:** ① نودَ حضورپاك دَقرن مراد هغه زمانه ده په کوم کښې چه آخری صحابی موجود وو هغه دَ ۱۲۰ هجری پورې دکال عهد دې

② دې نه پس دويم قرن دَ تابعين وو چه دَ ۱۲۰ هجری نه شروع کيږی ۱۷۰ هجری پورې موده باندې مشتمل وو

[١] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب فضل الصحابة ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم (رقم-۲۱۳ - (۲۵۳٤)

③ دَدې قرن نه پس دَ عمومي خیراوبرکت زمانه لاړه اودَ بدعتونو او بدوعقیدو دور شروع شو او په دې کښې دَ خوارج او معتزله زور شو. دَ عقل پرستو زور شو اوباطل فلسفیانو اسلامي دنیا راګیره کړه اودَ خیر نوم صرف تش په نوم پاتې شو دروغژن خلق راپیدا شو اوخیته وروخلقو دین مسخ کړو.

**قوله:** **ثُمَّ إِنَّ بَعْدَهُمْ قَوْمًا يَشْهَدُونَ وَلَا يُسْتَشْهَدُونَ،**

**د روایتونو په مینځ کښې التعارض:** یعني دګواهئ دَپاره بغیردَ راغوښتوپه منډه به راځي. په دې جمله باندې دا اعتراض دې چه په یوحدیث کښې پخپله دګواهئ دَپاره پیش کیدونکي سړي ډیر لوئي فضیلت بیان کړې شوي دې اودلته مذمت دې دابنکاره تعارض دې

**دتعارض جواب:** که دَچا حق ډوبیږي او یوسړی سره ربنتوني ګواهي شته هغه راځي اوګواهي ورکوي په کومې سره چه دَ غریب حق دَ ضائع کیدو نه بچ کیږي. دَدې قسم ګواهئ خو تعریف کړې شوي دې لیکن چه کوم ګواه دَ دروغو ګواهي ورکوي اودَ یو حقدار حق ضائع کوي نودَ دغه سړي دَپاره دا وعیددې کوم چه په زیربحث حدیث کښې دې

**قوله:** **ثُمَّ يَخْلُفُ قَوْمٌ يُحِبُّونَ السِّمَانَةَ،**

**د څربوالي دوه قسمونه اود هريو حكم:**

① یوچاقوالي او پیړوالي خلقي اوطبعي وي هغه مذموم نه دې

② هغه څربوالي کوم چې عام طوز دا څربوالي دَنازونعم عیش اوعشرت دَ وجې پیدا کیږي دلته هم دغه څربوالي مراد دې په کوم سره چه سړي کښې سستي راځي دَحماقت او بلا... په ګیره کښې راځي

**دیوحدیث مصداق:** هم دَدغه څربوالي باره کښې حضورپاك یویهودي عالم ته اوفرمائیل «ان الله يبغض الحبر السمين» الله تعالی څرب عالمان نه خوښوي

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٦٠١٢] دصحابو د تعظيم اوتكريم لزوم

٦٠١٢-(١) [د] [١] عَنْ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] («أَكْرِمُوا أَصْحَابِي، فَإِنَّهُمْ خِيَارُكُمْ، [٣] ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، [٤] ثُمَّ يَظْهَرُ الْكَذِبُ حَتَّى إِنَّ الرَّجُلَ لَيَحْلِفُ وَلَا يُسْتَحْلَفُ، وَيَشْهَدُ وَلَا يُسْتَشْهَدُ، [٥] أَلَا مَنْ سَرَّهُ بُحْبُوحَةُ الْجَنَّةِ فَلْيَلْزَمِ الْجَمَاعَةَ، [٦] فَإِنَّ الشَّيْطَانَ مَعَ الْفَذِّ وَهُوَ مِنَ الِاثْنَيْنِ أَبْعَدُ، [٧] وَلَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ ثَالِثُهُمْ، [٨] وَمَنْ سَرَّتْهُ حَسَنَتُهُ وَسَاءَتْهُ سَيِّئَتُهُ فَهُوَ مُؤْمِنٌ» ) رَوَاهُ النَّسَائِيُّ،

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في لزوم الجماعة (رقم-٢١٦٥) واحمد في المسند: ٢٦/١

**ترجمه:** [۱] حضرت عمر رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] زما داصحابو رضي الله عنهم تعظيم اوتكريم كوي ځكه چې هغوى ستاسو بر گزيده اوبزرگ ترين خلق دي [۳] بيا هغه خلق چې هغوى ته نژدې دى يعنى تابعين اوبيا هغه خلق چې تابعينوته نزدې دي يعنى تبع تابعين [۴] اودي نه وروسته به دروغ ظاهر شي ددي پورې چې يوسړى به قسم خوري حالانكه هغه نه به دقسم خوړلو مطالبه نه وي شوي اوگواهي به وركوي حالانكه هغه ته به دگواهي كولو دپاره نوي وئيل شوي [۵] يادلرى كوم سړى چې بالكل دجنت په منځ كښې چې دجنت بهترين ځاي دى اوسيدل غواړى نوهغه ته پكاردى چې جماعت لازم ونيسي [۶] ځكه چې شيطان دهغه سړي ملگري جوړيږي چې خودرايه اودجماعت نه جدا اوتنهاوي شيطان خوددووكسانو نه هم چې اجتماعيت اواتحاد سره وي لري تښتي [۷] وخبردار هيڅ سړى دي ديوي اجنبي يعنى غير محرم ښځي سره په تنهايي كښې هيڅ كله نه اوسيږي ځكه چې دهغوى دريم ملگرى شيطان وي چې دهغوى ددهوكه كولوڅخه نه قلاريږي [۸] وكوم سړى ته چې دهغه نيكى خوشحالي اواطمينان وبخښي اودهغه بدى يې غمگين اومضطرب كړي هغه مؤمن دي . نسائي اواسناد ددي حديث صحيح دي

**حل اللغات:-** ① خِيَارُكُمْ: غوره او بهترين خلق په تاسو كښې. ② بُحْبُوحَةُ: أَيْ: وَسَطُهَا: وسط الجنة مراددي ښكلي جنت مراددي يعنى كه يوسړي بهترين او ښكلي جنت غواړي نوهغه له پكاردى چه اهل حق سره دي تړلي وى. ③ الْفَذِّ: أَيِ الَّذِي تَفَرَّدَ بِرَأْيِهِ: جدا خان له يوازې په معنى كښې دې يعنى دَاهل حق دَ جماعت دَ رائې نه ئى جدا رائې قائمه كړې ده ④ وَسَاءَتْهُ: أَيْ: أَحْزَنَتْهُ: خفه او غمجن كړى هغه لره

[۱] وَإِسْنَادُهُ صَحِيحٌ وَرِجَالُهُ رِجَالُ الصَّحِيحِ إِلَّا إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْحَسَنِ الْخَثْعَمِيَّ [۲] فَإِنَّهُ لَمْ يُخْرِجْ لَهُ الشَّيْخَانِ وَهُوَ ثِقَةٌ ثَبْتٌ.

**ترجمه:** [۱] اوددي راويان دبخاري اومسلم راويان دي صرف ابراهيم بن الحسن [۲] چې دي دهغه څخه شيخينوروايت نه دي كړي خوثقه اومضبوط دي .[اخرجه النسائى]

**تسهيلات:**

**نوټ:** د گرانوټكوتشريح په حل اللغات كښې شوې ده اوباقى د حديث مفهوم د حديث د تشريحى ترجمې څخه واضح دي

**[۱۲-۶۰] صحابى او تابعى ته د اور نه رسيدل**

۶۰۰۳-()[۲][۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «لَا تَمَسُّ النَّارُ مُسْلِمًا رَآنِي [۳] أَوْ رَأَى مَنْ رَآنِي». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

[۱] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل من رأى النبى صلى الله عليه وسلم وصحبه (رقم-۳۸۵۸)

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه د نبي کريم ﷺ نه روايت کوي حضور ﷺ وفرمايل [۲] هغه مسلمان ته به د دوزخ اور نه رسيږي چاچي زه ليدلى يم [۳] يا هغه سړي يي ليدلى وي چې هغه زه ليدلى يم (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَمَسُّ النَّارُ مُسْلِمًا رَآنِي.

**د صحابؤ جنتي کيدل:** مطلب دادې چاچه دَ ايمان په حالت کښې زه اوليدم او هم په ايمان باندې دَ هغه خاتمه اوشوه نوهغه به دَ دوزخ دَ عذاب څخه محفوظ وی. لهذا کوم خلق چه دَ رسول الله ﷺ نه پس مرتد شو هغوی به دَدې زيری مستحق نه وی.

**قوله:** أَوْ رَأَى مَنْ رَآنِي،

**د تابعينو جنتي کيدل:** دغه شان کوموخلقو ته چه په اخلاص سره دَ صحابه کرامو رضی الله عنهم صحبت ملاؤ شو هغوی به هم دَ دوزخ څخه محفوظ وی يعنی داسې خلقوته به الله پاك دَ نيکو اعمالو کولو يا بدو اعمالو نه بچ کيدلو يا دَ هغې نه دَ رښتونې توبې کولو توفيق ورکړی دَ کوم په وجه چه به هغوی دَ دوزخ نه محفوظ شی.

**د عامو مسلمانانو د پاره زيرې:** دَ دې حديث په رڼاکښې خو صحابه کرام او تابعين جنتيان دی ليکن دَ الله تعالى نه اميد دې چه هغه به هرمؤمن دَ رسول الله ﷺ دَ خاطره جنت ته بوخی. چونکه حضورپاك دَ صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعينو باره کښې خوشخبری ورکړه نوهغه مسلمانان چه دَ رسول الله ﷺ دربار کښې حاضر نه شو او نه ئې دَ صحابيت او تابعيت شرف حاصل کړې شو نو حضورپاك دَهغوی دَ تسلئی دَ پاره په يو حديث کښې اوفرمائيل ((طوبى لمن آمن بي ولم يراني رواه احمد)). دغه شان په بل حديث شريف کښې ئی اوفرمائيل ((طوبى لمن رآني وآمن بي مرة وطوبى لمن لم يراني وآمن بي سبع مرات رواه أحمد)) يعنی څوك چه ما اووينی او په ما ايمان راوړی هغه ته يوځل مبارك او څوك چه بغير دَ ليدو په ما ايمان راوړی هغه ته اووه ځل مبارك سبحان الله (مرقاة: ۲۷۸/۱۱)

**[۶۰۱٤] صحابؤ ته د تکليف رسولو څخه په تاکيد سره ممانعت**

۶۰۰۳-(۱)[٤] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] ((اللّٰهَ اللّٰهَ فِي أَصْحَابِي، [۳] اللّٰهَ اللّٰهَ فِي أَصْحَابِي، لَا تَتَّخِذُوهُمْ غَرَضًا مِنْ بَعْدِي، [٤] فَمَنْ أَحَبَّهُمْ فَبِحُبِّي أَحَبَّهُمْ، [۵] وَمَنْ أَبْغَضَهُمْ فَبِبُغْضِي أَبْغَضَهُمْ، [۶] وَمَنْ آذَاهُمْ فَقَدْ آذَانِي، [۷] وَمَنْ آذَانِي فَقَدْ آذَى اللّٰهَ، [۸] وَمَنْ آذَى اللّٰهَ فَيُوشِكُ أَنْ يَأْخُذَهُ)). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فيمن سب أصحاب النبی صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۸۶۲) واحمد فی المسند: ۸۷/٤

**ترجمه:**[۱] اوحضرت عبدالله ابن مغفل ﷺ وايي رسول كريم ﷺ پوره اُمت ته خطاب كولو سره وفرمايل [۲] الله نه ويريږئ بيا الله نه ويريږئ زما دصحابه ؤ ﷺ په حق كښې [۳] زما نه وروسته صحابه ﷺ دملامتيا نښنه مه جوړوئ [۴] يادلرئ كوم سړي چې هغوئ دوست ساتي نوزما په وجه يې دوست ساتي [۵] اوڅوک چې يې دشمن ساتي نوما سره د دشمني په سبب يې دښمن ساتي [۶] اوكوم سړي چې هغوئ ته تكليف ورسوي هغه ګويا ماته تكليف ورسوي [۷] اوچاچې ماته تكليف ورسوي هغه ګويا الله ته تكليف ورسوي [۸] اوكوم سړي چې الله ته تكليف ورسوي نوهغه ورځ لرې نه ده چې الله به هغه ونيسي دا روايت ترمذي نقل كړى دى ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى.

**حل اللغات:**- ①اللَّهَ اللَّهَ: أي: اتَّقُوا اللَّهَ ثُمَّ اتَّقُوا اللَّهَ: يعنې زما دَصحابه كرامو باره كښې دَ الله تعالى نه اويريږئ. ②غَرَضًا: أي: هَدَفًا: غرض نښاني ته وائي يعنې په هغوى باندې اعتراض كولوسره ئې مه په نښنه كوئ. ③آذاهُمْ: تكليف ئې اورسولو صحابه كرامو ته. ④فَيُوشِكُ: د افعال مقاربه نه دې. يعنې نژدې ده.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَبِبُغْضِي أَبْغَضَهُمْ:

**نبى عليه السلام سره د بغض ساتلو نتيجه:** يعنې اول ما سره بغض ساتي دَهغې نتيجه او ردعمل اوعكس دا راوځي چه زما صحابه كرامو سره بغض ساتي نوصحابه كرامو سره بغض ساتي دَ حضوراكرم ﷺ سره دَبغض ساتلو نتيجه او اثردې.

**[۶۰۱۵] دامت كښې دصحابو مثال**

۶۰۱۵-()[۸] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «مَثَلُ أَصْحَابِي فِي أُمَّتِي كَالْمِلْحِ فِي الطَّعَامِ، [۳] لَا يَصْلُحُ الطَّعَامُ إِلَّا بِالْمِلْحِ» [۴] (قَالَ الْحَسَنُ: فَقَدْ ذَهَبَ مِلْحُنَا فَكَيْفَ نَصْلُحُ؟ رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ).

**ترجمه:**[۱] اوحضرت انس ﷺ وايي رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] زما دامت په منځ كښې زما دصحابه ؤ ﷺ مثال په طعام كښې دمالګي په شان دي [۳] طعام هغه وقته پوره ښه يعنې خوش ذائقه نه وي څوپوري چې هغه كښې مالګه (نمک) نه وي [۴] حضرت حسن بصري دا حديث اوريدو سره وفرمايل چې زمونږ نمک (مالګه) لاړل نو بيا مونږ به ښه څرنګه شو دا روايت بغوي خپل اسناد سره شرح السنه كښې نقل كړي دي دغه شان ابويعلى هم دا روايت خپل مسند كښې دحضرت انس ﷺ نه بطريق مرفوع نقل كړى دى

[1]) اخرجه البغوى فى شرح السنة رقم الحديث ۳۸۶۳

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَصْلُحُ الطَّعَامُ إِلَّا بِالْمِلْحِ

**د صحابؤ تشبیه د مالګې سره:** دا جمله د تشبیه په توګه ده او د دې تشبیه نه دا لازمیږی چه من کل الوجوه تشبیه وی لکه څنګه چه وئیلی شی "کثرة الملح تنسد الطعام" دا داسې دی لکه د نحو باره کښې مقوله ده "النحو فی الکلام کالملح فی الطعام"

**په دوو طریقو سره د تشبیه وضاحت:** ① اوس د بیان تشبیه څخه مراد دادې لکه څنګه چه د مالګې څخه بغیر خوراك کامل نه وی دغه شان د صحابه کرامو څخه بغیر دا امت کامل نه شی کیدې

② یا داسې هم وئیلې شی چه لږه شان مالګه ټول خوراك صحیح کوی هم دغه شان د رسول کریم ﷺ صحابه باقی امت محمدیه په مقابله کښې اګرکه لږ وی مګر د ټولو اصلاح هم د دغه صحابه کرامو رضي الله عنهم په ذریعه سره ده. په دې وجه الله تعالی خپل دې فرمان ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا كَمَا آمَنَ النَّاسُ﴾ کښې د صحابه کرامو ایمان معیار اوګرځولو.

**قوله:** قَالَ الْحَسَنُ فَقَدْ ذَهَبَ مِلْحُنَا

**دحسن بصری تبصره:** حضرت حسن بصری رحمه الله د دې حدیث اوریدوسره چه کوم تاثر بیان کړې دې چه د امت د بنائسته کیدو د پاره صحابه کرام وو او اوس هغوی د دنیا نه رخصت شو اوس دا څنګه وئیلې کیدې شی چه مونږ به ښه او سم شو

**د صحابؤ دعدم وجود باوجود دامت ښه کیدو طریقه:** ملاعلی قاری رحمه الله په دې خبره باندې ډیره عارفانه خبره کړې ده چه سره د دې چه دې وخت صحابه کرام موجود نه دی لیکن د هغوی د اقوالو، ارشاداتو او د هغوی نقل کړې شوی روایاتو او د هغوی اوچت کردار او د هغوی اوصافو په تابعدارئی سره مونږ ښه کیدې شو ځکه چه اصل اعتبار خو هم د دغه څیزونو کیږی نه چه د اجسامو او صورتونو (مرقاة: ۲۷۹/۱۱)

**[۶۰۱۶] د بعثت په ورځ د صحابؤ قیادت**

۶۰۱۶-(۱) [۹] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۳] «مَا مِنْ أَحَدٍ مِنْ أَصْحَابِي يَمُوتُ بِأَرْضٍ إِلَّا بُعِثَ قَائِدًا وَنُورًا لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَذُكِرَ حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ (لَا يُبَلِّغُنِي أَحَدٌ) فِي بَابِ (حِفْظِ اللِّسَانِ).

**ترجمه:** [۱] اوحضرت عبدالله ابن بریده خپل پلار حضرت ابوموسی اشعري نه نقل کوي [۲] هغوی بیان وکی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۳] زما صحابه رضي الله عنهم کښې چې کوم سړی کومه

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فیمن سب أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۸۶۵)

زمکه کښې وفات شي هلته به د خپل قبر نه د قيامت په ورځ داسې حال کښې را اوچتول کيږي چې د هغه زمکې خلق به جنت طرف ته رابنکولو سره بوتلونکي وي او هغوی د پاره به د جنت لاره ښوونکي وي [۴] دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی [۵] او د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه روايت کړده حديث لايبلغني احد الخ چې هغه کښې د صحابه رضي الله عنهم ذکر دی او صاحب مصابيح هغه باب کښې نقل کړی ؤ وروسته باب حفظ اللسان کښې نقل شوي دي

**حل اللغات:-** ① قَايِدًا: رابنکلو سره بوتلونکي ② نُورًا: أَيْ: هَادِيًا: رڼا يعنی لاره ښودونکي (د جنت)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا بُعِثَ قَايِدًا وَنُورًا لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ،

**د حديث مطلب:** چه په کومه زمکه زما يو صحابی وفات شو يا ښخ شو نو د قيامت په ورځ به د دغه زمکې هغه مسلمانان چه د دغه صحابی اتباع، عزت او احترام ئې کولو د هغې په برکت سره به د هغه صحابی په لارخودنه کښې د قبرونو نه د محشر پورې او بيا د محشر نه جنت پورې اورسيږي.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۶۰۱۷] صحابو رضي الله عنهم ته د کنځلو کولو وعيد

۶۰۱۷-( ) [۱۰] [۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «إِذَا رَأَيْتُمُ الَّذِينَ يَسُبُّونَ أَصْحَابِي [۳] فَقُولُوا: لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى شَرِّكُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې تاسو هغه خلق ووينی چې زما صحابه رضي الله عنهم ته بد وايي [۳] نو تاسو اووايئ چې ستاسو په بدترين دی د الله لعنت وي (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى شَرِّكُمْ

**صحابؤ ته په کنځلو کولو باندې لعنت ليږل:** په دې حديث کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه صحابه کرامو ته بد ويونکی بدی (لعنت) پخپله هم د هغه طرف ته راګرځی ځکه چه د فتنې او شر والاخو هم هغه وی او صحابه کرام خود اهل خير ښخه دی او د الله تعالی د رضا او رحمت مستحق دی د ابن عدی په روايت کښې د حضرت عائشې رضي الله عنها په حوالې نقل دی

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فيمن سب أصحاب النبی صلی الله عليه وسلم (رقم-۳۸۶۶)

چه «إن شرار أمتي أجرؤهم على

**صحابؤ ته د بدو او ښیلو باره کښې وعیدی روایات:**

① أصحابي» بیشکه زما دَ امت خراب خلق هغه دی چه زما دَ صحابه کرامو باره کښې گستاخ دی

② یو مرفوع حدیث کښې دی. «یکون في آخر الزمان قوم یسمون الروافضة یرفضون الإسلام فاقتلوهم فإنهم مشرکون وینتحلون حب أهل البیت ولیسوا کذلك إنهم یسبون أبابکر وعمر» چه په آخری زمانه کښې به یو قوم وی چا ته چه به روافض وئیلې کیږی ځکه چه هغوی به اسلام پریخودې وی هغوی مشرکان دی هغوی به خپل ځان ته دَ اهل بیت محبان وائی مگر وی به دروغژن ځکه چه هغوی به حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه ته کنځلې کوی

دَدې نه معلومه شوه چه دَ صحابه کرامو دښمنان روافض دی او دَ اهل بیتو دښمنان خوارج دی دَ دوی دَ دښمنئی په وجه به دَ صحابه کرامو او اهل بیتو درجات ترقیامته پورې کم نه شی بلکه نور به هم زیاتیږی. (مرقاة: ۱۱/ ۲۸۰)

**[۶۰۱۸] دصحابه رضي الله عنهم اقتداء دهدایت ذریعه ده**

۶۰۱۸-( )[۱] [۱]وعَنْ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: [۲]سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ «سَأَلْتُ رَبِّي عَنِ اخْتِلَافِ أَصْحَابِي مِنْ بَعْدِي، [۳] فَأَوْحَى إِلَيَّ: يَا مُحَمَّدُ! إِنَّ أَصْحَابَكَ عِنْدِي بِمَنْزِلَةِ النُّجُومِ فِي السَّمَاءِ، [۴] بَعْضُهَا أَقْوَى مِنْ بَعْضٍ، [۵] وَلِكُلٍّ نُورٌ، [۶] فَمَنْ أَخَذَ بِشَيْءٍ مِمَّا هُمْ عَلَيْهِ مِنِ اخْتِلَافِهِمْ [۷] فَهُوَ عِنْدِي عَلَى هُدًى»

**ترجمه:** [۱] اوحضرت عمر ابن الخطاب رضي الله عنه وایي [۲] مادرسول الله صلی الله علیه وسلم نه واورېدل چې وې فرمایل چې ماد خپل پروردگار نه دصحابه رضي الله عنهم په منځ کښې داختلاف باره کښې پوښتنه وکړه چې دشریعت په فروعي مسائلو کښې زما نه وروسته واقع کیږی [۳] نو الله تعالی دوحي په ذریعه زه اگاه کړم چې اې محمد صلی الله علیه وسلم حقیقت دادی چې ستا صحابه رضي الله عنهم زما په نزد داسې دي لکه آسمان کښې ستوري څرنگه چې هغه ستورو کښې [۴] اگر که بعضې زیات قوي یعنی زیات روښانه دي [۵] لیکن رڼا په هغوی کښې په هریو کې ده دغه شان صحابه رضي الله عنهم کښې هریو دخپلي خپلي مرتبې اوخپل خپل استعداد مطابق نور هدایت لري [۶] نوکوم سړی چې علمي اوفقهي مسائلو کښې دهغه اختلاف نه څه شی هم اختیار کړلي [۷] زما په نزد هغه په هدایت دي

[۱] قَالَ: وَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «أَصْحَابِي كَالنُّجُومِ، [۳] فَبِأَيِّهِمُ اقْتَدَيْتُمُ اهْتَدَيْتُمْ». رَوَاهُ رَزِينٌ.

---

[۱] رواه رزین

**ترجمه:** [۱] حضرت عمر ﷺ وايي اورسول الله ﷺ وفرمايل [۲] چې زما صحابه ﷺ دستورو په شان دي [۳] نو تاسو دهغوی پیروي کوي هغوی کښې چې دکوم يو تاسو پيروي کوي هدايت به پيدا کوي (رزين)

**حل اللغات:-** ① اِقْتَدَيْتُمْ: چه اقتداء ئې اوکړه تاسو (يعنى هغه پسې روان شوئ). ② اِهْتَدَيْتُمْ: هدايت به درته حاصل شي (دجنت په لار به روان شئ).

**تسهيلات: قوله:** سَأَلْتُ رَبِّي عَنِ اخْتِلَافِ أَصْحَابِي مِنْ بَعْدِي.

**دصحابؓ د اختلاف باره کښې د رسول الله فکر:** رسول الله ﷺ ته دَ صحابه کرامو دَ خپل مينځ دَ اختلاف باره کښې سخت تشويش وو نو ځکه چه حضوپاك دَ خپل رب نه په دې باره کښې سوال کړې دې چه ددې به څه کيږي؟

**قوله:** أَصْحَابِي كَالنُّجُومِ فَبِأَيِّهِمُ اقْتَدَيْتُمُ اهْتَدَيْتُمْ

**د صحابؓ تشبيه د ستورو سره:** الله تعالى ورته اوخودل چه ستاصحابه په شان دَ ستورو دى دَ بعضې ستورو رڼا دَ بعضې نه تيزه وى په دې سره په ظاهره اختلاف ښکارى ليکن نور په ټولو کښې دې. لهذا دَخپل مينځ دَ جنګونوباوجود صحابه کرام دَ هدايت ستنې دى. دَدوى دا جنګونه په بدنيتئى باندې نه دى اجتهادى اختلاف دې کوم چه معاف دې. هيڅ بغض عداوت او دښمنى نه ده.

داختلاف باوجود د صحابؓ يوبل سره عقيدت: ① حضرت علی ﷺ او حضرت عائشه ﷺ په جنګ جمل باندې ټول عمر ژړل. چې دا زمونږ څخه لويه غلطى شوې ده چې زمونږ د اختلاف په ډير مسلمانان قتل شول.

② کله چې دَ روم بادشاه دَحضرت علی ﷺ خلاف دَ معاويه ﷺ امداد کول غوښتل نو حضرت معاويه ﷺ خط ليکلوسره اووئيل اې دَ روم سپيه تاکه په حضرت علی ﷺ باندې حمله اوکړه نوستاخلاف به دَ علی دَ لښکرومبې سپاهى معاويه وى. اوزه به تاراګيرکړم او په ځنګل کښې دَ خنزير دَ بچو په څرولو باندې به دې مقررکړم. ياد لره علی زما رور دې. زمونږ دا جنګ يواجتهادى جنګ دې. دَ دوو رونړو تنازعه ده خبردار مينځ ته رانه شې.

③ حضرت ابوهريره ﷺ ټوله ورځ د حضرت علی ﷺ سره يوځائى دَحضرت معاويه ﷺ خلاف جنګيږى اوماښام هم دَ حضرت معاويه ﷺ په دسترخوان باندې کينى. حضرت معاويه ﷺ تپوس اوکړوابوهريره ﷺ دا څه کوې؟ هغوى جواب ورکړه چه داجنګ دَ څه عداوت اوعناد په اعتبار باندې نه دې. زه چونکه حضرت علی ﷺ په حق ګڼرم نوهغه سره يم ليکن خوراك تاسره ښه دې په دې وجه دلته راځم

**نوټ:** واضحه دې وى چه اصحابى كالنجوم والاحديث ته عام علماء ضعيف وئيلې دې اوبعضې قابل قبول وئيلې دې.

# [۱۳] باب مناقب ابي بكر رضی الله عنه

## دَ حضرت ابوبكر صديق دَ مناقب بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة عشر أحاديث مشتملة على نحو اثنى عشرة منقبة:**

① هو أمن الناس على النبي صلى الله عليه وسلم: ۸۔
② بقاء خوخة الصديق رضي الله عنه خصوصاً في المسجد النبوي: ۱۔
③ أخوة الصديق رضي الله عنه ومحبته للنبي صلى الله عليه وسلم: ۱، ۲، ۱۰۔
④ الإشارات إلى خلافة الصديق رضي الله عنه: ۱، ۳، ۴، ۱۱۔
⑤ كون الصديق رضي الله عنه أحب الناس إلى النبي صلى الله عليه وسلم: ۵، ۹۔
⑥ كون الصديق رضي الله عنه خير الناس في الأمة: ۶، ۷، ۹۔
⑦ كون الصديق رضي الله عنه سيد الناس: ۹۔
⑧ كون الصديق رضي الله عنه سابقاً على الناس في الفضائل: ۱۲۔
⑨ كون الصديق رضي الله عنه هو العتيق: ۱۳۔
⑩ كون الصديق رضي الله عنه أول من ينشق عنه الأرض في الأمة: ۱۴۔
⑪ كون الصديق رضي الله عنه أول من يدخل الجنة من الأمة: ۱۵۔
⑫ فضيلة أعمال الصديق رضي الله عنه على أعمال جميع الأمة: ۱۶۔

**دَ ابوبکر رضی الله عنه مختصر تعارف:**

دَحضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه نوم عبدالله دې لقب ئې صديق اوعتيق دې دواړه القاب حضورپاك ورکړې وو دَهغوی کنيت ابوبکردې په اتمه پيړنی کښې دَ هغوی نسب حضورپاك سره ملاوېږی هغوی رضی الله عنه تيمي دی دَحضورپاك نه دوه کاله کشروو هم هغه دوه کاله دَرسول الله ﷺ نه پس ژوندې وو اودَ ۶۳ کالو په عمر کښې وفات شو

رنګ ئې سپين اوبدن ئې کمزورې وو په اتکوباندې ئې غوښه کمه وه تندئی راوتلې شان وو ډير بوج اوچتونکې او نرم زړه والاوو دَتولونه زيات دَ حضورپاك په ملګرتيا کښې پاتې دې په ژوندکښې دَحضورپاك وزير وو او دَ وفات نه پس دَحضورپاك جانشين شو دَخليفه رسول مبارك خطاب هم هغوی ته ملاؤشو دوه کاله درې مياشتې نهه ورځې خلافت ئې اوکړو ۱۴ هجری ۲۲ جمادی الثانی کښې دَمابنام اوماسخوتن په مينځ کښې دَدې فانی دنيانه رخصت شو اودَخپل محبوب په قدمونوکښې دَ قيامته پورې په آرام شو هغوی دَ قريشودَ اشرافوڅخه وو په عرب معاشره کښې دَهرچاخوښ وو دَ اهل عرب دَ

انساب ماهرو و د اوچتې درجې سوداګرو و ډیر فصیح اوبلیغ وو د جاهلیت په زمانه کښې نی چرېه شراب نه دی څکلی اونه نی کله بت پرستی کړې د وړوکوالی نه نی حضورپاك سره ډیرزیات محبت وو د ټولو نه اول نی په حضورپاك ایمان راوړلې دې اود آخری وخت پورې نی د مال اوجان قربانی ورکړې.

# الفَصْلُ الأَوَّلُ

## [۶۰۱۹] د نبی علیه السلام په نظرکښې د ابوبکر مقام

۶۰۱۹-()[۱] ۱ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ «إِنَّ مِنْ أَمَنِّ النَّاسِ عَلَيَّ فِي صُحْبَتِهِ وَمَالِهِ أَبُوبَكْرٍ - ۳ وَعِنْدَ الْبُخَارِيِّ أَبَا بَكْرٍ - ۴ وَلَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلًا لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ خَلِيلًا، ۵ وَلٰكِنْ أُخُوَّةُ الْإِسْلَامِ وَمَوَدَّتُهُ، ۶ لَا تُبْقَيَنَّ فِي الْمَسْجِدِ خَوْخَةٌ إِلَّا خَوْخَةَ أَبِي بَكْرٍ»).

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه د نبي کریم ﷺ نه روایت کوي حضور ﷺ وفرمایل ۲ انسانانو کښې د ټولوڅخه زیات کوم سړی چې ما سره ملګرتیا وکړله اوزما په خدمت کښې اوزما په خوشنودي کښې یې خپل وخت اوخپل مال هرڅه یې زیات ولګول هغه ابوبکر رضی الله عنه دي ۳ اودبخاري دروایت مطابق ابابکر رضی الله عنه دي ۴ که ما یوڅوک خپل خلیل یعنی ریښتني خاني دوست جوړول غوښتلې نویقینًا ابوبکر رضی الله عنه به مې داسې دوست جوړ کړی ؤو ۵ خواسلامي اخوت اومحبت په خپل ځاي بلند تر دي ۶ مسجد نبوي ﷺ کښې دابوبکر رضی الله عنه دکور دکړکی یادروشندان نه علاوه دې بله څه کړکی یاروشندان باقي پرې نه ښودل شي

**حل اللغات:**- ① أَمَنِّ النَّاسِ: د اسم تفضیل صیغه ده، أَيْ: أَنْعَمِهِمْ: یعنی ماسره د ټولو نه زیات احسان کونکي. یا په ما باندې د ټولو نه زیات خرچ کونکې، ② خَلِيلًا: ژور دوست، أي الصَّاحِبُ الْوَادُّ الَّذِي يَفْتَقِرُ إِلَيْهِ: هغه دوست چه په وخت دحاجت هغه ته رجوع کولې شی هغې ته خلیل وائی ③ وَمَوَدَّتُهُ: أَيْ: وَمَوَدَّةُ الْإِسْلَامِ: یعنی محبت په وجه داسلام ④ خَوْخَةٌ: بَابٌ صَغِيرٌ يُنْصَبُ بَيْنَ بَيْتَيْنِ أَوْ دَارَيْنِ: خوخة روشندان ته هم وائی کوم چه کوټه کښې د رڼرا دپاره پریخودلې شی، اوهغه ورې دروازې ته هم وائی په کومې سره چه سړې بهر ته تلې راتلې شي.

۱ وَفِي رِوَايَةٍ: («لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلًا غَيْرَ رَبِّي ۲ لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ خَلِيلًا»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ اویوروایت کښې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمایل که ماد الله نه سوا بل څوک خپل خلیل جوړولای ۲ نویقینًا ابوبکر رضی الله عنه به مې خلیل جوړ کړی وای

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب فضائل أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم ؛ ومن صحب النبی صلی الله علیه وسلم، أو رآه من المسلمين، فهو من أصحابه» (رقم-۳۶۵۴) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل ابی بکر الصدیق رضی الله عنه (رقم-۲ - (۲۳۸۲) واحمد فی المسند: ۲۷۰/۱

**تسهیلات:**

**قوله: لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلًا غَيْرَ رَبِّي،**

**د لفظ خلیل تحقیق:** د لفظ خلیل مبدا اشتقاق مختلف دي دا لفظ "خُلة" یعنی دَ دوستئی نه هم مشتق دي دکوم معنی چه داسې ژور دَ زړه تعلق وی چه دَ انسان دَ زړه دننه پورې ورننوځی اودَ هغه دَ زړه ظاهری اوباطنی احساسات اوخیالات باندې قابض شی. دَ "خُلة" دامفهوم دَ الله تعالی نه سوا دَ بل چا دَپاره مناسب نه دې.

**دعدم خلیل نیولو مطلب:** په دې وجه حضورپاک دَ حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه دَپاره دَدې نفی اوفرمائیله. اودائی اوفرمائیل چه اسلامی رورولی صدیق سره په درجه دکمال موجود ده که چرې لفظ خلیل دَ خلة دَخاء په فتحه سره وی اوهم دَدغه ماده نه مشتق وی نودا به دَ احتیاج او اعتماد په معنی کښې وی. مطلب به داشی که چرې ما خپل څوك داسې دوست جوړول غوښتل دکوم طرف ته چه په خپلو ضرورتونواوحاجتونوکښې رجوع کوله او په خپل اهم خبرو او ټولو معاملاتوکښې په هغه باندې باورکولو اوهغه مې اسرا جوړوله نوما به ابوبکر جوړولو لیکن په داسې امورو معاملاتو اومهماتو کښې ماته کامل باور اواعتماد صرف یودَ الله تعالی په ذات باندې دې. اوزما اسرا او مرجع صرف هم هغه الله تعالی دې په دې وجه ما په دې معنی کښې ابوبکر خلیل جوړنه کړو او اسلامی رورولی هغه سره دکمال په درجه کښې موجود ده.

**قوله: لَا تُبْقَيَنَّ فِي الْمَسْجِدِ خَوْخَةٌ إِلَّا خَوْخَةَ أَبِي بَكْرٍ،**

**د مذکوره جملې پس منظر:** مسجدنبوی سره دَ صحابه کرامو کورونه متصل لګیدلی وو په شروع کښې به صحابه کرامو رضی الله عنهم دَ جمات طرف ته روشندان پریخودې وو دې دَپاره چه دَحضورپاك دَ راتګ پته لګی اودَ هغوی دیدار اوشی اوکه چرې وړه دروازه وی نودَهغې په ذریعه سره جمات ته تګ راتګ اوشی حضورپاك په مرض وفات کښې داسې ټولې کهرکئی بندولوحکم ورکړو صرف دَ صدیق اکبر رضی الله عنه دکهرکئی کولو ساتلواجازت ئې ورکړو دکوم نشان چه ترننه پورې موجوددې اومسجدنبوی کښې باب السلام سره باب رحمت دې دَدې دَپاسه په دیوال باندې اوچت لیکلی دی "هذاخوخة ابی بکر"

**په مذکوره جمله کښې دوه مقصودی خبرې:** ① دَدې اعلی ارشاد نه دَ صدیق اکبر رضی الله عنه دَ شان اظهار کول هم مقصود وو

② دا اشاره هم وه چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه به دَحضوراکرم صلی الله علیه وسلم نه پس خلیفه وی.

**د کړکۍ پریښود په خصوصیت کښې تعارض:** په نسائی او مسند احمد کښې د حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه په حوالې سره یو روایت نقل دې دَ کوم مفهوم چه دادې حضورپاك دَټولو صحابه کرامو روشندانونه اوکړکئی بندې کړې کومې چه مسجد نبوی طرف ته وې

صرف دَحضرت علی رضی الله عنه کرکئی پریخوده دغه شان یو روایت دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه هم مسند احمد اونسائی نقل کړې دې دکثرت طرق په وجه سره حدیث صحیح هم دې لهذا زیر بحث حدیث اودَنسائی اواحمد حدیث کښې تعارض راغلو. آیا دا خصوصی حکم صرف دَ صدیق اکبر رضی الله عنه دَپاره وو یا دَحضرت علی رضی الله عنه دَپاره وو؟

**د تعارض جواب:** علامه ابن حجرعسقلانی رحمه الله په دې باندې اوږد کلام کړې دې اودواړه احادیث صحیح منلونه پس نی دا جواب ورکړې دې چه دَدې دواړو روایتونو زمانه جدا جدا ده. دَ حضرت علی رضی الله عنه باره کښې چه کوم حدیث دې هغه بالکل دَ شروع دَوخت خبره وه کوم وخت چه حضرت حمزه رضی الله عنه ژوندې وو نوهغوی حضورپاك ته ګیله هم کړې وه چه تاسو دَ تره دَ پاره اجازت ورنه کړو اودَ تره دَخوئی دَپاره دې اجازت ورکړو حضورپاك اوفرمائیل ما هرڅه دَالله تعالی په حکم باندې کړی دی. دې نه پس حضورپاك په مرض وفات کښې دَ انتقال نه درې څلور ورځې مخکښې بیا حکم اوکړو اودَ صدیق اکبر رضی الله عنه نه علاوه نی دَ چادَپاره دَجمات طرف ته دکړکئی کولاوولو اجازت ورنه کړو لهذا دا خصوصیت صرف دَ صدیق اکبر رضی الله عنه دَپاره دې په کوم کښې چه دَخلافت طرف ته اشاره ده مظاهرحق کښې تفصیل موجود دې.

## [۶۰۲۰] په صحابو کښې د ابوبکر رضی الله عنه افضلیت

۶۰۲۰-()[۲] [۱]وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲]قَالَ: ( «لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلًا لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ خَلِيلًا [۳]وَلَكِنَّهُ أَخِي وَصَاحِبِي [۴]وَقَدِ اتَّخَذَ اللَّهُ صَاحِبَكُمْ خَلِيلًا» ) . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه دنبي کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي [۲]حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل که ماڅوک خلیل جوړولای نوابوبکر رضی الله عنه به مي خپل خلیل جوړکړي وې [۳]لیکن هغه زما ورور دی اوزما رفیق اوملګری دی [۴]وحقیقت دادی چي ستاسو صاحب یعنی زه الله خپل خلیل جوړ کړی یم (مسلم)

**تسهیلات: قوله:** وَلَكِنَّهُ أَخِي:

**په روایت کښې تفصیل:** دَمسند احمد په روایت کښې دی لكنه اخي في الدين وصاحبي في الغار. دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما یوروایت په مسند ابویعلی کښې داسې نقل دې ابوبکر صاحبي ومونسي في الغار سدوا كل خوخة في المسجد غير خوخة ابي بكر.

[۱] اخرجه مسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب من فضائل أبي بكر الصديق رضي الله عنه (رقم-۲ - (۲۳۸۲) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي بكر الصديق رضي الله عنه واسمه عبد الله بن عثمان ولقبه عتيق (رقم-۳۶۵۵) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبي بكر الصديق رضي الله عنه (رقم-۹۴) واحمد في المسند: ۴/۴

## [۶۰۲۱] د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په حق كښې د خلافت وصيت

۶۰۲۱ -() [۳] [۱] «وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي مَرَضِهِ: [۳] (ادْعِي لِي أَبَا بَكْرٍ أَبَاكِ، وَأَخَاكِ، حَتَّى أَكْتُبَ كِتَابًا: [۴] فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يَتَمَنَّى مُتَمَنٍّ [۵] وَيَقُولَ قَائِلٌ: أَنَا، [۶] وَلَا. وَيَأْبَى اللَّهُ وَالْمُؤْمِنُونَ إِلَّا أَبَا بَكْرٍ)». رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَفِي (كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ): (أَنَا أَوْلَى) بَدَلَ: (أَنَا وَلَا).

**ترجمه:** [۱] اوام المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها وايي [۲] رسول كريم ﷺ خپل مرض وفات كښې يوه ورځ ماته وفرمايل [۳] خپل پلار ابوبكر رضي الله عنه اوخپل وروړ عبدالرحمن رضي الله عنه ماته راوغواړه چې زه يوتحرير وليكم [۴] دراصل ماته انديښنه ده كه مادابوبكر رضي الله عنه دخلافت باره كښې ونه ليكل نوچيرته دخلافت څوک ارزومند ارزو ونه كړی [۵] اوڅوک ويونكي داونه وايي چې دخلافت مستحق زه يم [۶] دابوبكر رضي الله عنه په موجودګی كی هيڅ سړی دخلافت مستحق كيدی نه شي او د ابوبكر رضي الله عنه نه علاوه دبل چا خلافت به نه الله وغواړي اونه څوک اهل ايمان به يي تسليم كړي . (مسلم) اوكتاب حميدي كښې دأَنَا وَلَا په ځاي أَنَا أَوْلَى دخلافت دټولوڅخه لوی مستحق زه يم الفاظ دی

**حل اللغات:-** ① أَنْ يَتَمَنَّى: چرته آرزو او خواهش اونه كړی (دخلافت) ② مُتَمَنٍّ: څوک خواهش مند، آرزومند ③ أَنَا وَلَا: دا يولغت دي چه دَ اولی په معنی كښې دي، أي: أَنَا مُسْتَحِقٌّ لِلْخِلَافَةِ: يعنی زه زيات مستحق يم چنانچه په كتاب حميدی كښې أنا أولى صريح الفاظ هم راغلی دی

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَا وَلَا:

**د ابوبكر د خلافت بلافصل دليل:** يعنـې خپل پلاراو روړ راوغواړه دي دَپاره چه زه يوتحريراوليكم چه زمادَ وفات نه پس دي دَ ابوبكر رضي الله عنه په مقابله كښې دَخلافت پيدا كيدوسره دي دا دعوی نه كوی چه زه دَخلافت دَپاره زيات حقداريم كيدې شي چه حضورپاك دَدي ارادي اظهارخو اوفرمائيلو مګربيانی معامله په الله تعالی اومسلمانانوباندي پريخودله

دَدي حديث نه معلومه شوه چه په واقعه قرطاس كښې هم دَحضورپاك مقصد دَحضرت ابوبكر رضي الله عنه دَخلافت تحرير ليكل وو بيادَحضورپاك اراده بدله شوه داحديث نص صريح دي چه خلافت بلافصل حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته ملاؤ شوي وو

په دي باندي دَ صحابه كرامو اجماع هم شوي وه او دوو كالوپوري حضرت ابوبكر رضي الله عنه خلافت هم اوكړو

[۱] اخرجه مسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم /باب من فضائل أبي بكر الصديق رضي الله عنه (رقم-۱۱ - (۲۳۸۷) كتاب السنة /باب في استخلاف أبي بكر رضي الله عنه (رقم-۴۶۶۰) واحمد في المسند: ۴/۶

**دحضرت علی رضی الله عنه خلافت صدیقی تسلیمول:** حضرت علی رضی الله عنه دهغوی په لاس باندې بیعت هم اوکړو هغوی پسې ئې مونځونه هم اوکړل. هغوی دخلیفه په نوم باندې تسلیم هم کړل اوپه دغه نوم باندې به ئې یادولو هم اودځپل خلافت دعوی ئې هم نه ده کړې، اظهارئې هم اونه کړو. دهغوی نه دڅه خفیه وصیت باره کښې پوښتنه هم اوکړې شوه نوهغوی اوفرمائیل ماته هیڅ وصیت نه دې کړې شوې. ددې نه پس هم که شیعه ګان جګړه کوی چه خلافت دحضرت علی رضی الله عنه حق وو اوهغه وصی جوړ کړې شوې وو هغه خلیفه بلافصل وو نودادَ دغه حضراتو بې عقلی ده. په ظاهره خو حضرت علی رضی الله عنه سره هیڅ هم نه وو اوکه په باطن کښې څه وو نوشیعه ګان دې هغه اوښائی هسې دمخالفت جوړېدو څه ضرورت دې چه دَ صحابه کرامو دَ اجماع نه انکارکوی اودا احادیث دروغ ګڼړی.

**[۶۰۲۲] دحضرت ابوبکر رضی الله عنه حق کښې دخلافت وصیت**

۶۰۲۲ -()[۳] [۱] وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «أَتَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - امْرَأَةٌ فَكَلَّمَتْهُ فِي شَيْءٍ [۳] فَأَمَرَهَا أَنْ تَرْجِعَ إِلَيْهِ [۴] قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَرَأَيْتَ إِنْ جِئْتُ وَلَمْ أَجِدْكَ؟ [۵] كَأَنَّهَا تُرِيدُ الْمَوْتَ. [۶] قَالَ: (فَإِنْ لَمْ تَجِدِينِي فَأْتِي أَبَا بَكْرٍ)» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت جبیر ابن مطعم وایي [۲] یوه ورځ دنبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې یوه ښځه حاضره شوه اوڅه معامله کښې یې دحضور صلی الله علیه وسلم سره خبرې وکړې یعنې یاخو هغه دڅه مسئلې پوښتنه وکړه یادڅه حاجت طلبګاره شوه [۳] حضور صلی الله علیه وسلم هغه ته حکم وکړ چې څه بل وخت حضور صلی الله علیه وسلم ته راشي چې اطمینان سره دهغې خبرې جواب ورکړي یادهغې حاجت پوره کړي [۴] هغه ښځې عرض وکړ یارسول الله صلی الله علیه وسلم زما مکان د مدینې نه ډیر لرې دې شاید دوباره راتلو موقع راته حاصله نشي ځکه که وروسته زه راشم اوتاسو صلی الله علیه وسلم پیدا نکړم نوبیا به څرنګه خبره جوړیږي [۵] راوي وايي دي ویلو نه دهغه ښځې مقصد دحضور صلی الله علیه وسلم وفات طرف ته اشاره کول وو یعنې په ظاهره دامعلومیږي چې خدمت اقدس کښې دهغه ښځې دراتلو داواقعه دهغه وخت ده چې حضور صلی الله علیه وسلم مرض وفات کښې مبتلاؤو اوهغه ته خدشه وه که زه خو ورځې وروسته راشم نوشاید حضور صلی الله علیه وسلم دې دنیاکې موجود نه وي [۶] حضور صلی الله علیه وسلم هغې ته وفرمایل که ته ماپیدا نکړې نوبیاابوبکر رضی الله عنه ته ورشه

**تسهیلات: قوله:** فَأْتِي أَبَا بَكْرٍ:

**د نبی علیه السلام نه روسته د فیصلې حقدار:** یعنې زمانه پس به ابوبکر رضی الله عنه زماخلیفه وي. مسؤل به هم هغه وي تاسو هغه له ځئ تاسوته به ستاسو حق ملاویږي. دا روایت لکه

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «لو کنت متخذا خلیلا» (رقم-۳۶۵۹) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل أبی بکر الصدیق رضی الله عنه (رقم-۱۰ - (۲۳۸۶) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۷۶)

چه صریحی نص دې چه دَحضورپاك نه پس دَهغوی جانشین حضرت ابوبکر رضی الله عنه وی. امام نووی رحمه الله فرمائی په دې حدیث کښې دَخلافت هیڅ تصریح نشته دې اودا اخبار بالغیب او دَراتلونکی وخت پیشنګوئی ده

**دَخلافت بلا فصل صریحی روایت:** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی د احدیث دَخلافت طرف ته اشاره ده خو په یوروایت کښې تصریح ده هغه داسې ده چه یوخل یوه ښځه راغله اودَحضورپاك نه ئې څه غوښتل. حضورپاك اوفرمائیل روستوراشه هغې وئیل یارسول الله ﷺ که چرې تاسو هغه وخت نه وئی هغې اشاره کوله که چرته ستاسو انتقال اوشی نوبیابه څه کیږی؟ حضورپاك اوفرمائیل که چرته تا زه ژوندې اونه لیدلم نوابوبکر له راشه هغه به زمانه پس زما خلیفه وی.

**دَخلفاء راشدینو دَخلافت صریحی روایت:** ملاعلی قاری رحمه الله دلته یو بل حدیث هم لیکلې دې دکوم خلاصه چه داسې ده یوباندچی راغلو دَحضورپاك په لاس ئې څه اوښان خرڅ کړل اوقیمت باقی پاتې شو. حضرت علی رضی الله عنه هغه باندچی ته اووئیل چه لاړشه دَ حضورپاك نه تپوس اوکړه که چرې تاسو موجود پاتې نه شوئی نوداقرض به څوك خلاصوی؟ حضورپاك دَباندچی په جواب کښې اوفرمائیل چه ابوبکر رضی الله عنه به ئې اداکوی. حضرت علی رضی الله عنه هغه باندچی دوباره اولیګلوچه ابوبکر رضی الله عنه نه وی نوقرض به څوك اداکوی؟ وئی فرمائیل حضرت عمر رضی الله عنه له راشه هغه به ئې اداکړی. حضرت علی رضی الله عنه بیا باندچی وراولیګلو چه که حضرت عمر رضی الله عنه نه وی نوڅوك به ئې اداکوی؟ حضورپاك اوفرمائیل حضرت عثمان له راشه هغه به ئې اداکړی. حضرت علی رضی الله عنه باندچی بیا وراولیګلو چه که چرې حضرت عثمان رضی الله عنه مړ شو نوبیابه ئې څوك اداکوی؟ حضورپاك اوفرمائیل چه ابوبکر عمر اوعثمان مړه شی نوبیا ته هم مړ شه ستا څه کار دې؟ دا روایت اسماعیلی رحمه الله په خپل معجم کښې نقل کړې دې. (مرقات: ۳۷۴/۱۰)

**[۶۰۲۳] د نبی علیه السلام ابوبکر رضی الله عنه سره د ټولو څخه زیات محبت**

۶۰۲۳-(¹) [ه] [۱] «وَعَنْ عَمْرِوبْنِ الْعَاصِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- [۲] أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بَعَثَهُ عَلَى جَيْشِ ذَاتِ السَّلَاسِلِ، [۳] قَالَ: فَأَتَيْتُهُ، فَقُلْتُ، أَيُّ: النَّاسِ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ [۴] قَالَ: (عَائِشَةُ). قُلْتُ: مِنَ الرِّجَالِ؟ قَالَ: (أَبُوهَا). [۵] قُلْتُ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: (عُمَرُ) [۶] فَعَدَّ رِجَالًا، [۷] فَسَكَتُّ مَخَافَةَ أَنْ يَجْعَلَنِي فِي آخِرِهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت عمرو ابن العاص رضی الله عنه نه روایت دی [۲] رسول کریم ﷺ هغه دیولښکر امیر کماندر جوړولو سره ذات السلاسل دیوخای نوم دی ته ولیږلو [۳] هغه بیان کوی چې

---

¹ اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب ذهاب جریر الی الیمن(رقم-۴۳۵۹) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل ابی بکر الصدیق رضی الله عنه (رقم-۸ - (۲۳۸۴) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل ابی بکر الصدیق رضی الله عنه (رقم-۱۰۱)

دلښکر د روانګۍ نه مخکې یا واپس راتلو څخه وروسته زه د حضور ﷺ خدمت کښې حاضر شوم نو ما پوښتنه وکړه چې ستاسو ﷺ د ټولو څخه زیات د چاسره محبت دی ④حضور ﷺ وفرمایل د عائشي رضي الله عنها سره چې ښځو کښې هغه محمد ﷺ ته د ټولو څخه زیاته عزیزه او محبوبه وه ما عرض وکی زما سوال د خلقو باره کښې وو چې خلقو کې د ټولو څخه زیات عزیز او محبوب ستاسو ﷺ په نزد څوک دی حضور ﷺ وفرمایل د عائشي پلار رضي الله عنه یعني ابوبکر رضي الله عنه ⑤ما پوښتنه وکړه هغوی نه وروسته بیا څوک تاسو ﷺ ته عزیز او محبوب دی حضور ﷺ وفرمایل عمر رضي الله عنه ⑥دي نه وروسته زما د پوښتني مطابق حضور ﷺ د متعدد و خلقو ذکر وکی ⑦او بیا د دي خوف نه خاموش شوم چې چیرته زما نوم د ټولو څخه آخر کښې را نشي .(بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ①جَيْش: لښکر، جنګې دسته، ②ذَاتِ السَّلَاسِل :رَمْلٌ يَنْعَقِدُ بَعْضُهُ بِبَعْضٍ: سلاسل داسې زمکې ته وائي چه خاؤرې په خاؤرې پکښې د شګو ډیرې وي یعني شګلنه زمکه، او هم په دې وجه دغه زمکې ته ذات السلاسل اووئیل شو. ③فَعَدَّ: نو اوشمیرل (یعني نبي علیه السلام د بعضې نورو کسانو نومونه واخستل)

**تسهیلات:**

**قوله:** قَالَ: أَبُوهَا،

**دابوبکر مقام او عظمت:** حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه حضورپاك په غزوه ذات السلاسل کښې دَ لښکر امیر جوړ کړې وو. په واپسئ باندې هغه دَ صحابه کرامو په طبقه کښې خپل مقام معلومول غوښتل نو حضورپاك نه ئې داسې سوال اوکړو څنګه چه په دې حدیث کښې دې کله چه هغه ته داسې جواب ملاؤ شو نو هغه خاموش شو.

**[٦٠٢٤] دابوبکر صدیق رضي الله عنه دافضلیت شهادت دحضرت علي رضي الله عنه په ژبه**

٦٠٢٣-(١) [٦] ①وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِيَّةِ، قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي، ②أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ بَعْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ ③قَالَ: أَبُو بَكْرٍ قُلْتُ: ثُمَّ مَنْ؟ ④قَالَ: عُمَرُ. وَخَشِيتُ أَنْ يَقُولَ: عُثْمَانُ قُلْتُ: ثُمَّ أَنْتَ؟ ⑤قَالَ: مَا أَنَا إِلَّا رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت محمد ابن حنفیه رضي الله عنه چې دبي بي فاطمي زهرا رضي الله عنها نه علاوه د دویمې بي بي نه د حضرت علي رضي الله عنه فرزند دی وایي ما د خپل والد ماجد حضرت علي رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه ②چې نبي کریم ﷺ نه وروسته کوم سړی د ټولو څخه بهتر او افضل دی ③نو هغوی وفرمایل حضرت ابوبکر رضي الله عنه بیا تري ما پوښتنه وکړه چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه وروسته کوم سړی د ټولو څخه بهتر او افضل دی ④وي فرمایل حضرت عمر رضي الله عنه محمد ﷺ

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «لو كنت متخذا خليلا» (رقم-٣٦٧١)وابوداود في كتاب السنة/باب في التفضيل (رقم-٤٦٢٩)

ابن حنفیه رضی الله عنه وایي چې ما سره خدشه شوه که ما پوښتنه وکړه چې دحضرت عمر رضی الله عنه نه وروسته کوم سړی بهتر اوافضل دی نوچیرته هغوی دا ونه وایي چې حضرت عثمان رضی الله عنه نوما دسوال عنوان بدلولو سره داسې اوویل چې بیا دحضرت عمر رضی الله عنه نه وروسته دټولوڅخه بهتر اوافضل تاسویي ⑤هغوی دې خبرې اوریدوسره وفرمایل زه خوبس دمسلمانویو فردیم (بخاري)

**تسهیلات:**

**قوله: قَالَ: أَبُوبَكْرٍ،**

**دابوبکررضی الله عنه افضلیت دعلی رضی الله عنه په خوله:** دَ صدیق اکبر رضی الله عنه دَ فضیلت اعتراف پخپله حضرت علی رضی الله عنه کوی. دَدې نه پس نی دَ یوشیعه خپې کلکولو موقع پرینخوده. حضرت علی رضی الله عنه داهم اوفرمائیل چه کله رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر رضی الله عنه زمونږ دَدین امام جوړکړو نوهغوی زمونږ دَ دنیا هم امام دی.

**[۶۰۲۵] دصحابو رضی الله عنهم په مینځ کښې دحضرت ابوبکر رضی الله عنه افضلیت**

> ۶۰۲۵-() [۷] ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: ②كُنَّا فِي زَمَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَا نَعْدِلُ بِأَبِي بَكْرٍ أَحَدًا، ③ثُمَّ عُمَرَ، ثُمَّ عُثْمَانَ، ④ثُمَّ نَتْرُكُ أَصْحَابَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَا نُفَاضِلُ بَيْنَهُمْ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. ⑤وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي دَاوُدَ، قَالَ: كُنَّا نَقُولُ وَرَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَيٌّ: ⑥أَفْضَلُ أُمَّةِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَعْدَهُ أَبُوبَكْرٍ، ثُمَّ عُمَرُ، ثُمَّ عُثْمَانُ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ.

**ترجمه:** ① اوحضرت ابن عمر رضی الله عنه وایي ②مونږ یعنی صحابه دنبي کریم ﷺ زمانه کښې صحابه رضی الله عنهم کښې هیڅوک دحضرت ابوبکر رضی الله عنه برابرنه ګڼلي اوتولو صحابه ؤ باندې به موهغوی ته فضیلت ورکولو ③دهغوی نه وروسته دحضرت عمر رضی الله عنه برابر مو هیڅوک نه ګڼلي اوهغوی نه وروسته دحضرت عثمان رضی الله عنه برابر موهیڅوک نه ګڼلي ④وبیادحضرت عثمان رضی الله عنه نه وروسته دنبي کریم ﷺ صحابه به مو په خپل حال پرینښودل چې دهغوی منځ کښې چاته په چامو فضیلت نه ورکولو (بخاري) ⑤اودابوداؤدپه روایت کښې داسې دي چې حضرت ابن عمر رضی الله عنه اوویل مونږ دنبي کریم ﷺ حیات مبارک کښې وئیل ⑥چې دنبي کریم ﷺ امت کښې دحضور ﷺ نه وروسته دټولوڅخه افضل حضرت ابوبکر رضی الله عنه دی بیاعمر رضی الله عنه اوبیا حضرت عثمان رضی الله عنه

**حل اللغات:-** ①لَانَعْدِلُ: أَيْ: لَانُسَاوِي: مونږبه برابر نه ګڼرلو. ②لَانُفَاضِلُ: أَيْ: لَانُوقِعُ الْمُفَاضَلَةَ: مونږبه فضیلت نه ورکولو یعنی یوصحابی به مویه بل باندې افضل نه ګڼرلو.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عثمان بن عفان أبی عمرو القرشی رضی الله عنه (رقم-۳۶۹۷) وابوداود فی کتاب السنة/باب فی التفضیل (رقم-۴۶۲۸) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۷۰۷)

**تسهيلات:**

**قوله: لَانُفَاضِلُ بَيْنَهُمْ:**

**دعدم تفاضل مطلب:** دَدې جملې مراد دادې چه کوم صحابه کرامو يوشان خصوصيت اومرتبه لرله په هغوی کښې مونږ چاته فضيلت نه ورکوو ګنی ترکومې پورې چه دَ بعضو صحابه کرامو افضليت په بعضې باندې معلوميږی دَ هغې نه خو انکارنه شی کولې لکه دَ اهل بدر، احد، بيعت رضوان او اهل علم صحابه رضي الله عنهم چه په يو بل باندې فضيلت لری. دَدې تفصيل وړاندې تيرشوې دې چه څوك دَچا نه افضل دې.

**د حضرت علی رضی الله عنه د عدم ذکر دوه وجوهات:** ① بعضې شارحين فرمائی چه دَ سړو نه مراد هغه شيوخ او دَ زيات عمر والاصحابه کرام رضي الله عنهم دی چه دَ رسول الله ﷺ په دربارکښې ئی دَ اصحاب الرائې او اصحاب مشوره حيثيت لرلواو هغه څوك چا سره چه به حضورپاك مخې ته راتلونکو معاملاتو او مسائلو کښې مشوره کوله نو چه ترکومې دَ حضرت علی رضي الله عنه تعلق دې نوهغه دَ رسول الله ﷺ په زمانه کښې ځوان او کم عمر وو او حضرت ابوبکر رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه شيوخ وو

② دَ حضرت علی رضي الله عنه شمير په اهل بيت کښې دې په دې وجه ابن عمر رضي الله عنه دَ حضرت علی رضي الله عنه ذکر اونه کړو بلکه دا ذکرئی اوکړو چه په صحابه کرامو کښې به مونږ دا ترتيب لرلو اهل بيت هم خاص حيثيت لری اودَ يوخاص نسبت دَ وجې هغوی مخصوص فضيلت لری کوم چه دَ هغوی نه علاوه بل چاته حاصل نه دې. لهذا دلته دا اعتراض نه دی کول پکارچه دَ حضرت عثمان رضي الله عنه نه پس دَ حضرت علی رضي الله عنه ذکر ولې اونه کړې شو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۶۰۳۶] دابوبکر رضي الله عنه د احسانا نو اعتراف د نبی کريم په ژبه

۶۰۳۶ -(۱) [۸] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «مَا لِأَحَدٍ عِنْدَنَا يَدٌ إِلَّا وَقَدْ كَافَيْنَاهُ، مَا خَلَا أَبَا بَكْرٍ، [۳] فَإِنَّ لَهُ عِنْدَنَا يَدًا يُكَافِيهِ اللّٰهُ بِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [۴] وَمَا نَفَعَنِي مَالُ أَحَدٍ قَطُّ: مَا نَفَعَنِي مَالُ أَبِي بَكْرٍ، [۵] وَلَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلًا لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ خَلِيلًا [۶] أَلَا وَإِنَّ صَاحِبَكُمْ خَلِيلُ اللّٰهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چی رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] داسې هيڅ سړی نشته چې هغه مونږ ته څه راکړي وي يازمونږ امداد يي کړی وي اومونږ دهغه برابر يازياته بدله نه وي ورکړي علاوه دابوبکر رضي الله عنه نه [۳] داحقيقت دی چې ابوبکر رضي الله عنه زمونږ سره دعطا

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي بكر الصديق رضى الله عنه واسمه عبد الله بن عثمان ولقبه عتيق (رقم-۳۶۵۵)

اوامداد كوم عظيم الشان سلوك كړى دى د هغه بدله يعنى كامله بدله به د قيامت په ورځ الله تعالى هغوى ته عطا كوي [۴] د هيڅ سړي مال ماته دومره فائده نه ده رسولې څومره چې دابوبكر رضي الله عنه مال راته رسولي ده [۵] كه ما څوك خپل خليل يعنى خالص دوست جوړولاى نو يقيناً ابوبكر رضي الله عنه به مې خليل جوړ كړى واى [۶] يادلري ستاسو صاحب د الله حقيقي دوست دي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ①يَدٌ: أي: عَطَاءٌ وَإِنْعَامٌ: څه نې راكړي وى يا نې زمونږ مدد كړي وى (دَ يد نه مراد هرهغه څيز دي دَ كوم نه چه فائده حاصلولې شى. په دې اعتبارسره دالفظ مال اودولت، ځان او آل اولاد ټولو ته شامل دي) ②كَافَيْنَاهُ: برابر جزاء او بدله وركولو ته وائى.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا لِأَحَدٍ عِنْدَنَا يَدٌ إِلَّا وَقَدْ كَافَيْنَاهُ، مَا خَلَا أَبَا بَكْرٍ

**د ابوبكر د فضيلت اعتراف د رسالت په ژبه:** "أي عطاء وإنعام" په دې كښې هيڅ شك نشته چه دَ الله تعالى اودَ هغه دَ رسول خوشحالى حاصلولو دَپاره حضرت ابوبكر رضي الله عنه خپل ټول ځان مال او هرڅه دَ الله په لاركښې خرچ كړې وو اودَ دې ارشاد مبارك په ذريعه دَ حضرت ابوبكر رضي الله عنه هغه عظيم سلوك طرف ته شاره اوكړې شوه. كوم چه هغوى حضرت بلال رضي الله عنه دَ كافرانونه اخستو سره دَ الله تعالى دَ رسول دَ خوشحالئى په لار كښې دَ آزادولو په صورت كښې كړې وو.

**قوله:** وَمَا نَفَعَنِي مَالُ أَحَدٍ قَطُّ

**د ابوبكر رضى الله عنه د مالى قربانۍ عظيم مثال:** دَدې دَ ټولو نه لوئى دليل هغه واقعه ده چه كله حضورپاك په غزوه تبوك كښې صحابه كرامو ته دَ مالى امداد دَ پاره وئيلې وو نوحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه دَ كور ټول مال حال او سامان راغونډكړو او دَ حضورپاك په خدمت كښې ئې پيش كړې وو اودَ كور والودَپاره ئې صرف دَ الله اودَ هغه دَ رسول نوم پريخودې وو او په بدن باندې ئې هم دَ بوجئى داسې لباس راتاؤ كړې وو چه ازغى ئې پرې لګولى وو او دَ هغې نه ئې خرقه شان جوړه كړې وه تردې چه الله پاك ټولو فرښتوته دَ بوجئى لباس اغوستلو حكم كړې وو اوحضرت جبرائيل عليه السلام دَ بوجئى لباس اغوستلې وو او دَ حضرت ابوبكر رضي الله عنه دَ پاره ئې دَ الله تعالى سلام او رضا راوړلې وه هم په دې مناسبت سره دَ حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه يو لقب "ذوالخلال" هم دي.

## [۶۰۲۷] ابوبكر رضي الله عنه ته د صحابو رضي الله عنهم د سيادت حصول

۶۰۲۷-() [۹] [۱] وَعَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: أَبُو بَكْرٍ سَيِّدُنَا [۲] وَخَيْرُنَا وَأَحَبُّنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه نه روايت دى هغوى وفرمايل حضرت ابوبكر رضي الله عنه دحسب او نسب داعتبار نه زمونږ سردار دى [۲] دعلم وعمل او كار خير داعتبار نه زمونږ تولوڅخه افضل دى اورسول كريم ﷺ ته دټولوڅخه زيات خوږ دى (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① سَيِّدُنَا: أَيْ: نَسَبًا وَحَسَبًا: سردار دي زمونږ دنسب اوحسب په اعتبارسره، ② خَيْرُنَا: أَيْ: أَفْضَلُنَا مَعْرِفَةً وَكَسْبًا: زمونږ دټولو نه افضل دي دعلم او عمل په اعتبار سره هم او د كار خير په اعتبارسره هم. ③ أَحَبُّنَا: أَيْ: حُضُورًا وَغَيْبًا: په مونږ تولوكښې زيات ګران او محبوب دي كه هغه په مونږ كښې موجود وى اوكه نه وى.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د ګرانوټكوتشريح په حل اللغات كښې شوې ده اوباقى د حديث مفهوم د حديث د تشريحى ترجمې څخه واضح دې.

## [۶۰۲۸] درسول الله ﷺ دغار ملګرى

۶۰۲۸-() [۱۰] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - «عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لِأَبِي بَكْرٍ: [۲] (أَنْتَ صَاحِبِي فِي الْغَارِ، وَصَاحِبِي عَلَى الْحَوْضِ)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دى رسول كريم ﷺ يوه ورځ حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته داسې وفرمايل [۲] ته زما يارِ غار يعنى دغار رفيق او ملګرى يې او حوض كوثر باندې به زما مصاحب يې (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْتَ صَاحِبِي فِي الْغَارِ.. الخ:

**ابوبكر رضى الله عنه ته د رسالت د دوو مواقعو د ملګرتيا شرف حاصليدل:** حديث الباب كښې دى چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه دَ رسول كريم ﷺ دَ غارثور ملګرې وو او په آخرت كښې دَ حوض كوثرهم ملګرې دې. لقوله تعالى ﴿ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾

**دصديق دصحابيت څخه د انكار حكم:** دَ مفسرينو په دې خبره باندې اجماع ده چه "لصاحبه" نه مراد حضرت ابوبكر رضي الله عنه دې. هم په دې وجه علماؤ ونيلى دى "من أنكر صحبة أبي بكر كفر لأنه

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب مناقب أبي بكر الصديق رضى الله عنه واسمه عبد الله بن عثمان ولقبه عتيق (رقم-۳۶۵۶)

[2] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم-۳۶۷۰)

أنکرالنص الجلي"(مرقاة: ١١/٧٨٦). باقي دَ حضورپاك دَ دې ارشاد مطلب دا وو چه اې ابوبکر ته زما داسې دوست اوملګرې ئې چه الله تعالی ستا دَ دوستئ ګواهي ورکړې ده. غالبًا هم په دې وجه دَ یار غار لفظ دَ رښتوني او پوخ دوست په معنی کښې محاورةً استعمالیږي

## [٦٠٢٩] د ابوبکر رضی الله عنه د افضیلت دلیل

٦٠٢٩-() [٢] ١ وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ («لَا يَنْبَغِي لِقَوْمٍ فِيهِمْ أَبُو بَكْرٍ أَنْ يَؤُمَّهُمْ غَيْرُهُ»). ٣ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ اوبې بې عائشه رضی الله عنها وايې چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ٢ کوم قوم اوجماعت کښې چې ابوبکر رضی الله عنه موجود وي هغوی دپاره موزون نه دی چې دهغوی امامت دابوبکر رضی الله عنه نه علاوه بل سړی وکړي ٣ دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:-** ① أَنْ يَؤُمَّهُمْ: چه امامت اوکړی صحابو ته (بغير د ابوبکر رضی الله عنه نه)

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا يَنْبَغِي لِقَوْمٍ فِيهِمْ أَبُو بَكْرٍ أَنْ يَؤُمَّهُمْ غَيْرُهُ

**د امام کبرى دپاره د ابوبکر د استحقاق دليل:** په حديث الباب کښې دَدې خبرې دَ پاره واضح دليل دې چه حضرت ابوبکر رضی الله عنه په ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې دَ ټولو ځخه افضل دې کله چه داخبره ثابته شوه نو دا خبره هم ثابته شوه چه دَ حضورپاك نه پس دَ خلافت اصل مستحق هم ابوبکر رضی الله عنه وو اودا خبره مناسب نه ده چه دَ فاضل په موجودګئ کښې دې مفضول خليفه جوړ کړې شي. (مرقاة)

## [٦٠٣٠] د عمر څخه د ابوبکر رضی الله عنه وړاندې کيدل

٦٠٣٠-() [٣] ١ وَعَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ نَتَصَدَّقَ، ٢ وَوَافَقَ ذَلِكَ عِنْدِي مَالًا، فَقُلْتُ: الْيَوْمَ أَسْبِقُ أَبَا بَكْرٍ إِنْ سَبَقْتُهُ يَوْمًا. ٣ قَالَ: فَجِئْتُ بِنِصْفِ مَالِي. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٤ (مَا أَبْقَيْتَ لِأَهْلِكَ؟) فَقُلْتُ: مِثْلَهُ.

**ترجمه:** ١ اوحضرت عمر فاروق رضی الله عنه بيان کوي په يوه موقع رسول کريم ﷺ دصدقې يعنی دالله په لار کښې دخپل خپل مال څه حصه پيش کولو مونږته حکم وکړ ٢ اودحضور ﷺ داحکم دمال داعتبار نه زما موافق پريوتی (يعنی حسن اتفاق سره هغه وخت ما سره ډير مال وسامان وو)، نوماخپل زړه کښې اوويل که زه په څه ورځ دابوبکر رضی الله عنه نه مخکې کيدی شم نوهغه ورځ نن ده چې دخپل مال دزياتي اوفراخي نه فائده اوچتولو سره زيات نه زيات

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٣٦٧٣)

[2] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی الرخصة فی ذلک (رقم-١٦٧٨) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٣٦٧٥)

مال د ﷺ لار كښې پيش كړم اودې معامله كښې به هغوى وروسته پريږدم ۳حضرت عمر رضي الله عنه وايي ماخپل نيم مال راوړلو سره دحضور ﷺ خدمت كښې پيش كړلو ۴رسول كريم ﷺ دومره زيات مال اواسباب ليدو سره زما نه پوښتنه وكړه په كوركي دي څه پريښې دي؟ ماوويل ددې په اندازه مې كوروالو دپاره پريښې دي يعنى نيم مال مې ورته پريښې دى

| ۱وَأَتَى أَبُو بَكْرٍ بِكُلِّ مَا عِنْدَهُ. فَقَالَ: (يَا أَبَا بَكْرٍ؟ مَا أَبْقَيْتَ لِأَهْلِكَ؟) . ۲فَقَالَ: أَبْقَيْتُ لَهُمُ اللَّهَ وَرَسُولَهُ. ۳قُلْتُ: لَا أَسْبِقُهُ إِلَى شَيْءٍ أَبَدًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ. |
|---|

**ترجمه:**۱ دي نه وروسته حضرت ابوبكر رضي الله عنه راغى اوهغوى سره چې څه وو هغه ټول مال واسباب راوړلو سره دحضور ﷺ خدمت كښې پيش كړل حضور ﷺ تري پوښتنه وكړه كوروالو دپاره دي څه پريښې دي ۲حضرت ابوبكر رضي الله عنه عرض وكړ هغوى دپاره مې الله اوهغه رسول پريښې دي ۳حضرت عمر رضي الله عنه وايي ماپه خپل زړه كښې اوويل په ابوبكر رضي الله عنه زه هيڅ كله فضيلت نه شم وړلې . (ترمذي ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقَالَ: أَبْقَيْتُ لَهُمُ اللَّهَ وَرَسُولَهُ.

**په شيخينو كښې د ابوبكر دافضليت وجه:** په حديث الباب كښې دى چه حضرت عمر رضي الله عنه دَ خپل ټول مال نيمه حصه راوړله كيدې شى چه هغه ماليت دَ مقدارپه لحاظ سره دَ حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه دَ مال اسباب څخه زيات وو ليكن په دې اعتبار سره چه حضرت عمر رضي الله عنه خپل نيم مال خودَ كور والو دَپاره پريخودې وو او حضرت ابوبكر رضي الله عنه دَ كور والو دَ پاره هيڅ هم پرينخودل. نودَ الله تعالى نبى دَ سوال انداز هم عجيبه اختياركړو چه دا تپوس ئى اونه كړو چه څومره دې راوړې دې بلكه دا تپوس ئى اوكړو چه په كور كښې دې څه پريخودل؟ نو حضرت ابوبكر رضي الله عنه اووئيل چه هرڅه مې راوړى دى او حضرت عمر رضي الله عنه نيم سامان راوړې وو نو دَدې خبرې په رڼا كښې دَ افضليت مقام هم حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته حاصل شو.

**دابوبكررضى الله عنه د جواب دوه مطلبونه:**① لكه چه دَدې جواب په ذريعه حضرت ابوبكر رضي الله عنه دَ خپل دَ دې يقين اظهار كړې دې چه دَ الله اودَ هغه دَ رسول خوشحالى او رضا زما اوزما دَ اهل و عيال دَپاره دَ ټولو نه لويه سرمايه ده اودَ دې په مقابله كښې دَ دنيا مال دولت هيڅ حيثيت نه لرى په دې وجه ما ټول هرڅه راوړى دى

② دَدې مطلب دادې چه څه ما سره وو هغه ټول مې راوړى دى په كور كښې مې دَ الله تعالى فضل اواحسان اودَ هغه رزاقيت اودَ هغه دَ رسول امداد پريخودو نوچه حضرت عمر رضي الله عنه دَ حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه دا قربانى اوليدله نو وئى فرمائيل چه ما كله هم دَده نه وړانديوالې حاصل نه كړې شو او نه ئى كولې شم.

**[٦۰۲۱] دعتيق الله لقب سبب**

٦۰۲۱-(١) [٣] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - [٢] «أَنَّ أَبَا بَكْرٍ دَخَلَ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] فَقَالَ: (أَنْتَ عَتِيقُ اللّٰهِ مِنَ النَّارِ). [٤] فَيَوْمَئِذٍ سُمِّيَ عَتِيقًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] اوبي بي عائشي رضی الله عنها نه روايت دي [٢] يوه ورځ حضرت ابوبکر رضی الله عنه درسول کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو [٣] نوحضور ﷺ هغوی ته وفرمايل ته ددوزخ دعذاب نه دالله تعالی ازاد کړه يې [٤] نودهغه ورځې نه دهغوی يونوم عتيق وګرځول شو (ترمذي)

**تسهيلات: قوله:** أَنْتَ عَتِيقُ اللّٰهِ:

**دعتيق په وجه تسميه کښې دوه اقوال:** ① عتيق نه مراد آزاد دې. د حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه لقب عتيق هم مشهور دې. ددې نوم د تسميې وجه بعضې حضراتو دا بيان کړې ده چه عتيق د حسن اوجمال، د شرافت او نجابت اود صاحب خير په معنی کښې راځي اودا ټول خوبيانې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په ذات کښې موجود وې په دې وجه به هغوی ته عتيق وئيلې کيدو.

② زياته راجحه وجه هم هغه ده کومه چه په حديث الباب کښې بيان کړې شوې ده چې ته د جهنم د اور څخه آزاد يې.

**[٦۰۲۲] دنبی عليه السلام څخه روسته دابوبکر حشر**

٦۰۲۲-(٢) [٣] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] («أَنَا أَوَّلُ مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْأَرْضُ، ثُمَّ أَبُو بَكْرٍ، ثُمَّ عُمَرُ، [٣] ثُمَّ آتِي أَهْلَ الْبَقِيعِ فَيُحْشَرُونَ مَعِي، [٤] ثُمَّ أَنْتَظِرُ أَهْلَ مَكَّةَ حَتَّى أُحْشَرَ بَيْنَ الْحَرَمَيْنِ») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت ابن عمر رضی الله عنه وايې چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] دې خلقو کښې به دټولوڅخه اولنی سړی زه يم چې د زمکې نه به راپورته کيږم يعنی دقيامت په ورځ چې ټول مخلوق دخپلو قبرونو نه راپورته کيدو سره ميدان حشرته راشي نودټولوڅخه مخکې به زما قبر اوچوي اودخپل قبر نه به راپورته کيدونکې دټولو نه اولنی سړی زه يم زما نه وروسته به ابوبکر رضی الله عنه اوهغوی نه وروسته به حضرت عمر رضی الله عنه دخپلو خپلو قبرونو نه راپورته کيږی [٣] بيابه زه دبقيع قبرستان دفن شوو ته راشم اوهغوی به دخپلو قبرونو نه راپورته کولو سره ما سره به جمع شي [٤] اوبيابه زه داهل مکه انتظار کوم ددې پورې چې زه به دحرمينو يعنی داهل مکه اواهل مدينه په منځ کښې ميدان حشرته ورسول شم (ترمذي)

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۳٦۷۹) وابن ماجه فی کتاب فی الايمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل عبد الله بن مسعود رضی الله عنه (رقم-۱۳۷)

[2] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۳٦۹۲)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنَا أَوَّلُ مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْأَرْضُ:

**په دوباره راژوندې کېدو کښې د صحابه کرامو ترتیب:** په حدیث الباب کښې دی چه دَ ټولو نه مخکښې به رسول الله ﷺ دَ قبر نه پاڅیږی دَ حضورپاك نه پس دَ ټولو نه مخکښې پاڅیدونکې حضرت ابوبکر صدیق وی او بیا به حضرت عمر رضی الله عنه او بیا به حضورپاك جنت البقیع ته اورسی هلته به اهل بقیع دَ نبی علیه السلام په وړاندې دَ خپلو خپلو قبرونونه بهر راتلو سره جمع کیږی. دغه شان به باقی اهل مکه دَ رسول الله ﷺ انتظار کوی.

یو حدیث کښې دی چه دَ حضورپاك نه وړاندې به حضرت موسی علیه السلام دَ قبر نه پاڅیږی. دَدې متعلق بحث وړاندې دَ سوال اوجواب لاندې تیرشوې دې.

**[۶۰۳۳] جنتته اولنی داخلیدونکې امتی**

۶۰۳۳-() [۵] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «(أَتَانِي جِبْرِيلُ فَأَخَذَ بِيَدِي، [۳] فَأَرَانِي بَابَ الْجَنَّةِ الَّذِي يَدْخُلُ مِنْهُ أُمَّتِي [۴] (قَالَ أَبُو بَكْرٍ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! وَدِدْتُ أَنِّي كُنْتُ مَعَكَ حَتَّى أَنْظُرَ إِلَيْهِ [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (أَمَا إِنَّكَ يَا أَبَا بَكْرٍ أَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي)». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي یوه ورځ رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] جبرائیل علیه السلام ماته راغی اوزما لاس یې په خپل لاس کښې اونیولو [۳] اوبیاماته یې دجنت هغه دروازه وښودله چې په هغه به زما دأمت خلق جنت کښې داخلیږي [۴] حضرت ابوبکر رضی الله عنه دا ارشاد اوریدو سره عرض وکی یارسول الله ﷺ زما زړه کښې دحسرت نه ډک داخواهش ګرځي چې کاش هغه وخت زه ستاسو ﷺ سره وای نوزما به هم دجنت دروازه لیدل نصیب شوی وې [۵] حضور ﷺ ورته وفرمایل اې ابوبکر اګاه شه چې زماپه أمت کښې کوم خلق جنت کښې داخلیږي هغوی کښې به دټولوڅخه اولنی سړې ته یې (ابوداؤد)

**تسهیلات: قوله:** فَأَرَانِي بَابَ الْجَنَّةِ:

**دجنت په رؤیت کښې دوه احتمالات:** ① یا خودا واقعه دَ معراج دَ شپې ده ② یا دَ بل څه وخت ده کله چه رسول الله ﷺ ته دَ جنت دروازه اوخودلې شوه.

**قوله:** أَمَا إِنَّكَ يَا أَبَا بَكْرٍ

**دمذکوره جملې مفهوم:** دَدې الفاظو څخه دَ حضورپاك مراد دا وو چه اې ابوبکر دَ جنت دروازه کتلو څه تمنا کوې ستا دَپاره خوهغه څیزمقدر دې کوم چه دَدې نه ډیر اوچت او افضل دې. (مرقاة: ۲۸۹/۱۱).

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب السنة/باب فی الخلفاء (رقم-۴۶۵۲)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٦٠٢٤] د ابوبکر رضي الله عنه دوه بې عظيم الشان عملونه

٦٠٢٤-() [٣] ①عَنْ عُمَرَ- رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- ذُكِرَ عِنْدَهُ أَبُو بَكْرٍ فَبَكَى ②وَقَالَ: وَدِدْتُ أَنَّ عَمَلِي كُلَّهُ مِثْلُ عَمَلِهِ يَوْمًا وَاحِدًا مِنْ أَيَّامِهِ، وَلَيْلَةً وَاحِدَةً مِنْ لَيَالِيهِ، ③أَمَّا لَيْلَتُهُ «فَلَيْلَةٌ سَارَ مَعَ رَسُولِ اللهِ- صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَى الْغَارِ فَلَمَّا انْتَهَيَا إِلَيْهِ ④قَالَ: وَاللهِ لَا تَدْخُلُهُ حَتَّى أَدْخُلَ قَبْلَكَ، فَإِنْ كَانَ فِيهِ شَيْءٌ أَصَابَنِي دُونَكَ، ⑤فَدَخَلَ فَكَسَحَهُ، وَوَجَدَ فِي جَانِبِهِ ثُقْبًا، فَشَقَّ إِزَارَهُ، وَسَدَّهَا لَهُ، ⑥وَبَقِيَ مِنْهَا اثْنَانِ فَأَلْقَمَهُمَا رِجْلَيْهِ،

**ترجمه**: ① سيدنا عمر فاروق رضي الله عنه نه روايت دى يوه ورځ دهغوى مخکښې دحضرت ابوبکر رضي الله عنه ذکر وشو نوهغه دهغوى پاکيزګي اوبلند قدر يادولو سره په ژړا سو ② بيا يې اوويل ماته ارزو ده چې کاش زما دپوره ژوند اعمال دقدر وقيمت داعتبار نه دحضرت ابوبکر رضي الله عنه صرف دهغه ورځې دعمل برابروې چې دحضور ﷺ دزمانه حيات دورځو نه يوه ورځ ده يادهغوى دهغه يوې شپې دعمل برابر وي چې دحضور ﷺ دزمانه حيات دشپوځخه يوه شپه وه ③ هر چې دهغوى شپه ده نودادهغه شپې ذکردى چې په هغه کښې هغوى رسول کريم ﷺ سره سفر هجرت باندې روان شو اوغار ثور دهغوى اولنى منزل جوړ شوى وو هرکله چې حضور ﷺ اوحضرت ابوبکر رضي الله عنه هغه غار ته ورسيدل اوحضور ﷺ غار کښې داخليدل وغوښتله ④ نوحضرت ابوبکر رضي الله عنه ورته اوويل قسم په الله تاسو به غار کښې نه داخليږى ددې پورې چې مخکښې زه دننه ورسم که دې کښې څه موذي شى لکه مار لړم وغيره وي اوهغه ضرر رسوي نوماته به ضرر ورسوي نه چې تاسو ﷺ ته او دې ويلو سره ⑤ حضرت ابوبکر رضي الله عنه دحضور ﷺ نه مخکښې غارکښې داخل شو اوهغه ځنډلو سره يې صافه کړه هغوى دغار يوګوټ کښې څو سورې شوراخ هم ليدلى وو هغه کښې زيات شورې يې دخپل تهبند (لنګ) شلولو سره بند کړل ⑥ ودوه سوريان په دې وجه باقي پاتې شوي وه چې دهغه دبندولو دپاره دتهبند (لنګ) دټکروځخه هيڅ نه وو بچ شوى دهغه خوله کښې دخپلو دواړو پښو پوندى لګولو سره کيناستلو چې دڅه زهر يلا اوموذي ځناور دراوتلو څه لار باقي پاتې نشي

**حل اللغات**:- ① وَدِدْتُ: أَيْ أَحْبَبْتُ: زه خوښوم، زړه مې غواړى، ② سَارَ: أَيْ سَافَرَ وَهَاجَرَ: تلې وو، هجرت ئې کړې وو ③ فَكَسَحَهُ: أَيْ كَنَسَهُ: جارو وهل اوصفاکولوته کسحه ونيلې شوې ده ④ ثُقْبًا: د ثُقْبَة جمع ده، بِمَعْنَى الْخَرْقِ وَالْجُحْرِ: چاودلى خانې او سورې ته ثقب وائى ⑤ فَشَقَّ: اونې شلولو (خپل لنګ)، ⑥ سَدَّهَا: بنده ئې کړه دغه سوره، ⑦ فَأَلْقَمَهُمَا: أَيْ جَعَلَ رِجْلَيْهِ كَاللُّقْمَتَيْنِ: يعنى دخپې غټه ګوته ئې نوړئ جوړه کړه په دغه دوو سوروکښې ئې ورکړه دې دپاره چه سورې بندې شى.

[1] رواه رزين

[۱] ثُمَّ قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : ادْخُلْ، [۲] فَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَوَضَعَ رَأْسَهُ فِي حِجْرِهِ وَنَامَ [۳] فَلُدِغَ أَبُو بَكْرٍ فِي رِجْلِهِ مِنَ الْجُحْرِ وَلَمْ يَتَحَرَّكْ مَخَافَةَ أَنْ يَنْتَبِهَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۴] فَسَقَطَتْ دُمُوعُهُ عَلَى وَجْهِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۵] فَقَالَ: (مَا لَكَ يَا أَبَا بَكْرٍ؟)

**ترجمه:** [۱] بيا هغوی رسول کريم ﷺ ته عرض وکړ چې اوس دننه تشريف راوړی [۲] نو نبي کريم ﷺ غار کښې داخل شو او خپل سر مبارك يې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په غيږ کښې اېښودو سره اوده شو [۳] دې دوران کښې ديوې غارې دننه نه مار حضرت ابوبکر رضی الله عنه په پښه وچيچی ليکن هغوی دغه شان ناست وو اوددې ويرې نه خپل ځای نه يې حرکت هم ونه کړو چې چيرته حضور ﷺ راويښ نشی [۴] آخر شدت تکليف نه د هغوی د سترګو نه بې اختياره اوښکې ووتلې چې د رسول کريم ﷺ په مخ مبارك وڅڅيدلې چې هغه سره د حضور ﷺ سترګې مبارکې وغړيدې [۵] حضور ﷺ چې د هغوی سترګو کښې اوښکې وليدلو نو پوښتنه يې وکړه ابوبکر رضی الله عنه په تاڅه شوې دې ؟

**حل اللغات:** - ⑧ فَلُدِغَ: نو اوچيچلې شو (ابوبکر صديق رضی الله عنه). ⑨ مَا لَكَ: يعنی ولې ژاړې؟ د سترګو نه د اوښکې ولې بهيږی؟ ⑩ الْجُحْر: چاودلی ځائې او سوری ته وائی.

[۱] قَالَ: لُدِغْتُ، فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي، فَتَفِلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَذَهَبَ مَا يَجِدُهُ»، [۲] ثُمَّ انْتَقَضَ عَلَيْهِ، وَكَانَ سَبَبَ مَوْتِهِ [۳] وَأَمَّا يَوْمُهُ، فَلَمَّا قُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ارْتَدَّتِ الْعَرَبُ [۴] وَقَالُوا: لَا نُؤَدِّي زَكَاةً فَقَالَ: لَوْ مَنَعُونِي عِقَالًا لَجَاهَدْتُهُمْ عَلَيْهِ [۵] فَقُلْتُ: يَا خَلِيفَةَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ! تَأَلَّفِ النَّاسَ وَارْفُقْ بِهِمْ [۶] فَقَالَ لِي: أَجَبَّارٌ فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَخَوَّارٌ فِي الْإِسْلَامِ؟ [۷] إِنَّهُ قَدِ انْقَطَعَ الْوَحْيُ وَتَمَّ الدِّينُ أَيَنْقُصُ وَأَنَا حَيٌّ؟ رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] هغوی عرض وکړی زما مور وپلار دې په تاسو ﷺ قربان وي څه زهريلا شي يعنی مار چيچلی يم حضور ﷺ دې اوريدو سره د خپلې خولې لاړې مبارکې (لعاب دهن)، د هغوی په چيچل شوی پښه ولګولې نو کوم تکليف چې هغوی ته محسوسيدې هم سمدستې دفع شو [۲] د هغه مار هغه زهر وو چې په حضرت ابوبکر رضی الله عنه دوباره اثر انداز شو او د هغه په سبب د هغوی مرګ واقع شو [۳] او د هغوی هغه ورځ چې د هغه باره کښې زما ارزوده چې کاش زما د ټول عمر اعمال د هغوی صرف د هغه ورځې برابر وګرځې هغه ورځ وه چې رسول الله ﷺ ددې دنيا نه رحلت وفرمايې او بعضې عرب قبائل مرتد شوی وو [۴] او د هغه قبائلو خلقو ويلې وو چې مونږ زکاة نه ادا کوو په دې موقع د حضرت ابوبکر رضی الله عنه وينا وه که داخلق زکاة کښې د اوښ د پښې ترلو په قدر رسی راکولو څخه هم انکار کوي نو يقيناً زه به ورسره جهاد کوم [۵] ما د هغوی دا فيصله اوريدو سره ورته عرض کړی وو اې خليفه رسول الله ﷺ دا ډيره نازکه موقع ده تاسو ته د خلقو سره محبت او نرم سلوک کول پکار دی [۶] حضرت ابوبکر رضی الله عنه

ډیرې تکړه لهجې کښې ماته جواب راکړې ایاته خپله په زمانه جاهلیت کښې غیور اوبهادر اوقوي اوغصه وروی او اوس زمانه اسلام کښې بزدل اوپست همت شوی ⑦داحقیقت مه هیروه چې دوحي سلسله منقطع شوي ده اودین کامل شوي دي په دې صورت کښې چې دین دې کمزوری اوناقص شي داسې زه خپل ژوند کښې هیڅ کله کونکې نه یم (رزین)

**حل اللغات:** - ①فَتَفِلَ: أَيْ: بَزَقَ: حضورپاك توكانړې مبارکې په تك وركړې شوی خاني باندې اولګولې. ②أَنْ يَنْتَبِهَ: د باب افتِعَال نه، أَيْ أَنْ يَسْتَيْقِظَ: چه رابيدار به شي. ③انْتَقَضَ: أَيْ رَجَعَ: واپس شو، ختم شو. ④ارْتَدَّتِ: مرتد شو، ددين اسلام نه واپس شو. ⑤عِقَالًا: أَيْ حَبْلًا صَغِيرًا: وړې رسۍ ته عقال وئیلې شي. په یوروایت کښې دَعناقا لفظ دې یعنی که دَچیلۍ بچې هم منع کوی په زکوة کښې ئې نه ورکوی نوزه به هغه سره جهاد کوم. ⑥تَأَلَّفِ: أَي: اطْلُبْ أُلْفَتَهُمْ: خلقوسره محبت نه کار واخله، ⑦ارْفُقْ: أَي: الْطُفْ بِهِمْ: نرمي ورسره اوکړه (سختي ورسره مه کوه)، ⑧أَجَبَّارٌ: أَيْ: أَنْتَ شَجِيعٌ مُتَهَوِّرٌ: یعنی دَاسلام قبلولونه وړاندې ته ډیر بهادر او نه ویریدونکې اودَ همت نه ډك وې. ⑨ خَوَّارٌ: أَيْ: جَبَانٌ وَعَطُوفٌ: یعنی اوس دَ اسلام قبلولونه پس بزدل کمزورې او بې همت کیږې؟

**تسهیلات:**

**قوله:** فَلَيْلَةٌ سَارَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-إِلَى الْغَارِ،

**د غار ثور تعارف او مصداق:** دې غارنه غارثورمراددې چه دَمکې مکرمې نه په کافی فاصله باندې یومشکل ترین اوچت غر باندې دې. ما داغاراولیدلو بلکه په دغه غرباندې دوه غارونه دی یودَمکې طرف ته په غرباندې واقع دې مشهور هم دغه دې مګریوغاردویم طرف ته هم په دغه غرباندې واقع دې چه دَدوو غتوکانړو په مینځ کښې دې. اودَ بره نه ښکته کوزیدل دی چرته چه دوه کسان په ګرانه باندې کیناستې شي. په دې غارباندې یولوئی کانړې دَ غوئی په شان ښکاری کیدې شي هم دَدې وجې نه دې ته غارثوروائی ثورپه عربی کښې غوئی ته وائی. دَمکې نه دَهجرت په شپه حضورپاك دغه غرته تلوسره دریو ورځوپورې پټ وو.

**قوله:** ثُمَّ انْتَقَضَ عَلَيْهِ، وَكَانَ سَبَبَ مَوْتِهِ،

**دابوبکر د مرګ په کیفیت کښې نبی علیه السلام سره موافقت:** یعنی دَ زهرواثرښکاره شو او حضرت ابوبکر رضی الله عنه هم دَ دغه زهرودَ وجې نه وفات شو. دَصدیق اکبر رضی الله عنه عجیبه شان ته اوګورئی چه حضورپاك سره ئې پوره موافقت اورفاقت دې تردې چه دَمرګ په کیفیت کښې هم موافقت پیداشو.

**قوله:** فَلَمَّا قُبِضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-ارْتَدَّتِ الْعَرَبُ

**د نبی کریم علیه السلام په وفات د مختلفو فتنو پیدا کیدل:** دَرسول الله ﷺ دَ وفات نه پس په جزیرۂ عرب کښې تقریبًا اویافیصد خلق دَ اسلام نه اوړیدلی وو په دوی کښې مختلف قسم خلق وو.

① یو قسم خلق خو هغه وو چه دین ئی پریخودو کافران شو او کافرانو سره ملاؤ شو.

② دویم قسم هغه خلق وو چه دَ دروغو مدعیان نبوت په اتباع کښې مرتد شو.

③ دریم قسم هغه خلق وو چه دَ زکوة دَادا کولو نه ئی انکار اوکړو یا بالکل منکر شو یا صدیق اکبر رضی الله عنه ته ئی نه ورکول غوښتل. هم دَدغه قسم خلقو باره کښې دَ حضرت عمر فاروق او صدیق اکبر رضی الله عنهما اختلاف پیدا شو. حضرت عمر فاروق رضی الله عنه اوفرمائیل چه دا خلق کلمه وائی مونځ کوی دین منی صرف زکوة نه ورکوی تاسو نرمی اوکړئی.

**قوله:** لَوْمَنَعُوْنِي عِقَالًا لَجَاهَدْتُهُمْ عَلَيْهِ.

**د مرتدینو خلاف د ابوبکر رضی الله عنه اقدام:** صدیق اکبر رضی الله عنه اوفرمائیل چه کوم خلق په مونځ او زکوة کښې فرق کوی دَهغوی خلاف به توره اوچتولو سره جنګیږم. حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ښه اورټلو او دَ بزدل کیدو پیغورئی ورکړو

**دابوبکر رضی الله عنه استقامت:** دَ وحی سلسله دَحضورپاك په وفات سره منقطع شوې ده. دَ دین تکمیل شوې دې. اوس که خلق دَ اسلام دَ یو حکم هم ماتول کوی اوزه ژوندې یم نو داسې به نه کیږی. ماسره که څوك نه څی نوزه به مرتدینو سره یوازې جنګیږم. صدیق اکبر رضی الله عنه دَمرتدینو خلاف لویه کاروائی اوکړه او تقریبًا دَ یو کال په موده کښې دین اسلام په جزیرۂ عرب کښې بیا هغه شان قائم شو څنګه چه حضورپاك پریخودې وو. حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه مونږ په شروع کښې دَ صدیق اکبر رضی الله عنه خبره عجیبه اوګڼله لیکن په آخره کښې مونږ هم دَ دغه رائې تعریف اوکړو. حضرت ابوهریره رضی الله عنه به فرمائیل دَمرتدینو په مقابله کښې صدیق اکبر رضی الله عنه دَ نبیانو په مقام باندې ولاړ وو. څان له وو خو کلك ولاړ وو. قام فی الردة مقام الانبیاء

# [۱۴]باب مناقب عمر ﷺ

## دحضرت عمر ﷺ د مناقبو اوفضائلو بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على خمس عشرة منقبة لعمر رضي الله عنه:**

① كون عمررضي الله عنه محدثاً: ١.
② كون عمررضي الله عنه خاف منه الشيطان: ٢، ١٢، ١٣.
③ كون عمررضي الله عنه صاحب غيرة: ٣.
④ كون عمررضي الله عنه كامل الدين: ٤.
⑤ كون عمررضي الله عنه كامل العلم: ٥.
⑥ الإشارة إلى خلافة عمررضي الله عنه من النبي وقوته فيها: ٦.
⑦ إجراء الحق على لسان عمررضي الله عنه وقلبه: ٧، ٨.
⑧ حصول العزة للإسلام بإيمان عمررضي الله عنه : ٩، ١٥.
⑨ كون كون عمررضي الله عنه خير الأمة: ١٠.
⑩ كون عمررضي الله عنه نبياً إن كان مقدراً: ١١.
⑪ موافقات عمرمع الله تعالى : ١٤، ١٥.
⑫ كون عمررضي الله عنه أرفع درجة في الأمة: ١٦.
⑬ كون عمررضي الله عنه أجدرَ وأجودَ: ١٧.
⑭ رضاء النبي صلى الله عليه وسلم عن عمررضي الله عنه: ١٨.
⑮ إصابة رأيه في شان أبي بكر: ١٥ .

**دعمر رضي الله عنه نوم اونسب:** دَهغوی مبارك نوم عمر دي لقب فاروق دي اوكنيت ابوحفص دي لقب اوكنيت دواړه دَ رسول الله ﷺ وركړي شوی دی نهمه پيړنی كښې دَ هغوی نسب حضورپاك سره ملاويږی په نهمه پيړنی كښې دكعب دوه خامن وويومُرَّه اوبل عدی حضورپاك دَمُرَّه دَاولادنه دي اوحضرت عمر ﷺ دَعدی دَاولادنه دي په دي وجه هغوی عدوی دی دَحضرت عمر ﷺ ولادت دَواقعه فيل نه ديارلس كاله پس شوې وو ديارلس كاله دَحضورپاك نه كشر دي په شپږم نبوی باندې هغوی اسلام قبول كړې دوی نه وراندې څلوېښت سړو او يوولس ښځو اسلام قبول كړې وو

دَهغوی رنګ سورسپين وو په انګوباندې غوښه كمه وه قد مبارك ئی اوږد وو ډير بهادر اوطاقتور وو دَ اسلام نه وړاندې چه څومره په كفر كښې سخت وو دَاسلام نه پس هم هغه شان سختوالي دَاسلام دَپاره هم وو دَهغوی دَ اسلام قبلولوسره په مكه كښې مسلمانانو ته

ډیر قوت حاصل شو. دَنبي مکرم ﷺ په زمانه کښې دَ وزارت په منصب وو. په عهدصديقي کښې دَ قضاء دَ وزارت په منصب باندې هم فائزپاتې دې. دَصديق اکبر ﷺ دَ وفات نه پس دَمسلمانانو خليفه جوړشو. انتخاب پخپله صديق اکبر ﷺ کړې.

**په خلافت فاروقی کښې د اسلام اشاعت:** دَخلافت دوران کښې چه څومره خدمت او اشاعت هغوی کړې دې بل چانه دې کړې اوڅومره فتوحات چه هغوی ته حاصل شوی دَهغې مثال په اسلام کښې نه ملاويږي. دَ شام دَزمکې نه واخله ترمصرپورې اودَمصر نه واخل دياربکر پورې اودَ دياربکرنه واخله عراق ايران اوفارس پورې مشرق اومغرب جنوب اوشمال ټولوعلاقوباندې ئې دَ الله تعالى دَدين جهنډا اوخوزوله. يوزر شپږ ديرش ښاريې سره دَ مضافاتو فتح کړې. کومه علاقه چه به دَاسلام لاندې راتله زر به ئې ورته حکم ورکولو چه په دې کښې جمات جوړکړئې. څلور زره عام جماتونه ئې جوړکړل او نهه سوه جامع مسجدونه ئې قائم کړل. په عدل اوانصاف کښې دَهغوی مثال نه وو. ناداره محتاجان مظلومان اودَ بې کسو خيال ساتلودَپاره به ئې دَ شپې

ګشت کولو اوپه موقع باندې به ئې امداد کولو. په بيت المال کښې به ئې داسې احتياط کولو دکوم مثال چه په دنيا کښې نشته دې.

**د عمر رضی الله عنه شهادت:** حضورپاك سره په ټولو غزواتو کښې شريك شوې. هغوی دَتکوين دَ خلقونه وو چاته چه به نيغ په نيغه دَ الله تعالى دَ طرف نه الهامات کيدل. هغوی په کشف اوکراماتو کښې مشهور وو. دَهغوی خلافت دَاسلام او مسلمانانو دَ پاره سبب دَبرکت او ذريعه دَ رحمت وو. دَحضرت عمر ﷺ موافقات دَ شلو پورې دی. لس کاله شپږ مياشتې او پنځه ورځې خلافت ئې کړې اوبيا دَسحر په مونځ کښې دَ مسجدنبوی په محراب کښې۲۷ ذی الحجه په سحر مغيره بن شعبه ﷺ غلام ابولؤلو مجوسی ايرانی په هغوی باندې حمله اوکړه په کوم سره چه هغوی سخت زخمی شو اويکم محرم الحرام کال ۲۴هجری ۶۳ کالو په عمر کښې دَدې فانی دنيانه داربقاء طرف ته رخصت شو اودَرسول الله ﷺ او صديق اکبر ﷺ په قدمونو کښې دفن شو.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۶۰۳۵] حضرت عمر ﷺ محدث وو

۶۰۳۵-(۱) [۱] [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ([۲] «لَقَدْ كَانَ فِيمَا قَبْلَكُمْ مِنَ الْأُمَمِ مُحَدَّثُونَ [۳] فَإِنْ يَكُ فِي أُمَّتِي أَحَدٌ فَإِنَّهُ عُمَرُ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب مناقب عمر بن الخطاب أبي حفص القرشي العدوي رضي الله عنه (رقم-۳۶۸۹) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب من فضائل عمر رضي الله تعالى عنه (رقم-۲۳ - (۲۳۹۸)) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۹۲)

**ترجمه:** ① حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ② ستاسو نه مخکې دسابقه امتونو خلقو کښې به محدث وو ③ که زما امت کښې څوک سړی محدث وي نوهغه به بس عمر ﷺ وي. (بخاري مسلم) محدث وئیل کیږي هغه انسان ته چې څه دخیر خبرې متعال پروردګار په ذهن کې الهام په طریقه اچوي.

**حل اللغات:** - ① مُحَدَّثُونَ: دباب تفعیل نه داسم مفعول صیغه ده. دلته د "مُلْهَمْ" په معنی کښې دې کوم چه د الهام نه دې یعنی هغه سړې د چاپه زړه کښې چه دالله تعالی دطرف نه نیغ په نیغه نیکه خبره واچولې شي.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَقَدْ كَانَ فِيمَا قَبْلَكُمْ مِنَ الْأُمَمِ مُحَدَّثُونَ

**د محدث په تفسیر کښې اقوال:** ① محدث هغه سړی ته وائی د چا ظن او ګمان چه په یواختلافی نزاعی مسئله کښې هغه طرف اختیاروی کوم چه صحیح او ټیک وی یعنی دهغه رائې همیشه دحق طرف ته ځي اوهم حق سره پاتې کیږي.

② دمحدث اطلاق په هغه سړي باندې کیږي چاسره چه فرښتې کلام کوی د وحی په توګه باندې نه بلکه صرف د خبرو اترودحد پورې کلام کوی بعضې روایاتو کښې دمحدثون په ځائی متکلمون لفظ دې تائید کوی. په دې دریوارو معنو کښې چه کومه معنی هم واخلې حضرت عمرفاروق ﷺ دهغې مصداق وو.

③ محدث هغه سړې د چاپه زړه کښې چه دالله تعالی دطرف نه نیغ په نیغه نیکه خبره واچولې شي. یاهغه سړي د ایمانی نور په ذریعه دغه خبره نورو ته رسوی.

**دحضرت عمر په تکوینی امور کښې برخه:** علماء باطن وائی چه حضرت عمرفاروق ﷺ "رجال تکوین" څخه وو مطلب دا چه په تکوینیات باندې هغه ته ډیر عبور حاصل وو یعنی د غیب د نظام دافراد نه وو لکه څنګه چه حضرت خضر ﷺ اود هغه دجماعت خلق رجال تکوین نه دی. دحضرت عمر فاروق ﷺ باره کښې دحضورپاك داارشاد چه عمر محدث دې اوزمانه پس که څوك نبی وې نو هغه به عمر وې داهم ددغه رجال تکوین طرف ته اشاره ده په عملی توګه باندې هم عمرفاروق ﷺ تکوینیات کښې عمل دخل کړې دې لاندې مونږ بعضې واقعاتو ته اشاره کوو کومې چې تولې اشارې دی چه حضرت عمرفاروق ﷺ درجال تکوین نه وو او هغوی مُوَفَّقٌ من الله وو. د الله تعالی توفیق هغوی سره شامل حال وو چه په هرساعت نی د هغوی لارخودنه کوله

**د عمر رضی الله عنه د تکوینی امورو بعضې مثالونه:** ① په نهاوند کښې ساریه کماندرته دمسجدنبوی دمنبر څخه خپل جرنیل ته "یاساریة الجبل" نعره لګول اوپه میدان جهاد کښې د ساریه رضی الله عنه د حضرت عمر رضی الله عنه دا آواز اوریدل.

③ دمصر نه بحیرهٔ قلزم ته خط لیکل اود دریاب ددې خط څخه روسته نه وچیدل
④ دحضرت عمر رضی الله عنه د رائې موافق د قرآن پاک شل حکمونه نازلیدل
⑤ دحضورپاك دافرمائیل چه الله تعالی دعمر ژبه او زړه باندې حق جاري کړي دي
⑥ د شیطان د هغه لارې څخه تختیدل په کومه لاړ چې عمر رضی الله عنه روان وی
⑦ دصحابه کرامو داعقیده لرل چه سکینه دحضرت عمر ﷺ په ژبه باندې کلام کوی

**قوله:** فَإِنْ يَكُ فِي أُمَّتِي أَحَدٌ فَإِنَّهُ عُمَرُ،

**د مذکوره جملې مفهوم:** ددې کلام نه په ظاهری توګه تردد او شك واضحه کیږی مګر یادلرنی داکلام د شك په توګه نه دې بلکه په دې کښې د حضرت عمر ﷺ باره کښې مبالغه اوتاکید دې چه په دې امت کښې ملهمین ډیردی مګر عمرفاروق ﷺ ته په دې کښې خصوصي امتیازحاصل دې داکلام په داسې طرز دې چه یوسړې اووائی که په انسانانو کښې زما څوك دوست دې نو هغه فلانکې دې په دې سره د نورو دوستانونفی مقصودنه وی بلکه دمذکوره سړی اختصاص مقصودوی

**[٦٠٣٦]د حضرت عمر ﷺ نه دشیطان ویره**

—() [٢] ①وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«اسْتَأْذَنَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③وَعِنْدَهُ نِسْوَةٌ مِنْ قُرَيْشٍ يُكَلِّمْنَهُ وَيَسْتَكْثِرْنَهُ ④عَالِيَةً أَصْوَاتُهُنَّ، ⑤فَلَمَّا اسْتَأْذَنَ عُمَرُ قُمْنَ فَبَادَرْنَ الْحِجَابَ، ⑥فَدَخَلَ عُمَرُ وَرَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَضْحَكُ، ⑦فَقَالَ: أَضْحَكَ اللَّهُ سِنَّكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ!

**ترجمه:** ① اوحضرت سعد ابن ابي وقاص ﷺ بیان کوي ②یوه ورځ حضرت عمر ابن خطاب ﷺ دحجره نبوي په دروازه ودریدو سره درسول کریم ﷺ خدمت کښې دحاضریدو اجازت یې طلب کړو ③هغه وخت حضور ﷺ سره دقریشو ښځې یعنی ازواج مطهرات ناستې خبرې یې کولې دهغوی دخبرو موضوع هغه خرچه کښې داضافي مطالبه وه کومه چې حضور ﷺ هغوی ته رسوله ④وهغوی خبرې هم په زور زور سره کولې ⑤هرکله چې حضرت عمر ﷺ اجازت طلب کولو سره دننه داخلیدو نوهغه ښځې پټیدو دپاره حضور ﷺ نه پاڅیدلو سره دپردې نه شاته شوی ⑥حضرت عمر ﷺ چې دننه داخل شو نو وي لیدل چې رسول کریم ﷺ مسکې کیدې ⑦حضرت عمر ﷺ حضور ﷺ په مسکا لیدو سره اوویل ﷺ دې ستاسو غاښونه همیشه په خندا لري یعنی د غاښو ښکاره ول دمسکا خوشحالي علامت وي زما دعا ده چې الله تعالی دې همیشه تاسو ښاد اوآباد خوشحاله

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عمر بن الخطاب أبی حفص القرشی العدوی رضی الله عنه (رقم-٣٦٨٣) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل عمر رضی الله تعالی عنه (رقم-٢٢ - (٢٣٩٦) واحمد فی المسند: ١٧٨/١

لري ليكن آخر هغه كومه خبره ده چې تاسوېې داوقت په خندا كړی يې ؟

**حل اللغات:-** ① يَسْتَكْثِرْنَهُ: په معنی د كثرت سره، دلته ددې نه دوه مطلبه دی: د رعايت د لحاظ نه بغير ئې زياتې خبرې كولې يا د زياتې نفقې مطالبه ئې كوله، ② عَالِيَةً: أي رَافِعَاتٍ: اوچتونكې وو آوازونو لره، ③ فَبَادَرْنَ: أي سَارَعْنَ: جلتي اوكړه تولو.

[۱] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (عَجِبْتُ مِنْ هٰؤُلَاءِ اللَّاتِي كُنَّ عِنْدِي، [۲] فَلَمَّا سَمِعْنَ صَوْتَكَ ابْتَدَرْنَ الْحِجَابَ) [۳] قَالَ عُمَرُ: يَا عَدُوَّاتِ أَنْفُسِهِنَّ! [۴] أَتَهَبْنَنِي وَلَا تَهَبْنَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ [۵] فَقُلْنَ: نَعَمْ، أَنْتَ أَفَظُّ وَأَغْلَظُ [۶] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِيهٍ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ! [۷] وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا لَقِيَكَ الشَّيْطَانُ سَالِكًا فَجًّا قَطُّ إِلَّا سَلَكَ فَجًّا غَيْرَ فَجِّكَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ ورته وفرمايل ماته په دې خبره خندا راغله چې هغه ښځې اول خوما سره ناستې وې شور يې كوی [۲] او چې كله ستا اوازيې و اوريدې نودويرې نه دپردې شاته وتښتيدې [۳] حضرت عمر رضي الله عنه چې داواوريدل نوهغو ښځو مخاطب كولو سره يې اوويل اې دخپل ځان دښمنو ښځو [۴] دا څرنګه چپه خبره ده چې زما نه خودومره دخوف اظهار چې زما اواز اوريدو سره دويرې نه دپردې شاته پټيږې اودرسول الله ﷺ نه يوه ذره هم نه ويريږې چې ورسره ناستې شور موجوړ كړی وو [۵] هغه ښځو جواب وركړو هو ستا نه خوويريدل پكاردی ځكه چې ته ډيرسخت خو ډير سخت ګويې حال دا چې رسول الله ﷺ ډير خوش مزاجه اوخوش خلق دی څرنګه چې الله تعالی فرمايلي دي (ايت) [۶] رسول كريم ﷺ ورته وفرمايل ابن خطاب دوې پريږده بله څه خبره مكوه هغه ښځو چې كوم جواب دركړی دی هغه ته داهميت وركولو څه ضرورت نشته [۷] قسم دی په هغه ذات چې دهغه په لاس كښې زما ساه ده ته هغه سړی يې كه شيطان تا ووينې نوهغه دلار نه اخوا كيدو سره دويمه لار به اختيار كړې په كومه چې ته خې . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ④ أَتَهَبْنَنِي: د هَيْبَت په وجه دچا عزت او احترام كولو ته وائې. أي أَتُوَقِّرْنَنِي: يعنې مانه ويريږې او تختې پټيږې اودَ حضورپاك نه ويره نه كوئ اوشور كوئ؟ ⑤ أَفَظُّ: أي سَيِّئُ الْكَلَامِ: سخت كلامی كونكې دا دَ سختې وينا كولوپه معنی كښې دې ⑨ أَغْلَظُ: أي: شَدِيدُ الْقَلْبِ: سخت زړه. يعنی د سخت خُلق اوسخت خونې په معنی كښې دې ⑥ إِيهٍ: دا اسم فعل دې په معنی د امر سره، په دې سره د زيادت طلب كولې شی، أي اسْتَزِدْ عَلَى مَا أَنْتَ عَلَيْهِ: چه كوم كلام تادې ښځوسره كړې دې هغه جاری اوساته او په هغې باندې زياتوالې اوكړه (د نورو معانيو دپاره لاندې شرح اوګورئ) ⑧ سَالِكًا: أي: ذَاهِبًا: تلونكې، ⑨ فَجًّا: أي: طَرِيقًا وَاسِعًا: فراخه لاره، ⑩ قَطُّ: داسم ظرف صيغه ده، راځي دپاره د تاكيد دنفی په زمانه ماضی كښې، معنی ئې ده هيڅ كله هم.

[۱] وَقَالَ الْحُمَيْدِيُّ: زَادَ الْبَرْقَانِيُّ بَعْدَ قَوْلِهِ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ: مَا أَضْحَكَكَ.

**ترجمه:** [۱] اوحميدې خپل كتاب جامع بين الصحيحين كښې ويلې دې چې برقاني چې

دخوارزم ديوكلي برقان اوسيدونكي وو اومشهور محدث دی دحضرت عمر ﷺ داالفاظ هم نقل كړی دی چې يارسول الله ﷺ كوم شی تاسو خندولی يئ ؟

**تسهيلات:**

**قوله**: أَنْتَ أَفَظُّ وَأَغْلَظُ: يعنی ته سخت خوئی هم ئی او سخته وينا كونكې هم اورسول الله ﷺ داسې نه دې

**اشكال**: دغه بنخو فظاظت اوغلاظت كښې دَ اسم تفضيل صيغه استعمال كړې ده دكوم نه چه معلوميږی چه دَ حضورپاك په خوئی او كلام كښې هم څه سختی وه حالانكه دَ قرآن اوحديث دَ اعلان مطابق حضورپاك خوډير نرم خوئی وو؟

**داشكال جواب**: دلته دَاسم تفضيل صيغه دَ اصل فعل معنی كښې استعمال كړې شوې ده حضورپاك سره دَدې تقابل نه دې يعنی فظاظت اوسختی په حضورپاك كښې نشته دې اسم تفضيل په اصل فعل كښې استعماليږی. لكه "العسل احلی من الخل. الصيف احر من الشتآء" حالانكه په سركه كښې هيڅ خوږوالي نه وی اودَ يخنئی په موسم كښې هيڅ ګرمی نه وی.

**قوله**: إِيهٍ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ!.

**د لفظ إِيهٍ ضبط**: دالفظ دَهمزه كسره سره دې اوياء ساكن ده اوهاء باندې دَ زير په صورت كښې تنوين دې اوكله په هاء باندې سكون هم وی اوكلمه "ايها" هم وئيلې شوې ده لكه عبدالله بن زبير ﷺ فرمائی:

ايهاوالاله لك شكاة ظاهر عنك عارها

**د لفظ إِيهٍ په مفهوم كښې مختلف اقوال**: ① علامه توريشتی ﷫ هم داسې ليكلی دی كه چرې دا لفظ إِيهٍ وی نواسم فعل امر په معنی كښې وی يعنی نوره اضافه اوكړه خوكه دا لفظ ايهًا وی نودا كف كف دَبندولودَپاره استعماليږی. علامه فرمائی زيربحث حديث كښې لفظ ايهًا كيدل پكاردی چه بس بس منع شه منع شه په معنی كښې به وی اي كف يا ابن الخطاب دَعلامه توريشتی ﷫ انداز بهتر معلوميږی

② ملاعلی قاری ﷫ مرقات كښې ليكلی دی چه دَدې كلمه ترجمه داسې ده "حدث حديثا ولا تلتفت الی جوابهن" د دې عبارت مطلب دادې چه حضورپاك حضرت عمرفاروق ﷺ ته اوفرمائيل عمر! دَدې بنخودَ خبرو دَجواب پرواه مه كوه مه دَدوی طرف ته توجه مه وركوه بلكه څه بله خبره اوكړه

③ ملاعلی قاری ﷫ دا هم ليكلی دی چه "وقيل هو اسم فعل يطلب له ازيادة اي استزد علی ماانت عليه من التصلب" د دې عبارت مطلب دادې چه حضورپاك حضرت عمر ﷺ ته اوفرمائيل چه كوم كلام تادې بنخوسره كړې دې هغه جاری اوساته او په هغې باندې زياتوالي اوكړه څكه چه

سا شان دومره اوچت شان دي چه په کومه لاره نه تیرېږي په هغې باندې شیطان نه شي تیرېدې بلکه هغه دده کولوسره بله لاره اختیاروي ابوزید سروجي دا لفظ د انت په معنی کښې استعمال کړې دي چنانچه هغه اوونیل "ایه بلا ممویه ای انت الحدیث بلاکذب"

Ⓟ قاموس الوحید کښې دا لفظ اسم فعل ګرځولوسره ددې معنی دا لیکلې ده "او وایه" لیکن که دا لفظ تنوین سره ایهًا شي نو دا اکف کف بس بس په معنی کښې دي

**[۶۰۳۷] په جنت کښې د عمر رضی الله عنه محل**

٦٠٣٧ - (١) [٣] [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «دَخَلْتُ الْجَنَّةَ فَإِذَا أَنَا بِالرُّمَيْصَاءِ امْرَأَةِ أَبِي طَلْحَةَ، [٣] وَسَمِعْتُ خَشَفَةً، فَقُلْتُ مَنْ هَذَا؟ فَقَالَ: هَذَا بِلَالٌ. [٤] وَرَأَيْتُ قَصْرًا بِفِنَائِهِ جَارِيَةٌ، فَقُلْتُ لِمَنْ هَذَا؟ قَالُوا: لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، [٥] فَأَرَدْتُ أَنْ أَدْخُلَهُ فَأَنْظُرَ إِلَيْهِ فَذَكَرْتُ غَيْرَتَكَ» [٦] فَقَالَ: بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي يَا رَسُولَ اللَّهِ! أَعَلَيْكَ أَغَارُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت جابر رضی الله عنه بیان کوي رسول کریم ﷺ وفرمایل [٢] د معراج په شپه کښې هرکله چې زه جنت کښې داخل شوم نواچانك مې ولیدل چې رمیصاء زوجه ابوطلحه رضی الله عنه موجود ده [٣] بیاما دقدمونو اواز واورېدی پوښتنه مې وکړه داکوم سړی دي چې دهغه دتلو اواز راځي ماته جبرائیل علیه السلام یاخه بلې فرښتې یادجنت داروغه وښودل چې دابلال رضی الله عنه دی دي نه وروسته یوځاي ته رسیدو سره مایوعالیشان محل اولیدلو چې دهغه یوګوټ کښې یاصحن کښې یوه خوانه ښځه یعنی دجنت حوره ناسته ده ماپوښتنه وکړه دامحل دچادی اودقسم دانعمتونه چې دي محل کښې دي اوددي محل چاپیره دی دچادپاره دی ماته جنتیانو یادهغه محل متعین فرشتو وښودل چې دامحل دخپل ټول ساز وسامان اونعمتونو سره دعمر ابن خطاب رضی الله عنه دی [٥] دي اورېدو سره ما وغوښتل چې محل نه ورسم اوده دننه نه یې هم وګورم لیکن بیا اې عمره رضی الله عنه ماته ستا دغیرت خیال راغی چې ستا محل کښې داخلیدل ستا دغیرت اوحمیت منافي نه وي لحکه مادننه ورتلوڅخه پرهیز وکی [٦] حضرت عمر رضی الله عنه چې دا وا وریدل نوعرض یې وکی یارسول الله زما مور پلار دي په تا سو ﷺ قربان وي اجازه به ستاسو ﷺ په مقابل کې غیرت کوم ؟ (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① خَشَفَةً أي صَوْتًا: آواز، دلته د ګرځیدونکې د پېزار آواز ته مراد دي ② قَصْرًا: عالیشان محل، ③ بِفِنَائِهِ: جوانب او اطراف دهغې محل ④ أَغَارُ: د غَيْرَةً نه د متکلم صیغه ده. زه به غیرکوم

[١] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عمر بن الخطاب أبي حفص القرشي العدوي رضی الله عنه (رقم ٣٦٧٩،) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل عمر رضی الله تعالی عنه (رقم ٢١٠ - (٢٣٩٥) واحمد فی المسند: ٣٨٩/٣

**تسهیلات: قوله: بِالرُّمَيْصَاءِ:**

**د حضرت رمیصاء تعارف:** ام سلیم ﷺ ته رمیصاء وائی اوغمیصاء هم ورته وائی. داد حضرت انس ﷺ مور وه. اول د مالك بن نضر ﷺ په نکاح کښې وه د کوم نه چه حضرت انس ﷺ پیداشو. په احد کښې چه کله مالك بن نضر ﷺ شهید شو نوبیا هغې سره ابوطلحه ﷺ نکاح کښې وه. د لوئی شان والا ښځه ده د حضوراکرم ﷺ رضاعی ترور وه.

**[٦٠٢٨] په خوب کښې د قمیص تعبیر**

٦٠٢٨-(١) [٣] ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ «(بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُ النَّاسَ يُعْرَضُونَ عَلَيَّ، ٣ وَعَلَيْهِمْ قُمُصٌ، مِنْهَا مَا يَبْلُغُ الثُّدِيَّ، وَمِنْهَا مَا دُونَ ذَلِكَ، ٤ وَعُرِضَ عَلَيَّ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَعَلَيْهِ قَمِيصٌ يَجُرُّهُ). ٥ قَالُوا: فَمَا أَوَّلْتَ ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: (الدِّينَ)» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوسعید خدري ﷺ وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ٢ یوه ورځ هرکله چې زه اوده ووم خوب کښې وینم چې زما د اُمت څه خلق زما مخکې پیش کول کیږي ٣ هغوی ټولو قمیصونه اغوستي دي چې هغوی کښې د بعضې قمیصونه خو د هغوی سینې پورې وو او د بعضې قمیصونه د هغه نه هم واړه وه ٤ بیا چې عمر بن خطاب ﷺ زما مخې ته پیش شو نو د هغه قمیص دومره اوږد وو چې د زمکې سره موښتی ٥ بعضې صحابه ﷺ دي خبرې اوریدو سره پوښتنه وکړه یارسول الله ﷺ د عمر ﷺ د دي اوږد قمیص تعبیر تاسو ﷺ څه بیان کړې وې فرمایل دین او مذهب. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يُعْرَضُونَ: پیش کولې شي.

**تسهیلات:**

**قوله: فَمَا أَوَّلْتَ ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: (الدِّينَ)**

**په عالم مثال کښې د قمیص مثال:** په عالم مثال کښې د قمیص مثال دین دې. د حضرت عمر ﷺ د خلافت زمانه اوږده وه په دې وجه د دین د ټولو نه زیات خدمت هم هغوی کړې وو او قمیص نې اوږد وو دا قسم فضائل جزئی وی کلی نه وی.

**[٦٠٢٩] د حضرت عمر ﷺ علمي عظمت**

٦٠٢٩-(٢) [٥] ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ٢ «

---

[1] اخرجه البخاري فی کتاب المناقب/باب مناقب عمر بن الخطاب أبي حفص القرشي العدوي رضی الله عنه (رقم-٣٦٩١) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل عمر رضی الله تعالی عنه (رقم-١٥ - (٢٣٩٠)

[2] اخرجه البخاري فی کتاب المناقب/باب مناقب عمر بن الخطاب أبي حفص القرشي العدوي رضی الله عنه (رقم-٣٦٨١) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل عمر رضی الله تعالی عنه (رقم-١٧ - (٢٣٩٢) والترمذي فی کتاب الرؤیا عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی رؤیا النبی صلی الله علیه وسلم اللبن والقمص (رقم-٢٢٨٤) واحمد فی المسند: ١٠٨/٢

(بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ أُتِيتُ بِقَدَحِ لَبَنٍ، فَشَرِبْتُ [۲] حَتَّى إِنِّي لَأَرَى الرِّيَّ يَخْرُجُ فِي أَظْفَارِي، [۳] ثُمَّ أَعْطَيْتُ فَضْلِي عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ) [۵] قَالُوا: فَمَا أَوَّلْتَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: (الْعِلْمَ)». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي مادرسول كريم ﷺ نه واوريدل [۲] زه اوده وم چې خوب كښې د شودو (پيو) نه ډكه پياله ماته راكړې شوه ماهغه پښي وڅكلي [۳] بياما وليدل چې دډيروالي په سبب دهغه پيښو تري اوتازګي زما دنوكانوڅخه راوخي [۴] بياماخپل بچ شوى پښي عمر بن خطاب رضي الله عنه ته دڅښلو دپاره وركړلي [۵] بعضې صحابه دي خبري اوريدوسره عرض وكى يارسول الله ددي پيښو تعبير كښې تاسو ﷺ څه فرمايي؟ وي فرمايل علم (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** - ① بِقَدَحٍ: غټه پيالۍ، ② الرِّيَّ: أَيْ أَثَرَ اللَّبَنِ: دپيښو اثر يعنى تر وتازګي (اوبه كولو اوخړوب كولوته ري وائي) ③ فَضْلِي: أَيْ: سُؤْرِي الْكَثِيرَ: زياتى جوټه شوى پى ④ فَمَا أَوَّلْتَهُ: تاسو څه تعبير اوباسي؟

**تسهيلات:**

**قوله:** فَمَا أَوَّلْتَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: (الْعِلْمَ)،

**د پيو تعبير په علم سره:** عالم مثال كښې دَعلم مثال دَ پيښو دي. دي قسم فضيلت ته شارحين جزئي فضيلت وائي. كلي فضيلت دَحضرت صديق اكبر رضي الله عنه دي

**[۶۰۴۰] دحضرت عمر متعلق دنبي كريم ﷺ يوخوب**

۶۰۴۰-() [۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] «بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِي عَلَى قَلِيبٍ عَلَيْهَا دَلْوٌ، [۳] فَنَزَعْتُ مِنْهَا مَا شَاءَ اللَّهُ، [۴] ثُمَّ أَخَذَهَا ابْنُ أَبِي قُحَافَةَ فَنَزَعَ مِنْهَا ذَنُوبًا أَوْ ذَنُوبَيْنِ وَفِي نَزْعِهِ ضَعْفٌ، وَاللَّهُ يَغْفِرُ لَهُ ضَعْفَهُ، [۵] ثُمَّ اسْتَحَالَتْ غَرْبًا فَأَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ، [۶] فَلَمْ أَرَ عَبْقَرِيًّا مِنَ النَّاسِ يَنْزِعُ نَزْعَ عُمَرَ حَتَّى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ»).

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي مادرسول الله ﷺ نه واوريدل [۲] زه اوده ووم چې په خوب كښې مي وليدل چې زه بغير غاړې يوكوهي باندې يم چې هلته يوه بوقه هم ايښودل شوى ده [۳] مادبوقې په ذريعه هغه كوهي نه اوبه راوښكلي څومره چې الله تعالى وغوښتي [۴] زما نه وروسته ابن ابي قحافه يعنى ابوبكر رضي الله عنه بوقه واخسته اوكوهي نه يي اوبه راوښكلي ليكن هغوى يوي يادووبوقو نه زياتي اوبه راونه كښلي هغه سست اوكمزوري شو اودهغه سستي اوكمزوري دى الله تعالى معاف كړى [۵] بيا هغه بوقه په يوه غټه بدله شوه اوعمر ابن خطاب رضي الله عنه هغه واخسته [۶] حقيقت دادى چې ماهيڅ خوان اوقوي دهغه په شان ندي ليدلي چې دهغه غټي بوقي په ذريعه اوبه راوكاږي نوهغه دومره اوبه راوښكلي

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب مناقب عمر بن الخطاب أبي حفص القرشي العدوي رضى الله عنه (رقم-۳۶۸۱) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل عمر رضى الله تعالى عنه (رقم-۱۷ - (۲۳۹۲)

چې نه صرف تول خلق په اوبه شول اوهغوی اوښان هم اوبه کړل بلکې خلقو داوبو دفراخې په سبب هغه ځای کې داوښانو دناستې ځای جوړ کړی

**حل اللغات:-** ① قَلِیبٌ: أَيْ: بِئْرٌ لَمْ تُطْوَ: هغه کوهی ته وائی چه دهغې غاړې یعنی منډیر نه وی، دنکاچه ورته نه وی جوړه شوې. ② ذَنُوبًا: وَهُوَ الدَّلْوُ: بوقې ته وائی چه اوبه پرې راویستلې شی (که هغه د اوبونه ډکه وی اوکه تشه وی) ③ اسْتَحَالَتْ: أَيْ: انْقَلَبَتِ الدَّلْوُ: یعنی بدله شوه بوقه، ④ غَرْبًا: أَيْ دَلْوًا عَظِيمَةً: غټه بوقه (کومه چه د څرمن نه جوړه وی، دې ته چرس هم وائی. ⑤ عَبْقَرِيًّا: أَيْ رَجُلًا قَوِيًّا: طاقتور، مضبوط او پهلوان سړې. ⑥ بِعَطَنٍ: وَهُوَ مَبْرَكُ الْإِبِلِ: د اوښانو د تړلو ځائې، باړه یعنی غوجل.

**تسهیلات: قوله:** قَلِیبٌ:

**د قلیب په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① یعنی وران کوهی دلته مطلق کوهې مراد دې

② دَ وران کوهی ذکرکولوسره دې طرف ته اشاره ده چه پرعزم اودَ حوصله والاخلق وران مقام آبادولوسره ډیر څه حاصلولې شی.

**قوله:** أَوْذَنُوبَيْنِ:

**د "او" کلمې په تحقیق کښې دوه اقوال:** ① د "او" کلمه د شک دپاره استعمال شوې ده یعنی دوه ډولچې راویستلې. دا شك دَ راوی دَ طرف نه دې

② دَ "او" لفظ دَبل په معنی کښې دې. په دې جمله کښې دَ حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه دَ دوو کالو خلافت ته اشاره ده.

**قوله:** وَفِي نَزْعِهِ ضَعْفٌ:

**په مذکوره جمله کښې دوه توجیهات:** ① په دې جمله سره دَصدیق اکبر رضی الله عنه تنقیص مقصودنه دې اونه په هغوی باندې دَحضرت عمرفاروق رضی الله عنه فضیلت بیانول مقصود دی بلکه اصلاً دَ صدیق اکبر رضی الله عنه دَخلافت دَ زمانې قلت طرف ته اشاره ده اودَ حضرت عمر رضی الله عنه دَ خلافت دَ مودې دَ کثرت او طوالت طرف ته اشاره ده

② په دې جمله کښې دې طرف ته اشاره کیدې شی چه دَ صدیق اکبر رضی الله عنه دَخلافت په زمانه کښې به دَخلقو دَ ارتداد فتنه راخی په کوم سره چه دَدین اوحکومت دکمزورئی طرف ته اشاره اوکړې شوه. بهرحال دَ حضرت عمر رضی الله عنه دَ خلافت زمانه چونکه اوږده وه په دې وجه په هغې کښې دَالله تعالی مخلوق اودین اسلام ډیرزیات خدمت اوشو

۶۰۳۱-(۱) وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [۲] (ثُمَّ أَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ مِنْ يَدِ أَبِي بَكْرٍ، فَاسْتَحَالَتْ فِي يَدِهِ غَرْبًا، [۳] فَلَمْ أَرَ عَبْقَرِيًّا يَفْرِي فَرِيَّهُ، [۴] حَتَّى رَوِيَ النَّاسُ وَضَرَبُوا بِعَطَنٍ) مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب التعبیر /باب نزع الماء من البئر حتی یروی الناس (رقم-۷۰۱۹) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم /باب من فضائل عمر رضی الله تعالی عنه (رقم-۱۷ - (۲۳۹۲)) واحمد فی المسند ۲۷/۲

**ترجمه:** [۱] اوداابن عمر ﷺ روايت كښې داسې دى [۲]چې بيا دابوبكر ﷺ دلاس نه هغه بوله عمر ابن خطاب ﷺ واخسته چې د هغوى لاس ته رسيدو سره غټه بوقه جوړه شوه [۳]حقيقت دادى چې ما هيڅ خوان اوقوي تر سړى داسې ندي ليدلى چې اوبو راكښلو په دي كار كښې دعمر ﷺ په شان چست وچالاك اوكار والاوي [۴]نوهغوى دومره اوبه راوښكلي چې خلق يې اوبه كړل اوداوبو دفراخي په سبب خلقو هغه خاي داوښانو دناستي خاي جوړ كړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَفْرِي فَرْيَهُ: أَيْ يَعْمَلُ عَمَلَهُ: ډير كار كونكې، چه په كار كښې تكړه او چست وى. عجيبه اوحيرانونكى كار ته وائى

**تسهيلات:** **قوله:** يَفْرِي فَرْيَهُ:

**ه مذكوره جملي مطلب:** مفهوم داچه ما دَ اوبو راويستو په كاركښې دَعمر په شان مضبوط اوقوى اوحيرانونكې كار كونكې تكړه او تازه بل څوك نه دې ليدلې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۶۰۴۲] دعمر ﷺ په ژبه او زړه د حق جارى والي**

۶۰۴۲-(١) [د] [۱]عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲]( «إِنَّ اللّٰهَ جَعَلَ الْحَقَّ عَلَى لِسَانِ عُمَرَ وَقَلْبِهِ» ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر ﷺ وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل الله تعالى [۲]دعمر ﷺ په ژبه اودهغوى په زړه باندې يې حق اوصداقت جاري كړى دى (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① جَعَلَ الْحَقَّ: أَيْ: أَظْهَرَهُ وَوَضَعَهُ: حق ئې ښكاره كړې او جارى كړې ئې دې.

۶۰۴۳-(٢) [۱]وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: [۲]( «إِنَّ اللّٰهَ وَضَعَ الْحَقَّ عَلَى لِسَانِ عُمَرَ يَقُولُ بِهِ» ).

**ترجمه:** [۱] اودابوداؤد يو روايت كښې چې حضرت ابوذر ﷺ نه دى داسې دى چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالى دعمر ﷺ په ژبه حق ايښى دى څكه هغه حق خبره كوي حق نه علاوه بله څه خبره دهغوى دژبې نه نه وزي

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ اللّٰهَ جَعَلَ الْحَقَّ عَلَى لِسَانِ عُمَرَ وَقَلْبِهِ

**دعمر رضى الله عنه د ژبې حقانيت:** يعنى حضرت عمر فاروق ﷺ دَ رجال تكوين نه وو په

[۱] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الرؤيا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى الذى يكذب فى حلمه (رقم-۲۲۸۲) واحمد فى المسند:۲/۵۳

[۲] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الخراج والإمارة والفيء/باب فى تدوين العطاء (رقم-۲۹۶۲)

تكويني امورو كښې دَهغوى ډيره تجربه وه. چنانچه الله تعالى دَهغوى په ژبه او زړه باندې حق جارى كړې وو. دَ حق خاتى دَ هغوى په ژبه اوزړه او دماغو كښې ساتلې وو. دَدې حديث نه پس راتلونكې حديث كښې هم دا قسم تكويني خبره كړې شوې ده. چنانچه حضرت على ﷺ فرمائي چه مونږ دا خبره لرې نه گنړله چه يو فرښته دَحضرت عمر ﷺ په ژبه باندې كلام كوى.

حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائي چه ما حضرت عمر ﷺ ته اوكتل نو داسې محسوس شوه لكه چه څوك فرښته دَ حضرت عمر ﷺ دَدوارو ستر گو په مينځ كښې ناسته ده چه هغوى ته دَ صحيح لارې رهنمائي كوى.

**[٦٠٤٤] دحضرت عمر ﷺ خبرو سره به خلقوته سكينه اوطمانيت حاصليدې**

٦٠٤٣-(١)[٨] وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] مَا كُنَّا نُبْعِدُ أَنَّ السَّكِينَةَ تَنْطِقُ عَلَى لِسَانِ عُمَرَ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ).

**ترجمه:** [١] او حضرت علي كرم الله وجهه فرمايي [٢] مونږ اهل بيت يا جماعت صحابه به دا خبره بعيده نه گڼله چې دحضرت عمر ﷺ په ژبه سكينت او طمانيت جاري كيږي دا روايت بيهقي دلائل النبوة كښې نقل كړى دى. [اخرجه البيهقي]

**حل اللغات:-** ① نُبْعِدُ: د إِبْعَاد نه دي، أي مَا كُنَّا نَعُدُّ بَعِيدًا: مونږ به لرې او ناممكن نه گڼرله ② السَّكِينَةَ: أي: مَا بِهِ تَسْكُنُ النَّفْسُ: كوم سره چه نفس ته سكون او تسلي ملاويږي. ③ تَنْطِقُ: أي: تَجْرِي: خبرې كوى، جارى كيږي.

**تسهيلات: قوله:** أَنَّ السَّكِينَةَ:

**د سكينه په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① يعني "سكينة" څخه مراد دا دې چه دَ حضرت عمر ﷺ دَ خلې نه وتلې كلمات چه كله اوريدونكى اورى نو هغوى ته سكون او تسلي حاصليږى او دَ هغې طرف ته زړه مائل كيږى او په هغې باندې اعتماد كولې شى

② "سكينة" څخه مراد هغه فرښته هم كيدې شى چه حق اوموزون خبره په زړه كښې اچوى او بيا به هم هغه خبره دَ حضرت عمر ﷺ دَ خلې نه ادا كيدله

**[٦٠٤٥] دحضرت عمر ﷺ د اسلام راوړلو دپاره د نبي عليه السلام دعا**

٦٠٤٥-(٢)[٩] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٢] قَالَ: «اللّٰهُمَّ أَعِزَّ الْإِسْلَامَ بِأَبِي جَهْلِ بْنِ هِشَامٍ، أَوْ بِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ» [٣] فَأَصْبَحَ عُمَرُ، فَغَدَا عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَأَسْلَمَ، [٤] ثُمَّ صَلَّى فِي الْمَسْجِدِ ظَاهِرًا». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

[١] ) اخرجه البيهقى فى دلائل النبوة رقم الحديث ۶/ ۳۶۹ والبغوى فى شرح السنة ۱۴/ ۸۶

[٢] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۸۳) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل عمر رضى الله عنه (رقم-۱۰۵)

**ترجمه:** ① اوحضرت ابن عباس ﷺ دنبي كريم ﷺ نه روايت كوي ② يوه شپه حضور ﷺ دعا وكړله الهي دابوجهل ابن هشام يادعمر بن الخطاب په ذريعه اسلام سربلند اوغالب كړي يعنى دي دواړو كښې يوته دمسلمان جوړيدو توفيق وركړي چې دهغه په سبب داسلام دين ته طاقت نصيب شي ③ نوپه بله ورځ چې سحر شو عمر ابن الخطاب ﷺ درسول كريم ﷺ خدمت كښې حاضريدو سره مسلمان شو ④ اوبيا حضور ﷺ مسجد حرام كښې علانيه مونځ وكړ (احمد ترمذي)

**حل اللغات:-** ① أعِزَّ: أيْ: قَوِّوَانْصُرْ: عزت وركړې (يعنى د اسلام مدداوكړې اوقوت وركړې)

**تسهيلات: قوله:** اللّٰهُمَّ أَعِزَّ الإِسْلَامَ

**دعمرپنو د اسلام دپاره دعا:** يعنى اسلام ته دَ ابوجهل بن هشام په ذريعه يا دَ عمر بن الخطاب ﷺ په ذريعه قوت، نصرت او عزت وركړه.

**قوله:** ثُمَّ صَلَّى فِي الْمَسْجِدِ ظَاهِرًا،

**د حضرت عمر رضى الله عنه د اسلام اروړلو واقعه:** په دلائل نبوت كښې دَ حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه ابوجهل اووئيل چه كوم سړې محمد ﷺ (نعوذبالله) اووژنى هغه ته به سل اوښان او زر چاندى وركوم. عمر بن الخطاب دَدې كار دَ پاره تيار شو په لار روان وو چه يو سړى سره ئې ملاقات اوشو نو هغه ته ئې خپل مقصد ذكر كړو هغه ورته اووئيل چه اول دې دَ خپلې خور او اوخى خبر واخله. نو حضرت عمر ﷺ دَ خپلې خور او اوخى كور ته لاړو او هغوى دواړو هغه وخت دَ سورت طه تلاوت كولو دَ حضرت عمر ﷺ په خپلې خور باندې دَ تشدد مشهوره واقعه ده. كوم وخت چه حضرت عمر بن خطاب ﷺ دَ كتاب الله يوه پاڼره اوليدله او هغوى (اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى) پورې اولوستلو نو عمر ﷺ اووئيل چه اوس به زه دَ الله تعالى نه سوا دَ بل چا عبادت نه كوم

بل طرف ته حضورپاك ټوله شپه بيدار وو او په دعا كښې ئې الله تعالى نه غوښتل بل طرف ته حضرت عمر بن خطاب ﷺ ته حضرت خباب بن ارت ﷺ اووئيل چه دَهغه دَخور په كور كښې پټ شوې وو اې عمر تاته دې مبارك وى چه حضورپاك ټوله شپه بيدار وو اودَ الله تعالى نه ئې ستا دَپاره دعاغوښتله چه اې الله اسلام ته په عمر يا ابوجهل عزت وركړې او زه اميد كوم چه دَ حضورپاك دعا ستادَ پاره وراندېوالې كړې دې

**په دربار رسالت كښې دحضرت عمر رضى الله عنه حاضرى:** بيا حضرت عمر ﷺ برينده توره واخستله اودَحضورپاك په خدمت كښې حاضرشو هغه وخت به حضورپاك په دارارقم كښې اوسيدو او مسلمانانو به هلته په پټه دَ الله عبادت كولو. كوم وخت چه حضرت عمر ﷺ د حضورپاك په خدمت كښې حاضر شو نو حضورپاك پخپله دَ هغه دَ استقبال دَپاره بهر اووتلو اودَ اسلام دعوت ئې وركړو چه اې عمر معبودان باطله پريږده دَ اسلام طرف ته راشه

کامیابی هم په دې کښې ده چه اسلام قبول کړې ګنی په تاباندې به هم دَدنیا اوآخرت دَ ذلت او رسوایئی هم هغه عذاب نازل شی کوم چه په ولید بن مغیره باندې نازل شو. عمر بن خطاب ﷺ دا جلالی آواز اوریدو سره په ړچیدو شو دَ ړچیدونکو اوږو او رپیدونکو لاسونونه ئې توره پریوتله او ناڅاپی ئې دَ خلې نه دا الفاظ اووتل "أشهدأن لا إله إلا الله وأن محمد رسول الله"

**داسلام قبلولو څخه روسته په ښکاره د عبادت شروع**: بیا دَ مانځه وخت راغلو نوحضرت عمر ﷺ اوفرمائیل چه په پټه به عبادت نه کیږی اوس به ښکاره عبادت کیږی. دې نه پس حضرت عمر ﷺ ټول مسلمانان بوتلل او بیت الله ته اورسیدل او هلته ئې ښه په ښکاره مونځ اوکړو. دَدې نه معلومه شوه چه دَ حضرت عمر ﷺ په ذریعه اسلام ته تقویت او غلبه حاصله شوه. هم په دې وجه حضرت عمر ﷺ ته مراد رسول هم وئیلی شی.

**[٦٠٤٦]د ابوبکر په خوله د عمر ﷺ د فضیلت**

٦٠٤٦-() [١٠] [١]وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ عُمَرُ لِأَبِي بَكْرٍ: [٢]يَا خَيْرَ النَّاسِ بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [٣]فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: أَمَا إِنَّكَ إِنْ قُلْتَ ذَلِكَ، فَلَقَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: [٤](«مَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ عَلَى رَجُلٍ خَيْرٍ مِنْ عُمَرَ»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه**: [١] اوحضرت جابر ﷺ وايي يوه ورځ سيدنا عمر فاروق ﷺ ابوبکر صديق ﷺ په دي الفاظو سره مخاطب کړي [٢] اې هغه ذات ګرامي چې درسول الله ﷺ نه وروسته دټولو انسانانو نه بهتريې [٣] سيدنا ابوبکر صديق ﷺ دي اوريدو سره ورته وفرمايل عمر ﷺ که ته زما باره کښې داوايي چې حضور ﷺ نه وروسته دټولوڅخه بهتر انسان زه يم نوته خپله باره کښې هم پوهه شه مادرسول الله ﷺ نه دا اوريدلي دي [٤] نمر په يوداسې سړي نه دي راختلي چې دعمر ﷺ نه بهتروي دارِوايت ترمذي نقل کړي دي او ويلي يې دي چې داحديث غريب دی.

**تسهيلات**: **قوله**: مَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ عَلَى رَجُلٍ خَيْرٍ مِنْ عُمَرَ

**اشكال**: دَدې حديث نه معلوميږی چه دآسمان لاندې حضرت عمر ﷺ دَ ټولو نه افضل دې حالانکه دَ امت اجماع ده چه "افضل البشر بعد الانبياء بالتحقيق ابوبكر الصديق" دې؟

**داشکال دوه جوابونه**: ① دَ حضرت عمر ﷺ دا افضليت دَهغوی دَ عدالت سياست او تدبير اوتدبر سره متعلق دې لکه چه دا جزئی فضيلت دې دَ صديق اکبر ﷺ فضيلت کلی دې.
② دا افضليت او اوچتوالې دَحضرت صديق اکبر ﷺ دَدور نه پس دَحضرت عمر ﷺ دور سره متعلق دې لکه چه عمر ﷺ په خپل دورکښې دَټولو نه افضل وو.

[1] اخرجه الترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٦٨٤)

## [٦٠٤٧] د حضرت عمر ﷺ لوئی منقبت

٦٠٤٧-() [١] ①وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«لَوْكَانَ بَعْدِي نَبِيٌّ لَكَانَ عُمَرَبْنَ الْخَطَّابِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① اوحضرت عقبه ابن عامر ﷺ وايي رسول کریم ﷺ وفرمايل ② که زما نه وروسته بل څوک نبي وې نو هغه به عمر ﷺ وو داروايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې داحديث غريب دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَوْكَانَ بَعْدِي نَبِيٌّ لَكَانَ عُمَرَبْنَ الْخَطَّابِ

**عمر رضی الله عنه کښې د نبوت د استعداد وجوه:** څنګه وړاندې په تفصيل سره ليکلي شوی دی چه حضرت عمر فاروق ﷺ دغيبي نظام اوتکوينيات سرې وو دلته چه دهغوی کوم منقبت بيان کړې شوې دې په هغې کښې دې طرف ته اشاره ده کيدې شي چه داستعداد په حواله سره حضرت عمر ﷺ د نبوت د سلسله سرې وو مګر نوې نبوت ختم شوې دې په دې وجه به نبی نه راځی اوکله چه حضرت عمر ﷺ د حضورپاك نه پس نبی نه شي جوړيدې نود بل چا خوهډو سوال نه پيدا کيږی. لهذا غلام احمد قاديانی دروغژن او دجال دې.

## [٦٠٤٨] د شيطان د عمر ﷺ څخه ويريدل

٦٠٤٨-() [٢] ①وَعَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي بَعْضِ مَغَازِيهِ ②فَلَمَّا انْصَرَفَ جَاءَتْ جَارِيَةٌ سَوْدَاءُ. ③فَقَالَتْ: يَارَسُولَ اللَّهِ! إِنِّي كُنْتُ نَذَرْتُ إِنْ رَدَّكَ اللَّهُ صَالِحًا أَنْ أَضْرِبَ بَيْنَ يَدَيْكَ بِالدُّفِّ وَأَتَغَنَّى ④فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِنْ كُنْتِ نَذَرْتِ فَاضْرِبِي، ⑤وَإِلَّا فَلَا) فَجَعَلَتْ تَضْرِبُ،

**ترجمه:** ① اوحضرت بريده اسلمي ﷺ بيان دی يو ځل رسول کريم ﷺ جهاد ته تشريف وړی وو ② کوم وخت چې حضور ﷺ واپس تشريف راوړی نو يوه توررنګی جينئ چې ياخو ترو رنګی وه ياحبشي النسل وه خدمت اقدس کښې حاضره شوه ③ وهغه اوويل يارسول الله ماتذر منلی دی که الله تعالی تاسو دجهاد دسفر نه فتح اوسلامتي سره واپس راوستی نوزه به ستاسو ﷺ په مخکې دريا (تنبل) وهم اودفتح اوسلامتيا دخوشحالي سندري به وايم ④ حضور ﷺ هغه ته وفرمايل که تا واقعي نذر منلی دی نودريا (تنبل) وغړوه ⑤ ګينی داسې مه کوه هغه انجلۍ (منځی) واقعي نذر منلی وو څکه تنبل غړول يې شروع کړل

---

[1] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۸۶) واحمد فی المسند: ۴/ ۱۵۴

[2] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۹۰)واحمد فی المسند: ۵/ ۳۵۳

**حل اللغات:-** ① بِالدُّفِّ: هُوَ مَا يُطَبَّلُ بِهِ: د غږولو آله، طمبل، دوړیځ ②وَأَتَغَنَّى: د واحد متکلم صیغه ده، یعنی سندرې او لوبې به وائم.

①فَدَخَلَ أَبُو بَكْرٍ وَهِيَ تَضْرِبُ، ثُمَّ دَخَلَ عَلِيٌّ وَهِيَ تَضْرِبُ، ثُمَّ دَخَلَ عُثْمَانُ وَهِيَ تَضْرِبُ، ②ثُمَّ دَخَلَ عُمَرُ فَأَلْقَتِ الدُّفَّ تَحْتَ اسْتِهَا ثُمَّ قَعَدَتْ عَلَيْهَا، ③فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (إِنَّ الشَّيْطَانَ لَيَخَافُ مِنْكَ يَا عُمَرُ! ④إِنِّي كُنْتُ جَالِسًا وَهِيَ تَضْرِبُ، فَدَخَلَ أَبُو بَكْرٍ وَهِيَ تَضْرِبُ، ثُمَّ دَخَلَ عَلِيٌّ وَهِيَ تَضْرِبُ، ثُمَّ دَخَلَ عُثْمَانُ وَهِيَ تَضْرِبُ، ⑤فَلَمَّا دَخَلْتَ أَنْتَ يَا عُمَرُ أَلْقَتِ الدُّفَّ)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① دي کښې ابوبکر ﷺ مسجد نبوي کښې داخل شو لیکن هغه انجلۍ تنبل وهلو کښې مشغوله وه بیا علي ﷺ راغی او هغې هغه وخت هم تنبل ږغوله بیا عثمان ﷺ راغی بیا هم هغه خپل تنبل ږغول جاري وساتل ②بیا چې عمر ﷺ راغی نو هغې د هغه د هیبت نه په چابکۍ سره تنبل د خپلو کوناټو لاندې کړه او د کوناټو په زور داسې کیناستلو چې تنبل لاندې پټه شي او د عمر ﷺ نظر په ونه لګیږي ③په دې رسول کریم ﷺ وفرمایل عمر ﷺ ستا نه خو شیطان هم خوفزده وي ④دې انجلۍ زما په موجودګۍ کښې تنبل غږول بیا ابوبکر ﷺ راغی نو هغه وخت یې هم غږوی بیا علي ﷺ راغي نو هغه وخت یې هم تنبل غږوی بیا عثمان ﷺ راغی نو هغه وخت یې هم تنبل غږول خو ای عمره ﷺ هرکله چې ته راغلې نو دې انجلۍ دریا (تنبل) پټه کړه د اروایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی.

**حل اللغات:-** ③فَأَلْقَتِ: او نې غورزولو طمبل، ③اسْتِهَا: أَيْ أَلْيَتِهَا: کوناټې د هغې.

**تسهیلات:**

**قوله:** بِالدُّفِّ: فصیح لغت کښې دَ دف په دال باندې زبر و نیلی کیږی او فاء ساکن ده. دلته دَدې حدیث دَ مضمون نه په ذهن کښې دوه سوالونه پیدا کیږی؟

**اول اشکال:** دلته دَدې حدیث دَ مضمون نه په ذهن کښې دا سوال پیدا کیږی چې دف یعنی تنبل وهل څه عبادت نه دې دَدې نذر او منخته څنګه اوکړې شوه؟ نذر خو دَ هغه څیز منلې شی دکوم مثال چه په عبادات او مامورات کښې موجود وی؟

**د اول اشکال جواب:** چونکه معامله دَ جهاد وه نو جهاد له تلل فتح حاصلول د ښمن تختول دَ الله تعالى په زمکه باندې دَ الله تعالى قانون نافذ کول دا ټول عبادتونه دی. په دې وجه دَدې نذر صحیح ګرځولې شوې دی او دَ یوحد پورې دف او نغاره غږول او نذر پوره کول برداشت کړې شوی. دا معامله دَ ناجائز نه وتلو سره دَ مباح په زمره کښې راغله.

**دویم اشکال:** دلته دَدې حدیث دَ مضمون نه په ذهن کښې دا سوال پیدا کیږی چې دف او نغاره غږول په لهو او لغو کارونو کښې شمیرلې کیږی نو دَ حضور پاک په مخکښې څنګه دا کار او کړې شو؟

**ه دويم اشكال جواب:** دَ جهاد په خوشحالئى كښې دَ حضور پاك صحيح سالم واپس كيدل اوفتح حاصلولو په خوشحالئى كښې دف غږول دَ لهولعب نه خارج شو اوهغه وينځې په يوښه بنياد او اخلاص سره دا كار اوكړو په دې وجه دَ يوحد پورې برداشت كړې شو. ليكن دَحضرت عمر رضي الله عنه دَ راتلو وخت كښې كيدې شي دَ دغه اباحت وخت ختم شوې وو په دې وجه حضور پاك دَ حضرت عمر رضي الله عنه دَ شان باره كښې اوفرمائيل چه تا نه شيطان ويرېږي اوبله لار اختيار وي.

**[۶۰۴۹] دعمر رضي الله عنه څخه دانسي او جني شيطانانو تيختنه**

۶۰۴۹ -() [۳] ۞ وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَالِسًا، ۞ فَسَمِعْنَا لَغَطًا وَصَوْتَ صِبْيَانٍ. ۞ فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَإِذَا حَبَشِيَّةٌ تَزْفِنُ وَالصِّبْيَانُ حَوْلَهَا، ۞ فَقَالَ: (يَا عَائِشَةُ! تَعَالَيْ فَانْظُرِي) ۞ فَجِئْتُ فَوَضَعْتُ لَحْيَيَّ عَلَى مَنْكِبِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ إِلَيْهَا، مَا بَيْنَ الْمَنْكِبِ إِلَى رَأْسِهِ. ۞ فَقَالَ لِي: (أَمَا شَبِعْتِ؟ أَمَا شَبِعْتِ؟)

**ترجمه:** ۞ اوبي بي عائشه رضي الله عنها وايي ۞ يوه ورځ رسول كريم ﷺ ما سره ناست وو ۞ چانك يو شور نه ډك اواز زمونږ غوږونو ته راغي بيامونږ دېچو شور واوريدى ۞ رسول كريم ﷺ دي پوهيدو دپاره چې داڅه شوردى اودريدلو حضور ﷺ وليدل چې بهر يوه حبشي ښځه توپونه وهي رقص كوي اودهغه څلور طرف ته بچي ولاړدي تماشه ګوري ۞ حضور ﷺ زه مخاطب كولو سره وفرمايل اې عائشې راسه داتماشه ته هم وګوره نوزه راپاڅيدم حضور ﷺ سره ودريدم اوخپل اننګي مې دحضور ﷺ اوږه ايښودلو سره دحضور ﷺ داوږې اودسرپه منځ كښې مې دهغه ښځې تماشه كتله ۞ لږ لږ ساعت وروسته به حضور ﷺ زما نه پوښتنه كوله اياته مړه شوى نه يې ايا اوس لاستا زړه موړ شوى نه دى

**حل اللغات:-** ① لَغَطًا: أَيْ: صَوْتًا شَدِيدًا لَا يُفْهَمُ: داسې زور آور اوتيز آواز ته لغط وائي په كوم سره چه څه خبره په پوهه كښې نه راځي صرف شور وي ② تَزْفِنُ: دَ ضرب يضرب نه دَمؤنث صيغه ده، أَيْ: تَرْقُصُ: سخته ديكه وركول اوتوپونه وهل او لته وهلو ته زفن وائي. اوګډا ته هم وائي مګر دلته به دَ ګډا معنى صحيح نه وي ③ لَحْيَيَّ: دَ لَحْي تثنيه ده، أي مَنْبَتُ الأَسْنَانِ: دمخ هغه حصه كوم ځائې چه غاښونه راخيجي، اننګي، ژامه ④ أَمَا شَبِعْتِ؟: آيا مړه نه شوې، (يعنى په تماشه كولو دې زړه موړ نه شو)

۞ فَجَعَلْتُ أَقُولُ: لَا، لِأَنْظُرَ مَنْزِلَتِي عِنْدَهُ، ۞ إِذْ طَلَعَ عُمَرُ فَارْفَضَّ النَّاسُ عَنْهَا، ۞ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - (إِنِّي لَأَنْظُرُ إِلَى شَيَاطِينِ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ قَدْ فَرُّوا مِنْ عُمَرَ). ۞ قَالَتْ: فَرَجَعْتُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

[1] اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۹۱)

**ترجمه:** [١] اومابه جواب ورکوی نه اوس لاړه نه یم مړه شوی دراصل مادامعلومول غوښتل چې دحضور ﷺ په زړه کښې زما څه مقام دی اوحضور ﷺ ما سره څومره محبت کوی [٢] بیاناچانك عمر ﷺ راښکاره شو نوهغه خلق چې دهغې ښځې تماشه یې کتله محض دهغه دهیبت نه یادهغه دويرې نه چې عمر ﷺ به داتماشه کتل خوښه نه کړي دهغه لیدو سره تس نس شول [٣] دې لیدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل زه وینم چې دانسانانو اوجناتو شیطانان دعمر ﷺ دخوف نه ځرنګه اخوا دیخوا تښتي [٤] بي بي عائشه ﷺ وايي دې نه وروسته زه هم ذهغه ځایه لرې شوم داروایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې داحديث حسن صحيح غريب دی.

**حل اللغات:**- ⑤مَنْزِلَتِي: أَيْ: نِهَايَةُ مَرْتَبَتِي: زما مرتبه اومقام، (او ماسره د نبی علیه السلام مینه اومحبت). ⑨فَارْفَضَّ: أَيْ: تَفَرَّقَ النَّظَّارَةُ: تس نس شوه دغه نظاره، ⑥فَرُّوا: تختی، منډې وهی.

**تسهيلات:**

**قوله: إِذْطَلَعَ عُمَرُفَارْفَضَّ النَّاسُ عَنْهَا،**

**د جمال او جلال مشاهده:** په دې حديث کښې چه کوم څه بيان کړې شوی دی ممکن دی چه دَ جواز په حد کښې څه تماشه وه يا دَ جهاد مشق وو. په دې وجه حضورپاك هم اوكتلو او حضرت عائشه ﷺ ته ئې هم اوخودلو. په حضورپاك باندې دَ جمال اوكمال رنګ غالب وو نوتماشه روانه وه. په حضرت عمر ﷺ باندې دَ رعب او جلال غلبه وه او هسې هم دا لويه اوس دَ ضرورت نه زياتيدله په دې وجه دَ حضرت عمر ﷺ په راتلو سره ټول هرڅه ګډوډ شو

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [٦٠٥٠] دعمر ﷺ درې موافقات قرآنی

٦٠٥٠-(١) [١] عَنْ أَنَسٍ وَابْنِ عُمَرَ، أَنَّ عُمَرَ- رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ - قَالَ: [٢] وَافَقْتُ رَبِّي فِي ثَلَاثٍ: [٣] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ لَوِ اتَّخَذْنَا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى؟ [٤] فَنَزَلَتْ: ﴿وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ [البقرة: ١٢٥]. [٥] وَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، يَدْخُلُ عَلَى نِسَائِكَ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ، فَلَوْ أَمَرْتَهُنَّ يَحْتَجِبْنَ؟

**ترجمه:** [١] حضرت انس ﷺ اوحضرت ابن عمر ﷺ وايي چې حضرت عمر ﷺ وفرمايل [٢] درې خبرو کښې زماد پروردګار حکم زما درايې مطابق نازل شو [٣] ولنې خوداچې ماعرض کړی وو يارسول الله که مقام ابراهيم دمونځ کولو ځاي جوړ کړل شي نوبهتر به وي يعنی دکعبې دطواف نه وروسته چې دوه رکعاته کيږی که هغه مقام ابراهيم سره کيږی نوبهتربه [٤] وي نوداآيت نازل شو (وَاتَّخِذُوامِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى) اومقام ابراهيم دمونځ کولو

[١]) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ٤٠٢ واحمد فی المسند رقم الحديث ١/ ٢٣

خاي جوړ کړي [۵] اودويمه خبره داچې ما عرض کړی وو یارسول الله ﷺ ستاسو دازواج مطهراتو مخکې نیک اوبد هرقسم خلق راځي اوداخبره زه ستاسو دشان عظمت مناسب نه ګڼم که تاسو ازواج مطهراتو ته پرده کښې داوسیدو حکم ورکړی چې دغیر محرمو خلقو مخکې دهغوی راتلل بندسي نوبهتربه وي

**حل اللغات:**- ① وَافَقْتُ: د واحد متکلم صیغه ده، موافقت اوکړو ما، ② الْبَرُّ: دا د بَارٌّ نه دي. وَهُوَ الصَّالِحُ: نیک او دیندار سړی ته وائی. ③ الفَاجِرُ: أي الفَاسِقُ: نافرمان، بدعمله

[۱] فَنَزَلَتْ آيَةُ الْحِجَابِ، [۲] وَاجْتَمَعَ نِسَاءُ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْغَيْرَةِ، [۳] فَقُلْتُ: ﴿عَسَى رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ﴾ [التحريم: ٥]، فَنَزَلَتْ كَذَلِكَ.

**ترجمه:** [۱] نوزما په دي عرض کولو دپردي آیت نازل شو [۲] اودریمه خبره داچې کوم وخت دنبي کریم ﷺ بیبیانو درشک وغیرت واله معامله باندي اتفاق کړی وو [۳] نوماهغوی تولي مخاطب کولو سره ورته ویلي وو که حضور ﷺ تاسو له طلاق درکړي نودهغوی پروردګار به ډیر ژر ستاسو بدله کښې هغوی ته ستاسو نه ښې بیبیاني ورکړي نوزما دي الفاظو اومفهوم کښې آیت نازل شو

**حل اللغات:**- ② الْغَيْرَةِ: غیرت،

٥٠٦٠- ()[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - [۲] قَالَ: قَالَ عُمَرُ: وَافَقْتُ رَبِّي فِي ثَلَاثٍ: [۳] فِي مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ، وَفِي الْحِجَابِ، وَفِي أُسَارَى بَدْرٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اودحضرت ابن عمر ﷺ یوبل روایت کښې داسې دي [۲] دهغوی بیان دی چې حضرت عمر ﷺ وفرمایل دري خبرو کښې زما دپروردګار حکم زما درایي مطابق نازل شو [۳] یوخو مقام ابراهیم دمونځ ادا کولو ځای ګرځولو باره کښې دویم دحضور ﷺ دبیبیانو دپردي باره کښې اودریم دبدر قیدیانو باره کښې. (بخاري ومسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** وَافَقْتُ رَبِّي:

**د موافقت ربي معنی:** دموافقت مطلب دادي چه کومه خبره اوکوم حکم د الله تعالی په نیز د غیب پرده کښې مقرر وو اود الله تعالی د مرضئ او اراده موافق وو دهغې د ښکاره کیدونه مخکښې دحضرت عمر رضی الله عنه په زړه باندي دهغې ظهور اوشو اوحضرت عمر رضی الله عنه دهغې اظهار اومطالبه اوکړه. بیا الله تعالی هم دحضرت عمر رضی الله عنه دمرضئ مطابق هغه حکم دوحي په ذریعه حضورپاك ته اوخودلو. ددې معامله نه هم واضح کیږي چه حضرت عمر رضی الله عنه د تکوینیات د خلقو نه وو.

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل عمر رضی الله تعالی عنه (رقم-٢٤ - (٢٣٩٩)

**د عمر رضی الله عنه د الله په حق کښې ادب او احترام:** دلته چه دَ حضرت عمر رضي الله عنه ادب ته اوکتلې شی نوعقل حیرانیږی څکه چه هغوی "وافقت ربی" نه دی فرمائیلی حالانکه حقیقت هم دغه شان وو مګر دَ ادب په توګه هغوی اوفرمائیل وافقت ربی یعنی ما په یو څو امورو کښې دَخپل رب دَ مرضئی مطابق خبره کړې اوزما رائې زما دَ رب رائې سره موافق شوې.

**قوله:** فِي ثَلاثٍ:

**د ثلاث په قید کښې عدم حصر:** دلته دَ دریو خبرو ذکر دې. دَدې نه حصر بیانول مقصود نه دی بلکه په دې حدیث کښې دَ موقع اومحل په اعتبارسره دَ دریو بیانول مطلوب وو ګنی موافقات عمر دَ پنځلسو نه زیات دی. علماء امت په موافقات عمر باندې ډیر کتابونه لیکلی دی. علامه سیوطی رحمه الله دَ شلو موافقات عمر ذکر کړې دې.

**قوله:** فِي الْغَيْرَةِ:

**د سورة تحریم واقعې ته اشاره:** په دې لفظ کښې دَ عسل واقعه طرف ته اشاره ده کومه چه مشهوره واقعه ده. په دې کښې دَ سورت تحریم دَ شروع آیاتونه نازل شوی. حضرت عمر رضي الله عنه دَ آیاتونو دَنازلیدلو نه مخکښې دَ ازواج مطهرات په وړاندې چه کوم څه واورول دَ قرآن آیت هم هغه شان نازل شو. دغه شان دَافك په واقعه کښې حضرت عمر رضي الله عنه اووئیل "سبحانك هذا بهتان عظيم" روستو بیا دَ قرآن آیت دغه شان نازل شو.

**[۶۰۵۲] څلور احکام اود عمر رضی الله عنه موافقت**

۶۰۵۲-() [۵] ⑴ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ⑵ فُضِّلَ النَّاسَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ بِأَرْبَعٍ: بِذِكْرِ الْأُسَارَى يَوْمَ بَدْرٍ، أَمَرَ بِقَتْلِهِمْ، ⑶ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: ﴿لَوْلَا كِتَابٌ مِنَ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ [الأنفال: ۶۸] ⑷ وَبِذِكْرِهِ الْحِجَابَ، أَمَرَ نِسَاءَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَحْتَجِبْنَ، ⑸ فَقَالَتْ لَهُ زَيْنَبُ: وَإِنَّكَ عَلَيْنَا يَا ابْنَ الْخَطَّابِ وَالْوَحْيُ يَنْزِلُ فِي بُيُوتِنَا؟[1]

**ترجمه:** ⑴ اوحضرت ابن مسعود رضي الله عنه وایي ⑵ حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه ته په نورو دڅلور خبرو په سبب خصوصي فضیلت حاصل دی یوه خبره خودجنګ بدر دقیدیانو بابت دهغوی رایي وه دهغوی داوینا وه چي هغه قیدیان دي قتل کړی شی ⑶ والله تعالی داآیت نازل کړو (ایت) که الله تعالی یوه نوشته مقرر کړي نه وی‌چي دخطا اجتهادي مرتکب به مستوجب عذاب نه وي یاداچي اهل بدر مغفور دی نوکوم امر چې تاسو اختیار کړی دی دهغه باره کښې به په تاسو څه لویه سزا واقع کیده ⑷ دویمه خبره دپردي بابت کښې دهغوی مشوره ورکول وو هغه دنبي کریم صلی الله علیه وسلم ازواج مطهرات پرده کښې اوسیدوته متوجه کړي وي ⑸ ودهغه توجه ورکولو باندې ام المؤمنین بي بي زینب رضي الله عنها هغه ته ویلي وه چې اې عمر

[1] (اخرجه احمد فی المسند: ۱/۴۵۶)

ابن خطاب ﷺ پرده کبنبي داوسیدو خبره ته مونږ ته کوي حالانکه وحي زمونږ کورکي نازلیږي

**حل اللغات:-** ① كِتَابٌ: أَيْ: مَكْتُوبٌ أَوْ حُكْمٌ: دکتاب نه مراد مکتوب یعنی حکم لیکل دی په لوح محفوظ کښي،

| ① فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالَى: ﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ﴾ [الأحزاب: ٥٣] ② وَبِدَعْوَةِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (اللّٰهُمَّ أَيِّدِ الْإِسْلَامَ بِعُمَرَ). ③ وَبِرَأْيِهِ فِي أَبِي بَكْرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - كَانَ أَوَّلَ نَاسٍ بَايَعَهُ. رَوَاهُ أَحْمَدُ. |
|---|

**ترجمه:** ① اوبیا الله تعالی داوحي نازله کړه (ایت) اوهرکله چې تاسو دازواج مطهراتو نه څه شی غواړی نودپردي نه يې آخوا غواړی ② دریمه خبره هغه دعاوه چې دهغه په حق کښي نبی کریم ﷺ غوښتلي وه چې الٰهي دعمر ﷺ په ذریعه اسلام ته تقویت ورکړي ③ اوڅلورمه خبره دابوبکر ﷺ په حق کښي دهغوی رایي وه هغوی دحضرت ابوبکر ﷺ دخلیفه اول جوړولو تجویز پیش کولو سره ډیرنازک وخت کښي دټولو مسلمانانو بروخت رهنمايي وکړله اودخپل زبردست قوت اجتهاد په ذریعه هغوی دخلافت اول اهل اومستحق ګڼلو سره دټولوڅخه اول هغوی دابوبکر ﷺ په لاس بیعت وکړ اوبیا دهغوی پیروي کښي نورو ټولو خلقو خلافت صدیق باندې بیعت وکړو (احمد)

**حل اللغات:-** ② مَتَاعًا: اسباب، څیزونه. ③ أَيِّدْ: أَيْ: أَعِزَّهُ: عزت ورکړي (یعنی داسلام مدد اوکړې اومضبوط ئې کړې)

**تسهیلات: قوله:** الْأُسَارَى يَوْمَ بَدْرٍ:

**د جنګ بدر د قیدیانو باره کښي دعمر رضی الله عنه رائې:** په ۲هجری کښي چه کله دَ جنګ بدرواقعه پیښه شوه نوالله تعالی مسلمانانوته فتح عظیم ورنصیب کړه. لوئی لوئی اویا کافران مړه کړې شول او اویاګرفتارکړې شول. په مدینه منوره کښي دَدې قیدیانوباره کښي حضورپاك دَصحابه کرامونه مشوره اوغوښتله چه دوی نه فدیه اخستلوسره پریخودې شی که قتل کړې شی. حضرت عمرفاروق ﷺ اوفرمائیل یارسول الله داخلق دکافرانومشران دی. ته زمادَ خاندان خلق زما په لاس کښي راکړه دې دَپاره چه زه هغوی قتل کړم بلکه دَهرخاندان والادې خپل خپل رشته داران قتل کړی. دغه شان به په کافرانوباندې دَاسلام رعب کیني اودکفرجرړه به پرې شی.

**دجنګ بدر دقیدیانوباره کښي د صحابؓ رایه:** دَحضرت عمرفاروق ﷺ برعکس دَعامو صحابه کرامو او حضورپاك رائې داوه چه دوی نه فدیه واخلې او پریخودې شی. الله تعالی حضورپاك ته دَ فدیه اخستلو اوقتل کولو کښي اختیارورکړې وو مګرشرط داووچه وراندې کال کښي به ستاسو اویاکسان وژلې شی. په دې باندې حضرت عمر ﷺ سخت

ناراض وو مګر دَعام صحابه کرامو په رائې باندې عمل اوکړې شو
په کوم چه الله تعالی دَ سختې ناراضګئ اظهاراوکړو اودَ حضرت عمر ﷺ دَ رائې موافق ئې حکم راؤلیګلو چه داسې کول پکاروو. حضور پاك اوفرمائیل که عذاب راغلې وې نودَعمرنه بغیربه څوك بچ شوې نه وې.

**قوله**: لَوْلَا كِتَابٌ مِنَ اللهِ

**دَ كتاب من الله په تفسير کښې اقوال:** ① كتاب من الله. یعنی په لوح محفوظ کښې لیکلی شوې وو چه دَ مجتهد په غلطئ باندې مواخذه نه وي
② اهل بدر دَ اول نه معاف دي دَدوی مواخذه به نه کیږي
③ الله تعالی دَدواړو خبرو اجازت ورکړې وو چه فدیه واخلئ یائې قتل کړئ. په دې وجه عذاب رانغلو ګنې عذاب رابنکاره شوې وو. دَقرآن پاك آیت دې
﴿ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللَّهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ۝ لَوْلَا كِتَابٌ مِنَ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝ ﴾

**قوله**: وَبِرَأْيِهِ فِي أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

**دابوبکر دَ خلافت په بیعت دَ عمر رضی الله عنه ابتداء:** یعنی دَ عمرفاروق ﷺ رائې وه چه دَحضورپاك نه پس خلیفه ابوبکرصدیق ﷺ کیدل پکاردي. هغوی په سقیفه بنی ساعده کښې یوځودلائل ورکړه اوبیائې دَ حضرت صدیق اکبر ﷺ لاس اونیولو بیعت ئې اوکړو بیاټولو بیعت اوکړو.

## [۶۰۵۲] دَ عمر ﷺ په جنت کښې اوچت مقام

۶۰۵۳-(¹)[۴] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «ذَاكَ الرَّجُلُ أَرْفَعُ أُمَّتِي دَرَجَةً فِي الْجَنَّةِ». [۳] قَالَ أَبُو سَعِيدٍ: وَاللَّهِ مَا كُنَّا نُرَى ذَلِكَ الرَّجُلَ إِلَّا عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ [۴] حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [۱] اوحضرت ابوسعید خدري ﷺ وایي چی رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] دَغه سړی زمایه امت کښې دجنت بلند ترمقام اومرتبه لرونکي دي [۳] دابوسعید ﷺ بیان دی چې هغه سړي چې دهغه ذکر رسول الله ﷺ دي حدیث کښې وفرمایي باره کښې په الله قسم چې زمونږ خیال دي نه علاوه بل څه نه وو چې دي نه دحضرت عمر ﷺ ذات مراد دی [۴] وحضرت عمر ﷺ چې خوپوري دي دنیاکي وو مونږ په دي خیال قائم وو. (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① أَرْفَعُ: لوړ مقام والا، اوچتې مرتبې والا، ② مَضَى لِسَبِيلِهِ: أَيْ: مَاتَ: په خپله لار روان شو یعنی وفات شو.

---

¹) اخرجه ابن ماجة رقم الحديث ۴۰۷۷

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا كُنَّا نُرَى ذَلِكَ الرَّجُلَ إِلَّا عُمَرَبْنَ الْخَطَّابِ

**د مذکوره قول مطلب:** دَ حضرت ابوسعید ﷺ دَدې قول حاصل دادې چه مونږ به دا گنړل چه دَ دجال مقابله کونکې به حضرت عمر ﷺ وی اودَ دجال په لاس به حضرت عمر ﷺ قتل کیږی مگر چه کله عمر ﷺ شهید شو نو بیا په مونږ باندې واضحه شوه چه دَ دجال دَ لاس نه به دَ حضرت عمر ﷺ نه علاوه بل یوکس شهید کیږی.

**[٦٠٥٤] نیکو کارونو کښې دټولو نه زیات سرګرم**

> ٦٠٥٤-()[١٧]①وَعَنْ أَسْلَمَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: سَأَلَنِي ابْنُ عُمَرَ بَعْضَ شَأْنِهِ-يَعْنِي عُمَرَ-②فَأَخْبَرْتُهُ،③فَقَالَ: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا قَطُّ بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-مِنْ حِينِ قُبِضَ كَانَ أَجَدَّ وَأَجْوَدَ حَتَّى انْتَهَى مِنْ عُمَرَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1]

**ترجمه:**① اوحضرت اسلم (چې دحضرت عمر فاروق ﷺ ازاد کرده غلام اوتابعي دي) وايي چې حضرت ابن عمر ﷺ يوه ورځ زما نه دحضرت عمر فاروق ﷺ څه احوال اوخصائل معلومول وغوښتل ②نوما هغوی ته ډيري خبري وخو دلي ③نوهغه اوويل چې درسول ا کريم ﷺ درحلت نه وروسته مادحضرت عمر ﷺ نه زيات هيڅ سړی نه دی ليدلی چې دخپل ژوند آخري لمحو پورې نيکو کارونو کې دټولوڅخه زيات سرګرم اودټولوڅخه زيات نيک وي (بخاري)

**حل اللغات:** - ① أَجَدَّ: أَيْ: أَجْهَدَ فِي الدِّينِ: يعنی په دين کښې دَټولو نه زيات کوشش کونکې حضرت عمر ﷺ وو ② أَجْوَدَ: أَيْ: أَحْسَنَ فِي طَلَبِ الْيَقِينِ: يعنی په نيکو کارونو کښې د زړه په محنت او ښکلی يقين سره کار کول

**تسهیلات:**

**قوله:** وَعَنْ أَسْلَمَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ،

**دحضرت اسلم تعارف:** حضرت اسلم ﷺ دَحضرت عمر ﷺ غلام اوخاص خادم وو. هم په دې وجه حضرت ابن عمر ﷺ دَهغوی نه دَ خپل والدماجد حضرت عمر ﷺ خصوصی احوال پيژندل غوښتل ځکه چه اکثر خادم ته هغه څه معلوم وی چه خونی ته معلوم نه وی

**قوله:** فَقَالَ:

**د فقال د قائل مصداق:** دَدې قال فاعل اسلم ﷺ دي اودا جمله دَ اخبرته تفصيل دې. بعضې نسخوکښې قال دې کـه چرې دا لفظ فقلت وي نوکنت بـه آسـان وي. بهرحال پوره بيان د اسلم دي.

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عمر بن الخطاب أبی حفص القرشی العدوی رضی الله عنه (رقم-۳۶۸۷)

**قوله: حَتّٰى انْتَهٰى مِنْ عُمَرَ:**

**د مذکوره مفهوم:** په دې جمله باندې د پوهیدلو د پاره به اصل عبارت ته کتلې شی اصل عبارت داسې دې. "ما رأیت احداً اجد واجود من عمر حتی انتهی عمر ای مضی لسبیله."

اشکال ددې حدیث څخه معلومیږی چې په صحابو کښې د ټولو څخه افضل حضرت عمر وو

**د اشکال دوه جوابونه:** ① دا ټول فضائل جزئی دی جزئی فضیلت د عمر فاروق ﷺ دې اوعام فضیلت د حضرت ابوبکرصدیق ﷺ دې

② د حضرت عمر ﷺ دا فضیلتونه هغه زمانې سره تړلی دی کوم وخت چه د حضرت ابوبکر ﷺ انتقال شوې وو ملاعلی قاری ﷫ "قال السیوطی ای فی زمن خلافته لیخرج ابوبکر".

**[۶۰۵۵]عمر رضی الله عنه ته تسلی ورکول**

۶۰۵۵—() [۱۸] ۞وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: لَمَّا طُعِنَ عُمَرُ جَعَلَ يَأْلَمُ، فَقَالَ لَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ وَكَأَنَّهُ يُجَزِّعُهُ: ۞يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، وَلَا كُلُّ ذَلِكَ؟، لَقَدْ صَحِبْتَ رَسُولَ اللَّهِ، فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُ، ثُمَّ فَارَقَكَ وَهُوَ عَنْكَ رَاضٍ، ۞ثُمَّ صَحِبْتَ أَبَا بَكْرٍ فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُ، ثُمَّ فَارَقَكَ وَهُوَ عَنْكَ رَاضٍ، ۞ثُمَّ صَحِبْتَ الْمُسْلِمِينَ فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُمْ، وَلَئِنْ فَارَقْتَهُمْ لَتُفَارِقَنَّهُمْ وَهُمْ عَنْكَ رَاضُونَ،

**ترجمه:** ۞ اوحضرت مسور ابن مخرمه ﷺ وایي ۞حضرت عمر فاروق ﷺ چې دابو لؤلؤ خنجر سره زخمي شو نودبي آرامی اظهار یي کوی یعنی دهغوی پوښتنه کونکوته داسې لګیده لکه چې فاروق اعظم ﷺ دزخم دسخت تکلیف نه بې ارامي کوي چې دهغه اظهاریي دکراه وغیره صورت کښي کوي حضرت ابن عباس ﷺ داصورت حال لیدو سره ګویا حضرت عمر ﷺ ته تسلي اوتشفي ورکړله ۞و ورته یي اوویل امیر المؤمنین ددې بي قراری اوبي ارامی اظهار ستاسو دشان سره مناسب نه دی تاسو خوهغه هستي یي چې درسول الله ﷺ دصحبت اورفاقت شرف درته حاصل شوي دي اوديرښه صحبت درته حاصل شوي دي په دې طور چې تاسو درفاقت رسول کامل حق ادا کړي اوټول تر آداب وشرائط پوره کولو سره دحضور ﷺ د صحبت اوخدمت نه فیضاب شوئ اورسول کریم ﷺ داسې حالت کښي ستاسو نه جدا شو چې ستاسو نه راضي اوخوشحاله وو چې دهغه ثبوت دا ارشاد درسول دی چې وي فرمایل که زما نه وروسته څوک نبي وې نوهغه به عمر ﷺ وو ۞بیا دابوبکر ﷺ رفاقت ملګرتیا اومجالست تاسو ته نصیب شو اوهغوی سره هم ستاسو ملګرتیا ډیره ښه وه ددې پورې چې هغوی ستاسو نه جدا شول نو ستاسو نه خوشحاله وو ددې ثبوت دادی چې هغوی تاسو خپل جانشین منتخب کړلی اوبیادخپل خلافت په زمانه کښي تاسو ته دمسلمانانو دخدمت اورفاقت موقع حاصله شوه اودهغوی

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عمر بن الخطاب أبی حفص القرشی العدوی رضی الله عنه (رقم-۳۶۹۲)

دخدمت اورفاقت فريضه هم تاسو ديربنه شان سره ادا كړله چي مسلمانانو سره عدل اوانصاف او رعيت سره ښه سلوک اوكامياب ترينې حكمراني كښي ستاسو دنوم شهرت ځلور گوټه دنياكي خور شو اوس كه تاسو دمسلمانانو نه جدا كيږى نوداسي حال كښي جدا كيږى چي ټول مسلمانان ستاسو نه راضي اوخوشحاله دي

**حل اللغات:-** ① طُعِنَ: دمجهول صيغه ده، أَيْ طَعَنَهُ أَبُوْلُؤْلُؤَةَ: زخمى كړي شو (ابولولو دمغيره بن شعبه غلام ووهغه حضرت عمر رضی الله عنه په نيزه زخمى كړي وو. ② يَألَمُ: أَيْ: يُظْهِرُ أَثَرَ أَلَمِهِ بِالْأَنِيْنِ وَنَحْوِهِ: الم دردته وائي يعنى حضرت عمرفاروق رضی الله عنه دَ زخم دَوجي نه سخت تكليف او دَ فرياد اظهاركولو. ③ يُجَزِّعُهُ: أَيْ يَنْسُبُهُ إِلَى الْجَزَعِ وَيَلُوْمُهُ عَلَيْهِ: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په دي تكليف اودرد باندي ملامته كولو.

[۱] قَالَ: أَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ صُحْبَةِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَرِضَاهُ فَإِنَّمَا ذَلِكَ مَنٌّ مِنَ اللَّهِ مَنَّ بِهِ عَلَيَّ، [۲] وَأَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ صُحْبَةِ أَبِي بَكْرٍ وَرِضَاهُ، فَإِنَّمَا ذَلِكَ مَنٌّ مِنَ اللَّهِ مَنَّ بِهِ عَلَيَّ. [۳] وَأَمَّا مَا تَرَى مِنْ جَزَعِي، فَهُوَ مِنْ أَجْلِكَ وَمِنْ أَجْلِ أَصْحَابِكَ، [۴] وَاللَّهِ لَوْ أَنَّ لِي طِلَاعَ الْأَرْضِ ذَهَبًا لَافْتَدَيْتُ بِهِ مِنْ عَذَابِ اللَّهِ قَبْلَ أَنْ أَرَاهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] فاروق اعظم رضی الله عنه دي اوريدو سره وفرمايل اي ابن عباس رضی الله عنه تادحضور ﷺ دصحبت اودهغوى درضا اوخوشنودي چي كوم ذكر كړى دى نوبلاشبه دا دالله تعالى يوډير لوى احسان دى چي هغه محض خپل فضل وكرم سره په ماكړي دي [۲] دغه شان تا د حضرت ابوبكر رضی الله عنه دصحبت اورفاقت او دهغوى دخوشنودي چي كوم ذكر كړى دى نوهغه هم دالله تعالى يولوى احسان دى چي دهغه په ذريعه هغه محض خپل فضل وكرم سره زه سرفراز كړم [۳] باتي شوه زمابي صبري اوبي قراري چي ته وينې نوددي تعلق دزخم تكليف او درد اوبي ارامي سره نه دى بلكي درحقيقت داستا اوستا ددوستانو اوملگرو په سبب دى [۴] قسم په الله كه ماسره دټولي زمكي برابر سونا سره زر وي نوزه به هغه دالله تعالى د عذاب بدله كښي قربان كړم دي نه مخكي چي زه الله ياد الله عذاب ووينم. صحيح البخاري

**حل اللغات:-** ④ مَنٌّ: أَيْ: مِنَّةٌ عَظِيمَةٌ: لوئي احسان، انعام، ⑤ طِلَاعَ الْأَرْضِ: أَيْ مَا يَمْلَؤُهَا: چه زمكه ډكوى (دومره مال چه زمكه پرې ډكيږى)

**تسهيلات:**

**قوله:** طُعِنَ عُمَرُ:

**د حضرت عمر رضى الله عنه د شهادت مختصر واقعه:** مختصر قصه داسي ده چه مدينه منوره كښي مغيره بن شعبه رضی الله عنه يومجوسى غلام وو دكوم نوم چه فيروز وو اوكنيت ابولؤلؤ وو هغه شكايت كړي وو چه زما آقا مغيره بن شعبه رضی الله عنه په ماباندي زيات ټيكس لگولي دي. حضرت عمر رضی الله عنه هغه نه تپوس اوكړه چه ته كارڅه كوي؟ هغه ډيري پيشي

اوهنرونه اوخودل. عمرفاروق رضی الله عنه اوفرمائیل تیکس دومره زیات نه دې ته ډیر ماهر کاریګر ئې او ستا امدن زیات دې. ما اوریدلی دی چه ته ډیره ښه میچن جوړوې زما دپاره یوه میچن جوړه کړه. ابولؤلؤ چونکه غصه وونوهغه اوونیل ښه ده زه به ستادپاره داسې میچن جوړه کړم چه دنیا به ئې یاد لری. حضرت عمر رضی الله عنه چه دا واوریده نوونې فرمائیل "هذدنی العبد" دې غلام خوماته د مرګ درکه راکړه. بیا د سحریه مونځ کښې ابولؤلؤ په حضرت عمر رضی الله عنه باندې حمله اوکړه داد چارشنبه ورځ وه ۲۷ذوالحجه ۲۳هجری تاریخ وو درې ورځې هغوی زخمی وو او په اول محرم ۲۴هجری هغوی د شهادت جام نوش کړو. دغه وخت دهغوی عمر ۶۳ کاله وو.

**قوله:** لَمَّا طُعِنَ عُمَرُ جَعَلَ يَأْلَمُ،

**د یالم په معنی کښې دوه اقوال:** ① عام شارحینو هم دغه مطلب بیان کړې دې زه هم دا منم لیکن د دې پوره حدیث په کتلو اود دې په مضمون کښې غور کولو نه معلومیږی چه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د امورخلافت اودې کښې د حقوق الله اوحقوق العباد باره کښې د بې آرامۍ اظهار کولو. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په مکمل توګه هغوی ته تسلی ورکړه.

**قوله:** وَكَأَنَّهُ يُجَزِّعُهُ:

**د مذکوره جملې دوه مطلبونه:** ① عام شارحینو لیکلی دی چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په دې تکلیف اودرد باندې ملامته کولو

② شیخ عبدالحق رحمه الله د دې مطلب دا بیان کړې دې چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه درد اوپریشانی ختموله او تسلی ورکوله. دا مطلب زیات واضح دې اود دې حدیث بالکل موافق دې.

**قوله:** وَلَا كُلُّ ذٰلِكَ:

**حضرت عمرته تسلی ورکول:** ① یعنی اې امیرالمؤمنین د دې تولو پریشانو هیڅ ضرورت نشته دې نه دا بې قراره اود مستقبل ویره ستاسو د شان سره برابر ده. تاسو خوهغه هستی یئ چه د حضورپاك ملګرتیامو کړې ده

② د حضرت ابوبکر رضی الله عنه ملګرتیا مو کړې ده هغه دواړه تاسو نه راضی دی

③ بیا تاسو د مسلمانانو خدمت کړې د وفات نه پس به ان شاء الله تول مسلمانان هم تاسو نه راضی اوخوشحال وی لهذا د پریشانئی ضرورت نشته دې

**قوله:** فَإِنَّمَا ذٰلِكَ مَنٌّ مِنَ اللّٰهِ مَنَّ بِهِ عَلَيَّ،

**دعمر رضی الله عنه عاجزی:** یعنی د حضورپاك خدمت یا د صدیق اکبر رضی الله عنه خدمت داخود الله تعالی د طرف نه صرف احسان وو کوم چه په ما اوشو ماته چه کومه پریشانی ...

هغه ستاسو خلقو دوجې ده.

**قوله:** فَهُوَ مِنْ أَجْلِكَ وَمِنْ أَجْلِ أَصْحَابِكَ،

① حضرت عمر فاروق ﷺ چې دابو لؤلؤ خنجر سره زخمي شو نودبي آرامی اظهار يې کوی يعنی دهغوی پوښتنه کونکوته داسې لګيده لکه چې فاروق اعظم ﷺ دزخم دسخت تکليف نه بې ارامي کوي چې دهغه اظهاريې دکراه وغيره صورت کښې کوي

② حافظ فضل محمد صاحب فرمائی عام شارحينوليکلی دی چه حضرت عمرفاروق ﷺ فرمائی زما دَ مرګ نه پس به دَفتنو دروازې کولاؤ شی لهذا ماسره ستاسو خلقو فکردې په دې وجه دَ بې آرامئی او اضطراب په کيفيت کښې يم چه ستاسو به څه کيږی؟

**قوله:** لَوْأَنَّ لِي طِلَاعَ الْأَرْضِ ذَهَبًا لَافْتَدَيْتُ بِهِ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ قَبْلَ أَنْ أَرَاهُ

**د مذکوره جملې مطلب:** دا دَ طلوع څخه دې يعنی چه ماسره دومره سره زر وی دکومې نه چه دَزمکې مخ ډك شی. زه دَ الله تعالی دَ عذاب نه مخکښې مخکښې هغه خرچ کړم مګرچه دَعذاب شکل اونه ګورم.

**د مرګ په وخت کښې د حضرت عمر فاروق اشعار:** ملاعلی قاری ليکلی دی دَ حضرت عمر فاروق سر دَهغوی دَ ځوئی ابن عمر ﷺ په غيږکښې وو او هغوی دَ الله تعالی سره مناجات کښې دا شعرونيلو:

ظَلُوْمٌ لِنَفْسِيْ غَيْرَأَنِّيْ مُسْلِمٌ ۔ أُصَلِّيْ صَلٰوةً كُلَّهَا وَصُوْمُ

**ترجمه** ما په خپل خان باندې ډير ظلم کړې دې مګر بياهم زه مسلمان يم خپل ټول مونځونه کوم اوروژه ساتم

**د عمر فاروق ويره او اميد:** حضرت عمرفاروق ﷺ دَ ويرې او اميد يو اوچته نمونه وه. فرمائی که چرې په قيامت دا اعلان اوشی چه ټول انسانان به جنت ته ځی او يوسړې به دوزخ ته ځی نوماته به خطره وی چه چرته هغه زه شم اوکه چرې دا اعلان اوشی چه ټول انسان به دوزخ ته ځی صرف يوسړې به جنت ته ځی نوزما اميد دې چه هغه سړې به هم زه يم شيعه روافض دَحضرت عمر ﷺ دا ويره او اميد جذبه ته اودَهغه اخلاص ته په غلط نظر سره کتلی دی او هغه ئی دَ طعن موجب ګرځولو کوشش کړې دې ربنتيا دی:

فَعَيْنُ الرِّضَاءِ عَنْ كُلِّ عَيْبٍ كَلِيْلَةٌ ۔ وَلٰكِنَّ عَيْنَ السُّخْطِ تُبْدِيْ الْمَسَاوِيَا

**ترجمه** سرې چه کله دَ چانه خوشحال وی نوسترګې دَهر عيب نه ړندې وی مګر ناراض سترګې ته صرف بدی ښکاری.

# [۱۵] باب مناقب ابی بکر و عمر

## دحضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما منقبونه

**خلاصة الباب:**

**فيه اثنا عشر حديثاً مشتملة على عشر منقبات للشيخين:**

① ذكر الشيخين مع النبي صلى الله عليه وسلم: ۱، ۲.

② كون الشيخين من أهل الجنة: ۳، ۸.

كون الشيخين سيدا كهول أهل الجنة: ۴.

③ حكم النبي صلى الله عليه وسلم بإقتداء الشيخين: ۵.

④ تبسم الشيخين للنبي صلى الله عليه وسلم: ۶.

⑤ بعث الشيخين مع النبي صلى الله عليه وسلم من القبور يوم القيامة: ۷.

⑥ كون الشيخين كالسمع والبصر: ۸.

⑦ كون الشيخين وزيرى النبي صلى الله عليه وسلم : ۹.

⑧ الإشارة إلى خلافة الشيخين: ۱۰.

⑨ ذكر حسنات الشيخين من النبي صلى الله عليه وسلم: ۱۲.

**دصاحب مشکاة اسلوب:** دصاحب مشکوة په مناقب کښې داطریقه ده چه هغوی انفرادی مناقب متعلق صحابی سره بیان کړی دی لیکن دا مناقب حدیث مشترکه هم وی صاحب مشکوة مشترکه مناقب په جدا ابواب کښې راجمع کړی دی. چنانچه صدیق اکبر ﷺ او عمرفاروق ﷺ دَ انفرادی مناقب نه فارغیدو سره اوس دَدواړو مشترکه مناقب بیانوی دا یوبنه ترتیب دې.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۶۰۵۶] دابوبکر او عمر د یقین معیار

۶۰۵۲-(¹) [۱] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② «(بَيْنَمَا رَجُلٌ يَسُوقُ بَقَرَةً إِذْ أَعْيَا، فَرَكِبَهَا، ③ فَقَالَتْ: إِنَّا لَمْ نُخْلَقْ لِهٰذَا، إِنَّمَا خُلِقْنَا لِحِرَاثَةِ الْأَرْضِ. ④ فَقَالَ النَّاسُ: سُبْحَانَ اللّٰهِ، بَقَرَةٌ تَكَلَّمُ!). ⑤ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (فَإِنِّي أُومِنُ بِهِ أَنَا وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ) وَمَا هُمَا ثَمَّ.

---

¹ اخرجه ابوداود في السنن كتاب الحروف والقراءات (رقم-۳۹۸۷) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي بكر الصديق رضي الله عنه واسمه عبد الله بن عثمان ولقبه عتيق (رقم-۳۶۵۸) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبي بكر الصديق رضي الله عنه (رقم-۹۶) واحمد في المسند: ۲۶/۳

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] يوسړي خپله غوا شړلو سره بوتله تلو تلو كښې چې هغه ستړى شو نوغوا باندې سور شو [۳] غوا ورته اوويل زمونږ تخليق دى كار يعني سورلۍ دپاره نه دى شوى مونږخو دزراعت اوكاشتكارى كار دپاره پيدا شوى يو [۴] خلقو يعني دمجلس حاضرين دااوريدو سره داظهار تعجب په طور اوويل سبحان الله غوا هم خبري كوي حالانكه هغه بې زبانه څاروى دى [۵] په دي رسول كريم ﷺ وفرمايل زه په دي خبره ايمان راوړم اوابوبكر ﷺ اوعمر ﷺ هم ايمان راوړى اوحضرت ابوبكر ﷺ او حضرت عمر ﷺ هغه مجلس كښې موجود نه وو

**حل اللغات:-** ① يَسُوقُ: أَيْ يَدْفَعُهَا مِنْ وَرَائِهَا: شړله ئې. ② أَعْيَا: أَيْ تَعِبَ الرَّجُلُ: ستړي شو سړى. ③ لِحِرَاثَةِ: أَيْ إِثَارَتِهَا لِزِرَاعَتِهَا: د زميندارئ او كروندې دپاره. ④ أُومِنُ: ايمان راوړو. يقين لرو

[۱] وَقَالَ: (بَيْنَمَا رَجُلٌ فِي غَنَمٍ لَهُ إِذْ عَدَا الذِّئْبُ عَلَى شَاةٍ مِنْهَا، فَأَخَذَهَا، [۲] فَأَدْرَكَهَا صَاحِبُهَا، فَاسْتَنْقَذَهَا، [۳] فَقَالَ لَهُ الذِّئْبُ: فَمَنْ لَهَا يَوْمَ السَّبُعِ، يَوْمَ لَا رَاعِيَ لَهَا غَيْرِي؟ [۴] فَقَالَ النَّاسُ: سُبْحَانَ اللَّهِ ذِئْبٌ يَتَكَلَّمُ! . [۵] فَقَالَ أُومِنُ بِهِ أَنَا وَأَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ) وَمَا هُمَا ثَمَّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابوهريره ﷺ بيان وكى چې يو سړى دخپلو بزو درمي منځ كښې وو اچانك يوشرمخ راغى اودرمي نه يې يوه بزې (چيلۍ) وتښتوله [۲] دبزې (چيلۍ) مالك دشرمخ تعاقب كولو سره خپله بزې (چيلۍ) يې د هغه نه خلاصه كړله [۳] شرمخ هغه ته اوويل تاخو خپله بزه (چيلۍ) زما نه خلاصه كړه ليكن داراته اووئيلو چې د سبع په ورځ دبزو حفاظت كونكي به څوك وي زماڅخه علاوه [۴] خلقو داواقعه اوريدو سره اظهار تعجب وكى اوهغوى اوويل سبحان الله شرمخ اوخبري دي وكړي [۵] حضور ﷺ وفرمايل زه په دي ايمان راوړم اوابوبكر ﷺ اوعمر ﷺ هم ايمان راوړى حالانكه هغه وخت حضرت ابوبكر ﷺ اوحضرت عمر ﷺ كښې هيڅوك هم هلته موجود نه وو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ⑤ عَدَا الذِّئْبُ: أَيْ حَمَلَ ذِئْبٌ: شرمخ اوتختوله (دا دعدوان او تجاوزنه دې يعني ليوه په چيلوباندې حمله اوكړه). ⑥ فَاسْتَنْقَذَهَا: أَيْ اسْتَخْلَصَهَا: خلاصه ئې كړه چيلۍ (د شرمخ نه)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَإِنِّي أُومِنُ

**خپل يقين سره د شيخينو يقين يوځائې كول:** دا شرط په محذوف باندې متفرع دې كوم چه جزاء واقع دې يعنى كه خلق دَ غوا په خبروباندې تعجب اوكړى نوكوى دې. زه ابوبكر اوعمرفاروق په دې خبرو باندې ايمان لروچه دامعجزه ښكاره شوې ده حضورپاك خپل يقين سره دَ شيخينويقين يوځائى كړو دادَ دير قرب اودَ ايمانى قوت، دَ تسلئى اواعتماد طرف ته اشاره ده اوهم په دې كښې دَ شيخين فضيلت دې

**قوله: يَوْمَ السَّبْعِ:**

**د يوم السبع په مصداق كښې څلور اقوال دي:** ① په دې كلمه كښې په باء باندې پيش هم دې اوسكون هم كه چرې پيش وى نودغه ورځ نه دڅه داسې فتنې والا ورځ مراد ده په كوم كښې چه انسان دَ فتنو دوجې نه خپل مال حال پرېږدى اوتختى به اوتول خناور به دَ ليوه ګانو په رحم وكرم باندې پاتې شي

② دغې نه څه داسې ورځ مراد ده په كومه چه ټول خلق مړه شي او ځيلئي يوازې پاتې شي

③ بعضې ونيلى دى چه دَ "السبع" دَ اهل جاهليت دَ اخترونونه يوه دَ اختر ورځ وه په كوم كښې چه خلق اختر له وتلوسره خناور خالى پرېخودل. په دې صورت كښې دَ سبع په باء باندې سكون هم ونيلى شوې دې.

④ دَدې نه دَ قيامت ابتدائى احوال مراد دى دكوم دَ وجې نه په وېره كښې انسان اوحيوان يوځائى شي ﴿وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ﴾ كښې هم دې ته اشاره ده ملاعلى قارى رحمه الله دا توجيه كمزورې ګرځولې ده.

## [۶۰۵۷] دشيخينو نبى عليه السلام سره ملګرتيا

۶۰۵۷-() [۲] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: إِنِّي لَوَاقِفٌ فِي قَوْمٍ ② فَدَعَوُا اللَّهَ لِعُمَرَ وَقَدْ وُضِعَ عَلَى سَرِيرِهِ ③ إِذَا رَجُلٌ مِنْ خَلْفِي قَدْ وَضَعَ مِرْفَقَهُ عَلَى مَنْكِبِي ④ يَقُولُ: يَرْحَمُكَ اللَّهُ، إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ يَجْعَلَكَ اللَّهُ مَعَ صَاحِبَيْكَ، ⑤ لِأَنِّي كَثِيرًا مَا كُنْتُ أَسْمَعُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: («كُنْتُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، وَفَعَلْتُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، وَانْطَلَقْتُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، وَدَخَلْتُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، وَخَرَجْتُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ»). ⑥ فَالْتَفَتُّ فَإِذَا عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** ① اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه دوفات په ورځ هغه وخت زه هم دهغه خلقو منځ كښې ولاړ وم ② هركله چې دحضرت عمر رضي الله عنه جسد خاكي لمبولو دپاره تختـه مرګ باندې ايښودل شوي وو اوخلق يعنى دحضرت عمر رضي الله عنه نزدې ملګري اورشته دار ولاړوو اودهغه په حق كښې يې دعايي خير اومغفرت كول ③ په دې دوران كښې اچانك مامحسوسه كړه چې زما شاته ولاړ يوسړى خپله څنګل زما په اوږه ايښې ده ④ بيا هغه سړي حضرت عمر رضي الله عنه مخاطب كولو سره وئيل شروع كړل دالله تعالى رحمت دى په تاسو نازل شي بيشكه زه پوره اميد لرم چې الله تعالى به په قبر كښې ياجنت كښې تاسو د خپلو دواړو دوستانو يعنى حضور ﷺ اوحضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه سره يوځاي لري ⑤ څكه چې مابه درسول الله ﷺ دژبې مباركې نه اكثر دا الفاظ اوريدل چې زه

[1] اخرجه البخارى فى كتاب احاديث الأنبياء/باب حديث الغار(رقم -۳٤۷۷) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل عمر رضى الله تعالى عنه (رقم ١٤ - (۲۳۸۹)وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل ابى بكر الصديق رضى الله عنه (رقم ۹۸)

فلانی خاي وم اوابوبکر ﷛ اوعمر ﷛ هم ما سره وو ما امور عبادت یا معمولات ژوند کښې فلانی کار وکی اوابوبکر ﷛ اوعمر ﷛ هم زما شریک کار وو زه فلانی مقام ته لاړم اوابوبکر ﷛ اوعمر ﷛ هم ما سره وو زه فلانی مکان یافلانی خاي نه بهر راووتم اوابوبکر ﷛ اوعمر ﷛ هم ما سره وو [٦]ماچي وروسته تاویدو سره وکتل نودا الفاظ ویونکي علي بن ابي طالب ﷛ وو . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① مِرْفَقَهُ: څنګله څپله، ② فَالْتَفَتُّ: أَيْ: إِلَى وَرَائِي: شاته مې اوکتل

**تسهیلات:**

**قوله**: كُنْتُ وَأَبُوبَكْرٍ:

**نحوی اشکال:** په دې تولوجملوکښې دَاسم ظاهر په اسم ضمیر باندې عطف شوې دې حالانکه نحات ضمیر متصل باندې دَ اسم ظاهر عطف ته ضمیر منفصل دَ تاکیدنه بغیر جائز نه وائی بلکه دا ضعیف ګرځوی. او په اشعارکښې ګنجائش شته.

**د اشکال جواب:** علامه مالکی ﷫ فرمائی چه داسې عطف نظم اوشر دواړو صورتونوکښې دَ راجح قول مطابق جائز دې. (مرقات).

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٦٠٥٨] جنت کښې د شیخینو اعلی مقام

٦٠٥٨-()[٣][١]عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: («إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ لَيَتَرَاءَوْنَ فِي عِلِّيِّينَ، [٢]كَمَا تَرَوْنَ الْكَوْكَبَ الدُّرِّيَّ فِي أُفُقِ السَّمَاءِ، [٣]وَإِنَّ أَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ مِنْهُمْ وَأَنْعَمَا»). رَوَاهُ فِي (شَرْحِ السُّنَّةِ)، وَرَوَى نَحْوَهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:**[١] حضرت ابوسعید خدري ﷛ وايي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل جنتي خلق به علیین واله ډیري بلندي باندې داسې ويني [٢]څرنګه چې تاسو دآسمان په غاړه ډیر روښانه ستوري ويني [٣]اوابوبکر ﷛ اوعمر ﷛ په علیین والاؤ کښې دي بلکې دي دخپل اعزاز اورتبې داعتبار نه هغوی نه زیات دی داروایت بغوي خپل اسناد سره شرح السنه کښې نقل کړی دی اودغه شان روایت ابوداؤد ترمذي اوابن ماجه هم نقل کړی دی

**حل اللغات:-** ① لَيَتَرَاءَوْنَ: دا د رُؤْيَة نه دې دباب تفاعل نه، اصل کښې يَتَرَاءَيُوْنَ دې، أَيْ: يَرَي بَعْضُهُمْ بَعْضًا: بعضې خلق به بعضې خلق اوګوری ② عِلِّيِّيْنَ: د اووم آسمان څخه پورته د یو مقام نوم دې. ③ الدُّرِّيّ: أَيِ: الْمُضِيءُ: روښانه ځلیدونکی ستوری.

---

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الحروف والقراءات (رقم-٣٩٨٧) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب أبی بکر الصدیق رضی الله عنه واسمه عبد الله بن عثمان ولقبه عتیق (رقم-٣٦٥٨) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبی بکر الصدیق رضی الله عنه (رقم-٩٦)واحمد فی المسند: ٢٦/٣

**تسهيلات:**

**توله: وَأَنْعَمَا:**

**دانعماده مطلوبه:** ① يعنى په اعلى عليين كښې دواړه دَ ټولو نه مخكښې په اعلى مقام باندې فائزوى

② مطلب دادې چه دا دواړه به دَ جنت په نعمتونو كښې داخليږي. "اي دخلافى النعيم" لكه څنگه چه عرب وائى "اشأم اي دخل فى الشام".

**تسهيلات:**

**قوله: فِي عِلِّيِّينَ:**

**دعليين په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① يعنى هغه مقام او منزل كوم چه په ډيره انتهائى درجه باندې اوچت دې چرته چه دَ نيكانو بندگانو ارواح وى.

② يا عليين دَ يو دفتر نوم دې چرته چه دَ نيكانو خلقو اعمال رسولې شى

**په جنت كښې دشيخينو مقام:** نو عليين دَ جنت دَ درو څخه يوه داسې اوچته درجه ده لكه چه آسمان دَ زمكې نه اوچت دې او عليين والا به دَ نورو جنتيانو ته داسې ښكارى لكه چه دَ زمكې والو ته ستورى ښكارى او هغه جنت والا به خپل مينځ كښې يو بل ته ښائى چه اوگوره هغه ابوبكر او عمر رضي الله عنهما دى. چونكه ابوبكر او عمر رضي الله عنهما به دَ ټولو عليين والو نه افضل وى. كله چه دوى دَ جنت دَ ښكته درجو طرف ته اوگورى نو لاندې درجو كښې به داسې رڼا خوره شى لكه څنگه چه په زمكه باندې دَ څوارلسمې شپې دَ سپوږمئى نه خوريږى.

**[۶۰۵۹] د جنت د مشرانو سرداران**

۶۰۵۹-() [۳] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ سَيِّدَا كُهُولِ الْجَنَّةِ مِنَ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ [۳] إِلَّا النَّبِيِّينَ وَالْمُرْسَلِينَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت انس رضي الله عنه وايي رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] جنت كښې چې څومره هم پوخ عمر والا وي ښايي هغه مخكنو كښې وي ياوروستنو كښې دهغوى ټولو سرداربه ابوبكر رضي الله عنه اوعمر رضي الله عنه وي [۳] شواد نبيانو اورسولانو څخه. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① سَيِّدَا: د سيد تثنيه ده، سرداران. ② كُهُول: د كَهْل جمع ده، مَنْ جَاوَزَ الثَّلَاثِينَ: دَ ديرشو كالو دَ عمر نه چه كوم سړې واوړى هغه ته كهل وائى دَ زيات عمر خلق مراددى.

[۱] اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۶۶۴) واحمد فى المسند: ۲/ ۸۰

**تسهیلات:**

**قوله:** أَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ سَيِّدَا كُهُولِ الْجَنَّةِ،

**اشکال:** په جنت کښې خو به ټول خلق ځوانان وی نو دَ زیات عمر خوبه څوك نه وی نو دَهغوی دَ سردار کیدو څه مطلب دی؟

**داشکال جواب:** دَ زیات عمر والونه به هغه خلق مراد وی چه دَدې دنیانه په زیات عمر کښې رخصت شوی وی ابوبکر صدیق رضی الله عنه او حضرت عمر فاروق رضی الله عنه به دَدې ټولو سرداران وی دې نه معلومه شوه چه کوم خلق په ځوانئ کښې دَ دنیا نه رخصت شوی وی نو شیخین به په طریقه اولی دَ هغوی سرداران وی

**قوله:** مِنَ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ،

**د اولین اوآخرین مصداق:** دې نه دَ پخوانو امتونو دا قسم خلق مراد دی او "الاخرين" نه دَدې امت خلق مراد دی سوا دَ انبیاء کرامو نه که هغه دَ پخوانو امتونو انبیاء وی یا راتلونکی حضرت عیسی علیه السلام وی.

| ۶۰۶۰-() [۱] وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ-عَنْ عَلِيٍّ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] ابن ماجه دا روایت دحضرت علي رضی الله عنه نه نقل کړی دی.

**[۶۰۶۱] د شیخینو خلافت ته اشاره**

| ۶۰۶۱-() [د] [۱] وَعَنْ حُذَيْفَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «إِنِّي لَا أَدْرِي مَا بَقَائِي فِيكُمْ؟ [۳] فَاقْتَدُوا بِاللَّذَيْنِ مِنْ بَعْدِي أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] او حضرت حذیفه رضی الله عنه وایي رسول کریم ﷺ یوه ورځ وفرمایل [۲] ماته نه ده معلومه چي ستاسو منځ کښې زما ژوند اوس څومره باقي پاتې شوي دي اوس څه ورځي نوري ژوند مقدر دی یاوخت موعود نږدې راغلی دی نواګاه کول مناسب ګڼم [۳] چې تاسو خلق زما نه وروسته ددې دوو خلقو پیروي کوي چې یوبل نه وروسته به زما جانشین اوخلیفه وي او هغه ابوبکر رضی الله عنه اوعمر رضی الله عنه دي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① بَقَائِي: زما ژوندی پاتې کیدل ② فَاقْتَدُوا: تابعداری کوئ.

**نوټ:** د ګرانوټکوتشریح په حل اللغات کښې شوې ده اوباقی د حدیث مفهوم د حدیث د تشریحی ترجمې څخه واضح دي

[۱] اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبي بكر الصديق رضی الله عنه (رقم-۹۵)
[۲] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۶۳) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبي بكر الصديق رضی الله عنه (رقم-۹۷) واحمد فی المسند: ۳۸۲/۵

**[۶۰۶۲] د شیخینو نبی علیه السلام سره یو بل خصوصی ربط**

۶۰۶۲-( ) [۱] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ [۲] إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ لَمْ يَرْفَعْ أَحَدٌ رَأْسَهُ غَيْرُ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ، [۳] كَانَا يَتَبَسَّمَانِ إِلَيْهِ وَيَتَبَسَّمُ إِلَيْهِمَا، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس ﷛ بیان کوي [۲] رسول کریم ﷺ چې به مسجد کښې داخلیدی نو دادب نه به دټولو نظرونه خکته کیدل یاداچي دحضور ﷺ دهیبت نه چاخپل سرونه شو پورته کولای سوال دابوبکر ﷛ او عمر ﷛ نه [۳] صرف دادوه صحابه ﷛ وه چې مخ مبارك طرف ته دنظر پورته کولو تاب یې لرلو دادواړه به حضور ﷺ لیدو سره مسکي کیدل او حضور ﷺ به دهغوی لیدو سره مسکي کیدی داروایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یي دي چې داحدیث غریب دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَمْ يَرْفَعْ أَحَدٌ رَأْسَهُ غَيْرُ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ،

**دعاشق او معشوق یوه نظاره:** مطلب دا چه دَ رسول الله ﷺ دَ هیبت دَ وجې نه به صحابه کرامو ﷡ ادبًا خپل سرونه نه اوچتول خو شیخینوبه دَ کمال محبت او بې تکلفئ دَ وجې رسول کریم ﷺ طرف ته په کتل او مسکی کیدل به او حضورپاك به دَ محبت په اظهار کښې دَهغوی طرف ته کتل او مسکې کیدو.

**[۶۰۶۳] په میدان حشر کښې د شیخینو نبی علیه السلام یوځائې حشر**

۶۰۶۳-( ) [۲] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-[۲] «أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-خَرَجَ ذَاتَ يَوْمٍ وَدَخَلَ الْمَسْجِدَ [۳] وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، أَحَدُهُمَا عَنْ يَمِينِهِ، وَالْآخَرُ عَنْ شِمَالِهِ، وَهُوَ آخِذٌ بِأَيْدِيهِمَا، فَقَالَ (هَكَذَا نُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر ﷛ روایت کوي [۲] یوه ورځ نبی کریم ﷺ خپلي حجري شریفي نه راووتلو مسجد نبوي کښې داسې داخل شو [۳] چې ابوبکر ﷛ او عمر ﷛ کښې یوصاحب دحضور ﷺ ښي طرف ته وو او دویم صاحب یې چَپ طرف ته وو او حضور ﷺ ددواړو لاسونه خپلو لاسونو کښې نیولي [۴] وه هغه وخت حضور ﷺ وفرمایل دقیامت په ورځ به مونږ دغه شان پاځیږو یعني مونږ دري واړه به دخپلو قبرونو نه دغه شان یوځاي پاځیږو اولاس اچولي دحشر میدان ته به ورسیږو داروایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یي دي چې داحدیث غریب دی.

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۶۸)

[۲] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۶۹) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبی بکر الصدیق رضی الله عنه (رقم-۹۹)

**حل اللغات:** - ① هَكَذَا نُبْعَثُ: أَيْ: نُخْرَجُ مِنَ الْقُبُورِ: داسې به راپاڅيږو (يعني د قبرونو نه به راپاڅو).

**نوټ:** د ګرانو ټکو تشريح په حل اللغات کښې شوې ده او باقي د حديث مفهوم د حديث د تشريحي ترجمې څخه واضح دې.

**[٦٠٦٤] د شيخينو دوه خصوصيات**

٦٠٦٣ - () [٨] ① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْطَبٍ، ② «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَأَى أَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ ③ فَقَالَ: (هَذَانِ السَّمْعُ وَالْبَصَرُ)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ① او د حضرت عبد الله ابن حنطب تابعي روايت کښې دي ② چې يو ورځ نبي کريم ﷺ حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه ليدو سره و فرمايل ③ دا دواړه په منزله د غوږ او سترګې دي دا روايت ترمذي بطريق ارسال نقل کړی دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** هَذَانِ السَّمْعُ وَالْبَصَرُ:

**د هذان السمع والبصر جملې په تشريح کښې اقوال:** ① دا دواړه زما د پاره سترګې او غوږونه دی زه د دوی په ذريعه اورم او ګورم يعني دا زما مطيع او تابعدار وزير او مشير دی. دا مطلب زيات بهتر دې محاوره هم دغه شان ده.

② لکه څنګه چه د بدن په اندامونو کښې د ټولونه ښکلي اندام سترګه او غوږ دي دغه شان د دين اسلام د پاره حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما په منزله د سترګې او غوږ ښکلي او مفيد ثابتيږی لکه چه په دين کښې د هغوی حيثيت په بدن کښې د سترګې او غوږ په شان دي.

③ ابوبکر صديق او عمر فاروق رضي الله عنهما په کائنات کښې غور کولو سره حق اوری او حق نه ګوری

**[٦٠٦٥] د نبي عليه په زمکه کښې دوه وزيران**

٦٠٦٥ - () [٩] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «مَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا وَلَهُ وَزِيرَانِ مِنْ أَهْلِ السَّمَاءِ، ③ وَوَزِيرَانِ مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ، ④ فَأَمَّا وَزِيرَايَ مِنْ أَهْلِ السَّمَاءِ فَجِبْرِيلُ وَمِيكَائِيلُ، ⑤ وَأَمَّا وَزِيرَايَ مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ فَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ» ).. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

**ترجمه:** ① حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل هيڅ نبي داسې نه دی تير شوی چې د هغه دوه وزيران اسمان والا نه او دوه وزيران زمکې والا نه نه وي نو آسمان والا نه زما دوه وزيران خو جبرائيل عليه السلام او ميکائيل عليه السلام دي او زمکې والا نه

[1] اخرجه الترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٦٧١)

[2] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٦٨٠)

زما دوه وزيران ابوبكر ﷺ اوعمر ﷺ دي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ①وَزِيرَانِ: دا د وَزِيرٌ تشنيه ده، وزيرته وائى ددې معنى مُوَازِد ده يعنى بوج اوچتونكې، دې هم د بادشاه بوج اوچتوى څكه ورته وزير وائى.

**تسهيلات:**

**قوله**: وَزِيرَانِ مِنْ أَهْلِ السَّمَاءِ،

**د نبى عليه السلام آسمانى وزيران**: دَ آسمان والو نه مراد فرښتې دى. په دغه دوو فرښتو كښې يو جبرائيل عليه السلام او بل ميكائيل عليه السلام دى. دا دواړه دَهر نبى او رسول وزيران مقررېږى. دَدوى كار دَ عالم ملكوت نه دَ هغه نبى او رسول امداد كول وى

**قوله**: وَزِيرَايَ مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ.

**د نبى عليه السلام زمينى وزيران**: په دنياكښې دَ رسول ﷺ دوه وزيران حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه دى دَ دوى كار هم دَ خپل نبى او رسول امداد اونصرت كول دى.

**[٦٠٦٦] په خوب كښې د خلافت پورته كيدو اشاره**

٦٠٦٦ -() [١٠] ①وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ②«أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ③رَأَيْتُ كَأَنَّ مِيزَانًا نَزَلَ مِنَ السَّمَاءِ، فَوُزِنْتَ أَنْتَ وَأَبُو بَكْرٍ، فَرَجَحْتَ أَنْتَ، ③وَوُزِنَ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ فَرَجَحَ أَبُو بَكْرٍ، ④وَوُزِنَ عُمَرُ وَعُثْمَانُ، فَرَجَحَ عُمَرُ; ⑤ثُمَّ رُفِعَ الْمِيزَانُ، ⑥فَاسْتَاءَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَعْنِي فَسَاءَهُ ذَلِكَ. ⑦فَقَالَ: (خِلَافَةُ نُبُوَّةٍ، ثُمَّ يُؤْتِي اللَّهُ الْمُلْكَ مَنْ يَشَاءُ)» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.[1]

**ترجمه**: ① اوحضرت ابي بكره رضي الله عنه نه روايت دى درسول كريم ﷺ خدمت كښې حاضريدو سره يوسړي عرض وكى ② يارسول الله ماخوب ليدلى دى چې گويا يوترازو تله آسمان نه راكوزشوه اوهغه ترازو كښې تاسو ﷺ اوابوبكر رضي الله عنه اوتللي شوي نو ستاسو ﷺ وزن زيات شو ③ بيا ابوبكر رضي الله عنه اوعمر رضي الله عنه وتلل شول نودابوبكر رضي الله عنه وزن زيات شو ④ بيا عمر رضي الله عنه اوعثمان رضي الله عنه وتلل شول نودعمر رضي الله عنه وزن زيات شو ⑤ دې نه وروسته ترازو په بره يو وړل شو. ⑥ رسول كريم ﷺ دهغه سړي دي خوب سره غمجن شو يعنى هغه خوب حضور ﷺ غمجن كړو ⑦ بيا حضور ﷺ وفرمايل داخلافت نبوت دى دي نه وروسته چې الله تعالى څوک غواړي ملک به ورته وركوي (ترمذي وابوداؤد)

**حل اللغات:-** ①مِيزَانًا: تله، ②فَاسْتَاءَ: أَيْ لَحَزَنَ: غمجن شو نبى عليه السلام ③فَسَاءَهُ: أَيْ: فَأَحْزَنَ النَّبِيَّ: يعنى نبى عليه السلام ئې غمجن كړو

[1] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب السنة/باب فى الخلفاء (رقم-٤٦٣٤) والترمذى فى كتاب الرؤيا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى رؤيا النبى صلى الله عليه وسلم الميزان والدلو (رقم-٢٢٨٧) واحمد فى المسند:٥/٥٠

**تسهیلات:**

**قوله: فَاسْتَاءَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،**

**د نبی علیه السلام د خفگان وجه:** دَ خوب لیدونکی دَخوب نه دا معلومه شوه چه دَ خلافت علی منهاج النبوة دور دَ عمر فاروق رضی الله عنه په وفات او شهادت باندې ختم شی په دې باندې حضورپاك غمګین شو او په دې باندې هم غمګین شو چه دَعمرفاروق دَ شهادت نه پس به دَ فتنو دور شروع شی.

**دخلافت درې اصطلاحات:** دَ خلفاء راشدین دَ خلافت دَپاره شاه ولی الله رحمه الله دا اصطلاح استعمال کړې ده چه

① دَ حضورپاك زمانه ئې په عهد نبوت سره یاده کړې ده.

② دَ حضورپاك دَ وفات نه پس دَحضرت ابوبکرصدیق او حضرت عمر رضی الله عنهما دور ته ئې خلافت علی منهاج النبوة په طریقه خاص سره یاده کړې ده

③ دَحضرت عثمان اوحضرت علی رضی الله عنهما خلافت ئې خلافت علی منهاج النبوة په طریق عام سره یاد کړې دې

④ دې نه پس "ملك عضوض" په نوم سره یاکړې دې. دَدې ملك عضوض نه دَحضرت معاویه رضی الله عنه خلافت اوبیا دَ عمر بن عبدالعزیز رحمه الله خلافت مستثنی ګرخولې دې.

**په حدیث الباب کښې اشاره:** په دې حدیث کښې دَ خلافت الفاظو سره دَ حضرت صدیق اکبر او عمرفاروق رضی الله عنهما خلافت علی منهاج النبوة طرف ته اشاره ده.

**[۶۰۶۷] د شیخینو د اهل جنت څخه کیدو بشارت**

۶۰۶۷-( )[۴] [۱] عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: [۲] «(يَطَّلِعُ عَلَيْكُمْ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ)، [۳] فَاطَّلَعَ أَبُو بَكْرٍ، [۴] ثُمَّ قَالَ: (يَطَّلِعُ عَلَيْكُمْ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ)، فَاطَّلَعَ عُمَرُ» [۵] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی نبی کریم صلی الله علیه وسلم یوه ورځ وفرمایل [۲] ګوري اوس به ستاسو مخکې یوجنتی سړی راشي [۳] نو ابوبکر رضی الله عنه راغی [۴] بیا وفرمایل اوس به ستاسو مخې ته یو جنتی سړی راشي نوبیا حضرت عمر رضی الله عنه راغی [۵] دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات:** - ① يَطَّلِعُ: أَيْ يُشْرِفُ: رابنکاره به شی، رابه شی.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۶۹۴)

**تسهيلات:**

**قوله:** يَطَّلِعُ عَلَيْكُمْ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ..الخ:

**په حديث الباب كښې د شيخينود خصوصيت وجه:** دَجنت بشارت په مختلفو احاديثوكښې دَ ډيرو صحابه كرامو دَپاره راغلې دي په دې حديث كښې چونكه دا زيرې دَ حضرت ابوبكر ﷛ او حضرت عمر ﷛ دَ پاره په يو ځائې ذكردې په دې وجه دا حديث دلته نقل كړې شو.

**[۶۰۶۸] دابوبكر ﷺ او عمر ﷺ د نيكو موازنه**

| ۶۰۶۸-( ) [۳] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: «بَيْنَا رَأْسُ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي حِجْرِي فِي لَيْلَةٍ ضَاحِيَةٍ [۲] إِذْ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَلْ يَكُونُ لِأَحَدٍ مِنَ الْحَسَنَاتِ عَدَدُ نُجُومِ السَّمَاءِ؟ قَالَ: (نَعَمْ، عُمَرُ). [۳] قُلْتُ: فَأَيْنَ حَسَنَاتُ أَبِي بَكْرٍ؟ قَالَ: (إِنَّمَا جَمِيعُ حَسَنَاتِ عُمَرَ كَحَسَنَةٍ وَاحِدَةٍ مِنْ حَسَنَاتِ أَبِي بَكْرٍ)» رَوَاهُ رَزِينٌ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] او ام المؤمنين بي بي عائشه ﷺ بيان كوي دسپوږمى يوه شپه كښې چې دحضور ﷺ سرمبارك زما په غيږ كښې وو [۲] ماعرض وكي يارسول الله اي دچا دونه نيكي هم شته څومره چې دآسمان ستوري دي حضور ﷺ وفرمايل هو هغه عمر ﷺ دى چې دهغه نيكى دآسمان دستورو برابردى [۳] بياماعرض وكى اودابوبكر ﷺ دنيكيو څه حال دى حضور ﷺ وفرمايل دعمر ﷺ ټولي نيكي دابوبكر ﷺ دنيكيوڅخه ديوي نيكى برابر دي [۱](رزين)

**حل اللغات:-** ① حِجْرِي: حجر غيږ ته وائي ② ضَاحِيَةٍ: أَيْ: مُقْمِرَةٌ: د سپوږمئ والا شپه، روښانه شپه. ③ حَسَنَاتِ: دحسنة جمع ده، نيكئ، نيک اعمال.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَحَسَنَةٍ وَاحِدَةٍ

**دحسنة واحدة مصداق:** دَ حضرت عمر ﷛ دَ ټول ژوند نيكئى دَ حضرت ابو بكر ﷛ دَ يوې نيكې برابر اوګرځولې شوې ددې يوې نيكى څخه د غار ثور د شپې نيكى مراد ده په دې سره دَ حضرت ابوبكر ﷛ فضيلت ښكاره كړې شو

---

[۱] رواه رزين

# [۱۶] باب مناقب عثمان ﷜

## د حضرت عثمان ﷜ د مناقبو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة عشر حديثاً مشتملة على تسع مناقبات:**

① ذكر زيادة عثمان رضي الله عنه حياءً: ۱.

② كون عثمان رضي الله عنه رفيق النبي صلى الله عليه وسلم في الجنة: ۲.

③ المغفرة لعثمان رضي الله عنه بعد الصدقات الكثيرة: ۳، ۴.

④ وضع النبي صلى الله عليه وسلم يده اليمنى على يده اليسرى عثمان رضي الله عنه في بيعة الرضوان: ۵، ۱۱.

⑤ زيادة إنفاق عثمان رضي الله عنه في سبيل الله تعالى: ۳، ۴، ۶.

⑥ البشارة من النبي صلى الله عليه وسلم بشهادة عثمان رضي الله عنه: ۶.

⑦ كون عثمان رضي الله عنه على هدى: ۷، ۱۳.

⑧ وصية النبي صلى الله عليه وسلم لعثمان رضي الله عنه في شأن الخلافة: ۸، ۱۰، ۱۲.

⑨ كون عثمان رضي الله عنه مقتولاً ظلماً: ۹.

**دعثمان رضی الله عنه نوم اونسب:** دَهغوی نوم عثمان دې اودَ پلارنوم ئی عفان دې لقب ئی ذوالنورین دې. پنځمه پیړۍ کښې حضورپاك سره نسب ملاویږي. هغوی دَ نبی کریم ﷺ نیزدې خپلوان وو.

**د عثمان رضی الله عنه مختصر تعارف:**

دَهغوی پیدائش دَ واقعهٔ فیل نه شپږ کاله روستوشوي. دَصدیق اکبر ﷜ په محنت سره مسلمان شوي. دَهغوی قد درمیانه وو اورنګ ئی سپین زیړته مائل وو. په مخ مبارك باندې دَ دانو یرخو نښې وې. دَهغوی ﷜ سینه کولاؤ او ږیره مبارکه ئی ګنړه وه. دَ اسلام نه اول هم هغوی په قریشو کښې ډیر معززګڼړلې شو. په حیاء کښې هغه خپل مثال پخپله وو په سخاوت کښې هغوی ضرب المثل وو. دَ نبی کریم ﷺ دوه لونړه مبارکې حضرت رقیه ﷞ او حضرت ام کلثوم ﷞ یوبل پسې دَهغوی په نکاح کښې راغلې. دَ حضرت عمرفاروق ﷜ نه پس هغوی دَخلافت دَپاره خوښ کړې شو اودولس ورځې کم دولس کاله دَ خلافت منصب ته ښکلاورکولو نه پس ۱۸ ذوالحجه ۳۵ هجری کښې په ډیر مظلومیت سره دَ باغیانو په لاس شهید شو. اودَمدینې منورې په مشهور قبرستان جنت البقیع کښې دفن شو. دَهغوی قبرمبارك بالکل واضحه ښکاري. هریوزائردَې زیارت کولې شي.

دَاسلام دَقبلولونه وړاندې ئی کله هم شرابو ته لاس نه دې لګولې. نه ئی چرته زنا کړې او نه ئی چرته بت ته مخامخ سجده کړې. دَ حیا غلبه وه دَ غسل دَپاره به ئی چه کپړې ویستلې نو کمره به ئی بنده کړه غسل خانه کښې به ئی په ناسته غسل کولو دَ اوډریدو جرات ئی نه شو کولې. دَ اسلام په بیعت کښې چه کله حضورپاک سره لاس اولګیدلو نو تر مرګه پورې ئی هغه لاس شرم ګاه سره نه دې لګولې. په ټولو غزواتو کښې حضورپاک سره شریك پاتې دې. په جنګ بدر کښې دَحضورپاك په حکم باندې شاته پاتې شو مګر بدری شمیر شو. په اسلام باندې خپل ذاتی ډیر بې حسابه مال بې دریغ خرچ کړو. دَ مسجدنبوی توسیع اودَ بئررومه اخستل اودَ جیش عسره په تیارئی کښې خپل ډیر زیات مال دَالله تعالی په رضا کښې لټاؤ کړو. دَ فاروق اعظم نه پس ئی دین اسلام راټینګ کړو اودَ فارس اطراف اودَ افریقې په حدودکښې ډیر غزوات اوکړه اوډیرې زیاتې علاقې دَاسلام دَ جهنډې لاندې راغلې. شاه ایران یزګرد دَهغوی په زمانه کښې اووژلې شو. دَهغوی شمیر په عشره مبشره کښې کیږی. دَهغوی خلافت دَ شروع شپږ کاله ډیر په سکون سره روان پاتې شو بیا عبدالله بن سبا یهودی په منافقانه پروپیګنډوکښې دَ مصر خلق راغلل اودَ بلواګانو یوه ډله مدینې منورې ته راغله. ځلوېښت ورځې ئی دَ هغوی دَ کورنه ګیره واچوله اوبیا ۱۸ذوالحجه ۳۵هجری هغوی په خپل کورکښې ۸۸کالو په عمرکښې دَ ستړ دَ طرف نه ذبح کړو. دکوم په وجه چه دَالله تعالی دَ غضب توره دَتیکی نه بهرشوه چه تراوسه پورې په امت باندې چلیږی

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۶۰۶۹]دعثمان رضی الله عنه څخه دفرشتو حیا کول

۶۰۶۹-(۱)[۱] ۱ عَنْ عَائِشَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا-قَالَتْ: ۲ «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-مُضْطَجِعًا فِي بَيْتِهِ، كَاشِفًا عَنْ فَخِذَيْهِ-أَوْسَاقَيْهِ- ۳ فَاسْتَأْذَنَ أَبُو بَكْرٍ، فَأَذِنَ لَهُ وَهُوَ عَلَى تِلْكَ الْحَالِ، فَتَحَدَّثَ، ۴ ثُمَّ اسْتَأْذَنَ عُمَرُ، فَأَذِنَ لَهُ وَهُوَ كَذٰلِكَ، فَتَحَدَّثَ، ۵ ثُمَّ اسْتَأْذَنَ عُثْمَانُ فَجَلَسَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-وَسَوَّى ثِيَابَهُ، فَلَمَّا خَرَجَ

**ترجمه**: ۱ ام المؤمنین بي بي عائشه رضی الله عنها بیان کوي ۲ یوه ورځ رسول کریم ﷺ خپل کور کي خپل ورون یاپنډ ي خلاصي پروت وو ۳ چي حضرت ابوبکر رضی الله عنه دحاضریدو اجازت وغوښتي حضور ﷺ هغه دننه راوغوښتي اوهغه حالت کښې پروت وو حضرت ابوبکر رضی الله عنه څه وقته پورې ناست وو خبري یي کولي ۴ بیا حضرت عمر رضی الله عنه دحاضریدو اجازت وغوښتي حضور ﷺ هغه دننه راوبللي اوهغه شان پروت وو حضرت عمر رضی الله عنه څه وقته

[1] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم /باب من فضائل عثمان بن عفان رضی الله عنه (رقم-۲۷ (۲٤۰۲) واحمد فی المسند:۷۱/۱

پورې ناست حضور ﷺ سره يې خبرې کولې ⑤بيا حضرت عثمان رضي الله عنه دحاضريدو اجازت وغوښتي اواجازت حاصليدو باندې دننه داخل شو نورسول کريم ﷺ راپورته کيدو سره کيناستلو اوخپلې کپړې يې درستې کړلې يعنې ورنونه اوپنډۍ يې پټې کړلې کوم وخت چې حضرت عثمان رضي الله عنه اوخدمت اقدس کښې ناست خلق لاړل

**حل اللغات:** - ①مُضْطَجِعًا: ملاست وو، ②كَاشِفًا: ښکاره، ③فَخِذَيْهِ: د فخذ تثنيه ده، دواړه ورونونه ،پتونان، ،دواړه پتونان ښکاره کيدل د بې پرواه کيناستوطرف ته اشاره ده، ④سَاقَيْهِ: دا د ساق تثنيه ده، دواړه پنډې ⑤سَوَّى: برابرې يعنې سمې نې کړې،

> ۱ قَالَتْ عَائِشَةُ: دَخَلَ أَبُو بَكْرٍ فَلَمْ تَهْتَشَّ لَهُ وَلَمْ تُبَالِهِ، ۲ ثُمَّ دَخَلَ عُمَرُ فَلَمْ تَهْتَشَّ لَهُ وَلَمْ تُبَالِهِ، ۳ ثُمَّ دَخَلَ عُثْمَانُ فَجَلَسْتَ وَسَوَّيْتَ ثِيَابَكَ ۴ فَقَالَ: (أَلَا أَسْتَحْيِي مِنْ رَجُلٍ تَسْتَحْيِي مِنْهُ الْمَلَائِكَةُ؟). ۵ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: (إِنَّ عُثْمَانَ رَجُلٌ حَيِيٌّ، وَإِنِّي خَشِيتُ إِنْ أَذِنْتُ لَهُ عَلَى تِلْكَ الْحَالَةِ أَنْ لَا يَبْلُغَ إِلَيَّ فِي حَاجَتِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ نوبي بي عائشې رضي الله عنها عرض وکړ يارسول الله ﷺ حضرت ابوبکر رضي الله عنه دننه راغى نو تاسو نه څه حرکت وکړ اونه مو هغوى پروا وکړه بلکې هغه شان پراته وې اوخپلې کپړې موهم درستې نه کړلې ۲ دغه شان حضرت عمر رضي الله عنه دننه راغى نو تاسو هغه وخت هم نه حرکت وکړ اونه مو دهغه پروا وکړه ۳ خوڅه وخت چې حضرت عثمان رضي الله عنه دننه داخل شو نو تاسو فوراً پورته کيدو سره کيناستئ اوخپلې کپړې مودرستې کړلې ۴ حضور ﷺ وفرمايل اياز ده هغه سړي نه حيا ونه کړم چې دهغه نه فرښتې هم حيا کوي ۵ ويو روايت کښې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمايل حقيقت دادې چې عثمان رضي الله عنه ډير حيا دار سړى دى ما محسوسه کړه چې زه عثمان رضي الله عنه دې حالت کښې راوبلم چې زما ورنونه ياپنډې خلاصې وې اوهغه به زما نه خپل مقصود پوره نه کړي يعنې که هغه مادې حالت کښې ووينې نودغلبه ادب شرم وحيا نه به ما سره نه کينى اوکوم مقصد دپاره چې دلته راغلې دې دهغه پوره کولونه بغيربه واپس لاړ شي ،مسلم،

**حل اللغات:** - ⑥فَلَمْ تَهْتَشَّ: أَيْ: لَمْ تَتَحَرَّكْ: هيڅ حرکت دې اونه کړو. اونه خوزيدې. ⑦حَيِيٌّ: په وزن د فعيل .أى كثير الحياء: ډير حيادار. ⑧خَشِيتُ: زه اوبريدم ،يعنى ما محسوسه کړه،

**تسهيلات:**

**قوله:** كَاشِفًا عَنْ فَخِذَيْهِ:

**د كاشفا عن فخذيه مطلب:** ددې مطلب دانه دې چه حضورپاك پنډنې بالکل ښکاره وې حضورپاك خو پخپله پنډوته عورت ونيلوسره د پټولو حکم ورکړې دې

**قوله:** تَسْتَحْيِي مِنْهُ الْمَلَائِكَةُ:

**د فرشتو دحياء واقعه:** وانى چه يوځل په مدينه منوره کښې د يوې قضيه په موقع باندې دحضرت عثمان رضي الله عنه سينه مبارکه ښکاره شوه نو فرښتې شاته شوې حضورپاك حضرت

عثمان رضی الله عنه ته د سینې پټولو حکم ورکړو نوفرښتې واپس راغلې. د حضورپاك په تپوس باندې فرښتو اووئیل چه د دوی د سینې ښکاره کیدو د وجې نه د دوی نه د حیاء کولو د پاره مونږ اخوا شو. د حضورپاك د اهتمام یوه وجه خو هم دغه د حضرت عثمان رضی الله عنه حیاء وه

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٦٠٧٠] د عثمان رضی الله عنه نبی علیه السلام سره جنت کښې خاص رفاقت

٦٠٧٠ -() [٢] ①عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«لِكُلِّ نَبِيٍّ رَفِيقٌ، ③وَرَفِيقِي - يَعْنِي فِي الْجَنَّةِ - عُثْمَانُ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت طلحه ابن عبید الله رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د هر نبي یو رفیق یعنی مهربان ملګري او دوست وي ③ او زما رفیق (یعنی په جنت کښې) عثمان رضی الله عنه دی دا روایت ترمذي نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ① رَفِيقٌ: أَيْ: خَاصٌّ: خاص ملګری.

**تسهیلات: قوله:** وَرَفِيقِي - يَعْنِي فِي الْجَنَّةِ - عُثْمَانُ،

**د رفاقت خصوصي امتیاز:** حضرت عثمان رضی الله عنه که د حضورپاك په رفاقت کښې په جنت کښې وی نو دا د هغوی ډیر لوئی ذاتی اعزاز دی د دې مطلب دانه دې چه د حضورپاك به بل څوك رفیق نه وی. دا اعزازات، نوازشات او د تمغو جدا جدا تقسیم دې یوه تمغه د بلې تمغې منافی نه ده.

٦٠٧١ - (١) ①وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ، وَهُوَ مُنْقَطِعٌ.

**ترجمه:** ① او ابن ماجه هم دا روایت د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه نقل کړی دی او ترمذي وایي دي چې دا حدیث غریب دی او د دې اسناد قوي نه دی او دا منقطع دی

### [٦٠٧٢] په غزوه تبوك - کښې د عثمان رضی الله عنه مالی قربانی

٦٠٧٢ -(٢) ①وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ خَبَّابٍ، قَالَ: ②«شَهِدْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ يَحُثُّ عَلَى جَيْشِ الْعُسْرَةِ، ③فَقَامَ عُثْمَانُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، عَلَيَّ مِائَةُ بَعِيرٍ بِأَحْلَاسِهَا وَأَقْتَابِهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ، ④ثُمَّ حَضَّ عَلَى الْجَيْشِ، فَقَامَ عُثْمَانُ، قَالَ: عَلَيَّ مِائَتَا بَعِيرٍ بِأَحْلَاسِهَا وَأَقْتَابِهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ، ⑤ثُمَّ حَضَّ، فَقَامَ عُثْمَانُ، فَقَالَ: عَلَيَّ ثَلَاثُمِائَةِ بَعِيرٍ بِأَحْلَاسِهَا وَأَقْتَابِهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ،

---

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فضل أبی بن کعب رضی الله عنه (رقم-٣٨٩٨) واحمد فی المسند: ١/٧٤

[٢] اخرجه ابن ماجه فی السنن کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبی بکر الصدیق رضی الله عنه (رقم-١٠٩)

[٣] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٣٧٠٠) واحمد فی المسند: ٤/٧٥.

**ترجمه:** ① او حضرت عبدالرحمن ابن خباب ﷺ بیان کوي ② هغه وخت زه هم د نبي کریم ﷺ مجلس مبارك کښې حاضر وم کوم وخت چې حضور ﷺ د جیش العسرة (یعنی د سختۍ جنګ مراد ترې د تبوک غزا ده، د مالي امداد دپاره خلقوته جوش (ترغیب) ورکوي ③ حضرت عثمان ﷺ د حضور ﷺ د جوش نه ډک تقریر اوریدو سره اودریدلو او عرض یې وکړی یارسول الله د الله تعالی په لار کښې په کار راتلو دپاره سل اوښان سره د هغوی د جهولونو او پالانونو زه په خپله ذمه اخلم یعنی دي جنګ دپاره زه د الله په لارکي سل اوښان مع سازو سامان پیش کوم ④ دي نه وروسته هغه مجلس کښې یا په څه بله موقع حضور ﷺ بیا خلق هغه جنګ دپاره د امداد او معاونت طرف ته متوجه او راغب کړل نو حضرت عثمان ﷺ اودریدلو او عرض یې وکړ چې د مخکنو سل اوښانو نه علاوه مزید دوه شوه اوښان مع د هغوی د جهولونو او پالانونو یعنی پوره ساز وسامان سره د الله په لار کښې په خپله ذمه اخلم ⑤ بیا دریمه موقع هم داسې وه چې نبی ﷺ خلقو ته ترغیب ورک وه نو بیا حضرت عثمان ﷺ اودریدلو او عرض یې وکړ چې دري شوه اوښانو سره د هغوی د جهولونو او پالانونو یعنی پوره پوره سامان سره د الله په لار کښې پخپله ذمه اخلم

**حل اللغات:**- ① یَحُثُّ: أي: یُحَرِّضُ: راپارول ني، جوش او ترغیب ني ورکولو ② جَیْشِ الْعُسْرَةِ: جیش لښکرته وائي او العسرة د تنګۍ په معنی کښې دې، ③ بَعِیر: اوښ ④ أَحْلاسِهَا: أي: مَعَ جِلاَفِ: د حلس جمع ده د اوښ د دولئی او کجاوې لاندې چه کوم څادر وی هغه مراد دي کوم ته چه جهول وائی ⑤ أَقْتَابِهَا: أي: رِحَالِهَا: د قتب جمع ده کجاوې ته وائی اوښ سره د سازوسامان مراد دي ⑥ حَضَّ: أي: حَثَّ وَحَرَّضَ: دجوش پیدا کولو دپاره ني ترغیب ورکړو.

> ① فَأَنَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَنْزِلُ عَنِ الْمِنْبَرِ ② وَهُوَ يَقُولُ: «مَا عَلَى عُثْمَانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ هَذِهِ، مَا عَلَى عُثْمَانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ هَذِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① عبدالرحمن ابن خباب ﷺ وایي چې ما ادالیدل چې رسول کریم ﷺ منبر نه خکته شو ② او فرمایل یې چې د دې عمل نه وروسته اوس عثمان ﷺ څه چې کوي د هغه نه به ورته هیڅ نقصان نه وي دوه څله یې داوفرمایل (ترمذي)

**تسهیلات: قوله:** وَهُوَ يَحُثُّ عَلَى جَيْشِ الْعُسْرَةِ،

**د جیش العسره مصداق او وجه تسمیه:** دې نه غزوه تبوك مراد ده چه د یوې میاشتې په مسافت باندې وه د سختې ګرمئ موسم وو د لرې سفر وو په مدینه کښې د میوو اوفصلونو د پرې کولو زمانه وه او عام اعلان هم شوې وو د یرش زره لښکر وو د سورلو مسئله وه د خپلو مسئله وه د خوراکي څیزونو مسئله وه بل طرف ته دري لاکهو رومیانو سره مقابله وه په دې وجه حضورپاك په ډیر اهتمام سره د چنده بار بار اپیل اوکړو او حضرت عثمان ﷺ اعزاز حاصل کړو

**قوله:** قَالَ: عَلَيَّ مِائَتَا بَعِيرٍ بِأَحْلَاسِهَا وَأَقْتَابِهَا فِي سَبِيلِ اللهِ،
دائي دَ نذر دَپاره استعمال كړو چه په مابانديې نذر دې چه دومره به وركوم. ابوعمرو رضی الله عنه اوفرمائيل چه حضرت عثمان رضی الله عنه په دې غزوه كښې ۹۵۰ اوښان وركړه او ۵۰ اسونه ئې وركړه دې دَپاره چه زر پوره شي.
**قوله:** مَا عَلَى عُثْمَانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ هَذِهِ،
**د غزوه تبوک د مالي قرباني انعام:** داد دربار نبوي نه حضرت عثمان رضی الله عنه ته اعزازي تمغه ملاؤ شوه چه كه دَ نن نه پس حضرت عثمان رضی الله عنه څه عمل هم اونه كړي نوده ته به هيڅ نقصان نه وي يعني دَ حضرت عثمان رضی الله عنه مخكيني او روستوني ټولې خطاګانې معاف دي. دَدې نه دَحضرت عثمان رضی الله عنه دَحسن خاتمه اوجنتي كيدو بشارت دې.
**دعمل نه كولو څخه مراد:** علماؤ ليكلي دي چه دې اعمالو نه نفلي اعمال مراد دي چه دَ فرائضو نه علاوه كه حضرت عثمان رضی الله عنه ترمرګه پورې څه نفلي نيكي اونه كړي نو څه پرواه نشته دا نيكي دَ ټولو نوافلو په ځائي ده. صحابه كرام دَدې اعزازاتو نه پس په اعمالو كښې كمزورې شوي نه وو بلكه دَهغوي اعمال به نور هم تيزيدل. دې حديث ته په كتلوسره دَ هغه خلقو سترګې كولاويدل پكاردي چه په حضرت عثمان رضی الله عنه باندې قسم قسم اعتراضات كوي حالانكه دَحضرت عثمان رضی الله عنه غلطياني دَ مخكښې نه ختمې كړې شوې دي.

**[۶۰۷۳] په جيش العسرة كښې د عثمان رضى الله عنه كارنامه**

۶۰۷۳-()[۳] [۱] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: [۲] «جَاءَ عُثْمَانُ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِأَلْفِ دِينَارٍ فِي كُمِّهِ حِينَ جَهَّزَ جَيْشَ الْعُسْرَةِ، فَنَثَرَهَا فِي حِجْرِهِ، [۳] فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُقَلِّبُهَا فِي حِجْرِهِ [۴] وَيَقُولُ: (مَا ضَرَّ عُثْمَانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ الْيَوْمِ) مَرَّتَيْنِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت عبدالرحمن ابن سمره رضی الله عنه وايي [۲] هغه وخت چې جيش عسره يعني دتبوک دلښکر دجهاد سامان تيار اوجمع كيدي حضرت عثمان رضی الله عنه يوهزار دينار دخپل قميص په لستوڼي كښې نبي كريم صلی الله علیه وسلم ته راوړل اودحضور صلی الله علیه وسلم په غيږ كښې يي كيښودل [۳] ماوليدل چې نبي كريم صلی الله علیه وسلم هغه دينارونه خپلې غيږې كښې اړولو رااړولو سره كتل [۴] وفرمايل يي دنن ورځ دې مالي ايثار نه وروسته كه عثمان رضی الله عنه نه څه ګناه سرزدهم شي نوهغه ته به څه نقصان نه وي دا الفاظ حضور صلی الله علیه وسلم دوه خله ارشاد وفرمايل (احمد)

**حل اللغات:-** ① كُمِّهِ: كُم لستوڼي ته وائي. ② جَهَّزَ: أَيْ: رَتَّبَ: چه سامان تياريدلو او جمع كيدلو. ③ فَنَثَرَهَا: أَيْ: كَبَّهَا: راخورې ئې كړې، راوائې ړولې، ④ يُقَلِّبُهَا: اړول راړول ئې دنانير. ⑤ مَا ضَرَّ: أي لَمْ يَضُرَّ: هيڅ ضرر او نقصان نه رسوي.

[۱] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۷۰۱) واحمد في المسند:۵/۶۳

**تسهیلات:**

**قوله:** بِأَلْفِ دِينَارٍ فِي كُمِّهِ

**په حدیثینو کښې تعارض:** ماقبل روایت کښې دَ شپږو سوو اوښانو ذکر دې او دلته دَ یو زردینار ورکولو ذکر دې په دې کښې تعارض دې

**د تعارض جواب:** دې کښې تعارض نشته خکه چه کیدې شی چه حضرت عثمان رضی الله عنه اول اوښان په خدمت کښې وړاندې کړې وی اوبیا روستو ئی دینار هم پیش کړې وی. په دې حدیث کښې هم هغه زیرې ورکړې شوې دې کوم چه په ماقبل حدیث کښې اوروله شوې وو.

**[٦٠٧٤] د رسول الله لاس د عثمان رضی الله عنه د لاس په ځائې**

٦٠٧٤-( )[٥] [١]وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «لَمَّا أُمِرَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِبَيْعَةِ الرِّضْوَانِ [٢]كَانَ عُثْمَانُ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - رَسُولَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَى مَكَّةَ، [٣]فَبَايَعَ النَّاسُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِنَّ عُثْمَانَ فِي حَاجَةِ اللَّهِ وَحَاجَةِ رَسُولِهِ) [٤]فَضَرَبَ بِإِحْدَى يَدَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى، [٥]فَكَانَتْ يَدُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِعُثْمَانَ خَيْرًا مِنْ أَيْدِيهِمْ لِأَنْفُسِهِمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت انس رضی الله عنه وایي کوم وخت چې رسول الله ﷺ صحابه رضی الله عنهم ته دبیعة الرضوان حکم ورکړو [٢]نوهغه وخت حضرت عثمان درسول الله ﷺ دخصوصي نماینده په حیثیت سره مکي ته تلی وو [٣]حضور ﷺ دخلقو نه دجان نثاري بیعت اخستلي اوهرکله چې ټولو مسلمانانو بیعت وکی اوحضرت عثمان رضی الله عنه هلته موجود نه وو نورسول کریم ﷺ وفرمایل عثمان رضی الله عنه دالله ددین اوداالله درسول په کار باندې تلی دی [٤]اودې ویلو سره خپل یولاس یې بل لاس باندې ووهي [٥]نودرسول کریم ﷺ هغه لاس چې دحضرت عثمان رضی الله عنه دطرف نه وو دباقي ټولو صحابه رضی الله عنهم دلاسونو نه زیات بهتر اوافضل وو کوم چې دهغوی دخپل طرف نه وو (ترمذي)

**حل اللغات:** - ①بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ: په صلح حدیبیه کښې چه د ووني لاندې کوم بیعت شوې ووهغې ته بیعت رضوان وائی. ددوی په باره کښې لقد رضی الله آیت نازل شوې په دې و جه ورته بیعت رضوان وائی

**تسهیلات:**

**قوله:** لَمَّا أُمِرَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِبَيْعَةِ الرِّضْوَانِ...الخ:

**د بیعت رضوان پس منظر:** په صلح حدیبیه کښې حضورپاك حضرت عثمان رضی الله عنه دَ سفیرپه توګه قریشو له لیګلي وو قریشو هغه دَ څه وخت دپاره ګیرکړو اوبل طرف ته مشهوره کړې شوه چه حضرت عثمان رضی الله عنه شهید کړې شو دَهغه دَ بدله دپاره حضورپاك دکیکر دَ یوی

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم-٣٧٠٢)

ونې لاندې د يونيم زر صحابه کرامو نه بيعت واخستو حضرت عثمان رضي الله عنه چونکه نه وو په دې وجه حضورپاك د هغه د پاره هم بيعت واخستو مګر خپل يو لاس ئې د حضرت عثمان رضي الله عنه لاس اوګرځولو او بيعت ئې واخستو حضورپاك د حضرت عثمان رضي الله عنه د پاره دا بيعت خکه واخستو چه د هغه ډير لوئې فضيلت راتلونکې وو حضورپاك په دې احتمال باندې بيعت واخستو چه که هغه ژوندې وی نوچه هغه هم په دې بيعت کښې شريك شي او د بيعت رضوان فضيلت ورته حاصل شي چنانچه هم دغه شان اوشو يو صحابي فرمائي چه مونږ د حضورپاك په لاس باندې د مرګ بيعت کړې وو

**[٦٠٧٥]د عثمان رضی الله عنه باغيا نوته جرآت مندانه خطاب**

٦٠٧٥ - ( )[٦] ١ وَعَنْ ثُمَامَةَ بْنِ حَزْنٍ الْقُشَيْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: شَهِدْتُ الدَّارَ ٢ حِينَ أَشْرَفَ عَلَيْهِمْ عُثْمَانُ فَقَالَ: أَنْشُدُكُمُ اللَّهَ وَالْإِسْلَامَ ٣ هَلْ تَعْلَمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَدِمَ الْمَدِينَةَ وَلَيْسَ بِهَا مَاءٌ يُسْتَعْذَبُ غَيْرُ بِئْرِ رُومَةَ؟ ٤ فَقَالَ: ((«مَنْ يَشْتَرِي بِئْرَ رُومَةَ يَجْعَلُ دَلْوَهُ مَعَ دِلَاءِ الْمُسْلِمِينَ بِخَيْرٍ لَهُ مِنْهَا فِي الْجَنَّةِ؟» )) ٥ فَاشْتَرَيْتُهَا مِنْ صُلْبِ مَالِي، وَأَنْتُمُ الْيَوْمَ تَمْنَعُونَنِي أَنْ أَشْرَبَ مِنْهَا حَتَّى أَشْرَبَ مِنْ مَاءِ الْبَحْرِ؟ ٦ فَقَالُوا: اللَّهُمَّ نَعَمْ.

**ترجمه:** ١ اوحضرت ثمامه ابن حزن قشيري بيان کوي زه هغه وخت دحضرت عثمان رضي الله عنه په مکان کښې موجود وم هرکله چې هغه دمفسدانو اوباغيانو يولوی جماعت په محاصره کښې آخستی وو اودننه ورتلو سره دحضرت عثمان رضي الله عنه قتلول يې غوښتل ٢ حضرت عثمان رضي الله عنه دپورته نه په کتلو سره هغه باغيان مخاطب کړل او ورته يې وفرمايل زه د الله او اسلام واسطه ورکولو سره ستاسو خلقوڅخه پوښتنه کوم ٣ يا تاسو ته معلومه ده چې کله رسول الله صلى الله عليه وسلم دمکي نه په هجرت کولو مديني ته تشريف راوړی وو نوهغه وخت مدينه کښې درومه کوهي نه علاوه دخوږو اوبو کوهي نه وو ٤ اوبيا چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل کوم سړی دی چې رومه کوهي واخلي اوخپله بوقه دمسلمانانو بوقي سره جوړه کړی ددې نيکی چې داکوهي خريد کولو سره وقف کړي دي هغه ته به ددې کوهي په سبب جنت حاصليږي ٥ نوهغه زه وم چې دحضور صلى الله عليه وسلم په ارشاد خپل اصل اوخالص مال باندې مې داکوهي واخستي اونن تاسو ماددې کوهي داوبو څکلوڅخه منع کوي ددې پورې چې زه دسمندر يعنی دسمندر په شان ترخي اوبوڅکلو باندې مجبور کيږم ٦ خلقو دې اوريدو سره اوويل هو اې الله مونږته ددې علم دی چې عثمان رضي الله عنه داکوهي خريد کولو سره وقف کړی وو

**حل اللغات:** - ① شَهِدْتُ: أَيْ: حَضَرْتُ: حاضر شوم ② أَشْرَفَ: أَيْ: اطَّلَعَ: د پورته نه راښکاره شو ③ أَنْشُدُكُمْ: أَيْ: أَسْأَلُكُمْ: زه ستاسو نه تپوس کوم، پوښتنه کوم، يا قسم درکوم ④ يُسْتَعْذَبُ: أَيْ: يَعْذُبُوا: چه اوبه

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٧٠٣) والنسائی فی کتاب الأحباس/باب: وقف المساجد (رقم-٣٦٠٨)

نې خوړې وې. ⑤بِئْرِرُومَةَ: وادي عقيق اصفر كښې د يو يهودي كوهې وو، كوم چه حضرت عثمان په زر درهمه واخستلو او وقف ئې كړو ⑥دِلَاءِ: د دَلو جمع ده، بوقې ته وائي دلته دا كنايه ده د وقف عام نه. ⑦صُلْبِ مَالِي: أَيْ: مِنْ أَصْلِهِ أَوْخَالِصِهِ: خپل خالص او پاک مال.

[۱] فَقَالَ أَنْشُدُكُمُ اللَّهَ وَالْإِسْلَامَ، [۲] هَلْ تَعْلَمُونَ أَنَّ الْمَسْجِدَ ضَاقَ بِأَهْلِهِ [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: («مَنْ يَشْتَرِي بُقْعَةَ آلِ فُلَانٍ [۴] فَيَزِيدُهَا فِي الْمَسْجِدِ بِخَيْرٍ لَهُ مِنْهَا فِي الْجَنَّةِ؟») [۵] فَاشْتَرَيْتُهَا مِنْ صُلْبِ مَالِي، فَأَنْتُمُ الْيَوْمَ تَمْنَعُونَنِي أَنْ أُصَلِّيَ فِيهَا رَكْعَتَيْنِ؟، [۶] قَالُوا اللَّهُمَّ نَعَمْ. [۷] قَالَ: أَنْشُدُكُمُ اللَّهَ وَالْإِسْلَامَ، هَلْ تَعْلَمُونَ [۸] أَنِّي جَهَّزْتُ جَيْشَ الْعُسْرَةِ مِنْ مَالِي؟ قَالُوا: اللَّهُمَّ نَعَمْ.

**ترجمه:** [۱] بيا حضرت عثمان رضی الله عنه وفرمايل زه دالله او اسلام واسطه دركولو سره ستاسو نه پوښتنه كوم ايا تاسو ته معلومه ده [۲] چې كوم وخت مسجد نبوي ﷺ د مونځ كونكو د زياتيدو په سبب تنګيدلي [۳] نو رسول كريم ﷺ وفرمايل كوم سړى دي چې د فلاني سړي داولاد نه زمكه خريد كړي [۴] او دهغه په ذريعه مسجد له توسيع وركړي وقف كونكي ته به د دې زمكې په سبب جنت حاصليږي [۵] نو دازه وم چې هغه زمكه مې په خپل اصل او خالص مال سره خريد كړله او نن تاسو مادي زمكې نه لاځه اصل مسجد كې د دوه ركعاته مونځ كولو څخه منع كوي [۶] خلقو دي اوريدو سره اوويل هو اې الله مونږ ته د دې علم دى [۷] بيا حضرت عثمان رضی الله عنه وفرمايل زه د الله او اسلام واسطه دركولو سره ستاسو نه پوښتنه كوم ايا تاسو ته معلومه ده [۸] چې هغه زه وم چې د جيش عسرة يعنى غزوه تبوک كښې تلونكي لښكر تياري مې په خپل مال سره كړې وه اوزمادې مالي خدمت باندې حضور ﷺ زما په حق كښې چې كوم وقيع الفاظ ارشاد فرمايلي وو هغه زما حسن حال او حسن مآل باندې دلالت كوي خلقو دې اوريدو سره اوويل هو اې الله مونږ ته معلومه ده

**حل اللغات:** -⑧ضَاقَ: تنګ شو، كم شو. ⑨بُقْعَةَ: د زمكې يوې حصې ته وائي.

[۱] قَالَ: أَنْشُدُكُمُ اللَّهَ وَالْإِسْلَامَ، هَلْ تَعْلَمُونَ [۲] أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ عَلَى ثَبِيرِ مَكَّةَ وَمَعَهُ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَأَنَا، فَتَحَرَّكَ الْجَبَلُ حَتَّى تَسَاقَطَتْ حِجَارَتُهُ بِالْحَضِيضِ، [۳] فَرَكَضَهُ بِرِجْلِهِ قَالَ: («اسْكُنْ ثَبِيرُ، فَإِنَّمَا عَلَيْكَ نَبِيٌّ وَصِدِّيقٌ وَشَهِيدَانِ») ; [۴] قَالُوا: اللَّهُمَّ نَعَمْ. قَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ، شَهِدُوا وَرَبِّ الْكَعْبَةِ أَنِّي شَهِيدٌ، ثَلَاثًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بيا حضرت عثمان رضی الله عنه وفرمايل زه د الله او اسلام واسطه دركولو سره ستاسو نه پوښتنه كوم ايا تاسو ته دا معلومه ده [۲] چې يوه ورځ رسول كريم ﷺ د مكې په ثبير غره ولاړ وو او حضور ﷺ سره حضرت ابوبكر رضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه اوزه هم وم [۳] او هركله چې هغه ځان باندې د حضور ﷺ وجود مبارك ليدو سره د ډيرې خوشحالئ د جوش نه په خوزيدو شو او دهغه خوزيدو سره كاڼي لاندې طرف ته اورغړيدل په غورځيدو شو [۴] نو حضور ﷺ غره ته لغته وركړه ورته يې وفرمايل قلار شه حركت مه كوه داوقت په تاباندې يو نبي دى

يوصديق دى اودوه حقيقي شهيدان دي خلقو دي اوريدو سره اوويل هو اې الله مونږته ددي علم دي اوبيا حضرت عثمان رضي الله عنه دالله اكبر نعره ولګوله اوهغه اوويل دي خلقو زما دخبرو تصديق کړي دي دکعبې په رب قسم زه يقيناً شهيديم دا الفاظ هغوى درې ځله وفرمايل. (ترمذي نسايي دارقطني)

**حل اللغات:** -⑩ثَبِيرٍ: جَبَلٌ بِمَكَّةَ: په مکه کښې د يو غر نوم دې. ⑪بِالْحَضِيضِ: أَيْ أَسْفَلَ الْجَبَلِ: د غر نه ښکته زمکې طرف ته. ⑫فَرَكَضَهُ: أَيْ: ضَرَبَهُ: اوښې وهلو (په خپه باندې، لته ئې ورکړه).

**تسهيلات:**

**قوله:** شَهِدْتُ الدَّارَ حِينَ أَشْرَفَ عَلَيْهِمْ عُثْمَانُ،

**د واقعه دار پس منظر:** دَ حضرت عثمان رضي الله عنه دَ خلافت رومبى شپږ کاله په ښه ښکلې طريقه سره تيرشو بيا دَهغوى نه هغه ګوته په بئر ادريس کښې پريوتلو سره ورکه شوه کومه چه دَ حضور پاك وه اودَ حضرات شيخين نه پس دَ حضرت عثمان رضي الله عنه لاس ته راغلې وه. دَ خلافت په باقى شپږو کالوکښې قسم قسم بې اتفاقئى شروع شوې.

**دعبدالله بن سبا پروپيګنډه:** عبدالله بن سبا يهودى به دَ دروغو الزامونه لګولو سره دَهغوى دَ ګورنرانو نه خلق بدګمانه کول. په مکه اومدينه کښې چه دَهغه پر بيګنډه ناکام شوه نودې شام ته لاړو بيا کوفه ته لاړو مګر په يوځائى کښې هم هغه ته څه خاطرخوا کاميابى ملاؤ نه شوه. بيا داخبيث مصرته لاړو اوهلته دَهغه پروپيګنډه کاميابه شوه. هغه يوه جنګى دسته تياره کړه اومدينې ته ئى روانه کړه. دَ بلوه کونکو په دې ډله کښې محمدبن ابى بکر هم وو اول مذاکرات اوشو او کامياب شو. دَ مصر ګورنر عبدالله بن ابى سرح اخواکړې شو اودَ ګورنرئى پروانه ئى دَ محمدبن ابى بکر په لاس کښې ورکړه چه دَهغه په رسيدو باندې هغه دَمصر ګورنرمقررکړې شي.

**د مروان بن حکم سازش:** بل طرف ته مروان بن حکم يو سازشى سړې وو هغه دَ حضرت عثمان رضي الله عنه په اس باندې دَهغه غلام سورولوسره مصر ته روان کړو اودَمصر ګورنرعبدالله بن ابى سرح په نوم باندې ئې اوليکل چه څنګه محمدبن ابى بکر مصرته اورسى هغه قتل کړه. په لاره کښې دا غلام اونيولې شو په معلوماتو کولوکښې دَهغه دَلاس نه يوخط ملاؤ شو په کوم چه دَ حضرت عثمان رضي الله عنه دَ ګوتې مهر وو.

**د مروان سازش ښکاره کيدل:** محمدبن ابى بکر خپلو ملګروته اوونيل چه اوس واپس لاړشئى دَدې خبرې تحقيق به کوو. چنانچه دابلوا کونکى مدينې ته واپس راغله اودَحضرت عثمان رضي الله عنه نه ئى تپوس اوکړو دا اس دَچادې؟ وئى فرمائيل زما دې. دا غلام دَچا دې؟ وئى فرمائيل زما دې. دامهردَ چادې؟ وئى فرمائيل زما دَ ګوتې دې. داخط دَچا دې؟ په خدائى قسم ماته نه معلومه چه داخط دَ چادې؟ کله چه دَمدينې منورې دَخلقودَخط

نمونې حاصلې کړې شوې نومعلومه شوه چه داخط مروان بن حکم لیکلې دې. بلوایانو اوونیل چه مروان مونږ ته حواله کړئ

**د عثمان رضی الله عنه د کور محاصره کول:** حضرت عثمان ﷛ نرم مزاج شخصیت وو وئی فرمائیل زه داسې نه شم کولې په دې باندې هغه بلوایانو دَهغوی دکور محاصره اوکړه. څلویښت ورځو پورې اوبه دانه بنده کړه او محاصره ئی جاری اوساتله په دې دوران کښې حضرت عثمان ﷛ څو ځل بلوایانو او نورو خلقو ته دَ کور دَ کړکئی نه کتلوسره خطاب اوکړو او په خپل ځان باندې دَ لګولو شوو الزامونو معقول جواب ورکړو زیر بحث روایت هم دَدغه خطاب یوه حصه ده مګر په دې کښې حضرت عثمان ﷛ خپل منقبت، بشارت اوخپل حیثیت اوبیا شهادت واضح کړې دې. خوبلوایانو اوباغیانو هغوی راګیراوساتلو اودَ څلویښت ورځو محاصره نه پس محمدبن ابی بکر اونور بلوا کونکی دکور شاتنی دیوال کښې کنډر کولوسره دننه داخل شو او هغوی شهید کړل

**قوله:** وَلَيْسَ بِهَا مَاءٌ يُسْتَعْذَبُ غَيْرُ بِئْرِ رُومَةَ؟

**د بیر روما کوهی اخستل اووقف کول:** حضرت عثمان ﷛ دغه کوهې واخستلو اودَ مسلمانانودَپاره ئی وقف کړو یهودی به دَدې کوهی اوبه په مسلمانانو باندې ګرانې خرڅولې

**[۶۰۷۶] دعثمان دحقانیت پیشنګوئی**

۶۰۷۶-( ) [۶] ۱ وَعَنْ مُرَّةَ بْنِ كَعْبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ وَذَكَرَ الْفِتَنَ فَقَرَّبَهَا، فَمَرَّ رَجُلٌ مُقَنَّعٌ فِي ثَوْبٍ ۳ فَقَالَ: (هَذَا يَوْمَئِذٍ عَلَى الْهُدَى) فَقُمْتُ إِلَيْهِ فَإِذَا هُوَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ. ۴ قَالَ: فَأَقْبَلْتُ عَلَيْهِ بِوَجْهِهِ فَقُلْتُ: هَذَا؟ ۵ قَالَ: (نَعَمْ) » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ۱ اوحضرت مره ابن کعب ﷛ وایي مادرسول الله ﷺ نه دوه ارشاده په خپلو غوږونو سره واوریدل ۲ چې هغه کښې حضور ﷺ دخپل زمانه نبوت نه وروسته دواقع کیدونکو د فتنوډك حادثاتو بطور پیشینګویي ذکر فرمایلی وو حضور ﷺ دهغه فتنو تعلق یي بالکل نزدې زمانه کښې قائم کړي یعنی دایي هم وفرمایل چې دافتنې مستقبل نزدې کښې واقع کیدونکي دي اوعین هغه وخت چې دحضور ﷺ ددې ارشاداتو سلسله جاري وه یوسړي په سرکپړه اچولې مخې ته تیر شو ۳ نوحضور ﷺ هغه طرف ته اشاره کولو سره وفرمایل داسړی به دې پرفتنو او د شر اوفساد په ورځو کې په حق باندې وي حضرت مره ﷛ وایي دحضور ﷺ دا الفاظ اوریدو سره زه دخپل ځاي نه پاڅیدم اوهغه سړی طرف

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۷۰۴) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبی بکر الصدیق رضی الله عنه (رقم-۱۱۱) واحمد فی المسند: ۳۵/۵

ته ورمخکي شوم چې وګورم داسړی څوک دی نو ومې ليدل چې هغه حضرت عثمان ابن عفان رضي الله عنه دی [۴] د حضرت مره رضي الله عنه بيان دی بيا ماد حضرت عثمان رضي الله عنه مخ تاوولو سره حضور ﷺ ته وښودل او پوښتنه مي تري وکړه چې آيا دا صاحب دی چې دهغوی باره کښې تاسو ﷺ فرمايلي دي چې هغه پرفتن ورځو کښې به داسړی په حق وي [۵] نو حضور ﷺ وفرمايل هو داروايت ترمذي او ابن ماجه نقل کړی دی او ترمذي ويلي دي چې داحديث حسن صحيح دی

**حل اللغات:**- ① الْفِتَنَ: د فتنة جمع ده، فتنې يعنی شر او فساد (چه دانسان ازمائش ورسره کولې شی) ② مُقَنَّعٌ: أَيْ مُسْتَتِرٌ فِي ثَوْبٍ: خان ني په کپړه کښې ګيرکړې وو يعنی دسر نه ني کپړه تاؤکړې وه. ③ فَأَقْبَلْتُ: ور وامې ړولو، اومې ګرځولو.

**تسهيلات:**

**قوله:** هَذَا يَوْمَئِذٍ عَلَى الْهُدَى.

**دعثمان د حقانيت دليل:** په دې حديث کښې په امت مسلمه باندې دَ راتلونکو فتنو پيشنګوئی کړې شوې ده دکوم شروع چه به دَ حضرت عثمان رضي الله عنه دَ دور څخه کيږی او په دې کښې به هغه ثابت قدم پاتې وی ترڅو چه شهيد به شی.

**[٦٠٧٧] عثمان رضی الله عنه ته د خلافت نه پريخودو حکم کول**

٦٠٧٧-() [٨] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] (يَا عُثْمَانُ، إِنَّهُ لَعَلَّ اللَّهَ يُقَمِّصُكَ قَمِيصًا، [٣] فَإِنْ أَرَادُوكَ عَلَى خَلْعِهِ فَلَا تَخْلَعْهُ لَهُمْ» [۴]. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ - وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ فِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ طَوِيلَةٌ.

**ترجمه:** [١] اوام المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها وايي يوه ورځ رسول کريم ﷺ حضرت عثمان رضي الله عنه ته وفرمايل [٢] اې عثمان رضي الله عنه دي کښې شک نشته چې الله تعالی به شايد تاته يو قميص يعنی قميص دخلافت واغوندوي [٣] که خلق ستا هغه قميص اوخکل غواړي اوتا په دي مجبوروي نو دهغوی په وجه هغه قميص هيڅ کله مه اوباسه [۴] داروايت ترمذي اوابن ماجه نقل کړی دی او ترمذي ويلي دي د دي حديث ضمن کښې يو طويله دردناکه قصه ده.

**حل اللغات:**- ① يُقَمِّصُكَ: أَيْ يُلْبِسُكَ: در اغوستوی به تاته، ② قَمِيصًا: أَيْ خُلْعَةَ الْخِلَافَةِ: د کميص نه مراد خلافت دي (يعنی عثمان ته به الله پاک خلافت ورکوی) ③ خَلْعِهِ: أَيْ نَزْعِهِ: اوبنکل او ويستل کميص دخلافت لره

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۷۰۵) وابن ماجه فی کتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبي بکر الصديق رضی الله عنه (رقم-۱۱۲) واحمد فی المسند:۷۵/۶

**تسهیلات:**

**قوله: فَإِنْ أَرَادُوكَ عَلَى خَلْعِهِ فَلَا تَخْلَعْهُ لَهُمْ:**

**د منصب نه پریښودو حکم:** په حدیث الباب کښې رسول الله ﷺ حضرت عثمان ﷺ مخاطب کولو سره اوفرمائیل چه الله پاك کله تاته خلافت درکړی او بیا ستا دَ دغه خلافت په زمانه کښې داسې ظالمان فاسدان خلق راپیدا شی چه تا دَ خلافت په پریخودو باندې مجبوره کړی نو ته دَ خپل خلافت واګې مضبوطې اونیسه او هغوی ته ئې مه حواله کوه ځکه چه ته به په حقه باندې یې او هغوی به په باطل باندې که چرې ته هغه وخت دَ فاسدانو په مطالبه باندې دَخلافت نه لاس واخلې نوخلق به شك کوی چه ته هډو په حق باندې وې نه

**دعثمان رضی الله د نبی علیه السلام په حکم عمل کول:** چنانچه دَ حضرت عثمان ﷺ دَ خلافت په زمانه کښې هم داسې اوشو چه سازشی عناصرو دَ هغوی نه په زور سره مطالبه اوکړه لیکن هغوی خلافت پرینخودو بلکه دَ رسول خدا حکم ئې پوره کړو او شهادت ته ئې ترجیح ورکړه

**[۶۰۷۸] د عثمان رضی الله عنه د شهادت پیشن ګویي**

۶۰۷۸-() [۹] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: «ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِتْنَةً [۲] فَقَالَ: (يُقْتَلُ هَذَا فِيهَا مَظْلُومًا) لِعُثْمَانَ». [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابن عمر ﷺ وایی یو ورځ رسول کریم ﷺ مستقبل نزدې کښې دواقع کیدونکو پرفتن حادثاتو ذکر وکی [۲] ودحضرت عثمان ﷺ په حق کښې یې وفرمایل چې داسې به هغه حادثاتو کې مظلومانه طور سره ووژلی شي شهید شی [۳] دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث داسنادو داعتبار نه حسن غریب دی.

**تسهیلات:**

دې د حدیث د ترجمې څخه مطلب ښکاره دې

**[۶۰۷۹] دارشاد نبوي ﷺ په تعمیل کښې یې دصبر وتحمل لمن نیولي وه**

۶۰۷۹-() [۱۰] [۱] وَعَنْ أَبِي سَهْلَةَ، قَالَ: «قَالَ لِي عُثْمَانُ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- يَوْمَ الدَّارِ: [۲] إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَدْ عَهِدَ [۳] إِلَيَّ عَهْدًا وَأَنَا صَابِرٌ عَلَيْهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوسهله فرمایی چې عثمان ﷺ هغه ورځ چې په کومه ورځ هغوی شهید کړل شو وفرمایل [۲] حضور ﷺ ماته یو صیت کړی وو یعنی دایی ویلی وو چې خلافت ترك نه کړی

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۸) واحمد فی المسند: ۱۱۵/۲

[۲] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب(رقم-۳۷۱۱)

[٢] و څه په هغه وصيت صبر کولو والايم يا په هغه ظلم وستم صبر کوم کوم چې راپېښېږي ترمذي وايي چې داحديث حسن صحيح دی.

**تسهيلات: قوله:** يَوْمَ الدَّارِ

**د يوم الدار څخه مراد:** دَ دې نه مراد هغه ورځ ده په کومه ورځ چه دَ حضرت عثمان رضي الله عنه مظلومانه شهادت واقع شوې وو او دار ورته په دې وجه اووئيلې شو چه ظالمانودَ حضرت عثمان رضي الله عنه دَ کور نه سخته ګېره اچولې وه او په کور کښې دننه ورداخل شو حضرت عثمان رضي الله عنه ئې شهيد کړو.

**قوله:** وَأَنَا صَابِرٌ عَلَيْهِ

**دحضرت عثمان رضی الله عنه صبر اوتحمل:** دَ حضورپاك دَ فرمان په وجه حضرت عثمان رضي الله عنه په مقابل باندې توره اوچته نه کړه سره دَدې چه بعضې صحابه کرامو رضي الله عنهم هغوی ته دَ حالاتو په رڼا کښې مشوره ورکړې وه چه تاسو دَهغوی خلاف توره اوچته کړئ او مونږ ته حکم راکړئ چه دَ دغه باغيانو خلاف جهاد اوکړو ځکه چه دې وخت مسلمانان په ګڼړ شمير کښې موجود دی او داخلق تاسو سره دَ مقابلې طاقت نه لري. ليکن حضرت عثمان رضي الله عنه دَ هغوی مشوره قبوله نه کړه بلکه دَ صبر او تحمل لمن ئې کلکه اونيوله او مدينة الرسول ئې دَ قتل و غارت نه بچ اوساتلو تردې چه دَ شهادت جام ئې نوش کړو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [٦٠٨٠] دعثمان رضي الله عنه مخالفينوته دابن عمر رضي الله عنه چپ کونکي جواب

٦٠٨٠-( ) [١] [١] عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَوْهَبٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ مِصْرَ يُرِيدُ حَجَّ الْبَيْتِ [٢] فَرَأَى قَوْمًا جُلُوسًا، [٣] فَقَالَ: مَنْ هٰؤُلَاءِ الْقَوْمُ؟ قَالُوا: هٰؤُلَاءِ قُرَيْشٌ. [٤] قَالَ: فَمَنِ الشَّيْخُ فِيهِمْ؟ قَالُوا: عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ. [٥] قَالَ: يَا ابْنَ عُمَرَ، إِنِّي سَائِلُكَ عَنْ شَيْءٍ فَحَدِّثْنِي: هَلْ تَعْلَمُ أَنَّ عُثْمَانَ فَرَّ يَوْمَ أُحُدٍ؟ قَالَ: نَعَمْ. [٦] قَالَ: هَلْ تَعْلَمُ أَنَّهُ تَغَيَّبَ عَنْ بَدْرٍ وَلَمْ يَشْهَدْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت عثمان ابن عبدالله ابن موهب تابعي بيان کوي چې يومصري سړی دحج بيت الله شريف په اراده مکي ته راغی [٢] هغه يوځاي کښې څه خلق ناست وليدل [٣] نوپوښتنه يې وکړه داکوم خلق دي هغه ته وښودل شوه چې دااکابر قريش دي [٤] بياهغه پوښتنه وکړه ددوی شيخ يعنی دعلم وفضل داعتبار نه په دوی کښې دتولو نه لوی سړی څوک دی؟ خلقو جواب ورکړو عبدالله ابن عمر رضي الله عنه [٥] بياهغه مصري حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه طرف ته متوجه کيدو سره اوويل اې ابن عمر رضي الله عنه زه ستاسو نه څو سوالات کول

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة /باب الصلاة علی من ترک دينا (رقم-٢٣٩٨)والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب (رقم-٣٧٠٦)

او: هغه جواب غواړم ايا تاسو ته معلومه ده چې عثمان ﷺ داحد دجنګ په ورځ تښتيدلي وو حالانکه دکفارو دمقابلې نه تښتيدل ډيره بده خبره ده حضرت ابن عمر ﷺ جواب ورکړو هو داسې شوی وو چې په هغه ورځ عثمان ﷺ د مور چې نه لري شوی وو [٦]بيا هغه سړی پوښتنه وکړه ايا تاسو ته معلومه ده چې عثمان ﷺ دبدر په جنګ کښې غائب وو اومعرکه کښې شريک نه شو چې دهغه په بنا هغه ته هغه اعزاز حاصل نه شو چې هغه سره اهل بدر سرفراز شو حضرت ابن عمر ﷺ جواب ورکړو هو عثمان ﷺ جنګ بدر کې شريک نه وو

**حل اللغات:-** ① الشَّيْخُ: أَيِ: الْعَالِمُ الْمُعْتَبَرُ: مشر يعني لوئي عالم.

[١]قَالَ: هَلْ تَعْلَمُ أَنَّهُ تَغَيَّبَ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَمْ يَشْهَدْهَا؟ قَالَ: نَعَمْ. [٢]قَالَ: اللهُ أَكْبَرُ. قَالَ ابْنُ عُمَرَ: تَعَالَ أُبَيِّنْ لَكَ [٣]أَمَّا فِرَارُهُ يَوْمَ أُحُدٍ فَأَشْهَدُ أَنَّ اللَّهَ عَفَا عَنْهُ، [٤]وَأَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَدْرٍ فَإِنَّهُ كَانَتْ تَحْتَهُ رُقَيَّةُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَكَانَتْ مَرِيضَةً، [٥]فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِنَّ لَكَ أَجْرَ رَجُلٍ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا وَسَهْمَهُ). [٦]وَأَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَوْ كَانَ أَحَدٌ أَعَزَّ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ عُثْمَانَ لَبَعَثَهُ،

**ترجمه:**[١] بيا هغه سړي اوويل ايا تاسو ته معلومه ده چې عثمان ﷺ حديبيه کښې دبيعت رضوان په موقع غائب وو اوهغه بيعت کښې شريک نه شو حضرت ابن عمر ﷺ ورته اوويل هو عثمان ﷺ بيعت رضوان کښې شريک شوی نه وو [٢]هغه سړي چې دراصل دحضرت عثمان ﷺ باره کښې خراب خيالات لرل هرکله چې هغه وليدل چې حضرت ابن عمر ﷺ دهغه ديوي يوي خبري تصديق کړی دی نوددي حيرت اوخوشحالي اظهار په طور چې عثمن ﷺ باندې وارد کيدونکي اعتراضات ددومره عظيم اومعتبرسړي په ذريعه ثبت شوي دي هغه زور دار اواز کښې اوويل الله اکبر نوحضرت ابن عمر ﷺ ورته وفرمايل دراصل ته داحمقانه خيالاتو ښکار شوی يې کومي خبري چې ته دعثمان ﷺ دتنقيص دليل ګڼي اودهغه واقعاتي تصديق تازما نه کړي دي هغه داسې نه دی څرنګه چې ته يې ګڼې حقانق څه نور دي اوکه په هغه حقائقو ته پوهيدل غواړي نوراځه زه يې تاته په وضاحت سره ښايم [٣]دجنګ احد په ورځ دعثمان ﷺ دتښتيدو باره کښې خوزه ګواهي ورکوم چې دهغوی داخبره الله تعالٰی معاف کړي ده اوداټولوته معلومه ده چې کومه خبره معاف شوي وي په هغه دعيب جوړيې يادتنقيص بنياد ايښودل بيخي حماقت دی [٤]وجنګ بدر کښې چې عثمان ﷺ شريک شوی نه وو نودهغه وجه داپيښه شوي وه چې بي بي رقيه ﷺ بنت رسول الله ﷺ دهغوی نکاح کښې وه اوهغه ورخو کې هغه سخته ناروغه وه نورسول الله ﷺ عثمان ﷺ جنګ بدرته دتلوڅخه منع کړی وو [٥]وهغوی ته يې فرمايلي وه چې تاته به هم هغه شان ثواب اوحصه حاصليږي کومه چې دي جنګ کښې شريکيدونکي يوسړی ته حاصليږي [٦]وس پاتې شو بيعة الرضوان کښې دعثمان ﷺ نه

شریکیدل نومخکي داحقیقت په نظرکي وساته که صحابه ؤ رضی الله عنه کښې بل سړی دخانداني طاقت او وجاهت داعتبار نه مکه کښې دعثمان رضی الله عنه نه زیات عزت اواثر لرونکي څوک وي

**حل اللغات:** - ② بَیْعَةِ الرِّضْوَانِ: په صلح حدیبیه کښې چه د ونې لاندې کوم بیعت شوې ووهغې ته بیعت رضوان وائی، ددوی په باره کښې لقد رضی الله آیت نازل شوې په دې و جه ورته بیعت رضوان وائی ③ أُبَیِّنُ: زه بیانوم، حقائق درته ښکاره کوم. ④ تَحْتَهُ: أَيْ: تَحْتَ عَقْدِهِ: یعنی دحضرت عثمان رضی الله عنه په نکاح کښې وه. ⑤ سَهْمَهُ: حصه دهغه (یعنی دهغې برابر)

① فَبَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ - عُثْمَانَ وَكَانَتْ بَیْعَةُ الرِّضْوَانِ بَعْدَمَا ذَهَبَ عُثْمَانُ إِلَی مَكَّةَ، ② فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ - بِیَدِهِ الْیُمْنَی: ((هَذِهِ یَدُ عُثْمَانَ)) ③ فَضَرَبَ بِهَا عَلَی یَدِهِ، وَقَالَ: (هَذِهِ لِعُثْمَانَ). ④ ثُمَّ قَالَ ابْنُ عُمَرَ: اذْهَبْ بِهَا الْآنَ مَعَكَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① نوحضور صلی الله علیه وسلم به یقینا هغه خپل خصوصي نمائینده جوړولو سره اهل مکه ته لیږلی وو لیکن دخانداني عزت اواثرورسوخ داعتبار نه بل سړی دمکي والؤ نظر کښې دحضرت عثمان رضی الله عنه نه زیات قابل توجه نه وو بلکي صحابه رضی الله عنه خودي ویلو سره دي مشن باندې دتلوڅخه معذرت کړی وو چې هلته زمونږ دحامیانو اوعزیزانو څه جماعت نشته چې زمونږ حفاظت وکړي ځکه رسول کریم صلی الله علیه وسلم عثمان رضی الله عنه مکي ته ولیږلو او دعثمان رضی الله عنه مکي ته تلوڅخه وروسته دبیعت رضوان واقعه پیښه شوه ② بیا دبیعت رضوان په وخت رسول کریم صلی الله علیه وسلم خپل ښي لاس طرف ته اشاره کړلو سره فرمایلي وه چې زما دالاس دعثمان رضی الله عنه دلاس قائم مقام دی ③ اوبیا حضور صلی الله علیه وسلم خپل هغه ښي لاس خپل چپ لاس باندې وهلو سره وفرمایل دابیعت دعثمان رضی الله عنه دطرف نه دی ④ دي نه وروسته حضرت ابن عمر رضی الله عنه هغه مصري سړی ته اوویل ستا دسوالاتو جواب کښې اوس چې ماڅه ویلي دي هغه خان سره یوسه، مطلب دا چې داستاسوالونه زمونږدپاره مضرندي بلکه ستادپاره ضرر رسان دي بخاری

**تسهیلات:**

**قوله:** أَمَّا فِرَارُهُ یَوْمَ أُحُدٍ فَأَشْهَدُ أَنَّ اللّٰهَ عَفَا عَنْهُ،

**دعثمان رضی الله عنه په جنګ احد کښې کردار:** حضرت عثمان رضی الله عنه یواځې دَ جنګ احد په ورځ دَ مخصوص ځائی څخه نه وو خوزیدلي بلکه حالات داسې جوړ شوی وو چه سوا دَ لسو دولسو کسانو نه دَ ټولو حضراتو خپې خوئیدلې وې ځکه چه کافرانو دَ شانه حمله کړې وه او بیا دَ الله تعالی دَ طرفه دَ هغې دَ معافئی اعلان هم شوې وو کما فی القرآن ﴿إِنَّ الَّذِینَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ یَوْمَ الْتَقَی الْجَمْعَانِ إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّیْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا وَلَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ إِنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ حَلِیمٌ﴾ په حدیث کښې دَ دریو سوالونو دَ جوابونه حضرت ابن عمر رضی الله عنه ورکړل دکوم وضاحت چه ښکاره دي

**قوله**: ثُمَّ قَالَ ابْنُ عُمَرَ اذْهَبْ بِهَا الْآنَ مَعَكَ:

**د مذکوره قول مطلب**: دَدې جملې نه دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما مقصد دا وو چه که ستاسو معلومات راجمع کول وو نودا خبرې هم ځان سره یوسئې اودا معلومات خپل ځان سره جمع کړئی او ستاسو په زړونو کښې چه دَ حضرت عثمان رضی الله عنه باره کښې کوم بغض او عناد او بدګمانئی دی دَ هغې نه خپل ځان پاك صفا کړئی.

**[۶۰۸۱] د عثمان د نبی علیه السلام په وصیت عمل کول**

۶۰۸۰-()[۳][۱]وَعَنْ أَبِي سَهْلَةَ مَوْلَى عُثْمَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲]«جَعَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُسِرُّ إِلَى عُثْمَانَ، وَلَوْنُ عُثْمَانَ يَتَغَيَّرُ»، [۳]فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ الدَّارِ قُلْنَا: أَلَا تُقَاتِلُ؟ [۴]قَالَ: لَا، إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَهِدَ إِلَيَّ أَمْرًا، فَأَنَا صَابِرٌ نَفْسِي عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] اود حضرت عثمان رضی الله عنه ازاد کرده غلام حضرت ابوسهله رضی الله عنه وایې [۲] د یوې ورځې واقعه ده نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت عثمان رضی الله عنه سره پټې پټې خبرې کولې او هغه خبرې اوریدو اوریدو سره دحضرت عثمان رضی الله عنه دمخ رنګ به متغیر کیدو هغه وخت خودا راز چاته ښکاره نه شو چې ستا زمانه کښې به څرنګه فتنې اوفسادونه پیدا کیږي څرنګه څرنګه مفسده کار روایې به کیږی ستا مخالفین اومعاندین به په څرنګه ظالمانه طریقې سره تاقتلول غواړي اودهغوی دلاسه به تاته شهادت حاصلیږي اودي سره حضور صلی الله علیه وسلم هغه ته تلقین او وصیت کولې چې په هغه فتنو اوهنګامو کې دصبر لمن هیڅ کله مه پریږده او سخت نه سخت حالاتو کښې هم مشتعل کیږه مه بلکې خپل مظلومیت بر قرار ساته [۳] هرکله چې دکور دمحاصرې ورځ راغله اومفسدانو دمکان محاصره کولو سره دحضرت عثمان رضی الله عنه ژوند ختمول وغوښتل نومونږ حضرت عثمان رضی الله عنه ته عرض وکړ چې آیا ددې مفسدانو خطرناک عزائم ختمولو دپاره مونږ لره مناسب نه دی چې مونږ دي خلقو سره جنګ وکړو [۴]حضرت عثمان رضی الله عنه جواب راکړ نه زه جنګ هیڅ کله نه غواړم ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته دیوې خبرې وصیت کړی وو اوزه دحضور صلی الله علیه وسلم هغه وصیت باندې صابر اوشاکریم

**حل اللغات**:- ①يَوْمُ الدَّارِ: دعثمان رضی الله عنه د کور د محاصرې او ګیرولو ورځ مراد ده.

**نوټ**: د حدیث د ترجمې څخه مطلب ښکاره دی

**[۶۰۸۲] د نبی علیه السلام صحابؤ ته د عثمان رضی الله عنه د اطاعت حکم**

۶۰۸۲-()[۳][۱]وَعَنْ أَبِي حَبِيبَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ دَخَلَ الدَّارَ وَعُثْمَانُ مَحْصُورٌ فِيهَا، [۲]وَأَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَسْتَأْذِنُ عُثْمَانَ فِي الْكَلَامِ، فَأَذِنَ لَهُ، [۳]فَقَامَ فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ، [۴]ثُمَّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب(رقم-۳۷۱۱)

[2] ) اخرجه البیهقی فی دلائل النبوة رقم الحدیث ۶/ ۳۹۳

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ⑤« (إِنَّكُمْ سَتَلْقَوْنَ بَعْدِي فِتْنَةً وَاخْتِلَافًا - أَوْ قَالَ: اخْتِلَافًا وَفِتْنَةً - ⑥فَقَالَ لَهُ قَائِلٌ مِنَ النَّاسِ: فَمَنْ لَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ أَوْ مَا تَأْمُرُنَا بِهِ؟ ⑦قَالَ: (عَلَيْكُمْ بِالْأَمِيرِ وَأَصْحَابِهِ) وَهُوَ يُشِيرُ إِلَى عُثْمَانَ بِذَلِكَ». رَوَاهَا الْبَيْهَقِيُّ فِي (دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ).

**ترجمه:** ① اوحضرت ابوحبيبه ﷺ تابعي نه روايت دى چې هغه حضرت عثمان ﷺ ته هغه وخت ورغلى وو كوم وخت چې حضرت عثمان ﷺ په هغه كوركي محصور كړل شوى وو ② هغه واوريدل چې حضرت ابوهريره ﷺ دحضرت عثمان ﷺ نه ياخوخپله دهغوى په خدمت كښې دځه عرض كولو يادكور محاصره كونكو مفسدانو مخكې دځه خبرو كولو اجازت غوښتى حضرت عثمان ﷺ هغه ته اجازت وركړو چې وايه څه وئيل غواړې ③ بياحضرت ابوهريره ﷺ اودريدلو اوځرنګه چې دخطبې اوتقرير قاعده ده مخكې هغه دالله تعالى حمد وثنا بيان كړه ④ وبيايي اوويل يوه ورځ مادرسول الله نه واوريدل ⑤ چې زما نه وروسته به تاسو خلق دفتنو اودباهمى اختلافاتو ازمائش سره مخ شى ياحضور ﷺ مخكې داختلافاتو اوبيادفتنو لفظ ارشاد وفرمايل هغه ارشاد اوريدو سره ⑥ هلته موجود خلقو كښې يوسړي پوښتنه وكړه يارسول الله بيادهغه فتنو اواختلافاتو زمانه كښې مونږ له څه كول پكاردى يعنى هغه وخت مونږله دكوم سړي حمايت اوپيروي كول پكاردى چې هغه سره زمونږ ددين ودنيا فائده وي اومونږ دخرابي اونقصان نه بچ شو ⑦ حضور ﷺ ورته وفرمايل اميراودهغه جماعت لازم ونيسي اوامير لفظ باندې زور وركولو سره حضرت عثمان ﷺ طرف ته اشاره وكړله دادواړه روايتونه بيهقي دلائل النبوة كښې نقل كړي دي

**حل اللغات:** - ① مَحْصُورٌ: ګير كړي شوي. ② سَتَلْقَوْنَ: مخامخ به شئ، مبتلا به شئ

**تسهيلات:**

**قوله:** وَهُوَ يُشِيرُ إِلَى عُثْمَانَ

**دعثمان د خلافت اشاره:** رسول كريم ﷺ دَ حضرت عثمان ﷺ طرف ته اشاره كولوسره دا ثابت كړى دى چه هغه وخت به دَمسلمانانو امير حضرت عثمان ﷺ وى په دې وجه مسلمانانو له په هرحالت كښې دَ هغه تابعدارى كول پكاردى دا پيشنګوئى ده كومه چه دَ حضورپاك معجزه ده.

# [۱۷] باب مناقب هؤلاء الثلثة رضي الله عنهم

## د دریو سرو (یعنی خلفاء ثلاثه) د مناقبو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① البشارة بشهادة الثلاثة رضي الله عنهم: ۱۔
② البشارة للثلاثة رضي الله عنهم بالجنة: ۲۔
③ ذكر الشيخين وعثمان رضي الله عنهم معاً: ۳۔
④ الإشارة من النبي صلى الله عليه وسلم إلى خلافة الثلاثة رضي الله عنهم: ۴۔

**په مناقبو کښې د صاحب مشکاة نهج:**

بعضې احادیث هغه دي په کوم کښې چه دَمشترکه مناقب بیان دي صاحب مشکوة کمال کړې دې چه ګډوډ مناقب ئې نه دي راجمع کړي بلکه اول ئې انفرادي ذاتي مناقب بیان کړل بیائې دَمشترکه مناقب بیان اوکړو. چنانچه په زیربحث باب کښې هم دغه شان دَحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت عثمان رضی الله عنه خلفاء ثلاثه مناقب مشترکه احادیث راجمع کړې شوي دي کوم چه پیش خدمت دي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۶۰۸۳] داحد غر د خوشحالئ څخه حرکت کول

۶۰۸۳ - (۱) [۱] ①عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - ②«أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَعِدَ أُحُدًا، وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ، ③فَرَجَفَ بِهِمْ، فَضَرَبَهُ بِرِجْلِهِ، ④فَقَالَ: (اثْبُتْ أُحُدُ، فَإِنَّمَا عَلَيْكَ نَبِيٌّ وَصِدِّيقٌ وَشَهِيدَانِ)». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضی الله عنه روایت کوي ② چه یوه ورځ نبی کریم ﷺ حضرت ابوبکر رضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت عثمان رضی الله عنه د مدیني مشهور غر احد ته وختل ③ نو هغه ډیري خوشحالئ نه په خوزیدو شو حضور ﷺ په هغه خپله پښه مبارکه ووهل ④ او ورته یې وفرمایل: اُثْبُتْ أُحُدُ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ نَبِيٌّ وَصِدِّيقٌ وَشَهِيدَانِ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. ای احد قلار شه مه خوزه په تا باندې یو نبي دی یو صدیق دی او دوه شهیدان دي. بخاري.

**حل اللغات:** - ① صَعِدَ: أي طَلَعَ. اوختلو ② فَرَجَفَ: أي تَحَرَّكَ: په خوزیدو شو ③ اثْبُتْ: اودریږه. مه خوزه

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عمر بن الخطاب أبی حفص القرشی العدوی رضی الله عنه (رقم-۳۶۸۶) وابوداود فی کتاب السنة/باب فی الخلفاء (رقم-۴۶۵۱) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی مناقب عثمان بن عفان رضی الله عنه. وله کنیتان. یقال: أبو عمرو. وأبو عبد الله (رقم-۳۶۹۷) واحمد فی المسند: ۳۳۱/۵

**قوله:** وَشَهِيدَانِ

**د شهيدان څخه مراد:** دلته شهيدان تثنيه ده د دې څخه حضرت عمر رضي الله عنه مراد دې دې ابولولو مجوسی غلام شهيد کړې وو اود دويم شهيد څخه حضرت عثمان رضي الله عنه مراد دې دوی په خپل دور خلافت کښې په خپل کور کښې باغيآن شهيد کړې وو نودا حديث مبارک هم د نبی عليه السلام په معجزه باندې مشتمل دې خکه چې د دې دوارو د شهادت پيشن ګويی په کښې ده.

**[٦٠٨٤] خلفاء ثلاثو ته د جنت زيرې**

٦٠٨٣-()[٢] ①وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي حَائِطٍ مِنْ حِيطَانِ الْمَدِينَةِ، ②فَجَاءَ رَجُلٌ فَاسْتَفْتَحَ، فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ③(افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ) ④فَفَتَحْتُ لَهُ، فَإِذَا أَبُو بَكْرٍ، فَبَشَّرْتُهُ بِمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَحَمِدَ اللَّهَ، ⑤ثُمَّ جَاءَ رَجُلٌ فَاسْتَفْتَحَ، فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ) فَفَتَحْتُ لَهُ، ⑥فَإِذَا عُمَرُ، فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَحَمِدَ اللَّهَ،

**ترجمه:** ① اوحضرت ابوموسٰی اشعري رضي الله عنه وايي يوه ورځ زه دنبي کريم ﷺ سره دمديني يوباغ کښې وم ② چانك يوسړی دبهر نه راغی دهغه باره کښې هغه وقته پورې موږ ته هيڅ معلوم نه وو چې کوم سړی دی بياهغه دباغ دروازې دخلاصولو غوښتنه وکړه ③ نبي کريم ﷺ ماته وفرمايل ورشه دروازه کولاوه که اوراتلونکي سړی ته دجنت يعنی دجنت داعلٰی درجاتو بشارت ورکړه ④ زه ورتلو سره دروازه مې خلاصه کړه څه ګورم چې هغه ابوبکر رضي الله عنه دي مادرسول الله ﷺ دوينا مطابق هغوی ته دجنت بشارت واوری اوهغوی ددې نعمت عظمٰی بشارت اوريدو سره دالله شکر ادا کړو لږ وخت ⑤ وروسته بيايوسړی راغی دروازه کولاويدو دپاره يې اوويل رسول کريم ﷺ ماته وفرمايل ورشه دروازه کولاوه که اوراتلونکي سړي ته دجنت خوشخبري ورکړه ⑥ ورتلو سره مادروازه کولاوه کړه نو ومې ليدل چې هغه عمر رضي الله عنه وو مادنبي کريم ﷺ دوينا مطابق هغوی ته دجنت زيري ورکړو اوهغوی هم دابشارت اوريدو سره دالله تعالٰی شکر ادا کړو

**حل اللغات:-** ① حَائِطٍ: أي: بُسْتَانٍ: باغ. (حائط اصل کښې ديوال ته وائی خو هغه باغ ته هم وائی کوم نه چه ګير چاپيره ديوال وی دلته ترې باغ مراد دې. ② فَاسْتَفْتَحَ: أي طَلَبَ الْفَتْحَ: دپرانستلومطالبه ئې کوله

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب مناقب عمر بن الخطاب أبي حفص القرشي العدوي رضي الله عنه (رقم-٣٦٩٣) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب من فضائل عثمان بن عفان رضي الله عنه (رقم ٢٨ (٢٤٠٣) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٧١٠) واحمد في المسند: ٤/٤٠٦؛

[۱] ثُمَّ اسْتَفْتَحَ رَجُلٌ، فَقَالَ لِي: [۲] (افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلَى بَلْوَى تُصِيبُهُ) [۳] فَإِذَا عُثْمَانُ، فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَحَمِدَ اللَّهَ، [۴] قَالَ: اللَّهُ الْمُسْتَعَانُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بیا لږ وخت وروسته یو بل سړي راتلو سره دروازه کولاوېدو دپاره اوویل رسول کریم ﷺ راته [۲] وفرمایل ورشه دروازه کولاوه که اوراتلونکي سړي ته دهغه عظیم آفات اومصائبو څخه وروسته دجنت بشارت ورکړو چې دهغه به هغه خپل ژوند کي مبتلاوي ماورتلو سره دروازه کولاوه کړه [۳] نو ومي لیدل چې هغه حضرت عثمان ﷺ وو ماهغوی ته هم هغه خبر واورول کوم چې نبی کریم ﷺ فرمایلي وه حضرت عثمان ﷺ داخبر اوریدو سره مخکي خود الله تعالی شکریه ادا کړه [۴] وبیایي اوویل دالله نه مدد طلب کول پکاردي یعنی زه دالله نه دمدد طلبګاریم چې ددي آفاتو اومصائبو په وخت به هغه ماته صبر اواستقامت ورکړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ② بَلْوَى: أَيْ: بَلِيَّةٍ عَظِيمَةٍ: لوئي آفات او مصائب، آزمائشونه، ③ اللهُ الْمُسْتَعَانُ: أَيِ الْمَطْلُوبُ مِنْهُ الْمَعُونَةُ: یعنی د الله نه دمدد اونصرت طلبګار یم (چه ددغه آفاتو په وخت ماته دصبر اواستقامت توفیق راکړی).

**تسهیلات:**

**قوله:** (افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ)

**د حدیث څخه د دوو خبرو معلومیدل:** ① په حدیث الباب کښې رسول الله ﷺ په حضرت عثمان ﷺ باندې راتلونکی تکلیفونه او مصیبتونه په توګه دَ پیشنګوئی بیان اوفرمائیل او په صبر کولو باندې ئی ورته دَ جنت زیرې ورکړو.

② دارنګ دَ مذکوره حضراتو باغ ته دَ تشریف راوړلو خاص ترتیب په حقیقت کښې دَ دغه حضراتو په ترتیب سره خلافت او دَ آخرت اوچتو درجاتو او مرتبو طرف ته اشاره ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۶۰۸۵]په عهد رسالت کښې د خلفاء ثلاثو عظمت

۶۰۸۵-(۱)[۳] عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: كُنَّا نَقُولُ وَرَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حَيٌّ: [۲] أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ- رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عمر ﷺ بیان کوي درسول کریم ﷺ په حیات کښې به مونږ داسې ونیل [۲] ابوبکر ﷺ اوعمر ﷺ اوعثمان ﷺ الله دي دهغوی نه راضي وي (ترمذي)

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب السنة /باب فی الخلفاء (رقم-۴۶۲۸) والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۸۰۷ واحمد فی المسند ۲/ ۱۴

**تسهيلات:**

**قوله: أَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ:**

**په خلفاء ثلاثو كښې د مراتبو ترتيب:** دَ حديث الباب حاصل دادې چه مذكوره درېواړه خليفه ګانو چونكه دَ رسول الله ﷺ په درباركښې دَ ټولو نه زيات نيزديكت او منزلت لرلو په دې وجه به دَهغوى دَ اوصافو او محاسنو په تذكره كښې دَ مذكوره ترتيب خيال ساتلې شو رسول كريم ﷺ چه به زمونږ دا ترتيب اوريدو نو خاموش كيدلو به لهذا دې سره دَ خلفاؤ دَ مذكوره مراتبو تقرير او تائيد هم اوشو

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [٦٠٨٦] دخلفاء ثلاثه ﷺ دترتيب خلافت غيبي اشاره

٦٠٨٦-()[٣] [١] عَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] «أُرِيَ اللَّيْلَةَ رَجُلٌ صَالِحٌ [٣] كَأَنَّ أَبَا بَكْرٍ نِيطَ بِرَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَنِيطَ عُمَرُ بِأَبِي بَكْرٍ، وَنِيطَ عُثْمَانُ بِعُمَرَ [٤]" قَالَ جَابِرٌ: فَلَمَّا قُمْنَا مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٥] قُلْنَا: أَمَّا الرَّجُلُ الصَّالِحُ فَرَسُولُ اللَّهِ، وَأَمَّا نَوْطُ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ [٦] فَهُمْ وُلَاةُ الْأَمْرِ الَّذِي بَعَثَ اللَّهُ بِهِ نَبِيَّهُ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر ﷺ نه روايت دى يوه ورځ نبى كريم ﷺ وفرمايل [٢] نن شپه يونيك سړى ته خوب كښې وښودل شوه [٣] چې ځرنګه ابوبكر ﷺ رسول كريم ﷺ سره پيوست شوي دي دغه شان عمر ﷺ ابوبكر ﷺ سره پيوست لګيدلى دى اوعثمان ﷺ عمر ﷺ سره پيوست لګيدلى دى [٤] حضرت جابر ﷺ وايي هركله چې مونږ خلقو دي خبري اوريدوسره درسول كريم ﷺ دمجلس مبارك نه لاړلو [٥] نودخپل اجتهاد اوظن مطابق مونږ خپلو كښې اوويل چې نيک سړى نه مراد خوخپله درسول كريم ﷺ ذات ګرامي دى اوپاته شوه دبعضې بعضې سره پيوست لګيدل [٦] نودادى طرف ته اشاره ده چې دادري واړه حضرات يعنې ابوبكر ﷺ عمر ﷺ اوعثمان ﷺ به دمذكوره ترتيب مطابق يوبل پسې دهغه مشن سربراه وي چې هغه دپاره الله تعالى خپل نبى كريم ﷺ دي دنياته راليږلى دى (ابوداود)

**حل اللغات:** - ① نِيطَ: أَيْ عُلِّقَ: وريوري اينبتې دې. رازوړند دې (داترتيب دَخلافت طرف ته اشاره ده) ② وُلَاةُ: سربراهان. ذمه واران. ③ الْأَمْرِ: أَيْ: أَمْرِالدِّين: كوشش او محنت ددين

**تسهيلات:**

**نوټ:** د تشريحى ترجمې څخه مطلب واضح دې باقى ګران الفاظ په حل اللغات كښې حل شوى دى

[1] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب السنة/باب فى الخلفاء (رقم-٤٦٣٦)

# [۱۸] باب مناقب علي بن ابي طالب ﷺ

## د حضرت علی ﷺ د مناقبو بیان

**خلاصة الباب**

**فيه أحد وعشرون حديثاً مشتملة على خمس عشر منقبة لعلي رضي الله عنه:**

① قرب علي ﷺ من النبي ﷺ: ۱، ۴، ۶، ۲۰۔
② كون محبة علي ﷺ وبغضه من علامات الإيمان والنفاق: ۲، ۱۴۔
③ حب علي ﷺ والرسول ﷺ وحبهماله: ۳، ۸۔
④ كون علي ﷺ ولى كل مؤمن: ۴۔
⑤ ذكر ولاية علي ﷺ: ۵، ۱۷۔
⑥ أخوة علي ﷺ مع النبي ﷺ: ۷۔
⑦ إعطاء النبي ﷺ علياً ﷺ: ۹۔
⑧ كون علي ﷺ باب الحكمة: ۱۰۔
⑨ مناجات الرسول ﷺ مع علي ﷺ بأمرالله تعالى: ۱۱۔
⑩ خصوصية علي ﷺ ببعض الأحكام: ۱۲، ۱۹، ۲۰۔
⑪ تمنى النبي ﷺ لقاء علي ﷺ: ۱۳۔
⑫ كون سب علي ﷺ سب النبي ﷺ: ۱۰
⑬ كون علي ﷺ مثل عيسى عليه السلام: ۱۶ ۔
⑭ تزويج النبي رضي الله عنه فاطمة رضي الله عنها إياه: ۱۸
⑮ حصول الشفاء لعلي ﷺ بدعاء النبي ﷺ: ۳، ۲۱۔

**د حضرت علی مختصر تعارف:**

دڅلورم خلیفه مبارك نوم حضرت علی ﷺ دي کنیت ابوالحسین اوابوتراب دي اولقب اسدالله، حیدر او المرتضی دي ابوتراب کنیت درسول الله ﷺ د طرف نه ورکړې شوې دي. دهغوی نسب حضورپاك سره ډیرنیږدې دي ځکه چه هغوی د حضورپاك دتره خوئی دي اود ابوطالب خوئی دي هغوی د پلار اومور دواړو د طرف نه هاشمي دي دهغوی پلار ابوطالب خومسلمان نه شو لیکن دهغوی مور بی بی فاطمه بنت اسد مسلمانه شوې وه اود مدینې طرف ته ئی هجرت هم کړې وو حضرت علی ﷺ د وړوکوالی نه د حضورپاك په پالنه او دتربیت په غیږ کښې پاتې دي. حضورپاك هغه دځپل بچی په شان پاللې دي

اوبيائی حضرت فاطمه الزهری رضي الله عنها سره نکاح کولوسره دَ خوم ولنی عزت هم ورکړو. حضرت علی رضي الله عنه په صحابه کرامو کښې دَټولو نه زيات فصيح اودَ اوچتې درجې خطيب وو او په تکړه والی اوبهادرئی کښې دَټولونه ممتازمنلې شوې وو.

**د حضرت علی رضی الله عنه خلافت او شهادت:** ۳۵هجری کښې دَحضرت عثمان رضي الله عنه دَ شهادت نه پس په خلافت باندې کيناستو اودرې ورځې کم پنځو کالوپورې په مسند دَ خلافت پاتې کيدو سره ۶۳ کالوپه عمر کښې ۱۸ رمضان ۴۰هجری کښې دَ عبدالرحمن بن ملجم خارجی په لاس باندې په کوفه کښې دَسحرپه وخت دَ شهادت جام نوش کړو اودَ هميشه دَپاره ئی خلافت راشده رخصت کړو. په کوفه نجف کښې دَهغوی قبرستان خودلې شی. په نجف کښې اگرچه دَهغوی مزار جوړشوې دې مگر دَدې حقيقت هم دومره دې کوم چه په حيوة الحيوان کښې ليکلې شوې دې.

يوځل هارون الرشيد په دې ځائی تيريدلو يوبوډا سړې يوقبرسره ناست وو ژړلې هارون الرشيد تپوس اوکړو نوهغه بوډا اووئيل دادَحضرت علی رضي الله عنه قبردې هارون الرشيد دَدې دَمرمت او حفاظت حکم ورکړو.

**د علی رضی الله عنه قد او حليه:** دَهغوی قد ټيټ ووبدن ئی چاق وو. ډيره ئی لويه اوگنړه وه. پوره سينه به ئی دَ ږيرې لاندې راتله. دَهغوی رنګ غنم رنګې وو. دَحضرت فاطمه بی بی رضي الله عنها په ژوند کښې دَهغوی بله نکاح نه وه شوې. دَ حضرت فاطمه الزهری رضي الله عنها نه دَهغوی دوه خامن حضرت حسن او حضرت حسين رضي الله عنهما وو اودوه لونړه ئی وې. دَغزوه تبوک نه علاوه په ټولو غزواتو کښې حضورپاك سره شريك شوې اوډيرې لوئی کارنامې ئی سرته رسولی دی. حضورپاك ته حضرت علی رضي الله عنه غسل ورکړې. دَحضرت ابوبکر رضي الله عنه په دورخلافت کښې دَ هغوی وزير اومشيرپاتې دې. او په اسلامی قضاء باندې پاتې دې دَخپلې لور ام کلثوم نکاح ئی حضرت عمرفاروق رضي الله عنه سره کړې او په خپل دور خلافت کښې ئی دا فرمان جاری کړو چه کوم سړې ماله په ابوبکر او عمر رضي الله عنهما باندې فوقيت راکړی نوزه به په هغوی باندې دَ بهتان لګولوحد جاری کوم په حضرت عثمان رضي الله عنه باندې چه کله باغيانو حمله اوکړه نوحضرت علی رضي الله عنه مکمل دفاع اوکړه اوحضرات حسنين رضي الله عنهما ئی په حفاظت باندې اولګول دَهغوی په دورخلافت کښې دَمسلمانانودَخپل مينځ جنګونودَ وجې نه کافرانوسره بيرونی جنګونه موقوف کړل حضرت علی رضي الله عنه په دغه ټولو جنګونوکښې په حق باندې وو. دَ مقابل طرف نه اجتهادی غلطی شوې چه ان شاء الله معاف به شی. او خوارج خو باغيان او اهل النار وو حضرت علی رضی الله نه ډير پرهيزګار تهجدګذار اوشپې رونړه وونکې ؤو. په ژړا ژړا به ئی شپه تيروله. خپله ږيره به ئی نيولوسره وئيل اې دنيا ته غداره ئی اوزما مخې ته سفرډير اوږددې افسوس اوارمان

**دمعاویه او علی رضی الله عنهما د اشعارو مکالمه:** سفراوږد دې او خرچه د سفرکمه ده. هم دغه شان به سحرشو هغوی د عشره مبشره نه وو.
یوځل حضرت معاویه رضی الله عنه هغوی ته یوخط اولیکلو په کوم کښې چه حضرت معاویه رضی الله عنه په خپل فضیلت کښې حضورپاك سره خپل قرب بیان کړې وو هغوی ورله په اشعارو کښې جواب ورکړو د ناظرینو دخوند اومزې دپاره هدیه ناظرینوته وړاندې کوم

حُكِيَ أَنَّ مُعَاوِيَةَ كَتَبَ إِلَى عَلِيٍّ فَقَالَ يَا أَبَا الْحَسَنِ إِنَّ لِي فَضَائِلَ، أَنَا صِهْرُ رَسُولِ اللهِ وَكَاتِبُهُ لِلْوَحْيِ فَقَالَ عَلِيٌّ وَاللهِ مَا أَكْتُبُ إِلَيْهِ إِلَّا شِعْرًا فَكَتَبَ:

مُحَمَّدٌ النَّبِيُّ أَخِيْ وَصِهْرِيْ ... وَحَمْزَةُ سَيِّدُ الشُّهَدَاءِ عَمِّيْ
وَجَعْفَرُ الَّذِيْ يُمْسِيْ وَيُضْحِيْ ... يَطِيْرُ مَعَ الْمَلَائِكَةِ ابْنُ عَمِّيْ
وَبِنْتُ مُحَمَّدٍ سَكَنِيْ وَعِرْسِيْ ... مَشُوْبٌ لَحْمُهَا بِدَمِيْ وَلَحْمِيْ
وَسِبْطَا أَحْمَدَ ابْنَايَ مِنْهَا ... فَمَنْ مِنْكُمْ لَهُ سَهْمٌ كَسَهْمِيْ
سَبَقْتُكُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ طُرًّا ... غُلَامًا بَلَغْتُ أَوَانَ حِلْمِيْ

(شرح وقایه ۲/۳۳۰)

فَقَالَ مُعَاوِيَةُ أَخْفُوْا هٰذِهِ الْأَشْعَارَ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ لِئَلَّا يَمِيْلُوْا إِلَى عَلِيٍّ.

بهرحال دحضرت علی رضی الله عنه فضائل ډیرزیات دی. ددې دوه وجوهات دی یودا چه دحضرت علی رضی الله عنه په شان کښې خوارج وغیره غلط قسم خبرې اوکړې قسم قسم پیغورونه ئې اوکړل په دې وجه صحابه کرامو بنه په ښکاره دهغوی ټول فضائل عام کړل نواحادیث محفوظ شو دویمه وجه داده چه شیعه او روافض دحضرت علی رضی الله عنه په فضائلو کښې د دروغو روایتونه جوړوی بهرحال په ماشومانو کښې د ټولونه اول حضرت علی رضی الله عنه د اتوکالو په عمرکښې اسلام قبول کړې وو

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۶۰۸۷] نبی کریم پاك سره په قرب منزلت کښې تشبیه**

۶۰۸۷ - (۱) [۱] [۱] عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِعَلِيٍّ: [۲] «أَنْتَ مِنِّي بِمَنْزِلَةِ هَارُونَ مِنْ مُوسَى، إِلَّا أَنَّهُ لَا نَبِيَّ بَعْدِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه وايي رسول كريم ﷺ حضرت علي رضی الله عنه ته وفرمايل [۲] په دنیا او په آخرت کښې قرابت اومرتبه کښې اودیني مددگار کیدو اعتبار نه ته زمادپاره داسې یې ځرنګه چې موسی علیه السلام دپاره هارون علیه السلام وو بس فرق دادی چې زما نه وروسته څوک نبي نه وي (بخاري مسلم) [اخرجه البخاری و مسلم]

---

[۱] اخرجه البخاري فی کتاب المناقب/باب مناقب علی بن أبی طالب القرشی الهاشمی أبی الحسن رضی الله عنه (رقم-۳۷۰۶) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل عثمان بن عفان رضی الله عنه (رقم-۲۸-۲۴۰۳) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۷۲٤) وابن ماجه فی کتاب الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل علی بن أبی طالب رضی الله عنه (رقم-۱۱۵) واحمد فی المسند: ۱/۱۷۷

**تسهیلات:**

**قوله: أَنْتَ مِنِّي بِمَنْزِلَةِ هَارُونَ مِنْ مُوسَى،**

**د حدیث شان ورود او پس منظر:** حضورپاك چه کله د غزوه تبوك دپاره روان شو نوهغوی حضرت عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنه په مدینه باندې خپل نائب مقرر کړو چونکه د تبوك سفراوږد وو په دې وجه د حضورپاك د اهل وعيال د خيال ساتلو ضرورت وو حضورپاك د خپل اهل و عيال د خيال ساتلودپاره حضرت علی رضی الله عنه مقرر کړو په دې باندې منافقانو اعتراض اوکړو چه علی رضی الله عنه رور ګڼری نوشاته ئې اوساتلو دې دپاره چه د سفرد مشقت نه بچ شی اوبل د مرګ د خطرې نه لرې شی. کله چه حضرت علی رضی الله عنه ته د دې علم اوشو نوهغه پریشان شو اوهسې هم هغه پریشان وو چه د جهاد د میدان نه ئې شاته پریخودو فرمائی چه زه به کله مدینې منورې ته بهروتلم نوچه معذوره خلق به بنکاریدل یا به ښځې او بچی وو یا منافقان به ګرځیدل نو په دې حالت سره به هغه پریشانه کیدواو ژړل به ئې حضورپاك له لاړو حضورپاك د مدینې نه لرشان بهر مقام جرف کښې اسلامی فوج ته تربیت ورکولوکښې مصروف وو.

**علی رضی الله عنه ته تسلی ورکول:** حضرت علی رضی الله عنه د خپلې پریشانئی اظهاراوکړوپه کوم چه حضورپاك حضرت علی رضی الله عنه ته تسلی ورکړه او په جواب کښې ئې اوفرمائيل چه آیا ته په دې باندې خوشحال نه ئې چه ته زمانه شاته پاتې کیدوکښې داسې ئې لکه چه حضرت موسی علیه السلام د معراج الهی دپاره تلې وو اوهارون علیه السلام ئې شاته پریخودې وو دا منافقان دروغژن دی مونږ ستاد شان کمولودپاره یا ستاد خان بچ کولودپاره ته شاته نه ئې پریخودې په دې کلام کښې د حضرت علی رضی الله عنه هغه فضیلت طرف ته اشاره ده چه په قرب منزلت کښې حضرت علی رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل رور ګرځولې دې اودا تشبیه هم په دې قرب منزلت کښې ده مګر په دې کښې شك کیدې شوچه حضرت علی رضی الله عنه هم د حضرت هارون علیه السلام په شان نبی جوړشی. د دې وهم لرې کولودپاره حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو چه دا تشبیه صرف په اخوت یعنی رورولئی کښې ده نبوت کښې نه ده ځکه چه مانه پس څوك نبی نشته دې.

**د حدیث څخه په خلافت علی استدلال:** د دې حدیث نه شیعه شنیعه او رافضه مرفوضه په ډیر زور او شور سره دا استدلال کوی چه په دې کښې د حضرت علی رضی الله عنه د خلافت خبره کړې شوې ده چه د حضورپاك نه پس به علی خلیفه بلافصل وی نورو خلفاؤ د حضرت علی رضی الله عنه نه خلافت غصب کړې امت مزاحمت اونه کړو لهذا ټول ګمراه شو. علی خو د تقیه نه کار واخستو باقی ټول کافران شو.

**د استدلال جوابونه:** ① دلته تشبیه صرف په قرب منزلت کښې ده نه چه په نبوت کښې ده

اونه په خلافت کښې ده ځکه چه دَ حضرت هارون عليه السلام دَ حضرت موسىٰ عليه السلام نه ځلوېښت کاله مخکښې انتقال شوې وو حضرت هارون عليه السلام چه نه روستو پاتې شو اونه دَ يوې لمحه دَپاره خليفه جوړشو نو په دې سره دَحضرت علي رضي الله عنه دَخلافت طرف ته څنګه اشاره کيدې شي معلومه شوه چه رافضي دروغژن دي

۲ شيعه ګان وائي حضرت علي رضي الله عنه ته په غدير خُم کښې خلافت ورکړې شوې وو هغه وخت هغه خليفه جوړشوې ووکه هغه دَ مخکښې نه خليفه وو نو په دې موقع باندې هغه ته کوم يوخلافت ورکړې شو؟ معلومه شوه چه شيعه ګان دروغژن دي

۳ دَدې حديث ارشاد فرمائيلونه پس حضورپاك کافي موده په دنيا کښې حيات وودَ حضورپاك په ژوند کښې خونه حضرت علي رضي الله عنه خليفه شو اونه کيدې شو، معلومه شوه چه شيعه ګان دروغژن دي

۴ که چرې دغه شان دَخلافت تصريح اووصيت دَحضرت علي رضي الله عنه دَپاره وو نوهغوی له دَحضورپاك نه پس دَدې دعوىٰ کول پکاروو اوعوامو ته خودل پکاروو چه خلافت زما حق دې تاسو زمانه زما حق مه غصب کوئی ګنی زه به دَخپل حق دَپاره تاسو سره جنګ اوکړم کله چه دَ حضرت علي رضي الله عنه دَ طرف نه په خان له يا عام مجلسونو کښې دَدې خبرې طرف ته اشاره قدرې هم نه ده شوې نو نن صبا شيعه ګان دا عظيم بهتان او دا لوئی طوفان ولې په سر اوچت کړې دي؟ معلومه شوه چه شيعه ګان دروغژن دي.

**د خلافت وصيت په عدم اظهار کښې د شيعه ګانو نظريه:** شيعه ګان دا وائي چه حضرت علي رضي الله عنه تقيه کړې ده

**د شيعه ګانو د نظريه تغليط:** عرض دادې چه په دومره لويه مسئله کښې اودَ شريعت دومره لوئی حکم که چرې حضرت علي رضي الله عنه غوندې بهادر دَ ويرې نه پټ کړې او په ځله سره نی دَ خپلو ملګرو په مجلس کښې هم دَدې اظهارنه شو کولې نوداسې علي خودَخلافت مستحق هم نه وو اونعوذبالله هغه خودَ لوئی ګناه مرتکب شوې هم دې بيا که چرې داسې وه نو حضرت علي رضي الله عنه دَ خپل خليفه برحق کيدو په زمانه کښې ولې تقيه اونه کړه اودَ حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه نه پس کله هغه خليفه برحق څلورم جوړشو نوهغوی په دې حق باندې جنګ جمل ولې اوکړو؟ اوهغوی په دغه حق باندې جنګ صفين ولې اوکړو په کوم کښې چه په زرګونو مسلمانان مړه شو؟ معلومه شوه چه شيعه ګان شيطانان دي او صرف دَ شيطان دَپاره شيطاني کوي

**په مذکوره استدلال د ملا علي قاري تبصره:** ملاعلي قاري رحمه الله په مرقات کښې دَدې حديث په شرح کښې ليکلي دي چه دَ شيعه روافض دا اعتراض دَدې قابل نه دې چه دَدې جواب ورکړې شي اودَدې حديث په بنيادباندې شيعه ګانو ټولو صحابه کرامو ته کافران وئيلي

دی لهذا دَ شیعه ګانو په کافر کیدو کښې هیڅ شك نشته دي. عبارت اوګورئ:

"وَلَاشَكَّ فِيْ تَكْفِيْرِ هٰؤُلَاءِ لِأَنَّ مَنْ كَفَّرَ الْأُمَّةَ كُلَّهَا وَالصَّدْرَ الْأَوَّلَ خُصُوْصًا فَقَدْ أَبْطَلَ الشَّرِيْعَةَ وَهَدَمَ الْإِسْلَامَ وَلَا حُجَّةَ فِي الْحَدِيْثِ لَهُمْ" (مرقات: ۱۰/۴۵۵)

## [۶۰۸۸] د علي رضي الله عنه سره محبت او ایمان

۶۰۸۸ - (۱) [۲] ۱ وَعَنْ زِرِّبْنِ حُبَيْشٍ، قَالَ: «قَالَ عَلِيٌّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -: ۲ وَالَّذِي فَلَقَ الْحَبَّةَ وَبَرَأَ النَّسَمَةَ، إِنَّهُ لَعَهْدُ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِلَيَّ: ۳ أَنْ لَا يُحِبَّنِي إِلَّا مُؤْمِنٌ، وَلَا يُبْغِضَنِي إِلَّا مُنَافِقٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ اوحضرت زربن حبیش تابعي وایي سیدنا علي وفرمایل ۲ قسم دي په هغه ذات چې دانه یې چولې ده (زرغونه کړې ده) اوذی روح یې پیدا کړیده درحقیقت نبي امي ﷺ ماته یقین راکړی وو ۳ چې څوک کامل مؤمن وي هغه به ما سره یعني علي رضي الله عنه سره محبت ساتي اوڅوک چې منافق وي هغه به ما سره عداوت ساتي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَلَقَ: أَيْ شَقَّهَا: چولې ئې ده، څیرلې ئې ده (یعنی زرغونه کړې ئې ده). ② الْحَبَّةَ: دانه، غله یعنی تخم. ③ بَرَأَ: أَيْ خَلَقَ: پیدا کړې ئې دي. ④ النَّسَمَةَ: أَيْ ذَاتِ رُوحٍ: هر ساه لرونکې، ذي روح. ⑤ لَعَهْدُ: تاکیدی حکم اوبخې خبرې ته وائي.

**تسهیلات: قوله:** أَنْ لَا يُحِبَّنِي:

**دعلي رضي الله په حق کښې دوه ډلې:** ① دَحضرت علي رضي الله عنه معامله عجیبه اومشکل پاتې ده اوترنته پورې هم هغه شان مشکله ده. هغه داسې چه دَانسانانو یوفریق هغه دَ خپل مقام نه ښکته راګذار کړو اوپه هغوی باندې هرقسم زیاتې اوکړو دا خوارج دی چه دَ منافقانو یوقسم دې هغوی حضرت علي رضي الله عنه ته ترکافره پورې اووئیل او کنځلې ئې ورته کولې.

② یوفریق هغوی دومره زیات اوخیژول چه هغه ئی د خدائي په مقام باندې اودرولو او دَحضرت علي رضي الله عنه په وفادارانو کښې یوه ډله داسې راپیدا شوه چه حضرت علي رضي الله عنه دَ خدائي مقام ته اورسولو چه نن صباد شیعه او روافض په نوم پیژندلې شي.

**د شریعت اعتدال لاره:** شریعت مطهره دَهغوی باره کښې یومعتدل لار اوخودله چه هغوی سره محبت ساتئ اوپه هغوی باندې زیاتې مه کوئ.

**د علي رضي الله عنه تشبیه د عیسی علیه السلام سره:** په زیربحث حدیث کښې هم دَدغه کمي زیاتي په مینځ کښې دَلارې خودنه کړې شوې ده په دې باب کښې وړاندې حدیث نمبر (۶۱۰۲) راځي په هغې کښې خو په واضحه توګه حضورپاك فرمائیلي دي اې علي!

---

[۱] اخرجه مسلم في كتاب الإيمان/باب الدليل على أن حب الأنصار وعلى رضي الله عنهم من الإيمان وعلاماته، وبغضهم من علامات النفاق (رقم-۱۳۱ - (۷۸) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۷۱۷) والنسائي في كتاب الإيمان وشرائعه/باب علامة الإيمان (رقم-۵۰۱۸) واحمد في المسند: ۸۴/۱

ستا مثال دحضرت عیسی علیه السلام په شان دې چه په هغوی باندې یهودو بهتان اوتړلو اوزیاتې ئې اوکړو اونصارئ دومره زیات وړاندې کولو سره پیش کړو چه دالله تعالی مقام ته ئې اورسولو.

## [٦٠٨٩] دعلی رضی الله عنه په لاس د خیبر قلعه فتح کیدل

٦٠٨٩-()[٣][١]وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ يَوْمَ خَيْبَرَ:[٢]«لَأُعْطِيَنَّ هَذِهِ الرَّايَةَ غَدًا رَجُلًا يَفْتَحُ اللَّهُ عَلَى يَدَيْهِ، يُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيُحِبُّهُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ. [٣]فَلَمَّا أَصْبَحَ النَّاسُ غَدَوْا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-كُلُّهُمْ يَرْجُونَ أَنْ يُعْطَاهَا. [٤]فَقَالَ: "أَيْنَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ؟". فَقَالُوا: هُوَ يَا رَسُولَ اللَّهِ يَشْتَكِي عَيْنَيْهِ. [٥]قَالَ فَأَرْسِلُوا إِلَيْهِ".

**ترجمه**: [١] اوحضرت سهل بن سعد ساعدي رضی الله عنه نه روایت دی رسول کریم ﷺ دغزوه خیبر په ورځ وفرمایل [٢]صبا به زه دابیرغ (چې دکماندانی علامه ده) یوداسې سړی ته عطا کوم چې دهغه په لاس به الله تعالی فتح ورکړي اوهغه سړی الله اودالله رسول دوست لري، او الله اودهغه رسول هغه دوست لري، [٣]نوټول صحابه رضی الله عنهم دې انتظار اوشوق کښې ټوله شپه په وینښه تیره کړه چې ګورو صباله به دا سرفرازي دچاپه حصه کښې راځي کوم وخت چې سهار شو نوهر سړی دی ارزو سره درسول کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو چې جنډه به هغه ته حاصلیږي [٤]حضور ﷺ ټول صحابه رضی الله عنهم باندې نظر اچولو سره وفرمایل علي رضی الله عنه ابن ابي طالب چیرته دی دراصل حضرت علي رضی الله عنه دسترګوپه خوږ کښې مبتلا شوی وو اوپه دې وجه هغه وخت حاضر نه وو صحابه رضی الله عنهم عرض وکړ یارسول الله دسترګو خوږ هغه پریشان کړی دی اوددې عذر په بنا دلته موجود نه دی [٥]حضور ﷺ وفرمایل هغه راوغوښتي

**حل اللغات**:- ①لَأُعْطِيَنَّ: خامخا به ورکوم. ②الرَّايَةَ:أي: الْعَلَمَ: جهنډا (دا دجنګ په دوران کښې د کماندړئ او مشرئ علامت وی). ③غَدَوْا: أي: أَتَوْهُ وَقْتَ الْغُدْوَةِ: دسحریه وخت کښې راتلل مراددی.

[١]فَأُتِيَ بِهِ فَبَصَقَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-فِي عَيْنَيْهِ فَبَرَأَ حَتَّى كَأَنْ لَمْ يَكُنْ بِهِ وَجَعٌ، [٢]فَأَعْطَاهُ الرَّايَةَ فَقَالَ عَلِيٌّ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أُقَاتِلُهُمْ حَتَّى يَكُونُوا مِثْلَنَا؟ [٣]قَالَ: "انْفُذْ عَلَى رِسْلِكَ حَتَّى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ، ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ، وَأَخْبِرْهُمْ بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ مِنْ حَقِّ اللَّهِ فِيهِ، [٤]فَوَاللَّهِ لَأَنْ يَهْدِيَ اللَّهُ بِكَ رَجُلًا وَاحِدًا خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ يَكُونَ لَكَ حُمْرُ النَّعَمِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] نوحضرت علي رضی الله عنه راوستل شو رسول کریم ﷺ خپل لعاب دهن دهغوی په

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب غزوة خیبر (رقم-٤٢١٠) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل علی بن أبی طالب رضی الله عنه (رقم-٣٤ - (٢٤٠٦) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٣٧٢٤) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل عثمان رضی الله عنه (رقم-١١٣) واحمد فی المسند: ٣٣١/١

سترګو کښې واچول نو د هغوی سترګې یو دم داسې ښې شوې لکه چې په هغه کښې څه تکلیف اوخرابي دسره نه وه [۲] دي نه وروسته حضور ﷺ هغوی ته جنډه ورکړلې حضرت علي رضي الله عنه په دې سرفرازي سره ډیر خوشحاله شو اوهغه اوویل یارسول الله زه به هغه خلقو دښمنانو سره هغه پورې جنګیږم څوپورې چې هغوی زمونږ په شان مسلمانان نشي [۳] حضور ﷺ وفرمایل څه خونرمي اوبردباري سره د دښمنانو علاقې ته ورشه بیا د تولو څخه مخکې هغوی ته د اسلام دعوت ورکړه اوهغوی ته د الله هغه حقوق وښایه چې اسلام په هغوی عائد کوي بیا که هغوی اسلام قبول نه کړو نوجزیه ترینه طلب کړه که جزیه باندې صلح کولو څخه انکار وکړي نو آخر کښې د هغوی خلاف د جنګ اعلان وکړه اوهغوی سره هغه وقته پورې جنګ کوه څوپورې چې مسلمانان نشي [۴] نو اې علي رضي الله عنه قسم په الله داخبره که الله تعالی ستاپه ذریعه یوسړي ته هم هدایت وکړي نوستا دپاره د حاصلیدونکو سرواوښانو اوڅوپایو نه زیاته بهتر دي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ۴ فَبَصَقَ: أي: أَلْقَى بُزَاقَهُ: خپلې لاړې مبارک ئې پکښې واچول ۵ وَجَعٌ: درد او تکلیف. ۶ انْفُذْ: أي امْضِ: لاړشه. ۷ عَلَى رِسْلِكَ: أي رِفْقِكَ وَلِينِكَ: په نرمئ او بردبارئ سره (لاړشه). ۸ بِسَاحَتِهِمْ: أي فِنَاءِهِمْ: آبادئ دهغوی. ۹ حُمْرُ النَّعَمِ: حُمر سورته وائی او نعم څاروو ته وائی دلته ترې اوښان مراد دي. یعنی حُمْرُ الإِبِلِ: سره اوښان (دا به د عربو په نزد ډیر قیمتی ګڼړلې کیدل)

| [۱] وَذَكَرَ حَدِيثَ الْبَرَاءِ، قَالَ لِعَلِيٍّ: "«أَنْتَ مِنِّي وَأَنَا مِنْكَ»" فِي بَابِ "بُلُوغِ الصَّغِيرِ". |
|---|

**ترجمه:** [۱] اوحدیث دبراء رضي الله عنه چې نبي ﷺ علي رضي الله عنه ته وفرمایل ته زما څخه یې اوزه ستا څخه یم په باب بلوغ الصغیر کې ذکرشوي دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** قَالَ يَوْمَ خَيْبَرَ:

**حضرت علی رضی الله عنه خیبر فتح کول:** په کال ۷ هجری کښې دَ غزوه خیبر واقعه پیښه شوې وه پنځلس سوا صحابه کرامو په دې غزوه کښې حصه اخستې وه په خیبرکښې دَ یهودیانو ډیر مضبوطې قلعه ګانې او مضبوط ځایونه وو یومیاشت پورې حضورپاك اوصحابه کرام په مورچو کښې وو په دې قلعه ګانو کښې قلعه قموص یوه مضبوطه ډیره سخته قلعه وه ډیرخل صحابه کرامو دَ دې دَماتولو کوشش اوکړو مګر قلعه فتح نه شوه. په دې موقع باندې حضورپاك اوفرمائیل چه زه به صباله جهنډا دَ داسې سرې په لاس کښې ورکوم چه دَهغه په لاس به الله تعالی دا قلعه فتح کړی هغه سړې الله تعالی محبوب ساتی او الله تعالی هغه سړې محبوب ساتی. هرصحابی دَ جهنډې دَ حاصلولو خواهش اوکړو مګر حضورپاك دا عظیم اعزاز دَ حضرت علی رضي الله عنه په لاس کښې ورکړو. حضرت علی رضي الله عنه لاړو اوقلعه قموص ئی فتح کړه او دَ فاتح خیبر لقب ئی حاصل کړو.

**قوله:** يَكُونُوا مِثْلَنَا:

**مثلیث صرف په ایمان کښې:** دَدې مطلب دادې چه هغه خلق زمونږ په شان مسلمانان شی اویهودیت پریخودو سره مسلمانان شی په مثلنا کښې تشبیه صرف مسلمان کیدو کښې ده په ایمانی کیفیت کښې نه ده ځکه چه دَدې کیفیت تعلق دَانسان خپل خپل اخلاص سره ده حضرت علی رضی الله عنه په دې جمله کښې دا اراده اوکړه چه دَدعوت نه بغیر په توره وهلوسره تول قتل کړم اوترکومې پورې چه هغوی مسلمانان کیږی نه چه روستونه شم یعنی په توره سره دعوت وی په ژبه سره نه وی.

**کافرانوباندې د حملې کولو ترتیب:** ① حضورپاك په جواب کښې اوفرمائیل "ثم ادعهم" یعنی اول دَ اسلام دعوت ورکړه که چرې قبول نی نه کړو نو بیا دَ جزئیه دعوت ورکړه که چرې قبول نی نه کړو

② نو بیا په میدان کښې دَ جنګیدلودَپاره تیارشه. بیا حضورپاك دَ دعوت فائده دا بیان کړه که چرې ستا په لاس باندې یو سړې هم په هدایت باندې راغلو نودا ستادَ پاره دَ سرو اوښانونه زیات بهتر دی.

**د خیبر یهودیانو ته د دعوت حیثیت:** هرمسلمان له پوهیدل پکاردی چه دَ خیبریهودیانوته دَاسلام دعوت اول رسیدلې وو په میدان جهاد کښې دَ نوی سر نه داسې دعوت ورکول دَمستحب په درجه کښې دی کوم چه دَجهاد دَ آداب نه دی. حضرت علی رضی الله عنه چونکه یودم دَحمله کولو اراده ښکاره کړې وه په دې وجه حضورپاك هغه ته دَ جهاد دَ آدابو نه دَ دعوت ادب اوخودلو. که چرې دلته دعوت واجب وې نو حضورپاك تقریبًا ۲۵ ورځې په خیبر کښې جنګیدلو هغوی دا دعوت مخکښې ولې ورنه کړو؟ چه نن حضرت علی رضی الله عنه دَدعوت ورکولوحکم ورکوی اصل حقیقت هم دغه دې چه دَخیبر یهودیانوته واجب دعوت رسیدلې وو دا استحبابی دعوت وو کله ورکولې شی کله نه شی ورکولې.

**دصحابؓ په لاس د خیبر فتح:** په دې حدیث کښې شیعه ګان هم غلطی کوی اووائی چه خیبرصرف حضرت علی رضی الله عنه فتح کړې دا غلطه ده. حضرت علی رضی الله عنه صرف یوه اهم قلعه قموص فتح کړې وه باقی یونیم زر صحابه کرامو دَ یوې میاشت پورې جنګ کړې وو زخمیان شوی اوشهیدان شوی وو بیا هغوی ته دَ غنیمت دَمال نه حصه ملاؤ شوې وه. دا څنګه وئیلی شی چه صرف حضرت علی رضی الله عنه خیبر فتح کړې وو. حضرت علی رضی الله عنه خو په جنګ احد کښې هم وو هلته عارضی ماتې څنګه خوړلې وه؟ دغه شان دَحنین په جنګ کښې هم وو هلته څنګه عارضی ماتې اوخوړلې شوه؟ غلطه خبره مه کوئی. دَ حضرت علی رضی الله عنه لوئی شان دې مګر هغه ته خدائی مه وایئی دَ خدائی بنده ورته وایئی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٦٠٩٠] دکمال قرب اوتعلق اظهار**

٦٠٩٠-(١)[٣] [١]عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] «إِنَّ عَلِيًّا مِنِّي وَأَنَا مِنْهُ، [٣] وَهُوَ وَلِيُّ كُلِّ مُؤْمِنٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت عمران ابن حصين رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [٢] حقيقت دادی چې علي رضی الله عنه زما نه دی اوزه دعلي رضی الله عنه نه يم [٣] وهغه علي رضی الله عنه دټول اهل ايمان دوست اومددګار دی (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① عَلِيًّا مِنِّي وَأَنَا مِنْهُ: علي رضی الله عنه زما څخه دی (يعنی په نسب سخرګنی (ويه تقديه د اسلام او مينه محبت وغيره کنبي). ② وَلِيٌّ: أَيْ: حَبِيبُهُ: محبوب، دوست اومددګار.

**تسهيلات: قوله:** وَأَنَا مِنْهُ:

**د مذکوره جملې مطلب:** دې جملې سره حضورپاك حضرت علي رضی الله عنه سره کمال قرب تعلق اودَ اخلاص يوشان والې او په حسب نسب کنبې دَ اشتراك طرف ته اشاره کړې ده مطلب دا چه حضرت علي رضی الله عنه سره زما قرابت هم دې مصاهرت هم دې محبت هم دې

بيا دا ياد ساتئي چه داجمله حضورپاك صرف دَحضرت علي رضی الله عنه دَپاره نه ده فرمائيلې بلکه دَ سلمان فارسي رضی الله عنه دَپاره هم ده.

**قوله:** وَهُوَ وَلِيٌّ:

**حديث کښې د ولی مطلب:** دَ ولی ډيرمعانې راځی په کوم کښې چه يوه دَمحبوب هم ده دَحضرت علي رضی الله عنه دَ پاره هم دغه معنی استعمال کړې شوې ده دې سره حديث کښې هم دا لفظ هم دَدې محبوب په معنی کنبې استعمال کړې شوې دې

**[٦٠٩١] د نبی دوستانه د علی دوستانه**

٦٠٩١-(٢) [د] [١] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] قَالَ «مَنْ كُنْتُ مَوْلَاهُ فَعَلِيٌّ مَوْلَاهُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] اوزيد بن ارقم رضی الله عنه نه روايت دی نبی کريم ﷺ وفرمايل [٢] زه چې دچا دوست يم علي رضی الله عنه هم دهغه دوست دی (احمد اوترمذي)

**حل اللغات:** - ① مَوْلَاهُ: مِنَ الْوَلِيِّ ضِدِّ الْعَدُوِّ: ددې معنی دوست ده. دکوم ضد چه دشمن راځی

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب علی بن أبی طالب رضی الله عنه. يقال وله کنيتان: أبو تراب، وأبو الحسن (رقم-٣٧١٢) واحمد فی المسند: ٤/٤٣٧

[٢] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب علی بن أبی طالب رضی الله عنه. يقال وله کنيتان: أبو تراب، وأبو الحسن (رقم-٣٧١٣) واحمد في المسند: ٤/٣٦٨

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ كُنْتُ مَوْلَاهُ فَعَلِيٌّ مَوْلَاهُ

**د ولی دوه معانی:** ① كوم سړی لره چه زه دوست ساتم هغه لره علی رضی الله عنه هم دوست ساتي.
② كوم سړي چه زما حامي او مددګار او دوست دي نوحضرت علی رضی الله عنه هم دَ هغه حامی مددګار او دوست دي. دَدي نوره تشريح وړاندې هم راغلې.

**[۶۰۹۲]زما معاهدات علی رضی الله عنه سرته رسولې شی**

۶۰۹۲-() [۲] [۱]وَعَنْ حُبْشِيِّ بْنِ جُنَادَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲]" «عَلِيٌّ مِنِّي وَأَنَا مِنْ عَلِيٍّ، [۳]وَلَا يُؤَدِّي عَنِّي إِلَّا أَنَا أَوْ عَلِيٌّ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت حبشي بن جناده رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲]علي رضی الله عنه زما نه دی اوزه دعلي رضی الله عنه نه يم [۳]زما دطرف نه دنبذ عهد ذمه واري دي هيڅوک نه اداکوي علاوه زما اودعلي رضی الله عنه نه ترمذي اواحمد داروايت دابوجناده نه نقل کړی دی.

**حل اللغات:** - ① لَا يُؤَدِّي: أَيْ نَبْذَ الْعَهْدِ: معاهده اومعامله دې نه پوره کوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا يُؤَدِّي عَنِّي:

**د علی رضی الله عنه د خپل طرفه ذمه وارجوړول:** په دې حديث کښې هم حضورپاك حضرت علی رضی الله عنه سره خپل کمال قرب بيان کړې دې اودَ "لايؤدي" سره دَدې حقيقت طرف ته اشاره کړې ده کوم چه دَعربو دستور وو چه کوم سړی به څه معاهده يا معامله کوله نوهغه پخپله هم هغه سړی ختمولې شوه يا دَهغه څوك نيزدې خپلوان ختمولې شوه. رسول الله صلی الله علیه وسلم دَخپلو معاملاتو او معاهداتودَ ختمولو او جوړولو ذمه واری حضرت علی رضی الله عنه باندې اچولې وه.

**په معاهداتو کښې دعلی د نيابت څو مثالونه:** ① دَهجرت په شپه حضورپاك حضرت علی رضی الله عنه خپل شاته پريخودو چه دَامانتونو دَحواله کولومعاملات سرته اورسولې شی.
② بيا قريشوسره چه کومې معاهدې شوې وې دَهغې دَختمولو يا دَتجديد کولودَاعلان دَپاره حضرت علی رضی الله عنه دَ صديق اکبر رضی الله عنه نه پس روان کړو په دغه سفرکښې حضرت علی رضی الله عنه اميرالحج نه وو بلکه صرف دَاعلان کولودَپاره مکې ته راغلې وو. امير الحج خو هم هغه شان حضرت صديق اکبر رضی الله عنه وو.

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب علی بن أبی طالب رضی الله عنه. يقال وله كنيتان: أبو تراب، وأبو الحسن (رقم-۳۷۱۶) وابن ماجه فی كتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل علی بن أبی طالب رضی الله (رقم-۱۱۹)واحمد فی المسند: ۴/ ۱۶۴

## [۶۰۹۳] د نبی علیه السلام او علی رضی الله عنه مواخاة

۶۰۹۳-()[۷] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: «آخَى رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-بَيْنَ أَصْحَابِهِ، [۲] فَجَاءَ عَلِيٌّ تَدْمَعُ عَيْنَاهُ، [۳] فَقَالَ: آخَيْتَ بَيْنَ أَصْحَابِكَ، وَلَمْ تُؤَاخِ بَيْنِي وَبَيْنَ أَحَدٍ. [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (أَنْتَ أَخِي فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ)» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضی الله عنه بیان کوي چې رسول کریم ﷺ دخپل صحابه رضی الله عنهم په منځ کښې ورور ولي قائمه کړه [۲] نو حضرت علي رضی الله عنه حضور ﷺ ته راغی او ستر ګو څخه یې اوښکي جاري وي [۳] او عرض یې وکی یارسول الله تاسو دخپلو صحابه رضی الله عنهم منځ کښې ورور ولي قائمه کړه لیکن زما ورور ولي مي دچاسره قائمه نه کړه دي اوریدو سره رسول کریم ﷺ هغوی ته وفرمایل ته زما ورور یې په دنیاکي هم او آخرت کښې هم دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث حسن غریب دی

**حل اللغات:**- ① آخَى: أَيْ جَعَلَ الْمُوَاخَاةَ فِي الدِّينِ: دینی ورور ولی ئې قائم کړه ② تَدْمَعُ: اوښکې نې بهیدلې

**تسهیلات:** **قوله:** أَنْتَ أَخِي فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ:

**د میثاق مواخاة کښې دعلی رضی الله عنه اسلامی ورور:** رسول کریم ﷺ چه کله دَ انصارو او مهاجرینو په مینځ کښې دَ رورولئی سلسله قائم کړه نو حضرت علی رضی الله عنه دَ هغه یو څو صحابه کرامو نه یو وو دَ چا چه هیچا سره رورولی نه وه قائم شوې په دې باندې حضرت علی رضی الله عنه خفه شو په دې وجه هغه په ژړا دَ حضوریاك په خدمت کښې حاضر شو چه تاسو نورو صحابه کرامو لکه حضرت ابوبکرصدیق، خارجه بن زبیر انصاری رضی الله عنهما په مینځ کښې او دَ حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت عتبان بن مالك رضی الله عنه په مینځ کښې او حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه او حضرت ثابت بن منذر رضی الله عنه په مینځ کښې رورولی قائمه کړې شوه لیکن دَ یو انصاری صحابی مو زما سره مواخاة قائم نه کړو

په دې باندې حضوریاك اوفرمائیل چه زه ستا رور موجود یم نو بیا تا له څه ضرورت دې چه ستا چاسره رورولی قائمه کړه. دا لکه چه په توګه دَ زیری او تسلئی دی په دَې سره هم کمال اتحاد او دَ قرب طرف ته اشاره ده

## [۶۰۹٤] علي د الله د محبوب ترین بنده مصداق ګرځیدل

۶۰۹۳-()[۸] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: «كَانَ عِنْدَ النَّبِيِّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-طَيْرٌ، [۲] فَقَالَ: "اللّٰهُمَّ ائْتِنِي بِأَحَبِّ خَلْقِكَ إِلَيْكَ يَأْكُلْ مَعِي هٰذَا الطَّيْرَ" [۳] فَجَاءَهُ عَلِيٌّ، فَأَكَلَ مَعَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۷۲۰)
[۲] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۷۲۱)

**ترجمه:**۱ اوحضرت انس ﷺ بيان كوي يوه ورځ دنبي كريم ﷺ مخې ته پخه كړې مرغې ايښودل شوې وه ۲حضور ﷺ دعا وغوښتله اې الله ستا مخلوقاتو كې چې څوك تاته زيات محبوب وي هغه ماته راوليږې چې ما سره ددې مرغې غوښه وخوري ۳نوحضرت علي ﷺ راغى اوهغوى حضور ﷺ سره هغه مرغې وخوړه دا روايت ترمذي نقل كړى دى او ويلې يې دي چې داحديث غريب دى.

**حل اللغات:-** ①طَيْرٌ: مرغى (چه وريته كړې يا پخ كړې شوې وه)

**تسهيلات:**

**قوله:** ائْتِنِي بِأَحَبِّ خَلْقِكَ إِلَيْكَ يَأْكُلُ مَعِي هَذَا الطَّيْرَ

**على د الله تعالى محبوب بنده ثابتيدل:** محبوب كيدل يوبل څيزدې اوپه مقام كښې اوچتيدل يوبل څيز دې. دَحضرت على رضي الله عنه محبوب كيدو مطلب دانه دې چه دَهغه نه علاوه بل څوك خليفه جوړول منع وو. دا دَ شيعه شنيعه دَخرافات نه دى. آخر داحديث هم دې چه په انسانانوكښې حضورپاك ته عائشه رضي الله عنها محبوب وه او په سړوكښې دَهغې پلار حضرت صديق اكبر رضي الله عنه محبوب وو.

**[٦٠٩٥] په وركړه كښې د نبى عليه السلام على سره خصوصى كردار**

٦٠٩٥-() [۹] ۱«وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: كُنْتُ إِذَا سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَعْطَانِي ۲وَإِذَا سَكَتُّ ابْتَدَأَنِي». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه:**۱ اوحضرت علي ﷺ وايي ماچې رسول كريم ﷺ نه كله هم څه شى غوښتى دى نوماته يې راكړي دي ۲وكله چې به زه خاموش وم يعنى غوښتلو نه به مې حجاب كولو نوحضور ﷺ به خپله راكولو داروايت ترمذي نقل كړى دى او ويلې يې دې چې داحديث غريب دى

**حل اللغات:-**①سَكَتُّ: چپ اوخاموش به ووم،څه به مې نه غوښتل،②ابْتَدَأَنِي: يعنى اول به ئې ماته راكول.

**تسهيلات:**

**قوله:** كُنْتُ إِذَا سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**د سوال په مصداق كښې دوه احتمالات:**①كه چرې دَ سوال نه مراد پښتنه وى نو دَ عطا نه مراد به جواب وركول وى

② كه چرې دَ سوال نه مراد څه غوښتل وى نو دَ عطا يعنى وركړې نه مراد مالى وركړه ده.

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۷۲۱)

**توله:** وَإِذَا سَكَتُّ ابْتَدَأَنِي،

**د ابتدانى په مفهوم کښې دوه احتمالات:** ① مطلب دا چه کله به زه خاموش پاتې کيدم هيڅ تپوس به مې نه کولو نو رسول الله ﷺ به پخپله ماسره خبرې شروع کولې دې دپاره چه زه د څه پښتنه اوکړم

② يا که چرته ما به څه نه غوښتل نو رسول کريم ﷺ به بغيرد غوښتلو ماله راکول. په حديث الباب کښې د حضرت علي رضي الله عنه مقصد رسول الله ﷺ سره خپل قرب بيانول دی چه د حضورپاك ما سره دومره محبت وو چه زما د هرقسم ضرورياتو به ئې پخپله خيال ساتلو.

**[۶۰۹۶] حضرت علي رضي الله عنه دعلم اوحکمت دروازه ده**

٦٠٩٦ -() [١٠] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «أَنَا دَارُ الْحِكْمَةِ، وَعَلِيٌّ بَابُهَا» ". ③ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَقَالَ: رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ شَرِيكٍ وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنِ الصُّنَابِحِيِّ، ④ وَلَا نَعْرِفُ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ أَحَدٍ مِنَ الثِّقَاتِ غَيْرَ شَرِيكٍ.

**ترجمه:** ① اوحضرت علي رضي الله عنه وايي درسول کريم ﷺ ارشاد دی ② زه دحکمت اودانايي کوريم اوعلي رضي الله عنه ددې کور دروازه ده ③ داروايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چې داحديث غريب دی هغوی داهم اوويل چې بعضې راويانوداحديث دشريک تابعي نه نقل کړی دی ليکن دهغوی ددې حديث اسنادو کښې دصنابحي ذکر نشته څرنګه چې دهغوی دنورو روايتونوسلسله اسنادکي دهغه دنوم ذکر راځي او دا روايت دشريک نه علاوه دبل چا نه مونږ نه پيژنو.

**حل اللغات:** - ① دَارُ الْحِكْمَةِ: د حکمت او دانايئ کور.

**تسهيلات:**

**توله:** أَنَادَارُ الْحِكْمَةِ، وَعَلِيٌّ بَابُهَا،

**دعلي رضي الله عنه د علمي حيثيت تشبيه د ښار دروازې سره:** په دې حديث کښې د حضرت علي رضي الله عنه فضيلت بيان کړې شوې دې په علم اوقضاء کښې الله تعالی حضرت علي رضي الله عنه ته يولوړ مقام ورکړې وو ليکن د دې مطلب دانه دې چه هم حضرت علي رضي الله عنه يوه دروازه وه اوباقي د چرته نه دعلم دحصول دپاره بل څه لار نه وه ځکه چه دعلم يوه دروازه نه ده څودروازې کيدې شي په دغې کښې حضرت علي رضي الله عنه هم يوه دروازه وه او نور صحابه کرام هم وو. آخر حضرت ابن مسعود رضي الله عنه حضرت معاذ رضي الله عنه اوحضرت ابي بن کعب رضي الله عنه هم د قرآن په اعلی ماهرينو کښې شمير کړې شوی دی. د حضرت ابوبکر رضي الله عنه باره کښې دی

[1] (اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم-٣٧٢٣))

## [٦٠٩٧] د نبی علیه السلام علی رضی الله عنه سره پټې خبرې

٦٠٩٧ - ( ) [٨] [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: دَعَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلِيًّا يَوْمَ الطَّائِفِ فَانْتَجَاهُ، [٢] فَقَالَ النَّاسُ: لَقَدْ طَالَ نَجْوَاهُ مَعَ ابْنِ عَمِّهِ، [٣] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " «مَا انْتَجَيْتُهُ، وَلَكِنَّ اللّٰهَ انْتَجَاهُ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** [١] اوحضرت جابر رضی الله عنه بيان کوي دغزوه طائف په ورځ رسول الله ﷺ حضرت علي رضی الله عنه راوبللي اودهغه سره يې په غوږ کښې خبرې شروع کړې يعنې داسې په نظر راتلو چې څه خاص مسئله باندې يې هغه سره پټې خبرې کولې اودهغه خبرو سلسله چې اوږده شوه [٢] نومنافقينو ياصحابه رضی الله عنهم کښې عام خلقو اوويل دخپل اکا (تره) د زوی سره خو رسول الله ډير وخته پورې په غوږ کښې خبرې کړې دي [٣] رسول الله ﷺ چې داواوريدل نو وي فرمايل چې دعلي سره ماسر ګوشي نه ده کړې بلکې الله تعالی ورسره سرګوشي کړېده

**حل اللغات:** - ① فَانْتَجَاهُ: دباب افتعال نه دې، ماخوذدې د نَجْوَي نه، أَيْ فَسَارَّهُ: پټې او د راز خبرو ته وانې.

**تسهيلات: قوله:** فَقَالَ النَّاسُ:

**د الناس په مصداق کښې دوه اقوال:**

① يعنی دَ حضورپاك متعلق داسې بې هوده خبرې کونکې منافقان وو.

② نوی نوی مسلمانان شوی صحابه کرام وو.

**علی رضی الله عنه سره د جنګی حکمت عملی خبرې کول:** حضورپاك چه دَ حضرت علي رضی الله عنه په غوږ کښې څه خبره فرمائيله دَهغې متعلق هغوی اووئيل چه دا دَ الله دَ حکم څنګه تعميل کوی چه بعضې خبرې پټې پټې حضرت علي رضی الله عنه ته رسوی اوداسې خبرې کوی چه دَ مجلس دَ آدابو خلاف دی. اوس رسول الله ﷺ دَ حضرت علي رضی الله عنه په غوږ کښې څه خبرې کړې وې. په دې سلسله کښې به دا ويناکول زيات مناسب وی چه حضرت علي رضی الله عنه سره په غوږ کښې خبرې کولو مقصد په اصل کښې دَ هغه غزوې متعلق څه داسې نقطې او دَ راز خبرې خودل وو دَ کومو تعلق چه دَدين په ضمن کښې راتلونکې دنياوی انتظام اومعاملاتو سره وو. دَ هغې دَ ټولو په مخکښې ذکرکول دَ جنګی پاليسئی خلاف وو دَدې مطلب قطعی دانه دې چه دَ الله تعالی دَ طرف نه نازل شوې دَ دين څه خبره يا دَ دينی امورو متعلق څه احکام دَ ټولو خلقو نه پټ رسول کريم ﷺ حضرت علي رضی الله عنه ته ښودلی دی.

**قوله:** مَا انْتَجَيْتُهُ

**د الله په دربار کښې د حضرت علی رضی الله مقام:** چه حضرت علي رضی الله عنه ته په غوږ کښې دَ راز خودلو حکم الله تعالی ورکړې دې لهذا زه دَ خپل طرف نه ده ته په غوږ کښې خبرې نه

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٧٢٦)

كوم بلكه دَ الله تعالى په حكم باندې عمل كوم څكه چه زما هيڅ وينا دَ وحى نه بغير نه وى.

**[٦٠٩٨] دجنابت په حالت کښې په مسجد نبوی کښې علی رضی الله ته رخصت**

٦٠٩٨-() [٣] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ- رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ- صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِعَلِيٍّ: ② "يَا عَلِيُّ، لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ يُجْنِبُ فِي هَذَا الْمَسْجِدِ غَيْرِي وَغَيْرَكَ» "، ③ قَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمُنْذِرِ. فَقُلْتُ لِضِرَارِ بْنِ صُرَدٍ: مَا مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ؟ ④ قَالَ: لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ يَسْتَطْرِقُهُ جُنُبًا غَيْرِي وَغَيْرَكَ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① اوحضرت ابوسعيد رضي الله عنه وايي رسول كريم ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته فرمايلي وه ② اې علي رضي الله عنه زما اوستا نه سوا چاله جائزنه دي چې هغه دجنابت ياناپاكي حالت كښې مسجد نبوي ﷺ ته راشي ③ دعلي ابن منذر بيان دی چې مادضرار ابن صرد نه پوښتنه وكړه ددي حديث څه مطلب دی ④ نوهغوی راته وښودل ددي معنی داده چې زما اوستا نه سوا هيڅ سړي دپاره جائز نه دي چې هغه دجنابت يعنی ناپاكي په حالت كښې مسجد گزرگاه جوړ كړي اودهغه دننه څي راځي داحديث ترمذي نقل كړي دي او ويلي يي دي چې داحديث غريب دی .

**حل اللغات:-** ① يُجْنِبُ: دجنابت په حالت كښې تيريدل مراد دی. ② يَسْتَطْرِقُهُ: چه لاره جوړه كړی مسجد نبوی كښې.

**تسهيلات: قوله:** لَا يَحِلُّ:

**په جنابت كښې په جمات كښې د تيريدو د رخصت وجه:** مطلب دادې چه دَ جنابت په حالت كښې صرف زه اوعلی رضي الله عنه دَجمات په لاره تيريدې شو دَ بل چادپاره دا حلال نه دی چه حالت دَ جنابت كښې مسجدنبوی كښې تيرشي. چونكه دَ حضوراكرم ﷺ اودَ حضرت علی رضي الله عنه دَ تيريدو لاره په مسجدنبوی كښې وه دَباقی خلقو نه وه په دې وجه داخصوصی اجازت وركړې شو هم دغه وجه ده چه دا اجازت صرف مسجدنبوی سره خاص كول "مسجدی" اوفرمائيلي شو. دويم يوجمات ته تلل جائز نه دی څكه چه دا مجبوری بل ځائی كښې نه وه

**[٦٠٩٩] د نبی عليه السلام د علی د ليدو پورې د ژوند دعا**

٦٠٩٩-() [٣] ① «وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ- رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ- صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- جَيْشًا فِيهِمْ عَلِيٌّ، ② قَالَتْ: فَسَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ رَافِعٌ يَدَيْهِ يَقُولُ: ③ "اللَّهُمَّ لَا تُمِتْنِي حَتَّى تُرِيَنِي عَلِيًّا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم-٣٧٢٧)

[2] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم-٣٧٣٧)

**ترجمه:** [١] اوبي بي ام عطيه رضي الله عنها وايي يو ځل رسول كريم ﷺ څه جنګي مهم باندي يولښكر وليږلو چې هغه كښې حضرت علي رضي الله عنه هم شامل وو [٢] دبي بي ام عطيه رضي الله عنها بيان دی په هغه موقع چې حضور ﷺ لښكر رخصت كولي يادلښكر دواپسي ورځ نزدې وه ما رسول كريم ﷺ لاس پورته كولو سره دادعا كول تري واوريدل [٣] الهي ماته هغه وقته پورې مرګ مه راولي خوپوري چې ته علي رضي الله عنه سلامتيا سره واپس راتلو سره ماته ونه ښايي .ترمذي

**حل اللغات:** - ① رَافِعٌ يَدَيْهِ: يعنى د دعا دپاره ني خپل دواړه لاسونه پورته كړي وو ② لَا تُمِتْنِي: أَيْ لَا تَقْبِضْ رُوحِي: ما مه مړ كوې، زما روح مه قبض كوې. ③ تُرِيَنِي: أَيْ تُبَصِّرَنِي: چه ماته اوښائې

**تسهيلات:**

**قوله:** اَللّٰهُمَّ لَا تُمِتْنِي حَتّٰى تُرِيَنِي عَلِيًّا،

**د دعا په محل كښې درې اقوال:** ① رسول كريم ﷺ دا دعا حضرت على رضي الله عنه لره په لښكر كښې دَ روانولو په وخت غوښتې وه

② رسول كريم ﷺ خودا دعا حضرت على رضي الله عنه لره جهاد ته دَ روانيدو نه پس غوښتې وه

③ رسول كريم ﷺ خودا دعا حضرت على رضي الله عنه لره دَ لښكردَ واپسئ خبر چه كله راورسيدو نوهغه وخت ئې غوښتې وه.

بهرحال دَ حديث الباب نه معلوميږي چه دَ رسول الله ﷺ حضرت على رضي الله عنه سره دَ كمال درجې محبت وو

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [٦١٠٠] دعلي رضي الله عنه محبت د نفاق او ايمان معيار ګرځول

-٦١٠٠ (١)[٣] [١] عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «لَا يُحِبُّ عَلِيًّا مُنَافِقٌ وَلَا يُبْغِضُهُ مُؤْمِنٌ» [٣] رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه:** [١] بي بي ام سلمه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] علي رضي الله عنه سره منافق محبت نه لري اوكامل مؤمن علي رضي الله عنه سره بغض اودښمني نه لري [٣] دا روايت احمد اوترمذي نقل كړی دی اوترمذي ويلي دي چې داحديث باعتبار اسناد غريب دی

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يُحِبُّ عَلِيًّا مُنَافِقٌ وَلَا يُبْغِضُهُ مُؤْمِنٌ

**په محبت كښې د شريعت د اصولو خيال ساتل:** يعنى حضرت على رضي الله عنه سره محبت ساتل دَ هريو مسلمان دَ ايمان علامت دي دلته داخبره ياد ساتل پكار دی چه دَ محبت ساتلو دَپاره

[١] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٧١٧) واحمد فى المسند:٦/٢٩٢

شریعت خپل یو معیار مقرر کړی دی هم په دغه معیار باندې چه کله محبت وی هغه به دایمان علامت وی هغه محبت هیڅ کله مطلوب نه دی چه د شریعت د قواعدو منافی وی. لکه څنګه چه د شیعه ګانو روافضو مصنوعی محبت دی چه حضرت علی رضی الله عنه د الوهیت په درجه باندې ورخیژوی دهغه نه امداد غواړی بلکه هغوی د نبیانو نه اوچت منی هغوی وصی رسول الله منی اوپته نه لګی چه کوم کوم خرافات وائی او د هغه په نقش قدم یعنی شریعت باندې تګ نه کوی

**[۶۱۰۱] علي رضی الله عنه ته کنځل نبی ته د کنځلو مترادف**

۳۰-( ) [۵] [۱] وَعَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «مَنْ سَبَّ عَلِيًّا فَقَدْ سَبَّنِي». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] اوبي بي ام سلمه رضی الله عنها وايي چی رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې د حسب ونسب د اعتبار نه علي رضی الله عنه ته بد اوويل هغه درحقيقت ماته بد وويل (احمد)

**حل اللغات:-** ① سَبَّ: کنځل ئې اوکړل، بدرد ئې اوونيل

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ سَبَّ عَلِيًّا فَقَدْ سَبَّنِي

**د حديث محمل:** يعني حضرت علی رضی الله عنه ته کنځل کول رسول الله ﷺ ته د کنځلو مترادف دی او حضور پاك ته کنځلې کول کفر دی لهذا علی رضی الله عنه ته کنځلې کول کفر دی که یو سړې داکنځلې حلال ګنړی نو داکفر دی

② که چرې ګناه نې ګنړی نو داګناه کبيره ده بيا داکلام وعيد او شديد . تغليظ او تشديد باندې محمول دې په يوبل حديث کنبې دی مَنْ سَبَّ أَصْحَابِي فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ او په يوبل حديث کنبې دی مَنْ سَبَّ الْأَنْبِيَاءَ قُتِلَ وَمَنْ سَبَّ أَصْحَابِي جُلِدَ

**[۶۱۰۲] د علی رضی الله عنه باره کښې افراط او تفريط**

۳۰۲-( ) [۶] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «فِيكَ مَثَلٌ مِنْ عِيسَى، أَبْغَضَتْهُ الْيَهُودُ حَتَّى بَهَتُوا أُمَّهُ، وَأَحَبَّتْهُ النَّصَارَى حَتَّى أَنْزَلُوهُ بِالْمَنْزِلَةِ الَّتِي لَيْسَتْ لَهُ ". [۳] ثُمَّ قَالَ: يَهْلِكُ فِيَّ رَجُلَانِ: مُحِبٌّ مُفْرِطٌ يُقَرِّظُنِي بِمَا لَيْسَ فِيَّ، وَمُبْغِضٌ يَحْمِلُهُ شَنَآنِي عَلَى أَنْ يَبْهَتَنِي». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت علي رضی الله عنه وايي (يوه ورځ) رسول الله ﷺ ماته وفرمايل [۲] په تاکي دعيسى عليه السلام سره يو قسم مشابهت دی يهوديانو عيسى عليه السلام سره بغض اوعناد وساتی نو دومره زيات يې وساتی چې دهغه مور بي بي مريم رضی الله عنها باندې دزنا بهتان وتړی

---

[۱] اخرجه احمد فی المسند: ۳۲۳/۶

[۲] اخرجه احمد فی المسند: ۱۶۰/۱

اوعيسايانو هغه سره محبت او وابستگي قائمه كړه نودومره زياته او د غلو سره يې قائمه كړه چې هغه يې هغه مقام اومرتبې ته ورسول چې هغه دپاره ثابت نه ده يعنى هغه يې الله ياابن الله وګرځولي [۳] داحديث بيانولو نه وروسته حضرت علي رضي الله عنه اوويل ماته يقين دى چې ددې ارشاد نبوي ﷺ مطابق دحضرت عيسى عليه السلام په شان زما باره كښې به هم دوه سړي يعنى دوه ډلې داسې هلاک يعنى ګمراه شي چې هغوى كښې به يوه خو زما سره محبت لري اوهغه محبت كښې به دحد څخه متجاوز شى مابه دهغه خوبيانو اولوييو حامل ګرځوي چې په ماكې به نه وي اويوه ډله به ما سره بغض اوعناد لري زما دښمني نه مغلوب كيدو سره په مابه بهتان تړي (احمد)

**حل اللغات:** - ① بَهَتُوا: أي أَنَّهُمْ افْتَرَوْا عَلَيْهَا: دروغ ئې پرې اوتړل، د زنا الزام ئې پرې اوتړلو ② أَنْزَلُوهُ: اوئې رسولو (عيسى عليه السلام ته ئې ابن الله اوويل) ③ الْمَنْزِلَةِ: مقام او مرتبه، ④ مُفْرِطٌ: أَيْ: مُبَالِغٌ عَنِ الْحَقِّ: د حد نه تيريدونكې او زياتې كونكې، ⑤ يُقَرِّظُنِي: أَيْ: يَمْدَحُنِي: مدح او تعريف به كوى زما، ⑥ يَحْمِلُهُ: أَيْ: يَبْعَثُهُ: راپاره كوى به هغه لره، ⑦ شَنَآنِي: أَيْ: عَدَاوَتِي: دشمنى زما سره، مخالفت زما.

**تسهيلات:**

**قوله: فِيكَ مَثَلٌ مِنْ عِيسَى،**

**په محبت كښې د اعتدال لار اختيارول:** محبت هم هغه معتبر دې كوم چه معتدل وى اودَ شريعت قاعده اوقانون مطابق وى. بعضې شخصياتوسره خلقو داسې معامله كړې ده چه يوفريق دَ محبت په جوش كښې راتلوسره هغه دَ عابد دَمقام نه اوچت كړو اودَمعبود په مقام باندې راوستلويدرولو اوبل فريق دَعداوت په جذبه كښې راتلوسره دَعابداو بندګئى دَ درجې نه هم راښكته ګذاركړو.

**د عيسى عليه السلام باره كښې دوه ډلې:** ① حضرت عيسى عليه السلام سره يهودو اونصارىٰ هم دغه شان افراط اوتفريط والامعامله اوكړه. يهوديانو ورته دبغض په وجه ولد زنا اوويل او عيسايانو ورته دفرط محبت دوجې ابن الله اوويل. نودواړه ډلې د افراد اوتفريط ښكار شوې.

**قوله: مُحِبٌّ مُفْرِطٌ يُقَرِّظُنِي بِمَا لَيْسَ فِيَّ،**

حضرت على رضي الله عنه پخپله بيا دَدې نورتفصيل اووضاحت اوكړو چه زما باره كښې به دوه ډلې هلاكيږى

**يُقَرِّظُنِي:** دادَ باب تفعيل تقريظ نه دې اى يمدحنى يعنى زمابه دَحدنه زيات تعريف كونكى شى اوزما شان دَ انبياء او عام صحابه كرامو نه زياتولوسره پيش كونكى به يا مادَ الوهيت درجې ته رسونكى شى كوم څيزونه چه زمادَ شان برابر نه دى هغه به زماطرف ته منسوب كونكى شى.

**قوله: وَمُبْغِضٌ يَحْمِلُهُ شَنَآنِي عَلَى أَنْ يَبْهَتَنِي**

**شَنَآنِي:** يعنى په زړه كښې زمانفرت اوبغض لرونكى تردې چه په مابانديې به بهتان لګونكى شى دا خوارج اوناصبى دى چه په بغض اوعداوت كښې ګمراه شو اهل سنت والجماعت د اعتدال په لار باندې محفوظ اوسالم پاتې شو.

**دعلى رضى الله قول د مسند احمد په روايت كښې:** په مسند احمد كښې امام احمد رحمه الله يوروايت نقل كړې دې دكوم الفاظ چه دادى. قَالَ عَلِيٌّ يُحِبُّنِي أَقْوَامٌ حَتَّى يَدْخُلُوا النَّارَ فِي حُبِّي وَيُبْغِضُنِي أَقْوَامٌ حَتَّى يَدْخُلُوا النَّارَ فِي بُغْضِي د حضرت على رضى الله عنه يوه دعاهم امام احمد رحمه الله داسې نقل كړې ده قَالَ عَلِيٌّ أَللَّهُمَّ الْعَنْ كُلَّ مُبْغِضٍ لَنَا وَكُلَّ مُحِبٍّ لَنَا غَالٍ. په دې رواياتو سره به شيعه ګان په ډيرمشكل كښې پريوځى كه چرې هغوى عقل لرى.

**[۶۱۰۳]دغدير خم واقعه**

۶۱۰۳-() [۱۷] [۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، وَزَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمَّا نَزَلَ بِغَدِيرِ خُمٍّ [۳] أَخَذَ بِيَدِ عَلِيٍّ فَقَالَ: " أَلَسْتُمْ تَعْلَمُونَ أَنِّي أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ؟ قَالُوا بَلَى، [۴] قَالَ: " أَلَسْتُمْ تَعْلَمُونَ أَنِّي أَوْلَى بِكُلِّ مُؤْمِنٍ مِنْ نَفْسِهِ؟ " قَالُوا: بَلَى.

**ترجمه:** [۱] حضرت برا بن عازب رضى الله عنه اوزيد بن ارقم رضى الله عنه نه روايت دى [۲] رسول الله صلى الله عليه وسلم چې غدير خم كښې پړاؤ واچوى نوحضور صلى الله عليه وسلم صحابه رضى الله عنهم جمع كړل اوځرنګه چې يوروايت كښې دي داونبانو دپالانونو كتو منبر جوړولو سره په هغه اودريدلو [۳] اوبيا دحضرت علي رضى الله عنه لاس خپل لاس كښې آخستو سره يي وفرمايل اې زما اصحابو په دې خوتاسو پوهيږئ چې داهل ايمانو په نزد زه دهغوى دځانونوځخه هم ورته زيات عزيزيم ټولو عرض وكى چې هو [۴] دې نه وروسته حضور صلى الله عليه وسلم داسې وفرمايل تاسو خوپوهيږئ چې زه ديويومؤمن په نزد دهغه دځان نه هم زيات عزيز اومحبوب يم صحابه رضى الله عنهم عرض وكى چې هو

**حل اللغات:-** ① غَدِيرِ خُمٍّ: په مكه مكرمه كښې دجحفه مقام نه درې ميله فاصله كښې يوځاى دې هغې ته غديرخم وائى ② أَوْلَى: افضل او غوره، زيات عزت والا.

[۱] قَالَ: " اللَّهُمَّ مَنْ كُنْتُ مَوْلَاهُ فَعَلِيٌّ مَوْلَاهُ، اللَّهُمَّ وَالِ مَنْ وَالَاهُ، [۲] وَعَادِ مَنْ عَادَاهُ " فَلَقِيَهُ عُمَرُ بَعْدَ ذَلِكَ [۳] فَقَالَ لَهُ: هَنِيئًا يَا ابْنَ أَبِي طَالِبٍ، أَصْبَحْتَ وَأَمْسَيْتَ مَوْلَى كُلِّ مُؤْمِنٍ وَمُؤْمِنَةٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] بيا حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل اې الله دكوم سړي چې زه دوست يم علي رضى الله عنه دهغه دوست دى الهي ته هغه سړي دوست وساتي چې علي رضى الله عنه دوست لري [۲] وته هغه سړي خپل دښمن وګرځوي چې علي رضى الله عنه سره دښمني ساتي دي واقعې نه وروسته حضرت عمر

---

[۱] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب على بن أبى طالب رضى الله عنه. يقال وله كنيتان: أبو تراب. وأبو الحسن (رقم-۳۷۱۳) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل على بن أبى طالب رضى الله (رقم-۱۱۶) واحمد فى المسند: ۲۸۰/۴

چې حضرت علي رضي سره یوځای شو ... نو هغوی ته یې ووېل ای د ابن ابي طالب مبارک دې وي ته خو سهار وخت کښې هم او ماښام وخت کښې هم یعني هر آن هر لمحه د هر مسلمان سړي او ښځي دوست او محبوب یې  احمد

**حل اللغات:** -③وَالِ: محبت اوساتي، دوست ئې جوړ کړې. ④عَادِ: دشمني ورسره وکړې، دشمن ئې اوګرځوي. ⑤هَنِيئًا: أَيْ طُوبَى لَكَ: مبارک شه، خوشحاله شې. ⑥أَصْبَحْتَ: صبا کړوت ته اوګرځیدې په وخت د صبا کښې ⑦أَمْسَيْتَ: ماښام کړوت ته اوګرځیدې په وخت د ماښام کښې

**تسهیلات:**

**قوله: بِغَدِيرِ خُمٍّ:**

**د غدیر خم مصداق:** که مکرمه او مدینه منوره په مینځ کښې یو مقام حجفه دې کوم چه ئې صبا رابغ ونیلې شي هم د غه رابغ سره خواکي یو ځائی دې چه هغې ته غدیر خم وائي: شارح د پخوانی بدر دلارې نه تیریدو سره د مکې مکرمې نه تقریبًا ئس کم سل کلومیټره فصله بانـدې واقع دې "من کنت مولاه فعلي مولاه" د دې قسم الفاظ دې نه وړاندې حدیث نمبر(۲۰) کښې هم تیرشوي دي دا حدیث د حضرت علي رضي په فضیلت کښې دې په دې کښې یو لفظ اولی دې او دویم لفظ مولی دې

**په خلافت علي بلافصل دپاره د شیعه ګانو استدلال:** شیعه په دې روایت کښې لفظ مولی اولی بالخلافت او خلیفه په معنی کښې اخلي او وائي چه حضرت علي رضي خلیفه هم وو یعني د حضور پاك نه پس د هغوی خلافت وو خلفاء ثلاثه او صحابه کرامو د هغوی دا حق غصب کړو شیعه وائي چه دا حدیث په خلافت علي باندې نص صریح او دلیل قطع دې آیا واقعي داسې ده؟

**د استدلال غلور جوابونه:** ① که د مولی معنی فرض کړه حاکم او خلیفه ده نو بیا به د دې حدیث ترجمه داسې کولې شي چه حضور پاك فرمائي چه زه د چا خلیفه یم علي هم د هغه خلیفه دې اې الله ته هم د هغه سړي والي جوړ شه چه د علي والي او ګرځي حالانکه دا ترجمه غلطه ده دا نقصان هم په دې سره شوې چه مولی د حاکم او خلیفه په معنی کښې واخستې شو که چرې مولی د محب او محبوب په معنی کښې واخستې شي نو د پوره حدیث مطلب به صحیح پاتې شي

② کله چې په دې لفظ کښې د ولایت علي او حاکمیت علي تصریح او وضاحت وو نو حضرت علي رضي د خلفاء ثلاثه په دور کښې کله هم د دې نه د خلافت د پاره استدلال ولې ونه کړو؟ حالانکه حضرت عثمان رضي سره خو په شوری کښې باقاعده انتخاب شوې وو هغه وخت خو د حدیث د پیش کولو هډو ضرورت هم نه وو او څه رکاوټ هم نه وو معلومه

شوه چه په لفظ مولی کښې دخلافت مفهوم نشته دې

③ دَ ولایت علی دَ ثبوت دپاره دَ شیعه داصول او قواعد مطابق دَنص قطعی او حدیث متواتر ضرورت وی حالانکه داحدیث متواتر نه دې او نه قطعی نص دې. ځکه چه داهل لغت نه چا هم دَمولی معنی دَخلافت نه ده اخستې

④ لفظ مولی په ډیرو معنو کښې استعمالیږی مثلاً مالك ناصر محب رب آقا دوست آزاد کړې غلام او دَ تره دَځوئی دپاره دالفظ وئیلی شی اوس دلته په دې حدیث کښې دَدې معانی نه محب او محبوب معنی اخستل دَټولو نه زیات واضحه او دَحدیث دَ سیاق او سباق سره ډیره نیزدې ده. او دَ نورو روایاتو سره هم موافق ده چرته چه دحضرت علی رضی اللہ عنہ سره دَمحبت ساتلو حکم دې مطلب داشو چه حضورپاك فرمائی چه کوم سړې ما سره محبت ساتی هغه دې علی سره هم محبت اوساتی اې الله کوم سړې چه علی سره محبت لری ته هم هغه سره محبت اولره. او کوم سړې چه علی سره بغض ساتی ته هم هغوی سره بغض اوساته په دې مطلب کښې دَ چا اختلاف کیدې شی؟

**علی رضی الله عنه سره دمحبت کولو دتاکید وجه:** البته دَمحب او محبوب معنی په دې کښې پرته ده او هم دَدغه محبت تذکره حضورپاك کړې ده. ځکه چه په راتلونکی واقعاتو کښې دَ حضرت علی رضی اللہ عنہ ذات متنازع جوړیدونکې وو او دَ خوارج او منافقانو دَطرف نه دَهغوی سره دَ عداوت فضا پیدا کیدونکې وه دَ کوم دَ وجې نه چه حضورپاك دَ اول نه تنبیه اوفرمائیله بهرحال دَ دین اسلام باره کښې دَ شیعه گانو علم غلط شوې دې اودَعلم په غلط کیدو سره سړې گمراه کیږی خو په عملی غلطئی سره سړې صرف گناهگار کیږی

**[۶۱۰۴] علی رضی الله عنه سره د فاطمه زهرا رضی اللہ عنہا نکاح**

۳۰۳-( ) [۱۸] ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«خَطَبَ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ فَاطِمَةَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "إِنَّهَا صَغِيرَةٌ" ③ثُمَّ خَطَبَهَا عَلِيٌّ فَزَوَّجَهَا مِنْهُ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.[1]

**ترجمه:** ① او حضرت بریده رضی اللہ عنہ وايي ② حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ او حضرت عمر رضی اللہ عنہ فاطمې رضی اللہ عنہا سره د نکاح پیغام ورکړو نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې هغه کمسن (کم عمره) ده ③ وبیا چي حضرت علي رضی اللہ عنہ فاطمي رضی اللہ عنہا سره د خپلي نکاح پیغام ورکړو نو حضور ﷺ هغوی سره د فاطمي رضی اللہ عنہا نکاح وکړله (نسايي)

**حل اللغات:-** ① خَطَبَ: د نکاح پیغام ورکړو. ② فَزَوَّجَهَا: نو په نکاح ني ورکړه (واده ني ورله ورسره اوکړو)

---

[1] اخرجه النسائي في السنن كتاب الجهاد /باب: تزوج المرأة مثلها في السن (رقم ۳۲۲۱)

**تسهيلات:**

**قوله: ثُمَّ خَطَبَهَا عَلِيٌّ فَزَوَّجَهَا مِنْهُ**

**فاطمې سره د علي رضى الله عنه نکاح حکم ورکونکې:** په تفصيلي رواياتو کښې دي چه کله دَ فاطمه رضي الله عنها رشته حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوحضرت عمرفاروق رضي الله عنه سره اونه شوه نودې دواړو حضرت علي رضي الله عنه تيارکړو چه ته لاړشه دَنکاح پيغام ورکړه. حضرت علي رضي الله عنه چه کله دَنکاح پيغام ورکړونوحضورپاك ﷺ اوفرمانيل چه دَالله تعالى هم دغه حکم دې چه زه دَفاطمه نکاح حضرت علي سره اوکړم. بيا حضورپاك دَدواړو نکاح اوکړه. په دې حديث کښې دَحضرت علي رضي الله عنه دَ فضيلت اوشان بيان دې. بعضې رواياتو کښې دي چه ام ايمن رضي الله عنها حضرت علي رضي الله عنه ته ترغيب ورکړې وو. بهرحال دَالله تعالى حکم هم دغه ووچه دَ حضرت فاطمه رضي الله عنها نکاح دې حضرت علي رضي الله عنه سره اوشي

**[٦١٠٥] مسجد کښې د علي رضي الله عنه د دروازې پريخودلو اجازت**

٦١٠٥-(١) [٢١] ①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-②«أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَمَرَ بِسَدِّ الْأَبْوَابِ إِلَّا بَابَ عَلِيٍّ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی ② رسول الله ﷺ مسجد نبوي ﷺ کښې دتـه دحضرت علي رضي الله عنه ددروازي نه علاوه نوري ټولي دروازي بندي کړلي دا روايت ترمذي نقل کړي دي او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** - ① سَدِّ الْأَبْوَابِ: دروازې بندول.

**تسهيلات:**

**نوټ:** دلته يو تعارض دې هغه تعارض اودهغې جواب د فضائل ابوبکرصديق رضي الله په مناقبو کښې ذکرشوې دې هغې ته رجوع اوکړئ

**[٦١٠٦] د علي رضى الله عنه سحر وختي په دربار رسالت کښې حاضري**

٦١٠٦-(٢) [٢٠] ①وَعَنْ عَلِيٍّ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ كَانَتْ لِي مَنْزِلَةٌ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-لَمْ تَكُنْ لِأَحَدٍ مِنَ الْخَلَائِقِ، ② آتِيهِ بِأَعْلَى سَحَرٍ فَأَقُولُ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ، ③ فَإِنْ تَنَحْنَحَ انْصَرَفْتُ إِلَى أَهْلِي، وَإِلَّا دَخَلْتُ عَلَيْهِ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① اوحضرت علي رضي الله عنه نه روايت دی هغوی بيان وکی درسول الله ﷺ په نظر کښې ماته يوداسې قدر اومنزلت حاصل وو چې خلقت کښې بل چاته حاصل نه وو ② زه به حضور

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٧٣٢) واحمد فی المسند: ١٧٥/١

[2] اخرجه النسائی فی السنن کتاب السهو التنحنح فی الصلاة(رقم-١٢١٣)

ﷺ ته سحر دوخته بالکل تیاره کښې ورتلم مخکې به دروازه باندې ودریدم طلب اجازت دپاره به مې وئیل السلام علیک یانبي الله [۲] ووائې که حضور ﷺ به زما سلام اوریدو سره غاړه تازه کړله نوما به داګڼلو سره چې داوقت حضور ﷺ څه مشغولیت کښې دې اوڅه شرعي یاعرفي رکاوټ داسې دی چې دهغه په سبب ماته دننه ورتلل نه دی پکار خپل کورته به واپس راتلم اوکه حضور ﷺ به غاړه تازه نه کړله نوزه به بې تکلفه حضور ﷺ ته ورتلم. (نسايي)

**حل اللغات:-** ① مَنْزِلَةٌ: أَيْ: مَرْتَبَةُ قُرْبٍ: مقام او مرتبه، نزدیکت، ② الْخَلَائِقِ: دخلق جمع ده، یعنی ټول مخلوق، ③ بِأَعْلَى سَحَرٍ: أَيْ: بِأَوَّلِ أَوْقَاتِهِ: سحروختی (د شپې آخری حصه) ④ تَنَحْنَحَ: غاړه به ئې تازه کړله، ⑤ انْصَرَفْتُ: أَيْ: رَجَعْتُ: واپس به راتلم.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَأَقُولُ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَانَبِيَّ اللَّهِ،

**د سلام علی الاهل مسئله:** په حدیث الباب کښې دی چه کورته د داخلیدو په وخت کوم سلام کولې شی دهغې په جواب کښې دَ کور په خلقو باندې سلام ضروری دې. دَ دې تشریح مطابق به وئیلی شی چه حضورپاك به اول دَ حضرت علی رضي الله عنه سلام اوریدو سره جواب ورکولو او بیا به ئی غاړه تازه کوله اودَ چا په نیز چه په کور کښې دَ داخلې دَ سلام جواب ورکول ضروری نه دی نودَ هغوی په نیز دا تفصیل هم ضروری نه دې.

**[٦١٠٧] دعلی رضی الله باره کښې د نبی علیه السلام مستجابه دعا**

٦١٠٧-() [٣١] [١] وَعَنْهُ، قَالَ: «كُنْتُ شَاكِيًا، فَمَرَّ بِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَنَا أَقُولُ: [٢] اللَّهُمَّ إِنْ كَانَ أَجَلِي قَدْ حَضَرَ فَأَرِحْنِي، وَإِنْ كَانَ مُتَأَخِّرًا فَارْفَعْنِي، [٣] وَإِنْ كَانَ بَلَاءً فَصَبِّرْنِي. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "كَيْفَ قُلْتَ؟ [٤]" فَأَعَادَ عَلَيْهِ مَا قَالَ، فَضَرَبَهُ بِرِجْلِهِ، وَقَالَ: " اللَّهُمَّ عَافِهِ - أَوِ اشْفِهِ - " شَكَّ الرَّاوِي [٥] قَالَ: فَمَا اشْتَكَيْتُ وَجَعِي بَعْدُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت علي رضي الله عنه بیان کوي یو ځل زه سخت مریض شوم اوحسن اتفاق سره حضور ﷺ په ماتیریدلو هرکله چې دمرض دشدت نه بې تابه کیدو سره په اوچت اواز دادعا مې کوله [٢] الهي که زما دمرګ وخت راغلي وی نو ماته (مرګ راکولو سره دمرض داذیت نه) نجات اوابدي سکون راته راکړې اوکه اوس وخت نه دي راغلي نوصحت بحال کولو سره ماته راحت اوآرام یعنی دصحت اوتندرستي خوشحالي راکړي [٣] وکه دابیماري امتحان اوازمائش دي نوماته دصبر اوآزمائش برداشت کولو قوت راکړي چې زه دبې تابی

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی دعاء المریض (رقم-٣٥٦٤)

اوبې قراري اظهار ونه کړم رسول الله ﷺ چې زما نه دادعا واوريده نو وي فرمايل چې تا څه دعا غوښته ④ ماددعا الفاظ دحضور ﷺ مخکې بياراوګرځول حضور ﷺ ددعا الفاظ اوريدو څخه وروسته خپلې پښې سره علي رضي الله عنه ته ډيکه ورکړه اوبياداسې دعايې وفرمايله الهي علي رضي الله عنه ته عافيت ورکړې يادايې وفرمايل چې ده ته شفا ورکړې دا دراوي اظهار شک دی ⑤ حضرت علي رضي الله عنه وايې دحضور ﷺ نه وروسته بياماته هغه بيماري هيڅ کله لاحق نشوه داروايت ترمذي نقل کړي دي او ويلې يې دی چې داحديث حسن صحيح دی.

**حل اللغات:-** ① شَاكِيًا: أَيْ: مَرِيضًا: بيمار شوم. ② أَجَلِي: أَيْ: انْتِهَاءُ عُمْرِي: آخري وخت، نيته ③ فَأَرِحْنِي: نو راحت راکړې ماته (يعنی مرګ راولې چه ددې بيمارئ نه خلاصه شم). ④ فَارْفُقْنِي: أَيْ: وَسِّعْ لِي فِي الْمَعِيشَةِ: ژوند مې فراخه کړې (يعنی ښه صحت راکړې او آرام راته نصيب کړې. ⑤ فَصَبِّرْنِي: أَيْ: أَعْطِنِي الصَّبْرَ: صبر راکړې، ⑥ عَافِهِ: عافيت يعنی صحت ورکړې علی رضي الله عنه ته. ⑦ اشْفِهِ: شفا ورکړې علی رضي الله عنه ته (بيماری ئې ښه کړې.

**تسهيلات:**

**قوله: فَضَرَبَهُ بِرِجْلِهِ**

**په پښه د وهلو غرض:** په خپه حرکت ورکول (ډيکه ورکول) دا دَ يوکار په غفلت باندې دَ تنبيه کولو دَ وجې نه کيږی.

# [١٩] باب مناقب العشرة المبشرة رضي الله عنهم

## دعشره مبشره د مناقبو بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة وعشرون حديثاً مشتملة على مناقبهم:**

① منقبة أبي بكر رضي الله عنه: ٩، ١٠، ١١، ١٢، ٢٥، ٢٦.

② منقبة عمر رضي الله عنه: ٩ ، ١٠، ١١، ١٢، ٢٥، ٢٦.

③ منقبة عثمان رضي الله عنه: ١ ، ٦، ١٠، ١١، ١٢ .

④ منقبة علي رضي الله عنه: ١٠، ١، ١١، ١٢، ٢٥، ٢٦.

⑤ منقبة زبير رضي الله عنه: ١، ٣، ٤، ١٠، ١١، ١٥.

⑥ منقبة طلحة رضي الله عنه: ١، ٢، ١٠، ١١، ١٣، ١٤، ١٥.

⑦ منقبة سعد بن زيد رضي الله عنه: ١١.

⑧ منقبة عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه: ١، ١١، ٢٢، ٢٣، .

⑨ منقبة أبي عبيدة بن الجراح رضي الله عنه: ٨، ٩، ١١، ١٢، ٢٤.

⑩ منقبة سعد بن أبي وقاص رضي الله عنه: ١، ٥، ٦، ٧، ١٠، ١١، ١٦، ١٧.

**د ترجمة الباب تسهيل:**

**قوله: العشرة المبشرة**

**دعشره مبشره مفهوم:** عشره لسوته وائي او المبشرة زيري اوخوشخبرئي په معنى كښې دي مطلب دا چه هغه لس خوش قسمت اوخوش نصيب نفوس قدسيه چاته چه دهغوى په ژوند كښې حضورپاك دَ جنت خصوصي بشارت اورولې وو

**دفضيلت په اعتبار سره د صحابؤ فضائل:** په دې سلسله كښې صاحب مشكوة ټول احاديث راجمع كولوسره دَ يوعنوان لاندې درج كړى دى چه ډير ښكلې اندازدى په دې ترتيب كښې پټه دا اشاره پرته ده چه دصحابه كرامو په جماعت كښې دټولونه غوره خلفاء راشدين اوبيا عشره مبشره دى

**دعشره مبشرؤ نومونه:** ① حضرت ابوبكر ② حضرت عمرفاروق ③ حضرت عثمان ④ حضرت على ⑤ حضرت طلحه ⑥ حضرت زبير ⑦ حضرت عبدالرحمن بن عوف ⑧ حضرت سعدبن ابى وقاص ⑨حضرت سعيدبن زيد ⑩حضرت ابوعبيده بن جراح رضي الله عنهم

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۶۱۰۸] د خلافت مستحق صحابه

۶۱۰۸-() [۱] ① عَنْ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: مَا أَحَدٌ أَحَقَّ بِهٰذَا الْأَمْرِ مِنْ هٰؤُلَاءِ النَّفَرِ الَّذِيْنَ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ عَنْهُمْ رَاضٍ، ② فَسَمّٰى عَلِيًّا، وَعُثْمَانَ، وَالزُّبَيْرَ، وَطَلْحَةَ، وَسَعْدًا، وَعَبْدَ الرَّحْمٰنِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت عمر فاروق ﷺ نه روایت دی هغوی (دخپل وفات په وخت ارباب حل وعقد اواصحاب شوریٰ ته دخلافت دمستحقینو باره کښې وصیت کولو سره) فرمایلي وه دي امر یعنې دمنصب خلافت ددي خلقوڅخه زیات څوک مستحق نه دی چې هغوی نه رسول الله ﷺ راضي اوخوشحاله ددي دنیا نه تشریف یو وړی ② اوبیا حضرت عمر ﷺ دانومونه واخستل ① علي ﷺ ② عثمان ﷺ ③ زبیر ﷺ ④ طلحه ﷺ ⑤ سعد ﷺ ⑥ عبدالرحمٰن ﷺ (بخاري)

**حل اللغات:** - ① النَّفَر: ټولګې، جماعت (د دریو نه تر لسو پورې جماعت ته نفر وائی).

**تسهیلات:**

**قوله:** مَا أَحَدٌ أَحَقَّ بِهٰذَا الْأَمْرِ مِنْ هٰؤُلَاءِ النَّفَرِ الَّذِيْنَ

**د خلیفه دانتخاب دپاره د کمیټې انعقاد:** په حضرت عمرفاروق ﷺ باندې چه کله دَ قتل حمله اوشوه نوهغوی دَخپل ځان نه پس دَخلافت دَپاره دَ شپږو کسانو یوه شوریٰ جوړه کړه چه په دوی کښې دې څوك یو خلیفه خوښ کړی ځکه چه دَدې خلقو نه حضورپاك راضی وو. هغوی خپل خوئی حضرت عبدالله بن عمر ﷺ ته دَ مبصر په توګه دَ کیناستو اجازت ورکړو مګر دَ څه رائې اخستلو یا ورکولو یا دَ انتخاب په څه معامله کښې دَهغه شرکت منع کړو. هغوی یوځو مسلح کسان دَ شوریٰ دکمرې نه بهر اودرول اوورته ئې اوفرمائیل چه ترکومې پورې دَ خلافت تشکیل نه کیږی چاته دَ بهر راتلو اجازت مه ورکوئی.

## [۶۱۰۹] په غزوه احد کښې د طلحه ﷺ قربانی

۶۱۰۹-() [۲] ① وَعَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: رَأَيْتُ يَدَ طَلْحَةَ شَلَّاءَ ② وَقٰى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب قصة البيعة، والاتفاق على عثمان بن عفان وفيه مقتل عمر بن الخطاب رضى الله عنهما (رقم-۳۷۰۰)

[2] اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب {إذ همت طائفتان منكم أن تفشلا والله وليهما وعلى الله فليتوكل المؤمنون} [آل عمران: ۱۲۲] (رقم-۴۰۶۳) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل طلحة بن عبيد الله رضى الله عنه (رقم-۱۲۸)

**ترجمه:** [۱] او حضرت قیس بن ابي حازم تابعي رحمه الله وايي ما حضرت طلحه رضي الله عنه هغه لاس اوليدلو چي د يركاله وروسته هم بالكل بيكاره اوشل وو [۲] هغه په دي لاس د غزوه احد په ورځ نبی کریم ﷺ د کفارو د حملو څخه بچ کړی وو (بخاري)

**حل اللغات:-** ① شَلَّاءَ: وَهُوَ نَقْصٌ فِي الْكَفِّ: چه په تلی یعنی لاس کښې داسې نقصان وی چه څه کار پرې نه شی کولې هغې ته شل وائی. ② وَقَى: أَيْ: حَفِظَ: حفاظت ئې کړې وو. بچ کړې ئې وو.

**تسهیلات:**

**قوله:** رَأَيْتُ يَدَ طَلْحَةَ شَلَّاءَ

**د نبی علیه السلام په حفاظت کښې د طلحه لاسونه شلیدل:** په دې حدیث کښې دَ حضرت طلحه رضي الله عنه دَ هغه خان قربانی کولو ذکر دې کوم چه هغوی په جنګ احد کښې پیش کړې وو او هغوی رسول الله ﷺ سره دَ محبت ثبوت په داسې طرز ورکړو چه حضورپاك ئې دَ غشو دَ باران نه بچ کولو تردې چه لاسونه ئې شل شو او په ټول بدن ئې دَ اتیاؤ نه زیات زخمونه جوړ شو. صحابه کرامو رضي الله عنهم چه به کله هم دَ جنګ احد ذکر کولو نو وئیل به ئې چه هغه خو دَ حضرت طلحه رضي الله عنه دَ خان قربانی کولو ورځ وه. حضرت طلحه رضي الله عنه پخوانې اسلام والا دې دَ غزوه بدر نه علاوه ئې په ټولو غزواتو کښې شرکت کړې دې. په جنګ جمل ۳۶ هجری کښې ئې دَ ۶۴ کالو په عمر کښې شهادت حاصل کړو. په بصره کښې خښ دې او دَ عشره مبشره نه دې.

## [۶۱۱۰] د حضرت زبیر رضي الله عنه فضیلت

۳-() [۳] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَنْ يَأْتِينِي بِخَبَرِ الْقَوْمِ؟" يَوْمَ الْأَحْزَابِ. [۲] قَالَ الزُّبَيْرُ: أَنَا [۳] فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا، وَحَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي د غزوه احزاب یعنی غزوه خندق په موقع یوه ورځ نبی کریم ﷺ وفرمایل کوم سړی دی چې د دښمن خلقو خبر ماته راوړی [۲] زبیر رضي الله عنه اوویل زه به راوړم [۳] بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل د هرنبي حواري یعنی خاص دوست او مددګاروي او زما حواري زبیر رضي الله عنه دی (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:-** ① يَوْمَ الْأَحْزَابِ: دې نه دَ جنګ خندق واقعه مراد ده ② حَوَارِيًّا: أَيْ: نَاصِرًا مُخْلِصًا: خالص دوست او مددګار

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب فضل الطلیعة (رقم-۲۸٤۶) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل طلحة. والزبیر رضی الله عنهما (رقم-٤۸ - (۲٤۱۵) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۷٤٤) وابن ماجه فی کتاب فی الایمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل الزبیر رضی الله عنه (رقم-۱۲۲) واحمد فی المسند: ۳/۳۱٤

**تسهيلات:**

**قوله:** "مَنْ يَأْتِينِي بِخَبَرِ الْقَوْمِ؟" يَوْمَ الْأَحْزَابِ،

**د قريشو خبر راوړو مطالبه:** دَ قريشو كافرانو تقريبًا دَ يوې مياشتې پورې دَمدينې منورې نه محاصره كړې وه حضورپاك غوښتل چه يوصحابي لاړشي اود كافرانو پټ خبر راوړي دې دَپاره چه مونږ ته معلومه شي چه دَدوی څه ارادې دی. حضورپاك دَدې مقصد دَپاره اعلان اوكړو چه څوك دَتلودَپاره تيار دې؟ سخت دَ يخنۍ ورځې وې دَ شپې وخت وو تياره وه دَدښمن خطره وه نو بار بار اعلان باندې به حضرت زبير رضي الله عنه پاسيدو اودَتلودَپاره به تياريدو. دَ حضورپاك اراده دَ بل چا دَ ليګلووه نوحضرت زبير رضي الله عنه به ئې كينولو او بيابه ئې اعلان كولو.

**د خبر راوړو دپاره د حذيفه بن يمان رضی الله عنه انتخاب:** په آخره كښې حضورپاك دَ حضرت حذيفه بن يمان رضي الله عنهما نوم واخستو اوهغه ئې روان كړو اودَ حضرت زبير رضي الله عنه په تعريف او اعزازكښې اوفرمائيل چه دا زما حواري دې. حواري خاص دوست ته وائي دَ حضرت عيسىٰ عليه السلام خاص دوستانوته حواريان وائي. حضرت زبير رضي الله عنه په جنګ جمل كښې شهيدشوې وو او په بصره كښې دَهغوی قبر دې. ابن جرموز ملعون هغه شهيد كړې وو

**[٦١١١] زبير رضي الله عنه د نبي عليه السلام فداك أبي وأمي ونيل**

٣ - () [٣] ①وَعَنِ الزُّبَيْرِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ؟ «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : ② "مَنْ يَأْتِي بَنِي قُرَيْظَةَ فَيَأْتِينِي بِخَبَرِهِمْ؟ ③ فَانْطَلَقْتُ، فَلَمَّا رَجَعْتُ ④ جَمَعَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَبَوَيْهِ فَقَالَ: "فَدَاكَ أَبِي وَأُمِّي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① اوحضرت زبير رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② څوک دي چې دبني قريظه يهوديانو ته لاړ شي اودهغوی باره كښې ضروري معلومات ماته راوړی ③ نودحضور ﷺ دا ارشاد اوريدو سره زه روان شوم اوهركله چې دهغوی په باره كښې معلومات حاصلولو سره واپس راغلم ④ نورسول الله ﷺ خپل مور وپلار دواړه په ماجمع كړل حضور ﷺ وفرمايل زما مور پلار دي په تا صدقه قربان وي (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** - ① فَدَاكَ: قربان دې شي په تا باندې (دې نه مراد تعظيم دې)

**تسهيلات: قوله:** فَانْطَلَقْتُ:

**د زبير د بنو قريظو دجاسوسۍ دپاره تلل:** دَبنوقريظه په واقعه كښې حضرت زبير رضي الله عنه دَ

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب تزويج النبي صلى الله عليه وسلم خديجة وفضلها رضى الله عنها (رقم-٣٨٢٠) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل طلحة، والزبير رضى الله عنهما (رقم-٤٩ - ٢٤١٦) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب الزبير بن العوام رضى الله عنه (رقم-٣٧٤٣) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل الزبير رضى الله عنه (رقم-١٢٣)

خبر راوړلو دپاره تلې وو لیکن په غزوه احزاب کښې حضرت حذیفه رضی الله عنه تلې وو حضرت زبیر رضی الله عنه ته حضورپاک اجازت نه وو ورکړې بنوقریظه سره د جنګ واقعه د جنګ خندق نه پس پیښه شې وه

**[۶۱۱۲] دحضرت سعد بن مالک رضی الله عنه فضیلت**

۳۳-(۱)[۵][۱] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَمَعَ أَبَوَيْهِ لِأَحَدٍ إِلَّا لِسَعْدِ بْنِ مَالِكٍ، [۲] فَإِنِّي سَمِعْتُهُ يَقُولُ يَوْمَ أُحُدٍ: "يَا سَعْدُ، ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت علي کرم الله وجهه وايي مادنبي کريم ﷺ نه دچا دپاره خپل مور پلار جمع کول قربان کول نه دی اوریدلي علاوه دسعد بن مالک رضی الله عنه نه [۲] هرکله چې دجنګ احد په ورځ (سعد رضی الله عنه کافران حضور ﷺ ته درسیدوڅخه منع کولو دپاره خوانمردی سره نیزي ویشتلو ویشتلو سره هغوی یې په شا کول) مادحضور ﷺ نه دا فرمایل واوریدل سعد چلوه تیر چلوه زما مور پلار دي په تاصدقه وي. (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:-** ① جَمَعَ أَبَوَيْهِ: أَيْ: فِي الفِدَاءِ: چه جمع کړې ئې وی مور پلار (یعنی اکثربه نبی علیه السلام صرف دپلار یا صرف د مور د فداء کولو ذکر فرمائیلو خو دلته ئې مور پلار دواړه ذکرکړی دی) ② ارْمِ: اوله. چلوه غشې

**تسهیلات: قوله:** جَمَعَ أَبَوَيْهِ لِأَحَدٍ

**اشکال:** ددې څخه وړاندې حدیث نمبر (۳۱) کښې ذکرشو چې نبی علیه السلام زبیررضی الله عنه ته فداک ابی وامی ونیلو وو اوپه دې روایت کښې علی رضی الله عنه فرمائی چې نبی علیه السلام د سعد بن مالک څخه علاوه بل هیڅ چا ته فداک ابی وامی نه دی ونیلې

**داشکال جواب:** علی رضی الله عنه دا نفی دخپل علم مطابق کړې ده هغوی ته به د زبیر په باره کښې د دې وینا علم نه وو څکه ئې داسې فرمائیلی دی

**[۶۱۱۳] دالله په لار کښې اولنی تیر چلونکی**

۳۴-(۲)[۶][۱] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] إِنِّي لَأَوَّلُ الْعَرَبِ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب {إذ همت طائفتان منكم أن تفشلا والله وليهما وعلى الله فليتوكل المؤمنون} [آل عمران: ١٢٢] (رقم-٤٠٥٩) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فى فضل سعد بن أبي وقاص رضى الله عنه (رقم-٤١ (٢٤١١)

[2] اخرجه البخاري فى كتاب المناقب/باب مناقب سعد بن أبي وقاص الزهري وبنو زهرة أخوال النبي صلى الله عليه وسلم وهو سعد بن مالك (رقم-٣٧٢٨) ومسلم فى كتاب الزهد والرقائق (رقم-١٢ - (٢٩٦٦) والترمذى فى كتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى معيشة أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-٢٣٦٥) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل سعد بن أبي وقاص رضى الله عنه (رقم-١٣١)واحمد فى المسند:١٧/١

**ترجمه:** [۱] او حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه وايي [۲] زه اولنی عرب مسلمان يم چاچي د الله تعالی په لار کښې تير ويشتلي دي (بخاري ومسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِنِّي لَأَوَّلُ الْعَرَبِ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

**د سعد بن ابی وقاص منقبت:** حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه دَعشره مبشره نه دي دَ حضورپاك په رشته کښې ماماوو دَعراق فاتح دې دَ کوفه گورنروو کوم څه چه خلقو په هغوی باندې بې ځايه اعتراضات اوکړه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دَ تفتيش دپاره راؤغوښتو هغوی دَخپلو يوڅو خصوصياتو ذکر اوکړو هم دَ دغه خصوصياتونه يوداوو چه زه ړومبې سړې يم چه دَ الله تعالی په لارکښې جهاد کښې په کافرانو باندې غشې چلولې وو مونږ دَ اسلام دَپاره ډيرمشقتونه اوچت کړي دی نن دا خلق په ما باندې په اسلام کښې دَ کوتاهئی الزام لګوی که چرې داسې وی نوبيا خوزما تباهی ده بهرحال په ۱ هجری کښې دَعبيدبن حارث لښکر دَ اسلام په ... لښکرو حضورپاك په خپل لاس مبارك باندې دَهغه دَپاره جنګی جهنډا اوتړله او شپيته کسان ئې جهادله اوليګل په هغې کښې حضرت سعد رضی الله عنه ړومبې غشې په کافرانو باندې اوچلولو.

**قوله:** فَدَاكَ أَبِي وَأُمِّي:

**په اسلام کښې اولنې تيرانداز:** حضورپاك دَ بعضې صحابه کرامو دَپاره فداك ابی لفظ استعمال کړي دي ليکن دَ امی لفظ ئې نه دي استعمال کړي دَ حضرت سعد رضی الله عنه او حضرت زبير رضی الله عنه دَپاره ئې دَامی لفظ استعمال کړي دي په دې وجه دا حضرات دادَ خپل خان دَ پاره لوئی اعزاز ګرځوی.

**[۶۱۱۴] د رجل صالح مصداق**

۳-() [ع] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: «سَهِرَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَقْدَمَهُ الْمَدِينَةَ لَيْلَةً [۲] فَقَالَ: "لَيْتَ رَجُلًا صَالِحًا يَحْرُسُنِي [۳]" إِذْ سَمِعْنَا صَوْتَ سِلَاحٍ فَقَالَ: [۴] "مَنْ هَذَا؟" قَالَ: أَنَا سَعْدٌ [۵] قَالَ: "مَا جَاءَ بِكَ؟" قَالَ: وَقَعَ فِي نَفْسِي خَوْفٌ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۶] فَجِئْتُ أَحْرُسُهُ، [۷] فَدَعَا لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ثُمَّ نَامَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] اوبي بي عائشه رضی الله عنها بيان کوي رسول کريم ﷺ يو ځل يو غزا نه مديني ته واپس راتلو سره د دين د دښمنانو نه دخطري په سبب د شپې اوده نه شو [۲] اوبيا حضور ﷺ وفرمايل کاش چې يو نيک بخت سړی نن شپه زما نګهباني کړي وي [۳] حضور ﷺ دا فرمايلي وه چې

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسير /باب الحراسة فی الغزو فی سبيل الله (رقم-۲۸۸۵) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم /باب فی فضل سعد بن أبی وقاص رضی الله عنه (رقم-۳۹ - (۲۴۱۰) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب (رقم-۳۷۵۶) واحمد فی المسند: ۳۹۱/۱

اچانك مونږ دهتيارو وسلو اواز واوريدى لكه چې يوه توره اولينده سنبال كړي بهر څوكئ پهره باندې وې اودهغه هتيار كړ كړ كوي [٣] حضور ﷺ داواز اوريدو سره پوښتنه وكړه څوك دي ؟ جواب وشو زه سعد رضي الله عنه يم [٥] حضور ﷺ پوښتنه ورنه وكړه دومره شپه تيره شوي دلته ته څرنګه راغلي ؟ سعد رضي الله عنه اوويل زما زړه كښې درسول الله ﷺ په نسبت خوف پيدا شو چې چيرته ددين دښمنان تاسو ته ضرر ونه رسوي [٦] نوزه دلته حاضر شوى يم چې ستاسو نګهباني وكړم [٧] دي اوريدو سره حضور ﷺ سعد رضي الله عنه ته دعاګاني وكړې او اطمينان سره اوده شو (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:-** ① مَقْدِمَهُ: أَيْ: وَقْتَ قُدُومِهِ: په واپس راتلو كښې، ② يَحْرُسُنِي: أَيْ: يَحْفَظُنِي: چه زما نګراني اونګهباني اوكړي (يعني نن شپه پهره وركړي چه زه په اطمينان سره آرام اوكړم) ③ سِلَاحٍ: وسله(توروغيره).

**قوله: مَقْدِمَهُ الْمَدِينَةَ لَيْلَةً**

**دَ قدوم مدينه څخه مراد:** اوس دلته په دې خبره هم پوهه شنى چه په حديث كښې قدوم مدينه نه نبى ﷺ مدينې ته اولنى تشريف راوړل چه دَ هجرت نه پس شوى مراد نه دي خكه چه هغه وخت حضرت عائشه رضي الله عنها حضور اكرم ﷺ كره نه وه. نه حضرت سعدبن ابى وقاص رضي الله عنه وو، بلكه دَ يو سفروغيره تشريف راوړل مراد دى.

**قوله: إِذْ سَمِعْنَا صَوْتَ سِلَاحٍ**

**د سعدبن ابى وقاص د راتلو وجه:** په صحيح مسلم كښې دَ ليث په طريق كښې دا هم ذكر دى چه رسول الله ﷺ دَ سعدبن ابى وقاص نه تپوس اوكړو چه ولې راغلې نى؟ نو هغه جواب وركړو "**وقع في نفسي خوف على رسول الله صلى الله عليه وسلم، فجئت احرسه، فدعاله رسول الله صلى الله عليه وسلم**" (١)

زما په زړه كښې دَ رسول الله ﷺ متعلق دا انديښنه پيدا شوه نو زه دَ هغوى دَ حفاظت دَ پاره حاضرشوې يم. نو رسول الله ﷺ هغه ته دعاګانې اوكړې.

**اشكال:** په قرآن كريم كښې خو الله تعالى دا فرمائيلى دى **(والله يعصمك من الناس)** اوالله تعالى به دَ خلقو دَ شر نه دَ ستاسو ﷺ حفاظت كوى نودَ الله تعالى دَ خصوصى حفاظت اونګرانئى كښې دَ كيدلو باوجود دَ نور حفاظت څه ضرورت دې؟

**داشكال جوابونه:** ① علامه ابن بطال رحمه الله دَ دې پورتنى سوال باره كښې جواب وركړيدې چه په حديث كښې دا مذكوره واقعه دَ قرآن كريم دَ دې پورتنى آيت نه وړاندې ده. حديث (٢) كښې راغلى دى چه كله دا پورتنى آيت نازل شو نو نبى كريم ﷺ دَ شپې خپل

---

١ ) (صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة باب فضل سعد بن ابى وقاص رضى الله عنه رقم (٦٢٣١)-

٢ ) (وقد روى الترمذى من طريق عبدالله بن شقيق عن عائشه رضى الله عنهاقالت:كان النبى صلى الله عليه وسلم ..........

حفاظت پریخودې وو. (۱)
علامه ابن بطال رحمه الله د قول خلاصه دا ده چه په حدیث باب اودغه شان نورو احادیثوکښې چه نبی اکرم ﷺ د حفاظت او نګرانئ ذکر کړیدې هغه په دې پورتنی آیت سره منسوخ دی. (۲)

② علامه قرطبی رحمه الله فرمائی چه د باب حدیث ته د منسوخ ونیلو هډو ضرورت نشته ځکه چه په آیت مبارك کښې څه داسې خبره نشته چه د حراست او حفاظت نفی کوی لکه چه الله تعالی ځیل دین په نورو ادیانو باندې غالب ظاهرولوسره د دې خبرې نفی نه کوی چه قتال اوکړی او د هغې د پاره لښکر تیار کړی. (۳)
نو په دې صورت کښې عصمة نه مراد فتن، ګمراهی اودخان د ضائع کیدو نه حفاظت دی. (۴)

**د نبی اکرم ﷺ محافظین صحابه کرام:** په روایاتوکښې د نبی کریم ﷺ حفاظت کونکی صحابه کرامو تعداد تقریباً د شلو پورې مروی دی. په کوموکښې چه د بعض صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین نومونه دا دی:

① حضرت سعدبن معاذ. ②محمدبن مسلمه. زبیر. ③ابوایوب الانصاری.
④ذکوان بن عبدقیس. ⑤درع السلمی. ⑥محجن بن ادرع. ⑦عبادبن بشیر.
⑧عباس بن عبدالمطلب ⑧او ابوریحانه رضی الله عنهم اجمعین. (۵)

**[۶۱۱۵] حضرت ابوعبیده ته دامین الامت خطاب ملاویدل**

-(۱) [۸] ① وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «لِكُلِّ أُمَّةٍ أَمِينٌ وَأَمِينُ هَذِهِ الْأُمَّةِ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

........ يحرس حتى ينزلت هذه الاية ﴿والله يعصمك من الناس﴾ فاخرج رسول الله صلى الله عليه وسلم رأسه من القبة. فقال لهم: أيهاالناس انصرفوافقد عصمنى الله. الجامع للترمذى كتاب تفسيرالقران باب ومن سورة المائدة رقم (۳۰۴۶)-
۱) (شرح ابن بطال(ج ۱۰ص ۸۲) -
۲) (فتح البارى (ج ۶ص ۸۲)
۳) (حواله بالاوعمدة القارى(ج ۱۴ص ۱۷۰)-
۴) (فتح البارى (ج ۶ص ۸۲) -
۵) (شرح القسطلانى (ج ۵ص ۸۶) وحاشية السهارنفورى على صحيح البخارى (ج ۲ص ۱۰۷۴)-
۶ اخرجه البخارى فى كتاب المغازى/باب قصة أهل نجران (رقم-۴۳۸۲) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فضائل أبى عبيدة بن الجراح رضى الله تعالى عنه (رقم ۵۳ (۲۴۱۹))والترمذى فى كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب معاذ بن جبل. وزيد بن ثابت. وأبى. وأبى عبيدة بن الجراح رضى الله عنهم (رقم-۳۷۹۶) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبى عبيدة بن الجراح رضى الله عنه (رقم-۱۳۶) واحمد فى المسند:۱۸/۱

**ترجمه:** [۱] اوحضرت انس ﷺ وائي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل [۲] دهر اُمت يوامين وي چې هغه دالله تعالى اودالله تعالى دبنده ګانو حقوقو کښې اودخپل نفس په باره کښې خيانت نه کوي اوددې امت امين ابوعبيده بن الجراح ﷺ دى (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:** - ① أَمِينٌ: أَيْ: ثِقَةٌ مُعْتَمَدٌ: امانتدار، اعتماد او اعتبار والا

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَمِينُ هَذِهِ الْأُمَّةِ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ

**د حضرت ابو عبيده رضي الله عنه تعارف:** دَ حضرت ابوعبيده نوم عامربن عبدالله بن الجراح دې. خپل پلارئې په جنګ بدر کښې قتل کړې وو. په دې باندې ورته "امين هذه الامة" لقب ملاؤ شو. دَ حضرت عمر ﷺ په دورخلافت کښې دَشام په ملك کښې په طاعون عمواس کښې وفات شوې وو.

**[٦١١٦] د ابوعبيده ﷺ فضيلت**

٦١١٦-() [٩] [۱] وَعَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ وَسُئِلَتْ: [۲] مَنْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُسْتَخْلِفًا لَوِ اسْتَخْلَفَهُ؟ [۳] قَالَتْ: أَبُو بَكْرٍ. [۴] فَقَالَ: ثُمَّ مَنْ بَعْدَ أَبِي بَكْرٍ؟ قَالَتْ: عُمَرُ. قِيلَ: مَنْ بَعْدَ عُمَرَ؟ قَالَتْ: أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت ابن ابي ملكيه تابعي وايي ماد بي بي عائشي ﷺ نه هغه وخت واوريدل هركله چې هغه نه پوښتنه وشوه [۲] چې فرض كه، كه رسول الله ﷺ خلافت دپاره صراحةً څوک منتخب کولی نوستا نظر انتخاب به په چاپريوتي [۳] بي بي عائشي ﷺ جواب کښې اوويل حضرت ابوبكر ﷺ [۴] بيا پوښتنه وشوه دابوبكر نه وروسته به يې څوک منتخب فرمايل بي بي عائشي ﷺ اوويل عمر ﷺ بيا پوښتنه ور نه وشوه دحضرت عمر ﷺ نه وروسته دچانمبر راخي؟ بي بي عائشي ﷺ اوويل دابوعبيده بن الجراح ﷺ (مسلم)

**حل اللغات:** - ① مُسْتَخْلِفًا: أَيْ: جَاعِلًا خَلِيفَةً لَهُ: چه خان دپاره ئې خليفه جوړكړي

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُسْتَخْلِفًا لَوِ اسْتَخْلَفَهُ؟ قَالَتْ: أَبُو بَكْرٍ.. الخ:

**دابوبكر صديق رضي الله عنه د خلافت تجزيه:**

په دې عبارت کښې حضرت عائشه دخلافت په باره کښې خپله تجزيه بيانوى كه نبى عليه السلام په خپل ژوند کښې څوک خليفه جوړول نوحضرت ابوبكر صديق ﷺ به ئې جوړ

---

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل طلحة. والزبير رضى الله عنهما (رقم-٥٠-٢٤١٧) وابوداود فى كتاب السنة/باب فى الخلفاء. (رقم-٤٦٥١) والترمذى فى كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي الأعور. واسمه سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل رضى الله عنه (رقم-٣٧٥٧) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضائل العشرة رضى الله عنهم (رقم-١٣٤)

کړي وو علماء کرامو ليکلي دي چه د ابوبکر ﷛ په خلافت باندې د نبي عليه السلام د مرض الوفات واقعه هم دلالت کوي ځکه چه په هغې کښې نبي عليه السلام د امامت صغرى دپاره صرف دحضرت ابوبکر صديق ﷛ نوم پيش کړې وو او دا ئې هم فرمائيلي وو چه الله تعالى د ابوبکر صديق د امامت نه سوا د بل چا د امامت نه انکار کوي علماء ليکي چه هرکله نبي عليه السلام په خپل ژوند کښې د امامت صغرى دپاره د ابوبکر صديق انتخاب کړې وو نود امامت کبرى هم ابوبکر صديق مستحق وو.

**ابوعبيده او د خلافت استحقاق:** خلاصه دا شوه چه حضرت ابوعبيده بن الجراح ﷛ هم دَ خلافت اهل وو او دې به دَ اصحاب شورىٰ نه هم ګنړلې شو دارنګ واضحه دي وي چه رسول کريم ﷺ په مرض الوفات کښې خپله مصله او امامت حضرت ابوبکر ﷛ ته حواله کړې وه مګر قولي خليفه ئې نه وو جوړکړې. په حديث الباب کښې قولي خليفه جوړول مراد دي چه که چرې رسول کريم ﷺ په خپل قول سره څوک خليفه جوړولو نو مذکوره حضراتو نه به ئې جوړولو.

**[٦١١٧]په حرا غر باندې دبعضې صحابو اودريدل او د غر خوزيدل**

٦١١٧-()[١٠] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ عَلَى حِرَاءٍ هُوَ وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ، وَعَلِيٌّ، وَطَلْحَةُ، وَالزُّبَيْرُ، ② فَتَحَرَّكَتِ الصَّخْرَةُ، ③ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "اهْدَأْ فَمَا عَلَيْكَ إِلَّا نَبِيٌّ أَوْ صِدِّيقٌ أَوْ شَهِيدٌ». ④ وَزَادَ بَعْضُهُمْ: وَسَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ عَلِيًّا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** ① اوحضرت ابوهريره ﷛ نه روايت دي يوه ورځ رسول کريم ﷺ حضرت ابوبکر ﷛ حضرت عمر فاروق ﷛ حضرت عثمان ﷛ حضرت علي ﷛ حضرت طلحه ﷛ اوحضرت زبير ﷛ حرا غر باندې ولاړ وه ② چې دهغوى دپښو لاندې کاڼي حرکت شروع کړو ③ رسول کريم ﷺ هغه کاڼي مخاطب کولو سره ورته وفرمايل قلار شه په تا باندې څوک نور ولاړ نه دي يانبي دي ياصديق دي ياشهيد دي ④ اوبعضې راويانو دسعد بن ابي وقاص ﷛ اضافه کړي ده اوحضرت علي ﷛ ذکريې نه دی کړی (مسلم)

**حل اللغات:** - ① حِرَاءِ: د يو غر نوم دي ② الصَّخْرَةُ: کاڼړې، ③ اهْدَأْ: أي: اسْكُنْ: اودريږه، (خوزه مه)

**تسهيلات: قوله:** أَوْ شَهِيدٌ،

**په حرا غر ولاړه صحابه او شهادت:** دَ شهيدنه مراد حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت علي، حضرت طلحه او حضرت زبير ﷛ دي دې ټولو حضراتو ته دَ شهادت مرګ نصيب شوې دې.

---

[1] اخرجه مسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل طلحة، والزبير رضى الله عنهما (رقم-٥٠-٢٤١٧) وابوداود في كتاب السنة/باب في الخلفاء (رقم-٤٦٥١) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي الأعور، واسمه سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل رضى الله عنه (رقم-٣٧٥٧) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضائل العشرة رضى الله عنهم (رقم-١٣٤)

① حضرت طلحه رضي الله عنه په جنګ جمل کښې

② حضرت زبير رضي الله عنه په جنګ صفين کښې شهيد کړې شو. دواړه حضرات سره دَدې چه دَ جنګ دروان کښې خو قتل کړې شوې نه دی ليکن دَ جنګ نه بهر ظلماً وژلې شوې وو. او په ظلم سره وژلې شوې هم شهيد وی

③ بعضو حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه هم په شهداؤ کښې شامل کړې دې. ليکن په دې باندې چا اشکال کړې دې چه هغه خو په وادی عقيق کښې په خپل محل کښې دننه مړ شوې وو نو هغوی ته څنګه شهيد اووئيلې شو؟ جواب دادې چه هغوی ته شهيد تغليباً وئيلې شوې دی يا دَ هغوی وفات په داسې مرض کښې شوې وو په کوم کښې چه څوک مبتلا شي او مړشي نوهغه مړ هم شهيد وی.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۶۱۱۸]دلسو جنتي صحابوذکر

٦١١٨-() [١] ①عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②«أَبُوبَكْرٍ فِي الْجَنَّةِ، وَعُمَرُ فِي الْجَنَّةِ، وَعُثْمَانُ فِي الْجَنَّةِ، وَعَلِيٌّ فِي الْجَنَّةِ، وَطَلْحَةُ فِي الْجَنَّةِ، وَالزُّبَيْرُ فِي الْجَنَّةِ، وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ فِي الْجَنَّةِ، وَسَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ فِي الْجَنَّةِ، وَسَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ فِي الْجَنَّةِ، وَأَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ فِي الْجَنَّةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ① حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نه روايت دې نبی کريم ﷺ وفرمايل ② ① ابوبکر رضي الله عنه جنت کښې دې ② عمر رضي الله عنه جنت کښې دې ③ عثمان رضي الله عنه جنت کښې دی ④ علي رضي الله عنه جنت کښې دی ⑤ طلحه رضي الله عنه جنت کښې دی ⑥ زبير رضي الله عنه جنت کښې دی ⑦ عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه جنت کښې دی ⑧ سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه جنت کښې دی ⑨ سعيد بن زيد رضي الله عنه په جنت کې دي ⑩ او ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه په جنت کې دي . (ترمذي)

**تسهيلات:**

**قوله**: أَبُوبَكْرٍ فِي الْجَنَّةِ، الخ

**په يوه موقع د جنت زيرې حاصلونکی صحابه**: دَ حديث الباب په بنياد مذکوره جليل القدر صحابه کرامو رضي الله عنهم ته عشره مبشره وئيلې شی. دَدې ټولو حضراتو په حق کښې دَ جنت زيرې په يو ځائی حديث کښې بيان کړې شوی دی ګنی دا خبره نه ده چه دَ جنت دغه شان مخصوص زيرې دَ هغوی نه علاوه دَ بل چا دَ پاره نقل نه دې بلکه دَ رسول کريم ﷺ هر يو صحابی جنتی دې لکه چه قرآن کښې دی. ﴿وَكُلًّا وَعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى﴾ دَ مذکوره نومونو ترتيب

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب عبد الرحمن بن عوف بن عبد عوف الزهری رضی الله عنه (رقم-۳۷۴۷) واحمد فی المسند:۱/۱۹۳

پخپله د رسول الله ﷺ د طرف نه دي او هم په دي ترتيب سره د مذكوره حضراتو مرتبې او درجې دي.

۶۱۱۹-() ①ورواه ابن ماجة عن سعيد بن زيد.

**ترجمه:**① اوابن ماجه دا روايت دسعيد ابن زيد ﷺ نه نقل کړی دی

**[۶۱۲۰] دبعضې صحابو ﷺ امتيازی صفات**

۶۱۲۰-() [۳]①وعن أنس -رضي الله عنه- أن النبي -صلى الله عليه وسلم- قال: ②«أرحم أمتي بأمتي أبو بكر، وأشدهم في أمر الله عمر، وأصدقهم حياء عثمان، ③وأفرضهم زيد بن ثابت، وأقرؤهم أبي بن كعب وأعلمهم بالحلال والحرام معاذ بن جبل، ④ولكل أمة أمين وأمين هذه الأمة أبو عبيدة بن الجراح». رواه أحمد، والترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح.

**ترجمه:**① اوحضرت انس ﷺ دنبي كريم ﷺ نه روايت كوي حضور ﷺ وفرمايل ② زما په امت كښي ابوبكر ﷺ زما دامت دخلقو په حق كښي دټولوڅخه زيات مهربان اودټولوڅخه لوی دردمند دی چې هغه ډير لطف اومهرباني اودرد مندي سره خپل الله طرف ته بلنه كوي اوهغوی دفلاح ونجات په لار لګوي اوزما دامت په خلقو كې عمر ﷺ دالله ددين په معاملات كې دټولوڅخه زيات سخت دی چې ډيري سختي او مضبوطي سره امر بالمعروف اونهي عن المنكر فريضه انجام كوي اوزما دامت خلقو كښي عثمان ﷺ دټولوڅخه زيات ريښتيني حيادار دي ③وزما دامت خلقو كښي دټولوڅخه زيات په ميراث پوه زيد بن ثابت ﷺ دی اوزما امت كښي دټولوڅخه زيات قرآن ويونكي اودټولوڅخه لوی ماهر تجويد قرآن كې ابي ابن كعب ﷺ دي اوزما امت كښي حلال وحرام دټولو نه زيات پيژندونكی معاذ بن جبل ﷺ دي ④ودهر امت يو امين وي اوددي امت امين ابوعبيده بن الجراح ﷺ دي احمد وترمذي اوترمذي ويلي دي چې داحديث حسن صحيح دی

**حل اللغات:**- ①أرحم: أي: أكثرهم رحمة: ډير زيات مهربانه، دردمند ②أشدهم: أي: أقواهم: ډير سخت، ③في أمر الله: أي: في دين الله: دالله تعالى په دين كښي، دهغه په احكامو كښي، ④أفرضهم: أي: أكثرهم علما بالفرائض: دميراث په مسائلو كښي زيات پوهه، ⑤أقرؤهم: أي: أعلمهم: ډير پوهه په لوستلو دقرآن كښي

①وروى عن معمر عن قتادة، مرسلا وفيه: "وأقضاهم علي".

---

[1] اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضائل العشرة رضي الله عنهم (رقم-۱۳۳)

[2] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب معاذ بن جبل، وزيد بن ثابت، وأبي، وأبي عبيدة بن الجراح رضي الله عنهم (رقم-۳۷۹۰) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضائل زيد بن ثابت (رقم-۱۵۴) واحمد في المسند: ۲۸۱/۳

**ترجمه:** ① او دا حديث معمر هم قتاده نه بطريق ارسال نقل كړى دى او د معمر دى روايت كښې دا الفاظ هم شته چې زما دامت په خلقو كښې د حق مطابق فيصله كونكي علي ﷺ دي.

**تسهيلات: قوله:** أَرْحَمُ أُمَّتِي بِأُمَّتِي أَبُوبَكْرٍ...الخ:

په دې حديث كښې چه د كومو صحابه كرامو ذكر دې په هغوى كښې څه په عشره مبشره كښې نه دى مګر د خصوصى امتيازاتو په حواله سره د هغوى نومونه په دې باب كښې راغلى دى.

**قوله:** وَأَفْرَضُهُمْ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ:

**د زيدبن ثابت په علم الفرائض كښې مهارت:** يعنى د ټولو نه لوئى فرائض دان زيد بن ثابت ﷺ دې يعنى فرائض او علم ميراث د فنى اوتحقيقى مضبوطيا سره په زيدبن ثابت ﷺ كښې ډير زيات دې. بيشكه زيد بن ثابت ﷺ د لويو فقهاؤ صحابه كرامو نه وو او د علم فرائض ماهر ګڼړلې شو. د كاتب وحى او جامع قرآن كيدو عزت هم دوى ته حاصل وو.

**قوله:** وَأَقْرَؤُهُمْ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ:

**ابى بن كعب رضى الله عنه د اقرأ خطاب ملاويدل:** او د ټولو نه لوئى د قرآن د تجويد ماهر ابى بن كعب ﷺ دې. كومو شپږو صحابه كرامو چه د حضورپاك په زمانه كښې قرآن كريم ياد كړې وو په هغوى كښې يو دوى هم دى. رواياتو كښې راځى چه يو ځل حضورپاك هغوى ته اوفرمائيل چه الله تعالى فرمائى چه دا سورت زمونږ په وړاندې اولوله. ابى تپوس اوكړو چه آيا الله تعالى زما نوم اخستى دې؟ حضورپاك اوفرمائيل چه او الله تعالى ستا نوم اخستې دې. دې اوريدو سره ابى ﷺ په ژړا شو او د هغوى سره حضورپاك هم په ژړا شو. د هغوى وفات په ۱۹ هجرى په مدينه منوره كښې شوې دې.

**قوله:** وَأَعْلَمُهُمْ بِالْحَلَالِ وَالْحَرَامِ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ:

يعنى حلال اوحرام د ټولو نه زيات پيژندونكې حضرت معاذ بن جبل ﷺ د انصار نه دې. هم د دوى د فقهاهت په وجه نبى عليه السلام دوى يمن ته ګورنر ليږلې وو او د دوى د اجتهاد كولو تصويب ئې كړې وو.

**قوله:** وَأَقْضَاهُمْ عَلِيٌّ:

**على رضى الله عنه د عدالت په ميدان كښې:** د حق مطابق د ټولو نه ښه فيصله كونكې حضرت على ﷺ دې. بيشكه حضرت على ﷺ د دې امت د ټولو نه لوئى قاضى دې. په فيصله كولو كښې د هغوى په شان څوك نه وو. هم په دې وجه به حضرت عمر ﷺ د هغوى د مشورې او د هغوى د فتوې نه بغير څه حكم او فيصله نه جارى كوله. كه چرې حضرت على ﷺ به موجود نه وو نو حضرت عمر ﷺ به د فيصلې د پاره كاروائى روستو كوله.

## [۶۱۲۱] دطلحه ﷺ دپاره دجنت بشارت

۳ - ( ) [ ۳ ] [۱] وَعَنِ الزُّبَيْرِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «كَانَ عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ أُحُدٍ دِرْعَانِ، [۲] فَنَهَضَ إِلَى الصَّخْرَةِ فَلَمْ يَسْتَطِعْ، [۳] فَقَعَدَ طَلْحَةُ تَحْتَهُ حَتَّى اسْتَوَى عَلَى الصَّخْرَةِ، [۴] فَسَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "أَوْجَبَ طَلْحَةُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت زبير ﷺ وايي دجنگ احد په ورځ دنبي کريم ﷺ په جسم مبارک دوه زغري وي [۲] دجنگ ددوران په موقع حضور ﷺ يوه ګاره باندي ختل وغوښتل چي ددښمن دلښکر جائزه واخلي اوداسلام مجاهد ينو ته دبلندي نه ښکاره شي ليکن ددوارو زغرو دبوج په وجه پورته ختلو کښي کامياب نه شو [۳] طلحه ﷺ چي دحضور ﷺ کانړي ته دختلو کوشش کول اوبيا کامياب نه کيدل اوليدل نو فوراً حضور ﷺ نه لاندي کيناستلو چي حضور ﷺ دهغه په شا ختلو سره کانړي ته ورسيدلو [۴] اوبيا رسول الله ﷺ نه دا فرمايل واوريدل طلحه ﷺ جنت واجب کړي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① دِرْعَانِ: د درع تثنيه ده، زغري، ② فَنَهَضَ: أي: فَقَامَ مُنْتَهِضًا: دخبر اخستلو دپاره ختلو طرف ته متوجه شو ③ الصَّخْرَةِ: غټ کانړي، ④ أَوْجَبَ: يعنى طلحه ﷺ جنت واجب کړو

**تسهيلات:**

**قوله:** يَوْمَ أُحُدٍ دِرْعَانِ.

**په غزوه احد کښي د نبي عليه السلام دوه زغري:** دالله تعالى دَ دي فرمان (خُذُوا حِذْرَكُمْ الآيه وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ الآيه) دَ زيات نه زيات تعميل اوفرمائيلو "فإنها تشمل الدرع قوت" درع وغيره اخستلو ته هم شامل دي. هم په دي وجه حضورپاک دَ غزوه احد په ورځ دوه زغري اچولي وي او دَدي آيت تفسير ئې په دي الفاظو سره اوکړو ((الا ان القوة في الرمى)).

**قوله:** يَقُولُ أَوْجَبَ طَلْحَةُ

**د قرباني په دله کښي د جنت زيري ملاويدل:** مطلب دا چه حضرت طلحه ﷺ په جنګ احد کښي دَ ديري قربانئي ثبوت ورکړو دَ کوم ذکر چه ماقبل کښي شوي دي چه لاسونه ئې هم شل شو او په بدن ئې دَ اتياو نه زيات دَ زخمونو نښي هم وي دي هم دَعشره مبشره نه دي کمامر

**په غزوه احد کښي د نبي عليه السلام تکليفونه:** ملاعلي قاري ﷺ دَ جنګ احد په ورځ په حضورپاک باندي تيرشوي تکليفونو او مصيبتونو ذکر کړي

① دَ حضورپاک دښمن عتبه بن وقاص په حضورپاک باندي غشي اوويشتلو دَ کوم په وجه

---

[۱] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي محمد طلحة بن عبيد الله رضي الله عنه (رقم-۳۷۳۸) واحمد في المسند:۱/ ۱۶۵

چه دَ حضورپاك غابښ مبارك شهيد شو

④ دَ احد په مقام كافرانو كندې اوكنستلې اودَ پاسه ئې په كمزورو جاړو سره ډكې كړې چه څوك په دې باندې ځپه ايږدي نو ورپريوځي به. دغه شان په يوه كنده كښې حضورپاك پريوتلو او په تندې باندې ئې دَ اوسپنې دَ ټوپئې دوه كړئې ورخښې شوې. حضرت علي ﷺ او حضرت طلحه ﷺ بن عبيدالله حضورپاك راوچت كړو اودَ كندې نه ئې بهر راؤويستلو.

**د نبي عليه السلام د بدن وينه څكل**: دَحضورپاك دَ تندې مبارك نه چه كومه وينه بهيدله هغه صحابه كرامو لاندې غورزيدو ته نه پرېنخوده بلكه ابوسعيد خدري ﷺ اوڅكله په دې باندې حضورپاك اوفرمائيل چاچه زما وينه اوڅكله هغه پورې به دَ دوزخ اور نه لګي. (مرقاة: ١١/٣٦٢)

**[٦١٢٢] دطلحه ﷺ د شهادت پيشنګوئي**

٦١٢٢-()[٣] ① وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «نَظَرَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَى طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ ② قَالَ: "مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى رَجُلٍ يَمْشِي عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ وَقَدْ قَضَى نَحْبَهُ فَلْيَنْظُرْ إِلَى هَذَا". ③ وَفِي رِوَايَةٍ: مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى شَهِيدٍ يَمْشِي عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ فَلْيَنْظُرْ إِلَى طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه**: ① اوحضرت جابر ﷺ وايي يوه ورځ رسول كريم ﷺ طلحه بن عبيد الله ﷺ طرف ته دمحبت ډک نظر سره وكتل ② او وي فرمايل دكوم سړي چې خواهش وي چې هغه انسان ووينې چې زمكه باندې ګرځي ليكن حقيقت كښې هغه خپل وخت پوره كړي دی نوهغه ته پكاردی چې هغه هغه انسان طلحه ﷺ ووينې ③ اويوروايت كښې داسې دی چې حضور ﷺ وفرمايل څوک چې دداسې شهيد ديدار كول غواړي چې په زمكه ګرځي نوهغه دې طلحه بن عبيدالله ﷺ ته وګوري (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① قَضَى: پوره ئې كړو. ② نَحْبَهُ: أَيْ: نَذْرَهُ: منخته، نذر(ددې نه مراد مرګ دې يعنې شهادت ئې غوښتلو اوهغه ئې حاصل كړو).

**تسهيلات: قوله: وَقَدْ قَضَى نَحْبَهُ:**

**دشهادت په مفهوم كښې دوه اقوال**: ① يعنې كوم سړي چه يوژوندې شهيد ليدل غواړي هغه دې طلحه ته اوګوري. چونكه په جنګ احد كښې دَ حضرت طلحه ﷺ په بدن باندې دومره زخمونه لګيدلي وو چه دَ بدن هيڅ لويه وړه حصه سالم نه وه پاتې شوې. دومره په كثرت سره زخمي كيدو نه پس لكه چه هغه دَ ژوندې ګرځيدو والاشهيد دې.

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي محمد طلحة بن عبيد الله رضي الله عنه (رقم-٣٧٣٩) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل طلحة بن عبيد الله رضي الله عنه (رقم-١٢٥)

(۲) حنبی علیه السلام د حضرت طلحه ﷺ د شهادت پیشنگوئی وکړه چې دې به په راروان وخت کښې شهید کیږی هم دغه شان اوشوه چې دوی په جنګ جمل کښې شهید شو

**[٦١٢٣] جنت کښې د طلحه ﷺ اوزبیر ﷺ نبی علیه السلام سره ګاونډی توب**

۳۳-(۱) [۵] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «سَمِعَتْ أُذُنِي مِنْ فِي رَسُولِ اللَّهِ يَقُولُ: [۲] "طَلْحَةُ وَالزُّبَيْرُ جَارَايَ فِي الْجَنَّةِ». [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] اوحضرت علي ﷺ وايي زما غوږونو درسول الله ﷺ دخولي مبارکي نه واوريدل [۲] طلحه ﷺ اوزبير ﷺ به جنت کښې زما ګاونډيان وي [۳] دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی .

**حل اللغات:-** ① فِي رَسُولِ اللَّهِ: أَيْ: مِنْ فَمِهِ: فِي په معنی د فم سره يعنی درسول الله ﷺ د خولي مبارکې نه، (دا مبالغه ده، يعنی چه په خپلو سترګو مې کتلو سره آوريدلی دی، جَارَايَ: د جار تثنيه ده او ي د متکلم ته مضاف دې، يعنی دواړه به زما ګاونډيان وی (دا کنايه ده د قرب نه)

**تسهيلات:**

**قوله:** طَلْحَةُ وَالزُّبَيْرُ جَارَايَ فِي الْجَنَّةِ

**نبی علیه السلام سره قرب او نزدیکت:** دَدې الفاظو په ذريعه کنايتًا هغه کمال قرب او تعلق ښکاره کړې شوې دې کوم چه دَدې دواړو حضراتو او دَ نبی کريم په مينځ کښې وو

**[٦١٢٤] سعد ﷺ دپاره دوه دعا**

۳۳-(۲) [۱] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ يَوْمَئِذٍ، يَعْنِي: يَوْمَ أُحُدٍ: "اللَّهُمَّ اشْدُدْ رَمْيَتَهُ [۳] وَأَجِبْ دَعْوَتَهُ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [۱] اوحضرت سعد بن ابي وقاص ﷺ نه روايت دی [۲] چې رسول الله ﷺ دهغه په حق کښې دغزوه احد په ورځ داسې دعا وکړله خداونده دسعد ﷺ تير آندازي کښې شدت اوقوت ورکړې [۳] ودهغه دعا قبوله کړي (شرح السنه)

**حل اللغات:-** ① اشْدُدْ: أَيْ قَوِّ: طاقت ورکړې، ② رَمْيَتَهُ: أَيْ رَمْيَهُ: ويشتلو دغشو د سعد ﷺ ته، ③ أَجِبْ: قبوله کړي (دعا دده)

**تسهيلات:** **قوله:** اللَّهُمَّ اشْدُدْ رَمْيَتَهُ وَأَجِبْ دَعْوَتَهُ

**سعد دپاره د دربار رسالت نه دوه دعاګانې:** ① دَ هغه په غشو ويشتلو کښې برکت

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبی محمد طلحة بن عبيد الله رضی الله عنه (رقم-٣٧٤١)

[۲]) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ٣٩٢٢

واچوي چه په هغې سره ډير کافران هلاك شي اوډ هغه نبنه صحيح وى
④ دي مستجاب الدعوات جوړ کړي.

**په دواړو دعاګانو کښې مناسبت:** ډ غشو ويشتلو ډ سختنى اوقوت سره ډ اجابت دعا ذکر په دي مناسبت سره وو چه په عرف کښې ډ غشى او دعا په مينځ کښې ژور تعلق دي تير بهدف کيدل- دا مشهور متل دي نولکه چه مطلب به ئى دا شي چه د حضرت سعد ﷺ مستجاب الدعوات جوړيدل لکه چه ډ هغه ډ غشي اثر وو کوم چه هغه ډ الله تعالى په لار کښې ډ ټولو نه مخکښې چلولي وو.

۶۱۳۵-(٦) [١٧] [١] وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «اللَّهُمَّ اسْتَجِبْ لِسَعْدٍ إِذَا دَعَاكَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت سعد ﷺ بن ابي وقاص نه روايت دى رسول كريم ﷺ دعا فرمايلي وه [٢] خداونده سعد ﷺ چې ستا نه دعا وغواړي نوهغه قبوله كړي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① اسْتَجِبْ: أي الدُّعَاءَ: يعنى دعا ئې قبوله کړې

**نوټ:** ددې حديث وضاحت حديث نمبر (۶۱۲۴) كښې تيرشو

**[٦١٢٦] سعد ﷺ ته دطاقتور ځوان لقب وركول**

۶۱۳۶-(٦) [١٨] [١] وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ «مَا جَمَعَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَبَاهُ وَأُمَّهُ إِلَّا لِسَعْدٍ، [٢] قَالَ لَهُ يَوْمَ أُحُدٍ "ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي [٣] وَقَالَ لَهُ: "ارْمِ أَيُّهَا الْغُلَامُ الْحَزَوَّرُ"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] اوحضرت علي ﷺ وايي رسول كريم ﷺ خپل مور پلار د سعد ﷺ نه علاوه بل هيڅ دپاره نه دي جمع كړي [٢] دغزوه احد په ورځ هغه مخاطب كولو سره ورته فرمايلي وه تير چلوه زما مور پلاردي په تاصدقه وي [٣] ويه هغه ورځ سعد ﷺ مخاطب كولو سره يي ورته داسې فرمايلي وو تير چلوه اي طاقتورځوانه (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① الْغُلَامُ الْحَزَوَّرُ: أي: الشَّابُّ الْقَوِيُّ: غلام ځوان هلک ته وائى. او حَزَوَّر د زمرى بچى ته وائى كوم چه بلوغ ته نزدې وى خو دلته ددې نه مراد ځوان طاقت ور او بهادر هلک مراد دي ځكه چه سعد دغه وخت د بلوغ دحد نه اوختې وو، د اوولسو كالو وو

**تسهيلات:**

**نوټ:** دي حديث سره متعلق يو اشكال اودهغې جواب وراندې د حديث نمبر (۶۱۲۳) په شرح كښې تيرشوي دي.

[1] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب سعد بن أبى وقاص رضى الله عنه. واسم أبى وقاص: مالك بن وهيب (رقم-۳۷۵۱)
[2] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۷۵۳)

[۶۱۲۷] د نبی علیه السلام سعد رضی الله عنه ته د ماما نسبت کول

۶۱۲۷-(')[۸] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «أَقْبَلَ سَعْدٌ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "هَذَا خَالِي فَلْيُرِنِي امْرُؤٌ خَالَهُ» . [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: كَانَ سَعْدٌ مِنْ بَنِي زُهْرَةَ، وَكَانَتْ أُمُّ النَّبِيِّ مِنْ بَنِي زُهْرَةَ [۴] فَلِذَلِكَ قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " هَذَا خَالِي ". [۵] وَفِي " الْمَصَابِيحِ ": " فَلْيُكْرِمَنَّ " بَدَلَ " فَلْيُرِنِي ".

**ترجمه:** [۱] اوحضرت جابر ﷺ وایي یوه ورځ سعد بن ابي وقاص ﷺ دحضور ﷺ مجلس مبارك ته راغی [۲] نونبي کریم ﷺ هغه طرف ته اشاره کولو سره وفرمایل دازما مامادی که څوك داسې ماما لري نوماته دي وښایي [۳] داروایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې سعد ﷺ دقریشو د یوي قبیلي بني زهره نه وو [۴] ودحضور ﷺ صاحب مورمحترمه هم دبني زهره نه وه په دي اعتبار حضور ﷺ دهغوی باره کښې وفرمایل چې دازما ماما دی [۵] اومصابیح کښې دفلیرني نوهغه دی ماته وښايي په ځاي فلیکرمن نوهغه دي دځپل دي ماما تکریم کوي الفاظ نقل کړی دی

**حل اللغات:-** ① خَالِي: أَيْ: مِنْ قَوْمِ أُمِّي: زما ماما ,سعد بن ابی وقاص د نبی علیه السلام د مور دخاندان نه وو ځکه نې ورته ماما اووئیل ② فَلْيُرِنِي: أَيْ فَلْيَعْرِنِي: راته دې اوښائي ③ فَلْيُكْرِمَنَّ: د امر غائب مؤکد صیغه ده، د إِكْرَام نه.

**تسهیلات: قوله:** وَكَانَتْ أُمُّ النَّبِيِّ مِنْ بَنِي زُهْرَةَ

**سعد بن ابي وقاص ته د ماما وئیلو وجه:** دا د ښځې نوم دې چه د کلاب بن مرة بن کعب بن لوی بن غالب ښځه وه د هغې اولاد ته بنو زهره وئیلې شي. اودا د قریشو یو مشهوره څانګه وه د حضورپاك د مور بی بی حضرت آمنه ﷺ او د حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ نسبی تعلق هم ددې څانګې سره وو او په دې اعتبارسره حضرت آمنه ﷺ او حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ خور او رور شو. هم په دې وجه حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ ته رسول الله ﷺ ماما اووئیل

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

[۶۱۲۸] د الله په لار کښې د سعد رضی الله عنه قربانیانې

۶۱۲۸-(')[۲۰] [۱] عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ قَالَ: «سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - يَقُولُ: [۲] إِنِّي

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۷۵۲)

[2] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب سعد بن أبی وقاص الزهری وبنو زهرة أخوال النبی صلی الله علیه وسلم وهو سعد بن مالك (رقم-۳۷۲۸) ومسلم فی کتاب الزهد والرقائق (رقم-۱۲ - (۲۹۶۶) والترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی معیشة أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۲۳۶۵) واحمد فی المسند: ۱۷٤/۱

لَأَوَّلُ رَجُلٍ مِنَ الْعَرَبِ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، [۲] وَرَأَيْتُنَا نَغْزُو مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَمَا لَنَا طَعَامٌ إِلَّا الْحُبْلَةَ وَوَرَقَ السَّمُرِ، [۳] وَإِنْ كَانَ أَحَدُنَا لَيَضَعُ كَمَا تَضَعُ الشَّاةُ مَالَهُ خِلْطٌ، [۵] ثُمَّ أَصْبَحَتْ بَنُو أَسَدٍ تُعَزِّرُنِي عَلَى الْإِسْلَامِ، لَقَدْ خِبْتُ إِذًا وَضَلَّ عَمَلِي، وَكَانُوا وَشَوْا بِهِ إِلَى عُمَرَ، [٦] وَقَالُوا: لَا يُحْسِنُ الصَّلَاةَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت قيس بن ابي حازم تابعي وايي مادحضرت سعد بن ابي وقاص ﷺ نه واوريدل [۲] يقينًا زه په عربو كښې اولنى سړى يم چاچې د الله په لار كښې اولنى تير وچلوى [۳] ومونږ هغه زمانه ليدلي ده كله چې مونږ به رسول الله ﷺ سره په جهاد كښې مصروف وو اوزمونږسره به دخوراک هيڅ شى نه وو صرف دكيكر پلنى چې دلوبيا مشابه وي اودكيكر پاڼي به حاصليدى چې مونږ به خوړلي او دلوړي اور به مويخوى [۴] ودي كښې څه مبالغه نشته چې مونږ به دبزي (چيلئ) دپچو په شان و چې تقاضي كوله چې هغه كښې به د لوندوالي نوم هم نه وو [۵] اوس هغه زمانه هم وينو چې بنوا سد ماته داسلام يعنى مونځ باره كښې نصيحت ياتنبيه كوي اوزه اوس هم دبنو اسد دنصيحت محتاج اوددين په باره كښې دهغوى نه كمتريم نوبيادي كښې خوڅه شک شبه نشته چې زه بيا نامراد شوم اوزما كړى اعمال برباد شول [٦] دااصل كې دوي حضرت عمر ﷺ ته دسعد ﷺ خلاف چغل خوري او شكايت كړى وو او ورته يې ويلي وه چې هغه مونځ په ښه طريقه نه كوي (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:-** ① نَغْزُو: مونږ جهاد كولو. ② الْحُبْلَةَ: ثَمَرُ السَّمُرِ: دَ كيكر په ونه كښې يوقسم بې كاره پهلى وى د لوبيا په شان، كوم چه دَ انسان دَ خوراك نه وى هغه مراد دى. ③ وَرَقَ السَّمُرِ: دكيكر پاڼې مراد دى ④ لَيَضَعُ: أي يَخْرُجُ مِنْهُ: د راوتلو په معنى كښې دي ددې اودس ماتى دپاره استعمال شوې دي (يعنى تقاضه به مو كوله) ⑤ خِلْطٌ: أي: لَا يَخْتَلِطُ بَعْضُهُ بِبَعْضٍ: يوبل سره به اينختي نه وو يعنى اوچ به وو. ⑥ تُعَزِّرُنِي: أي تُوَبِّخُنِي: تنبيه اونصيحت راته كوى (توبيخ رټلو او ملامته كولو ته وائى) ⑦ خِبْتُ: أي خَسِرْتُ: په تاوان كښې يم. ⑧ وَشَوْا: أي نَمُّوا وَسَعَوْا: چغل خورى او شكايت ئې كړې وو

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنِّي لَأَوَّلُ رَجُلٍ مِنَ الْعَرَبِ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ،

**د اسلام اولنئى فوجى دسته:** دا دَ سريهٔ عبيدبن حارث ﷺ طرف ته اشاره ده دادَاسلام اولنئى فوجى دسته وه كومه چه حضورپاك په ۱ هجرى كښې دَابوسفيان په قافله دَحمله كولودَپاره ليګلې وه. حضورپاك په خپلو مبارکولاسونوباندې جنګى جهنډا اوتړله په شپيتوسړو باندې مشتمل دې سريه كښې حضرت سعد ﷺ هم وو په دې موقع كافرانو سره باقاعده جنګ خوا ونه شو مګر حضرت سعد ﷺ اسلامى تاريخ اوجهادفى سبيل الله ميدان كښې په كافرانوباندې اولنې غشې اوچلولو هم دَهغه خصوصيت ذكر حضورپاك دلته فرمائى.

**سعد او د كوفې ګورنرى:** دَدې نه مخكښې مې هم اشاره كړې ده دلته څه تفصيل ليكم چه

حضرت سعد رضی الله عنه حضرت عمرفاروق رضی الله عنه د کوفه گورنر مقرر کړې وو د کوفې څه خلقو د طرف نه په حضرت سعد رضی الله عنه باندې اعتراضات کړې شوې وو دغه بدباطن خلق وو هغوی اووئیل چه حضرت سعد رضی الله عنه په مونځونو کښې سستی کوی او د مال غنیمت په تقسیم کښې انصاف نه کوی جهادله نه ځی حضرت عمرفاروق رضی الله عنه هغه مدینې منورې ته راؤغوښتلو ورته ئې اوفرمائیل حضرت سعد تانه شکایتونه دی تردې چه د مانځه شکایت هم راغلې دې؟

**سعد رضی الله عنه او د ځان صفائی پیش کول:** حضرت سعد رضی الله عنه په خپله صفائی کښې د خپلو یوڅو کارنامو تذکره اوکړه اوبیائې اوفرمائیل چه که د دغه خلقو الزامات صحیح وی نوبیاخوزما دا اعمال ضائع شو. حضرت عمرفاروق رضی الله عنه اوفرمائیل ستاباره کښې زما ګمان هم دا وو لکه څنګه چه ته صفائی پیش کوې لیکن د اهل کوفه نه به زما نمائنده کور په کور تپوس کوی دې د پاره چه حقیقت حال واضح شی چنانچه دوه سرکاری اهل کار حضرت سعد رضی الله عنه سره کوفه ته روان شو اوکور په کور ئې د حضرت سعد رضی الله عنه متعلق تپوس اوکړو ټولو د حضرت سعد رضی الله عنه ډیر تعریف اوکړو

**د سعد رضی الله عنه یو بوډا ته خیرې کول:** مګر یو بوډا اوئیل چه کله تاسو خلق قسم راکولو سره تپوس کوئی نوزه به اووایم چه حضرت سعد رضی الله عنه په مونځونو کښې اود مال غنیمت په تقسیم کښې ګړبړ کوی. په دې باندې حضرت سعد رضی الله عنه اوئیل چه که ت دا اعتراض د مشهورتیا حاصلولو د پاره کړې وی نوزه ستاد پاره په بددعا کښې وایم اې الله د دې سړی عمر اوږد کړې اودې په اولګو تندو کښې راګیر کړې اودې ذلیل اوخوار کړې

**د دې واړه خیرو قبلیدل:** دا درې واړه بددعاګانې دغه سړی پورې اولګیدې عمرئې دومره زیات شو چه د سترګ اوریځې ئې په سترګوباندې راپرېوتلې کله چه به ئې چا سره خبرې کولې نو په لاسونوباندې به ئې اوریځې اوچتولې اوورته به ئې کتل په اولګو تندوکښې ئې ژوند تیریدو مرګ ورله نه راتلو مګر هم په دې حالت کښې په زمکه باندې رابنکونکې وړې وړې جینکئې نیولې اوخپل بدن پورې به ئې مرلې اوذلیل اوخواریدو کله چه به چا د هغه نه تپوس کولو چه شرم اوکړه دا څه کوې؟ نوونیل به ئې څه اوکړم؟ د سعد بددعا پورې لګیدلې ده

**قوله:** ثُمَّ أَصْبَحَتْ بَنُو أَسَدٍ تُعَزِّرُنِي عَلَى الْإِسْلَامِ

**د مذکوره جملې پس منظر:** زیر بحث حدیث کښې "اصبحت بنواسد تعزرنی" الفاظو کښې هم دې قصې ته اشاره ده تعزرنی زجر توبیخ اورټلو په معنی کښې دې عامو مسلمانانوله پکاردی چه هغوی دې بغیرد څه وجې د جماتونو په امامانوباندې اعتراضونه نه کوی د بعضې زړه خفه کولو سره تباهی راځی

**[۶۱۲۹] دسعد ﷺ په خپل اسلام راوړلو باندې افتخار کول**

۳۱-()[۳۱] ① وَعَنْ سَعْدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: رَأَيْتُنِي وَأَنَا ثَالِثُ الْإِسْلَامِ، ② وَمَا أَسْلَمَ أَحَدٌ إِلَّا فِي الْيَوْمِ الَّذِي أَسْلَمْتُ فِيهِ، ③ وَلَقَدْ مَكَثْتُ سَبْعَةَ أَيَّامٍ وَإِنِّي لَثَالِثُ الْإِسْلَامِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① اوحضرت سعد ﷺ اوویل زه دخپل ځان باره کښې دنوروڅخه زیات پوهیږم د اسلام فهرست کښې زما لمبر دریم دی ② وزما نه مخکې مشرف په اسلام کیدو هغه دواړو نه هم هیڅ سړی هغه ورځې نه دائره اسلام کښې داخل شوی نه وو په کومه ورځ چې ما اسلام قبول کړی وو ③ وبیا او وه ورځې پورې زه داسلام دریمه حصه جوړشوی ووم (بخاري)

**حل اللغات:-** ① ثَالِثُ الْإِسْلَامِ: د اسلام دریمه حصه، ② مَكَثْتُ: أَيْ لَبِثْتُ: یعنی وخت مې تیر کړو.

**تسهیلات:**

**قوله:** رَأَيْتُنِي وَأَنَا ثَالِثُ الْإِسْلَامِ،

**د سعد رضی الله عنه په قول باندې اشکال:** دَ حضرت سعد ﷺ نه مخکښې حضرت خدیجه ﷺ او حضرت صدیق اکبر ﷺ اسلام قبول کړې وو. حضرت سعد ﷺ دریم سړې دې چاچه اسلام قبول کړو اوبیا دَ اووه ورځو پورې څوك مسلمان نه شو لکه چه حضرت سعد ﷺ ثلث اسلام یعنی دریمه حصه اسلام وو.

**داشکال جواب:** حضرت سعد ﷺ دَ خپلو معلوماتو په اعتبارسره داسې اوفرمائیل اوَ د آزادو خلقو په اعتبار سره ئې داسې اوفرمائیل ګنې یوځو غلامان هم دَ هغوی نه محکښې مسلمانان شوی وو بیاخو دَهغوی نمبر دریم نه شي جوړیدې اوداهم ممکن دی چه حضرت عمار ﷺ وغیره احرار هم دَهغوی نه مخکښې مسلمان شوې وی لهذا بیا به هم هغه جواب وی چه هغوی دَخپل علم په بنیاد باندې څه اوفرمائیل هغه ئې صحیح فرمائیلی دی

**[۶۱۳۰] نبی علیه السلام سره د عبدالرحمن بن عوف ﷺ مالی قربانی**

۳۲-()[۳۲] ① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② كَانَ يَقُولُ لِنِسَائِهِ: "إِنَّ أَمْرَكُنَّ مِمَّا يُهِمُّنِي مِنْ بَعْدِي، ③ وَلَنْ يَصْبِرَ عَلَيْكُنَّ إِلَّا الصَّابِرُونَ الصِّدِّيقُونَ ④" قَالَتْ عَائِشَةُ: يَعْنِي الْمُتَصَدِّقِينَ، ⑤ ثُمَّ قَالَتْ لِأَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ: سَقَى اللَّهُ أَبَاكَ مِنْ سَلْسَبِيلِ الْجَنَّةِ، ⑥ وَكَانَ ابْنُ عَوْفٍ تَصَدَّقَ عَلَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ بِحَدِيقَةٍ بِيعَتْ بِأَرْبَعِينَ أَلْفًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او بی بی عائشه ۷ وایی ② یوه ورځ رسول ﷺ خپلو بیبیانو ته وفرمایل ستاسو معامله څه ددې نوعیت ده، چې ما. خما دوفات نه وروسته په فکر کې اچوی ③ او

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب سعد بن ابی وقاص الزهری وبنو زهرة أخوال النبی صلی الله علیه وسلم وهو سعد بن مالک (رقم-۳۷۲۷) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه (رقم-۱۳۲)

[2] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۷۴۹) واحمد فی المسند: ۷۷/۶

ستاسو خرچه باندی هغه کسان صبرکوی چی صابر ین دی اوصدیقین دی ، [۴] بی بی عائشه ؓ وایی، چی (صابرینو اوصدیقینو څخه) دحضور ﷺ مراد هغه خلق دی چی صدقه ورکونکی او دخیر کارکونکی دی ، [۵] بیا بی بی عائشی رضی الله عنها دحضرت عبدالرحمن بن عوف ؓ زوی دحضرت ابوسلمه تابعی مخکی دهغه دپلار بزرگوار زبردست مالی ایثارباندی اظهار تشکر او دجذبه منت گزاری سره ، اوویل الله ؓ دی ستا پلار دجنت دسلسبیل نه سیراب کړی ، [۶] او حضرت عبدالرحمن بن عوف ؓ دحضور ﷺ د ازواج مطهراتو دخرچی دپاره یو باغ ورکړی وو ، چی په څلویښت زره (۴۰۰۰۰) دیناره خرڅ شوی وو .

**حل اللغات:-** ① يَحْنُو: أَيْ يُوقِعُنِي فِي الْهَمِّ: په سوچ اوفکرکښې مې اچوی. ② الصِّدِّيقُونَ: یعنی صدقه کونکی خلق مراد دی دا لفظ دَ صدقه نه دې دَ صدق نه نه دې. ③ سَقَى اللهُ: اودې څکوی الله پاک، سیراب دې کړی الله پاک، ④ سَلْسَبِيلِ: وَهِيَ عَيْنٌ فِي الْجَنَّةِ: سلسبیل په جنت کښې یوه چینه ده، دهغې نوم دې.

**تسهيلات:**

**قوله: سَلْسَبِيلِ الْجَنَّةِ:**

**د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه سخاوت:** حضرت عبدالرحمن بن عوف ؓ لوئی سوداګر او لوئی فیاض، دنیاترک کونکې صحابی وو. دَ حضورپاك دَ وفات نه پس په ازواج مطهرات باندې په ارت مټ ډیر مال خرچ کړو. دَ څلویښتو زر دینارو قیمتی باغ ئی ازواج مطهرات ته ورکړو بلکه ترمذی کښې دی څلور لاکهه درهم یا دینارو باغ هغوی ازواج مطهرات دَمصارف دَپاره وقف کړې وو. په یوروایت کښې دی چه دَ حضورپاك په زمانه کښې حضرت عبدالرحمن بن عوف ؓ یوځل دَ خپل ټول مال نیم اودَ نقد نه څلور زره دیناره یا درهم دَحضورپاك مخې ته راوړل پیش ئی کړل. بیا ئی پنځه اسونه راوستل دَ جهاد دَپاره ئې ورئی کړل. بیائی دَ الله تعالی په لار جهاد کښې یونیم زر اوښې راوستلې پیش ئی کړې.

**عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه ته د الله تعالی سلام رالیږل:** یوروایت کښې دی چه یوځل هغوی یونیم لاکه دینار په صحابه کرامو باندې تقسیم کړل. بیا چه دَ شپې وخت راغلو نو هغوی قلم کاغذ راواخستو دَخپل مال یوفهرست ئی جوړ کړو چه دا مال دَ انصار او مهاجرینودَپاره دې. کله چه دَمال حساب اوشو نوهغوی دَخپل بدن د کپړو باره کښې لیکلی دی چه قمیص فلانکی ته ورکړئی پټکې فلانکی ته ورکړئی دغه شان ټول مال هغه دَ الله تعالی دَ رضا دَپاره تقسیم کړو او اوده شو. سحر چه کله دَمانځه دَپاره لاړو نو حضورپاك له جبرائیل امین راغلو اوونې فرمائیل چه یارسول الله الله تعالی فرمائی چه

عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ته زما سلام اووایه اودَ هغه نه هغه فهرست واخله قبول نې کړه کوم چه هغه دَ شپې جوړ کړې دې اوبیا دا فهرست هغه ته واپس کړه او ورته اووایه چه الله تعالی ستا مال قبول کړو اوس ته دَ الله تعالی دَ طرف نه په دغه مال باندې نګران اووکیل نې چرته چه غواړې خرچ کوه اوهغه ته دَ جنت زیرې واوره وه. حضرت عبدالرحمن بن عوف دیرش زره غلامان آزاد کړې وو. هم دَ دې فیاضئ دَ وجې نه حضرت عائشه رضي الله عنها حضرت عبدالرحمن بن عوف ته دعاګانې کوی اوحضورپاك خاص دعا اوکړه چه دې سره حدیث کښې ذکر ده.

**[۶۱۳۱] د نبی علیه السلام عبدالرحمٰن بن عوف رضي الله عنه ته خصوصی دعا کول**

۶۱۳۱ -() [۲۳] [۱] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ لِأَزْوَاجِهِ: [۲] " إِنَّ الَّذِي يَحْثُو عَلَيْكُنَّ بَعْدِي هُوَ الصَّادِقُ الْبَارُّ، [۳] اللّٰهُمَّ اسْقِ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ مِنْ سَلْسَبِيلِ الْجَنَّةِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] اوبې بې ام سلمه رضي الله عنها وایې مادرسول کریم ﷺ نه خپلو بیبیانوته دافرمایل واوریدل [۲] حقیقت دادی چې زما دوفات نه وروسته چې کوم سړی موتې ډکولو سره په تاسو به خرچ کوي یعنی په پوره فراخ دلی اوکامل سخاوت سره ستاسو اخراجاتو کښې به خپل مال خرچ کوي هغه صادق الایمان صاحب احسان دی [۳] خداونده عبدالرحمٰن بن عوف رضي الله عنه دجنت دنهر سلسبیل نه سیراب کړی (احمد)

**حل اللغات:** - ① يَحْثُو: أَيْ: يَجُودُ وَيَنْثُرُ: دَ سخاوت او قربانی کولو په معنی کښې دې ② الصَّادِقُ: چه په ایمان کښې صادق او رښتوني وی. ③ الْبَارُّ: أَيْ صَاحِبُ الْإِحْسَانِ: نیکی کونکې ④ اسْقِ: اوڅکوې، خړوب کړې.

**تسهیلات:**

**قوله:** اللّٰهُمَّ اسْقِ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ مِنْ سَلْسَبِيلِ الْجَنَّةِ

**د دعا کلماتو د قائل باره کښې دوه اقوال:** ① بعضې حضراتو وئیلی دی چه مذکوره دعائیه کلمات دَ ام سلمه رضي الله عنها دی

② بعضې حضراتو وئیلی چه دا دعائیه کلمات هم په توګه دَ پیشنګوئی دَ حضورپاك الفاظ دی چه عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه به زما بیبیانو سره ډیر لوئی احسان فرمائی په دې وجه حضورپاك دَهغوی په حق کښې دعا اوکړه

[1] اخرجه احمد فی المسند: ۶/۲۹۹

**[٦١٣٢] د ابوعبیده ﷺ د امانت شهادت ورکول**

٣٢ - () [٣٣] ١ وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «جَاءَ أَهْلُ نَجْرَانَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ابْعَثْ إِلَيْنَا رَجُلًا أَمِينًا، ٣ فَقَالَ: "لَأَبْعَثَنَّ إِلَيْكُمْ رَجُلًا أَمِينًا حَقَّ أَمِينٍ ٤" فَاسْتَشْرَفَ لَهَا النَّاسُ، قَالَ: فَبَعَثَ أَبَا عُبَيْدَةَ ابْنَ الْجَرَّاحِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ اوحضرت حذیفه بن الیمان ﷺ (چې د کبارو صحابه ؤ نه دی او دحضور ﷺ محرم راز وو) وایي ٢ د نجران خلقو درسول کریم ﷺ خدمت کښې حاضریدو سره عرض وکی یارسول الله ﷺ مونږ ته حاکم اوقاضي جوړولو سره یوداسي سړی راولیږی چې امانت دار وي یعنی زمونږ حقوقو کښې څه خیانت نه کوي ٣ حضور ﷺ ورته وفرمایل یقینا زه به یوداسي سړی حاکم اوقاضي جوړولو سره تاسو ته دراولیږم چې امین دي اودي لائق دي چې هغه ته امانت دار اوویل شي ٤ دي اوریدو سره خلقو ددي شرف دحصول تمنا اوانتظار کولي ګورو چې کوم سړی ددي منصب شرف اوامتیاز حاصلوي حضرت حذیفه ﷺ وایي چې حضور ﷺ ابوعبیده بن الجراح ﷺ ولیږل. (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:-** ① أَمِينًا: امانت دار چه دچا په حقوقو کښې خیانت نه کوی ② حَقَّ أَمِينٍ: چه د امانت داری لائق او مستحق وی. ③ فَاسْتَشْرَفَ: أَيْ: طَمِعَ: خلقو طمع شروع کړه.

**تسهیلات:**

**قوله:** جَاءَ أَهْلُ نَجْرَانَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**د نجران څخه مراد:** نجران په یمن کښې د یو ځائی نوم دې کوم چه په ٨هجری کښې فتح کړې شوې وو او یو قول دادې چه نجران، د حجاز او د شام په مینځ کښې د یو ځائی نوم دې

**[٦١٣٣] د نبی علیه السلام څخه د خلفاء باره کښې تپوس**

٣٣ - () [٣٥] ١ وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قِيلَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ: مَنْ نُؤَمِّرُ بَعْدَكَ؟ ٢ قَالَ: إِنْ تُؤَمِّرُوا أَبَا بَكْرٍ تَجِدُوهُ أَمِينًا زَاهِدًا فِي الدُّنْيَا رَاغِبًا فِي الْآخِرَةِ، ٣ وَإِنْ تُؤَمِّرُوا عُمَرَ تَجِدُوهُ قَوِيًّا أَمِينًا لَا يَخَافُ فِي اللّٰهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ، ٤ وَإِنْ تُؤَمِّرُوا عَلِيًّا - وَلَا أَرَاكُمْ فَاعِلِينَ - تَجِدُوهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا يَأْخُذُ بِكُمُ الطَّرِيقَ الْمُسْتَقِيمَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ اوحضرت علي ﷺ وایي چاسوال وکی یارسول الله ﷺ ستاسو نه وروسته مونږ څوک خپل امیر اوسربراه جوړ کړو ؟ ٢ حضور ﷺ ورته وفرمایل که تاسو زما نه وروسته

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب أبی عبیدة بن الجراح رضی الله عنه (رقم ٣٧٤٥) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب فضائل أبی عبیدة بن الجراح رضی الله تعالی عنه (رقم-٥٥ - (٢٤٢٠) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب معاذ بن جبل. وزید بن ثابت. وأبی. وأبی عبیدة بن الجراح رضی الله عنهم(رقم-٣٧٩٦) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبی عبیدة بن الجراح رضی الله عنه (رقم-١٣٥) واحمد فی المسند: ٣٩٨/٥

[2] اخرجه احمد فی المسند: ١٠٩/١

ابوبکر ﷺ خپل امير اوسرِبراه جوړ کړی نوهغه به امانت دار دنيا نه بي پروا اوآخرت طرف ته راغب پيدا کوي ۞ که عمر ﷺ خپل امير اوسربراه جوړ کړی نوهغه به بار امانت پورته کولو کښې ډير مضبوط امين دملامت کونکو دملامت نه بي خوف پيدا کوي ۞ وکه علي ﷺ خپل امير اوسربراه جوړ کړی خوزماپه خيال کښې به تاسو هغه داختلاف اونزاع نه بغير خپل امير اوسربراه جوړونکي نه يئ خوکه جوړيي کړی نوهغه به راه راست ښوونکي يعنی مکمل مرشد هم پيدا کوي اوکامل هدايت يافته هم چې تاسو به په صراط مستقيم روان کړی (احمد)

**حل اللغات:-** ① تُؤَمِّرُ: أَيْ تَجْعَلُهُ أَمِيرًا عَلَيْنَا: چه مونږ ني خپل امير او سربراه جوړ کړو ② زَاهِدًا: چه ددنيا سره مينه نه کوی د دنيا نه به بې پرواه وی. ③ رَاغِبًا: شوق او مينه لرونکې وی (د آخرت په کارونوکښې). ④ لَايَخَافُ: أَيْ لَايُرَاعِي أَحَدًا: دچا نه ويريږی نه، دچا رعايت او لحاظ نه ساتی. ⑤ فِي اللَّهِ: أي فِي أَمْرِ الدِّينِ: د الله په احکاماتو کښې، ددين په کارونو کښې. ⑥ لَوْمَةَ: ملامتيا، ⑦ لَائِمٍ: ملامته کونکي، ⑧ هَادِيًا: أَيْ: مُرْشِدًا لِلنَّاسِ: نورو ته لاره ښودونکي (د جنت). ⑨ مَهْدِيًّا: أَيْ مُهْتَدِيًا فِي نَفْسِهِ: په خپله هدايت حاصلونکي.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا أُرَاكُمْ فَاعِلِينَ:

**دولا اراکم فاعلين جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** په دې جمله کښې دَحضرت علی ﷺ په خلافت باندې يوه تبصره ده

① مطلب داچه تاسو به حضرت علی ﷺ بغيرد جګړې نه خليفه نه جوړوئی نوپه دې ضمن کښې دَ حضرت عثمان ﷺ دَ خلافت طرف ته اشاره اوشوه چه دَ حضرت علی ﷺ اودَ حضرت عثمان ﷺ دَخلافت دَ انتخاب په موقع به تاسوعلی خليفه نه جوړوئی بلکه حضرت عثمان ﷺ به جوړوئی

② تاسوبه زمانه پس متصل بلافصل به حضرت علی ﷺ خليفه نه جوړوئی ځکه چه دَالله تعالی په تقدير کښې داسې مقرردی چه ابوبکرصديق او حضرت عمرفاروق ﷺ به اول خليفه جوړيږی ځکه که حضرت علی ﷺ خليفه جوړشی نودَهغه عمر اوږددې هغه به ترهغه وخته پورې خليفه وی چه حضرت ابوبکر صديق اوحضرت عمرفاروق ﷺ به مړه شی نودوی ته به دَخلافت موقع ملاؤنه شی حالانکه دَ هغوی خلافت مقررشوې دې لهذا زما خيال نه بلکه يقين دې چه تاسو به علی اول خليفه نه جوړوئی لهذا خليفه بلافصل حضرت ابوبکرصديق ﷺ به وی دې نه پس به عمرفاروق خليفه جوړيږی بيا حضرت عثمان او په آخره کښې به حضرت علی ته خلافت ملاويږی

**[٦١٢٤] د نبي عليه السلام په ژبه د څلورو خلفاؤ فضائل**

٣٣ -(١) [٣] ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«رَحِمَ اللَّهُ أَبَا بَكْرٍ، زَوَّجَنِي ابْنَتَهُ، ③وَحَمَلَنِي إِلَى دَارِ الْهِجْرَةِ، وَصَحِبَنِي فِي الْغَارِ، وَأَعْتَقَ بِلَالًا مِنْ مَالِهِ، ④رَحِمَ اللَّهُ عُمَرَ يَقُولُ الْحَقَّ وَإِنْ كَانَ مُرًّا، تَرَكَهُ الْحَقُّ وَمَا لَهُ مِنْ صَدِيقٍ. ⑤رَحِمَ اللَّهُ عُثْمَانَ تَسْتَحْيِيهِ الْمَلَائِكَةُ، ⑥رَحِمَ اللَّهُ عَلِيًّا، اللَّهُمَّ أَدِرِ الْحَقَّ مَعَهُ حَيْثُ دَارَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① اوحضرت علي ﷺ وايي رسول الله ﷺ وفرمايل ② الله تعالى دي ابوبكر ﷺ باندې خپل رحمتونه نازل كړي هغه دخپلي لور عائشه ﷺ نكاح ما سره وكړله ③ خپلي اوښي باندې سورولوسره زه يي دار هجرت مديني ته راوستم دهجرت دسفر په دوران كښې دثورغار كښې ما سره وو اوخپل مال سره بلال ﷺ خريد كولو سره ازاد يي كړلي اوزما په خدمت كښې يي راكړي ④ الله تعالى دي په عمر ﷺ رحمتونه نازل كړي هغه چې كومه خبره كوي كه په چاترخه لګيږي اوحق ګويي هغه دي حدته ورسول چې دهغه هيڅوك دوست نشته ⑤ الله تعالى دي په عثمان ﷺ خپل رحمتونه نازل كړي هغه نه خوفرشتي هم حيا كوي ⑥ والله تعالى دي په علي ﷺ رحمتونه نازل كړي اې الله علي ﷺ دحق سره لرې چې چيرته علي ﷺ وي هلته حق وي داروايت ترمذي نقل كړى دى او ويلي يي دي چې داحديث غريب دى.

**حل اللغات:-** ① حَمَلَنِي: أَيْ: عَلَى بَعِيرِهِ: سور ئې كړم (په خپله اوښه باندې). ② صَحِبَنِي: زما ملګرتيا ئې اوكړه (په غار ثوركښې په واقعه دهجرت كښې). ③ أَعْتَقَ: آزاد ئې كړو (بلال دغلامۍ نه). ④ مُرًّا: أَيْ صَعْبًا عَلَى الْخَلْقِ: تريخ چه په خلقو بد لګى. ⑤ أَدِرِ الْحَقَّ: د إِدَارَةٌ نه د امر صيغه ده. أَيِ اجْعَلِ الْحَقَّ دَائِرًا وَسَائِرًا: يعنى ته حق دده څخه ګيرچاپيره كړه چې حق دې نه پريږدى چې چرته على څى حق وريسې وى.

**تسهيلات:**

**قوله:** رَحِمَ اللَّهُ عَلِيًّا، اللَّهُمَّ أَدِرِ الْحَقَّ مَعَهُ حَيْثُ دَارَ

**على الله رضى الله عنه دحقانيت مواقع:** دَ حضرت على ﷺ په ژوند كښې يوځو دَ جګړې صورتونه راغلى دى په كوموكښې چې د اهل سنت والجماعت په نيز دوى په حق وو

① دَ جنګ جمل دې په دې كښې على ﷺ په حق باندې وو په مقابله كښې لوئى لوئى صحابه په اجتهادى خطاء باندې وو

② دَ جنګ صفين واقعه پيښه شوه په هغې كښې هم حضرت على ﷺ په حق باندې وو مقابله كونكى خلق په اجتهاد باندې وو.

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب على بن أبي طالب رضى الله عنه، يقال وله كنيتان: أبو تراب، وأبو الحسن (رقم-٣٧١٤)

③ خوارج سره دَ اوږدو جنګونو سلسله روانه شوه په هغې کښې هم حضرت علی رضی الله عنه په حق باندې وو او مد مقابل خوارج په باطل باندې وو.

**په عجیبه انداز دعلی رضی الله عنه د حقانیت دعا:** زیر بحث حدیث کښې چه څنګه حضورپاك دَحضرت علی رضی الله عنه دَپاره دعا غوښتې ده هم هغه شان دَهغوی ژوند تیرشو په دې حدیث کښې دَحضرت علی رضی الله عنه حقانیت په عجیبه مؤثر انداز سره بیان کړې شوې دې. دا ئې نه دی وئیلی چه علی رضی الله عنه دې حق سره ګرځی بلکه دائی فرمائیلی چه چرته علی وی حق به هلته په تاویدو سره دَعلی طرف ته ورځی. سبحان الله څومره لوئی اعزاز دې.

# [۲۰] باب مناقب أهل بیت النبی ﷺ

## د نبی کریم ﷺ د کوروالاوو د مناقبو بیان

**خلاصة الباب:**

**فیه تسعة و أربعون حدیثاً مشتملة علی أحد عشرة مسئلة:**

① تعین بعض أهل البیت صراحةً أو إشارة: ۱، ۲، ۴، ۷، ۱۳، ۱۵، ۱۷، ۲۲۔

② فضیلة إبراهیم رضی الله عنه: ۳۔

③ فضیلة فاطمة رضی الله عنها: ۴، ۵، ۲۰، ۲۱، ۲۸، ۴۳۔

④ الوصیة فی شأن أهل البیت وحبهم: ۶، ۱۸، ۱۹، ۴۸، ۴۹۔

⑤ فضیلة جعفر رضی الله عنه: ۷، ۲۷، ۲۸۔

⑥ فضیلة الحسن والحسین رضی الله عنهما: والدعاء لهما و ذکر شأنهما: ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۲۰، ۲۹، ۳۰، ۳۱، ۳۲، ۳۳، ۳۴، ۳۵، ۳۶، ۳۷، ۳۸، ۴۴، ۴۵، ۴۶، ۴۷۔

⑦ فضیلة عبدالله بن عباس رضي الله عنهما: ۱۳، ۱۴، ۲۴، ۲۵، ۲۶۔

⑧ فضیلة أسامة بن زید رضي الله عنه: ۱۵، ۱۶، ۱۹، ۴۱، ۴۲، ۴۳۔

⑨ فضیلة زید بن حارثة رضی الله عنه: ۱۷، ۳، ۴۰۔

⑩ فضیلة علي رضی الله عنه: ۲۰، ۲۱، ۴۳۔

⑪ فضیلة عباس رضی الله عنه: ۲۲، ۲۳، ۲۴۔

**دصاحب مشکاة نهج:** یادلرئی چه صاحب مشکوة دَمذکوره عنوان لاندې دَعموم اوخصوص دواړونه کار اخستې دې.

① بعضې روایات هغه دی دکوم نه چه معلومیږی چه بنوهاشم په اهل بیت نبی ﷺ کښې داخل دی.

② دغه شان هغوی دَ دې باب لاندې څه هغه احادیث هم نقل کړی دی چه په خصوصی توګه باندې صرف حضرت علی حضرت فاطمه حضرت حسن اوحضرت حسین رضی الله عنهم سره

خاص دی. دَ کوم نه چه اندازه کیږی چه اهل بیت هم دغه ځلوردی عام بنوهاشم نه دی.

③ هم دَ دې عنوان لاندې صاحب مشکوة دَحضرت زید او حضرت اسامه رضي الله عنهما ذکرهم کړې دې. دکوم نه چه معلومیږی په اهل بیت النبی ﷺ کښې ډیر وسعت دې او اهل محبت او اهل قرابت هم په دې کښې داخل دی.

④ صاحب مشکوة دَ ازواج مطهرات دَپاره جدا عنوان قائم کړې دې او دَهغوی نې ځانله تذکره کړې ده دې

**په دې تضاد او اختلاف کښې تطبیق:** دَدې ټولو متفرقاتو او څه تضاداتو دَ متفق کولو دَپاره علماء کرامو فرمائیلی دی چه لفظ بیت درې حیثیتونه او درې اطلاقات دی.

**د بیت درې اطلاقات:** ① اول بیت نسب دې دَ بنوهاشم یعنی عبد المطلب اولاد دَ حضورپاك دَپاره اهل بیت نسب دی کوم ته چه کورنئی او خاندان ونیلی شی.

② دویم بیت ولادت دې دَ حضور پاك اولاد ته اهل بیت ولادت وئیلې شی. په کوم کښې چه حضرت علی رضي الله عنه حضرت فاطمة الزهری رضي الله عنها او حضرت حسن او حضرت حسین رضي الله عنهما دَ ټولونه وړاندې دی. سره دَدې چه حضرت علی رضي الله عنه په اهل بیت نسب کښې هم راځی لیکن علماء کرامو دوی په بیت ولادت کښې شمیر کړې دې. داسلسله دَ ولادت ده یادلرئی چه دَ شهرت دَ وجې نه هم دَدغه ځلورونوم په خصوصی توګه باندې په سلسله ولادت کښې اخستلې شی ګنی دَ حضورپاك نورې درې لونړه وغیره ټول په اهل بیت ولادت کښې داخل دی لکه چه حضرت زینب رضي الله عنها حضرت رقیه رضي الله عنها او حضرت ام کلثوم رضي الله عنها دی.

③ اودریم بیت سکنی دې دَ رسول الله ﷺ ازواج مطهرات ته اهل بیت سکنی وئیلی شی کوم چه کوروالا وئیلی شی. ټولې ازواج مطهرات په دې بیت سکنی کښې داخل دی سره دَدې چه دَ اهل بیت ړومبې مصداق ازواج مطهرات او هم دَ کور والا دی لیکن دَدې قسم تقسیم نه قرآن کریم او احادیث کښې استعمال شوې لفظ اهل بیت مفهوم په آسانئی سره په پوهه کښې راځی (خلاصه از مظاهر حق)

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [٦١٣٥] په ځلورو صحابو د اهل بیت اطلاق

٦١٣٥ - (١) [١] ① عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: ﴿نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ﴾ [آل عمران: ٦١] ③ دَعَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلِيًّا وَفَاطِمَةَ وَحَسَنًا وَحُسَيْنًا فَقَالَ: "اللَّهُمَّ هَؤُلَاءِ أَهْلُ بَيْتِي» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[1] اخرجه مسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم /باب من فضائل علي بن أبي طالب رضي الله عنه (رقم-٣٢-٢٤٠٤) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب: ومن سورة آل عمران (رقم-٢٩٩٩)

**ترجمه:** [۱] حضرت سعد ابن ابي وقاص ﷺ بيان كوي كوم وخت چې دا آيت ﴿قُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ﴾ نازل شو نورسول الله ﷺ علي ﷺ فاطمه ﷺ حسن ﷺ او حسين ﷺ راوبلل او وي فرمايل خداونده دا زما اهل بيت دي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① نَدْعُ: مونږ به راوغواړو، رابه ولو ② أَهْلُ بَيْتِي: زما دكور خلق

**تسهیلات:**

**قوله:** نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ

**دايت شان نزول:** دَ حضور پاك په مبارکه زمانه کښې دَ نجران یوځو عیسائي پادریان حضورپاك سره دَ بحث مباحثه اومناظرې دَپاره مدینې ته راغلي وو ځو ورځې بحث روان وو په دې دوران کښې الله تعالی آيت مباهله راؤلیګلو اوحضورپاك ته حکم وركړې شو چه دغه پادریانوته دَمباهله دعوت وركړه چنانچه حضورپاك دَخپل كور نه حضرت حسن اوحسين ﷺ اوبي بي فاطمه ﷺ اوحضرت علي ﷺ خان سره كړوا وهغوى ته ئې دَ مباهله دعوت وركړو دَهغوى پادريان هم ميدان ته راغلل خوچه كله ئې حضورپاك سره دا نوراني مخونه اوليدل نودَهغوى مشر اووئيل خبردار مباهله مه كوئي ځكه چه دا خلق كه دَ الله تعالى نه دا دعااوكړي چه فلانكې غردې دَخپل ځائې نه اخواشي نوغربه تكړې تكړې شي كوشش اوكړئي چه معاهده اوشي جزئيه قبوله كړئي او واپس لاړشئي چنانچه هم دغه اوشو جزئيه منلوسره عيسايان واپس لاړل حضورپاك اوفرمائيل كه چرې دې خلقو مباهله كړې وې نوټول به مسخ شوى وواو اور به دوى سيزلې وې هيره كړې به ئې وو

**اهل بيت دمباهله په ميدان كښې:** دَدې مباهله په وخت حضورپاك حضرت حسن حسين اوعلي اوفاطمه ﷺ ته اشاره كولوسره اوفرمائيل چه دا زما اهل بيت دي پورته چه دا كوم ليكل اوشو چه دَاهل بيت درې اطلاقات دي نودا دَ اهل بيت ولادت والا اطلاق شو نبه سوچ كړئ

**[٦١٣٦] داهل بيتو طهارت**

٦١٣٦-(¹) [٢] [١] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [٢] «خَرَجَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- غَدَاةً وَعَلَيْهِ مِرْطٌ مُرَحَّلٌ مِنْ شَعْرٍ أَسْوَدَ، [٣] فَجَاءَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ فَأَدْخَلَهُ، ثُمَّ جَاءَ الْحُسَيْنُ فَدَخَلَ مَعَهُ، [٤] ثُمَّ جَاءَتْ فَاطِمَةُ فَأَدْخَلَهَا، ثُمَّ جَاءَ عَلِيٌّ فَأَدْخَلَهُ [٥] ثُمَّ قَالَ: ﴿إِنَّمَا يُرِيدُ اللّٰهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا﴾ [الفاتحة: ٣٣-٣٣٢٥]» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

¹ اخرجه مسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم /باب فضائل أهل بيت النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-٦١ - (٢٤٢٤) وابوداود في كتاب اللباس /باب في لبس الصوف والشعر (رقم-٤٠٣٢) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في فضل فاطمة رضى الله عنها (رقم-٣٨٧١) واحمد في المسند: ١٦٢/٦

**ترجمه**:۱ اوبي بي عائشه رضي الله عنها بيان کوي ۲ يوه ورځ په سهار کښې حضور ﷺ راووتلو هغه وخت دحضور ﷺ په بدن مبارك دتورو وېښتو يوکمبل وو چې په هغه داوښ دکجاو تصويرونه جوړ شوي وه ۳ دي کښې حسن ابن علي رضي الله عنه راغی اوحضور ﷺ هغه خپل کمبل کښې دننه کړو بیاحسین رضي الله عنه حضور ﷺ هغه هم حسن رضي الله عنه سره کمبل کښې دننه کړو ۴ بیافاطمه رضي الله عنها راغله هغه يې هم هغوی سره کمبل کښې دننه کړه بیاعلي رضي الله عنه راغی هغه يې هم هغوی سره کمبل کښې دننه کړه ۵ بیاحضور ﷺ داآيت اوونيلو ﴿إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا﴾ (ايت) يعنی اې اهل بيتو الله تعالى غواړي چې تاسو دگناهونو اودبديو دپليتی اوغير اخلاقي اوغير انساني خبرو ميل کچيل کښې آلوده کيدو نه بچ کړي څرنگه چې اکثر خلق آلوده کيږي او تاسو داسې پاک صاف وساتي څرنگه چې پاک صاف کيدل پکار دی . (مسلم)

**حل اللغات**:- ①مِرْطٌ: كِسَاءٌ يَكُونُ مِنْ خَزٍّ وَصُوفٍ فِيهِ عَلَمٌ: د تورو وېښتو او وړۍ نه جوړ شوي څادرچه په هغې کښې نښې وي. ②مُرَحَّلٌ: يعنی څادر چه د کجاوې تصويرونه پرې جوړ وو(اوکه په جيم سره شي نود کټوۍ تصويرونه مراد دی کما فی رواية). ③لِيُذْهِبَ: چه لرې کړی، ختم کړی. ④الرِّجْسَ: هرقسم گناه، پليتی. ⑤يُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا:تاسو دگناهونوڅخه پاک صفا اوساتی

**تسهيلات: قوله**: لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ

**په آيت کښې د اهل بيت مصداق**:په حديث الباب کښې دَ ذکرشوې آيت مصداق دَدې خبرې واضح دليل دې چه په دې ارشاد کښې دَ حضورپاك ازواج مطهراتو هم په اهل بيت کښې شامل دی خکه چه دَدې آيت نه مخکښې آيت کښې ﴿يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ﴾ په ذريعه ازواج مطهراتو ته خطاب اوکړې شو اودَدې آيت نه پس والا آيت ﴿وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَىٰ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ کښې هم خطاب ازواج مطهرات ته دې.

**اشکال**: که چرې دَ مذکوره آياتونو دَ سياق اوسباق نه دغه خبره معلوميدله نو بيا په آيت کښې ﴿عَنكُمُ الرِّجْسَ﴾ دَ مذکر ضمير ولې راوړلې شو دَمؤنث ضمير راوړل پکار وو؟

**داشکال جواب**: دَ مذکر ضمير خو يا دَ اظهار عظمت دَپاره راوړلې شو يا دَ اهل بيت دَ سرو دَ فوقيت او اوچتوالی طرف ته اشاره مقصود وه

**[٦١٣٧] د ابراهيم بن محمد دپاره په جنت کښې مرضعه**

٣٧-()[٣]١ وَعَنِ الْبَرَاءِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «لَمَّا تُوُفِّيَ إِبْرَاهِيمُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ إِنَّ لَهُ مُرْضِعًا فِي الْجَنَّةِ» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

[١] اخرجه البخاري فی کتاب الجنائز/باب ما جاء فی عذاب القبر (رقم-١٣٧٢) وابن ماجه فی کتاب الجنائز/باب ما جاء فی الصلاة علی ابن رسول الله صلی الله عليه وسلم وذکر وفاته (رقم-١٥١١) واحمد فی المسند: ٤/٠٠٤

**ترجمه:**[۱] اوحضرت برا بن عازب رضی الله عنه وايي کوم وخت چې دبي بي ماريه قبطيه رضی الله عنها دخيټې نه دحضور ﷺ فرزند ابراهيم علیه السلام دتي په عمر کښې وفات شو [۲] نورسول کريم ﷺ وفرمايل ابراهيم علیه السلام جنت کښې رسول شوي دي اوجنت هغه دپاره يوه پئي ورکونکې يعنى دايه مقرر شوي ده چې دهغه دسيدو ورکولو زمانه به پوره کوي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ①مُرْضِعًا: پئ، شودې ورکونکې ښځه، داينره.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمَّا تُوُفِّيَ إِبْرَاهِيمُ.

**دابراهيم پيژندګلو:** حضرت ابراهيم دَ ماريه قبطيه دَ بطن نه پيدا شوې وو رسول الله ﷺ ته دَمصر بادشاه مقوقس دَ عطيه په توګه يوه وينځه ورکړې وه دَهغې نوم ماريه قبطيه وه. هم دَ دغه وينځې دَ بطن نه ابراهيم پيداشوي وو. دَشپاړلس اوولس مياشتو په عمرکښې دَ هغه انتقال شوي وو هم دَهغه متعلق حضورپاك فرمائي چونکه دَ هغه دَپينوڅکلو زمانه وه لهذا الله تعالى دَهغه دَپاره يودَ پيئوورکونکې مقررکړه چه ابراهيم ته په جنت کښې پيئى ورکوى. دَدې حديث نه معلومه شوه چه جنت دَ اوس نه موجود دې اوپاك خلق اوس هم جنت ته داخلولي شى.

**[٦١٢٨]د نبی علیه السلام بي بي فاطمي رضی الله عنها سره پټې خبرې کول**

٣٨-() [٣][۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: «كُنَّا - أَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عِنْدَهُ [۲] فَأَقْبَلَتْ فَاطِمَةُ مَا تَخْفَى مِشْيَتُهَا مِنْ مِشْيَةِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، [۳] فَلَمَّا رَآهَا قَالَ: "مَرْحَبًا بِابْنَتِي" [۴] ثُمَّ أَجْلَسَهَا، ثُمَّ سَارَّهَا، فَبَكَتْ بُكَاءً شَدِيدًا، [۵] فَلَمَّا رَأَى حُزْنَهَا سَارَّهَا الثَّانِيَةَ، فَإِذَا هِيَ تَضْحَكُ، [٦] فَلَمَّا قَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَأَلْتُهَا عَمَّا سَارَّكِ؟

**ترجمه:**[۱] اوبي بي عائشه رضی الله عنها وايي چې دنبي کريم ﷺ بيبياني دحضور ﷺ دمرض الموت نه څه مخکې يادا ايام مرض الموت په دوران کښې يوه ورځ حضور ﷺ سره ناستې وې [۲] چې فاطمه رضی الله عنها راغله دهغه دتګ وضع اوهيئت درسول کريم ﷺ دتګ دوضع اوهيئت نه ذره هم مختلف نه وو يعنى دحضور ﷺ دتلو آنداز سره دومره مشابه وو چې هيڅ ددې دواړو تګ کښې امتياز نه شوکولى [۳] بهرحال حضور ﷺ چې فاطمه رضی الله عنها راتلونکې وليده نو وې فرمايل زما لوري مرحبا په خير راغلې بياحضور ﷺ هغه خپله خواکې کينوله [۴] اوپټې پټې بې هغه سره خبرې وکړې دې کښې فاطمه رضی الله عنها په ژړاشوه اوپه زوره زوره يې وژړل [۵] حضور ﷺ وليدل چې فاطمه رضی الله عنها ډيره غمجنه شوې ده نوبيايې هغه سره غوږ کښې خبرې وکړې نوفاطمه رضی الله عنها

[۱] اخرجه البخاري كتاب الاستئذان/باب من ناجى بين يدى الناس. ومن لم يخبر بسر صاحبه. فإذا مات أخبر به (رقم-٦٢٨٥) فى ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فضائل فاطمة بنت النبى عليها الصلاة والسلام (رقم-٩٨ (٢٤٥٠) وابن ماجه فى كتاب الجنائز/باب ما جاء فى ذكر مرض رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-١٦٢١)

يو دم په خندا شوه [٦] يا چي رسول الله استنجا وغيره دپاره ياما نخه دپاره دهغه خاي نه لاړلو نو ما د فاطمي ﷺ نه پوښتنه وکړه چي ستا سره حضور ﷺ پټي پټي څه خبري کولي

**حل اللغات:-** ① مِشْيَتُهَا: أي مَشْيَتُهَا: د بي بي فاطمي رضي الله عنها د تلو او ګرځيدو انداز او هيئت مراد دي. ② مَرْحَبًا: مرحب مصدر ميمي دي بمعنى وسعت [أي أصاب القوم رحبا وسعة] دا لفظ هم د دي فعل مخذوف په وجه منصوب دي [رحب يرحب رحبا ومرحبا] د دي معنى وسعت او فراختيا ده ③ سَارَّهَا: أيْ كَلَّمَهَا سِرًّا: يعنى غلي غوندي په غوږ کښي څه خبره اوکړه ④ حُزْنَهَا: غم او خفګان د بي بي فاطمي رضي الله عنها.

[١] قَالَتْ: مَا كُنْتُ لِأُفْشِيَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ سِرَّهُ، فَلَمَّا تُوُفِّيَ [٢] قُلْتُ: عَزَمْتُ عَلَيْكِ بِمَا لِي مِنَ الْحَقِّ لِمَا أَخْبَرْتِنِي. [٣] قَالَتْ: أَمَّا الْآنَ فَنَعَمْ؟ [٤] أَمَّا حِينَ سَارَّنِي فِي الْأَمْرِ الْأَوَّلِ فَإِنَّهُ أَخْبَرَنِي [٥] "إِنَّ جِبْرِيلَ كَانَ يُعَارِضُنِي الْقُرْآنَ كُلَّ سَنَةٍ مَرَّةً، وَإِنَّهُ عَارَضَنِي بِهِ الْعَامَ مَرَّتَيْنِ، [٦] وَلَا أَرَى الْأَجَلَ إِلَّا قَدِ اقْتَرَبَ، [٧] فَاتَّقِي اللَّهَ وَاصْبِرِي، فَإِنِّي نِعْمَ السَّلَفُ أَنَا لَكِ".

**ترجمه:** [١] فاطمي ﷺ جواب راکړی د رسول الله ﷺ راز زه ښکاره ونکړي نه يم هغه وخت خوزه خاموش شوم ليکن کله چي حضور ﷺ وفات شود دي دنيا نه پرده وفرمايله [٢] نو يوه ورځ ما فاطمي ﷺ ته اوويل چي ديوي موريه حيثيت سره ياديني اخوت او باهمي محبت او تعلق لرلو داعتبار نه په تاچي زما کوم حق دی دهغه واسطه او قسم درکولو سره درته وئيل غواړم چي زه ستا نه د دي نه علاوه نور هيڅ نه غواړم چي ماته دهغه غوږ کښي دخبرو باره کښي وښايه چي په هغه ورځ حضور ﷺ ستا سره کړي وي [٣] فاطمي ﷺ اوويل هو اوس چي حضور ﷺ دي دنيا نه تشريف وړی دی دهغه راز ظاهرولو کښي څه حرج نه ګڼلي سره زه درته ښايم [٤] چي حضور ﷺ په اولنی ځل ما سره غوږ کښي خبري کړي وي نو هغه کښي يي ماته دا فرمايلي وه [٥] چي جبرائيل ﷺ به ما سره کالو سر کښي يو وار يعنی رمضان کښي د قرآن دوره کوله ليکن سرکال رمضان کښي هغه ما سره دوه ځله دوره وکړله [٦] او د دي مطلب ماد راوښکل چي زما د مرګ وخت نزدي راغلی دی [٧] نو ای فاطمي ﷺ زه تاته وصيت کوم چي الله نه ويره کوه يعنی تقوی باندي قائمه اوسه يا داچي خو مره در نه کيدی شی زياته تقوی او پرهيزګاري اختيار وه او د الله اطاعت او عبادت کښي مشغوله اوسيږه او معصيت نه بچ کيدو دپاره کوم تکليف او مشقت چي اوچتول وي او کوم آفت او حادثه چي پيښه شي خصوصاً زما د مرګ په سانحه صبر کوه بلاشبه زه ستا دپاره بالخصوص بهتر پيش رويم

**حل اللغات:-** ⑤ لِأُفْشِيَ: د إِفْشَاء نه دي. أيْ أُذِيْعُ وَأُظْهِرُ: چه زه نی ښکاره کړم ⑥ عَزَمْتُ: أيْ: أَقْسَمْتُ: يعنى زه تاته د الله تعالى قسم درکوم ⑦ يُعَارِضُنِي: أيْ يُدَارِسُنِي: لوستلو به نی ما سره ريويل سره اړول او موازنه کول مراد دی ⑧ الأَجَلَ: أي: النِّهَايَةُ: آخری وخت. نيته. ⑨ نِعْمَ السَّلَفُ: أيْ: الفَرَطُ: ښه پيش رو. مخکښي تلونکي او انتظام کونکي

[۱] فَبَكَيْتُ، [۲] فَلَمَّا رَأَى جَزَعِي سَارَّنِي الثَّانِيَةَ [۳] قَالَ: "يَا فَاطِمَةُ" أَلَا تَرْضِينَ أَنْ تَكُونِي سَيِّدَةَ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ أَوْ نِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ؟". [۴] وَفِي رِوَايَةٍ: فَسَارَّنِي فَأَخْبَرَنِي أَنَّهُ يُقْبَضُ فِي وَجَعِهِ، [۵] فَبَكَيْتُ، [۶] ثُمَّ سَارَّنِي [۷] فَأَخْبَرَنِي أَنِّي أَوَّلُ أَهْلِ بَيْتِهِ أَتْبَعُهُ، [۸] فَضَحِكْتُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] (داخوهغه خبره وه چې دهغه اوريدو سره اودحضور ﷺ دجدايي احساس كولو سره، زه په ژړا شوم [۲] وبياچې حضور ﷺ زه زياته پريشانه اوبې صبره وليدم نودوباره ما سره غوږ كښې خبري وكړي [۳] وهغه وخت يې دا وفرمايل اې فاطمه ﷺ اياته په دې خبره خوشحاله نه يې چې ته به جنت كښې دټولو ښځو ياخاص طور سره ددې امت دښځو سرداره جوړه شې دې ،اوريدو سره زه خوشحاله شوم، [۴] ويوروايت كښې دبې بې فاطمې ﷺ دا الفاظ منقول دي چې حضور ﷺ په اولنى خل ما سره غوږ كښې خبري وكړي نوهغه كښې يې دافرمايلي وه چې حضور ﷺ به په دې بيماري كښې وفات كيږي [۵] ،اودې اوريدو سره ،زه په ژړاشوم [۶] بياپه دويم خل چې حضور ما سره غوږ كښې خبري وكړي [۷] نوهغه كښې ماته داخو دلي وه چې دحضور ﷺ په اهل بيتو كښې به دټولوځنه مخكې زه حضور ﷺ سره يوځاي كيږم( يعنى داتسلي يې راكړي وه چې پريشانه كيږه مه زما دوفات نه روسته به ډير ژرته هم ددې دنيا نه رخصت كيدو سره ماته راشې، نودې اوريدو سره زه په خندا شوم (بخاري ومسلم)

**حل اللغات:**- [۱۰] جَزَعِي: أَيْ: قِلَّةَ صَبْرِي: ژړا او فرياد ، بې صبرى، [۱۱] سَيِّدَةَ: سرداره ، مشره

**تسهيلات: قوله:** عَزَمْتُ عَلَيْكِ:

**د نبى عليه السلام د پټې خبرې معلومات كول:** يعنى زه تاته دَ الله تعالى قسم دركوم اودمورولئ په واسطه هم درته قسم دركوم چه ماته اوښايه چه حضورپاك درته څۀ فرمائيلي وو اوس خودَ حضورپاك دَ وفات سره راز هم راز پاتې نه شو

**قوله:** سَيِّدَةَ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ:

**د اهل بيت د دريو ژنانو په افضيلت كښې اختلاف:** دَحضرت فاطمه ﷺ حضرت عائشه ﷺ اوحضرت خديجه ﷺ په خپل مينځ كښې فضيلت كښې دَعلماؤ مختلف اقوال دى چه په دوى كښې على الاطلاق كومه افضل ده؟ علامه سيوطى ليكلى دى چه دَحضرت فاطمه ﷺ اوحضرت عائشه ﷺ په افضليت كښې دَعلماؤ درې مسلكه دى

(۱) دَ ټولو نه راجح مسلك دادې چه حضرت فاطمه ﷺ دَ حضرت عائشه ﷺ نه افضل ده دَامام مالك ﷺ نه چه كله دَدې افضليت باره كښې تپوس اوكړې شو نو هغوى اوفرمائيل چه حضرت فاطمه ﷺ دَ حضورپاك دَ غوښې ټكړه ده اوزه دَ پيغمبر دَ غوښې په ټكړه باندې چاته فضيلت نه شم وركولې.

③ بعضې علماؤ دَ دوارو مرتبه يو شان ګرځولې ده.
④ اوبعضې علماؤدې باره کښې سکوت اختيارکړې دې.
علامه سبکی رحمه الله او نورو علماؤ دَدې بيبيانو باره کښې ليکلی دی چه معتبر مسلك دادې چه حضرت فاطمه رضي الله عنها دَ ټولو نه افضل ده بيا حضرت خديجه رضي الله عنها ده او بيا حضرت عائشه رضي الله عنها ده
⑤ بعضې نوروعلماؤ يوه ښه خبره ليکلې ده چه په اصل کښې حيثيتونه او اعتبارات مختلف دی هم دَدغه حيثيات او اعتبارات په بنياد باندې فضيلت ورکولوکښې مختلف تعبيرات راغلی دی. حضرت خديجه رضي الله عنها اقدم ايمانًا ده. حضرت عائشه رضي الله عنها اشدها حبًا دی او حضرت فاطمه بضعة جسداً ده.
**د فاطمه رضی الله عنها اولاد:** دَحضرت فاطمه رضي الله عنها نکاح ۲هجری کښې شوې وه اوحسن حسين اومحسن اوزينب اورقيه او ام کلثوم دَهغوی دَ بطن نه پيدا شو. روستو دَام کلثوم نکاح حضرت عمر رضي الله عنه سره اوشوه نوحضرت عمرفاروق رضي الله عنه دَ حضرت علی رضي الله عنه خوم دې سره دَدې چه شيعه ګان به سوزيږی.

**[٦١٢٩] د فاطمې غوصه کول د نبی عليه السلام غصه کول**

٣٠-() [ه][١]وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ:[٢] "«فَاطِمَةُ بَضْعَةٌ مِنِّي، فَمَنْ أَغْضَبَهَا أَغْضَبَنِي» ".[٣]وَفِي رِوَايَةٍ: "يُرِيبُنِي مَا أَرَابَهَا،[٤]وَيُؤْذِينِي مَا آذَاهَا". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] او حضرت مسور ابن مخرمه نه روايت دی چې رسول کريم ﷺ وفرمايل[٢] فاطمه خما د غوښې ټکره ده چاچې فاطمه خفه کړه هغه زه خفه کړم[٣] او په يوه روايت کې دا الفاظ هم دی کوم شی چې فاطمې ته بد معلوميږي هغه ماته هم بد معلوميږي [٤] او کوم شی چې فاطمې ته تکليف ورکوي هغه ماته هم تکليف راکوي (بخاري مسلم)
**حل اللغات:-** ① بَضْعَةٌ: أَيْ قِطْعَةُ لَحْمٍ: د غوښې يوه حصه او ټکره. ② أَغْضَبَهَا: خفه ئې کړه، غصه ئې کړه فاطمه رضی الله عنها. ③ يُرِيبُنِي: أَيْ يُقْلِقُنِي: بد معلوميږی ماته، په شک کښې اچوی ما لره. ④ يُؤْذِينِي: تکليف راکوی ماته
**تسهيلات: قوله:** فَمَنْ أَغْضَبَهَا أَغْضَبَنِي،
**د حديث شان ورود:** حضرت علی رضي الله عنه دَ ابوجهل لور سره دَ نکاح اراده کړې وه. په دې

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب فاطمة عليها السلام وقال النبی صلی الله عليه وسلم: «فاطمة سيدة نساء أهل الجنة» (رقم-٣٧٦٧) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب فضائل فاطمة بنت النبی عليها الصلاة والسلام (رقم-٩٤ - (٢٤٤٩) وابوداود فی کتاب النکاح/باب ما يکره أن يجمع بينهن من النساء (رقم-٢٠٧١) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی فضل فاطمة رضی الله عنها (رقم-٣٨٦٩)

باندې حضورپاك په عام خطبه کښې دا کلام فرمائیلې وو دانکاح منع نه وه مګر حضورپاك اوفرمائیل داَلله تعالی دَ دښمن لور اودَ الله تعالی دَ رسول لور په یو ځائی په یوه نکاح کښې جمع کول مناسب نه دی او په دې کښې دَ فاطمه په فتنه او ازمیښت کښې دَ پریوتلو خطره ده. دَحضورپاك زړه ته دَ درد رسیدو خطره ده نودَدې عارضی امورو دَ وجې حضورپاك منع کړو ګنی په اسلام کښې منع نه وه.

**[۶۱۴۰] امت ته داهل بیتوباره کښې تاکید**

۶۱۳۰-() [۲] [۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «قَامَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمًا فِينَا خَطِيبًا بِمَاءٍ يُدْعَى: خُمًّا، بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ، فَحَمِدَ اللّٰهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ. [۳] وَوَعَظَ وَذَكَّرَ [۴] ثُمَّ قَالَ: " [۵] أَمَّا بَعْدُ. أَلَا أَيُّهَا النَّاسُ! إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ، [۶] يُوشِكُ أَنْ يَأْتِيَنِي رَسُولُ رَبِّي [۷] فَأُجِيبَ، [۸] وَأَنَا تَارِكٌ فِيكُمُ الثَّقَلَيْنِ: أَوَّلُهُمَا كِتَابُ اللّٰهِ، فِيهِ الْهُدَى وَالنُّورُ، [۹] فَخُذُوا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَاسْتَمْسِكُوا بِهِ " [۱۰] فَحَثَّ عَلَى كِتَابِ اللّٰهِ [۱۱] وَرَغَّبَ فِيهِ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت زید بن ارقم وایي [۲] رسول الله ﷺ یوه ورځ د مکې او مدینې په منځ کې اوبو والامقام باندې چې هغه ته یې خم وئیل خطاب عام د پاره زمونږ مخکې ودریدو سره مخکې د ﷺ حمد او ثناء وکړه [۳] بیا خلقو ته یې (د ښوخبرو او نیکو خبرو او نیکو اعمالو) نصیحت وفرمایه هغوئ ته یې( د الله د ثواب او عذاب یاد ورکی او د غفلت اوکوتاهي خلاف ئي) آګاه کړل [۴] بیایي وفرمایل [۵] اي خلقو! زه ستاسو په شان یو انسان یم (دې امتیاز سره چه ﷺ ستاسو د هدایت د پاره زه خپل رسول جوړولو سره رالیږلی یم او په ما وحې راځي) [۶] هغه وخت نزدې دی چې خما د پروردګار استازې (یعنی ملك الموت عزرائیل ماددې دنیا نه بوتللو د پاره یا خو تنها جبرائیل سره) راشي [۷] او زه د خپل پروردګار حکم قبول کړم [۸] زه ستاسو په منځ کې هغه عظیم او نفیس څیزونه پریږدم چې په هغه کې یوکتاب الله دی چې په هغه کې هدایت (یعنی د دین دنیا فلاح او کامیابي ته د بوتلونکي راه راست) بیان دی او نور دی [۹] نو تاسو کتاب الله مضبوط ونیسئ( یعنی د خپل مسائلو حل د دې په رڼا کې تلاش کئ) داخپل رهنما او مستدل جوړ کئ (دا یادولو سره خپلو سینو کې یې محفوظ کئ او د دې ع لوم ومعارف حاصل کئ) [۱۰] (غرض داچې حضور ﷺ خلقوته) د کتاب الله په حقله ښه جوش (ترغیب) ورکړی [۱۱] او هغه طرف ته یې راغب کړل

**حل اللغات:-** ① يُدْعَى: أي: يُسَمَّى: نوم ورته اخستلې شو ② خُمًّا: په مکه مکرمه کښې دجحفه مقام نه درې میله فاصله کښې یوځائی دې هغې ته غدیرخم وائی ③ ذَكَّرَ: أي: نَبَّهَهُمْ مِنْ نَوْمِ غَفْلَتِهِمْ: د غفلت او کوتاهئ خلاف ئې خبردار کړل ④ الثَّقَلَيْنِ: أي: الْأَمْرَيْنِ الْعَظِيمَيْنِ: دوه لوئې اوضروری

[1] اخرجه مسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل علي بن أبي طالب رضى الله عنه (رقم-۳۶-(۲۴۰۸)) واحمد في المسند:۳/۱۴

ځیزونه. (اصل کښې ثقل هغه بار او بوج ته وائی کوم چه په خاروی باندې بار کړې شوې وی چونکه په دې احکامو باندې عمل کول په انسانانو باندې بار کړې شوی دی ځکه ورته ثقلین اوونیلی شو) ⑤الْهُدَى: أي: الْهِدَايَةُ: هدایت یعنی د ګمراهۍ نه په سمه لار راتلل. ⑥النُّورُ: رڼرا یعنی د زړه رڼرا کومه چه د دنیا کښې د ایمان او استقامت سبب ګرځی اوپه قیامت کښې به هم د رڼرا سبب وی. ⑦خُذُوا: اونیسئ (دا قرآن) یعنی یاد ئې کړئ او عمل پرې اوکړئ. خپل مسائل او فیصلې په قرآن کوئ ⑧فَحَثَّ: أي فَحَرَّضَ: ترغیب ئې ورکړو، جوش ئې رابیدار کړو په صحابه کرامو کښې. ⑨رَغَّبَ: أي: ذَكَرَ الْمُرَغِّبَاتِ: ترغیب ئې ورکړو، په خلقو کښې ئې شوق او مینه رابیداره کړه.

۱ثُمَّ قَالَ: ۲وَأَهْلُ بَيْتِي، ۳أُذَكِّرُكُمُ اللَّهَ فِي أَهْلِ بَيْتِي، ۴أُذَكِّرُكُمُ اللَّهَ فِي أَهْلِ بَيْتِي» ". ۵وَفِي رِوَايَةٍ: " «كِتَابُ اللَّهِ هُوَ حَبْلُ اللَّهِ، ۶مَنِ اتَّبَعَهُ كَانَ عَلَى الْهُدَى، ۷وَمَنْ تَرَكَهُ كَانَ عَلَى الضَّلَالَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ بیایې وفرمایل ۲او دې دوه عظیم ځیزونو کې دویم شی) ځما اهل بیت دی ۳زه تاسو ته د الله هغه عذاب یادوم چې ځما د اهل بیتو (د حقوقو په آدائیګي کې د کوتاهي او تقصیر) په سبب به وي ۴زه دوباره تاسو ته د الله هغه عذاب رایادوم چې ځما د اهل بیتو (د حقوقو په آدائیګي کې د کوتاهي )په سبب به وي ۵ او په یوه روایت کې دی چې (په هغه کې د کتاب الله په ځای دا الفاظ دي) کتاب الله د الله رسي ده ۶کوم سړی چې د کتاب الله اطاعت کوي (یعنی په هغه ایمان راوړی هغه یادوی اخلاص سره د هغه علم حاصلوی او په هغه عمل کوي .) نو هغه به په حق وي ۷ او کوم سړی چې هغه پریږدي (یعنی نه خو باندې ایمان راوړی نه یې یادوي نه د هغه علم او عمل کې مخلص وي )نو هغه به ګمراه وي. (مسلم)

**حل اللغات:** -⑩أُذَكِّرُكُمُ: أي أُحَذِّرُكُمُوهُ: زه تاسو ویروم (په حق د اهل بیتو کښې چه دهغوی د عزت او احترام حفاظت به کوئ) ⑪حَبْلُ اللَّهِ: أي مَا يُوَصِّلُ الْعَبْدَ إِلَى رَبِّهِ: د الله رسۍ د کوم په ذریعه چه بنده خپل رب ته رسیدې شی.

**نوټ:** په حدیث کښې د ګرانو لغاتو حل شوې دې باقی مضمون آسان دې.

**[٦١٤١] جعفر رضی الله عنه ته د ابن ذالجناحین لقب ورکول**

٦١٣١-( ) [١] ۱وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - أَنَّهُ كَانَ إِذَا سَلَّمَ عَلَى ابْنِ جَعْفَرٍ قَالَ: ۲السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا ابْنَ ذِي الْجَنَاحَيْنِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابن عمر وایي چې هغه به کله د حضرت جعفر بن ابي طالب خوی عبد الله ته سلام کوی نو داسې به یې ونیل ۲ اې د دوو وزرو والا خویه! په تا دې سلامتیا وي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ①ذِي الْجَنَاحَيْنِ: دوؤ وزرو والا نبی علیه السلام ولیدل چه جعفر په جنت کښې د فرشتو سره الوځی نو د ذی الجناحین لقب ئې ورته ورکړو.

[١] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب مناقب جعفر بن أبي طالب الهاشمي رضي الله عنه (رقم-٣٧٠٩)

**تسهيلات:**

**قوله:** السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا ابْنَ ذِي الْجَنَاحَيْنِ،

**د ذو جناحين وجه تسميه:** روميانوسره په اتم هجرى كښې مقام موته باندې جنګ موته شوې وو په دې مشهور جنګ کښې د حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه د شهادت په وجه روستو دامير كيدو په حيثيت جنګی جهنډا د حضرت جعفر رضي الله عنه په لاس كښې وه يو كافر په هغه باندې حمله اوكړه اولاس ئې ترې پرې كړو هغه جهنډا دويم لاس كښې اونيوله كافرهغه هم پرې كړو هغوى جهنډا په خله او سينه كښې راګيره كړه هغه كافر د هغه په شا باندې حمله اوكړه په كوم سره چه د هغه بدن دوه ټكړې شواوشهيد شو الله تعالى هغه ته په جنت كښې دوه وزرې وركړې د كوم په ذريعه چه هغه په جنت كښې الوتلو هم په دې اعتبارسره هغه ته "ذوالجناحين" يعنى د دوو وزرووالاوائى دلته د جعفر خوئى عبدالله مراد دې

**[٦١٤٢] حسن بن على د نبى عليه السلام په اوږو باندې**

٦١٣٢ - ( )[٨] [١] وَعَنِ الْبَرَاءِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ عَلَى عَاتِقِهِ يَقُولُ: [٣] "اللَّهُمَّ إِنِّي أُحِبُّهُ فَأَحِبَّهُ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت براء وايي [٢] ما يوه ورځ حضور ﷺ داسې حال كې اوليدلو چې حسن ابن علي رضي الله عنه د حضور ﷺ په اوږه سپور وو او حضور ﷺ وفرمايل [٣] اې الله زه ده سره ډير محبت كوم ته هم دده سره محبت وكړه. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ عَلَى عَاتِقِهِ،

**دحسن رضى الله عنه مختصرتعارف:** په حديث الباب كښې دى چه د حضورﷺ دا دعا قبوله شوه كله چه الله تعالى اود هغه رسول ﷺ حضرت حسن رضي الله عنه محبوب جوړكړو نو په هرمسلمان باندې لازم دى چه هغه دې حضرت حسن رضي الله عنه سره محبت اوساتى دې د جنتى خوانانو سردار دې د دوى كنيت ابومحمد دې د دوى پيدائش ۳ هجرى ۱۵ رمضان المبارك باندې شوې او ۵۵ هجرى كښې فوت شوې دې او بعضې حضراتو د دوى د وفات كال كښې مختلف اقوال ليكلى دى ① ۵۸هجرى ② ۴۹ هجرى ③ ۴۴هجرى

**دحسين رضى الله عنه مختصر تعارف:**

د حضرت حسن رضي الله عنه كشر رور حضرت حسين رضي الله عنه كنيت ابو عبدالله دې دې په كال ۴هجرى د شعبان د مياشتې په پنځم تاريخ باندې پيدا شوې او د حضرت حسن رضي الله عنه نه

[1] اخرجه البخارى فى كتاب المناقب/باب مناقب الحسن والحسين رضى الله عنهما (رقم-۳۷۴۹) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فضائل الحسن والحسين رضى الله عنهما (رقم-۵۹ - (۲۴۲۲) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۷۸۳)

صرف لس مياشتې درې ورځې كشر وو. ۱۰ محرم ۶۱ هجرى دَ جمعې په ورځ دَ كربلا په زمكه كښې هغوى ؓ شهيد كړې شو يو روايت كښې دى چه سنان بن انس نخعى هغوى ؓ لره شهيد كړل او بعضو وئيلى دى شمر ذى الجوشن شهيد كړو او دَ ابن زياد نه ئې انعام اوغوښتلو

**[٦١٤٢] حسن سره د نبى كريم ﷺ مينه**

٣٢-()[۱] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«خَرَجْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي طَائِفَةٍ مِنَ النَّهَارِ ③حَتَّى أَتَى خِبَاءَ فَاطِمَةَ ④فَقَالَ: "أَثَمَّ لُكَعُ؟ أَثَمَّ لُكَعُ؟" ⑤يَعْنِي حَسَنًا، ⑥فَلَمْ يَلْبَثْ أَنْ جَاءَ يَسْعَى، ⑦حَتَّى اعْتَنَقَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا صَاحِبَهُ، ⑧فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ⑨"اللّٰهُمَّ إِنِّي أُحِبُّهُ فَأَحِبَّهُ، ⑩وَأَحِبَّ مَنْ يُحِبُّهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ؓ وايي ② زه د رسول الله ﷺ سره د ورځې يوه حصه كې ووتم ③ هر كله چې حضور ﷺ د بي بي فاطمې ؓ كورته ورسيدى ④ نو پوښتنه يې وكړه آيا دلته وړوكې ماشوم شته آيا دلته كاكې شته؟ ⑤ د حضور ﷺ مراد حضرت حسن وو (چې د هغه تلاش كولو ته حضور ﷺ راغلى وو) ⑥ اوس لا حضور ﷺ څو لمحې تيرې كړې وې چې حسن په منډه راغلې ⑦ بيا حسن حضور ﷺ سره او حضور ﷺ هغه سره غاړه په غاړه شول ⑧ بيا رسول الله ﷺ وفرمايل ⑨ خدايه! زه د ده سره محبت كوم ته هم د ده سره محبت وكړې ⑩ او هغه سړي سره هم محبت وكړې چې د ده سره محبت كوي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① خِبَاءَ: أَيْ بَيْتَهَا: كور د بى بى فاطمې رضى الله عنها. ② أَثَمَّ: أَيْ أَهُنَاكَ: آيا شته دې دلته. ③ لُكَعُ: الصَّبِيُّ الصَّغِيرُ: وړوكى ماشوم ته وائى (د ډير رحمت اوشفقت په وجه ئې ورته داسې نوم واخستلو) ④ اعْتَنَقَ: غاړه ئې وركړه (يوبل ته).

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقَالَ: "أَثَمَّ لُكَعُ؟ أَثَمَّ لُكَعُ؟

**د لفظ لكع تحقيق او استعمال:** دَاصل لغت په اعتبارسره خو لكع دَ الف لام په ضمه او كاف زبرسره غلام ته وائى بيا په احمق او خسيس باندې دَدې اطلاق اوشو بيا په وړو ماشومانو كښې هم استعماليدلو دلته دَ شفقت په توګه دَ وړوكى ماشوم دَپاره استعمال شوې دې يعنى دلته وړوكې دې منونې دې

---

[۱] اخرجه البخاري فى كتاب البيوع/باب ما ذكر فى الأسواق (رقم-٢١٢٢) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فضائل الحسن والحسين رضى الله عنهما (رقم-٥٧ - (٢٤٢١) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل الحسن والحسين ابنى على بن أبى طالب رضى الله عنهم (رقم-١٤٢) واحمد فى المسند: ٢٤٩/٢

[٦١٤٤] امام حسن نبي عليه السلام سره په منبر باندي

۶۱۳۴-()[۱۰] ① وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②«رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى الْمِنْبَرِ ③ وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ إِلَى جَنْبِهِ ④ وَهُوَ يُقْبِلُ عَلَى النَّاسِ مَرَّةً وَعَلَيْهِ مَرَّةً، ⑤ وَيَقُولُ: "إِنَّ ابْنِي هَذَا سَيِّدٌ، ⑥ وَلَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يُصْلِحَ بِهِ بَيْنَ فِئَتَيْنِ عَظِيمَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوبکره ﷛ بیان کوي ② یوه ورځ ما رسول الله ﷺ په داسې حال کې په منبر باندې خطبه ویلو کې اولیدلو ③ چې حسن ابن علي د حضور ﷺ ښي یا چپه اړخ کې وو ④ کله به حضور ﷺ (په وعظ او نصیحت کې مخاطب کولو ) خلقو طرف ته کتل او کله به (د میني محبت نه ډك نظر سره) حسن بن علي طرف ته کتل ⑤ او فرمایل یې خما داخوی سید دی ⑥ امید ساتل پکار دي چه الله تعالی د ده په ذریعه د مسلمانانو دوو لویو ډلو کې صلح وکړي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① يُقْبِلُ: متوجه کیدلوبه، کتل به ئې، ② فِئَتَيْنِ: د فئة تثنیه ده، دوه ډلې یوه ډله د امیرمعاویه ﷛ او دویمه دحضرت علی ﷛ (دحضرت علی ﷛ نه پس حضرت حسن ﷛ خلیفه شو اوحضرت امیرمعاویه ﷛ سره ئې صلح اوکړه).

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يُصْلِحَ بِهِ،

**د پیشنګوئی ظهور:** دادَصلح نه جوړدي. دَ حضورپاك دَارشاد مطلب دادي چه حسن ﷛ څه معمولي هستی نه ده دا لوئی سردار دي. دَده په وجه به ان شاء الله دَ مسلمانانو په دوو لویو جماعتونو کښې صلح کیږي اوذي به پخپله صلح کوی. دا پیشنګوئی هغه وخت پوره شوه کله چه حضرت علی ﷛ شهید کړې شو اوحضرت حسن ﷛ خلافت باندې کیناستو. تقریبًا شپږ میاشتو پورې دوی خلیفه وو بیا هغوی حضرت معاویه ﷛ سره صلح اوکړه اودَ خلافت نه ئې لاس واخستو اومسلمانان دَ یوې جهنډې لاندې راجمع شو حضرت حسن ﷛ سره څلویښت زره مسلح مسلمانان راپاسیدلی وو اودَ هرقسم جنګ او مقابله عهدئې کړې وو لیکن حضرت حسن ﷛ اوفرمائیل دَدې امت دَ وینې یو څاڅکې هم نه تویول غواړم بغیردَ څه مجبورئی او بغیردَ څه لالچ نه ئې خلافت پریخودو اومسلمانان ئې رایوځائی کړل اګرچه دَ هغه زمانې منافق قسم شیعه ګانو دې اقدام ته دَنفرت په نظر سره اوکتل او حضرت حسن ﷛ ته ئې بدې ردې اوونیل اومخامخ راغله وئې ونیل "السلام علیك

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الصلح/باب قول النبي صلى الله عليه وسلم للحسن بن علي رضي الله عنهما: وابني هذا سيد، ولعل الله أن يصلح به بين فئتين عظيمتين» وقوله جل ذكره: {فأصلحوا بينهما} [الحجرات: ٩] (رقم-٢٧٠٤) وابوداود في كتاب السنة/باب ما يدل على ترك الكلام في الفتنة (رقم-٤٦٦٢) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٧٧٣) والنسائي في كتاب الجمعة/باب مخاطبة الإمام رعيته وهو على المنبر (رقم-١٤١٠)

یاعار المؤمنین" حضرت حسن رضی الله عنه په ډیر صبر او تحمل سره او فرمائیل "اختار العار علی النار" نه پورې شیعه ګان دَ دې معاهدې دَ وجې دَ حضرت حسن رضی الله عنه څخه ناراض دی او کیدې شی چه روستو هم دَ دغه معاهده شیعه ګانو هغه ته زهر ورکولو سره شهید کړو او ترننه پورې نې دَ هغوی په حمایت کښې یوجلوس هم اونه ویستلو ځکه چه په حقیقت کښې دوی په دې خوشحال دی

**قوله: بَيْنَ فِئَتَيْنِ عَظِيمَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ،**

**دمعاویه رضی الله عنه په ډله دمسلمان اطلاق:** په دې حدیث کښې دَ حضرت علی رضی الله عنه او حضرت معاویه رضی الله عنه دواړو جماعتونو ته حضور پاك دَ مسلمانانو عظیم جماعتونه ګرځولی دی دکوم نه چه اندازه کیږی دَ دواړو طرفونه مسلمانان وو حضرت علی رضی الله عنه په حق وو او حضرت معاویه رضی الله عنه په اجتهادی خطاباندې وو.

**[٦١٤٥] حسن او حسین د نبی علیه السلام د باغ ګلان**

٣-( )[٥] [١] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي نُعْمٍ، قَالَ: [٢] «سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - [٣] وَسَأَلَهُ رَجُلٌ عَنِ الْمُحْرِمِ، [٤] قَالَ شُعْبَةُ أَحْسَبُهُ، يَقْتُلُ الذُّبَابَ؟ [٥] قَالَ: أَهْلُ الْعِرَاقِ يَسْأَلُونِي عَنِ الذُّبَابِ. [٦] وَقَدْ قَتَلُوا ابْنَ بِنْتِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٧] وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " هُمَا رَيْحَانَتَيَّ مِنَ الدُّنْيَا» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت عبد الرحمن بن ابي نعم وايي [٢] ما د حضرت عبد الله ابن عمر نه واوریدل [٣] هرکله چې (اهل کوفه نه) یوسړی د محرم په باره کې پوښتنه کړي وه [٤] دا روایت حضرت عبد الرحمن نه روایت کونکی راوي (حضرت شعبه وايي خما خیال دی چې پوښتنه کونکی د مچ وژلو حکم معلوم کړی وو [٥] په دي حضرت ابن عمر وفرمایل د عراق (یعنی کوفي خلق) زما نه د مچ وژلو په باره کې شرعي حکم معلوموي [٦] حالانکه دوی د رسول الله ﷺ د لور خوی و وژلي [٧] چې د هغه متعلق رسول الله ﷺ دا فرمایلي وه چې دا دواړه خما د دنیا دوه ګلان دي (بخاري)

**حل اللغات:-** ① الْمُحْرِمِ: چه احرام ئې تړلې وی. ② الذُّبَابَ: مچ. ③ رَيْحَانَتَيَّ: د ریحان تثنیه ده. یو قسم خوشبودار ګل دې. کشمالو خوی. راحت. رحمت. روزی. آرام او سهولت ته او هر خوشبودار ګل ته هم ریحان وائی.

[١] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب مناقب الحسن والحسين رضي الله عنهما (رقم-٣٧٥٣) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي محمد الحسن بن علي بن أبي طالب والحسين بن علي بن أبي طالب رضي الله عنهما (رقم-٣٧٧٠)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَسَأَلَهُ رَجُلٌ عَنِ الْمُحْرِمِ،

**د کوفی تپوس او د ابن عمر جواب:** حديث الباب کښې دی چه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما هغه کوفی ته ښه ژور جواب ورکړو. کوفی دا سوال کړې وو که چرته مونږ کښې څوك دَ احرام په حالت کښې مچ اووژنی نو په هغه باندې به دم راځی که نه؟ په دې باندې حضرت ابن عمر رضي الله عنهما جواب ورکړو چه دا کوفې والا زما نه دَمچ وژلو باره کښې دَ شرعی حکم تپوس کوی لکه چه دا ظاهروی چه مونږ دَ شريعت ډير منونکی يو حالانکه دا هغه خلق دی چا چه ډير په بې دردئی سره دَ رسول الله ﷺ نمسې شهيد کړې دې حالانکه دَ هغه متعلق حضورپاك فرمائيلی وو چه دا دواړه زما دَ دنيا ګلونه دی.

**قوله:** رَيْحَانَتَيَّ:

**د ريحان معانی:** دَدې مختلف معانی راځی. رزق ته هم وائی خوشبو ته هم ريحان وئيلې شی. دغه شان راحت، روزی، رحمت، آرام او سهولت او هم په دې مناسبت سره خوئی ته هم ريحان وائی ځکه چه په خوئی سره هم زړه ته راحت او دَ سترګو يخوالې حاصليږی.

**[٦١٤٦]رسول ﷺ سره د حسنينو جسماني مشابهت**

| |
|---|
| ۳۰-(۱) [۳][۱]وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ:[۲]لَمْ يَكُنْ أَحَدٌ أَشْبَهَ بِالنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنَ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ،[۳]وَقَالَ فِي الْحُسَيْنِ أَيْضًا:[۴]كَانَ أَشْبَهَهُمْ بِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |

**ترجمه:**[۱] حضرت انس رضي الله عنه وايي[۲] د رسول الله ﷺ سره د ټولو نه زيات مشابهت لرونکی د حسن بن علي رضي الله عنه نه علاوه بل څوك نه وو[۳] او حضرت انس د حضرت حسين په باره کې هم اوويل[۴] چې هغه هم د رسول الله ﷺ سره زيات مشابه وو. (بخاري)

**حل اللغات:**- ① أَشْبَهَ: دَ باب افعال نه دَفعل ماضی صيغه ده چه دَ شابه په معنی کښې دې يعنی زيات مشابه، په شکل اوصورت کښې يوشان.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمْ يَكُنْ أَحَدٌ أَشْبَهَ بِالنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنَ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ،

**نبی عليه السلام سره د حسنينو مشابهت:** دَحديث الباب حاصل دادې چه حضرت حسن او حضرت حسين رضي الله عنهما دَرسول کريم ﷺ هم شکل وو حضرت حسن رضي الله عنه دَ پورته نيمې حصې کښې او حضرت حسين رضي الله عنه په ښکته نيمې حصې کښې دَ سرور کائنات ﷺ په شان وو

---

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب الحسن والحسين رضی الله عنهما (رقم-۳۷٤۸) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۷۷۸)

**[٦١٤٧] د ابن عباس ﷺ د پاره د علم او حکمت دعا**

٣٧-()[٣] ①«وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: ② ضَمَّنِي النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-إِلَى صَدْرِهِ فَقَالَ: ③ "اللّٰهُمَّ عَلِّمْهُ الْحِكْمَةَ»". ④ وَفِي رِوَايَةٍ: "عَلِّمْهُ الْكِتَابَ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عباس ﷺ بيان کوي ② رسول الله ﷺ زه خپلي سيني مبارکي سره لګولو سره وفرمايل ③ خداونده! ده ته حکمت ورکړي ④ او په يوه روايت کې د دعا دا الفاظ راغلي دي چې خداونده! ده ته د کتاب الله علم ورکړي (بخاري)

**حل اللغات:-** ① ضَمَّنِي: أَيْ أَخَذَنِي: سيني سره ئې يوځاني کړم، په غيږکښې ئې اونيولم ② الْحِكْمَةَ: أَيْ: إِتْقَانَ الْعِلْمِ وَالْعَمَلِ: پوخ او ژور علم اوعمل ته حکمت وائي (پخه خبره، پوهه، عقلمندي، حاضرجوابي، په حق او باطل کښې فرق کول دې ټولو باندې د حکمت اطلاق کيږي)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-

**د ابن عباس مختصر تعارف:**

ابن عباس ﷺ دَ هجرت نه درې کاله مخکښې پيدا شوې وو او کله چه دَ حضورپاك وصال اوشو نوهغه وخت دَ ابن عباس ﷺ عمر ديارلس کاله وو. هغه جبرائيل ﷺ دوه ځل ليدلي وو. حضورپاك دَهغه دَ پاره مذکوره دعا اوکړه. هغه په مقام طائف ۶۸هجرى کښې دَ ۷۱کالو په عمر کښې وفات شو.

**قوله:** ضَمَّنِي النَّبِيُّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-إِلَى صَدْرِهِ،

**دعلم منبع:** په دې سره دې خبرې طرف ته اشاره مقصود ده چه دَعلم منبع اومصدر او دَ حکمت مخزن اومعدن هم دغه سينه مبارکه ده.

**قوله:** اللّٰهُمَّ عَلِّمْهُ الْحِكْمَةَ.

**د حکمت په مصداق کښې اقوال:** ① دَ حکمت څخه مراد حقائق دَ څيزونو پيژندل او په هغه څيز باندې دَ عمل کولو دې کوم چه دَده لائق وي

② دَ حکمت څخه مراد صحت کردار او صحيح رائې ده

③ حکمت هغه نور دې چه په وسوسه او نور کښې فرق اوکړي

④ زر جواب ورکول حکمت دې (مرقاة ۱۱/۳۸۲)

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب ذكر ابن عباس رضى الله عنهما (رقم-٣٧٥٦) والترمذى فى كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب عبد الله بن عباس رضى الله عنهما (رقم-٣٨٢٤) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل الأنصار (رقم-١٦٦)

**[٦١٤٨] ابن عباس ته په دين كښې د فهم دعا**

٦١٣٨ - (١) [٣] [١] «وَعَنْهُ، قَالَ: [٢] إِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دَخَلَ الْخَلَاءَ [٣] فَوَضَعْتُ لَهُ وَضُوءًا، [٤] فَلَمَّا خَرَجَ قَالَ: [٥] "مَنْ وَضَعَ هَذَا؟" [٦] فَأُخْبِرَ [٧] فَقَالَ: "اللَّهُمَّ فَقِّهْهُ فِي الدِّينِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او دوئ ابن عباس نه روايت دى [٢] رسول الله ﷺ بيت الخلاء د قضائي حاجت په خاي كې داخل شو [٣] نو ما د حضور ﷺ اودس د پاره اوبه كيښودلې [٤] بيا چې حضور ﷺ بهر راووتلو نو وي فرمايل [٥] دا اوبه چا ايښې دي [٦] حضور ﷺ خبر شو [٧] نو وي فرمايل اي الله! ده (ابن عباس) ته د دين پوهه وركړه. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① الْخَلَاءَ: أَيْ مَكَانَ الْبُرَازِ: بيت الخلاء، د اودس ماتې خانې ② وَضُوءًا: أَيْ مَاءُ الْوُضُوءِ: د اودس اوبه. ③ فَقِّهْهُ: أَيْ اجْعَلْهُ فَقِيهًا عَالِمًا: پوهه ژور عالم ئې جوړكړې ④ فِي الدِّينِ: أَيْ أُصُولِهِ وَفُرُوعِهِ: د دين د اصول او فروع، كليات او جزياتو علم.

**تسهيلات:**

**قوله:** دَخَلَ الْخَلَاءَ فَوَضَعْتُ لَهُ وَضُوءًا،

**دحديث پس منظر:** په حديث الباب كښې مذكوره واقعه هغه وخت پيښه شوې وه كوم وخت چه حضرت عبدالله بن عباس ﷺ دَ خپلې ترور ميمونه ﷺ ام المؤمنين په كور كښې وو دې دَ پاره چه دَ حضورپاك دَ تهجد دَمونځ طريقه زده كړى اودَ حضورپاك دَ خدمت سعادت هم حاصل كړى.

چنانچه په مذكوره خدمت پوره كولو باندې رسول الله ﷺ خوشحاله شو او ابن عباس ﷺ ته ئې مذكوره دعا اوكړه چه اې الله ابن عباس ﷺ ته داسې علم وركړې په كوم سره چه دې دَ دين اصول اوفروع اودَ هغې كليات او ضروريات په ښه شان سره اوپيژنې او چه دهٔ ته دَ اوچتې درجې علمي مهارت او فقاهت اودَ دين پوهه حاصله شي.

**قوله:** اللَّهُمَّ فَقِّهْهُ فِي الدِّينِ،

**د دعا دقبليدو نتائج:** باقي دَ فقه نه مراد دَ دين مكمل پوهه ده. دَدغې دعا نتيجه دا راؤوتله چه حضرت ابن عباس ﷺ رئيس المفسرين اوګرځيدو او لوئې لوئې صحابه كرامو ﷺ به په مسائلو كښې هغوى ته رجوع كوله. امام نووى ﷫ فرمائى چه په دې حديث كښې دَ فقه فضيلت ثابتيږى او دَ غائبانه دعا مستجاب كيدل واضح كيږى.

[1] اخرجه البخارى فى كتاب الوضوء /باب وضع الماء عند الخلاء (رقم-١٤٣) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم /باب من فضائل عبد الله بن عباس رضى الله عنهما (رقم-١٣٨ - (٢٤٧٧)

## [۶۱۴۹] اسامه او حسن سره د نبي عليه السلام محبت

۶۱۴۹ - ()[۱۵] [۱] وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ كَانَ يَأْخُذُهُ وَالْحَسَنَ، فَيَقُولُ: [۲] "«اللَّهُمَّ أَحِبَّهُمَا فَإِنِّي أُحِبُّهُمَا»". [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: قَالَ: [۴] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَأْخُذُنِي فَيُقْعِدُنِي عَلَى فَخِذِهِ، [۵] وَيُقْعِدُ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ عَلَى فَخِذِهِ الْأُخْرَى، [۶] ثُمَّ يَضُمُّهُمَا، ثُمَّ يَقُولُ: [۷] "اللَّهُمَّ ارْحَمْهُمَا فَإِنِّي أَرْحَمُهُمَا»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] اسامه بن زيد نه منقول دی چې حضور ﷺ اسامه او امام حسن نيولی وفرمايل [۲] اې الله ددې دواړو سره محبت وکړې چې زه هم دې دواړو سره محبت کوم [۳] او په يوه روايت کې دی چې اسامه اوويل [۴] رسول الله ﷺ به زه نيولو سره په خپل ورون مبارک کينولم [۵] او حضرت حسن بن علي به يې دويم ورون مبارک باندې کينولو، او وبه نې فرمايل [۷] اې الله! په دې دواړو رحم وکړې زه هم په دوئ مهربانه يم. (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ..الخ:

**د اسامه بن زيد تعارف:** دَحضرت اسامه رضي الله عنه پلارحضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه دَ حضورپاك آزاد کړې شوې غلام او دَ حضورپاك متبنٰی (په خوئی نيولې) وو. حضورپاك دَهغوی نکاح خپلې خاص خادمې (برکه) ام ايمن رضي الله عنها سره کړې وه. دا بی بی دَ هغوی دَ پلار عبدالله بن عبدالمطلب آزاده کړې شوې وه. دَ هغې نه دَ حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه خوئی اسامه رضي الله عنه پيدا شوې وو دَ حضورپاك دَ حضرت زيد رضي الله عنه اودَ هغه خوئی اسامه رضي الله عنه سره ډيره مينه وه.

**اسامه او حسن د رسالت په زنګونو:** حضرت اسامه دَ چا مور پلار باندې چه دَ غلامئی دور تيرشوې وو دَ خپل نمسی سره په خپل پتون مبارك باندې کينول او دعاګانې کول که يو طرف ته دَ حضورپاك شان رحيمی واضح کوی نو بل طرف ته دَ دغه دواړو حضراتو اوچتوالې. جلالت دَ شان او عظمت دَ حضورپاك په دغه طرز عمل سره ښکاره کيږی.

**داسامه بن زيدوفات:** دَ رسول الله ﷺ دَ وصال او دَ دنيا نه دَ رخصت کيدو په وخت دَ اسامه رضي الله عنه عمر شل کاله وو هغه په وادئ القراء کښې اوسيدلو او هم هلته دَ حضرت عثمان رضي الله عنه دَ شهادت نه پس هغوی وفات شو دَ بعضې قول دې چه هغوی ۵۴هجری کښې وفات شوی دی او علامه ابن عبدالبر رحمه الله هم دې قول ته ترجيح ورکړې ده.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب ذكر أسامة بن زيد (رقم-۳۷۳۵) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۷۳۵) واحمد في المسند: ۲۶۹/۵

## [٦١٥٠] اسامه بن زيد د لښکر امير جوړول

٦١٥٠-( ) [٢] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بَعَثَ بَعْثًا [٢] وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ، [٣] فَطَعَنَ بَعْضُ النَّاسِ فِي إِمَارَتِهِ، [٤] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: إِنْ كُنْتُمْ تَطْعَنُونَ فِي إِمَارَتِهِ فَقَدْ كُنْتُمْ تَطْعَنُونَ فِي إِمَارَةِ أَبِيهِ مِنْ قَبْلُ، [٥] وَأَيْمُ اللَّهِ إِنْ كَانَ لَخَلِيقًا لِلْإِمَارَةِ، [٦] وَإِنْ كَانَ لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ، [٧] وَإِنَّ هَذَا لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ بَعْدَهُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت عبد الله بن عمر نه روايت دی حضور ﷺ يو فوج وليږی [٢] او په هغه بې اسامه بن زيد امير لښکر جوړ کی [٣] ځني خلقو د هغه په امارت طعنه زني وکړه [٤] رسول الله ﷺ وفرمايل که تاسو خلقو د ده اسامه په امارت معترض شوی نو دي نه مخکښې تاسو د ده د پلار زيد په امارت هم طعنه زني او اعتراض کړی وو [٥] و قسم په الله هغه زيد د امارت قابل هم وو [٦] او ټولو خلقو نه ماته زيات محبوب او عزيز ترهم وو [٧] او هغه نه وروسته دا اسامه هم ماته د ټولو خلقو نه زيات محبوب او عزيز تردی (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① بَعَثَ: أَيْ: أَرْسَلَ: اوني ليږلو ② بَعْثًا: أَيْ: جَيْشًا: لښکر، جماعت ته بعث واني ③ أَمَّرَ: أَيْ جَعَلَ أَمِيرًا: اميرني جوړ کړو ④ فَطَعَنَ: طعنه او الزام لګول ⑤ لَخَلِيقًا: أَيْ: لَجَدِيرًا: لائق وو، قابل وو.

[١] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ نَحْوُهُ وَفِي آخِرِهِ: "[٢] «أُوصِيكُمْ بِهِ، فَإِنَّهُ مِنْ صَالِحِيكُمْ» ".

**ترجمه:** [١] او د مسلم په يوه روايت کې داسې دي او د هغه په آخر کې دومره اضافه هم [٢] چې خلقو زه تاسو ته وصيت کوم چې يقينًا دی ستاسو د نيکو خلقو نه دی.

**حل اللغات:** - ⑥ أُوصِيكُمْ: وصيت کوم، حکم درکوم،

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ،

**د حضرت زيد تعارف:** حضرت زيد بن حارثه ﷺ ظالمانوَ مورپلار نه پټولو سره غلام جوړ کړې وو او مکې ته ئې راوستې وو اوخرڅ کړې ئې وو. کله چه دَحضرت خديجه ﷺ لاس ته راغلو نو هغې دَتحفه په توګه حضورپاك ته ورکړو. هغه دَ حضورپاك په خدمت کښې وو چه دَهغه خپلوانو ته پته اولګيده اوهلته راغله اودَحضورپاك نه ئې اوغوښتو چه دا غلام نه دې بيا هم مونږ تاسو ته معاوضه درکوو تاسو دا پريږدئې حضورپاك اوفرمائيل که چرې هغه پخپله خې نوزما اجازت دې مفت کښې بوځئې مګر زه په ده باندې جبر نه شم کولې. حضرت زيد ﷺ خپلوانو ته اووئيل زه نه ځم هغوی وئيل چه دلته په غلامئې باندې

[١] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب مناقب زيد بن حارثة مولى النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-٣٧٣٠) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب فضائل زيد بن حارثة وأسامة بن زيد رضي الله عنهما (رقم-٦٣-(٢٤٢٦)) والترمذي كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب زيد بن حارثة رضي الله عنه (رقم-٣٨١٦) في واحمد في المسند:٢/٢٠

خوښ نـي اوهلتـه آزادي ده او مـورپلار دې دي څـه خبـره کـوي؟ هغـه اوونيـل دَ حضورپاك غلامي دَبادشاهئي نه بهتر ده هغه خلق لاړل

**زيد متبنى جوړول:** دَ حضرت زيد ﷺ نه حضورپاك دومره خوشحال شو چه هغه ئي آزاد هم کړو او خپل متبنى يعنى په خوئي باندې هم اونيولو اوهميشه ئي هغه دَ جهاد امير جوړولوسره رخصت کولو په ۸هجري کښې هغه اميرجوړولوسره غزوه موته ته اوليګلو اوهلته دې شهيد شو دَهغه خوئي اسامه وو هغه ئي دَموته مقام باندې روميانوسره دَ جهادَپاره امير جوړولوسره روان کړو.

**داسامه په امارت اعتراض:** په دې باندې څه خلقو اعتراض اوکړو چه دې وړوکې هم دې او ناتجربه کار هم دې دې ئي په غټوغټو خلقو باندې څنګه اميرجوړ کړو په دې موقع باندې حضورپاك اوفرمائيل "ان كنتم تطعنون" يعنى كه تن ستاسو دَده په امارت او قيادت باندې اعتراض دې نودَ ده دَ پلار په امارت باندې هم تاسو اعتراض کړې وو اسامه دَامارت قابل دې اوزما ده سره محبت دې. وړاندې په حديث نمبر(۶۱۴۳) کښې پوره تفصيل راخى هغه وخت دَحضرت اسامه ﷺ عمر ۱۷ کاله وو.

**[۶۱۵۱] دزيد بن محمد ويلو ممانعت**

۶۱۵۱-( ) [۱۰] ⑴ وَعَنْهُ، قَالَ: ⑵ «إِنَّ زَيْدَ بْنَ حَارِثَةَ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَا كُنَّا نَدْعُوهُ إِلَّا زَيْدَ بْنَ مُحَمَّدٍ، ⑶ حَتَّى نَزَلَ الْقُرْآنُ: ﴿ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ﴾ [الأحزاب: ٥] » مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ⑷ وَذُكِرَ حَدِيثُ الْبَرَاءِ قَالَ لِعَلِيٍّ: ⑸ "أَنْتَ مِنِّي" فِي "بَابِ بُلُوغِ الصَّغِيرِ وَحَضَانَتِهِ". مَا كُنَّا نَدْعُوهُ إِلَّا زَيْدَ بْنَ مُحَمَّدٍ، حَتَّى نَزَلَ الْقُرْآنُ: ﴿ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ﴾ [الأحزاب: ٥] » مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ⑹ وَذُكِرَ حَدِيثُ الْبَرَاءِ قَالَ لِعَلِيٍّ: "أَنْتَ مِنِّي" فِي "بَابِ بُلُوغِ الصَّغِيرِ وَحَضَانَتِهِ".

**ترجمه:** ⑴ د عبد الله بن عمر ﷺ نه روايت دى وايي ⑵ مونږ به هغه ته زيد بن محمد ويلو سره بللي ⑶ د دې پورې چې په قرآن کريم کې دا آيت نازل شو تاسو هغه د هغه د پلار د نوم نسبت سره رابلې (بخاري مسلم) ⑷ او د حضرت براء حديث چې په هغه کې حضور ﷺ حضرت علي ته وفرمايل ⑸ أنتَ منّي ته زما نه يې بلوغ صغير او د هغه د حضانت په باب کې تير شوي دي

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا كُنَّا نَدْعُوهُ إِلَّا زَيْدَ بْنَ مُحَمَّدٍ،

**د زيد بن محمد ويلو رواج:** په حديث الباب کښې دى چه زيد بن حارثه ﷺ لره به صحابه

[1] اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب {ادعوهم لآبائهم هو أقسط عند الله} [الأحزاب: ۵](رقم-۴۷۸۲) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب فضائل زيد بن حارثة وأسامة بن زيد رضي الله عنهما (رقم-۶۲ - (۲۴۲۵)

کرامو ﷺ زید بن محمد ﷺ په نوم رابللو خکه چه رسول الله ﷺ هغه خوئي جوړکړي وو. په عربو کښې رواج وو چه کله به چا خپل غلام خوئي جوړکړو نو بیا به هم دَ دغه په خلي وبونکي خوئي دَپاره وراثت جاري کیدلو اودَ هغه بڼ بی به ئې خپله اینګور ګنړله اودَ هغې به ئې خپل طرف ته نسبت کولو او صحابه کرامو هم په دغه اصولو باندې زید بن محمد ﷺ رابللو.

**زید بن محمد ونیلو څخه ممانعت:** بیا چه کله حضرت زید ﷺ خپلې بی بی زینب بنت جحش ته طلاق ورکړو او بیا هغه دَ رسول الله ﷺ په نکاح کښې راغله نو خلقو خبرې شروع کړې چه محمد ﷺ خو خپلې اینګور سره نکاح کړې ده. نودَ جاهلیت دَ مذکوره تولو خبرو په تردید کښې دَ سورت احزاب آیاتونه نازل شو ﴿ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ، وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَاءَكُمْ أَبْنَاءَكُمْ، فَلَمَّا قَضَىٰ زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَاكَهَا، مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ﴾ دې نه پس خلقو دَ زید بن محمد په ځائې زید بن حارثه ونیل شروع کړل. دَ حدیث باب او قرآني آیاتونو نه معلومه شوه چه همیشه دَانسان نسبت دَ هغه دَ حقیقي پلار طرف ته کول پکار دي

## الفصل الثاني

### [۶۱۵۲] داهل بیتو خیال ساتلو حکم

۶۱۵۲-() [۸] [۱] عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي حَجَّتِهِ يَوْمَ عَرَفَةَ وَهُوَ عَلَى نَاقَتِهِ الْقَصْوَاءِ يَخْطُبُ، فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: [۳] "يَا أَيُّهَا النَّاسُ" إِنِّي تَرَكْتُ فِيكُمْ مَا [۴] إِنْ أَخَذْتُمْ بِهِ لَنْ تَضِلُّوا: [۵] كِتَابَ اللَّهِ، وَعِتْرَتِي أَهْلَ بَيْتِي» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر ﷺ نه منقول دی هغوئ اوویل [۲] ما د رسول الله ﷺ نه د حج په موقعه د عرفې په ورځ خپلې قصواء نوم اوښې باندې خطبه ورکولو سره واوریدل وي فرمایل [۳] خلقو! زه ستاسو په منځ کې هغه شی پریږدم [۴] که تاسو دا مضبوطې سره ونیسئ نو هیڅ کله به ګمراه نه شئ [۵] یعنی د ﷺ کتاب او خما اولاد خما اهل بیت (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① حَجَّتِهِ: أَيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ: یعنی په حجة الوداع. ② الْقَصْوَاءِ: دا د نبی علیه السلام د اوښې لقب وو. (اصل کښې قصواء هغه اوښې ته ونیلی شی دکومې دَ غوږ چه یو ګوټ پرې شوې وی) ③ عِتْرَتِي: اولاد زما، اهل بیت زما

**تسهیلات:**

**قوله** وَهُوَ عَلَى نَاقَتِهِ الْقَصْوَاءِ يَخْطُبُ

**د قصواء وجه تسمیه:** هغه اوښې ته ونیلی شی دکومې دَ غوږ چه یو ګوټ پرې شوې وی. دَ

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أهل بيت النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۷۸۶) واحمد في المسند: ۳/۱۴

حضورپاك دَ اوبنې غورږ پيدائشي توګه باندې داسې وو دَدې دَ تسميه وجه دا کيدې شي چه دَ حضورپاك اوبنه نيزه وه او تر لرې لرې پورې به په داسې تيز رفتارئ سره تلله چه نورې اوبنې به هغې ته نه شوې رسيدلې په دې وجه ورته قصواء ونيلې کيدله

**قوله وَعِتْرَتِي**

**داهل بيتوه احترام حکم:** دَدې ډير معانې راځی مثلاً قوم، اقارب، دَ يو نيکه اولاد، کور والا رسول کريم ﷺ «عترتي أهل بيتي» فرمائيلو سره تعين اوکړو چه دَعترت نه مراد زما اهل بيت دی لهذا اهل بيتو دَ نيولو نه مراد دَهغوی احترام کول، دَ هغوی په رواياتو باندې اعتماد کول، دَ هغوی په هداياتو باندې عمل کول، دَهغوی حقوق اداکول دی. دَدې دا مطلب هيڅ کله نه دې چه صرف اهل اونيسئ باقی صحابه کرامو لره پريږدئ «أصحابي كالنجوم فبأيهم اقتديتم اهتديتم» په رنړا کښې ټول صحابه کرام دَ هدايت ستوری دی دَ صحابه کرامو تابعداری کول دَ هدايت ذريعه ده

**[٦١٥٣]ددوو ځيزونو دپريخودو حديث**

--) [٥] ① وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "إِنِّي تَارِكٌ فِيكُمْ مَا إِنْ تَمَسَّكْتُمْ بِهِ لَنْ تَضِلُّوا بَعْدِي، ③ أَحَدُهُمَا أَعْظَمُ مِنَ الْآخَرِ: ④ كِتَابُ اللَّهِ حَبْلٌ مَمْدُودٌ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ، ⑤ وَعِتْرَتِي أَهْلُ بَيْتِي، ⑥ وَلَنْ يَتَفَرَّقَا حَتَّى يَرِدَا عَلَيَّ الْحَوْضَ، ⑦ فَانْظُرُوا كَيْفَ تَخْلُفُونِي فِيهِمَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** ① حضرت زيد بن ارقم نه روايت دی هغوئ اوويل چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② زه به تاسو کې دوه ځيزونه پريښودلو سره (در نه څم زما نه وروسته) چې د څوپوري تاسو هغه نيولی وي هيڅ کله به ګمراه نشئ ③ هر يو په هغه کې ددويم نه عظيم تر دی ④ يوخو د الله کتاب دی او د ﷺ د آسمان نه زمکې طرف ته راځړول شوي رسې ده ⑤ او دويم خما اولاد خما کور والا دی ⑥ او هغوئ به جدا جدا نه وي ددې پورې چې حوض کوثر باندې ماته راورسي ⑦ نو تاسو خلق سوچ وکړئ چې تاسو به زما نه وروسته هغوئ سره څه معامله کوئ او څرنګه به ورسره پيش راځئ (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① حَبْلٌ: رسئ، پړې، ② مَمْدُودٌ: راوږده کړې شوې، ③ عِتْرَتِي: اولاد زما، اهل بيت زما ④ يَرِدَا: اوبو دپاره ګودر ته تلو ته وائي ⑤ كَيْفَ تَخْلُفُونِي: چه تاسو به زمانه روسته څه معامله کوئ؟

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أهل بيت النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-٣٧٨٨)

**تسهيلات:**

**قوله**: أَحَدُهُمَا أَعْظَمُ مِنَ الْآخَرِ:

**د مذكوره جملې مطلب:** "أحدهما" څه مراد قرآن كريم دې "اخر" نه مراد اهل بيت دى يعنى قرآن په عظمت كښې دَ اهل بيت نه لوئى دې. دا مطلب نه دې چه په دې دواړو كښې هريو دَبل نه لوئى دې. دارنګ دلته هم په اهل بيت كښې ازواج مطهرات او اولاد ټول شامل دى.

**قوله**: حَبْلٌ مَمْدُودٌ:

**د رسئ سره د مشابهت وجه:** لكه څنګه دَ پورته نه زوړنده شوې رسئى دَ ترقئى ذريعه هم وى او دَ تنزلئى هم. هم په دې رسئى سره پورته ختلې هم شى او راكوزيدې هم شى دغه شان په قرآن پاك باندې عمل كولو سره ترقى (كاميابى) او قرآن پريخودو سره تنزلى (ناكامى) ملاويږى. قرآن دَ الله تعالى امان دې چا چه قرآن اونيولو دَ الله په امان كښې راغلو دَدې نه هم معلومه شوه چه قرآن دَ اهل بيت نه غوره دې خكه چه قرآن دَ الله تعالى رسئى ده

**قوله** وَلَنْ يَتَفَرَّقَا حَتَّى يَرِدَا عَلَيَّ الْحَوْضَ:

**د قرآن او عترة په مينځ كښې د عدم تفرق په مفهوم كښې دوه اقوال:** ① كتاب الله او عترت رسول دا به چرته هم دَ يو بل نه جدا نه شى. اهل بيت به هميشه په قرآن باندې عمل كونكى وى او قرآن به هميشه دَ هغوى په زړه اودماغو كښې وى.

② قرآن، اهل بيت به زمانه جدا نه شى تردې چه دواړه به زما سره حوض كوثر ته اورسى او سره دَ هغه خلقو سفارش به اوكړى چاچه دَدې دواړو حقوق په ښه شان سره اداكړې وى دَ دې دواړو دَ سفارش په بدله كښې به څه دَ خلقو سره ښه سلوك كوم اودَ هغوى سفارش به كوم

**[٦١٥٤] د څلورو كسانو سره د محبت او عداوت حكم**

٦١٥٤ - ()[٢٠][١] وَعَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لِعَلِيٍّ وَفَاطِمَةَ وَالْحَسَنِ وَالْحُسَيْنِ: "[٢]«أَنَا حَرْبٌ لِمَنْ حَارَبَهُمْ، [٣]وَسِلْمٌ لِمَنْ سَالَمَهُمْ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت زيد بن ارقم ﷺ نه روايت دى رسول الله ﷺ د علي فاطمه حسن او حسين په حق كې وفرمايل [٢] چاچې د دوئ سره جنګ وكړى زه به هغه سره جنګ كوم [٣] او چاچې دوئ سره مصالحت وساتى زه به د هغه سره مصالحت ساتم (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① حَرْبٌ: أَيْ: مُحَارِبٌ: جنګ كونكې، ② سِلْمٌ: أَيْ مُسَالِمٌ وَمُصَالِحٌ: مصالحت كونكې، روغه او صلح كونكې.

---

[١] اخرجه احمد في المسند: ٤٤٢/٢

**تسهیلات:**

**قوله أَنَا حَرْبٌ لِمَنْ حَارَبَهُمْ**

**دحديث مذکوره څخه د روافضو استدلال:** چه دَهغوی سره جنګ کونکو سره څه جنګیدونکي یم. دَ حديث الباب نه روافض استدلال کوی او حضرت عائشه رضی الله عنها حضرت معاويه رضی الله عنه اودَدې دوارو ملګرو ته کافر وائی چه هغوی چونکه حضرت علی رضی الله عنه سره جنګ کړې وی او دَ حضرت علی رضی الله عنه سره جنګ لکه چه دَ رسول الله ﷺ سره جنګ دې او دَ رسول کريم ﷺ سره جنګ کفر دې.

**داستدلال څخه جوابونه:** ① دَحضرت علی رضی الله عنه اوحضرت عائشه رضی الله عنها صلح شوې وه دغه شان حضرت معاويه رضی الله عنه اوحضرت حسن رضی الله عنه صلح اوکړه. نوچه کله صلح اوشوه نوجنګ ختم لهذا دوی سره صلح دَ رسول کريم ﷺ سره صلح ده لهذا اعتراض باقی پاتې نه شو

② دَ لفظ حرب نه هرځائی کښې کفر مراد نه وی بلکه دَ حرب لفظ دَ غضب دَ اظهار دَپاره هم استعماليږی لکه چه قرآن کښې دَ سود خورو دَپاره ﴿ فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ﴾ دې او حديث کښې دی «من عادي وليا فقد أذنته بالحرب» دَ الله تعالی ولی سره دښمنی الله تعالی سره دښمنی ده.

③ دَدښمنۍ جنګ ته حرب وائی او دَ دغه حضراتو جنګ دَ دښمنۍ اوعناد په توګه نه وه بلکه دَ رائې اختلاف وو. هم دغه وجه ده چه حضرت علی رضی الله عنه په حق وو او معاويه رضی الله عنه په اجتهادی خطاء باندې وو. مجتهد مخطی هم دَ اجر مستحق وی.

**[۶۱۵۵] دعلي رضی الله عنه اوبي بي فاطمه رضی الله عنها سره د نبی عليه السلام محبت**

٦١٥٥-(١) [٣] ① وَعَنْ جُمَيْعِ بْنِ عُمَيْرٍ، قَالَ: ② «دَخَلْتُ مَعَ عَمَّتِي عَلَى عَائِشَةَ، ③ فَسَأَلْتُ: أَيُّ النَّاسِ كَانَ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ ④ قَالَتْ: فَاطِمَةُ. ⑤ فَقِيلَ: مِنَ الرِّجَالِ؟ ⑥ قَالَتْ: زَوْجُهَا إِنْ كَانَ مَا عَلِمْتُ صَوَّامًا قَوَّامًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.»

**ترجمه:** ① او حضرت جميع بن عمير تابعي وايي ② يوه ورځ زه خپلې عمه (دپلار خور سره) د ام المؤمنين بي بي عائشه رضی الله عنها په خدمت کې حاضر شوم ③ نو ما ځنې پوښتنه وکړه رسول الله ﷺ د ټولو نه زيات محبت چاسره لرلو؟ ④ بي بي عائشه رضی الله عنها جواب راکړو فاطمې سره ⑤ بيا مې ځنې پوښتنه وکړه او په سړو کې (د ټولو نه زيات محبت چاسره وو) ⑥ بي بي عائشه رضی الله عنها وفرمايل د فاطمې خاوند علي مرتضی سره، ځکه ماته پته ده چه علی رضی الله عنه ډير روژه دار او تهجد ګذار وو (ترمذي)

---

[١] اخرجه الترمذی في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل فاطمة رضي الله عنها (رقم-٣٨٧٤)

**حل اللغات:-** ① عَتَبِی: ترور (د پلار خور) ② صَوَّامًا: د صائم نه د مبالغې صیغه ده، یعنی ډیرې روژې نیونکې، ③قَوَّامًا: د قائم نه د مبالغې صیغه ده، ډیر قیام اللیل یعنی تهجد کونکې.

**تسهیلات:**

**قوله: قَالَتْ فَاطِمَةُ:**

**دعائشې رضی الله عنه منصف مزاجی:** دحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها دمنصف مزاجئی اندازه اولګوئی چه حضرت فاطمه رضی الله عنها اوحضرت علی رضی الله عنه نی د حضورپاك دپاره دټولو نه زیات محبوب اوګرځول حالانکه هغې داهم وینلی شو چه حضورپاك ته دټولو نه زیات محبوب زه یم او زما پلار وو اود اخبره په خپل ځانی باندې صحیح هم وه خکه چه په صحیح حدیث کښې هم داشان راغلی دی مګر حضرت عائشه رضی الله عنها د ډیر انصاف او وسعت قلبی مظاهره کولو سره اوددې اعزاز حقدار نی حضرت علی رضی الله عنه اوحضرت فاطمه رضی الله عنها اوګرځول.

**په حدیث کښې اشکال:** اوس سوال دادې چه دې حدیث اوهغه حدیث کښې تعارض دې په کوم کښې چه د سوال کونکی په جواب کښې حضورپاك اوفرمائیل ماته دټولو نه په ښځوکښې حضرت عائشه رضی الله عنها محبوب ده او په سړو کښې دهغې پلار محبوب دې

**داشکال جواب:** اصل خبره خود حضورپاك ده. حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها خو په خپله اندازه سره فرمائیلی دی. هغې له هم دغه شان وئیل پکاروو لهذا په دې کښې هیڅ تعارض نشته دې باقی د چا محبوب کیدل بل څیز دې اومقام اومرتبې والاکیدل بل څیز دې. ډیر زیات خلق محبوب وی مګر مرتبه د نورو اوچته وی.

**[۶۱۵۶] عباس ته تکلیف نبی علیه السلام ته تکلیف ورکول دی**

۶۱۵۶-()[۲۲]① وَعَنْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ بْنِ رَبِيعَةَ، «أَنَّ الْعَبَّاسَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - دَخَلَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مُغْضَبًا وَأَنَا عِنْدَهُ، ② فَقَالَ: "مَا أَغْضَبَكَ؟" ③ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا لَنَا وَلِقُرَيْشٍ إِذَا تَلَاقَوْا بَيْنَهُمْ تَلَاقَوْا بِوُجُوهٍ مُبْشَرَةٍ. ④ وَإِذَا لَقُونَا لَقُونَا بِغَيْرِ ذَلِكَ؟ ⑤ فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى احْمَرَّ وَجْهُهُ»[1]

**ترجمه:** ① حضرت عبد المطلب بن ربیعه بیان کوي یوه ورځ زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې ناست وم چې حضرت عباس د قهر نه ډك راغې( یعنی چا داسې حرکت کړی وو یاداسې خبره یې کړې وه چې حضرت عباس ته په هغه باندې سخت قهر راغې او د هغه قهر په حالت کې هغه حضور ﷺ ته راغې) حضور ﷺ ځنې پوښتنه وکړه څه خبره ده چې هغه ته دومره په قهر کړی یې③ حضرت عباس اوویل اې د الله رسوله! زمونږ (یعنی بنې

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب أبی الفضل عم النبی صلی الله علیه وسلم وهو العباس بن عبد المطلب رضی الله عنه (رقم-۳۷۵۸)

هاشم) او باقي قريشو په منځ کې څه بيگانگي ده چې هرکله هغوئ قريش خپلو کې يوځاي کيږي نو په روڼ تندي سره يوځاي کيږي[۴] او هرکله چې زمونږ سره يوځاي کيږي نو هغه شان نه يوځاي کيږي [۵] رسول الله ﷺ چې د حضرت عباس نه داخبره واوريده نو دقريشو په خرابه رويه باندې سخت په قهرشو ددې پورې چې د قهر د شدت نه د حضور ﷺ مخ مبارك سور شو

**حل اللغات:-** ① مُغْضَبًا: دغصې نه ډک، ② تَلاَقَوْا: د ملاقات او خپلو کښې د ملاويدو په معنى کښې دې ③ مُبْشَرَةٍ: دا د إِبْشَار نه دې، أي مُسْفِرَة: خوشحاله، روڼ تندى،

[۱] ثُمَّ قَالَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ [۲] لَا يَدْخُلُ قَلْبَ رَجُلٍ الْإِيمَانُ حَتَّى يُحِبَّكُمْ لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ" [۳] ثُمَّ قَالَ: "أَيُّهَا النَّاسُ! مَنْ آذَى عَمِّي فَقَدْ آذَانِي، [۴] فَإِنَّمَا عَمُّ الرَّجُلِ صِنْوُ أَبِيهِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَفِي "الْمَصَابِيحِ" عَنِ الْمُطَّلِبِ.

**ترجمه:** [۱] بيا (حضرت عباس ﷺ ته مخاطب کيدو سره يې) وفرمايل قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کې زما ځان دی [۲] د يوسړي په زړه کې ايمان نه داخليږي چې هغه تاسو اهل بيت د الله او د الله د رسول محبت او خوشنودي حاصلولو د پاره دوست نه ساتي [۳] بيا يې وفرمايل خلقو! پوهه شئ کوم سړی چې خصوصاً زما تره ته تکليف ورکی هغه گويا ماته تکليف راکی [۴] ځکه چې تره د پلار په مثل دی ترمذي او مصابيح کې د عبد المطلب بن ربيعه په ځاي مطلب بن ربيعه دی هرکله چې صحيح عبد المطلب بن ربيعه دی چې ترمذي نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ④ آذَى: تکليف ئې اورسولو، ⑤ صِنْوُ: أَيْ مِثْلُهُ: په مثل، په شان (د يوې جرړې نه چه د کجورې دوه يا درې تيغې راوخي نو دې کښې هريو ته د بل صنو يعنى مثل وائي لهذا په دې وجه پلار او تره د يوبل مثل دی)

**تسهيلات:**

**قوله:** مُغْضَبًا وَأَنَا عِنْدَهُ،

**دعباس رضى الله عنه د غصې وجه:** دَدې مطلب دادې چه چا حضرت عباس ﷺ ته په څه کار يا څه خبره باندې غصه ورستې وه. هغه هم دَ دغه غصې په حالت کښې دَ نبى کريم ﷺ په خدمت کښې حاضرشو دامطلب ئې هيڅ کله نه دې چه هغه دَ رسول کريم ﷺ غصه وو او مجلس ته راغلو

**قوله:** مَالَنَا وَلِقُرَيْشٍ

**د مذکوره جملې مطلب:** چه قريش په هاشميانو اوغيرهاشميانوکښې فرق کوی او مونږ بنو هاشم لره خپل غير گڼرى او مونږ سره چه کله ملاويږی مخ ئې وران کړې وی نو ملاويږی.

**قوله**: لَا یَدْخُلُ قَلْبَ رَجُلٍ الْإِیمَانُ:

**دایمان په مصداق کښې دوه اقوال**: ① دلته دَ ایمان نه مراد مطلق ایمان مراد دې او په دې صورت کښې به ارشاد مبارك په ډیر سخت وعید باندې محمول کولې شی

② دَ دې نه کامل ایمان مراد دې دَ باقی حدیث تشریح واضح ده

**قوله**: مَنْ آذَى عَمِّي فَقَدْ آذَانِي، چا چه زما تره تنګ کړو او ده سره ئې دشمنی اوکړه نو دا داسې ده چې هغه زه تنګ کړم او ما سره ئې دشمنی اوکړه.

**اشکال**: یو ځل دَ حضرت عباس ﷺ او دَ حضرت علی ﷺ دَحضرت عمر فاروق ﷺ په زمانه کښې په یو باغ باندې جګړه راغله نو حضرت علی ﷺ دَ حدیث الباب په زد کښې راځی ځکه چه دَ حضرت علی ﷺ دَ حضرت عباس ﷺ سره اختلاف کړې وو

**داشکال جواب**: دَ دښمنئ یا دَ جنګ په توګه نه وو لهذا په عداوت سره تنګول بیل څیز دې او اختلاف بیل څیز دې.

**قوله** فَإِنَّمَا عَمُّ الرَّجُلِ صِنْوُ أَبِيهِ،

**د صنو مفهوم**: "صنو" په اصل کښې هغه جرړې ته وائی دکومې چه ډیر بناخونه وی چونکه پلار او تره هم دَ یو نیکه اولاد وی په دې وجه تره ته دَ پلار صنو اوئیلې شو. مطلب دادې چه دَ تره ادب اواحترام تکلیف او آرام احساس دَ پلار په شان کوه.

**[۶۱۵۷] د حضرت عباس فضیلت**

| ۶۱۵۷ - () [۲۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [۲] «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " الْعَبَّاسُ مِنِّي وَأَنَا مِنْهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1] |
|---|

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابن عباس ﷺ وایي [۲] چې رسول کریم ﷺ وفرمایل عباس زما نه دی او زه د هغه نه یم. (ترمذي)

**تسهیلات**:

**قوله**: الْعَبَّاسُ مِنِّي وَأَنَا مِنْهُ،

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې درې اقوال**: ① زما دَ اقاربو څخه دې

② دَ اهل بیت څخه دې

③ زما دَ متصلین څخه دې

ددې باره کښې علماء لیکی چه دَ فضل، شرف او نبوت په اعتبارسره دَ حضورپاك ذات مبارك اصل دې. لیکن دَ نسب او تره کیدو په اعتبار سره حضرت عباس ﷺ اصل دې. دَ حضورپاك دا ارشاد دکمالِ محبت او تعلق دَ یووالی او دَ اخلاص نه کنایه ده لکه څنګه چه

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۷۵۹)

حضورپاك دَحضرت علی ﷺ باره كښې فرمائيلي وو چه (اې علی) زه تا نه يم او ته زما نه ئې.

**۱ عباس مختصر تعارف:** حضرت عباس ﷺ ابن عبدالمطلب دَ حضورپاك تره دې دَ هغه پيدائش دَ فيل دَ واقعې نه يو كال وړاندې شوې دې دَهغه مور قبيله نمر بن قاسط سره تعلق لرلو. هم هغې د تولو نه مخكښې په كعبه باندې دَ ريښم اودَ قسم قسم قيمتى كپړو غلاف اچولې وو.

مشهوره ده چه په وړوكوالى كښې چه كله دې ورك شوې وو نو مورنى دا منخته كړې وه كه زما بچې ملاؤ شو نو زه به په بيت الله باندې غلاف خوروم. حضرت عباس ﷺ دَ حضورپاك دَ تره كيدو باوجود دَ حضورپاك غيرمعمولى ادب كولو.

**عباس رضی الله عنه او د نبی علیه السلام ادب کول:** نقل دى چه دَ هغه نه چا سوال اوكړو چه ته مشر ئى كه رسول الله ﷺ. نوهغه جواب وركړو چه "هوأكبروأناأسن" چه مشر خو هم هغه دې ليكن عمر زما زيات دې.

رسول الله ﷺ دَ غزوه بدر په موقع باندې فرمائيلې وو خبردار عباس څوك قتل نه كړى هغه په زور په كافرانوكښې راوستلې شوې دې. دَهغوى وفات ۳۲هجرى دې دَ ۱۲رجب په ورځ شوې دې. هغه وخت دَ هغوى عمر ۸۸ كاله وواو په جنت البقيع كښې خښ شوې دې دَهغوى نور هم ذاتى دينى او دنياوى كمالات دى.

**[٦١٥٨] ابن عباس ﷺ اودهغوى د اولاد دپاره**

٦١٥٨-(۱) [۳] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: [۲] «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِلْعَبَّاسِ: "[۳] إِذَا كَانَ غَدَاةَ الِاثْنَيْنِ فَأْتِنِي أَنْتَ وَوَلَدُكَ حَتَّى أَدْعُوَ لَهُمْ بِدَعْوَةٍ يَنْفَعُكَ اللَّهُ بِهَا وَوَلَدَكَ" [۴] فَغَدَا وَغَدَوْنَا مَعَهُ، [۵] وَأَلْبَسَنَا كِسَاءً، [۶] ثُمَّ قَالَ: "اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِلْعَبَّاسِ وَوَلَدِهِ مَغْفِرَةً ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً لَا تُغَادِرُ ذَنْبًا، اللَّهُمَّ احْفَظْهُ فِي وَلَدِهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس وايي [۲] يوه ورځ رسول الله ﷺ خما پلار حضرت عباس ته وفرمايل [۳] چې د پير دوشنبې په ورځ ته خپل اولاد سره ماته راسه چې زه ستاسو د پاره دعا وكرم چې د هغه په سبب ﷺ تاته او ستا اولاد ته نفع ورسوي [۴] نو دوشنبې ورځ چې راغله د سهار په وخت كې حضرت عباس او هغه سره مونږ تول د هغه اولاد د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر شو [۵] حضور ﷺ خپل څادر مبارك مونږ تولو باندې واچوى [۶] او بيا دعايې وفرمايله خداونده! عباس او د هغه اولاد وبخښې او د ظاهر او باطن داسې بخشش ورته وركړې چې هيڅ گناه باقي باندې نه پريږدي الهي عباس د هغه اولاد كې قائم او محفوظ ولري (ترمذي)

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۷۶۲)

**حل اللغات:-** ① غَدَاةَ الِاثْنَيْنِ: د دوشنبې یعنی د پیر ورځ سحر، ② كِسَاءَهُ: خپل څادر، ③ مَغْفِرَةً ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً: ښکاره او پټ ګناهونه ورته معاف کړې ④ لَا تُغَادِرُ: أي: لَا تَتْرُك: چه پرې نږدی دغه بخشش (هیڅ یوه ګناه)

[۱] وَزَادَ رَزِينٌ: "وَاجْعَلِ الْخِلَافَةَ بَاقِيَةً فِي عَقِبِهِ" [۲] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او رزین د دې دعاء په آخر کې دا الفاظ هم نقل کړی دی چې امارت او بادشاهي هم د هغه په اولاد کې باقي وساتې [۲] ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی

**حل اللغات:-** ⑤ عَقِبِهِ: دهغه نه وروسته یعنی دهغه په اولاد کښې

**تسهیلات:**

**قوله: "وَاجْعَلِ الْخِلَافَةَ بَاقِيَةً فِي عَقِبِهِ**

**د بنوعباس د خلافت دعا:** په حدیث الباب کښې دی چه حضورپاك دَ حضرت عباس ﷺ اودَ هغه دَ اولاد باره کښې دعا فرمائیلې وه چه عباس اودَ هغه اولاد اوبخښې او په یو روایت کښې دَ دعاپه آخرکښې دا الفاظ هم ارشاد فرمائیلی چه امارت او بادشاهی دَهغه په اولاد کښې باقی اوساتې یعنی دَ اوږدې مودې پورې اولاد عباسی ته دَ حکمرانئ تخت او مشری او دولت ورکړې.

نو دادعا قبوله شوه اودَ څو صدو پورې دَ خلافت اوحکمرانئ اعزاز بنوعباس کښې پاتې وو او په اصل کښې دا دَ امت دَپاره یو لارخودنه وه چه دَ خلافت او امارت استحقاق اولاد عباس ته حاصل دې او په دې سره حضرت عباس ﷺ ته تسلی اودَ هغوی دَمقام او مرتبې بیان هم اوشو

**[۶۱۵۹] ابن عباس ﷺ او جبریل علیه السلام لیدل**

۶۱۵۹-([1]) [د۵] [۱] «وَعَنْهُ أَنَّهُ رَأَى جِبْرِيلَ مَرَّتَيْنِ، [۲] وَدَعَا لَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَرَّتَيْنِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دی هغه دوه خله حضرت جبرائیل ﷺ اولیدلو [۲] او رسول الله ﷺ د هغه په حق کې دوه خله دعا وفرمایله (ترمذي)

**تسهیلات:**

**قوله: أَنَّهُ رَأَى جِبْرِيلَ مَرَّتَيْنِ،**

**دجبریل علیه السلام ابن عباس د لیدلو یوه موقعه:** ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه زه اوزما پلار رسول الله ﷺ له راغلو کله چه مونږ دَ حضورپاك نه واپس راغلو نو ما خپل پلار

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب عبد الله بن عباس رضي الله عنهما (رقم-۳۸۲۲)

ته اوونیل چه ما حضورپاك سره یو داسې سړی اولیدلو چه دَهغه په شان دَ ښکلې مخ والا مې څوك نه دې لیدلې نو ما هغه ته اوونیل چه دَ هغه مخ ښائسته وو که دَ حضورپاك مخ نو هغه اوونیل چه دَ هغه مخ نو مونږ حضورپاك له واپس راغلو بیا زما پلار اوونیل اې دَ الله رسول هغه سړې چه تاسو سره وو هغه چرته دې د عبدالله ګمان دې چه دَهغه مخ ستاسو دَ مخ نه زیات پرقیدونکې وو. حضورپاك اوفرمائیل چه هغه خو جبرائیل علیه السلام وو کوم وخت چه تاسو دواړه ماله راغلی وئی نو حضرت جبرائیل علیه السلام مانه تپوس اوکړو اې محمد دا څوك دی ما وئیل دا زما دَ تره څوئ عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دې جبرائیل اوفرمائیل چه دا دَ خیر محل دې. ما اوونیل اې روح الله ته دَ ده دَپاره دعا اوکړه نوحضرت جبرائیل علیه السلام دعا اوکړه "اللهم بارك علیه اللهم اجعل منه کثیراً طیباً" (مرقاة: ۱۱/۳۷۹)

**دجبریل علیه السلام ابن عباس د لیدلو دویمه موقعه:** په دویم خل کوم چه علامه سیوطی رحمه الله په جمع الجوامع کښې نقل کړی دی چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نقل کړی دی چه یوه ورځ ما ډیرې سپینې کپړې اغوستلې وې حضورپاك په خواکې تیر شوم نو ما اولیدل چه حضورپاك دحیه کلبی رضی الله عنه سره خبرې کولې خو په حقیقت کښې هغه دحیه کلبی نه وو بلکه دَهغوی په صورت کښې حضرت جبرائیل علیه السلام وو. لیکن هغه وخت ماته معلومه نه وه زه دَ هغه خائی نه تیر شوم نو حضرت جبرائیل علیه السلام حضورپاك ته اوفرمائیل یا رسول الله که چرې دې ابن عباس مونږ ته سلام کړې وې نو ما به دَ سلام جواب ورکړې وې. ابن عباس رضی الله عنهما خو په ډیرو سپینو کپړو کښې دې مګر دې نه پس به دَ ده اولاد په تورو کپړو اچولو باندې مجبوره کیږی. کله چه حضرت جبرائیل آسمان ته لاړو نو حضورپاك دَهغه خائی نه واپس راغلو او ماته ئی اوفرمائیل چه په مونږ باندې تیریدو وخت کښې تامونږ ته سلام ولې نه وو کړې. ما عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ تاسو هغه وخت دحیه کلبی سره په خبرو اترو او په سرګوشئی کښې مصروف وئی ما ښه اونه ګڼړل چه تاسو زما دَ سلام جواب راکړئی اودغه شان زه ستاسو په خبروکښې رکاوټ جوړ شم. نو بیا حضورپاك ماته اوونیل چه هغه دحیه کلبی نه وو بلکه جبرائیل علیه السلام وو ابن عباس رضی الله عنهما دا روایت نقل کړې دې او ترمذی وئیلی دی چه دا واقعه دوه خل پیښه شوې

**اشکال:** حضورپاك له به دَ جبرائیل علیه السلام راتګ دَ دحیه کلبی په شکل کښې کیدلو نو جبرائیل علیه السلام خو به نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم هم لیدلو نودَ ابن عباس رضی الله عنهما ذکر ئی په خاص توګه ولې اوکړو؟

**داشکال جواب:** دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما لیدل په عالم ملکوت کښې وو او دَ نورو صحابه کرامو لیدل په عالم ناسوت کښې وو. په یو روایت کښې دی چه حضورپاك حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ته اوفرمائیل چه دَ نبی او رسول نه علاوه چا هم جبرائیل لیدلې دې دَ هغه نظر

تلې دې اې ابن عباس ستا نظر به هم لاړشي ليکن دَمرګ په وخت به ستا نظر واپس راځي چنانچه ابن عباس رضي الله عنهما په بوډاوالي کښې نابينا شوې وو او په رواياتو کښې نقل دي چه کوم وخت دَهغوی وفات اوشو او هغوی ته کفن واچولې شو نو ناڅاپې يوه سپينه مرغئې رابښکاره شوه اودَ هغه نعش خواله راغله او په کفن کښې داخله شوه خلقو ښه اولټوله او اخواديخوا ئې اوکتل ليکن دَ هغه سپينې مرغئې پته اونه لګيدله آخر دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما آزاد کړې شوی غلام عکرمه رحمه الله اووئيل تاسو خلق عجيبه يئې هغه واقعتاً مرغئې نه وه بلکه دا دَ هغوی بينائي وه دکوم باره کښې چه حضورپاك فرمائيلي وو چه دَمرګ په ورځ به واپس راځي.

**[٦١٦٠] ابن عباس ﷺ ته د حکمت د ورکړې دُعا**

٦١٦٠-( )[٢٦] [١] «وَعَنْهُ، [٢] أَنَّهُ قَالَ: دَعَا لِي رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ يُؤْتِيَنِي اللَّهُ الْحِكْمَةَ مَرَّتَيْنِ» .رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [١] حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دی [٢] هغه بيان وکړو رسول الله ﷺ زما په باره دوه ځله دا دعا وکړه چه ﷺ ماته حکمت راکړي. (ترمذي)

**حل اللغات**:- ① الْحِكْمَةَ: أَيْ: إِتْقَانَ الْعِلْمِ وَالْعَمَلِ: پوخ او زور علم اوعمل يا د شريعت د اصول او فروعو علم ته حکمت وائی (پخه خبره، پوهه، عقلمندی، حاضرجوابی ، په حق او باطل کښې فرق کول دې ټولو باندې د حکمت اطلاق کيږی) ② مَرَّتَيْنِ: دوه ځله (يعنی دوه ځله ئې راته دعا اوفرمائيله يوځل په لفظ دحکمت او دويم ځل په عبارت د فقه سره، خو دا دواړه دعاګانې په جدا جدا مجلسونو کښې وې).

**تسهيلات**: **قوله**: أَنْ يُؤْتِيَنِي اللَّهُ الْحِكْمَةَ مَرَّتَيْنِ،

**دحکمت څخه مراد**: حکمت نه مراد دَ قرآن اوحديث نه دَ مسائل شرعيه اوفرعيه استنباط قوت ورکول يعنې دَ قرآن مجيد علم اودَ حديث شريف باريکو ته دَ ذهن رسيدل چنانچه دَ حضورپاك دعا دَ حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په حق کښې بعينه قبوله شوه او رئيس المفسرين او صاحب علم جوړ شو.

**[٦١٦١] جعفر ﷺ ته دابو المساکين لقب ورکول**

٦١٦١-(٢)[٢٧] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] «كَانَ جَعْفَرٌ يُحِبُّ الْمَسَاكِينَ وَيَجْلِسُ إِلَيْهِمْ، وَيُحَدِّثُهُمْ وَيُحَدِّثُونَهُ، [٣] وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُكَنِّيهِ بِأَبِي الْمَسَاكِينِ.» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب مناقب عبد الله بن عباس رضی الله عنهما (رقم-٣٨٢٣)

[2] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب مناقب جعفر بن أبی طالب أخی علی رضی الله عنه (رقم-٣٧٦٣)

**ترجمه:**[۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي[۲] چي جعفر بن ابي طالب به مساکینو سره ډیر زیات محبت لرلو د هغوئ سره به کینا ستی پاڅیدی او د هغوئ سره به یې د دلجوئي او غم خواري خبري کولي او مساکین به هغه ته د خپل غم درد خبري کولي[۳] او رسول الله ﷺ په دي بناء د هغه کنیت ابوالمساکین ایښی وو (ترمذي)

**حل اللغات:**- ①یُکَنِّیهِ: اَب یا ابن ته نسبت کولو سره چه نوم کیخودې شی هغې ته کنیت وائی لکه اب المساکین، ابو تراب وغیره

**تسهیلات:**

**قوله:** یُکَنِّیهِ بِأَبِی الْمَسَاکِینِ

**د ابوالمساکین لقب وجه تسمیه:** په حدیث الباب کښې دی چه سره دَدې چه ټول صحابه کرامو او اهل بیت ﷺ به دَ مسکینانو سره محبت کولو اوهغوی سره به ئی تعلق لرلو مګر حضرت جعفر ﷺ ډیر زیات مسکینان خوښونکې وو اوهغوی سره به ئی زیاته ناسته پاسته کوله. په دې مناسبت رسول کریم ﷺ دَهغوی کنیت ابوالمساکین کیخودو لکه چه حضرت علی ﷺ کنیت ئی ابو تراب کیخودې وو.

**[٦١٦٢] د حضرت جعفر ﷺ فضیلت**

٣٣ - ()[٢٨][۱]وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲]«رَأَيْتُ جَعْفَرًا يَطِيرُ فِي الْجَنَّةِ مَعَ الْمَلَائِكَةِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:**[۱] حضرت ابوهريره ﷺ وايي چي رسول کریم ﷺ وفرمايل[۲] ما جعفر په جنت کې فرشتو سره آلوتونکي ليدلی دی دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې داحدیث غریب دی

**تسهیلات:**

**قوله:** يَطِيرُ فِي الْجَنَّةِ مَعَ الْمَلَائِكَةِ

**په جنګ موته کښې دجعفر شهادت:** حضرت جعفر ﷺ په جنګ موته کښې دَ اسلامی لښکر کمانډر وو اودَ اسلام جنډا دَهغوی په لاس کښې وه په دې جنګ کښې هغوی شهید شوې وو

په اصل کښې په دې جنګ کښې دَ اسلامی لښکر کمانډر حضرت زید بن حارثه ﷺ وو لیکن دَ جنګ په دوران کښې

دَهغه شهید کیدو نه پس اسلامی لښکر کمانډری اودَ اسلام جنډا دَ حضرت جعفر ﷺ لاس

---

[۱] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب جعفر بن أبي طالب أخي علي رضي الله عنه (رقم-٣٧٦٣)

ته راغله نو حضرت جعفر رضي الله عنه په کمال بهادرئی سره دَ الله په لار کښې اوجنګيدو. اول ئی يو لاس پرې کړې شو بيائی دويم لاس هم لاړو اوبيا خپې هم قربان شوې. تردې چه شهيد شو هلته خو په ميدان جنګ کښې حضرت جعفر رضي الله عنه شهيد شو بل طرف ته په مدينه منوره کښې حضورپاك ته په حالت دَ مکاشفه کښې يا په خوب کښې اوخودلې شو چه دَ حضرت جعفر رضي الله عنه دوه وزرې دی چه په وينوکښې لړپړ دی او هغه دَ خپلو وزرو په ذريعه باندې دَ فرښتو سره په جنت کښې الوزی ګرځی

**[٦١٦٣]د جنت د ځوانانو سرداران**

٦١٦٣-() [٢٩] ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ②قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوسعيد وايي② چې رسول کريم ﷺ وفرمايل حسن او حسين دواړه د جنت د ځوانانو سرداران دي. ترمذی.

**تسهيلات:**

**قوله:** سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ:

**د جنت د سردارۍ په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① عام خيال دې طرف ته ځی چه کوم خلق په ځوانئی کښې شهيدان شوی دی حضرت حسن رضي الله عنه اوحضرت حسين رضي الله عنه به دَهغوی سرداران وی علامه طيبی رحمه الله هم دغه خبره ليکلې ده.

② بعضې نور علماء فرمائی چه دَ حديث مطلب دادې چه په جنت کښې به ټول خلق ځوانان وی دَدغه ټولو جنتيانو سرداران به حسن رضي الله عنه اوحسين رضي الله عنه وی. داخبره ډيره ښه ده

**په دويم قول اشکال:** مګرپه دې باندې دا اعتراض دې چه حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه اوحضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم دَ ډير عمر دَخلقو سرداران ګرځولی شوی دی نو اوس تضادپيدا شو چه کوم يو به سردار وی.

**د اعتراض جواب:** دَدې جواب دادې چه دا اعزازات دی ډيرو خلقو ته به اعزاز ورکولې شی لهذا په سوونوخلق هم سرداران کيدې شی هغوی هم سرداران دی هيڅ منافات نشته دې يعنی د بعضې جنياتو سرداران به حسنين وی او د بعضو به شيخين وغيره وی.

¹ اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي محمد الحسن بن علي بن أبي طالب والحسين بن علي بن أبي طالب رضي الله عنهما (رقم-٣٧٦٨)

## [٦١٦٤] حسنين د نبی علیه السلام د نياوی ګلونه

۶۱۶۴-(۱) [۳۰] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- ② أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "«إِنَّ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ هُمَا رَيْحَانَيَّ مِنَ الدُّنْيَا»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ ③ وَقَدْ سَبَقَ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر ﷺ نه روايت دی ② چې رسول کريم ﷺ وفرمايل حقيقت دادی چې حسن او حسين خما ددنيا دوه ګلان دي (ترمذي) ③ دا روايت اول فصل کې تير شوي دي.

**حل اللغات:-** ① رَيْحَانَيَّ: د ريحان تثنيه ده، يو قسم خوشبودار ګل دې، کشمالو (خوی، راحت، رحمت، روزی، آرام او سهولت ته او هر خوشبودار ګل ته هم ريحان وائی)

**تسهيلات:**

**حسنينو ته د ګلونو ويلو وجه:** په حديث الباب کښې دی لکه چه په باغ کښې د باغ مالک ته ټول ګلونه ګران وی چونکه اولاد ته هم ګلونه وائی هم دغه شان دنيا اود دنيا په ټولو څيزونو کښې رسول الله ﷺ ته حضرات حسنين کريمين ﷺ ډير ګران او خواږه وو.

## [٦١٦٥] حسنين د نبی علیه السلام په غيږ کښې

۶۱۶۵-(۲) [۳۱] ① وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: ② «طَرَقْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ذَاتَ لَيْلَةٍ فِي بَعْضِ الْحَاجَةِ ③ فَخَرَجَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ مُشْتَمِلٌ عَلَى شَيْءٍ لَا أَدْرِي مَا هُوَ ④ فَلَمَّا فَرَغْتُ مِنْ حَاجَتِي قُلْتُ: ⑤ مَا هَذَا الَّذِي أَنْتَ مُشْتَمِلٌ عَلَيْهِ؟ ⑥ فَكَشَفَهُ ⑦ فَإِذَا الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ عَلَى وَرِكَيْهِ. ⑧ فَقَالَ: "هَذَانِ ابْنَايَ وَابْنَا ابْنَتِي ⑨ اللّٰهُمَّ إِنِّي أُحِبُّهُمَا فَأَحِبَّهُمَا وَأَحِبَّ مَنْ يُحِبُّهُمَا»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت اسامه بن زيد ﷺ وايي ② زه يو ځل د شپې خپل څه ضرورت د پاره د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم ③ نو حضور ﷺ د خپل کور دننه نه داسې حال کې بهر تشريف راوړی چې څه شی يې خان نه چاپيره کړی وو او زه نه پوهيدم چې هغه څه شی وو ④ بيا چې ما خپل ضرورت حضور ﷺ ته عرض کړو پوښتنه مې وکړه ⑤ چې دا څه شی دی چې حضور ﷺ خان نه چاپيره کړی دی ⑥ حضور ﷺ هغه شی خلاصولو ⑦ څه ګورم چې هغه حسن او حسين دی چې د حضور ﷺ په دواړو ورنو مبارکو وه (يعنی حضور ﷺ هغوئ دواړه غيږ کې اخستو سره څادر کې پټ کړی وو) ⑧ بيا حضور ﷺ وفرمايل دا دواړه (حکماً) خما ځامن دي او (حقيقتاً) خما د لور ځامن دی ⑨ خداونده! زه دا دواړه محبوب لرم ته هم دوئ محبوب لري. اوخوک چې ددي دواړوسره محبت کوي هغه سره محبت وکه (ترمذي)

[1] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي محمد الحسن بن علی بن أبي طالب والحسين بن علی بن أبي طالب رضی الله عنهما (رقم-۳۷۷۰)

[2] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي محمد الحسن بن علی بن أبي طالب والحسين بن علی بن أبي طالب رضی الله عنهما (رقم-۳۷۶۹)

**حل اللغات:-** ① طَرَقْتُ: دا د طَرْقٌ نه دي، إتْيَانٌ بِاللَّيْلِ یعنی دشپې راتلو ته وائی. أی أَتَیْتُهُ: یعنی زه د شپې نبی علیه السلام ته راغلم ② مُشْتَمِلٌ: أَيْ: مُحْتَجِبٌ: خان نه ئې چاپیره کړې وو، خان ئې پکښې پټ کړې وو. ③ فَكَشَفَهُ: أَيْ: أَزَالَ مَا عَلَيْهِ: یعنی حجاب او پرده ئې ترې لرې کړه. ④ وَرِكَيْهِ: د ورک تثنیه ده، پنډئ، ورون.

**تسهیلات: قوله ابْنَایَ**

**د حدیث څخه د دوو مسئلو معلومتیا:** ① یعنی دا حکمًا زما خامن دی او په حقیقت کښې زما دَ لور خامن دی زما دوی سره دَ خامنو په شان محبت دې. دا حدیث دَدې خبرې دلیل جوړیدې شی چه دَنسب شرف دَ مور دَ طرف نه هم ثابتیږی ځکه چه دَ آل لفظ دَ خوئی او دَ لور دواړو اولاد دَپاره استعمالیږی.

② دارنګ دَ حدیث الباب نه مقصود بالخصوص حضرت اسامه رضی الله عنه ته او بالعموم پوره امت ته دا رغبت ورکول دی چه زما حسن او حسین رضی الله عنهما سره محبت کوئی اودَهغوی محبوبیت دَ الله تعالی دَ محبوبیت ذریعه ده.

**[٦١٦٦] شهادت حسین او دأم سلمه خوب**

۶۱۶۶ -() [۳۲] [۱] وَعَنْ سَلْمٰى، قَالَتْ: [۲] دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - وَهِيَ تَبْكِي [۳] فَقُلْتُ: مَا يُبْكِيكِ؟ [۴] قَالَتْ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَعْنِي فِي الْمَنَامِ - وَعَلَى رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ التُّرَابُ فَقُلْتُ: مَالَكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ [۵] قَالَ: "شَهِدْتُ قَتْلَ الْحُسَيْنِ آنِفًا" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] بی بی سلمٰی (چې د ابورافع زوجه ښځه ده) بیان کوي [۲] یوه ورځ زه د ام المؤمنین بي بي سلمه په خدمت کې حاضره شوم څه ګورم چې هغه ژاړي [۳] ما ځني پوښتنه وکړه ولې ژاړی [۴] هغه جواب راکړو ما رسول الله ﷺ په خوب کې اولیدلو چې د هغوئ سر مبارك او ږیره ګرد آلود (د خاورو) وه ما پوښتنه وکړه یارسول الله! تاسو ګرد الود ولې یاست؟ [۵] وي فرمایل زه اوس د حسین قتل ګاه کې موجود وم او هلته مي لیدل چې څما د جګر ټکره (یعنی لمسی ظالمانو څومره بې دردي سره) شهید کی دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی.

**قوله: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَعْنِي فِي الْمَنَامِ -**

**دام سلمه د وفات په کال کښې دوه اقوال:** د ام سلمه رضی الله عنها وفات په کال ۵۹ هجری کښې شوي وو. اوبعضي عالمانو د دوی د وفات کال ۶۳ هجری لیکلي دي

خوزیات صحیح قول هم اولني دې ځکه چې د شهادت حسین رضی الله عنه د شهادت کال ۶۱ هجری ده. نوکه د ام سلمه رضی الله عنها د وفات کال باره کښې که دویم قول صحیح اوګرخولی

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب أبی محمد الحسن بن علی بن أبی طالب والحسین بن علی بن أبی طالب رضی الله عنهما (رقم-۳۷۷۱)

شي نو په دې حديث به څه اشكال رانشي
خو که اول قول صحيح اوګرځولې شي نو بيا اشكال راځي خو چې په دې کښې تاويل اوکړې شي نو دا اشكال هم ختميږي هغه داسې چې دحضرت حسين رضى الله عنه د شهادت واقع کيدو څخه وړاندې حضرت ام سلمه رضى الله عنها ته په خوب کښې دا واقعه خودلې شوې وه نو په دې صورت کښې به د ((انفا)) دا توجيه کولې شي چې د دې لفظ استعمال د صورت حال د تحقيق دپاره شوې دې، کوم چې د حسين رضى الله عنه د شهادت په صورت کښې نبى عليه السلام ته د هغه وخت په خوب کښې خودلې شوې وو

## [٦١٦٧] حسنينو سره د نبى عليه السلام د ټولو څخه زيات محبت

٦١٦٧-(١) [٢٣] ① وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَيُّ أَهْلِ بَيْتِكَ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ ③ قَالَ: "الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ" ④ وَكَانَ يَقُولُ لِفَاطِمَةَ: "ادْعِي لِي ابْنَيَّ" ⑤ فَيَشُمُّهُمَا ⑥ وَيَضُمُّهُمَا إِلَيْهِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① حضرت انس ﷺ بيان کوي ② رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه اهل بيتو کې څوک تاسو ته زيات عزيز او محبوب دى ③ حضور ﷺ وفرمايل حسن او حسين ④ او انس دابيان هم وکړ حضور ﷺ به څه وخت چې حسن او حسين په کور کې ونه ليدل نو بي بي فاطمې ته به يې فرمايل چې ځما دواړه ځامن راو غواړه (بيا چې هغوئ حسن او حسين به راغلل) ⑤ نو حضور ﷺ به د هغه دواړو جسمونه بويول (ځکه چې هغوئ د حضور ﷺ ګلونه وو) ⑥ او هغوئ به يې خپلې غاړې سره لګول ترمذي دا روايت نقل کړى دى او ويلې يې دي چې دا حديث غريب دى

**حل اللغات:-** ① ادعي: أي: اطلبي: راوغواړه، راوبله، ② فَيَشُمُّهُمَا: شمّ الأنف يعنى په پوزه ئې بوئ کړل (ځکه چه حسن اوحسين دواړو ته ريحان فرمائيلې شوى دى) ③ يَضُمُّهُمَا: خپلې سينې سره به ئې لګول

**نوټ:** په حديث کښې د ګرانو لغاتو حل شوې دې باقى مضمون آسان دې

## [٦١٦٨] د خطبې په دوران کښې د حسنينو راوچتول

٦١٦٨-(٢) [٢٤] ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَخْطُبُنَا ③ إِذْ جَاءَ الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ عَلَيْهِمَا قَمِيصَانِ أَحْمَرَانِ يَمْشِيَانِ وَيَعْثُرَانِ ④ فَنَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مِنَ الْمِنْبَرِ فَحَمَلَهُمَا وَوَضَعَهُمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ⑤ ثُمَّ قَالَ: "صَدَقَ اللَّهُ (إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ) ⑥ نَظَرْتُ إِلَى هَذَيْنِ الصَّبِيَّيْنِ يَمْشِيَانِ وَيَعْثُرَانِ فَلَمْ أَصْبِرْ حَتَّى قَطَعْتُ حَدِيثِي وَرَفَعْتُهُمَا"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

---

[1] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي محمد الحسن بن على بن أبي طالب والحسين بن على بن أبي طالب رضى الله عنهما (رقم-٣٧٧٢)

[2] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الصلاة/باب الإمام يقطع الخطبة للأمر يحدث (رقم-١١٠٩) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٧٧٤)

**ترجمه:**[۱] او حضرت بریده بیان کوي[۲] یوه ورځ رسول الله ﷺ زمونږ مخکې خطبه ارشاد فرمایله[۳] چې اچانك حسن او حسین راغلل دواړو سره قمیصو نه اغوستی وو،او د کم سنې او ناطاقتې په سبب ،داسې راتلل چې په زمکه به غورخیدل او دریدل [۴] حضور ﷺ د هغوئ په لیدو سره د منبر نه راکوزشو او هغوئ دواړه خپل په غیږ کې آخستو سره یې کینول[۵] بیایې وفرمایل ﷺ حق فرمایلی دی چې: انما اموالکم واولادکم فتنة[۶] ما دا دواړه بچې ولیدل چې تلی نشی او غورخیدو پاخیدو سره راخې نو د هغوئ محبت کې زما نه صبر ونه شو او ماخپله خبره (دینې وعظ ونصیحت او د بیان احکام ومسائل سلسله) منقطع کړله او منبر نه راخکته کیدو سره مې دوئ په غیږ کې واخستل (ترمذي ابوداود نسائي) **حل اللغات:-** ①یَعْثُرَانِ: پرمخې پریوتو ته عثروانی دلته هم دغه مراد دې یعنی کله په روانه راخی کله پریوځی لکه چه ماشومان وی. ②قَطَعْتُ حَدِیثِی: یعنی خبره مې نیمګړې پریخوده

**تسهیلات:**

**قوله: فِتْنَةٌ:**

**په اولاد باندې د فتنې اطلاق:** دَ فتنه اطلاق په مختلف معانوکښې کیږی دَمحبت په توګه په اولاد باندې هم دَدې اطلاق کیږی لکه څنګه چه دلته شوی دی

**[۶۱۶۹] حسین سره د محبت کونکو دپاره دعا**

| ۶۱۶۹ - ()[۵۰][۱]وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲]«حُسَيْنٌ مِنِّي وَأَنَا مِنْ حُسَيْنٍ،[۳]أَحَبَّ اللَّهُ مَنْ أَحَبَّ حُسَيْنًا،[۴]حُسَيْنٌ سِبْطٌ مِنَ الْأَسْبَاطِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
|---|

**ترجمه:**[۱] حضرت یعلي ابن مره وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲]حسین زما نه دی او زه د حسین نه یم [۳] دي هغه چا سره محبت وساتی چاچې حسین سره محبت وساتی [۴]حسین دا سباطو نه یو سبط دی . (ترمذي) [اخرجه الترمذی]

**تسهیلات:**

**قوله: حُسَيْنٌ سِبْطٌ مِنَ الْأَسْبَاطِ:**

**د سبط لغوی تحقیق:** په سین زیردې اوباء ساکن ده ښاخ ته هم وائی او اولاد ته هم وائی قبیله ته هم وائی پوره امت ته هم وائی یعنی حسین اګرچه یودې لیکن دا دَامتونونه پوره امت دې. دَده نسل به خوریږی دلته دا معنی زیادته راجح معلومیږی

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۷۷۵) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل الحسن والحسین ابنی علی بن أبی طالب رضی الله عنهم (رقم-۱۴۴)

**[۶۱۷۰] دحسنینو نبی علیه السلام سره مشابهت**

۶۱۷۰-(۱) [۳۶] ①وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ②الْحَسَنُ أَشْبَهُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا بَيْنَ الصَّدْرِ إِلَى الرَّأْسِ، وَالْحُسَيْنُ أَشْبَهُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا كَانَ أَسْفَلَ مِنْ ذَلِكَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت علي کرم الله وجهه نه روایت دی هغوی اوویل ② حسن خود رسول کریم ﷺ دسر نه واخله د سیني حصي پوري مشابه دی او حسین د رسول الله ﷺ سره سیني نه لاندي د جسم باقي حصه (یعنی پنډي او پښنو وغیره کي) مشابه دی (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① أَشْبَهَ: دَ باب افعال نه دَفعل ماضی صیغه ده چه دَ شابه په معنی کښې دې یعنی زیات مشابه، په شکل اوصورت کښې یوشان.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْحَسَنُ أَشْبَهُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**دحسنینو خپل نیکه سره مشابهت:** یعنی حضرت حسن ﷛ چونکه مشرو و نو په مشابهت کښې هغه ته پورته والاحصه ملاؤ شوه اوحضرت حسین ﷛ کشر وو نوهغه ته ښکته نئی حصه په خپو کښې مشابهت حاصل شوې دې نه معلومه شوه چه دا دواړه خامن خپل موریلار سره مشابه نه وو بلکه نیکه سره مشابه وو

**[۶۱۷۱] د فاطمي ﷞ او حسنینو د جنت د سرداری زیری**

۶۱۷۱-(۲) [۳۷] ①«وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ②قُلْتُ لِأُمِّي: دَعِينِي آتِي النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأُصَلِّي مَعَهُ الْمَغْرِبَ وَأَسْأَلُهُ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لِي وَلَكِ، ③ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَصَلَّيْتُ مَعَهُ الْمَغْرِبَ، فَصَلَّى حَتَّى صَلَّى الْعِشَاءَ، ④ثُمَّ انْفَتَلَ ⑤ فَتَبِعْتُهُ، ⑥ فَسَمِعَ صَوْتِي، ⑦ فَقَالَ: " مَنْ هَذَا؟ حُذَيْفَةُ؟ " قُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: " مَا حَاجَتُكَ؟

**ترجمه:** ① او حضرت حذیفه بن الیمان بیان کوي ② یوه ورځ ما خپلي مور ته اوویل که ماته اجازت راکوئ نو زه به نن ماښام مونځ د رسول الله ﷺ سره وکړم او بیا به حضور ﷺ ته درخواست وکړم چي هغوئ ما او ستا د پاره د بخښش او مغفرت دعا وغواړي ③ نو خما مور ماته اجازت راکړه، اوزه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او د ماښام مونځ مي وسره وکړ، حضور ﷺ ماښام ما نځه نه وروسته نفلونه کول، د دې پوري چي د ماسختن مونځ یې وکړو ④ او کوم وخت چي حضور ﷺ ما نځه نه فارغیدو سره کور طرف ته روان شو ⑤ نوزه وریسې شوم ⑥ حضور ﷺ خما اواز، یعني خما د قدمونو یا د چوټو اواز واوریدی یا داچي ما د چاسره څه خبره وکړه چي د هغه اواز هم، واوریدی ⑦ نو پوښتنه یې وکړه څوک دی؟ (چي دا وخت خپل کورته د تلو په ځای په ماپسې راروان دی) آیا حذیفه

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب (رقم-۳۷۷۹)
[2] ) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب (رقم-۳۷۸۱)

يې؟ ما اووئيل آو (زه يم). رسول الله ﷺ اوفرمائيل: څه خبره ده؟

**حل اللغات:-** ① انْفَتَلَ: أي: انْصَرَفَ: واپس شو، روان شو(كور طرف ته)

> غَفَرَ اللَّهُ لَكَ وَلِأُمِّكَ، [٢] إِنَّ هَذَا مَلَكٌ لَمْ يَنْزِلِ الْأَرْضَ قَطُّ قَبْلَ هَذِهِ اللَّيْلَةِ، [٣] اسْتَأْذَنَ رَبَّهُ [٤] أَنْ يُسَلِّمَ عَلَيَّ [٥] وَيُبَشِّرَنِي بِأَنَّ فَاطِمَةَ سَيِّدَةُ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ، [٦] وَأَنَّ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] الله دي تا او ستا دمور عفو او بخشش وكړي ، [٢] گوره دا يوه فرښته ده چې د دې شپې نه مخكې هيڅ كله زمكې ته نه وه راكوزشوي [٣] دې فرښتې د خپل پروردگار نه د دې خبرې اجازت اخستى دى [٤] چې زمكې ته راځكته كيدو سره ماته سلام وكړي [٥] او ماته دا خوشخبري واوروي چې فاطمه دجنتي ښځوسرداره ده [٦] او حسن اوحسين د جنتي خوانانو سرداران دي دا روايت ترمذي نقل كړى دى او ويلي يې دي چې داحديث غريب دى

**تسهيلات:**

**قوله:** دَعِينِي آتِي النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**دحذيفه رضى الله عنه د اجازت غوښتلو وجه:** په حديث الباب كښې دى چه حضرت حذيفه رضي الله عنه دَ خپلې مور نه اجازت ځكه اوغوښتلو چه دَحضرت حذيفه رضي الله عنه كور دَمسجد نبوى نه په څه فاصله باندې وو. اودَ هغوى مور خو يا دَ خپل يوازيوالى دَ وجې يا دَ حذيفه رضي الله عنه دَ احتياط دَ وجې هغه دَ خپل كور نه لرې تلو نه منع كولو.

**قوله:** مَا حَاجَتُكَ:

**حذيفه او مور دپاره د مغفرت دعا:** د حذيفه د جواب وركولو څخه وړاندې نبى عليه السلام د هغه د هغه د مور دپاره دمغفرت دعا اوكړه نو دا هم د نبى عليه السلام يوه معجزه شوه

**د مابنام اوماسخوتن په مينځ كښې د عبادت فضيلت:** دَدې حديث نه دَمابنام او ماسخوتن په مينځ كښې نوافل كښې مشغوليدو فضيلت ثابتيږى كوم ته چه دَ مشائخو په نيز "إحياء ما بين العشائين" وئيلې شى. چنانچه اكابرينِ امت دا عبادت اختيار كړې دې

**[٦١٧٢] ښه سورلي او ښه سور**

> ٦١٧٢ - ()[٣٨] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حَامِلًا الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ عَلَى عَاتِقِهِ، [٢] فَقَالَ رَجُلٌ: نِعْمَ الْمَرْكَبُ رَكِبْتَ يَا غُلَامُ! [٣] فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "وَنِعْمَ الرَّاكِبُ هُوَ"». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عباس رضي الله عنه بيان كوي يوه ورځ رسول الله ﷺ حسن بن علي خپلې

---

[١] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب (رقم - ٣٧٨٤)

اوړي باندي کينولی وو [۲] چي يوسړي اوويل اې خوش نصيبه ماشومه! څرنګه ښه سورلی باندي سپور يې [۳] رسول الله ﷺ په دي اوريدو سره وفرمايل او هغه سوار هم څومره ښه دی (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① حَامِلًا: اوچت کړی ني وو، سواره کړی ني وو ② نِعْمَ الْمَرْكَبُ: څومره ښه سورلی ده (يعنی نبی عليه السلام). ③ نِعْمَ الرَّاكِبُ: څومره ښه سورلی ده (يعنی حسن رضی الله عنه).

**تسهيلات:**

**قوله: وَنِعْمَ الرَّاكِبُ:**

**د راکب او مرکب عظمت:** ويونکی سړی فضيلت حضورپاك سره خاص کړو چه دا مرکب اوسورلی ډير ښکلي دی څکه چه داد الله تعالی رسول دي په کوم چه اې حسن ته سورنی حضورپاك دا فضيلت د حضرت حسن رضی الله عنه طرف ته منتقل کړو اوونی فرمائيل چه مرکوب سره سره دا راکب او سور حسن رضی الله عنه هم بهترين او ډير ښکلي دي.

**[٦١٧٣] د نبی عليه السلام محبت ته په خپل محبت ترجيح ورکول**

٦١٧٣-( )[٣٠] [۱] «وَعَنْ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-أَنَّهُ فَرَضَ لِأُسَامَةَ فِي ثَلَاثَةِ آلَافٍ وَخَمْسِمِائَةٍ، [۲] وَفَرَضَ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ فِي ثَلَاثَةِ آلَافٍ. [۳] فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ لِأَبِيهِ: لِمَ فَضَّلْتَ أُسَامَةَ عَلَيَّ؟ فَوَاللَّهِ مَا سَبَقَنِي إِلَى مَشْهَدٍ. [۴] قَالَ: لِأَنَّ زَيْدًا كَانَ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-مِنْ أَبِيكَ، وَكَانَ أُسَامَةُ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-مِنْكَ [۵] فَآثَرْتُ حِبَّ رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَلَى حِبِّي». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** [۱] او حضرت عمر فاروق نه روايت دی هغوئ په خپله زمانه خلافت کي د اسامه بن زيد سالانه تنخواه دري زره پنځه شوه ۳۵۰۰ درهم مقرر کړي وه [۲] او د خپل فرزند عبد الله دري زره درهم په دي [۳] عبد الله خپل پلار ته عرض وکړو تاسو اسامه ته په ماولي ترجيح ورکړه چي خما تنخواه د هغه نه پنځه سوه درهمه کمه مقرره کړله حالانکه په الله قسم چي اسامه هيڅ ميدان کي په ماسبقت او کاميابی نه ده حاصله کړي [۴] حضرت عمر ورته وفرمايل د دي وجه داده چي د اسامه پلار زيد رسول الله ﷺ ته ستا ترپلار يعنی خما نه زيات عزيز او محبوب وو او خپله اسامه رسول الله ﷺ ته ستا نه زيات عزيز او محبوب وو [۵] نو ما د رسول الله ﷺ محبوب اسامه ته په خپل محبوب يعنی په تاباندي ترجيح ورکړله (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① فَرَضَ: أي: قَدَّرَ: مقرر نې کړه، ② مَشْهَدٍ: أي: مَحْضَرٍ: ځاي د حاضريدو (دي نه مراد ميدان جهاد دي) ③ فَآثَرْتُ: أي: اخْتَرْتُ: غوره مې کړو، ترجيح مې ورکړه.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب زيد بن حارثة رضی الله عنه (رقم-٣٨١٣)

**تسهیلات:**

**قوله: فَرَضَ لِأُسَامَةَ فِي ثَلَاثَةِ آلَافٍ وَخَمْسِمِائَةٍ:**

**دحدیث پس منظر:** په حدیث الباب کښې دی چه حضرت عمر رضی الله عنه په خپل دورخلافت کښې دَ مشهورو صحابه کرامو رضی الله عنهم دَ معاش دپاره دکال وظیفه مقررکړې وه. چنانچه دَ ابن عمر رضی الله عنه دکال وظیفه دَحضرت اسامه رضی الله عنه په مقابله کښې کمه وه. چونکه دَ وظیفې کمې زیاتې دَ درجاتو دکمی زیاتی دَ وجې نه وی په دې وجه ابن عمر رضی الله عنه سوال اوکړو دَ ابن عمر رضی الله عنه دا سوال دَحضرت اسامه رضی الله عنه سره دَ حسد یا مال دَ حرص او هوس دَ وجې هیڅ کله نه وو بلکه دَ افادې او استفادې په نیت سره وو.

**قوله فَوَاللَّهِ مَا سَبَقَنِي إِلَى مَشْهَدٍ:**

**د مشهد څخه مراد:** دې نه مراد دَ خیر مجلس دې که هغه علمی وی اوکه جهادی اوکه دَ حج وی مطلب دا وو چه داسې هیڅ یو مجلس دَخیر نه دې تیرشوې په کوم کښې چه حضرت اسامه شریك شوې وی او زه نه یم شریك شوې بلکه زما شمیر په سابقینو کښې کیږی نو حضرت عمر رضی الله عنه جواب ورکړو چه ما په خپل محبوب باندې دَ رسول کریم ﷺ محبوب ته ترجیح ورکړې ده.

**[۶۱۷۴] د زید نبی علیه السلام ته په خپل وروربا ندې ترجیح ورکول**

> (٣٠) [٦١٧٤] «[١] وَعَنْ جَبَلَةَ بْنِ حَارِثَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] قَدِمْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! ابْعَثْ مَعِي أَخِي زَيْدًا. [٣] قَالَ: "هُوَ ذَا فَإِنِ انْطَلَقَ مَعَكَ لَمْ أَمْنَعْهُ" [٤] قَالَ زَيْدٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ: وَاللَّهِ لَا أَخْتَارُ عَلَيْكَ أَحَدًا. [٥] قَالَ: فَرَأَيْتُ رَأْيَ أَخِي أَفْضَلَ مِنْ رَأْيِي». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** [١] او حضرت جبله بن حارثه بیان کوي [٢] زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضریدو سره عرض مې وکړو یا رسول الله! خما وروز زید ما سره ولیږئ [٣] حضور ﷺ ورته وفرمایل دا زید موجود دی او د خپلي مرضي مختار دی که تا سره تلل غواړي نو زه دي دي نه منع کوم [٤] زید په دي اوریدو سره اوویل یارسول الله! قسم په الله زه ستاسو صحبت او په خدمت کې د پاتې کیدو په سعادت چاته ترجیح نه ورکوم که هغه وروز یا والدین وي [٥] جبله وایي ماچي د زید دا مضبوطه فیصله واوریده نو ومې منله چې خما د وروز عقل خما د عقل نه زیات دی. (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① قَدِمْتُ: راغلم، حاضر شوم. ② فَإِنِ انْطَلَقَ: که تلل غواړی، که خې

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب زید بن حارثة رضی الله عنه (رقم-۳۸۱۵)

**تسهيلات:**

**قوله: ابْعَثْ مَعِي أَخِي زَيْدًا..الخ:**

**د حديث پس منظر:** حضرت زيد ﷺ دیمن اوسیدونکې وو په وړوکوالي کښې د اتو کالو په عمر کښې خلقو هغه راپېټ کړو او د مکې په بازار کښې غلام جوړولو سره خرڅ کړو د حضرت خديجه ﷺ وراره حكيم بن حزام د حضرت خديجه ﷺ دپاره واخستو كله چه د حضرت خديجه ﷺ نكاح حضورپاك سره اوشوه نوهغې د خادم په توګه حضرت زيد ﷺ د حضورپاك په خدمت كښې پيش كړو حضرت زيد بن حارثه ﷺ د حضورپاك په خدمت كښې د غلامئ ژوندون تيرولو د هغه والدينو د هغه دپاره ډيرزيات ژړل هغوى ته معلومه نه وه چه زيد چرته دى

**د زيد د پلار قصيده:** د حضرت زيد ﷺ پلار ثابت د فرياد په توګه يوه قصيده اوونيله يوڅواشعار داى

بَكَيْتُ عَلَى زَيْدٍ وَلَمْ أَدْرِ مَا فَعَلَ	أَحَيٌّ فَيُرْجَى أَمْ أَتَى دُوْنَهُ الْأَجَلُ

**ترجمه** زه په زيد باندې ژاړم مګر ماته معلومه نه ده چه هغه ژوندې دې كه مړشوې دې

فَوَاللّٰهِ مَا أَدْرِيْ وَإِنِّيْ لَسَائِلٌ	أَغَالَكَ بَعْدِي السَّهْلُ أَمْ غَالَكَ الْجَبَلُ

**ترجمه** په الله تعالى قسم ماته هيڅ معلومه نه ده مګر زه تپوسونه كوم چه تاله په ميدانى علاقه كښې مرګ راغلې كه په غريزه علاقه كښې مرګ راغلې دې

وَيَالَيْتَ شِعْرِيْ هَلْ لَكَ الدَّهْرُ أَوْبَةٌ	فَحَسْبِيْ مِنَ الدُّنْيَا رُجُوْعُكَ لِيْ بَجَلْ

**ترجمه** اې افسوس چه ماته دا معلومه شى چه په ژوند كښې به كله ته واپس راشې ماته خود دنيا په تولو نعمتونو كښې ستا ژوندې راواپس كيدل كافى دى

**د زيد څپل پلارته جواب وركول:** د پلار دا شعرونه چه كله زيد ﷺ واوريدل نو په جواب كښې هغه دا لاندينى شعرونه اوونيل

أَحِنُّ إِلَى أَهْلِيْ وَإِنْ كُنْتُ نَائِيًا	بِأَنِّيْ قَعِيْدُ الْبَيْتِ عِنْدَ الْمَشَاعِرِ

**ترجمه** زه سره د دې چه لرې يم اوبيت الله سره مقيم يم مګر بيا هم د كور خلق رايادېږى

فَإِنِّيْ بِحَمْدِ اللّٰهِ فِيْ خَيْرِ أُسْرَةٍ	كِرَامِ مَعَدٍّ كَابِرًا بَعْدَ كَابِرِ

**ترجمه** او د الله تعالى په فضل سره زه د معد بن عدنان په بهترين او معزز كورنئ كښې مقيم يم

فَكُفُّوْا مِنَ الْوَجْدِ الَّذِيْ قَدْ شَجَاكُمْ	وَلَا تُعْمِلُوْا فِي الْأَرْضِ نَصَّ الْأَبَاعِرِ

**ترجمه** نوتاسو خلق د دې غم نه منع شئ په كوم كښې چه تاسو اخته يئ او په زمكه كښې زما د لټولو دپاره اوښ مه زغلوئ

**د زید پلارته د زید اشعار رسیدل:** دَالله تعالی کړه داسې وو چه دا شعرونه دَ هغه پلار ته اورسیدل په شعرونوکښې هغه خودلې وو چه زه حرم سره نیزدې حصار یم نوبیا دَحضرت زید ﷺ رور جبله بن حارثه مکې ته راغلو اوحضرت زید نې اوغوښتلو لکه څنګه چه مخکښې لیکلې شوی دی حضرت زید دَتلونه انکار اوکړو حضورپاك هغه خپل څوئی جوړکړو او حضرت زینب سره نې دَ هغه نکاح اوکړه هغه رشته ماته شوه نوبیا حضورپاك دَ هغه نکاح ام یمن سره اوکړه دَهغې نه حضرت أسامه ﷺ پیدا شو بیا حضورپاك حضرت زید ﷺ امیر جوړکړو او غزوه موته دَپاره نې روان کړو هلته حضرت زید ﷺ په ۸هجری کښې دَ ٥٥کالو په عمرکښې شهید کړې شو.

**[٦١٧٥] په مرض الوفاة کښې داسامه په مخ د شفقت لاس رابنکل**

٦١٧٥-() [٣١] [١]وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢]لَمَّا ثَقُلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - هَبَطْتُ وَهَبَطَ النَّاسُ الْمَدِينَةَ، [٣]فَدَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَقَدْ أُصْمِتَ فَلَمْ يَتَكَلَّمْ، [٤]فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَضَعُ يَدَيْهِ عَلَيَّ وَيَرْفَعُهُمَا، فَأَعْرِفُ أَنَّهُ يَدْعُولِي. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:**[١] او حضرت اسامه بن زید بیان کوي [٢]هغه ورځو کې چې رسول الله ﷺ مرض وفات کې ډیر زیات کمزوری شوی وو زه او نور خلق په مدینه کې خکته شو [٣]زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم هغه وخت حضور ﷺ باندې خاموشي خوره وه (یعنی د شدت مرض او ضعف په سبب د ګویائي طاقت یې باقي نه وو پاتې شوی نو خما په لیدو سره حضور ﷺ ژبې مبارکې سره هیڅ ونه وئیل بیا هم رسول الله ﷺ داضرور وکړل) [٤]چې خپل دواړه لاسه به یې په ما ایښودل بیابه یې اوچتول د نور ولایت او ظهور فراست په سبب زه پوهه شوم چې حضور ﷺ خما په حق کې دعا فرمایي دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې داحدیث غریب دی.

**حل اللغات:**- ① ثَقُلَ: أَيْ: ضَعُفَ: کمزوري شوې وو (دَ مرض الموت په وخت دَ سختئ طرف ته اشاره ده ② هَبَطْتُ: أَيْ: نَزَلْتُ: زه ښکته شوم (دَملاقات اوپوښتنې دَپاره راتلل او کوزیدل مراد دی) ③ أُصْمِتَ: اعْتُقِلَ لِسَانُهُ: ژبه نې بنده شوه (یعنی دَ مرض دَ سختئ نه حضورپاك باندې بې هوشی راغلې وه او خبرې نې بند کړې وې)

**تسهیلات: قوله:** أُصْمِتَ:

**د حدیث پس منظر:** دادَ یوحالت واقعه ده ګنی په دویم حالت کښې حضورپاك دَ حضرت أسامه ﷺ دَ پاره جنګی جنډا ترلوسره رخصت کړې وو اودا آخری ملاقات وو لیکن شیخ

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب أسامة بن زید رضی الله عنه (رقم-٣٨١٧) واحمد فی المسند: ٢٠١/٥

عبدالحق رحمه الله په اشعة اللمعات كښې ليكلى دى چه دَ حضرت أسامه رضي الله عنه لښكر دَمدينې نه لرِ شان بهر ډيره شوې وو اودَ حضورپاك په بيمارئى كښې سختى راغله نوهغه وخت حضرت أسامه دَ پوښتنې دَپاره حاضرشوې وو داد هغه وخت خبره ده چه دَمرض دَ سختنى دَ وجې نه اوس حضورپاك كلام نه شوكولې

**قوله**: وَيَرْفَعُهُمَا:

**د لاس پورته كولو طرف**: يعنى لاس به ئى دَ آسمان طرف ته اوچتولو او اشاره به ئى كوله دكوم نه چه ما اندازه اوكړه حضور پاك ماته دعافرمائى

**[۳۸۷] عائشې رضي الله عنها ته د اسامه سره د محبت كولو حكم كول**

٦٢٨٧-()[٣٢]①«وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ②أَرَادَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ يُنَحِّيَ مُخَاطَ أُسَامَةَ. ③قَالَتْ عَائِشَةُ: دَعْنِي حَتَّى أَكُونَ أَنَا الَّذِي أَفْعَلُ. ④قَالَ: " يَا عَائِشَةُ أَحِبِّيهِ فَإِنِّي أُحِبُّهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**:① او ام المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها بيان كوي ②يوه ورځ رسول الله ﷺ د اسامه په ماشوم توب كې د هغه پوزه صاف كول او غوښتل څرنګه چې دبچو پوزه صاف كوي نو ما دا خبره خلاف أدب ګڼلو سره چې ځما موجودګي كې د اسامه پوزه حضور ﷺ صفا كړي ③عائشه وائى ما عرض وكړو يا رسول الله تاسو داكار پريږدئ دابه زه وكړم ④نو حضور ﷺ وفرمايل اې عائشه رضي الله عنها! ته اسامه سره محبت ساته ځكه چې زه دي عزيز او محبوب لرم . (ترمذي)

**حل اللغات**:- ①يُنَحِّي: أي: يُزِيلَ: لرې كول ني. ②مُخَاطَ: وَهُوَ مَا يَسِيلُ مِنَ الْأَنْفِ: دَ پوزې قنرو اوګندګئ ته مخاط وائى. ③دَعْنِي: أي: اتْرُكْنِي: ما پريږده (چه زه ني اوكړم)

**تسهيلات**:

**قوله**: أَنْ يُنَحِّيَ مُخَاطَ أُسَامَةَ:

**داسامه رضي الله عنه پوزه پاكول**: حضرت اسامه رضي الله عنه دَ وړوكوالى په حالت كښې وو دَ رسول كريم ﷺ په غيږ كښې وو چه دَ هغه پوزه راؤبيدله نو رسول كريم ﷺ په خپل لاس مبارك باندې صفاكول غوښتل نوحضرت عائشه رضي الله عنها عرض اوكړو چه زه ئى صفاكوم بيا حضورپاك حضرت عائشه رضي الله عنها دې طرف ته متوجه كړه چه اګرچه دَ اسامه سره ستا طبعًا صحبت او انسيت نه وى خو په دې وجه چه دَ محبوب محبوب هم محبوب وى اسامه عزيز او محبوب اوساته ځكه چه زه دې عزيز اومحبوب ساتم

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أسامة بن زيد رضي الله عنه (رقم-٣٨١٨)

## [۷۷۳] د نبي عليه السلم اسامه سره د محبت اظهار کول

۶۱۷۷-(۱) [۳۳] ۱ «وَعَنْ أُسَامَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ۲ كُنْتُ جَالِسًا، إِذْ جَاءَ عَلِيٌّ وَالْعَبَّاسُ يَسْتَأْذِنَانِ، ۳ فَقَالَا لِأُسَامَةَ: اسْتَأْذِنْ لَنَا رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلِيٌّ وَالْعَبَّاسُ يَسْتَأْذِنَانِ. ۴ فَقَالَ: "أَتَدْرِي مَا جَاءَ بِهِمَا؟" قُلْتُ: لَا"، قَالَ: "لٰكِنِّي أَدْرِي، ائْذَنْ لَهُمَا" ۵ فَدَخَلَا، فَقَالَا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- جِئْنَاكَ نَسْأَلُكَ أَيُّ أَهْلِكَ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ قَالَ: "فَاطِمَةُ بِنْتُ مُحَمَّدٍ"

**ترجمه**: ۱ او حضرت اسامه بیان کوي ۲ یوه ورځ زه د حضور ﷺ په دروازه ناست وم چې حضرت علي او حضرت عباس راغلل د حضور ﷺ په خدمت کې د حاضرۍ د اجازت طلبګار وو ۳ هغه دواړو اسامه ته اوویل چې هغه ورځو کې د لږ عمر وو چې ته زمونږ د پاره د حاضرۍ اجازت طلب کړه زه کورته دننه ورتلو سره عرض مې وکړ یارسول الله: حضرت علي او حضرت عباس د حاضرۍ د اجازت طلبګار دی ۴ حضور ﷺ دې خبرې اوریدو سره زما نه پوښتنه وکړه تاته معلومه ده چې هغه دواړه کوم مقصد د پاره راغلي دي؟ ما عرض وکړو ماته معلومه نه ده حضور ﷺ وفرمایل لیکن زه پوهیږم ورشه هغوئ دننه راوله ۵ دواړه حضرات دننه راغلل او هغوئ اوویل یارسول الله: مونږ ستاسو په خدمت کې دا سوال راوړلو سره راغلي یو چې ستاسو اهل بیتو کې کوم سړی ستاسو په نزد زیات محبوب دی حضور ﷺ وفرمایل خما لور فاطمه بنت محمد ﷺ ماته زیاته عزیزه او محبوبه ده

۱ قَالَا: مَا جِئْنَاكَ نَسْأَلُكَ عَنْ أَهْلِكَ قَالَ: "أَحَبُّ أَهْلِي إِلَيَّ مَنْ قَدْ أَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتُ عَلَيْهِ: أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ" ۲ قَالَا: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: ثُمَّ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ" ۳ فَقَالَ الْعَبَّاسُ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! جَعَلْتَ عَمَّكَ آخِرَهُمْ؟ ۴ قَالَ: "إِنَّ عَلِيًّا سَبَقَكَ بِالْهِجْرَةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَذُكِرَ أَنَّ عَمَّ الرَّجُلِ صِنْوُ أَبِيهِ فِي كِتَابِ الزَّكَاةِ.

**ترجمه**: ۱ هغه دواړو حضراتو عرض وکړو زمونږ د سوال تعلق ستاسو کور والاوو یعنی ستاسو اولاد ازواجو سره نه دی بلکه ستاسو نور اقاربو او متعلقینو سره دی حضور ﷺ وفرمایل خما کور والاوو نه هغه سړی خما په نزد زیات عزیز او محبوب دی چه ﷻ باندې خپل انعام او فضل کړی دی په ایمان سره او ماهم په هغه انعام او احسان کړي دی په آزادولو سره او هغه اسامه بن زید دی ۲ حضرت علي ؓ او حضرت عباس پوښتنه وکړه اسامه نه وروسته تاسو ته څوک زیات محبوب او عزیز دی حضور ﷺ وفرمایل بیا علي بن ابي طالب په ۳ دې اوریدو سره حضرت عباس اوویل یارسول الله: تاسو خپل تره یعنی زه خپل کور والو کې په آخر کې واچولم ۴ حضور ﷺ ورته وفرمایل علي په هجرت کې په تا سبقت کړی دی (ترمذي) او روایت انّ عمّ الرّجل صنو ابیه د حضرت عباس منقبت کې مخکې په کتاب الزکوٰة کې نقل شوي دي.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب أسامة بن زید رضی الله عنه (رقم-۳۸۱۷)

**تسهیلات: قوله:** مَا جِئْنَاكَ نَسْأَلُكَ:

**نبی علیه السلام ته زیات محبوب خلق:** یعنی مونږ ستاسو د اولاد د محبوبیت باره کښې سوال نه کوو بلکه ستاسو د نورو خپلو خپلوانو باره کښې معلومات کوو چه په هغوی کښې تاسو ته د ټولو نه زیات محبوب څوك دې؟ حضورپاك اوفرمائیل أسامه رضي الله عنه اوبیا علی رضي الله عنه په دې باندې حضرت عباس رضي الله عنه اوفرمائیل چه تاسو خپل تره شاته اوغورزولو حضورپاك اوفرمائیل حضرت علی رضي الله عنه تاسو نه مخکښې هجرت کړې دې په دې وجه وړاندې شو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۶۱۷۸] د ابوبکر رضی الله عنه حسن رضی الله عنه په خپله اوږه کینول**

٦١٧٨ -(١) [٣٣] [١] عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «صَلَّى أَبُو بَكْرٍ الْعَصْرَ ثُمَّ خَرَجَ يَمْشِي وَمَعَهُ عَلِيٌّ، [٢] فَرَأَى الْحَسَنَ يَلْعَبُ مَعَ الصِّبْيَانِ، فَحَمَلَهُ عَلَى عَاتِقِهِ [٣] وَقَالَ: بِأَبِي شَبِيهٌ بِالنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَيْسَ شَبِيهًا بِعَلِيٍّ، [٤] وَعَلِيٌّ يَضْحَكُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت عقبه بن حارث بیان کوي چې حضرت ابوبکر صدیق خپله زمانه خلافت کې یا د هغه نه مخکې یوه ورځ د مازیګر مونځ کولو سره بهر راووتلو او چیرته تلو د پاره روان شو هغه وخت د هغوئ سره حضرت علي هم وو [٢] په لار کې حضرت ابوبکر چې حسن اولیدلو چې دوړو سره یې لوبې کولی نو اوچتولو سره خپله اوږه باندې کینولو [٣] او د خوش طبعي له مخه یې اوویل خما پلار دې په تا قربان شي دا حسن د رسول الله ﷺ سره ډیر مشابه دي علي سره نه دی [٤] په دې اوریدو سره حضرت علي د اظهار خوشی په طور وخندل. (بخاري)

**تسهیلات: قوله:** لَيْسَ شَبِيهًا بِعَلِيٍّ:

**نبی علیه السلام سره د حسن مشابهت:** یعنی حضرت حسن رضي الله عنه د خپل نیکه حضرت محمد ﷺ په شان دې د حضرت علی رضي الله عنه په شان نه دې دې نه معلومه شوه چه د حضورپاك او حضرت علی رضي الله عنه په مینځ کښې بدنی مشابهت نه وو

**[۶۱۷۹] د حسین رضی الله عنه په مخ پورې د ابن زیاد ټوقې کول**

٦١٧٩ -(٢) [٣٥] [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: أُتِيَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ زِيَادٍ بِرَأْسِ الْحُسَيْنِ، فَجُعِلَ فِي طَسْتٍ، [٢] فَجَعَلَ يَنْكُتُ وَقَالَ فِي حُسْنِهِ شَيْئًا [٣] قَالَ أَنَسٌ: فَقُلْتُ: وَاللَّهِ إِنَّهُ كَانَ أَشْبَهَهُمْ بِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَكَانَ مَخْضُوبًا بِالْوَسِمَةِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب مناقب الحسن والحسين رضى الله عنهما (رقم-٣٧٥٠)

[٢] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب مناقب الحسن والحسين رضى الله عنهما (رقم-٣٧٤٨) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٧٧٨)

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه بیان کوي کوم وخت چې د حضرت حسین سرمبارك تن پاك نه جدا کولو سره د عبید الله بن زیاد مخې ته یولګن تالي، کې کیخودل شو [۲] نو هغه بدبخت خپلې لښتي سره د هغه سرمبارك وهل شروع کړل (یعنی د حضرت حسین په حقله د خپل نفرت او حقارت ښکاره کولو د پاره د لښتي په سر بار بار پوزي وغیره باندې وهي یې هغه د هغوی د حسن په باره کې څه اوویل [۳] حضرت انس وایي مې د هغه شقي دا حرکت لیدو سره او د هغه الفاظو اوریدو سره ورته اوویل قسم په الله دا هغه مقدس انسان دی چې اهل بیتو کې د ټولو نه زیات د رسول الله ﷺ مشابه وو هغه وخت د حضرت حسین سرمبارك وسمه سره رنګ شوی وو (بخاري)

**حل اللغات:** - ① طَسْتٍ: لوښي، خانک یا لګن ② یَنْکُتُ: أَيْ: یَضْرِبُ: وهلو ئې. ③ مَخْضُوبًا: رنګ کړې شوې وو. خضاب لګولی شوی وو. ④ الْوَسِمَةِ: نَبْتٌ یُخْضَبُ بِهِ وَیَمِیلُ إِلَى السَّوَادِ: یو قسم وابنه دی چه په هغې سره خضاب کولی شي رنګ ئې توروالی ته مائل وي

> [۱] وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ زِيَادٍ فَجِيءَ بِرَأْسِ الْحُسَيْنِ، [۲] فَجَعَلَ يَضْرِبُ بِقَضِيبٍ فِي أَنْفِهِ وَيَقُولُ: مَا رَأَيْتُ مِثْلَ هَذَا حُسْنًا، [۳] فَقُلْتُ: أَمَا إِنَّهُ كَانَ مِنْ أَشْبَهِهِمْ بِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -. وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او د ترمذي په روایت کې داسې دي حضرت انس بیان وکړو هغه وخت زه ابن زیاد سره موجود وم چې د حضرت حسین سرمبارك د هغه مخې ته راوړل شو [۲] ابن زیاد به هغه په پوزه باندې په لښتي سره وهي او وئیل به یې داسې حسن ما هیڅ کله نه دی لیدلی [۳] ما ورته اوویل تاته معلومه ده دا هغه سړی دی چې رسول الله ﷺ سره د ټولو نه زیات مشابه وو ترمذي ویلي دي دا حدیث صحیح حسن غریب دی.

**حل اللغات:** - ⑤ قَضِيبٍ: لښته، چوکه

**تسهیلات:**

**قوله:** أَتَى عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ زِيَادٍ بِرَأْسِ الْحُسَيْنِ،

**د ابن زیاد په لاس د حسین رضی الله عنه شهادت:** دَ یزید دَ طرف نه عبد الله ابن زیاد دَ بصره ګورنر وو مګر یزید دَ حضرت امام حسین رضي الله عنه دَ مقابله دَپاره په خاص توګه عبید الله ابن زیاد فوری دَ بصره نه اخوا کړو او دَ کوفه ګورنرئې جوړ کړو چه ابن زیاد په ذاتی دلچسپئی سره حسین رضي الله عنه قتل کړی دا بدبخت کوفه ته راغلو اول ئې مسلم بن عقیل شهید کړو او په قصر امارت باندې قبضه اوکړه اودې نه پس ئې دَ فوج مشری لاس کښې اخستو سره حضرت امام حسین رضي الله عنه د کربلا په میدان کښې شهید کړو دَ حضرت امام حسین رضي الله عنه سر دَ تن نه جدا کولو سره په پلیټ کښې کیخودو او ابن زیاد ته ئې پیش کړو دَدې بدبخت په لاس کښې یوه چوکه وه هغه ئې دَ حضرت امام حسین رضي الله عنه په پوزه او سترګه

کښې ورخښوله اوډَمزاق په توګه ئې وئیل چه ښائسته دي؟ حسین ډیر ښائسته دې؟ ښه هغه ښائسته دادي؟ په دې باندې حضرت انس رضي الله عنه هغه اوړتلو.

**قوله: فِي حُسْنِهِ شَيْئًا:**

**د ابن زیاد مرګ:** دَدې لفظ هم دغه مطلب دې چه دَ مسخرو په توګه هغه دَ حضرت حسین رضي الله عنه په حسن کښې څه بکواس کولو. وئیلې شي څه موده پس ابن زیاد مختار بن عبید قتل کړو اودَهغه سر ئې راوړو دَخلقو مخې ته ئې هم دَ دغه جمات په دونکاچه باندې کیخودو ناڅاپې شور شو چه راغلو راغلو کله چه اوکتلې شو نو یومار راغلو اودَ ابن زیاد په پوزه کښې ورننوتلو اوبیا راؤوتلو. دوه درې ځل داسې اوشو خلق اوتختیدل.

**د حضرت حسین رضی الله عنه د قاتل اشعار:** په حضرت حسین رضي الله عنه وار کونکی قاتل نوم سنان ابن انس نخعي دې. دغه بدبخت چه کله دَ امام حسین سردَ تن نه جدا کړو دَ ابن زیاد مخې ته ئې کیخودو نودا شعر ئې اووئیل:

أَوقِرْرِكَابِيْ فِضَّةً وَذَهَبًا إِنِّي قَتَلْتُ الْمَلِكَ الْمُحَجَّبَا
قَتَلْتُ خَيْرَ النَّاسِ أُمًّا وَأَبًا

**ترجمه** زما سورلی دَ سرو زرو اوسپینو زرو نه ډکه کړه ما ډیر محفوظ بادشاه قتل کړو چه په حسب اونسب کښې دَ ټولو نه بهتر وو.

**د یزید اشعار:** وئیلې شي چه کله دَامام حسین رضي الله عنه سر دَ یزید په مخکښې کیخودې شو نویزیددا شعر اووئیل:

نُفَلِّقُ هَامًا مِنْ رِجَالٍ أَعِزَّةٍ عَلَيْنَا وَكَانُوا أَعَقَّ وَأَظْلَمَا

**ترجمه** مونږ دَ عزت دارو خلقو کهوپړئ الوزو خکه هغوی زمونږ په حق کښې بې حده نافرمان او لوئي ظالم وو.

**په یزید د لعنت باره کښې د امام احمد بن حنبل مذهب:** دَ سورة محمد آیت نمبر ۲۳ تفسیر کښې علامه روح المعاني رحمه الله یزید اوقاتلان حسین رضي الله عنه باره کښې ډیر څه لیکلی دی. هغوی لیکي چه دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله ځوئي عبدالله دَخپل پلار احمدبن حنبل رحمه الله نه پوښتنه اوکړه چه په یزید باندې لعنت وئیل څنګه دي؟ امام احمد رحمه الله په جواب کښې اوفرمائیل په کوم سړی چه الله تعالی په خپل کتاب کښې لعنت وئیلې دې په هغه باندې ولې لعنت اونه وئیلې شي. ځوئي اوئیل پلاره ما خو پوره قرآن لوستلې دې په هغې کښې خو په یزیدباندې چرته هم لعنت نشته دې. امام احمد رحمه الله اوفرمائیل چه دَالله تعالی ارشاد دې ﴿ فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ أَنْ تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ ۞ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فَأَصَمَّهُمْ وَأَعْمَىٰ أَبْصَارَهُمْ ۞﴾ په دې آیت کښې الله تعالی فساد کونکو اوصله رحمی

ماتونکو باندې لعنت فرمائیلې دې او یزید چه کوم څه حضرت امام حسین رضی الله عنه سره کړی دهغې نه لوئی فساد څه کیدې شی او ددې نه زیاته صله رحمی ماتیدل چرته کیدې شی. [روح المعانی ج۹ ص۷۲]

**په یو فاسق فاجر کس باندې یقین سره لعنت وئیل:**

علامه روح المعانی رحمه الله نور لیکی چه دې نه معلومه شوه چه په یو سړې معین او نامزد کولو سره لعنت لیګل جائزدی مګر په دې کښې څه اختلاف دې نو د جمهورو په نیز په یو معین سړی باندې لعنت لیګل جائزنه دی که هغه فاسق وی یا غیرفاسق او که هغه ژوندې وی او که مړشوې وی خوچه دهغه مرګ په کفرباندې یقینی نه وی اودچامرګ چه په یقینی توګه باندې په کفرشوې وی په هغه لعنت لیګل جائزدی لکه ابوجهل وغیره مګر شیخ الاسلام علامه بلقینی رحمه الله دې طرف ته تلې دې چه په یو فاسق فاجرسړی باندې یقین سره لعنت لیګل جائزدی په ډیرو احادیثو کښې ددې شواهد موجود دی

**په یزید باندې لعنت وئیلو کښې اقوال:** ① علامه آلوسی رحمه الله لیکی چه مونږ به د علامه بلقینی رحمه الله د تحقیق په رڼا کښې په یزید لعنت لیګلو کښې هیڅ تردد نه کوو څکه چه د یزد صفات خبیثه او د کبائر ارتکاب د حد نه زیات دی هغه د خپل اقتدار په وخت اهل مکه او اهل مدینه سره چه څه کړی او د امام حسین علیه السلام په قتل نی چه کوم د خوشحالئی اظهار کړې دې او دهغوی د کور والو نی چه کوم توهین کړې دې په هغه باندې د لعنت کولو دپاره کافی دی

② علامه مزید لیکی چه په یزید باندې لعنت وئیل او د هغه په کفرباندې د علماء د یو جماعت تصریحات موجود دی هم ددوی نه حافظ ابن الجوزی رحمه الله دې او د هغوی نه وړاندې قاضی ابو یعلی رحمه الله دې

③ علامه تفتازانی رحمه الله وئیلی دی چه مونږ د یزید په لعنت کښې او دهغه په ایمان کښې هیڅ توقف نه کوو په هغه باندې او دهغه په اعوان او انصار باندې دې دالله تعالی لعنت وی

④ علامه آلوسی رحمه الله نور لیکی چه د یزید په لعنت باندې د علامه سیوطی رحمه الله تصریح هم موجود ده

⑤ د ابن وردی په تاریخ کښې او کتاب الوافی بالوفیات کښې لیکلی دی چه کله د عراق نه دحضرت امام حسین علیه السلام پس ماندګان ښځې او بچې ګرفتار یزید له راوړسیدل نو یزید د هغوی د کتلو دپاره مقام جیرون پوړې بهر راغلو دحضرت حسین او د علی بن حسین بچې ښځې ګرفتاروې دامام حسین او دهغه دملګرو سرونه په نیزو کښې اوچت کړې شوی وو یو کارغه د کائی کائی آواز شروع کړو په دې باندې یزید دا شعر او وئیل:

لَمَّا بَدَتْ تِلْكَ الْحُمُوْلُ وَأَشْرَفَتْ　　　تِلْكَ الرُّؤُسُ عَلٰى شَفَا جَيْرُوْنَ

**ترجمه** کله چه دا سورلئی رانیزدي کیدوسره رابنکاره شوي او مقام جیرون په غاړه باندې په نیزو باندې اوچت کړې شوي سرونه راغله

نَعِبَ الْغُرَابُ فَقُلْتُ قُلْ أَوْلَا تَقُلْ　　فَقَدِ اقْتَضَيْتُ مِنَ الرَّسُوْلِ دُيُوْنِيْ

**ترجمه** نویو کارغه دَ نحوست آواز اوکړو ما کارغه ته اوونیل چه که ته وانی اوکه نه وانی ما دَ رسول نه دَ خپلو مقتولینو بدله واخستله

علامه روح المعانی رحمه الله فرمانی دَ بدر په جنګ کښې دَ یزیدنیکه عتبه وغیره وژلې شوې وو یزید په دې اشعارو کښې هم دَ هغه بدلې ذکر کړې دې علامه لیکی چه که دا اشعار صحیح ثابت شی نو په دې سره به یزید کافرشی دغه شان څه نور شعرونه هم یزید ونیلی دی په هغې سره به هم یزید کافر کیدل ثابت شی [روح المعانی ج۹ ص۷۲]

**په یزید باندې لعنت وئیلو کښې د اهل سنت اقوال**: بهرحال دَ جمهور علماء اهل سنت داموقف دې چه دَ یزید په کفرباندې مړه کیدل یقینی نه دی لهذا په هغه باندې دَ مرګ نه پس لعنت لیګل جائزنه دی

① علامه روح المعانی رحمه الله په خپل تحقیق کښې نورفرمائی چه بل طرف ته امام غزالی رحمه الله دې طرف ته تلې دې چه په یزیدباندې لعنت لیګل حرام دی بلکه دَ مسلمانانو دعاګانې هغه سره دی ځکه چه هغه مسلمان کیدوسره مړشوې دې

خو علامه سفارینی رحمه الله دَامام غزالی رحمه الله قول ردکړې دې او علامه روح المعانی دَ علامه سفارینی قول خوښ کړې دې په کوم کښې چه هغوی دَامام غزالی رحمه الله قول ردکړې دې

② شیخ الاسلام علامه ابن تیمیه رحمه الله لیکلی دی چه دَامام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز په یزیدباندې لعنت لیګل مکروه دی

③ بل خوا ابوبکر بن العرابی المالکی دَ یزیدډیر حمایت کړې دې اولیکی "ان الحسین قتل بسیف جده" یعنی دَحضورپاك دَ فرمان مطابق دَ بغاوت لاندې حسین قتل کړې شو دَدې کلام په وجه علامه آلوسی رحمه الله په یزیدباندې دَتنقید کولونه زیات په سخت اندازکښې ابن عربی باندې تنقید کړې دې (ابن عربی دَدې تنقید مستحق هم دې)

**د علامه آلوسی د بحث خلاصه**: علامه آلوسی رحمه الله دَدې پوره تفصیل داسې خلاصه راویستوسره لیکلی دی چه څه دَ یزیدباره کښې ونیلی شوی دی دَ هغې خلاصه داده چه بعضې حضرات دَ یزیدباره کښې وانی چه هغه مسلمان دې په هغه باندې لعنت لیګل صحیح نه دی خوهغه دَ اهل بیت باره کښې دَ معصیت مرتکب شوې دې هغه دَدې مجرم دې دَ علماء دویمه طبقه وانی چه یزید مسلمان دې مګر په کراهت سره په هغه باندې لعنت لیګل جائزدی یا بغیر کراهت نه هم جائزدی دریمه طبقه وانی چه یزید کافراوملعون دې په هغه باندې لعنت جائزدې څلورمه طبقه وانی چه یزیدپاك صفادې هغه چه څه کړی دی

هغه څه ګناه نه ده.
علامه آلوسی بغدادی رحمه الله لیکی زه خودا وایم چه زما په غالب ګمان کښې یزید خبیث دَ رسول کریم ﷺ دَ رسالت تصدیق نه وو کړې اوهغه چه دَ کومو مکروهو افعالوارتکاب کړې وو لکه دَ بیت الله اودَ هغې دَ اوسیدونکوسره نی چه څه کړی وو اومدینې اواهل مدینې سره نی چه څه اوکړه اودَ نبی پاك اهل بیت سره نی چه څه اوکړه او په ذاتی توګه چه هغه دکومو قبائحو مرتکب کیدو دادَهغه په عدم تصدیق باندې دَدې نه لونی دلیل دې چه یوسړې دَ قرآن پاك پانړې په ګندګنی او غلاظت کښې اوغورزوی اوکافرشی زما لرشان هم شك نه دې بلکه یقین دې چه دَ یزیددا کافرانه افعال دَهغه زمانې دَ بزرګ او دَ اوچتې درجې دَمسلمانانونه پټې نه وولیکن هغوی څکه صبراوکړو چه هغوی مغلوب اومجبوروو اوهغوی د صبرنه بغیرڅه کول هم نه دې دَپاره چه دَالله تعالی مقررکړې شوې حکم خپل انجام ته اورسی.
اوکه چرې دا اومنلې هم شی چه یزید خبیث مسلمان وو کافرنه وو نوهغه داسې مسلمان وو چه په خپل ځان باندې دَ ګناهونودومره انبارونه راجمع کړې ووکوم چه په ژبه سره بیانولې نه شی. زه خو ښه په ښکاره په یزیدباندې دَ لعنت وئیلو قائل یم او په هغه باندې په خصوصی تعیین سره لعنت جائزمنم اوظاهرهم دغه دی چه یزیددَ دغه کبائر دَ ارتکاب نه پس هیڅ توبه نه ده کړې اودَهغه دَتوبې احتمال دَهغه دَ ایمان دَ احتمال نه زیات کمزورې دې په دې لعنت کښې یزیدسره ابن زیاد ابن سعداودَهغه جماعت برابر شریك دې. "فلعنة الله عزوجل علیهم اجمعین وعلی انصارهم واعوانهم وشیعتهم ومن مأل الیهم الی یوم الدین" [روح المعانی ج۹ ص۷۲]
علامه روح المعانی نور لیکی که یوسړې په یزیدباندې په خصوصی توګه لعنت وئیلونه ویریږی نوهغه دې په اجمالی توګه سره داسې لعنت لیکی "لعن الله من رضی بقتل الحسن ومن آذی عترة النبی صلی الله علیه وسلم" دغه شان عموم سره لعنت کولو کښې دَ چا اختلاف هم نشته دې اویزیدبه دَدې عموم رومبې مصداق جوړیږی. احواله بالا
**دوه ضروری خبرې:** ① حافظ فضل محمد صاحب په توضیحات شرح مشکاة کښې فرمائی دَ علامه روح المعانی رحمه الله تحقیق دَ ناظرین مخې ته دې په دې باندې دَ هیڅ تبصرې ضرورت نشته دې البته دَ دوو خبروطرف ته اشاره کول غواړم. یوداچه دَمرګ نه پس په چاباندې لعنت لیګل اونه لیګل دَهغه متعلقه سړی په خاتمه باندې مبنی ده. که هغه سړې په کفرباندې مړوی نولعنت جائزدې اوکه چرې په ایمان باندې مړوی نو لعنت لیګل جائزنه دی. جمهورامت په دې باندې قائم دې چه دَیزیدخاتمه په کفرباندې یقینی نه ده لهذا لعنت لیګل صحیح نه دی.
② دویمه خبره دا په ذهن کښې یاد ساتل پکاردی چه دکوم سړی په کافرکیدو اونه

کافر کیدو کښې دَ علماء اختلاف پیداشي نو دَهغه سرې فاسق اوفاجر کیدل یقیني کیږي دَ یزید معامله هم دغه شان ده. دَدې مثال پیش کولې شي چه دَ کوم سړي نبي کیدو اونه کیدو کښې دَعلماؤ اختلاف شي نو هغه سړې په کامل توګه باندې ولي وي لکه چه دَ حضرت لقمان معامله ده لهذا دَ یزید فاسق اوفاجر کیدل یقیني دي اوحضرت لقمان ولي کیدل یقیني دي

**یو اشکال:** دلته یو شك داپیدا کیږي چه یزید دَ معاویه رضي الله عنه خوئې دې حضرت معاویه رضي الله عنه دې ولي عهد جوړ کړې وو لهذا یزید ته بد ونیل جائزنه دی؟

**د اشکال دوه جوابونه:** ① دا شك غلط دې ځکه چه ډیر انبیاء کرام داسې تیر شوي دي دَچا خامن چه کافران شوي وو په دې سره دَهغه په پلاربانديې هیڅ طعن نه شي راتلې لکه دَ نوح علیه السلام خوئې کنعان کافر وو اوکافر مړشو. یزید کیدې شي چه اول ښه وو اودَ بادشاه جوړیدو نه پس خراب شوې وي په دې کښې دَ حضرت معاویه رضي الله عنه څه قصور دې؟ دویمه شبه داپیش کولې شي چه دَبخاري شریف په یوحدیث کښې دَ غزوه قسطنطنیه دَ شریکو خلقو دَ پاره دَ مغفرت بشارت ورکړې شوې دې اوپه دغه غزوه کښې یزید شریك وو لهذا دَهغه خو لوئې مقام دې. دَدې جواب دادې چه دَ دغه حدیث دا بشارت په دغه غزوه کښې دَ شریکو مجاهدینو په راتلونکي وخت کښې صالح پرهیزګار اومتقي پاتې کیدو سره مشروط دی ګنې فرض کړه یو سړې په دغه غزوه کښې شریك شو اوبیا روستو مرتد شو نوآیا هغه به هم مغفورلهم یعني په مغفرت حاصلونکو شمیرلې شي؟

② چه کله حضرت معاویه دَ قسطنطنیه لښکر روان کړو نو یزید ته ئې حکم اوکړو چه ته هم لاړ شه هغه بهانه اوکړه چه زه بیمار یم اولاړ نه شو روستو چه کله لښکر والو ته سخت تکلیف شو نو یزید په خوشحالئ کښې شعرونه اوونیل

لَستُ أُبَالِي بِمَا لَاقَتْ جُمُوعُهُمْ　　بِفَرْقَدُونَةَ مِنْ حُمَّى وَمِنْ مُومِ

**ترجمه** زما هیڅ پرواه نشته دې چه دَمجاهدینو دا جماعت په مقام فرقدونه کښې په دوی باندې تبه راغله او په بدن کښې پولئ راؤوتلې

إِذَا اتَّكَأْتُ عَلَى الْأَنْمَاطِ مُتَّكِئًا　　بِدَيْرِ مُرَّانَ عِنْدِي أُمُّ كُلْثُومِ

**ترجمه** کله چه زه په دیر مرام مقام کښې ام کلثوم سره دَ مخمل په غلیچو کښې ډډه لګولې ناست یم

دَ یزید دغه شعرونه چه کله معاویه رضي الله عنه ته اورسیدل نو هغوي یزید په زور په دغه غزوه کښې دَ شرکت دَپاره روان کړو لکه چه یزید دَ غزوه قسطنطنیه ته دَ تلو هڅو قائل نه وو نو بشارت ورته څنګه ملاؤشو؟ بهرحال په کربلا کښې چه امام حسین علیه السلام سره څه اوکړې شو هغه دَاسلام په سپین څادر باندې یو بدنښکاریدونکې داغ دې دَ کوم نه چه یزید

خلاصيدې نه شي. نن نه يزيد شته اونه دَهغه حكومت اودَقتل حسين وينه دَهغه په سټ پرته ده. كه دَ رسول الله ﷺ نمسى حكومت هم غوښتلو نو دَ يزيدخه حق وو چه هغه په حكومت باندې كلكيدلو دادَ يزيدلويه غلطي وه. علامه اقبال اووئيل

قتل حسین اصل میں مرگِ یزید ہے اسلام زندہ ہوتا ہے ہر کربلا کے بعد

يعني دَحسين قتل په اصل كښې دَ يزيد مرګ دې ځكه چه اسلام خوژوندې كيږي دَهرې كربلا نه پس.

### [٦١٨٠] نبي عليه السلام ته د شهادت حسين پيشنګوئي كيدل (؟) جاري

٦١٨٠-(١)[٣٦] [١] «وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - أَنَّهَا دَخَلَتْ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! [٢] إِنِّي رَأَيْتُ حُلُمًا مُنْكَرًا اللَّيْلَةَ قَالَ: "وَمَا هُوَ؟" [٣] قَالَتْ: إِنَّهُ شَدِيدٌ قَالَ: "وَمَا هُوَ؟" [٤] قَالَتْ: رَأَيْتُ كَأَنَّ قِطْعَةً مِنْ جَسَدِكَ قُطِعَتْ وَوُضِعَتْ فِي حِجْرِي. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "رَأَيْتِ خَيْرًا، تَلِدُ فَاطِمَةُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ غُلَامًا يَكُونُ فِي حِجْرِكِ".

**ترجمه:** [١] او بي بي ام فضل بنت حارث چې د حضرت عباس زوجه ښځه او د حضور ﷺ دآكابنځه ده ،روايت كوي (چې هغه د حضور ﷺ په خدمت كې يوه ورځ حاضريدو سره اوويل يارسول الله! [٢] نن شپه مايو بيرونكى خوب ليدلى دى رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه هغه څه دى [٣] ام فضل عرض وكړو سخت بيرونكى دى نه خو هغه زه بيانول خوښوم او نه به تاسو هغه اوريدو سره خوښ شي حضور ﷺ ورته وفرمايل ماته خو يي واوروه آخر هغه څه دى [٤] ام فضل اوويل ما وليدل چې ګويا ستاسو د جسم مبارك نه يوه ټكړه پرې شوې ده او خما په غيږ كې اينبودل شوي ده [٥] په دې اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل تا ډير ښه او مبارك خوب ليدلى دى د دې تعبير دادى چې انشاء الله د فاطمې به يوخوى پيدا شي او هغه هلك به ستا په غيږ كې دركول شي (ځكه چې د خاندان په ښځو كې ستا قرابت زيات دى او ته به د هغه هلك زيات په ښه طور سره تربيت وكړې)

**حل اللغات:**- ① حُلُمًا: مَا يَرَاهُ النَّائِمُ: خوب ته وائى (خاص كر چه كله خوب خراب وى، ② مُنْكَرًا: أَيْ: مَهُولًا: ويرونكې او هيبت ناك. ③ إِنَّهُ شَدِيدٌ: أَيْ: صَعْبٌ سَمَاعُهُ: يعنى دومره ويرونكى اوسخت دې چه زه ئى بيانولې نه شم ④ قِطْعَةً: ټكړه، حصه. ⑤ حِجْرِي: أَيِ الْحِضْنِ: حِجْر په كسرې د حاء سره غيږ ته وائى، او په فتحې د حاء سره يعنى حَجْرُ دَ التَّرْبِيَةِ يعنى پاللو په معنى كښې راځى دلته غيږ مراد ده ⑥ تَلِدُ: خيګوى به، پيدا به شي

[١] فَوَلَدَتْ فَاطِمَةُ الْحُسَيْنَ، فَكَانَ فِي حِجْرِي كَمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -. [٢] فَدَخَلْتُ يَوْمًا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَوَضَعْتُهُ فِي حِجْرِهِ، ثُمَّ كَانَتْ مِنِّي الْتِفَاتَةٌ [٣] فَإِذَا عَيْنَا رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تُهْرِيقَانِ الدُّمُوعَ، قَالَتْ: فَقُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي، مَا لَكَ؟ [٤] قَالَ: "أَتَانِي جِبْرِيلُ -

[١] ) اخرجه البيهقي في دلائل النبوة

عَلَيْهِ السَّلَامُ- فَأَخْبَرَنِي أَنَّ أُمَّتِي سَتَقْتُلُ ابْنِي هٰذَا، فَقُلْتُ: هٰذَا؟ قَالَ: نَعَمْ ⑧ وَأَتَانِي بِتُرْبَةٍ مِنْ تُرْبَتِهِ حَمْرَاءَ»".

**ترجمه:** ① نو د فاطمي خوی حسين پيدا شو او څرنګه چې رسول الله ﷺ فرمايلي وه هغه هلك ځما په غيږ کې راکول شو ② بيا يوه ورځ زه رسول الله ﷺ ته ورغلم او حسين د حضور ﷺ په غيږ کې ورکولو سره لږ دويم طرف ته متوجه شوم (او بيا راتاويدو سره چې ما حضور ﷺ طرف ته نظر وکړ) ③ نو څه ګورم چې د رسول الله ﷺ د سترګو مبارکو نه اوښکې جاري دي ام فضل وايي زه ويريدو سره مې خنې پوښتنه وکړه اې د الله نبي! ځما مور وپلار دې په تاسو قربان يې تاسو ته څه وشوه چې ژاړئ ④ حضور ﷺ وفرمايل اوس ماته جبرائيل ﷺ راغلی وو هغه ماته خو دلی دی چې ځما امت يعنی مسلمانانو نه به د بعضو خلقو يوجماعت ځما د خوی ډيرې ظالمانه طريقې سره ډير نزدې قتل کړي ما ډير په حيرت سره پوښتنه وکړه آيا داخوی؟ حضور ﷺ وفرمايل هو داخوی ⑤ بلکه جبرائيل ماته د هغه زمکې د خاورې نه څه خاوره راخستو سره راغلی وو چيرته چې ځما د دې ځګر ټکړې خون وينه به بهيول کيږي او هغه خاوره سرخ سره وه

**حل اللغات:-** ⑦ اِلْتِفَاتَةٌ: أَيْ: وَقْعَتْ مِنِّي مُلَاحَظَةٌ: يعنی زما نظر بل طرف ته لاړو ⑧ -تَهْرِيقَانِ: أَيْ تَسِيلَانِ: يعنی دواړو سترګو اوښکې بهيولې. ⑨ مِنْ تُرْبَتِهِ: أَيْ: مِنْ تُرَابِهِ الَّذِي يُقْتَلُ بِهِ: هغه خاوره په کومه چه به حضرت حسين ﷺ قتل کولې شي. ⑩ حَمْرَاءَ: سره (يعنی هغه خاوره سره وه)

**تسهيلات:**

**قوله:** سَتَقْتُلُ ابْنِي:

**د نبی عليه السلام د پيشنګولي صداقت:** دحضورپاك دا پيشنګونی تکې په تکی تيك شوه اود يزيدپه حکم باندې عبيدالله ابن زياد دمصر نه راغلو اود کوفې ګورنرجوړشو اوهغه په ذاتی شوق او بغض اوعداوت د وجې نه حضرت امام حسين شهيد کړو د هغوی اتياملګری هم هغوی سره په ميدان کربلاکښې شهيدان کړې شو د اسلام په سپين خادرباندې د امام حسين قتل يوبدبنکاريدونکې داغ دې کوم چه د يزيدپه ستې باندې پروت دی

قتل حسين اصل ميں مرگ يزيد ہے اسلام زندہ ہوتا ہے ہر کربلا کے بعد

يعنی دحسين قتل په اصل کښې د يزيد مرګ دې ځکه چه اسلام خوژوندې کيږی دهرې کربلا نه پس

د حضرت امام حسين ﷺ د شهادت نه پس يو هاتف غيبی دا اشعار واورول

مَاذَا تَقُولُونَ إِنْ قَالَ الرَّسُولُ لَكُمْ مَاذَا فَعَلْتُمْ وَأَنْتُمْ آخِرُ الْأُمَمِ

**ترجمه** که چرې تاسونه رسول ﷺ دا سوال اوکړی چه دا تاسو حسين سره څه اوکړ، حالانکه تاسو په بهترين امت کښې وئ

بِعِتْرَتِيْ وَأَوْلَادِيْ بَعْدَ مُفْتَقِدِيْ　　مِنْهُمْ أُسَارَيْ وَمِنْهُمْ ضَرَجُوْا بِدَمِ

**ترجمه** زما دَ وفات نه تاسو زما اهل بيت او زما اولاد سره دا څه اوكړه؟ چه په هغوى كښې خو څه راګيردى او څه په خپلو وينو كښې لت پت پراته دى

**[۶۱۸۱] شهادت حسين او د ابن عباس خوب**

۶۱۸۱-() [۳۰] ۞ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِيمَا يَرَى النَّائِمُ ذَاتَ يَوْمٍ بِنِصْفِ النَّهَارِ، ۞ أَشْعَثَ أَغْبَرَ، بِيَدِهِ قَارُورَةٌ فِيهَا دَمٌ، فَقُلْتُ: بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي، مَا هَذَا؟ ۞ قَالَ: "هَذَا دَمُ الْحُسَيْنِ وَأَصْحَابِهِ، وَلَمْ أَزَلْ أَلْتَقِطُهُ مُنْذُ الْيَوْمِ" فَأُحْصِي ذَلِكَ الْوَقْتَ فَأُجِدُ قُتِلَ ذَلِكَ الْوَقْتِ. رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي "دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ" وَأَحْمَدُ الْأَخِيرَ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت ابن عباس نه روايت دى د هغوئ بيان دى يوه ورځ په غرمه كې مې رسول الله ﷺ داسې اوليدلو لكه څوك اوده چې څوك وينې (يعنى په خوب كې مې اوليدلو) ۞ چې د حضور ﷺ ويښته مبارك پريشانه او ګرد آلود دي او د حضور ﷺ په لاس مبارك كې يوبوتل دى چې د وينو نه ډك دى ماعرض وكړو څما مور پلار دې په تاسو قربان وي داڅه دي يعنى څه حادثه پيښه شوي ده چې تاسو دومره پريشانه حاله او ګرد آلود يئ او يوبوتل د ويني خون نه ډك دى ۞ حضور ﷺ وفرمايل دا د حسين او د هغه د ملګرو وينه ده چې زه يې نن قتل ګاهِ حسين نه دسهار نه تراوسه پورې په يوه بوتل كې جمع كوم حضرت ابن عباس وايي چې د دې خوب نه وروسته زما سترګي راوغړيدى ۞ او بيا مې د وخت ياد ساتى كوم وخت چې ما داخوب ليدلى وو (هركله چې د قتلِ حسين خبر راغې نو ماوليدل چې د شهادتِ حسين الميه په هغه ورځ او هغه وخت پيښه شوي وه هركله چې ما مذكوره خوب ليدلى وو دا دواړه روايتونه بيهقي دلائل النبوت كې او دا دويم روايت احمد هم نقل كړى دى.

**حل اللغات:-** ① أَشْعَثَ: ددې جمع شُعْثَاءُ، وَهُوَ الْمُتَفَرِّقُ مِنَ الشَّعْرِ: سربيرويښتو والا انسان ته وائى ② أَغْبَرَ: ددې جمع غُبْرًا ده، وَهُوَ الَّذِي الْتَصَقَ الْغُبَارُ بِأَعْضَائِهِ: ګرد جن چه په اندامونو نې خاورې دورې لګيدلي وى ③ قَارُورَةٌ: شيشه، بوتل ④ أَلْتَقِطُهُ: زه اچوم دا وينه (دا د حضور كلام دې كوم چه په خوب كښې شوې دې) ⑤ فَأُحْصِي: أَيْ: حَفِظَ تَارِيخَ ذَلِكَ الْوَقْتِ: يعنى ما دغه وخت ياد اوساتلو، كوم وخت چې ما خوب ليدلې وو) ⑥ فَأُجِدُ: د مضارع صيغه نې راوړې ده دې د پاره چه په دې سره يو عجيبه او حيرانونكې كيفيت مخې ته راشى (أَيْ: فَوَجَدْتُهُ: يعنى ما اوموندله دا حادثه خاص په هغه وخت كله چه ما داخوب ليدلې وو)

[1] اخرجه احمد في المسند: ۲٤۲/۱

**تسهيلات:**

**قوله: فَأُحْصِي ذَلِكَ الْوَقْتَ:**

**دشهادت حسين باره كښې دابن عباس خوب ليدل:** دادَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما كلام دي هغوى فرمائى چه كوم وخت ماخوب اوليدلو دَهغې تاريخ ما ياداوساتلو بيا چه كله دَ امام حسين دَشهادت خبر راغلو نومعلومه شوه چه هم په هغه تاريخ باندې هغه شهيد كړې شوې وو كوم وخت چه ما خوب ليدلې وو.

**[٦١٨٢] اهل بيتو سره د نبى عليه السلام په وجه محبت ساتل**

۶۱۸۲-(۱)[۳۸] [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «أَحِبُّوا اللَّهَ لِمَا يَغْذُوكُمْ مِنْ نِعَمِهِ، [۳] فَأَحِبُّونِي لِحُبِّ اللَّهِ، وَأَحِبُّوا أَهْلَ بَيْتِي لِحُبِّي» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] تاسو د الله سره محبت ساتئ خكه چې هغه تاسو ته خپل نعمتونو نه رزق رسوي او ستاسو پرورش كوي [۳] او په دې بناء تاسو د رسول الله ﷺ سره محبت لرئ او خما اهل بيت خما د محبت په وجه عزيز او محبوب لرئ (ترمذي)

**حل اللغات:**- ① أَحِبُّوا اللَّهَ: محبت كوئ د الله تعالى سره، ② يَغْذُوكُمْ: أَيْ يَرْزُقُكُمْ: هغه تاسو ته رزق دركوي ③ لِحُبِّ اللَّهِ: يعنى دَ الله تعالى سره دَمحبت په بنياد باندې ماسره محبت ساتئ خكه چه زه دَهغه رسول يم ④ أَهْلَ بَيْتِي: او زما دَ محبت دَ وجې نه زما اهل بيت سره محبت ساتئ خكه چه زه ستاسو رسول يم

**تسهيلات: نوټ:** په حديث كښې د ګرانولغاتوحل شوې دې باقى مضمون آسان دې

**[٦١٨٣] د اهل بيت تشبيه د نوح عليه السلام كشتى سره**

۶۱۸۳-(۲)[۳۹] [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّهُ قَالَ وَهُوَ آخِذٌ بِبَابِ الْكَعْبَةِ: [۲] «سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "[۳] أَلَا إِنَّ مِثْلَ أَهْلِ بَيْتِي فِيكُمْ مِثْلُ سَفِينَةِ نُوحٍ، مَنْ رَكِبَهَا نَجَا، وَمَنْ تَخَلَّفَ عَنْهَا هَلَكَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوذر رضي الله عنه نه روايت دى چې يوه ورځ هغه د كعبې دروازه نيولو سره دابيان وكړو [۲] ما د رسول الله ﷺ نه دا واوريدل [۳] يادلرئ ستاسو په حق كې خما د اهل بيتو هغه اهميت دى كوم چې دنوح عليه السلام د كشتۍ دې چې ځوك د نوح كشتۍ كې سور شو هغه نجات خلاصون پيداكى او كوم سرى چې هغه په كشتۍ كې سوريدو نه پاتې شو هغه هلاك شو (احمد)

---

[۱] ) اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۷۸۹

[۲] ) لم اجده

**حل اللغات:-** ①سَفِینَة: کشتئ، ②نَجَا: نجات یعنی خلاصون ئې بیاموندلو، ③تَخَلَّفَ: روسته پاتې شو، په کشتئ کښې د سوریدو نه روسته پاتې شو،

**تسهیلات:**

**قوله: مِثْلُ سَفِینَةِ نُوحٍ:**

**داهل بیتو د نوح علیه السلام کشتئ سره د تشبیه وجه:** دَ اهل بیت تشبیه دَ نوح علیه السلام کشتئ سره ځکه ورکړې شوې ده چه دَحضرت نوح علیه السلام کشتئ خپلې ټولې سورلئ دَ الله تعالی په حکم سره بچ یوړلې او دکشتئ مخالفین ټول غرق شو دلته هم چه کوم خلق اهل بیت سره عقیدت لرې هغوی به بچ شی اوځوك چه دَعقیدت په دې کشتئ کښې نه کینی هغه به غرق کیږی

**د اهل بیت سره محبت او تعلق مطلب:** لیکن دلته دَ اهل بیت سره دَمحبت اوتعلق لرلو مطلب دادې چه دَدین اسلام دَحکم مطابق تعلق وی دَخپلو خواهشاتو مطابق تعلق نه وی لکه چه دَ شیعه ګانو محبت دې چه په حقیقت کښې محبت اوعقیدت نه دې بلکه یو قسم عداوت دې. دَ پوره شریعت نه ئې انکاراوکړو اودَ اهل بیت محبت ئې ددې دَپاره ډهال جوړ کړو

**کشتئ دپاره د رڼړا ضرورت:** حضورپاك دَ اهل بیت تشبیه کشتئ دَ نوح سره ورکړې ده اودَ صحابه کرامو تشبیه ئې دَ آسمان ستوروسره ورکړې ده په دې کښې اشاره ده چه کشتئ به هله په صحیح رخ باندې ځی کله چه دَ ستورو نه رهنمائی حاصله کړې شی یعنی اهل بیت او صحابه کرامودواړو سره محبت اولری

**د تبلیغیانو غلطه تشبیه:** بل طرف ته تبیلغ والاهم وائی چه زمونږ جماعت کشتئ نوح ده ځوك چه دې کښې راغلو بچ شو ګنی غرق شو دَدوی دا وینا غلطه ده ځکه چه دوی پخپله کشتئ نوح جوړنه شو کوم یوقرآن او حدیث دوی ته کشتئ نوح وئیلې دې؟ داخو صرف دَهغوی خواهشات دی اوبې خایه خپل تعریفات دی حقیقت څه بل څه دې

**دحدیث وضاحت د ملا علی قاری په خط:** دَملاعلی قاری رحمه الله یو څو الفاظ هم اوګورئ چه دَدې حدیث په تشریح کښې هغه لیکلی دی

"وَتَوْضِيحُهُ أَنَّ مَنْ لَمْ يَدْخُلِ السَّفِينَةَ كَالْخَوَارِجِ هَلَكَ مَعَ الْهَالِكِينَ فِي أَوَّلِ وَهْلَةٍ وَمَنْ دَخَلَهَا وَلَمْ يَهْتَدِ بِنُجُومِ الصَّحَابَةِ كَالرَّوَافِضِ ضَلَّ وَوَقَعَ فِي ظُلُمَاتٍ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِنْهَا" یعنی دَدې حدیث وضاحت دادې چه کوم خلق په دې کشتئ کښې کینه ناستل هغه هلاك شو؟ لیکن کوم خلق چه دَاهل بیت په کشتئ کښې کیناستل مګر دَصحابه کرامو دَ ستورونه ئې رهنمائی حاصله نه کړه نوهغوی هم په داسې تیارو کښې ډوب شو چه وتل ئې ممکن نه دی

# [۲۱] باب مناقب ازواج النبي ﷺ

## د نبي ﷺ د ازواج مطهراتو د مناقبو بيان

**خلاصة الباب**

**فيه اثناعشر حديثاً مشتملة على اربع مسائل**

① فضيلة خديجة رضي الله عنها: ۱، ۲، ۳، ۷.

② فضيلة عائشة رضي الله عنها: ۴، ۵، ۶، ۸، ۱۱، ۱۲.

③ فضيلة صفية رضي الله عنها: ۹.

④ فضيلة مريم رضي الله عنها: ۱۰. أوردها إما إصالة على توجيه واحد أو طرداً على توجيه آخر

**د ازواج مطهرات دپاره د جدا باب دانعقاد وجه:** ازواج مطهرات بيت سکنی قسم اهل بيت کښې داخل دی صاحب مشکوة د مناقب اهل بيت نه پس په مستقل باب کښې د ازواج مطهرات ذکر کړې دې ددې مطلب دانه دې چه ازواج مطهرات د اهل بيت څخه خارج دی د اهل بيت رومبې مصداق خو ازواج مطهرات دی ليکن دازواج دمناقب سلسله لږه شان اوږده وه جدا احاديث وو په دې وجه صاحب مشکوة په اهتمام سره د جدا عنوان لاندې دهغې ذکر اوکړو

**په اسلام کښې د ښځوه حقوقو وجه:** رسول الله ﷺ خو ودونه کړی وو او خپل امت ته ئې د څلورو ودونو اجازت ورکړې دې لهذا په دې امت کښې د ښځو د حقوق وضاحت اوددې اهتمام د نورو امتونو نه زيات دې حضرت عيسی ﷺ واده نه ووکړې لهذا دهغوی په مذهب کښې د ښځودحقوق هغه تفصيل نه شی ملاويدې کوم تفصيل چه د حضورپاك په امت کښې ملاويدې شی

**د نبی عليه السلام د بيبيانو شمار:** د حضورپاك د ټولو بيبيانو شمير يوولس وو اودحضورپاك د وفات په وخت نهه بيبيانې موجود وې دحضورپاك ټولې بيبيانې يوولس وې دهغوی نومونه دادی

① حضرت خديجه ﷺ دې سره دحضورپاك نکاح په مکه مکرمه کښې شوې وه د هجرت نبوی نه درې کاله وړاند هم په مکه کښې وفات شوې

② حضرت سوده ﷺ دې سره دحضورپاك نکاح په مکه کښې شوې وه ۵۴هجری کښې د دې انتقال شوې

③ حضرت عائشه ﷺ په لسم هجری کال دې سره دحضورپاك نکاح په مکه کښې شوې وه او په مدينه کښې په اول هجری کښې رخصتی شوې ۵۷هجری کښې ددې انتقال په مدينه منوره کښې شوې حضرت عائشه ﷺ د سيدنا حضرت ابوبکر صديق ﷺ لور وه

④ حضرت حفصه رضي الله عنها سره دَحضورپاك نكاح ۳هجري كښې مدينه كښې شوې او ۴۵ هجري كښې دَدې انتقال شوې

⑤ حضرت زينب بنت خزيمه رضي الله عنها دې سره دَحضورپاك نكاح په ۳هجري كښې اوشوه او يوځومياشتې پس دَدې انتقال اوشو

⑥ حضرت ام سلمه رضي الله عنها دې سره دَحضورپاك نكاح ۴هجري كښې شوې اودَ حضرت ام سلمه رضي الله عنها انتقال ۵۹هجري كښې شوې اودَ يوقول مطابق ۶۲هجري كښې شوې

⑦ حضرت زينب بنت جحش رضي الله عنها دې سره دَحضورپاك نكاح ۵هجري كښې شوې اودَدې انتقال ۲۰هجري كښې شوې

⑧ حضرت ام حبيبه بنت ابي سفيان رضي الله عنها دې سره دَ حضورپاك نكاح دَ حبشه نجاشي بادشاه په ذريعه شوې. نجاشي څلور زره درهم وركولو سره نكاح اوكړه ۴۴هجري كښې دَ ام حبيبه رضي الله عنها په مدينه كښې انتقال شوې

⑨ حضرت جويريه رضي الله عنها په غزوه بني المصطلق كښې قيد كيدوسره راغله په ۶هجري كښې دا غزوه شوې. حضورپاك دا آزاده كړه او په ۶هجري كښې دې سره نكاح اوكړه دَدې دَ خاندان په سوونوخلق غلامان وو صحابه كرامو ټول آزاد كړل چه دَحضورپاك دَ سخرګنئ خلق جوړشوى دى په ۵۶هجري كښې دَحضرت جويريه رضي الله عنها انتقال شوې

⑩ حضرت ميمونه رضي الله عنها دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما ترور وه په ۷هجري كښې دې سره دَحضورپاك نكاح شوې. مكې اومدينې مينځ كښې وادي فاطمه سره مقام سرف كښې نكاح اوشوه هم په دې خائى كښې شب زفاف اوشو اوهم په دغه خائى ۶۱هجري كښې دَهغې انتقال اوشو هم په دغه خائى دَ سړك په غاړه دَهغې قبر جوړدې په كال ۲۰۱۴ كښې چې حج ته تلې ووم نو د دوى قبر مو ليدلې وو

⑩ حضرت صفيه بنت حيي بن اخطب رضي الله عنها ۷هجري كښې غزوه خيبر كښې قيد شوه حضورپاك هغه آزاده كړه اوبيائى هغې سره دَخيبرنه په واپسئ په لار كښې نكاح اوكړه ۵۲هجري كښې دَهغې انتقال اوشو په دې يولسو ازواج مطهرات كښې صرف دوه يعني خديجة الكبرىٰ رضي الله عنها او زينب بنت خزيمه رضي الله عنها انتقال دَحضورپاك په موجودګئ كښې شوې دَ باقي نهوانتقال دَحضورپاك دَانتقال نه پس شوې

**د نبي كريم صلى الله عليه وسلم وينځې:** دَازواج مطهرات نه علاوه دَحضورپاك څلور وينځې هم وې په دوى كښې دَ يوې نوم حضرت ماريه قبطيه وه دَدويمې نوم حضرت ريحانه وو او دوه نورې وې

د كثرت ازواجو بحث د منهاج څخه نقل كول دى

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [٦١٨٤] دامت محمدی غوره میرمن خدیجة الکبرٰی

٦١٨٣ - ( ) [١] ① عَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② «خَيْرُ نِسَائِهَا مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ، وَخَيْرُ نِسَائِهَا خَدِيجَةُ بِنْتُ خُوَيْلِدٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
③ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ أَبُو كُرَيْبٍ: وَأَشَارَ وَكِيعٌ إِلَى السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ.

**ترجمه:** ① حضرت علي ﷺ وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ② چې وئيلې مريم بنت عمران دخپلې زماني اودخلقو د ټولو نه ښه ښځه ده او خديجه بنت خويلد په دي امت کې د ټولو نه ښه ښځه ده (بخاري مسلم) ③ او په يوه روايت کې ابو کريب دابيان وکړو چې حضرت وکيع چې دحفاظ حديث نه دی او د امام مالك او د هغوی هم عصرو هم پله دی آسمان او زمکې طرف ته اشاره کولو سره يي وښودل چې د دې حديث مطابق دا دواړه ښځې خپلو خپلو امتونو کې د ټولې د ښځو نه اشرفې او افضلې دي

**تسهیلات:**

**قوله:** خَيْرُ نِسَائِهَا مَرْيَمُ:

**اشکال:** دلته په مضاف اليه کښې دَمؤنث ضميردې دکوم مرجع چه مخکښې نشته دی نودا اضمار قبل الذکردې.

**داشکال دوه جوابونه:** ① دَملاعلی قاری ﷫ دکلام نه دَدې دوه جوابونه معلوميږی دا ضيمر دَ دنياطرف ته راجع اودنيادَدې الفاظونه ده دکوم طرف ته چه اضمارقبل الذکرجائز دې نواصل عبارت داسې دې "خيرنساءالدنيااي في زمانهامريم" دَ خپل زمانې په ښځوکښې حضرت مريم دَ ټولوښځونه افضل وه

② ملا علی قاری ﷫ فرمائی "خيرنسائها" خبرمقدم دې اومريم مبتداء مؤخرده اصل عبارت داسې دې "مريم خيرنساءزمانها" دغه شان اضمار قبل الذکراعتراض ختم شو

ملاعلی قاری ﷫ داخوښ کړې دې په دې سره هغه سوال هم ختم شوچه حضرت مريم له دَ ټولې دنيا په ښځوباندې فضيلت ورکړې شو نود حضرت خديجة الکبری ﷞ فضيلت چرته لاړو؟ ځکه چه کله دخپلې خپلې زمانې دَ فضيلت خبره شوه نوځه اعتراض پاتې نه شو

**د دوې ميرمنو په افضليت کښې د تطبيق صورت:** ملاعلی قاری ﷫ دَ دغه بيبيانو په مينځ

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب {وإذ قالت الملائكة يا مريم إن الله اصطفاك وطهرك واصطفاك على نساء العالمين... (رقم ٣٤٣٢) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم باب فضائل خديجة أم المؤمنين رضي الله تعالى عنها (رقم ٦٩ - (٢٤٣٠) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فضل خديجة رضي الله عنها (رقم ٣٨٧٧)

کښې دَ فضیلت فیصله په یو روایت سره هم کړې ده هغه روایت دا دې "خَدِيجَةُ خَيْرُ نِسَاءِ عَالَمِهَا وَمَرْيَمُ خَيْرُ نِسَاءِ عَالَمِهَا وَفَاطِمَةُ خَيْرُ نِسَاءِ عَالَمِهَا" (ترمذی ونسائی مرسلاً) یعنی خدیجه رضي الله عنها په خپله زمانه کښې دَ ټولو ښځو نه بهتره وه، مریم بی بی خپله زمانه کښې دَ ټولو ښځونه بهتره وه اوفاطمه رضي الله عنها دَ خپلې زمانې په ښځو کښې دَ ټولو نه بهتره وه

**قوله**: وَأَشَارَ وَكِيعٌ إِلَى السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ:

**د اشکال ختمولو ته اشاره**: په دې سره راوی هم دَ دغه اشکال لرې کولو طرف ته اشاره کړې ده چه وکیع دَ آسمان اوزمکې طرف ته اشاره اوکړه چه دا ضمیر آسمان اوزمکه یعنی دَ دنیا او زمانې طرف ته راګرځی.

**[۵۸۸۶] خدیجې رضی الله عنها ته د الله تعالی او جبریل علیه السلام سلام**

۵۸۸۶-() [۶] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «أَتَى جِبْرِيلُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- هَذِهِ خَدِيجَةُ قَدْ أَتَتْ مَعَهَا إِنَاءٌ فِيهِ إِدَامٌ أَوْ طَعَامٌ ③ فَإِذَا أَتَتْكَ فَاقْرَأْ عَلَيْهَا السَّلَامَ مِنْ رَبِّهَا وَمِنِّي، ④ وَبَشِّرْهَا بِبَيْتٍ فِي الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ، ⑤ لَا صَخَبَ فِيهِ وَلَا نَصَبَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه**: ① او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وايي چې حضرت جبرائیل رسول الله ﷺ ته راغې ② او هغه اووېل یارسول الله! اوس خدیجه مکې نه روانیدو سره غارِ حرا ته راځي هغه سره یو لوښی دی چې په هغه کښې سالن او روټۍ ده یا طعام دی ③ هرکله چې هغه تاسو ته راورسیږي نو تاسو د هغه د پروردګار د طرف او زما د طرف نه هم هغه ته سلام اووائي ④ او هغه ته په جنت کښې د یو محل خوشخبري واوروي چې دګول ملغلري دی ⑤ او په هغه محل کښې نه شور شته نه تکلیف او تکان. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ① إِدَامٌ: سالن. اینګلې. ② قَصَبٍ: أَيْ لُؤْلُؤٍ مُجَوَّفٍ: یعنی دَ لونی شان والا محل زیرې ورکړه چه دګول اوخولدار ملغرې نه به جوړوی ③ لَا صَخَبَ: لا د نفی جنس ده. صخب چغې سورې اوشور زوګ ته وانی ④ لَا نَصَبَ: تعب اوتکان ته نصب وانی دا څیزونه به هلته نه وی

**تسهیلات**:

**نوټ**: په حدیث کښې د ګرانولغاتوحل شوې دې باقی مضمون آسان دې

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب تزویج النبی صلی الله علیه وسلم خدیجة وفضلها رضی الله عنها (رقم-۳۸۲۰) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب فضائل خدیجة أم المؤمنین رضی الله تعالی عنها (رقم-۷۱ - ۲۴۳۲) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فضل خدیجة رضی الله عنها (رقم-۳۸۷۶) واحمد فی المسند: ۲۳۱/۲

## [٦١٨٦] د خديجي رضي الله عنها خصوصات

٦١٨٦-( ) [٣] [١] «وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: مَا غِرْتُ عَلَى أَحَدٍ مِنْ نِسَاءِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا غِرْتُ عَلَى خَدِيجَةَ [٢] وَمَا رَأَيْتُهَا، وَلَكِنْ كَانَ يُكْثِرُ ذِكْرَهَا، [٣] وَرُبَّمَا ذَبَحَ الشَّاةَ ثُمَّ يُقَطِّعُهَا أَعْضَاءً، ثُمَّ يَبْعَثُهَا فِي صَدَائِقِ خَدِيجَةَ، [٤] فَرُبَّمَا قُلْتُ لَهُ: كَأَنَّهُ لَمْ تَكُنْ فِي الدُّنْيَا امْرَأَةٌ إِلَّا خَدِيجَةُ، [٥] فَيَقُولُ: "إِنَّهَا كَانَتْ، وَكَانَتْ، وَكَانَ لِي مِنْهَا وَلَدٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي د رسول الله ﷺ بيبيانو کې چې څومره غيرت او رشك ما بي بي خديجي رضي الله عنها سره کوي دومره مي بل هيڅ بي بي سره نه کوي [٢] حالانکه ما بي بي خديجه ليدلي هم نه وه البته حضور ﷺ به هغه ډيره يادوله [٣] اکثره به داسې کيدل چې حضور ﷺ به بزه (چيلۍ) ذبحه کړه او هغه به يې ټکړې ټکړې کړه نو بيا به يې هغه غوښه هغه ښځو ته ليږله چې د بي بي خديجي ملګري به وې [٤] اکثره وختونو کې به ما حضور ﷺ ته وئيل چې تاسو خو د بي بي خديجي په حقله دومره محبت کوی لکه چې په دنيا کې يوي خديجي نه علاوه دومره خو بيووالا بله ښځه هيڅکله نشته [٥] حضور ﷺ به خما د دې خبري په جواب کې فرمايل هغه خو واقعي داسې وه او داسې وه او بيا خما اولاد هم د هغې نه وو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① مَا غِرْتُ: دَ غيرت حميت او ذلت دکارونونه دَانکار په معنى کښې دې ② يُقَطِّعُهَا: أَيْ يُكْثِرُ قَطْعَهَا: ټکړې ټکړې به ئې کړه، ③ صَدَائِق: د صَدِيقَة جمع ده، محبوبه او ملګرې ته وائی ④ وُلْدٌ: دا د وَلَد جمع ده، اولاد ته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا غِرْتُ عَلَى خَدِيجَةَ:

**د کلمه ،،ما،، نوعيت:** په اول جمله کښې چه کوم لفظ "ما" دې هغه دَنفی په معنی کښې دې او دويمه جمله کښې "ما" موصوله يا مصدريه دې. "اي ما غرت مثل الذي غرتها او مثل غيرتي عليها"

**قوله:** إِنَّهَا كَانَتْ وَكَانَتْ:

**د مذکوره جملې مطلب:** يعنی خديجه رضي الله عنها هم داسې وه دَهغې به څه وايئی ته چه څه وايئی خديجه رضي الله عنها هم دغه شان وه حضورپاك داجمله دَ تاکيد دَپاره دوباره راوړی "اي کانت صوّامة قوّامة محسنة مشفقة"

[١] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب تزويج النبی صلی الله عليه وسلم خديجة وفضلها رضی الله عنها (رقم-٣٨١٨) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب فضائل خديجة أم المؤمنين رضی الله تعالی عنها (رقم-٧٥ (٢٤٣٥) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فضل خديجة رضی الله عنها (رقم-٣٨٧٥) وابن ماجه فی کتاب النکاح/ الغيرة (رقم-١٩٩٧)

**قوله:** مِنْهَا وُلْدٌ:

**د خدیجې څخه د نبی علیه السلام اولاد:** په دې جمله کښې په نفسیاتی انداز کښې حضورپاك حضرت عائشه رضی الله عنها ته جواب ورکړې دې چه څه هم وی د خدیجه رضی الله عنها څخه زما اولاد دې ستا خو یوبچې هم نشته دې دحضورپاك ټول اولاد د حضرت خدیجه رضی الله عنها څخه وو

**[۶۱۸۷] پر عائشې رضی الله عنها د جبریل علیه السلام سلام**

۶۱۸۷-( )[۳][۱]وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: [۲]قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «يَا عَائِشَةُ! هَذَا جِبْرِيلُ يُقْرِئُكِ السَّلَامَ". [۳]قَالَتْ: وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ، [۴]قَالَتْ: وَهُوَ يَرَى مَا لَا أَرَى». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت ابوسلمه تابعي نه روایت دی ام المؤمنین بي بي عائشې صدیقې رضی الله عنها اوویل [۲]یوه ورځ ماته رسول الله ﷺ وفرمایل اې عائشې دا جبرائیل دی دلته خمخې ته دی په تاسلام وایي[۳] عائشې رضی الله عنها د هغه سلام جواب کې اوویل وعلیه السلام ورحمة الله او په جبرائیل علیه السلام دی هم د الله سلامتي او رحمت نازل وي[۴] بي بي عائشه رضی الله عنها وایي حضور ﷺ هغه یعنی جبرائیل لیدی او ما هغه نه لیدی (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① هُوَيَرَى: یعنی حضوراکرم ﷺ هغه څه وینی چه زه نې نه شم لیدلې

**تسهیلات: قوله:** هَذَا جِبْرِيلُ يُقْرِئُكِ السَّلَامَ:

**پر عائشه رضی الله عنها د جبریل علیه السلام براه راست سلام:** حضورپاك د دې سلام د رسولو واسطه جوړ شو دا جدا مصلحت دې او حضرت جبرائیل علیه السلام د سلام کولو الا جوړ شو دا جدا فضیلت دې حضرت خدیجه رضی الله عنها ته جبرائیل سلام پخپله اونه کړو بلکه پیغمبر نې ورکړو او حضرت عائشه رضی الله عنها ته نې پخپله سلام اوکړو ښکاره هم دغه ده چه د الله تعالی د طرف نه به جبرائیل امین ته د سلام کولو حکم ملاؤ شوې وی د دې نه اندازه لګولې شی چه د حضرت عائشه رضی الله عنها څومره اوچت مقام دې

**[۶۱۸۸] د واده څخه وړاندې عائشې رضی الله عنها لره په خوب کښې لیدل**

۶۱۸۸-( )[د][۱]«وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "أُرِيتُكِ فِي الْمَنَامِ ثَلَاثَ لَيَالٍ، [۲]يَجِيءُ بِكِ الْمَلَكُ فِي سَرَقَةٍ مِنْ حَرِيرٍ، [۳]فَقَالَ لِي: هَذِهِ امْرَأَتُكَ، [۴]فَكَشَفْتُ عَنْ وَجْهِكِ

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب فضل عائشة رضی الله عنها (رقم ۳۷۶۸) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب في فضل عائشة رضی الله تعالی عنها (رقم ۹۱ (۲۴۴۷) والترمذی في كتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب من فضل عائشة رضی الله عنها (رقم ۳۸۸۱) والنسائی في كتاب عشرة النساء/باب حب الرجل بعض نسائه أكثر من بعض (رقم-۳۹۵۳)

[2] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب تزويج النبی صلی الله علیه وسلم عائشة. وقدومها المدينة. وبنائه بها (رقم ۳۸۹۵) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب في فضل عائشة رضی الله تعالی عنها (رقم-۷۹ - (۲۴۳۸)

الثَّوْبَ، فَإِذَا أَنْتِ هِيَ، ۞ فَقُلْتُ: إِنْ يَكُنْ هَذَا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ يُمْضِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۞ او بي بي عائشه ﷺ يوه ورځ ماته وفرمايل دري شپې مسلسل ته ماته په خوب كې راوستل شوي ۞ د هغه صورت دا وو چې يوي فرشتې به ډيري شانداري كپړه كې ستا تصوير څما مخې ته راوستي ۞ او ماته به يې ونيل دا تصوير ستا د كيدونكې ښځې دى ۞ او هركله چې به ما د هغه تصوير پرده اوچتولو سره ستا مخ ليدى نو هو بهوبه ستا مخ وو ۞ بيا به ما د هغه فرشتې په جواب كې ونيل كه دا خوب د الله د طرف نه وى نو هغه به خپله داپوره كوي (يعنى دا معامله به تكميل ته هم هغه ورسوي او دي ښځې سره به څما د نكاح اسباب پيدا كړي) (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① خِرْقَةٍ: أَيْ قِطْعَةٍ: د كپړې يوه ټكړه، ② يُمْضِهِ: دا د إِمْضَاء نه دى، أَيْ يُنْفِذْهُ: پوره به ني كړى، (زما په نكاح كښې به ني راولى)

**تسهيلات: قوله:** فَإِذَا أَنْتِ هِيَ:

**دعائشي رضي الله عنها تصوير ليدل:** يعنى يوتصويرماته په ريښمى كپړا كښې راوړلې شو اوخودلې شو. ماچه كله كپړا كولاؤ كړه نوهغه تصويرهم ستا وو.

### [٦١٨٩] د ډالودپاره د عائشي ﷺ د نوبت انتظار كول

٦١٨٩ - (٦)[١] ۞ وَعَنْهَا، قَالَتْ: ۞ «إِنَّ النَّاسَ كَانُوا يَتَحَرَّوْنَ بِهَدَايَاهُمْ يَوْمَ عَائِشَةَ، ۞ يَبْتَغُونَ بِذَلِكَ مَرْضَاةَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -» ۞ وَقَالَتْ: إِنَّ نِسَاءَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كُنَّ حِزْبَيْنِ: ۞ فَحِزْبٌ فِيهِ عَائِشَةُ وَحَفْصَةُ وَصَفِيَّةُ وَسَوْدَةُ، ۞ وَالْحِزْبُ الْآخَرُ أُمُّ سَلَمَةَ وَسَائِرُ نِسَاءِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

**ترجمه:** ۞ او بي بي عائشه ﷺ بيان كوي ۞ خلقو به دي خبري ته ترجيح وركوله چې هغوئ خپلې هديې او تحفې په هغه ورځ پيش كړي هركله چې دبي بي عائشې ﷺ دنمبر ورځ وي (يعنى د حضور ﷺ په خدمت كې هديې او تحائف تحفې راوړونكو به د هغه ورځې انتظار كوئ په كومه ورځ چې به حضور ﷺ ما سره تشريف فرماوو) ۞ او دې نه د هغوئ مقصد صرف د رسول الله ﷺ زيات نه زيات رضا او خوشنودي حاصلول وو ۞ بي بي عائشه ﷺ وايي د حضور ﷺ بيبياني دوو ډلو كې تقسيم وي او په هغه كې هريوتولي يوشان مزاج يوشان رايه او يوشان طرز معاشرت او اختلاط لرونكو بيبيانو باندې مشتمل وو ۞ يوتولي خو هغه وه چې په هغه كې عائشه ﷺ حفصه صفيه او سوده وي ۞ او دويم تولي هغه وو چې په هغه كې ام سلمه او د رسول الله ﷺ باقي تولي بيبياني وي

[1] اخرجه البخاري في كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب من أهدى إلى صاحبه وتحرى بعض نسائه دون بعض (رقم-٢٥٨١) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب في فضل عائشة رضى الله تعالى عنها (رقم-٨٢ - ٢٤٤١) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب من فضل عائشة رضى الله عنها (رقم-٣٨٧٩)

**حل اللغات:-** ① يَحَرَّوْنَ: دا د تَحَرِّي نه دي، بِمَعْنَى الْلَّايِقِ، الْأَحَقِّ وَالْأَوْلَى: لائق او حقدار ته وانې ② حِزْبَيْنِ: د حزب تثنيه ده، أَيْ: طَائِفَتَيْنِ: دوه ډلې

① فَكَلَّمَ حِزْبُ أُمِّ سَلَمَةَ، فَقُلْنَ لَهَا: ② كَلِّمِي رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُكَلِّمُ النَّاسَ ③ فَيَقُولُ: مَنْ أَرَادَ أَنْ يُهْدِيَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَلْيُهْدِهِ إِلَيْهِ حَيْثُ كَانَ. ④ فَكَلَّمَتْهُ، فَقَالَ لَهَا: "لَا تُؤْذِينِي فِي عَائِشَةَ؟ ⑤ فَإِنَّ الْوَحْيَ لَمْ يَأْتِنِي وَأَنَا فِي ثَوْبِ امْرَأَةٍ إِلَّا عَائِشَةَ". ⑥ قَالَتْ: أَتُوبُ إِلَى اللّٰهِ مِنْ أَذَاكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ!

**ترجمه:** ① نو دام سلمه ؓ ډلې يوه ورځ ام سلمه سره خبري وکړې ② او ورته يې اوويل چې ته رسول الله ﷺ ته عرض وکړه ③ چې تاسو خلقوته دا وفرمايې که څه هديه او تحفه پيش کول وي نو هغوئ دي دعائشي د نمبر د ورځې تخصيص نه کوي بلکه پيش کوي دي که تاسو کوم ځاي کې يې (خواه هغه دعائشي کور وي يا د بلې بي بي چې د عائشې ؓ او نورو بيبيانو په منځ کې هغه امتياز لرې شی چې د هغه سره هغه بيبيانو ته غيرت محسوس کيږي) ④ بي بي ام سلمه په دې باره کې حضور ﷺ سره خبره وکړه نو حضور ﷺ ورته وفرمايل ته ماته د عائشې ؓ په باره کې تکليف مه رسوه ⑤ ته شايد نه پوهيږې چې هغه وخت ماته وحي نه راځي کله چې زه د يوبلې بي بي لحاف يا څادر کې يم ماسوا د عائشې ؓ نه ⑥ په دې اوريدو سره بي بي ام سلمه ؓ اوويل يارسول الله: زه د الله په حضور کې دې خبرې نه توبه کاږم چې تاسو ته تکليف ورسوم يا د څه داسې کار اراده وکړم چې تاسو ته د تکليف رسولو باعث وي

① ثُمَّ إِنَّهُنَّ دَعَوْنَ فَاطِمَةَ فَأَرْسَلْنَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② فَكَلَّمَتْهُ، فَقَالَ: "يَا بُنَيَّةُ! أَلَا تُحِبِّينَ مَا أُحِبُّ؟". ③ قَالَتْ: بَلَى. قَالَ: "فَأَحِبِّي هَذِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ④ وَذَكَرَ حَدِيثُ أَنَسٍ "فَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ" فِي بَابِ "بَدْءِ الْخَلْقِ" بِرِوَايَةِ أَبِي مُوسَى.

**ترجمه:** ① بيا د ام سلمه د ډلې ښځو فاطمه راوغوښتله او هغه يې د رسول الله ﷺ په خدمت کې وليږله چې په دې باره کې هغه حضور ﷺ سره خبري وکړي ② نو فاطمې ؓ په دې باره کې حضور ﷺ سره خبره وکړه (او کيدی شي چې هغه ددې خبرې نه ناخبره وه چې دې نه مخکې ام سلمه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضره شوې ده او حضور ﷺ هغه ته کومو الفاظو کې جواب ورکړی دی) بهرحال حضور ﷺ د فاطمې ؓ خبرې اوريدو سره هغه ته وفرمايل اې ځما لورې! آيا ته هغه چاسره محبت نه ساتې چاسره چې زه محبت ساتم ③ فاطمې ؓ اوويل ولې نه يقيناً زه هرهغه ذات سره محبت ساتم او ساتم به د چاسره چې تاسو محبت ساتئ حضور ﷺ ورته وفرمايل بيا ته عائشې ؓ سره محبت ساته او د څه داسې خبرې ذکر مه کوه چې هغه عائشې ؓ ته ناخوښه وي. (بخاري مسلم) ④ او د حضرت انس روايت کرده حديث: **فضل عائشة على النساء كفضل الثريد على سائر الاطعمة** باب بدء الخلق کې د ابوموسیٰ روايت نه نقل شوي دي.

**حل اللغات:** -۞دَعَوْنَ: أَيْ: طَلَبْنَهَا: راوي غوښتله، ۞فَأَحِبِّي: د امر صيغه ده، يعنې نو بس محبت ساته

**تسهيلات:** **قوله**: يَتَحَرَّوْنَ:

**د عائشې رضی الله عنها د نمبر انتظار کول**:تحري سوچ اوفکر اودَ ښه ځیزلټون ته وائي. مراد انتظاردي چه عام خلق خپلې تحفه اوتحائف لیګلوکښې به دَ حضرت عائشه ﷺ دَ نمبر انتظارکولو دي دَپاره چه پیغمبر ﷺ ډیر خوشحاله شي

**د يو شان مزاج کيدو په اعتبار باندې د ازواجو مطهراتو دوه ډلې:**

**قوله**: حِزْبَيْنِ:

**د حـذبين مطلب**:مطلب دادي چه شوق اویوشان مزاج کیدو پـه اعتبارباندې دَ ازواج مطهرات دوه ډلې وې دادَ څه دښمنئ یا حسدپه بنیادباندې نه وې بلکه دَدینی اودنیـوی فائدې دَ حاصلولو دَپاره خپل پخپله داسې تقـسیم جوړشوې وو او چونکـه ازواج مطهرات دَ بشریت په صفت باندې متصف وې او په خپل مینځ کښې بنې هم وې نوچه که بشریت څه ځیز دې اودا سړې پریخودې نه شي نو په کورنی نظام کښې دا دوه ډلې جوړیدل څه عیب نه دې چنانچه په اول فریق کښې حضرت عائشه ﷺ حضرت حفصه ﷺ حضرت سوده ﷺ اوحضرت صفیه ﷺ په دوی کښې دَ حضرت عائشه ﷺ حیثیت ښکاره وو او په دویـم فریق کښې حضرت ام سلمه ﷺحضرت زینب ﷺ حضرت ام حبیبه ﷺ حضرت میمونه ﷺ اوحضرت جویریه ﷺ وې په کوموکښې چه حضرت ام سلمه ﷺ ښکاره وه مګر اصل خبره به حضرت زینب سره کیدله.

**قوله**: وَسَائِرُ نِسَاءِ:

**د سائر نساء مصداق**:سائر دَ باقي نورو پـه معنـی کښې دې دَ بـاقی ازواج مطهرات تعداد پنځه وو لیکن په دغه دوو ډلوکښې حضرت زینب بنت حزیمـه شریکـه نـه وه دَهغې وفـات هم زر شوې وو لهذا "سائرنساء"نه مراد دَ فریق ثاني ازواج دي دَدې حدیث دَ ظاهرنه چه کوم معلومات کیږی هغه دادې چه دَ دویم فریق مطالبه دا وه چه خلق خپلې هدیه ګانې دَ حضرت عائشه ﷺ نمبر سره مه خاص کوئی خکه چه په دې سره دَ بـاقی ازواج مطهرات په قدروقیمت باندې څه نه څه فرق پریوتلې شي اوهـم په احساس کمترئی کښې دَ پریوتلو خطره هم ده

**قوله**: فَإِنَّ الْوَحْيَ لَمْ يَأْتِنِي وَأَنَا فِي ثَوْبِ امْرَأَةٍ إِلَّا عَائِشَةَ:

**د عائشې په بستره کښې د وحی راتلل**:لیکن حضورپاك دا ټول مفروضات رد کړل اود حضرت عائشه ﷺ عظیم فضیلت نې بیان کړو چه دا دومره پاکه بی بی ده چه دې سره په یوه بستره کښې کیدو سره په مابانـدې وحی راځی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٦١٩٠] د دنيا څلور افضل ترينې ښځې**

٣-( ) [٤][١] عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢]«حَسْبُكَ مِنْ نِسَاءِ الْعَالَمِينَ مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ، وَخَدِيجَةُ بِنْتُ خُوَيْلِدٍ، وَفَاطِمَةُ بِنْتُ مُحَمَّدٍ، وَآسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [٢] د ټول جهان په ښځو کې د څلورو ښځو مناقب پیژندل ستا د پاره کافي دي او هغه دي ١ مریم بنت عمران یعني د حضرت عیسی علیه السلام مور محترمه ٢ خدیجه رضی الله عنها بنت خویلد ٣ فاطمه رضی الله عنها بنت محمد ۴ بي بي آسیه د فرعون ښځه (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① حَسْبُكَ: أَيْ يَكْفِيكَ: کافي دي تا له

**تسهيلات:**

**قوله** مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ:

**د ټولې دنيا په ښځو کښې افضلې ښځې:** علامه سيوطي رحمه الله په نقايه کښې ليکي چه زمونږ دا عقيده ده چه د ټول جهان په ښځو کښې د ټولو نه افضل حضرت بي بي مريم او حضرت بي بي فاطمه ده او په ازواج مطهرات کښې د ټولو نه افضل حضرت خديجه رضي الله عنها او حضرت عائشه رضي الله عنها ده

**د ازواج مطهراتو په افضليت کښې څلور اقوال:**

① حضرت خديجه رضي الله عنها د ټولو نه افضل ده

② حضرت عائشه رضي الله عنها افضل ده

③ امام مالک رحمه الله مطلقاً حضرت فاطمه رضي الله عنها افضل ګرځولې ده، امام سبکي رحمه الله نه چې تپوس او کړو نو هغوی او فرمايل زمونږ عقيده او اختيار کړې شوې قول دا دې چه د ټولو نه افضل فاطمه رضي الله عنها ده بيا حضرت خديجه رضي الله عنها ده او بيا حضرت عائشه رضي الله عنها ده

④ د بخاري محشي ليکلي دي چه زه خودا وايم چه په دې مسئله کښې خاموشي بهتره ده ځکه چه دلته څه قطعي دليل نشته دې کوم چه دي نو هغه ظنيات يعني ګمان دي کوم چه متعارض دي لهذا فيصله کول ګران دي

**[٦١٩١] نبي عليه السلام ته په ريښمو کښې د عائشې رضی الله عنها تصوير وربنودل**

٣-( ) [٨][١]«وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - [٢]أَنَّ جِبْرِيلَ جَاءَ بِصُورَتِهَا فِي خِرْقَةِ حَرِيرٍ خَضْرَاءَ إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣]فَقَالَ: "هَذِهِ زَوْجَتُكَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب فضل خديجة رضي الله عنها (رقم ٣٨٧٨)

اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب من فضل عائشة رضي الله عنها (رقم ٣٨٨٠)

**ترجمه:**[۱] او دبي بي عائشي ﵂ بيان دی [۲] چې حضرت جبرائيل ﵇ شين وريښمي کپړه باندې د هغې بي بي عائشه ﵂ تصوير رسول الله ﷺ ته په خوب کې ښودلو د پاره راوړی [۳] او ورته يې اوويل دا ستاسو زوجه ښځه ده په دنيا کې هم او په آخرت کې هم. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① خِرْقَةٍ: أَيْ: قِطْعَةٍ: د کپړې يوه ټکړه (چه د شنو ريښمو وه).

**تسهيلات:**

**قوله: فِي خِرْقَةِ حَرِيرٍ خَضْرَاءَ..الخ:**

**د حرير د رنګ تعين:** وړاندې په حديث نمبر (۶۱۸۸) کښې د مطلق حريرذکر وو د رنګ ذکر په کښې نه وو او په دې روايت کښې د شنو ريښمو ذکر دې نو معلومه شوه چې په هغه روايت کښې چې د مطلق حرير ذکر دې د هغې څخه صرف سپين ريښم مراد نه دی بلکه شنه ريښم ترې مراد دې اودا هم کيدې شی چې دا خوب دوه ځله ليدلې شوې وی يو ځل په مطلق کپړه کښې او په دويم ځل په شنو ريښمو کښې وی.

## [۶۱۹۲] صفيه رضی الله عنها ته تسلی ورکول

-() [۹] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «بَلَغَ صَفِيَّةَ أَنَّ حَفْصَةَ قَالَتْ: بِنْتُ يَهُودِيٍّ [۲] فَبَكَتْ، فَدَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهِيَ تَبْكِي، [۳] فَقَالَ: "مَا يُبْكِيكِ"؟ فَقَالَتْ: قَالَتْ لِي حَفْصَةُ: إِنِّي ابْنَةُ يَهُودِيٍّ [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "إِنَّكِ لَابْنَةُ نَبِيٍّ، وَإِنَّ عَمَّكِ لَنَبِيٌّ، وَإِنَّكِ لَتَحْتَ نَبِيٍّ [۵] فَفِيمَ تَفْخَرُ عَلَيْكِ؟". ثُمَّ قَالَ: "اتَّقِي اللَّهَ يَا حَفْصَةُ!»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت انس ﵁ بيان کوي يووار ام المؤمنين بي بي صفيه ته معلومه شوه چې ام المؤمنين بي بي حفصې هغه ته د يهودي لور ويلې دي [۲] نو هغه په ژړا شوه کوم وخت چې رسول الله ﷺ هغه ته تشريف راوړی نو هم هغه ژړل [۳] حضور ﷺ څنې پوښتنه وکړه ولې ژاړې؟ هغې ورته اوويل ځما په باره کې حفصې ﵂ ويلې دي چې زه د يهودي لوريم [۴] په دې اوريدو سره رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ته د هغه په وينا غم مه کوه حقيقت خو دادی چې ته د پيغمبر لور يې ستا تره هم پيغمبر وو او اوس د يوپيغمبر (يعنی ځما ښځه يې) [۵] بيا هغه په تا باندې په څه فخر کوي بيا حضور ﷺ حفصه متنبه کړه چې اې حفصه د ﷺ نه ويريږه. (ترمذي ونسائي)

**حل اللغات:-** ① ابْنَةُ نَبِيٍّ: د پيغمبر لور (دا د هارون لوروه اود موسی عليه السلام وريره وه، يا د اسحاق عليه السلام لور وه اود اسماعيل عليه السلام وريره وه. ② عَمَّكِ لَنَبِيٌّ: ستا تره هم نبی وو (يعنی موسی عليه السلام يا اسماعيل عليه السلام). ③ لَتَحْتَ نَبِيٍّ: ته د پيغمبر ﷺ په نکاح کښې ئې. ④ فَفِيمَ تَفْخَرُ: د مونث غائب صيغه ده، په څه څيز فخر کوی حفصه ﵂.

---

[۱] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب في فضل أزواج النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۸۹٤)

**تسهيلات:**

**قوله:** بِنْتُ يَهُودِيٍّ:

**د صفيه پلار:** حضرت صفيه رضي الله عنها په جنګ خيبر کښې د حضورپاك لاس ته راغلې وه. حضورپاك دا آزاده کړه او په ازواج کښې داخل کړه. په بنوکښې خپل مينځ کښې تاؤ تريخ وي يو غيراختياري بشري معامله ده. حضرت صفيه دې ته بنت يهودي اوونيل خکه چه د دې پلار حيي بن اخطب يومشهور يهودي سردار وو چه د حضرت هارون عليه السلام د اولاد څخه وو. لکه څنګه چه حضرت صفيه رضي الله عنها د خپل ذات په اعتبارسره د يوسردار خاندان معززې بي بي وه دغه شان صفيه رضي الله عنها په ديني اعتبارسره هم د يوجامع شخصيت مالکه وه د حضرت حفصه رضي الله عنها نسبي پيغور ورکولو باندې

**د صفيه خانداني شرافت:** حضورپاك د حضرت صفيه رضي الله عنها د زړه ساتلو د پاره اوخاطر د پاره اوفرمائيل چه تاسره خوهغه اعزازات دي چه بل چاسره نشته دې ته د يونبي هارون عليه السلام لورينې دويم نبي موسٰى عليه السلام وريره يئې دريم نبي محمد ﷺ بي بي ئې اوس په تابانديې د دوي په کوم څيزکښې فخرپاتې شو؟ونيلي شي حضرت صفيه رضي الله عنها په ترکارئې پخولوکښې هوښياره وه.

**[۶۱۹۲] د بي بي مريم بنت عمران د سرداري ذکر**

۳۳ - ( ) [۰] ۱ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دَعَا فَاطِمَةَ عَامَ الْفَتْحِ ۲ فَنَاجَاهَا، فَبَكَتْ، ثُمَّ حَدَّثَهَا فَضَحِكَتْ، ۳ فَلَمَّا تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَأَلْتُهَا عَنْ بُكَائِهَا وَضَحِكِهَا. ۴ قَالَتْ: أَخْبَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ يَمُوتُ فَبَكَيْتُ، ۵ ثُمَّ أَخْبَرَنِي أَنِّي سَيِّدَةُ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ إِلَّا مَرْيَمَ بِنْتَ عِمْرَانَ، فَضَحِكْتُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** ۱ او د بي بي ام سلمه رضي الله عنها بيان دی چې د مکې د فتح په موقع يوه ورځ رسول الله ﷺ بي بي فاطمه رضي الله عنها خپل نزدې وبلله ۲ او هغه سره يې پټې پټې څه خبرې وکړې فاطمه هغه خبرې اوريدو سره په ژړا شوه بيايې په غوږ کې د خبروپه اندازکې خبرې وکړې نو هغه په خندا شوه ۳ بياچې رسول الله ﷺ وفات شو نو يوه ورځ ما د هغې نه د ژړا او بيا د خندا سبب معلوم کړو ۴ نو هغې اوويل مخکې خو رسول الله ﷺ د خپل مرګ په باره کې زه آګاه کړم چې په هغه اوريدو سره زه په ژړا شوم ۵ بيا حضور ﷺ ماته وښودل چې زه د مريم بنت عمران نه ماسوا د جنت د ټولو ښځو سرداره يم نو زه په خندا شوم. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① فَنَاجَاهَا: أَيْ كَلَّمَهَا بِالسِّرِّ: پټې پټې خبرې ئې ورسره اوکړې

[1] اخرجه الترمذي في السنن　كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل فاطمة رضي الله عنها (رقم-۳۸۷۳)

**تسهیلات:**

**قوله:** دَعَا فَاطِمَةَ عَامَ الْفَتْحِ فَنَاجَاهَا،

**د راوي سهو:** په دې حدیث کښې ذکرشوې واقعه د فتح مکه سره تړل د راوي سهو ده ځکه چه دا واقعه یا خود حجة الوداع د زمانې ده یا د مرض الموت د زمانې ده. حدیث سره متعلق بحثونه وړاندې تیرشوی دی

**اشکال:** د دې حدیث دې باب سره څه مناسبت نه ښکاري په دې کښې د حضرت فاطمه رضي الله عنها د منقبت ذکر دې د کوم ذکر چه اهل بیت باب کښې کول پکار وو نه چه د ازواج مطهرات د مناقب سره

**داشکال جواب:** په دې باره کښې بعضې حضراتو وئیلي دي چه دا روایت په ضمني توګه باندې فصل دوم لاندې راغلې دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۶۱۹۴] د صحابه کرامو د عائشې رضي الله عنها څخه تپوس نه کول**

۶۱۹۴ - ( ) [۱] [۱] عَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «مَا أُشْكِلَ عَلَيْنَا أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَدِيثٌ قَطُّ [۲] فَسَأَلْنَا عَائِشَةَ إِلَّا وَجَدْنَا عِنْدَهَا مِنْهُ عِلْمًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوموسی اشعري وايي مونږ اصحاب رسول الله ﷺ ته به چې کله د یو حدیث یا دیني مسائلو سره متعلق څه خبره کې څه اشکال پیښ شو [۲] نو مونږ به بي بي عائشه رضي الله عنها ته رجوع کوله او مونږ ته به د هغه حدیث یا مسئلې متعلق کافي علم د بي بي عائشې رضي الله عنها نه حاصلیدی دا روایت ترمذي نقل کړی دی او وئیلي یې دي چې دا حدیث حسن صحیح غریب دی

**حل اللغات:** - ① مَا أُشْكِلَ عَلَيْنَا: أَيْ: مَا اشْتَبَهَ: څه شبه او اشکال به راپيدا شو، په بله نسخه کښې دا لفظ مَا اشْكَلَ دې، بيا به ني معنی داسې وی. أَيْ مَا أُغْلِقَ: څه مشکل یاګرانه مسئله به راپیښه شوه،

**تسهیلات:**

**قوله:** إِلَّا وَجَدْنَا عِنْدَهَا مِنْهُ عِلْمًا:

**په مسائلو کښې عائشې رضی الله عنها ته رجوع کول:** د رسول کریم ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم ته به کله هم په څه مسئله کښې مشکل پیښیدو نوهغوی به حضرت عائشه رضي الله عنها ته حاضریدل نو د هغه مشکل مسئلې باره کښې به حضرت عائشه رضي الله عنها سره څه حدیث

---

[۱] اخرجه الترمذي في السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب من فضل عائشة رضي الله عنها (رقم-۳۸۸۳)

ملاويدو يا به دَ يو حديث نه دَ هغه مسئلې استنباط ملاويدلو خکه چه حضرت عائشه رضي الله عنها دَ قرآن اوحديث دَعلومو جامع عالمه وه لويه فقيهه وه په دې وجه حضورپاك په يوه موقع باندې اوفرمائيل چه دَ عائشه رضي الله عنها نه علم حاصلوئى هغې سره نيم علم دې

**[۳۰] دَ عائشې رضي الله عنها فصاحت**

۳۰ - ( )[۳] [۱]وَعَنْ مُوسَى بْنِ طَلْحَةَ، قَالَ: [۲]مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَفْصَحَ مِنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت موسى بن طلحه تابعي وايي [۲]ما د عائشې رضي الله عنها نه زيات فصيح هيڅوك نه دى ليدلى دا روايت ترمذي نقل كړى دى او ويلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح غريب دى

**حل اللغات:-** ① أَفْصَحَ: د ډير فصاحت او بلاغت والا

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَفْصَحَ مِنْ عَائِشَةَ:

**دعائشې علمى كمالات:** دا حديث هم دَ عائشه رضي الله عنها دَ فضيلت سره متعلق دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها دَ قرآن او حديث دَ علومو عالمه كيدو سره سره لويه شاعره. په علم انساب كښې كامل او فصاحت اوبلاغت كښې بې مثال عالمه وه او دا ټول هر څه دَ رسول كريم ﷺ په قربت كښې دَ پاتې كيدو اثر وو

---

[۱] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب من فضل عائشة رضى الله عنها(رقم ۳۸۸٤)

# [٢٣]باب جامع المناقب

د مناقبو جامع بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد وسبعون حديثاً مشتملة على فضيلة سبعة وثلاثين صحابياً و أربع جماعات**

① فضيلة عبدالله ابن عمر رضي الله عنه: ١.
② فضيلة عبدالله بن مسعود رضي الله عنه: ٢، ٣، ٤، ٥، ٧، ٣٨، ٣٦، ٣٧، ٤٥، ٦٠.
③ فضيلة سالم رضي الله عنه:٤.
④ فضيلة أبي بن كعب رضي الله عنه: ٤، ٩.
⑤ فضيلة معاذ بن جبل رضي الله عنه: ٤، ٩، ٣٨.
⑥ فضيلة عماربن ياسر رضي الله عنه: ٥، ٣٥، ٣٧، ٣٩، ٤٠، ٤١، ٦٠، ٦١.
⑦ فضيلة حذيفة رضي الله عنه: ٥، ٣٧، ٤٦.
⑧ فضيلة بلال رضي الله عنه: ٦، ٧، ١٩، ٦٠، ٦٤، ٦٥.
⑨ فضيلة سعد بن أبي وقاص رضي الله عنه: ٧ ، ٢٧.
⑩ فضيلة أبي موسى الأشعري رضي الله عنه: ٨.
⑪ فضيلة زيد بن ثابت رضي الله عنه: ٩.
⑫ فضيلة أبي زيد رضي الله عنه: ٩.
⑬ فضيلة مصعب بن عميررضي الله عنه: ١٠، ٦٠.
⑭ فضيلة سعد بن معاذ رضي الله عنه: ١١، ١٢، ٤٢.
⑮ فضيلة أنس رضي الله عنه: ١٣.
⑯ فضيلة عبدالله بن سلام رضي الله عنه: ١٤، ١٥، ٤٥.
⑰ فضيلة ثابت بن قيس رضي الله عنه: ، ٣٨١٦.
⑱ فضيلة سلمان رضي الله عنه: ١٧، ١٨، ٣٧، ٣٩، ٤٥، ٥٨، ٦٠، ٦٣.
⑲ فضيلة أبي هريرة رضي الله عنه: ١٨ ، ٣٧ .
⑳ فضيلة صهيب رضي الله عنه: ١٩.
㉑ فضيلة حاطب أبي بلتعة رضي الله عنه: ٣٠، ٥٧.
㉒ فضيلة أسيد بن حضير رضي الله عنه: ٣٨.
㉓ فضيلة معاذ بن عمرو رضي الله عنه: ٣٨.
㉔ فضيلة أبي ذر رضي الله عنه: ٤٣، ٤٤، ٦٠، ٦٣.
㉕ فضيلة أبي الدرداء رضي الله عنه: ٥٠.

- ⑭ فضيلة محمد بن مسلمة رضى الله عنه: ۴۷.
- ⑮ فضيلة عبدالله بن زبير رضى الله عنه: ۴۸.
- ⑯ فضيلة معاوية رضى الله عنه: ۴۹.
- ⑰ فضيلة عمرو بن العاص رضى الله عنه: ۵۰.
- ⑱ فضيلة أبي جابربن عبدالله رضى الله عنه: ۵۱.
- ⑲ فضيلة جابر رضى الله عنه: ۵۲.
- ⑳ فضيلة براء بن مالك رضى الله عنه: ۵۳.
- ㉑ فضيلة حمزة رضى الله عنه: ۶۰.
- ㉒ فضيلة مقداد رضى الله عنه: ۶۰، ۶۳.
- ㉓ فضيلة خالد رضى الله عنه: ۶۲، ۶۷.
- ㉔ فضيلة أبي طلحة رضى الله عنه: ۶۶
- ㉕ فضيلة أم سليم رضى الله عنها: ۶، ۶۶.
- ㉖ فضيلة الأنصار وقبائلهم: ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۲۹، ۳۴، ۵۴، ۵۵، ۵۶، ۶۸، ۶۹.
- ㉗ فضيلة الأعاجم : ۵۹.
- ㉘ فضيلة أصحاب بدر وأسماء هم : ۲۰، ۳۱، ۳۲، ۳۳، ۷۰، ۷۱.
- ㉙ فضيلة أصحاب الحديبية رضى الله عنهم: ۳۲، ۳۳. وتركنا الصحابة الذين سبق ذكرهم ف أبواب المناقب:

**د ترجمة الباب تشريح او تفسير:** يعني د كوم سړي چه كومه خوبي او فضيلت وي هغه به په دې باب كښې بيانولې شي. چنانچه دَځه خاص تخصيص نه بغيريه په دې باب كښې دَمهاجرينو دَ فضيلت خبره كيږي. دَانصارو دَفضيلت بيان به كيږي. عشره مبشره خلفاء راشدين اهل بيت او ازواج مطهرات اونورومشهورو صحابه كرامو ﷺ تذكره به كيږي. لكه دَ ټولو صحابه كرامو او اهل بيت دَ اجتماعي مناقب بيان دې. داباب ډير اوږددې او په دې كښې ټول اويا احاديث راجمع دي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۶۱۹۶] د عبدالله بن عمر رضى الله عنه د نيكئ دليل

۶۱۹۶ - ()[۱][۱]«عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ:[۲] رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ كَأَنَّ فِي يَدِي سَرَقَةً مِنْ حَرِيرٍ،[۳] لَا أَهْوِي بِهَا إِلَى مَكَانٍ فِي الْجَنَّةِ إِلَّا طَارَتْ بِي إِلَيْهِ،[۴] فَقَصَصْتُهَا عَلَى حَفْصَةَ، فَقَصَّتْهَا عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ -

[۱] اخرجه البخاري في كتاب التعبير/باب الإستبرق ودخول الجنة في المنام (رقم-۷۰۱۵) كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب عبد الله بن عمر رضى الله عنهما (رقم-۳۸۲۵)

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -۵فَقَالَ: "إِنَّ أَخَاكِ رَجُلٌ صَالِحٌ - أَوْإِنَّ عَبْدَاللّٰهِ رَجُلٌ صَالِحٌ -». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ۱ حضرت عبد الله ابن عمر وايي ۲ ما يوه ورځ په خوب كې وليدل چې ګويا خما په لاس كې د وريښمو د كپړې يوه ټكړه ده ۳ او زه د هغه وريښمي كپړې په ذريعه د جنت كوم محل طرف ته تلل غواړم هغه ټكړه ما آولوخولو سره هلته رسوي (يعنى ماته داسې ولګيده چې هغه ټكړه زما د پاره وزر جوړشوي دي او زه چې د جنت كوم بلندي درجې او محل ته تلل غواړم د هغه وزر په ذريعه الوتو سره هلته رسم) ۴ بيا ما داخوب خپلې خور ام المؤمنين بي بي حفصه ته بيان كې او هغه د دې ذكر رسول الله ﷺ ته وكې ۵ نو حضور ﷺ وفرمايل حقيقت دادى چې ستا ورور نيك سړي دى يا دا الفاظ يې وفرمايل چې عبد الله نيك سړي دى. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ۱ خِرْقَةٌ: أَيْ: قِطْعَةٍ: د كپړې يوه ټكړه (چه د ريښمو وه) ۲ لَاأَهْوِي: أَيْ لَاأَقْصِدُ: قصد به مې نه وو كړې، ۳ طَارَتْ: أَيْ تُبَلِّغُنِي: طارت د الوتلو په معنى كښې دې، هلته رسول ترې مراد دې. ۴ فَقَصَصْتُهَا: مادا قصه بيان كړه حفصې ﷺ ته، ۵ فَقَصَّتْهَا: نودا قصه حفصې ﷺ بيان كړه نبى ﷺ ته.

**تسهيلات**:

**قوله**: عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ

**د عبدالله بن عمر تعارف**: عبدالله بن عمر ﷺ دا قريشى العدوى دې. دې خپل پلار سره په وړوكوالى كښې مكه مكرمه كښې په اسلام راوړو دَ غزوه خندق نه پس په ټولو غزواتوكښې شريك شوې دې علم هوښيارتوب. زهد. ورع او تقوى كښې كامل منلې شو حضرت جابر بن عبدالله ﷺ به فرمائيل "مامنا أحد إلا مالت به الدنيا ومال إليها ما خلا عمرو ابن عبدالله" حضرت نافع ﷫ فرمائى چه ابن عمر ﷺ دَ مرګه پورې زر غلامان يا دَ دې نه زيات آزاد كړل. په اول درجه كښې دَ سنت تابعدار وو دَ هغوى دَ سنت تابعدارئى داحال وو چه حج ته دَ تلو په وخت چرته چه حضورپاك قيام كړې وو هم هلته به دوى قيام فرمائيلو ترڅې چه دَ سفر دروان كښې رسول كريم ﷺ دَ قضاء حاجت دَپاره حصارشوې هلته به ابن عمر ﷺ هم حصاريدو عرفات وغيره كښې به دَ حاجيانو نه مخكښې رسيدلو. نقل دى چه يو ورځ حجاج بن يوسف دَ سحر يا مازيګر په مونځ كښې تاخير اوكړو نو عبدالله بن عمر ﷺ هغه ته اووئيل چه مونځ كوه ګنې نمر به ستا انتظارنه كوى. كله چه حجاج دا خبره واؤريده نو وئى وئيل چه زړه مې غواړى چه سترګې دې راؤباسم يا ئى دا اووئيل چه زړه مې غواړى چه سر دې قلم كړم عبدالله ابن عمر ﷺ چه دا واؤريدل نو وئى وئيل كه چرې نه داسې اوكړې نوهيڅ لرې نه ده ته خو يو نادان حاكم ئى دې نه پس حجاج يو سړى ته حكم وركړو چه دَ ابن عمر ﷺ نيزه واخله او هغه خالى لاس كړه او بيا هغه په ده باندې كانړې اوورول بلكه په يو زهرژن څيز سره ئى دَ هغه دَ خپې په شاه باندې يومضبوط زخم

اولګولو. هم دَدې په وجه حضرت عبدالله ﷺ یو څو ورځې بیمار وو او بیا وفات شو. دا واقعه دَ ابن زبیر دَ حادثې دَ شهادت نه درې میاشتې پس ۷۳ هجری کښې پېښه شوې وه. هغه وخت دَ حضرت ابن عمر ﷺ عمر ۸۴ کال وو او هغوی په ذی طوی کښې خښ کړې شو. (مرقاة: ۱۱/۴۰۸)

**قوله:** رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ

**د ابن عمر د نبی علیه السلام څخه د تېوس نه کولو وجه:** ابن عمر ﷺ خوب اولیدلو چه دَ هغه په لاس کښې یو سپین ریښمین رومال دې. جنت کښې چه چرته تلل غواړي هغه رومال دوی لره الوزوی او هلته ئې رسوی. ابن عمر ﷺ خپل دا خوب دَ رسول کریم ﷺ دَ هیبت دَ وجې نه دَنیغ په نیغ عرض کولو په ځائې خپلې خور اُم المؤمنین حضرت حفصه ﷺ ته عرض کړو هغې رسول کریم ﷺ ته خوب واورولو او دَ تعبیر تپوس ئې اوکړو.

**دعبدالله بن عمر دخوب تعبیر:** نو حضورپاك اوفرمائیل چه ریښمین رومال دَهغه اعمال دی او دَ رومال سپینوالي دَهغه اخلاص دې. دَ ریښمین رومال صفائی دَ هغه دَ زړه صفائی ده په دې وجه عبدالله بن عمر ﷺ نیك صالح مخلص دیندار دې. دا رنګ واضحه دې وی چه دَ نبی خوب وحی وی دغه شان دَ نبی تعبیرهم وحی وی. لهذا دَ ابن عمر ﷺ متقی صالح کیدل دَ الله تعالی په وحی ثابت شو لکه څنګه چه حضرت یوسف علیه السلام دَ تعبیر تپوس کونکو ته اوفرمائیل ﴿قُضِيَ الْأَمْرُ الَّذِيْ فِيْهِ تَسْتَفْتِيٰنِ﴾ چه ما کوم تعبیر خودلې دې دَ هغې به فیصله کیږی. دَدې نه هم معلومه شوه چه دَنبی تعبیر هم وحی وی.

**[۶۱۹۷] په سیرت کښې د ابن مسعود ﷺ نبی علیه السلام سره مشابهت**

> ۶۱۹۷-(۱) [۲] [۱] وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: إِنَّ أَشْبَهَ النَّاسِ دَلًّا وَسَمْتًا وَهَدْيًا بِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَابْنُ أُمِّ عَبْدٍ [۲] حِينَ يَخْرُجُ مِنْ بَيْتِهِ إِلَى أَنْ يَرْجِعَ إِلَيْهِ، [۳] لَا نَدْرِي مَا يَصْنَعُ فِي أَهْلِهِ إِذَا خَلَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت حذیفه وایې چې په وقار میانه روی او درست روی کې د رسول الله ﷺ سره د ټولو نه زیات مشابهت لرونکی سړی د اُم عبد خوی دی [۲] د هغه وخت نه چې دخپل کور نه بهر راوځي او ترهغه وقته پورې چې خپل کورته ځي [۳] د کور والو په منځ کې یعنی په کور کې د اهل وعیال سره یا تنها هغه کوم حال کې وي دا مونږ ته معلومه نه ده (بخاري)

**حل اللغات:-** ① دَلًّا: أَيْ طَرِيقَةً: طریقه خوئی او عادت ته وائی قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه دلته د سنجیدګۍ اووقار په معنی کښې دې ② سَمْتًا: أَيْ: سِيرَةً: سیرت اوعادت ته وائی مګر قاضی

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب التعبیر /باب من رأی النبی صلی الله علیه وسلم فی المنام (رقم-۶۹۹۷) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب عبد الله بن مسعود رضی الله عنه (رقم-۳۸۰۷)

عياض رحمه الله دَ قول مطابق دلته په ټولو امورو کښې ميانه روی مراد ده. ③هَدْيًا: أَيْ: هِدَايَةً وَدَلَالَةً. سيرت حالت هدايت او رهنمائی ته وائی. دَ قاضی عياض رحمه الله دَ قول مطابق دلته دا لفظ دَحسن سيرت سره په نيغه لار دَتللو په معنی کښې دې. ④لابن أم عبد: وَالْمُرَادُ بِهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ: ددې نه مراد عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې، د دوی دَ مور کنيت أم عبد وو. ⑤خَلَا: يواځې وی يعنی چه بل څوک ورسره نه وی.

**تسهيلات:**

**قوله: دَلًّا وَسَمْتًا وَهَدْيًا:**

**د مذکوره الفاظو ترادف:** شارحين حديث ليکی چه دا دريواړه الفاظ دَمعنی اومفهوم په اعتبارسره يوبل سره نيزدې دی اوپه عام توګه دَ يوبل په ځائی باندې وئيلی کيږی.

**قوله: حِيْنَ يَخْرُجُ مِنْ بَيْتِهِ إِلَى أَنْ يَرْجِعَ إِلَيْهِ:**

**د مذکوره جملې مفهوم:** دا جارمجرور دَدې نه اول اشبه لفظ سره متعلق دې. په دې جمله سره حضرت حذيفه رضي الله عنه دا خودل غواړی چه په دې صفاتوکښې حضورپاك سره مشابهت ترهغه وختـه پورې مسلسل جاری کيدلو کوم وخت پورې چه هغه زمونږ مخکښې وو اوترکومې چه هغوی په خپل کورکښې نه داخليدلو ليکن چه کله به په خپل کورکښې داخليدلو اوخالی پاتې کيدلو نودَدې نه پس مونږ نه پوهيدلو چه هغه په خپل کورکښې څنګه اوسيږی؟ آيا هم په هغه صفاتوباندې به باقی پاتې کيدو که نه؟ دادَ غيب خبره ده په دې باندې هم الله تعالی بهتر پوهيږی مګر ظاهری ژوندون دَهغوی ډير زيات پاکيزه اودَ نبی مشابه وو.

**[۶۱۹۸] په عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د اهل بيتو ګمان کول**

۶۱۹۸-(١)[٣] ①وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: ②قَدِمْتُ أَنَا وَأَخِي مِنَ الْيَمَنِ، فَمَكَثْنَا حِينًا مَا نَرَى إِلَّا أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُودٍ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③لِمَا نَرَى مِنْ دُخُولِهِ وَدُخُولِ أُمِّهِ عَلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوموسٰی اشعري رضي الله عنه وايي② چې زه او ځما ورور د يمن نه مدينې منورې ته راغلو نو دلته دړ نبوت باندې يوه موده مقيم وو په دې دوران کې مونږ هميشه داخيال کوي چې عبد الله ابن مسعود د رسول الله ﷺ د کور والو نه يوسړی دی③ ځکه چې مونږ به هغه او د هغه والده مور د رسول الله ﷺ په خدمت کی وخت بې وقته تلونکی راتلونکی ليدل. (بخاري مسلم)

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عبد الله بن مسعود رضی الله عنه (رقم-۳۷۶۳) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل عبد الله بن مسعود وأمه رضی الله تعالی عنهما (رقم-۱۱۰-(۲۴۶۰)) کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فیمن سب أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۳۸۶۳)

**حل اللغات:-** ①قَـدِمْتُ: د واحد مـتکلم صیغه ده، د واپس راتلو په معنی کښې دې یعنی راغلم زه. ②فَمَكَثْنَا: أَيْ فَلَبِثْنَا: وخت تیر کړو مونږ، ایسار شو. ③حِينًا: أَيْ زَمَانًا كَثِيرًا: ډیره موده.

**تسهیلات:**

**قوله:** عَبْدَاللّٰهِ بْنَ مَسْعُودٍ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الخ:

**دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه مختصر تعارف:** حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه کنیت ابوعبدالرحمن وو هذلی دې د صاحب السواد والسواك په لقب سره مشهور وو. هغوی په شروع کښې اسلام قبول کړې وو. بعضې حضرات وائی چه شپږم مسلمان دې. د هغوی نه مخکښې صرف پنځو کسانو اسلام قبول کړې وو. د اسلام قبلولو نه پس حضورپاك هغه خپل ځان سره ساتلې وو او خپل ډیر خدمتونه ئی هغه ته حواله کړې وو. حضورپاك به خپل مسواك او نعلین شریفین هغه سره کیخودلې. حضورپاك هغه ته د جنت زیرې هم ورکړې وو. دې د کوفې قاضی اود هغه ځائی د بیت المال مشر وو. اود خلافت عثمانی د ابتدائی زمانې نه په دغه منصب باندې مقرر وو. بیا مدینې ته راغلې وو او په مدینه منوره کښې ۳۲هجری کښې وفات شو او په جنت البقیع کښې ښخ شو. د هغوی عمر څه د پاسه شپیته کاله وو.

**[۶۱۹۹]د څلورو صحابو څخه د قرآن زده کولو حکم**

۶۱۹۹-() [۳] [۱]وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - [۲]أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۳] «اسْتَقْرِئُوا الْقُرْآنَ مِنْ أَرْبَعَةٍ: مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَسَالِمٍ مَوْلَى أَبِي حُذَيْفَةَ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ» .مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص نه روایت دی [۲] چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۳] قرآن ددې څلورو سړو نه حاصلوئ او د دوئ نه یې وایې ۱ دعبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ۲ د ابوحذیفه دآزاد کرده غلام سالم نه ۳ دابي بن کعب نه ۴ اود معاذ بن جبل څخه. (بخاري مسلم) [اخرجه البخاری ومسلم][1]

**تسهیلات:**

**قوله:** اسْتَقْرِئُوا الْقُرْآنَ مِنْ أَرْبَعَةٍ:

**په قراءت کښې د څلورو صحابؤ مهارت:** یعنی د دغه څلورو صحابه کرامو نه د قرآن کریم تلاوت د هغې مضامین د هغې احکام اود هغې رازونه په خصوصی توګه سره زده کړئی. روایاتوکښې راغی چه دا حضرات حافظ قرآن وو. هغوی د رسول کریم ﷺ نه قرآن زده

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عبد الله بن مسعود رضی الله عنه (رقم-۳۷۶۰) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل عبد الله بن مسعود وأمه رضی الله تعالی عنهما (رقم-۱۱۸ - (۲٤٦٤)

کړې وو دا رنګ د دې څلورو تخصيص نې څکه اوکړو چه دې حضراتو خپل خان د قرآن زده کولو د پاره فارغ کړې وو يا دې حضراتو خپل خان د قرآنی تعليماتو د پاره فارغ کړې وو. يا مطلب دا دې چه زما د وفات نه پس دې څلور واړو تـه د تعليم قرآن پـه سلسله کښې تقدم حاصل دې اودا چه دا څلور واړه غټ قاريان دی.

**[۶۲۰۰] د ابن مسعود ﷺ عمار ﷺ او حذيفه علمی مقام**

۶۲۰۰-()[۵] ①وَعَنْ عَلْقَمَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ②«قَدِمْتُ الشَّامَ، فَصَلَّيْتُ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ قُلْتُ: اللّٰهُمَّ. يَسِّرْ لِي جَلِيسًا صَالِحًا، ③فَأَتَيْتُ قَوْمًا، فَجَلَسْتُ إِلَيْهِمْ، ④فَإِذَا شَيْخٌ قَدْ جَاءَ حَتَّى جَلَسَ إِلَى جَنْبِي، ⑤قُلْتُ: مَنْ هٰذَا؟ قَالُوا: أَبُو الدَّرْدَاءِ ⑥قُلْتُ: إِنِّي دَعَوْتُ اللّٰهَ أَنْ يُيَسِّرَ لِي جَلِيسًا صَالِحًا، فَيَسَّرَكَ لِي، ⑦فَقَالَ: مَنْ أَنْتَ؟

**ترجمه**: ① او حضرت علقمه تابعي بيان کوي ② زه چې د شام ملك تـه ورسيدم(او د دمشق جامع مسجد کې حاضر شوم)نو هلته مې دوه رکعاته مونځ وکی بيا مې دعا وغوښتله چې اې الله! ماته يونيك همنشين ميسر کړې ③ بيا زه يو مسجد کې ناست وم ④ چې اچانك يو بزرګ راغې او څما پـه خواکې کينا ستی ⑤ مـا خلقو نـه پوښتنه وکړه دا بـزرګ څوك دی هغـوئ راتـه وښـودل دا مـشهور صـحابي حـضرت ابـودرداء دی ⑥ پـه دې اوريـدو سـره د خوشحالي نه حضرت ابودرداء ته مې اووېل چې مـا د الله تعـالی څخـه دعـا غوښـتي وه چې ماته يونيك همنشين ميسر کړي نو الله تعالی ستاسو پـه شـان نيـك همنشين راتـه ميـسر کـی ⑦ پـه دې اوريدو سره حضرت ابودرداء زما نـه پوښـتنه وکـړه تـه څوك يـې او د کـوم ځـاي نـه راغلی يې؟

**حل اللغات**:- ① يَسِّرْ: أَيْ: سَهِّلْ: آسان کړې، پـه آسانئ سره راکړې.

① قُلْتُ: مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ، ②قَالَ: أَوَلَيْسَ عِنْدَكُمُ ابْنُ أُمِّ عَبْدٍ صَاحِبُ النَّعْلَيْنِ وَالْوِسَادَةِ وَالْمِطْهَرَةِ، ③وَفِيكُمُ الَّذِي أَجَارَهُ اللّٰهُ مِنَ الشَّيْطَانِ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ؟ يَعْنِي: عَمَّارًا، ④أَوَلَيْسَ فِيكُمْ صَاحِبُ السِّرِّ الَّذِي لَا يَعْلَمُهُ غَيْرُهُ، حُذَيْفَةُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ① ماجواب ورکړو زه د کوفي اوسيدونکی يم او د هغه ځاي نه راغلی يم ② حضرت ابودرداء اووېل آيا ستاسو سره پـه کوفه کې ابن ام عبد يعنی عبد الله ابن مـسعود نشته چې هغه ته د رسول الله ﷺ د پنړو بالخ (تکيـه) ساتلو شرف حاصـل وو ③ آيـا ستاسـو سره هغه صاحب نشته چې هغـه تـه د خپـل پيغمبر پـه ژبـه مبارکـه د شيطانه پناه او امـان ورکـړی دی يعنی عمار ④ او آيا تاسو کې هغه صاحب نشته چې هغه تـه د رسـول الله ﷺ د هغـه صـاحب راز کيدو شرف حاصل دی چې هغه نه ماسوا بل چاته نه دی معلوم يعنی حذيفه. (بخاري)

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عمار وحذيفة رضی الله عنهما (رقم-۳۷۴۲) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب عبد الله بن مسعود رضی الله عنه (رقم-۳۸۱۱) والنسائی فی کتاب الصلاة/باب المحاسبة علی الصلاة (رقم-۴۶۵)

**حل اللغات:** -④ صَاحِبُ النَّعْلَيْنِ: د پیزار والا (عبدالله بن مسعود به د نبی علیه السلام د پیزار اخستلو او سمولو خدمت کولو ځکه ورته صاحب النعلین ونیلی شوی دی دغسې د بالخت اود اوبو وغیره انتظام به هم دوی کولو. ③ الوِسَادَةِ: بالخت، تکیه، ④ الْمِطْهَرَةِ: إِنَاءٌ يُتَطَهَّرُ بِهِ: د اوبو لوښي کوم کښې چه به د اودس دپاره اوبه ساتلې شوې لکه لوټه وغیره ⑤ أَجَارَهُ اللهُ: أَيْ: أَنْقَذَهُ وَخَلَّصَهُ: بچ کړې او خلاص کړې وو هغه لره الله پاک (یعنی عمار ﷺ) ⑥ صَاحِبُ السِّرِّ: رازدار، راز پټ ساتونکې (یعنی حذیفه ﷺ).

**تسهیلات:**

**قوله:** أَوَلَيْسَ فِيكُمْ:

**د نزدې عالم څخه علم حاصلول اول بیا بهر:** حضرت ابودرداء ﷺ په خپل جواب کښې دغه سائل ته اووئیل په کوفه کښې دومره لوئې هستئې موجود دی دهغوی په موجودګئې کښې زما مجلس غنیمت ګڼرل زما په پوهه کښې نه راځي. هغه ډیر لوئې خلق دی تاله دهغوی نه فیض حاصلول پکاردی. په دې جواب کښې د متعلق دپاره دا ادب خودلې شوې دې چه هغه د ټولو نه مخکښې دخپل کلی اوخپل ښار د لوئی عالم نه علم حاصل کړی اوبیا د بل ځائی سفراوکړی.

**[۶۲۰۱] په جنت کښې د ام سلیم اوبلال لیدل**

۶۲۰-()[۲] ①وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②«أُرِيتُ الْجَنَّةَ فَرَأَيْتُ امْرَأَةَ أَبِي طَلْحَةَ، ③وَسَمِعْتُ خَشْخَشَةً أَمَامِي فَإِذَا بِلَالٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر نه روایت دی چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ② ماته جنت وښودل شو نو ما په هغه کې د ابو طلحه ښځه ولیده ③ بیا ما خان نه مخکې د قدمونو اواز واوریدی څه ګورم چې بلال دی چې مخکې مخکې په جنت کې روان دی. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أُرِيتُ: د مجهول صیغه ده، راته اوښودلی شو ② خَشْخَشَةً: أَيْ صَوْتًا يَحْدُثُ مِنْ تَحَرُّكِ الْأَشْيَاءِ الْيَابِسَةِ وَاصْطِكَاكِهَا: د اوچ څیز د حرکت آواز ته خشخشه وائی لکه د اوسپنې یا پیزار وغیره، دلته دبلال ﷺ د خپو د پیزار آواز مراد دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** امْرَأَةَ أَبِي طَلْحَةَ

**د ابوطلحه د بی بې تعارف:** دې نه مراد د ابی طلحه ﷺ بی بی حضرت ام سلیم ﷺ ده چه دحضرت انس ﷺ مور بی بی ده. ددې دنوم باره کښې مختلف اقوال دی. ددې رومبې نکاح مالك بن نضر سره شوې وه اوهم د هغه نه حضرت انس ﷺ پیدا شوې وو. مالك بن

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل أم سلیم، أم أنس بن مالک، وبلال، رضی الله عنهما (رقم-۱۰۶- - (۲٤٥٧)واحمد فی المسند: ۳۶۰/۵

نضر مشرك وو او هم دَ شرك په حالت كښې مړ شو. دَ هغې نه پس ام سليم رضي الله عنها مسلمانه شوه او هغې دَ حضرت طلحه رضي الله عنه سره نكاح اوكړه. اول حضرت طلحه رضي الله عنه غيرمسلم وو. حضرت ام سليم رضي الله عنها اول دَ هغه دَ نكاح پيغام ردكړې وو. ليكن بيائى حضرت طلحه رضي الله عنه ته دَ اسلام دعوت وركړو نو ابوطلحه رضي الله عنه اسلام قبول كړو. بيا هغې حضرت طلحه رضي الله عنه سره نكاح اوكړه.

**قوله**: خَشْخَشَةً أَمَامِي:

**بلال په جنت كښې**: مطلب دا چه په شپه دَمعراج په جنت كښې ما خپلې مخې ته دَ حضرت بلال رضي الله عنه دَ قدمونو كشارې واؤريدو چه بلال زما نه وړاندې روان دې. دارنګ رسول كريم ﷺ ته هغه نقشه اوخودلې شوه چه په قيامت كښې به دَ رسول كريم ﷺ جنت ته دَ تلو په وخت وى كښې بلال رضي الله عنه دَ حضورپاك دَ جنتى سورلئى واګې نيولې او په خادمانه شان سره به دَ رسول الله ﷺ نه مخكښې مخكښې روان وى.

**قوله**: فَإِذَا بِلَالٌ:

**دبلال مختصر تعارف**:دا دَ رسول الله ﷺ مشهور مؤذن دې اودَ حضرت ابوبكر رضي الله عنه آزاد كړې شوې غلام دې. رسول الله ﷺ سره په ټولو غزواتوكښې شريك شوې دې. په مكه كښې دَ ټولو نه مخكښې دَ اسلام اعلان دوى كړې وو او دوى ۲۰هجرى كښې په دمشق كښې وفات شو. دوى چه كله اسلام قبول كړې وو نو اميه بن خلف به ورته قسم قسم تكليفونه وركول ليكن دَ الله تعالى كړه داسې اوشو چه دَ جنګ بدر په ورځ اميه بن خلف موذى كافر هم دَ حضرت بلال رضي الله عنه دَ لاسه جهنم ته اورسيدو.

## [٦٢٠٢]دضعيفا نومسلما نا نومقام او مرتبه

٦٢٠٢-(¹) [٧] ①وَعَنْ سَعْدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سِتَّةَ نَفَرٍ، ②فَقَالَ الْمُشْرِكُونَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: اطْرُدْ هَؤُلَاءِ لَا يَجْتَرِئُونَ عَلَيْنَا. ③قَالَ: وَكُنْتُ أَنَا وَابْنُ مَسْعُودٍ وَرَجُلٌ مِنْ هُذَيْلٍ. وَبِلَالٌ وَرَجُلَانِ لَسْتُ أُسَمِّيهِمَا، ④فَوَقَعَ فِي نَفْسِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَقَعَ، فَحَدَّثَ نَفْسَهُ، ⑤فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: ﴿وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ﴾ [الأنعام: ٥٢]» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**:① او حضرت سعد بن ابي وقاص چې عشره مبشره نه دى بيان كوي چې رسول الله ﷺ سره مونږ شپږ سړي وو② د مكي مشركينو كې بعضې سردارانو د رسول الله ﷺ نه مطالبه وكړه (كه تاسو غواړئ چې مونږ تاسو ته راشوستاسو دعوتې خبري واورو او د اسلام د قبوليت په باره كې سوچ وكړو) نو خپلو ملګرو نه هغه خلق چې آزاد كړده غلامان

¹ اخرجه مسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم ؍باب فى فضل سعد بن أبى وقاص رضى الله عنه(رقم ٤٦ (٢٤١٣)

دي او زمونږ په معاشره کښې بي وقعت او بي حیثیت منلی شي خپل مجلس نه لري کړه چې داخلق زمونږ برابر کې دناستي او زمونږ سره خبرو اترو کې د شریکیدو فائده اخستو سره مونږ باندې جري اوزړه ور نشي [۳] حضرت سعد ﷺ وایي هغه شپږ سړو کې یوخو زه وم یوعبد الله بن مسعود وو یوسړی د قبیله هذیل وو او دوه سړي نور وه چې د هغوئ نومونه زه نه ښایم [۴] بهرحال د هغه سردارانو مطالبه اوریدو سرهد رسول الله ﷺ په خیال کې هغه خبره راغله کومه چې الله غوښتله چې راشي بیا رسول الله ﷺ په دي باره کې په سوچ کې وو چې [۵] دا آیت نازل شو: ولاتطرد الذين يدعون ربهم بالغداة والعشي يريدون وجهه یعنی داخلق د ځان نه مه لري کوه چې سهار ماښام خپل رب یادوي او ددي عبادت او ذکر نه د دوئ مقصد د خپل رب خوشنودي نه ماسوا نور هیڅ نه دي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① اطْرُدْ: د امر صیغه ده، أَيْ: أَبْعِدْ: اونې شړه، (دخان نه نې لري کړه). ② لَايَجْتَرِئُونَ: أَيْ لَا يَكُونُ لَهُمْ جَرَاءَةٌ عَلَيْنَا: چه دوی جرأت او زړه ورتیا نه لری په مونږ (یعنی مونږ سره دخبرو او دمخامخ کیدو). ③ الْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ: أُرِيدَ بِهِمَا طَرَفَا النَّهَارِ: د ورځې دواړه طرفونه مراد دی یعنی سحر او ماښام.

**تسهیلات:**

**قوله:** اطْرُدْ هَؤُلَاءِ لَا يَجْتَرِئُونَ عَلَيْنَا:

**د مشرکانو مطالبه:** یعنی که ستاسو به خواکې داخلق وی او مونږ تاسو سره دایمان متعلق خبرې اترې کوو نو داخلق به هم خبرې کوی او که خبرې کوی هم نه ولې بیا به هم مونږ سره برابر ناست وی. مونږ نه غواړو چه داسې خلق مونږ سره خبرې یا مجلس کښې په یوځائی د کیناستو جرات اوکړی.

**قوله:** وَرَجُلَانِ لَسْتُ أُسَمِّيهِمَا:

**د رجلان مصداق:** دوه کسان نور هم وو خوزه دهغوی نوم نه اخستل غواړم. علماء لیکلی دی چه دا دوه کسان حضرت خباب او حضرت عمار ﷺ وو. حضرت سعد ﷺ د څه مصلحت د وجې نه دهغوی نومونو اخستلو نه اعراض اوکړو.

**قوله:** فَوَقَعَ فِي نَفْسِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د نبی علیه السلام په زړه کښې خیال پیدا کیدل:** یعنی دحضور پاك په زړه مبارك کښې داخیال تیر شو که د دې فقیرانو په اخوا کولو او شړلو سره د قریشو دا سرداران مسلمانان کیدې شی نو آیا دوی د مجلس نه جدا کولې شی که نه؟ او داسې کول پکار دی که نه؟ په دې موقع باندې د قرآن پاك دا آیت نازل شو (وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِنْ شَيْءٍ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ مِنْ شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُونَ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴿﴾).

**[٦٢٠٣]د ابوموسیٰ د خوش آوازۍ تعریف**

٦٢٠٣-() [٨] [١]وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ لَهُ: "[٢]يَا أَبَا مُوسَى لَقَدْ أُعْطِيتَ مِزْمَارًا مِنْ مَزَامِيرِ آلِ دَاوُدَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] او حضرت ابوموسیٰ اشعري نه روایت دی رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل[٢] اې ابوموسیٰ تاته داسې خوش اوازي درکړي شوي ده چې د داود ﷺ د خوش اوازي یوه حصه ده. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① مِزْمَارًا: أَيْ صَوْتًا حَسَنًا وَلَحْنًا طَيِّبًا: په اصل کښې مزمار دَ سندرو هغه ساز ته وائی کوم چه شپیلۍ د تنبل اوډولکې سره وی خو دلته صرف خوش الحانی اوخوږ آوازمراد دې کوم ته چه سُر یا سرود وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** مِنْ مَزَامِيرِ آلِ دَاوُدَ:

**د آل کلمې زیادت:** په دې جمله کښې آل زائد دې کوم ته چه مقحم وائی. زائد ځکه دې چه خوږ آواز الله تعالی حضرت داؤد علیه السلام ته ورکړې ووآل داؤد ته ئی نه وو ورکړې.

**[٦٢٠٤]د قرآن پاک څلور جمع کونکی حافظان**

٦٢٠٤-() [٩] [١]وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «جَمَعَ الْقُرْآنَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَرْبَعَةٌ: [٢]أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، وَمُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ، وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ، وَأَبُو زَيْدٍ. [٣] قِيلَ لِأَنَسٍ: مَنْ أَبُو زَيْدٍ؟ قَالَ: أَحَدُ عُمُومَتِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] او حضرت انس رضی الله عنه وايي د رسول الله ﷺ په زمانه کې چې کومو څلورو صحابه وقرآن جمع کی (یعنی پوره قرآن یي حفظ یاد کی)[٢] هغه دادی: ١ ابي بن کعب ٢ معاذ بن جبل ٣ زید بن ثابت ۴ او ابوزید [٣]حضرت انس نه پوښتنه وشوه چې ابوذید څوک دی نو هغه اوویل خماپه ترونوکي یو دی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① عُمُومَتِي: أَيْ: أَعْمَامِي: دَعم طرف ته منسوب دې مراد تره دي.

[١] اخرجه البخاری فی کتاب فضائل القرآن/باب حسن الصوت بالقراءة للقرآن (رقم-٥٠٤٨) ومسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها/باب استحباب تحسین الصوت بالقرآن (رقم-٢٣٥ - (٧٩٣) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب أبی موسی الأشعری رضی الله عنه (رقم-٣٨٥٥) والنسائی فی کتاب الافتتاح/باب تزیین القرآن بالصوت (رقم-١٠١٩) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فی ذکر الخوارج (رقم-١٧٦) واحمد فی المسند: ٣٤٩/٥

[٢] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب [ص:٣٧] زید بن ثابت رضی الله عنه (رقم-٣٨١٠) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل أبی بن کعب، وجماعة من الأنصار رضی الله تعالی عنهم (رقم-١١٩ - (٢٤٦٥) واحمد فی المسند:١٣٤/٥

**تسهیلات:**

**قوله:** جَمَعَ الْقُرْآنَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ:

**په څلورو حافظانو کښې عدم حصر :** یعنې قرآن په مکمل توګه باندې چاچه حفظ کړې وو هغه څلور کسان وو دادَ څه خاص مشهورتیا دَ وجې ونیلی شوی دی ګنی دَ حضورپاك په زمانه کښې دَ صحابه کرامو لوئې شمیر خلق دَ قرآن کریم حافظان وو په دې کلام کښې حصرهم نشته دې اونه دَدې مفهوم مخالف اخستې شی چه بل څوك حافظ نه وو دَ صحیح احادیثونه ثابته ده چه کوم اویا صحابه کرام او قاریان په بیر معونه کښې شهیدان کړې شوې وو هغه دَ قرآن حافظان وو. په جنګ یمامه کښې په سوونو صحابه حافظان شهیدا شوې وو. بل خلفاء راشدین ﷺ حفاظ قرآن وو دلته حصرنه دې.

**[۶۲۰۵] د مصعب بن عمیر ﷺ د غریبۍ ژوند**

۶۲۰۵-()[۱۰][۱]وَعَنْ خَبَّابِ بْنِ الْأَرَتِّ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: «هَاجَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَبْتَغِي وَجْهَ اللَّهِ تَعَالَى، فَوَقَعَ أَجْرُنَا عَلَى اللَّهِ[۲]فَمِنَّا مَنْ مَضَى لَمْ يَأْكُلْ مِنْ أَجْرِهِ شَيْئًا، مِنْهُمْ: مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ: قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ،[۳]فَلَمْ يُوجَدْ لَهُ مَا يُكَفَّنُ فِيهِ إِلَّا نَمِرَةٌ، فَكُنَّا إِذَا غَطَّيْنَا رَأْسَهُ خَرَجَتْ رِجْلَاهُ، وَإِذَا غَطَّيْنَا رِجْلَيْهِ خَرَجَ رَأْسُهُ،

**ترجمه:**[۱] او حضرت خباب بن ارت وایي د رسول الله ﷺ سره زمونږ هجرت کول د نبی کریم ﷺد رضا او خوشنودي د جذبې نه علاوه نور څه مقصد نه لرلو زمونږ د دې عمل اجر او ثواب د نبی کریم ﷺ په نزد محض د هغه فضل وکرم سره دنیا او آخرت کې ثابت او قائم شو[۲] بیا په مونږ کې بعضې خلق خو هغه دې چې د دنیا څه هم اجر او انعام پیدا کیدو نه بغیر دنیا نه رخصت شو چې په هغوئ کې یومصعب بن عمیر دی هغه د احد په ورځ شهید شو[۳] او د هغه د پاره څه داسې کپړه میسر نه شوه چې په هغه کې هغه پوره طور سره کفن شی د هغه په جسم دشرمخ د څرمن په شان سپین او تور کربښو والاصرف یوکمبل وو او هغه هم دومره مختصر چې مونږ به هغه کمبل سره د کفن کولو په وخت د مصعب سر پټوی نو پښې به یې ښکاره پاتې کیدی او که پښې به موور پټولې نو سربه یې بربنډ پاتې کیدی

**حل اللغات:-** (۱) وَجْهَ اللَّهِ تَعَالَى: أَيْ: رِضَاهُ: دالله تعالى رضا او خوشنودی، (۲) فَوَقَعَ: أَيْ: ثَبَتَ: قائم شو، ثابت شو (۳) نَمِرَةٌ: أَيْ: كِسَاءٌ غَلِيظٌ فِيهِ خُطُوطٌ بِيضٌ وَسُودٌ: پیړ څادر چه په هغې کښې توري اوسپینې کربښې وی یعنی برګ پیړ څادر، شرئ ‹نمرة› پړانګ ته وائی د پړانګ دڅرمن په شان برګ وو ځکه ورته نمرة اوونیلی شو، (۴) غَطَّيْنَا: پټ به کړو مونږ،

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب هجرة النبي صلى الله عليه وسلم وأصحابه إلى المدينة (رقم-۳۸۹۷) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب من فضائل سعد بن معاذ رضي الله عنه (رقم-۱۲۶ - (۲٤٦۸) والترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب مصعب بن عمير رضي الله عنه (رقم-۳۸۵۳) واحمد في المسند: ۱۱۲/۵

[۱] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "غَطُّوا بِهَا رَأْسَهُ، وَاجْعَلُوا عَلَى رِجْلَيْهِ مِنَ الْإِذْخِرِ". [۲] وَمِنَّا مَنْ أَيْنَعَتْ لَهُ ثَمَرَتُهُ فَهُوَ يَهْدِبُهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] نو (د هغه د کفن کولو سلسله کې زمونږ داپریشاني لیدو) رسول الله ﷺ وفرمایل چې کمبل سره یې سر پټ کې او پښنو باندې ورته اذخر واښه واچوئ [۲] او په مونږ کې بعضې خلق هغه دي چې د هغوئ میوه پخه شوه اوهغوئ هغه میوه شوکوي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ⑤ الْإِذْخِرِ: هُوَ حَشِيشَةٌ طَيِّبَةُ الرَّائِحَةِ، یو قسم خوشبودار واښه دی (پښتو کښې ورته سرګړې وائی) ⑥ أَيْنَعَتْ: أَيْ نَضِجَتْ: دباب افعال نه ایناع دَ میوو پخیدو ته وائی مراد دَفوائد اومنافع حاصلول دی. ⑦ يَهْدِبُهَا: ضرب اونصرنه دَ میوو شوکولو په راغونډولو سره پرې کولوته وائی

**تسهیلات: قوله:** مِنْهُمْ: مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ:

**د حضرت مصعب تعارف:** حضرت مصعب بن عمیر قریشی عبدری رضی الله عنه دَ اکابرصحابه کرامونه دې بالکل په شروع کښې اسلام قبول کړې وو. دَ حبشه طرف ته نی هجرت کړې وو بیائی دویم هجرت دَمدینې منورې طرف ته اوکړو. دَحضورپاك په حُکم باندې مدینې ته لاړو اوهلته ئی دین اسلام خور کړو. دَ حضورپاك دَ راتلونه مخکښې ئی دَ جمعه مونځ ادا کړو. په مکه کښې به ئی دَ بادشاهانو په شان لباس اچولو. دَ اسلام قبلولونه پس ئی دَ فقیرانو په شان ژوند اختیارکړو. په جنګ احد کښې دَ حضورپاك په حفاظت کښې ولاړوو چه شهید کړې شو.

**قوله:** وَاجْعَلُوا عَلَى رِجْلَيْهِ مِنَ الْإِذْخِرِ:

**د اذخر تعریف:** دا یوقسم واښه دی چه لوهارئی په خپله بهټئی کښې دَ کوئلې اور تیزولودپاره ایږدی. خلق ئی په قبرونوکښې دَمړو لاندې ایږدی او په جماتونوکښې دَ مونځ ګذارو دَپاره اچوی پښتوکښې دې ته بروزه وائی. کیدې شی هم دغه وی.

## [۶۲۰۶] د سعد بن معاذ رضی الله عنه دپاره د عرش خوزیدل

۶۲۰۶-(۱) [۲] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] «اهْتَزَّ الْعَرْشُ لِمَوْتِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ». [۳] وَفِي رِوَايَةٍ: «اهْتَزَّ عَرْشُ الرَّحْمَنِ لِمَوْتِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضی الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل [۲] د سعد بن معاذ په مرګ عرش وخوزیدی [۳] او په یوه روایت کې داسې دي چې د سعد بن معاذ په مرګ د رحمن عرش وخوزیدی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① اهْتَزَّ: أَيْ تَحَرَّكَ: اهتزاز خوزیدو او تاویدو ته وائی

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب /باب هجرة النبی صلی الله علیه وسلم وأصحابه إلی المدینة (رقم-۳۸۰۳) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم /باب من فضائل سعد بن معاذ رضی الله عنه (رقم-۱۲۴ - (۲۴۶۶)) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب مناقب سعد بن معاذ رضی الله عنه (رقم-۳۸۴۹) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم /باب فضل سعد بن معاذ (رقم-۱۵۷) واحمد فی المسند: ۲۰۹/۳

**تسهيلات:**

**قوله:** اهْتَزَّ عَرْشُ الرَّحْمَنِ:

**د عرش د حرکت وجه:** دَ حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه په شهادت باندې عرش دَ خوشحالئ نـه تاويـدلو چـه اوس بـه دَ سـعد مبارك روح پورتـه آسـمانونوته راځـي. دَدې نـه دَحضرت سعد رضي الله عنه لوئي شـان معلوميږي. دې دَ انصار سردار وو. جنګ خندق کښې دې په غشـي لګيدلې وو. دَ بنوقريظه باره کښې فيصله هم حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه کړې وه. په ۵هجرى کښې شهيدشو او په بقيع غرقد کښې دفن کړې شو. دَدوى په جنازه کښې اويا زره فرښتې راغلې وې.

**[۶۲۰۷] په جنت کښې د سعدبن معاذ د رومالونو تعريف**

۶۲۰۷-() [۳][۱]وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: «أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حُلَّةُ حَرِيرٍ[۲] فَجَعَلَ أَصْحَابُهُ يَمَسُّونَهَا وَيَتَعَجَّبُونَ مِنْ لِينِهَا،[۳] فَقَالَ: أَتَعْجَبُونَ مِنْ لِينِ هَذِهِ لَمَنَادِيلُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنْهَا وَأَلْيَنُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت براء بن عازب رضي الله عنه (چې د صحابه ؤ رضي الله عنهم د مشـاهيرو نه دى) بيان کوي چې د يو ملك د بادشاه د طرف نه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې د يوې وريښمي کپړې جوړه بطورِ هديه پيش شوه[۲] نو د حضور صلى الله عليه وسلم صحابه رضي الله عنهم په هغه جوړه لاس ګرځولو ګرځولو سره د هغه نرمي او پوست والى باندې د تعجب او حيرانۍ اظهار کول شروع کړل [۳]حضور صلى الله عليه وسلم هغوئ ته وفرمايل تاسو د دې کپړې په نرمي او پوست والى څه تعجب کوئ په جنت کې چې سعد رضي الله عنه ته کوم دسمالونه حاصل شوي دي هغه دې نه زيات نرم او پاسته دى. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ①حُلَّةٌ: جوړه، کپړه، ②يَمَسُّونَهَا: أَيْ: يَلْمَسُونَهَا وَيَمْسَحُونَهَا: په هغه جوړه نې لاس ګرځولو د هغې نرمى او پوست والى باندې ئې د تعجب او حيرانۍ اظهار کولو. ③لِينِهَا: أَيْ: نُعُومَتِهَا وَرِقَّتِهَا: پوستوالې او نرم والې دهغې کپړې، ④مَنَادِيلُ: د منديل جمع ده، رومال ته وائى (کوم سره چه لاسونه يا پوزه پاکولې شي).

**تسهيلات:**

**قوله:** أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حُلَّةُ حَرِيرٍ

**نبى عليه السلام ته د عجمى باچا د طرفه د جوړې هديه:** دا جوړه يو عجمئ بادشاه دَ رسول

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب هجرة النبي صلى الله عليه وسلم وأصحابه إلى المدينة (رقم-۳۸۰۲) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل سعد بن معاذ رضى الله عنه (رقم-۱۲۶ - (۲۴۶۸) والترمذى في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب سعد بن معاذ رضى الله عنه (رقم-۳۸۴۷) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل سعد بن معاذ (رقم-۱۵۷) واحمد في المسند:

الله ﷺ په خدمت اقدس کښې دَ هدیه په توګه رالیږلې وه. صحابه کرامو ﷺ داسې عجیبه اوحیرانونکې قیمتی کپړا اول نه وه لیدلې په دې وجه دَ خوشحالئ دَ وجهې حیران شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه تاسو په دې جوړه باندې ولې تعجب کوئ دَ سعد بن معاذ رضي الله عنه دَ لاس اومخ اوچولو رومالونه دَدې جوړې نه زیات ښائسته او نرم دی. چه دَ هغه دَ رومالونو دا کیفیت دې نودَ هغه اغوستونکې کپړې به څنګه وی؟ په دې حدیث کښې دَ حضرت معاذ رضي الله عنه دَ جنتی کیدو زیرې ورکړې شوې دې.

**[۶۲۰۸]د حضرت انس رضي الله عنه په حق کښي مستجابه دعا**

۶۲۰۸-() [۳][۱]«وَعَنْ أُمِّ سُلَيْمٍ أَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَنَسٌ خَادِمُكَ ادْعُ اللّٰهَ لَهُ.[۲] قَالَ: اللّٰهُمَّ أَكْثِرْ مَالَهُ وَوَلَدَهُ، وَبَارِكْ لَهُ فِيمَا أَعْطَيْتَهُ". [۳]قَالَ أَنَسٌ: فَوَاللّٰهِ إِنَّ مَالِي لَكَثِيرٌ وَإِنَّ وَلَدِي وَوَلَدَ وَلَدِي لَيَتَعَادُّونَ عَلَى نَحْوِ الْمِائَةِ الْيَوْمَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او بي بي ام سليم رضي الله عنها نه چې د حضرت انس رضي الله عنه مورده روايت دی چې هغه خپل خوی انس رضي الله عنه وړوکوالي کې د حضور ﷺ خدمت بابرکت کې پيش کړو نو هغه وخت يې عرض وکړو يارسول الله! دا انس رضي الله عنه دی چې تاسو خادم جوړولو دپاره يې ستاسو خدمت اقدس کې پيش کوم ده ته (د حصول ايمان او ستاسو د بابرکت صحبت او خدمت په سبب د آخرت اجر وانعام خو به حاصليږي پاتې شوه د دنياوي خوشحالي او برکت خبره په دې باره کې د) ته دعا وفرمايي [۲]نو حضور ﷺ ورته دا دعا وفرمايله خدايه! د انس رضي الله عنه مال زيات کې د ده اولاد زيات کړې او د خپل طرف نه چې کوم نعمتونه تاده ته ورکړی دی په هغه کې برکت واچوي [۳]حضرت انس رضي الله عنه وايي قسم په الله د حضور ﷺ د دې دعا په سبب څما مال ډير زيات او ډيربرکت سره دی او څما بلاواسطه اولاد او څما د اولاد اولاد نن په شمير کې سلو ته نزدې دی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَيَتَعَادُّونَ: أَيْ: يَزِيدُونَ فِي الْعَدَدِ: دَ تجاوز او د زيات تعداد په معنى کښې دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** عَلَى نَحْوِ الْمِائَةِ الْيَوْمَ:

**د حضرت انس رضی الله عنه د اولاد تعداد:** يعنى نن زما اولاد دَ سلونه زيات دې. حضرت انس رضي الله عنه چه کوم وخت دا شمير خودلې دې دَدې نه پس هم دَهغوی دَ اولاد سلسله جاری وه. چنانچه په يوروايت کښې هغوی پخپله فرمائی الله تعالی چه ماته کوم صلبی اولاد راکړې دې دَهغې شمير ۱۲۵دې دې نه علاوه دوه لونړه دی. يوبل روايت کښې حضرت انس رضي الله عنه

[1] اخرجه البخاری فی كتاب الدعوات/باب دعوة النبی صلى الله عليه وسلم لخادمه بطول العمر، وبكثرة ماله (رقم-۶۳۴۴) ومسلم فی كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل أنس بن مالك رضى الله عنه (رقم-۱۴۱-(۲۴۸۰)) والترمذی فی كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أنس بن مالك رضى الله عنه (رقم-۳۸۲۹)

فرمائی بصره کښې دَ حجاج بن یوسف دَ راتلو نه وړاندې ما په خپل اولاد کښې ۱۲۰ په خپلولاسونو باندې دفن کړی وو اودَ مال دَ کثرت باره کښې فرمائی چه دَ میوو دومره کثرت اوشو چه زما باغونو به په کال کښې دوه خل میوه ورکوله. دَ حضرت انس رضی الله عنه دَ اولاد تعداد بیانولو کښې دَ راویانو په مینځ کښې اختلاف دې په دې وجه دَ پریشانئی ضرورت نشته دې.

**[۶۲۰۹] د حضرت انس رضی الله عنه په حق کښې مستجابه دعا**

۶۲۰۹-()[۳][۱]وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ «مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ لِأَحَدٍ يَمْشِي عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ[۲]إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ إِلَّا لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه وايي ما د عبد الله بن سلام رضی الله عنه نه علاوه د يو بل سړي په باره کې چې په زمکه باندې ګرځي د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا فرمايل نه دي اوريدلي [۲]چې هغه جنتي دی. (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** إِلَّا لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ:

**د مذکوره جملې مطلب:** یعنی دَ عبدالله بن سلام رضی الله عنه نه علاوه ژوندې اوسلامت بنده ګرځیدونکې راګرځیدونکې یوسړې به هغه وخت نه وی چاته چه حضورپاك دَ جنت زیرې ورکړې وی.

**اشکال:** دَ عبدالله بن سلام رضی الله عنه نه علاوه ډیر صحابه کرام داسې دی چاته چه دَ جنت زیرې هم دَهغوی په ژوند ورکړې شوې وو خاص کر عشره مبشره خو مشهوردی نوحضرت سعدبن معاذ رضی الله عنه دَ حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه حصرکولوسره دَ نورو ذکرولې اونه کړو؟

**داشکال جواب:** کیدې شی هغه وخت عشره مبشره ته دَ جنت زیرې نه وو ملاؤ شوې اوعبدالله بن سلام رضی الله عنه ته ملاؤ شوې وو. دویم جواب دادې چه دَ عبدالله بن سلام رضی الله عنه دَ جنت بشارت اجمالی اواستنباطی دې دادَ عشره مبشره په شان صریحی بشارت نه دې. دې سره راتلونکی حدیث په قصه کښې دَ استنباطی بشارت تفصیل دې لهذا دَعشره مبشره بشارت سره تعارض نشته دې.

**[۶۲۱۰] د خوب په ذریعه عبدالله بن سلام رضی الله عنه ته دجنت زیرې**

۶۲۱۰-()[۱۵][۱]«وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا فِي مَسْجِدِ الْمَدِينَةِ[۲]فَدَخَلَ رَجُلٌ عَلَى وَجْهِهِ أَثَرُ الْخُشُوعِ

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عبد الله بن سلام رضی الله عنه (رقم-۳۸۱۲) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل عبد الله بن سلام رضی الله عنه (رقم-۱۴۷ - (۲۴۸۳)

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب مناقب عبد الله بن سلام رضی الله عنه (رقم-۳۸۱۲) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل عبد الله بن سلام رضی الله عنه (رقم-۱۴۷ (۲۴۸۴) واحمد فی المسند: ۴۵۲/۵

۳ فَقَالُوا هٰذَا رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ تَجَوَّزَ فِيهِمَا ثُمَّ خَرَجَ وَتَبِعْتُهُ ۴ فَقُلْتُ إِنَّكَ حِينَ دَخَلْتَ الْمَسْجِدَ قَالُوا هٰذَا الرَّجُلُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ. ۵ قَالَ: وَاللّٰهِ مَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَقُولَ مَا لَا يَعْلَمُ فَسَأُحَدِّثُكَ لِمَ ذَاكَ: رَأَيْتُ رُؤْيَا عَلٰى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

**ترجمه:** ۱ او حضرت قیس بن عباد چې یو ثقه تابعي رحمه الله دی بیان کوي زه یوه ورځ د مدینې په مسجد کې ناست وم ۲ یو صاحب مسجد ته راغې چې د هغه د مخ نه خشوع (یعنی وقار وسکون او د قربت الهي نور ښکاره وو په مسجد کې چې کوم صاحبان موجود وو) ۳ په هغوئ کې بعضو اوویل چې دا صاحب د جنت والؤ څخه دي هغه تحیة المسجد یا څه نور دوه رکعاته مونځ وکی او دواړه رکعاته یې مختصر وکړل بیا د مسجد نه بهر اووتلو زه هم د مسجد نه وتلو سره هغه پسې وروسته وروسته روان شوم او یوځای ته رسیدو سره ۴ هغه ته مې اوویل چې کوم وخت تاسو په مسجد کې داخل شوی وې نو بعضې خلقو ویلي وه چې دا صاحب جنتي دی په دې باره کې تاسو ماته د څه ښودلو زحمت وکړئ ۵ هغه صاحب اوویل په الله قسم چې زه د دې تصدیق نشم کولی خکه چې یو سړی د پاره دا مناسب نه دی چې هغه هغه خبره وکړي چې هغه باندې نه پوهیږي او زه تاته د دې عدم تصدیق وجه ښایم خبره دا شوي وه چې د حضور ﷺ په زمانه کې یوه ورځ ما یو خوب لیدلی وو

**حل اللغات:-** ① أَثَرُ الْخُشُوعِ: أَيِ السُّكُونِ وَالْوَقَارِ: د خشوع خضوع آثار، یعنی د تقوی او د الله تعالی د ویرې اثر ښکاره وو. ② تَجَوَّزَ فِيهِمَا: أَيْ: اخْتَصَرَ: یعنی اختصار سره زر زر ئې دوه رکعته مونځ اوکړو. ③ وَتَبِعْتُهُ: زه هم ورپسې روسته روسته روان شوم. ④ خُضْرَتِهَا: ترو تازګی او شینکئ د هغې باغیچې،

۱ فَقَصَصْتُهَا عَلَيْهِ وَرَأَيْتُ كَأَنِّي فِي رَوْضَةٍ ذَكَرَ مِنْ سَعَتِهَا وَخُضْرَتِهَا ۲ وَسَطَهَا عَمُودٌ مِنْ حَدِيدٍ أَسْفَلُهُ فِي الْأَرْضِ وَأَعْلَاهُ فِي السَّمَاءِ، فِي أَعْلَاهُ عُرْوَةٌ فَقِيلَ لِيَ ارْقَهْ فَقُلْتُ لَا أَسْتَطِيعُ ۳ فَأَتَانِي مِنْصَفٌ فَرَفَعَ ثِيَابِي مِنْ خَلْفِي فَنَزَلْتُ حَتّٰى كُنْتُ فِي أَعْلَاهُ فَأَخَذْتُ بِالْعُرْوَةِ ۴ فَقِيلَ اسْتَمْسِكْ فَاسْتَيْقَظْتُ وَإِنَّهَا لَفِي يَدِي

**ترجمه:** ۱ او هغه خوب ما رسول الله ﷺ ته بیان کړی وو ما په خوب کې لیدلی وو چې زه ګویا یو باغ کې یم بیا هغه صاحب د هغه باغ د وسعت او کشادګی او تروتازګي او شادابي ذکر وکی ۲ او هغه اوویل ما ولیدل چې د هغه باغ په منځ کې د اوسپني یوه ستن وه چې د هغه لاندې سر په زمکه کې دننه دی او د هغه برسیره سر آسمان کې دی او د هغه ستني برسیره یوه حلقه ده بیا ماته اوویل شوه چې پورته وخیژه ما ورته اوویل زه د ختلو طاقت نه لرم ۳ بیا یو خادم ماته راغې چې هغه د وروسته نه خما کپړې پورته کړې او زه پورته وختم ددې پورې چې د هغه ستني آخري بلندي ته ورسیدم او هغه حلقه مې ونیوله ۴ بیا ماته اوویل شوه چې دا حلقه مضبوطه ونیسه بیا خما سترګې وغړیدې په داسې حال کې چې هغه حلقه خما په لاس کې وه

**حل اللغات:**- ⑤عَمُودٌ: ستن، اډانړه، ⑥عُرْوَةٌ: أَيْ: حَلْقَةٌ: لاسکی ته وائي يعني دَ دغه ستن دپاسه حصه کښې يولاسکې کړئ اوحلقه وه. ⑦ارْقَهْ: دا دَسمع يسمع، رَقِيَ يَرْقَى نه دَامر صيغه ده، يعني په دغه ستن وراوخيژه. ⑧مِنْصَفٌ: په ميم باندې زيردې نون ساکن او صاد باندې زبردې کم عمرخوان غلام ته وائي (چه په ميم باندې زبر شی نو خادم ته وائي). ⑨اسْتَمْسِكْ: أَيْ: بَالِغْ فِي الْمَسْكِ: مسک په معنی د نيولو سره ده، دې کښې مبالغه ده يعني مضبوط اونيسه.

۱ فَقَصَصْتُهَا عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۲ فَقَالَ تِلْكَ الرَّوْضَةُ الْإِسْلَامُ وَذَلِكَ الْعَمُودُ عَمُودُ الْإِسْلَامِ وَتِلْكَ الْعُرْوَةُ الْوُثْقَى ۳ فَأَنْتَ عَلَى الْإِسْلَامِ حَتَّى تَمُوتَ وَذَلِكَ الرَّجُلُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ هرکله چې د حضور ﷺ مخکې ما داخوب بيان کی ۲ نو حضور ﷺ د هغه خوب تعبير کې راته وفرمايل هغه باغ چې تاډير وسيع او کشادګي او تروتازه ګي سره اوليدلو دين اسلام دی او هغه ستن د اسلام ستن ده يعنی د اسلام احکام او ارکانو نه عبارت دی چې په هغه د مسلماني بنا ده او هغه حلقه چې تا وليده او ودې نيوله عروه وثقی ده ۳ نو په دې خوب کې دې طرف ته اشاره ده چې ته به د خپل ژوند آخري لمحې پورې په اسلام ثابت يې او قيس بن عباد وايي چې هغه صاحب حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ⑩الْعُرْوَةُ الْوُثْقَى: مضبوطه رسئ ته وائي.

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث کښې د ګرانولغاتوحل شوې دې باقی مضمون آسان دی.

**[۶۲۱۱] حضرت ثابت بن قيس رضي الله عنه ته د جنت بشارت**

۶۲۱۱-(۱) [۸] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: «كَانَ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ خَطِيبَ الْأَنْصَارِ ۲ فَلَمَّا نَزَلَتْ ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ﴾ [الحجرات: ۲] إِلَى آخِرِ الْآيَةِ ۳ جَلَسَ ثَابِتٌ فِي بَيْتِهِ وَاحْتَبَسَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۴ فَسَأَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَعْدَ بْنَ مُعَاذٍ، فَقَالَ: مَا شَأْنُ ثَابِتٍ أَيَشْتَكِي؟

**ترجمه:** ۱ او حضرت انس رضي الله عنه بيان کوي چې ثابت بن قيس بن شماس رضي الله عنه د انصارو خطيب وو (يعني په انصارو کې داهغه سړی وو چې د هغه خبره اتره به د فصاحت او بلاغت نه ډکه وه او د نثر منل شوي اديب او خطيب وو) ۲ هرکله چې دا آيت نازل شو يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ الاية ترجمه: اې ايمان والاوو خپل اوازونه د نبي په اواز باندې مه پورته کوي الخ ۳ نو ثابت رضي الله عنه خپل کورکې کينا ستې او د نبي ﷺ په خدمت کې تلل راتلل يې بند کړل ۴ رسول الله ﷺ يوه ورځ سعد بن معاذ رضي الله عنه نه چې د انصارو سردار

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الإيمان/باب مخافة المؤمن أن يحبط عمله (رقم-۱۸۷ - (۱۱۹)

وو پوښتنه وکړه ثابت ﷛ ته څه شوي دي(چې هغه تلل راتلل بند کړي دي او نه معلوميږي) آيا هغه ناجوړ دی؟ (سعد ﷛ چپ وو هغه څه جواب ورنه کی ځکه چې خپله هغه ته د ثابت ﷛ په باره کې معلومه نه وه او تحقيق کولو نه بغير جواب کولو نه قاصر وو)

**حل اللغات:-** ① احْتَبَسَ: أَيْ:نَفْسَهُ: بند ئې کړو خپل ځان (يعنی ثابت ﷛ د نبی عليه السلام په خدمت کښې تلل راتلل ئې بند کړل) ② أَيَشْتَكِي؟: أَيْ:مَرَضًا أَوْوَجَعًا: آيا بيمار دې يا څه بل تکليف دې ثابت ﷛ ته.

[۱] فَأَتَاهُ سَعْدٌ فَذَكَرَ لَهُ قَوْلَ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] فَقَالَ ثَابِتٌ أُنْزِلَتْ هَذِهِ الآيَةُ وَلَقَدْ عَلِمْتُمْ أَنِّي مِنْ أَرْفَعِكُمْ صَوْتًا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَأَنَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ، [۳] فَذَكَرَ ذَلِكَ سَعْدٌ لِلنَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بَلْ هُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] نو هغه تحقيق حال د پاره ثابت ﷛ ته ورسيدی او د هغه مخکې د رسول الله ﷺ الفاظ نقل کړل چې حضور ﷺ ستا پوښتنه کوي او وي فرمايل آيا ثابت ﷛ بيمار دی چې مونږ ته نه راځي [۲] ثابت ﷛ په دې اوريدو سره اوويل دا آيات: ﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ﴾ الخ نازل شوي دي چې د حضور ﷺ مخکې بلند اواز خبرو اترو نه منع کوي او ته پوهيږې چې په تاسو کې د ټولو نه زيات ځما اواز د رسول الله ﷺ د اواز نه پورته دی نو زه خو دوزخي يم [۳] سعد ﷛ راتلو سره رسول الله ﷺ ته د ثابت ﷛ الفاظ نقل کړل نو رسول الله ﷺ وفرمايل داسې نه ده بلکه ثابت ﷛ خو جنتي دی. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ خَطِيبَ الْأَنْصَارِ..الخ:

**دثابت بن قيس مختصر تعارف:** ثابت بن قيس بن شماس ﷛ دَصحابه کرامو خطيب وو په قدرتی توګه دَهغوی آواز اوچت وو لهجه ئی هم درنه وه. په دې وجه دَدې آيت دَ نازليدلو نه پس هغه ويريدو او کورکښې کيناستو وئيل چه زه خو تباه شوم. په دې باندې حضورپاك دَ جنت زيرې ورکړو. په دې حديث کښې په ظاهره دا اشکال دې چه حضرت معاذ ﷛ څوك چه دَدې حديث راوی دې په کال ۵هجری کښې وفات شوې وو اودا آيت په ۹هجری کښې نازل شوي دې نودا واقعه هغه څنګه بيانوی؟ دَدې جواب دادې چه دَ آيت دا ټکړه اول نازل شوې وه ﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ [سورة الحجرات: ۱] چه کومه حصه ده اودې نه پس په ۹هجری کښې نازل شوې ده.

## [۶۲۱۲] د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه فضيلت

۶۲۱۲-() [۱۷] ⑴ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ «كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذْ نَزَلَتْ سُورَةُ الْجُمُعَةِ فَلَمَّا نَزَلَتْ ﴿وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ﴾ [الجمعة: ۳]. ⑵ قَالُوا: مَنْ هَؤُلَاءِ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: وَفِينَا سَلْمَانُ الْفَارِسِيُّ. ⑶ قَالَ: فَوَضَعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدَهُ عَلَى سَلْمَانَ ⑷ ثُمَّ قَالَ لَوْ كَانَ الْإِيمَانُ عِنْدَ الثُّرَيَّا لَنَالَهُ رِجَالٌ مِنْ هَؤُلَاءِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ⑴ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه بيان وكړو مونږ رسول الله ﷺ سره ناست وو چې اچانك سورة جمعه نازل شو او كوم وخت چې دا آيت راغې وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ او په هغوئ كې څه نور خلق هغه دي چې اوس لا هغوئ سره نه دي يوځاي شوي ⑵ نو صحابه رضي الله عنهم پوښتنه وكړه يارسول الله! هغه كوم خلق دي چې اوس لا هغوئ سره نه دي يوځاي شوي او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي هغه وخت زمونږ په منځ كې سلمان فارسي رضي الله عنه هم وو ⑶ رسول الله ﷺ د صحابه وو داسوال اوريدو سره خپل لاس مبارك په سلمان رضي الله عنه باندې كيښوديو ⑷ اوبيايې وفرمايل كه ايمان ثريا ستورى باندې هم وي نو بلاشبه په دې خلقوكې به ډيرو هغه پيدا كړى او حاصل كړى وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَمَّا يَلْحَقُوا: چه اوس لا نه دي يو ځائې شوى هغوى. ② الثُّرَيَّا: كهكشان ستوروته ثريا وائى په اوچتوالى كښې دې سره تشبيه وركولې شى.

**تسهيلات: قوله: إِذْ نَزَلَتْ:**

**د سورة جمعې پوره آيت:** يعنى دَ سورت جمعه آيت نمبر ۳ چه كله نازل شو په كوم كښې چه دَ راتلونكى خلق دَ صحابه كرامو په صفاتوكښې شامل كړې شوى دى پوره آيت داسې دې (وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ) په دې باندې صحابه كرامو تپوس اوكړو چه يا رسول الله دابه كوم خلق وى كوم چه زمونږ په صفاتوكښې شامل كړې شوى دى؟ حضورپاك دَحضرت سلمان رضي الله عنه طرف ته اشاره اوكړه چه دَده په اولاد كښې به داخلق وى

**د حضرت سلمان فارسى رضى الله عنه تعارف:** دَحضرت سلمان فارسى رضي الله عنه يوښار رامهرمز اوسيدونكوسره تعلق لرلو دَمذهب په اعتبار سره مجوسيان وو دَهغه پلار لونى جاګيردار اودَ ايران دَ آتشكده نګران وو دَهغه اسلامى نوم سلمان دې اوكنيت ابوعبدالله دې. دَ پلاردَمذهب نه ئې نفرت وو اوتختيدو اويهودى شو بيا عيسائى شو دَ حق په لټون كښې دَخپل عيسائى استاذ نه معلومات كولو. هغه ده ته اوئيل چه اوس هدايت دَدنيانه رخصت شوې دې. دَ هدايت نوې مينار به دَ حجاز نه روښانه كيږى ته مدينې ته لاړشه اوهلته دَ نبى

[1] اخرجه البخارى فى كتاب تفسير القرآن/باب قوله: {وآخرين منهم لما يلحقوا بهم} [الجمعة: ۳] (رقم-۴۸۹۷) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب فضل فارس (رقم-۲۳۱ - (۲۵۴۶) والترمذى فى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة محمد صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۲۶۱)

آخرزمان دَ راتلو انتظارکوه. دَ هغه دَنبوت نښنه څو یو مهرختم نبوت دې او دویمه نښه ئې داده هغه به صدقه نه قبلوی. مدینې منورې

**د سلمان فارسی غلام جوړیدل:** ته دَتلو وخت کښې په لاره یو څو ظالمانو هغه راګیرکړو اوغلام ئې جوړکړو رائې وستلو اودَمدینې په یهودیانوئې خرڅ کړو. پخپله فرمائی چه زه دَ لسو آقاګانو په لاس باندې خرڅیدو سره بدل شوې یم. حضورپاك هغه په اهل بیت کښې شامل کړو هغه به خپل ځان ته سلمان الاسلام وئیلو. حضورپاك له راغلو صدقه ئې راوړه حضورپاك پخپله اونه خوړله په صحابه کرامو ئې اوخوړله. په دویمه ورځ ئې تحفه راوړله نوحضورپاك پخپله هم اوخوړله او په نورو باندې ئې هم اوخوړله. سلمان فارسی ﷜ مهرنبوت هم اولیدلو اومسلمان شو.

**سلمان فارسی مکاتب جوړیدل:** دَهغه آقا یهودی هغه مکاتب جوړکړو مګر بدل کتاب ئې داکیخودو چه دَ کهجورو سل ونې اولګوه چه کله په هغې کښې میوه راشی ته آزاد ئې. په دې خودیره موده لګیدله په دې وجه حضورپاك په خپل لاس باندې ونې اولګولې نو په یوکال کښې میوه راغله سلمان آزاد شو. وئیلی شی دَ هغه پوره عمر درې سوا کاله وو. هغه دَ حضرت عیسیٰ ﵇ یوصحابی حواری هم لیدلې دې. بعضې وائی چه دَ دوه نیم سوو کالو په عمرکښې په مدائن کښې وفات شوې دې.

**[٦٢١٣] دابوهریره ﷜ دپاره د خلقو په زړونوکښې د محبوبیت دعا**

| ٦٢١٣ - (١) [٨١] ①وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②«اللَّهُمَّ حَبِّبْ عُبَيْدَكَ هَذَا يَعْنِي أَبَا هُرَيْرَةَ وَأُمَّهُ إِلَى عِبَادِكَ الْمُؤْمِنِينَ وَحَبِّبْ إِلَيْهِمَا الْمُؤْمِنِينَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره ﷜ وایي حضور ﷺ دعا وفرمایله② اې الله! خپل وړوکې بنده یعنی ابوهریره ﷜ او د ده مور د خپل مؤمن بنده ګانو محبوب جوړکړې او اهل ایمان د دوئ محبوب جوړکړې. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① عُبَيْدَكَ: وړوکې بنده (دلته د شفقت دوجې نه دې د تصغیرلفظ استعمال شوی).

**تسهیلات:**

**قوله:** اللَّهُمَّ حَبِّبْ عُبَيْدَكَ هَذَا يَعْنِي أَبَا هُرَيْرَةَ وَأُمَّهُ إِلَى عِبَادِكَ:

**ابوهریره رضی الله عنه د امت په نظرکښې:** په حدیث الباب کښې دی چه دَ رسول کریم ﷺ دَ دعاپه برکت سره ابوهریره ﷜ دَ صحابه کرامو دَ سترګو ستورې جوړشو. الله پاك هغه ته دومره مال ورکړو چه په ریښمینو کپړو سره به ئې څپلئی پاکولې. په جنګ صفین کښې حضرت علی ﷜ سره هم وو اوحضرت معاویه ﷜ سره ئې هم تعلق وو. مونځ به ئې

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل أبی هریرة الدوسی رضی الله عنه (رقم-١٥٨ - (٢٤٩١)) واحمد فی المسند: ٣٢٠/٢

حضرت علی ﷺ سره کولو او خوراك به نی حضرت معاویه ﷺ سره خوړلو. ونیل به نی چه مونځ دَ حضرت علی ﷺ سره مزیدار دې او خوراك دَ حضرت معاویه ﷺ مزیدار دې.

**[٦٢١٤] دکمزورو مسلمانانو خفه کول او دالله تعالی غصه**

۶۲۱۴-( ) [۱۹] ⑴ وَعَنْ عَائِذِ بْنِ عَمْرٍو «أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ أَتَى عَلَى سَلْمَانَ وَصُهَيْبٍ وَبِلَالٍ فِي نَفَرٍ ⑵ فَقَالُوا: مَا أَخَذَتْ سُيُوفُ اللَّهِ مِنْ عُنُقِ عَدُوِّ اللَّهِ مَأْخَذَهَا ⑶ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ أَتَقُولُونَ هَذَا لِشَيْخِ قُرَيْشٍ وَسَيِّدِهِمْ فَأَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَخْبَرَهُ ⑷ فَقَالَ يَا أَبَا بَكْرٍ لَعَلَّكَ أَغْضَبْتَهُمْ لَئِنْ كُنْتَ أَغْضَبْتَهُمْ لَقَدْ أَغْضَبْتَ رَبَّكَ ⑸ فَأَتَاهُمْ فَقَالَ يَا إِخْوَتَاهُ أَغْضَبْتُكُمْ قَالُوا: لَا، يَغْفِرُ اللَّهُ لَكَ يَا أَخِي». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⑴ او حضرت عائذ بن عمرو ﷺ نه روایت دی د امیر معاویه ﷺ پلار ابوسفیان چې مدینې ته راغې او یوه موقع باندې د صحابه ﷺ یو جماعت سلمان فارسي ﷺ صهیب رومي ﷺ او بلال حبشي ﷺ مخکې تیر شو ⑵ نو هغه دریو سړو حضراتو ابوسفیان لیدو سره اوویل آیا د الله ﷻ د هغه بنده ګانو توررو چې د الله ﷻ په تعمیل کې سرګرم اوسیږي ادائې حق کې د دې دښمن خدا څټ لاتراوسه پورې نه دی الوخولی ⑶ حضرت ابوبکر ﷺ چې دا واوریدل نو هغه دري سره حضرات مخاطب کولو سره یې ورته اوویل تاسو د قریشو د دې لوی سړي په باره کې داسې خبره کوئ چې د خپل قوم سردار هم دی بیا حضرت ابوبکر ﷺ د رسول الله ﷺ په خدمت کې راغې او حضور ﷺ ته یې د دې واقعې اطلاع وکړه ⑷ حضور ﷺ (ټول تفصیل اوریدو سره) وفرمایل اې ابوبکر ﷺ! تاشاید هغه دري سره ناراض کړي وي اوکه تا هغوئ ناراضه کړي وي نوقسم په الله تا خپل پروردګار ناراض کی ⑸ حضرت ابوبکر (په دې اوریدو سره وریېدی او فوراً تیزي سرد) هغه دریو سړو ته ورغلی او ورته یې اوویل اې خما ورونو! آیا تاسو زما نه ناراضه شوی خونه یئ هغه دریو سړو جواب ورکړو نه اې خما وروره! الله دې تا معاف کړي مونږ ستا نه ناراضه شوی نه یو. (مسلم)

**حل اللغات:** - ⑴ نَفَر: أَيْ: جَمَاعَةٌ: جماعت، (له (د نفر اطلاق د دریو سړو نه تر لس سړو پورې جماعت باندې کیږي) ⑵ سُيُوفُ اللَّهِ: توري دالله (یعنی دَ الله تعالی دَجهاد دَپاره چه کومې توري استعمالیږی هغې ته سیوف الله ونیلې شوی دی) ⑶ شَيْخ: مشر او سردار مراد دې.

**تسهیلات:**

**قوله: مَا أَخَذَتْ سُيُوفُ اللَّهِ:**

**دحدیث پس منظر:** یعنی دَمسلمانانو په لاسونو کښې چه دَ الله تعالی دَجهاد دَپاره کومې توري تیارې دی آیا تردې وخته پورې دَالله تعالی دَدښمن ابوسفیان سټ هغې نه دې

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم /باب من فضائل سلمان، وصهیب، وبلال رضی الله تعالی عنهم (رقم-۱۷۰ - (۲۵۰٤) واحمد فی المسند: ٦٤/٥

الوزولي؟ صحابه کرامو داخبره هغه وخت اوکړه کوم وخت چه ابوسفیان دمکې مکرمې نه دصلح حدیبیه دتجدید دپاره مدینې منورې ته راغلې وو. هغه وخت ابوسفیان مسلمان شوې نه وو هغه وخت دغه فقیرانودجهاد جذبې لاندې دا جمله اووئیله

**دابوبکر رضی الله عنه خفگان:** په دې باندې حضرت ابوبکر رضی الله عنه خفگان ښکاره کړو اوبیالاړو حضورپاك سره ئې ددې تذکره اوکړه. حضورپاك اوفرمائیل که چرې تا دا غریبانان اوفقیران خفه کړی دی نوبیاد ساته چه تا خپل رب ناراض کړې دې. په دې باندې حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه هغوی له لاړو معذرت کولوسره ئې معافی اوغوښتله هغوی په ربنتونی زړه سره معاف کړو په دې سره دَدغه په خاوړو ناستوخلقوشان واضحه شو ربنتیا دی.

**[٦٢١٥] دا نصارو سره محبت اود ایمان نښه**

٦٢١٥-(¹) [٢٠] [١] وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ [٢] «آيَةُ الْإِيمَانِ حُبُّ الْأَنْصَارِ [٣] وَآيَةُ النِّفَاقِ بُغْضُ الْأَنْصَارِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] د ایمان یعنی د کمال ایمان نښه ټول انصارو سره محبت ساتل دی [٣] او د نفاق نښه انصارو سره بغض او دښمني ساتل دي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① آيَةُ الْإِيمَانِ: أَيْ: عَلَامَةُ كَمَالِهِ: دکامل ایمان نښه او علامت.

**تسهیلات:**

**قوله:** آيَةُ الْإِيمَانِ حُبُّ الْأَنْصَارِ:

**دانصارو محبت دایمان نښه گرځیدو وجه:** دَ اسلام راوړلو نه مخکښې دوه قبیلې اوس اوخزرج وې. دوی په خپل مینځ کښې ډیر زیات دَ یو بل دښمنان وو. وئیلی شی چه دَ هجرت دَ وخت پورې مسلسل شپږ شلې کالو پورې دَدې دوو قبیلو په مینځ کښې جنګ روان وو لیکن چه کله دواړو اسلام قبول کړو نودَ دواړو دښمنی په محبت کښې بدله شوه. ځان اخستونکی ځان قربانونکی جوړشو او دَ وینو تږی وینه ورکونکی جوړ شو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم دې دواړو قبیلو ته دَ انصار لقب ورکړو. دوی دَ حضورپاك دَ ځان اومال دواړو په اعتبارسره امدادیان جوړ شو. چونکه هغوی دَ حضورپاك محبت اخستو سره دَ ټولو عربو اوعجمو دښمنی اخستې وه په دې وجه ضروری وه چه دَهغوی محبت دَ ایمان علامت اودَ هغوی عداوت دَ کفر او نفاق علامت اوګرځولې شی

¹ اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب حب الأنصار (رقم-٣٧٨٤) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب الدلیل علی أن حب الأنصار وعلی رضی الله عنهم من الإیمان وعلاماته، وبغضهم من علامات النفاق (رقم-١٢٨ - (٧٤) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی فضل الأنصار وقریش (رقم-٣٩٠٠) والنسائی فی کتاب الإیمان وشرائعه/باب علامة الإیمان (رقم-٥٠١٩) واحمد فی المسند: ٧٠/٣

**[٦٢١٦] د انصارو محبت د الله تعالی د محبت ذریعه**

٦٢١٦-()[٢١] ① وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ ② «الْأَنْصَارُ لَا يُحِبُّهُمْ إِلَّا مُؤْمِنٌ وَلَا يَبْغَضُهُمْ إِلَّا مُنَافِقٌ ③ فَمَنْ أَحَبَّهُمْ أَحَبَّهُ اللَّهُ وَمَنْ أَبْغَضَهُمْ أَبْغَضَهُ اللَّهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت براء بن عازب انصاري ﷛ وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل ② انصارو سره هغه څوك محبت ساتي چې كامل مؤمن وي او انصار شره هغه سړی دښمني ساتي چې حقيقي منافق يا مجازي منافق يعنی فاسق وی ③ كوم سړی چې انصار محبوب لري الله ﷻ هغه محبوب لري او كوم سړی چې انصارو سره دښمني ساتي الله ﷻ هغه سره دښمني ساتي. (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** الْأَنْصَارُ لَا يُحِبُّهُمْ إِلَّا مُؤْمِنٌ..الخ:

**انصارو سره بغض دالله تعالی د دشمنۍ سبب:** انصارو سره به محبت هم هغه كس كوی څوك چه كامل مؤمن وی او انصارو سره به بغض هم هغه كوی چه دعقيدې يا د عمل منافق وی. ځكه چه اګرچه ايمان د زړه څيز دې مګر د دې ظاهری علامات په بدن كښې موجود دی.

د حديث الباب نه هم د انصار صحابه كرامو عظمت معلوميږی. دارنګ د حديث الباب نه دينی محبت او دينی عداوت مراد دې دنياوی اختلاف مراد نه دې.

**[٦٢١٧] د انصارو خوشحالولو دپاره حيرا نكونكی جمله**

٦٢١٧-()[٢٢] ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ «إِنَّ نَاسًا مِنَ الْأَنْصَارِ قَالُوا حِينَ أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْ أَمْوَالِ هَوَازِنَ مَا أَفَاءَ ② فَطَفِقَ يُعْطِي رِجَالًا مِنْ قُرَيْشٍ الْمِائَةَ مِنَ الْإِبِلِ ③ فَقَالُوا يَغْفِرُ اللَّهُ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُعْطِي قُرَيْشًا وَيَدَعُنَا وَسُيُوفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ. ④ فَحُدِّثَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِمَقَالَتِهِمْ

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷛ وايي د انصارو بعضې خلقو هغه وخت دشكوی اظهار وكی هركله چې الله ﷻ خپل رسول ته د قبيله هوازن هغه مال غنيمت عطا كی كوم چې وركول وو ② اوحضور ﷺ قريشوكي څو څو خلقو ته سل سل اوښان وركول شروع كړل ③ نو په انصاروكې هغه بعضې خلقواوويل الله ﷻ دي رسول الله ﷺ وبخښي حضور ﷺ قريشو

[1] اخرجه البخاری فی كتاب المناقب/باب حب الأنصار (رقم-٣٧٨٣) ومسلم فی كتاب الإيمان/باب الدليل على أن حب الأنصار وعلى رضی الله عنهم من الإيمان وعلاماته، وبغضهم من علامات النفاق (رقم-١٢٨ - (٧٤) وابن ماجه فی كتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل الأنصار (رقم-١٦٣) واحمد فی المسند: ٩٤/٤

[2] اخرجه البخاری فی كتاب فرض الخمس/باب ما كان النبی صلى الله عليه وسلم يعطی المؤلفة قلوبهم وغيرهم من الخمس ونحوه (رقم-٣١٤٧) ومسلم فی كتاب الزكاة/باب إعطاء المؤلفة قلوبهم على الإسلام وتصبر من قوی إيمانه (رقم-١٣٢ - (١٠٥٩) واحمد فی المسند: ١٦٦/٣

ته خو دومره زیات ورکوي او مونږ ته زیات نه راکوي حالانکه زمونږ د توزو نه د دښمن وينه خون څاڅي۴ هرکله چې د رسول الله ﷺ په علم کې د دې خلقو شکوه راوستل شوه

**حل اللغات:-** ①أَفَاءَ اللّٰهُ: أي: أعطاهُ: مال غنیمت ورکړو الله تعالی. ②فَطَفِقَ: أي: فَأَخَذَ وَشَرَعَ: شروع ني اوکړه (د مال غنیمت دورکولو). ③تَقْطُرُ: أي تَنْقِطُ: څڅولې او بهیولې. ④فَحُدِّثَ: أي: فَأُوحِيَ: بیان کړې شو، وحی ورته اوکړې شوه.

۱ فَأَرْسَلَ إِلَى الْأَنْصَارِ فَجَمَعَهُمْ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ وَلَمْ يَدْعُ مَعَهُمْ أَحَدًا غَيْرَهُمْ ۲ فَلَمَّا اجْتَمَعُوا جَاءَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۳ فَقَالَ مَا حَدِيثٌ بَلَغَنِي عَنْكُمْ، فَقَالَ فُقَهَاؤُهُمْ: أَمَّا ذَوُو رَأْيِنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَلَمْ يَقُولُوا شَيْئًا ۴ وَأَمَّا أُنَاسٌ مِنَّا حَدِيثَةٌ أَسْنَانُهُمْ قَالُوا يَغْفِرُ اللّٰهُ لِرَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُعْطِي قُرَيْشًا وَيَدَعُ الْأَنْصَارَ وَسُيُوفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ،

**ترجمه:** ۱ نو حضور ﷺ ټول انصار راوغوښتل او خپله هغه خیمي کې یې راجمع کړل کومه چې د څرمن جوړه شوي وه هغوئ سره یې نور خلق راونه بلل ۲ هرکله چې ټول انصار راجمع شول نو رسول الله ﷺ هغوئ ته تشریف راوړی ۳ او ورته یې وفرمایل څه خبره ده چې ستاسو د طرف نه ماته رارسول شوي ده هغه انصاروکي چې کوم عقلمند او دانا خلق وه هغوئ اوویل یارسول الله! په مونږ کې عقلمند او ذي رایي خلقو هیڅ نه دي ویلي ۴ هو په مونږ کې څه نوعمر او ځوانانو ناپوهي سره داخبره ضرور کړي ده چې الله ﷻ دي رسول الله ﷺ وبخښي چې قریشو ته خو دومره زیات عطاکوي او مونږ انصارو ته زیات نه راکوي حالانکه زمونږ د تورو نه د دښمن وینه څاڅي

**حل اللغات:-** ⑤قُبَّةٍ: أي: خَيْمَةٍ: خیمه، ⑥أَدَمٍ: أي: جِلْدٍ: څرمن، ⑦ذَوُو رَأْيِنَا: أي: أَصْحَابُ عُقُولِنَا وَفُهُومِنَا: عقلمند اوهوښیار خلق. ⑧حَدِيثَةٌ: أي: جَدِيدَةٌ: نوې، جدید، ⑨أَسْنَانُهُمْ: د سِنّ جمع ده، د عمر په معنی کښې دې، د حدیث السن نه مراد الشُّبَّانُ یعنی ځوانان دي.

۱ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِنِّي أُعْطِي رِجَالًا حَدِيثِي عَهْدٍ بِكُفْرٍ أَتَأَلَّفُهُمْ ۲ أَمَا تَرْضَوْنَ أَنْ يَذْهَبَ النَّاسُ بِالْأَمْوَالِ وَتَرْجِعُونَ إِلَى رِحَالِكُمْ بِرَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۳ قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَدْ رَضِينَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ بیا رسول الله ﷺ وفرمایل حقیقت دادی چې کوم خلق اوس اوس لږ ورځې مخکې کافران وه هغوئ ته زه ددي مال نه ورکوم او داسې چې د هغوئ زړونه اسلام ته راماتل کړم (یعنی هغوئ ته د زیات ورکولو واحد مقصد تالیف قلوب دی چې هغوئ په اسلام باندې قائم پاتې شي دي نه علاوه بل هیڅ مقصد نه دي) ۲ او اې انصارو! آیا تاسو په دې راضي نه یې چې ستاسو نه علاوه هغه خلق چې مؤلفة القلوب دي مال او اسباب اخستو سره واپس ځي او تاسو خلق رسول الله ﷺ اخستو سره خپلو مکانونو ته واپس لاړشئ ۳ انصارو د حضور ﷺ دا په اثر ارشاد اوریدو سره اوویل هو یارسول الله! مونږ په

دي راضي يو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**-⑩حَـدِيثِي عَهْـدٍ: اوسني حالت، موجوده وخت، ددې نه مراد نوی مسلمانان شوی اصحاب دی دکومو چه دکفر زمانه بالکل نزدې وه. ⑪أَتَأَلَّفُهُمْ: أَيْ: أَطْلُبُ أُلْفَتَهُمْ بِالْإِسْلَامِ: زه غواړم چه ددوی داسلام سره مینه محبت زیات شی (ځکه ورته زیات مال ورکوم). ⑫رِحَالِكُمْ: أَيْ: مَنَازِلِكُمْ: خپلو کورونو ته.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنْ أَمْوَالِ هَوَازِنَ مَا أَفَاءَ:

**په جنګ حنين کښې د مال غنيمت مقدار:** دجنګ حنين په مال غنيمت کښې دَ نقدو مالونونه علاوه څلوېښت زره چيلئی ملاؤ شوې وې اوبيا ۲۴ زره اوښان په لاس راغلي وو او شپږ زره سړی ګرفتارشوی وو. جعرانه مقام باندې حضورپاك چه کله دا مال تقسيم کړونو بعضې نوی مسلمان شوی قريشوته ئی ډير څه ورکړه. ابوسفيان ته ئی سل اوښان ورکړه هغه دَ خپل ځوئی معاويه دَپاره غوښتې وو نوحضورپاك سل اوښان نور ورکړه. بيا هغه دَ دويم ځوئی دَپاره اوغوښتل نوحضورپاك هغه ته سل اوښان نور ورکړه. کله چه دَ انصار ځوانانومجاهدينو دا شفقت اومهرباني اوليدله نوحيران پاتې شو چه دکوموخلقو په وينوباندې زمونږ تورې رنګين دی اوسه پورې لااوچې شوې هم نه دی اوحضورپاك مونږ پرېږدی اوپه هغوی باندې احسان کوی. دا شکايت حضورپاك ته اورسيدو نوحضورپاك ټول په يوخائی راجمع کړه اويوبليغ خطبه ئی ورکړه اوحقيقت حال ئی واضح کړو. په دې باندې انصاروپه چغوچغواوژړل. حضورپاك هغوی ته دا هم اوخودل چه په تاسو باندې به بياهم نوروخلقوته ترجيح ورکولې شی مګر تاسو صبراوکړئی ترهغه وخته پورې چه په حوض کوثرباندې ماسره ملاقات اوکړئی. دَ انصاروسره متعلق په احاديثوکښې دَدې خطبه څه جملې به روستو راځی عجيبه خطبه وه.

**[۶۲۱۸] دا نصارو درې خصوصيات**

۶۲۱۸-(¹) [۲۳] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②«لَوْلَا الْهِجْرَةُ لَكُنْتُ امْرَأً مِنَ الْأَنْصَارِ وَلَوْ سَلَكَ النَّاسُ وَادِيًا وَسَلَكَتِ الْأَنْصَارُ وَادِيًا أَوْ شِعْبًا لَسَلَكْتُ وَادِيَ الْأَنْصَارِ وَشِعْبَهَا، ③ الْأَنْصَارُ شِعَارٌ وَالنَّاسُ دِثَارٌ ④ إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ بَعْدِي أَثَرَةً فَاصْبِرُوا حَتَّى تَلْقَوْنِي عَلَى الْحَوْضِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ② که هجرت نه وی

¹ اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب غزوة الطائف فی شوال سنة ثمان، قاله موسی بن عقبة (رقم-۴۳۳۰) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب إعطاء المؤلفة قلوبهم علی الإسلام وتصبر من قوی إیمانه (رقم-۱۳۹ - (۱۰۶۱) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی فضل الأنصار وقریش (رقم-۳۸۹۹) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل الأنصار (رقم-۱۶۴) واحمد فی المسند: ۵۷/۳

نو زه به هم انصارو کې يوسړی وم که خلق يو وادي کې يعنی حسي اويا معنوي لار باندې ځي او انصار څه دويمي لار باندې ځي نو زه به په هغه لاره باندې ځم کومه چې د جماعت انصار لاره ده[٣] انصار خو د شعارلاندي کپړي په شان دی او نور خلق د دثاربورته کپړي په شان دي [٤]اې انصارو تاسو به زما نه وروسته ووينئ چې داسې امراء به راشي چې نورو خلقوته به ددنيااومال په باره کې په تاسو باندې ترجيح ورکوي ، نو تاسو صبر کوئ ددي پورې چې ما سره په حوض کوثر يوځاي شي.

**حل اللغات:-** ①سَلَكَ: ځی، روان شی، ②وَادِيًا: أَيْ: طَرِيقًا: لار (حسی لار وی اوکه معنوی)، ③شِعْبًا: شعب کندې ، کندو ته وائی دَدې جمع شعوب ده. ④شِعَارٌ: وَهُوَالثَّوْبُ الَّذِي يَلِي شَعْرَالْبَدَنِ: دا دَ شعر نه دې ويښتوته وائی. دَبدن ويښتوسره لګيدلې کپړا مراد ده چه په عام توګه بنين وی يا قميص وی ⑤دِثَارٌ: وَهُوَالثَّوْبُ الَّذِي فَوْقَ الشِّعَارِ: دادَ دثر نه دې پيړې کپړې ته وائی چه دَعام کپړو دَپاسه اغوستلې شی لکه کوټ واسکټ يا څادر وغيره. ⑥أَثَرَةً: أَيْ: اسْتِئْثَارًا: ترجيح ورکول. غوره کول.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَوْلَا الْهِجْرَةُ لَكُنْتُ امْرَأً مِنَ الْأَنْصَارِ:

**دنبی عليه السلام عاجزی:** دلته حضور ﷺ دځان دپاره ياخو د تواضع او کسر نفسی اړخ اختيار کی ، او دانصارو دلجوئی دهغوی رفعت او منزلت يی ښکاره وفرمايی ،

**قوله:** لَسَلَكْتُ وَادِيَ الْأَنْصَارِ وَشِعْبَهَا،

**د مذکوره جملې په تشريح کښې دوه اقوال:** ① په هغه زمانه کښې به دا کيدل ، چی دڅه قافلې يا قبيلې سردار به کومې درې يا کنډ اوته دننه کيدو سره تيريدل غوښتل ، نو ټوله قافله او ټوله قبيله به هغه پسی پسی هغه درې يا کنډاؤ کی داخليدل او بيا دهغه ځايه د تيريدلو پس ټول به خپل منزل يا فراخي لارې باندې روانيدل نو حضور ﷺ وفرمايل که چيرې داسی وی ، چی ټول خلق دوو ډلو کی تقسيمدو سره يو منزل طرف ته روان شی ، په هغوی کې يوه ډله انصارو باندې مشتمل وی ، او دويمه ډله باقی خلقو باندې او دهغه دواړو ډلو لار جدا جدا وی ، نو زه به دويمه ډله پريښودلو سره په هغه لار ځم کومه چی انصارو اختيار کړی وی ،په دی صورت کی دا وئيل کيږي چی ددې ارشاد ګرامی مقصد دانصارو په حقله دحضور ﷺ کمال تعلق او ارتباط او په هغوی دحضور ﷺ د کمال عنايت او شفقت اظهار دی ،

② د وادی او شعب کومی معنی دلته مراد دی هغه د دوی رايی ده ، مطلب دا چی په يوه معامله کی دخلقو منځ کی رايی او دمسلك داختلاف اظهار وی ، نو زه به هغه رايی او مسلك اختياروم ، کوم چی دانصارو اختيار کړده وی ، او دهغوی موافقت به کوم ، په دی صورت کی بيادا وئيل کيږي چی په دی ارشاد ګرامی نه دحضور ﷺ مقصد انصارو سره

دحسن موافقت او مرافقت اظهار كول دى ، ځكه چې انصارو ته هم دحضور ﷺ دا وينا وه چې په تاسو بلا استحقاق فضيلت وركول شي نو تاسو صبر كوئ ددي پورې چې ما سره په حوض كوثر يوځاي شي. (بخاري)

**قوله:** الْأَنْصَارُ شِعَارٌ وَالنَّاسُ دِثَارٌ.

**دثار سره د تشبيه مقصد:** دَدي كلام مقصد دادې چه انصار دَ قرب منزلت په اعتبار سره حضورپاك ته دَ ټولو نه زيات نيزدې دى لكه چه انصار دَ حضورپاك زړه او ګردې دى اوباقى خلق دَ ظاهرى بدن دَ اندامونو په شان دى.

**[۶۲۱۹] انصارو سره د كمال قرب او تعلق اظهار**

۶۲۱۹ -() [۲۳] ① وَعَنْهُ قَالَ «كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ الْفَتْحِ ② فَقَالَ مَنْ دَخَلَ دَارَ أَبِي سُفْيَانَ فَهُوَ آمِنٌ وَمَنْ أَلْقَى السِّلَاحَ فَهُوَ آمِنٌ» ③ فَقَالَتِ الْأَنْصَارُ أَمَّا الرَّجُلُ فَقَدْ أَخَذَتْهُ رَأْفَةٌ بِعَشِيرَتِهِ وَرَغْبَةٌ فِي قَرْيَتِهِ وَنَزَلَ الْوَحْيُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي دمكې د فتح په ورځ مونږ خلق د رسول الله ﷺ ملګرتيا كې وو ② په هغه ورځ حضور ﷺ اعلان كړى وو چې مشركينو كې كوم سړى د ابوسفيان په كوركي داخل شي هغه په امن كې دى او مشركينو كې چاچې اسلحه وغورځوله هغه په امن كې دى ③ بعضې انصارو دا اعلان اوريدو سره خپلو كې اوويل چې دې سړي يعنى حضور ﷺ باندې د خپل قوم په حقله مروت او مهرباني او خپل كلى والاو يعنى اهل مكه په حقله د رغبت او شوق جذبه طبعي طور سره غالبه راغلې ده نو رسول الله ﷺ باندې وحي نازلې شوې چې د هغه په ذريعه حضور ﷺ خبر شو چې انصار داسې داسې وايي

**حل اللغات:-** ① رَأْفَةٌ: أَيْ: شِدَّةُ رَحْمَةٍ: مهرباني، نرمي. ② رَغْبَةٌ: أَيْ: مَحَبَّةٌ: محبت، شوق.

① قَالَ قُلْتُمْ أَمَّا الرَّجُلُ فَقَدْ أَخَذَتْهُ رَأْفَةٌ بِعَشِيرَتِهِ وَرَغْبَةٌ فِي قَرْيَتِهِ ② كَلَّا إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ هَاجَرْتُ إِلَى اللَّهِ وَإِلَيْكُمْ. ③ الْمَحْيَا مَحْيَاكُمْ وَالْمَمَاتُ مَمَاتُكُمْ.

**ترجمه:** ① په دې حضور ﷺ انصار راوبلل او هغوئ ته يې وفرمايل تاسو داسې داسې ويلي دي چې دې سړى باندې د خپل قوم د مروت مهرباني او د خپل كلي والو په حقله د رغبت او شوق جذبه غالب راغلې ده ② نه داسې نه ده حقيقت دادى چې زه د الله جل جلاله بنده او د الله جل جلاله رسول يم ماد الله جل جلاله طرف ته (يعنى د الله جل جلاله په حكم سره او د الله جل جلاله داجر او انعام حاصلولو د پاره) او ستاسو طرف ته (يعنى ستاسو دد يار وطن طرف ته) هجرت كړى دى ③ اوس خو ځما ژوند ستاسو ژوند سره دى او ځما مرګ هم ستاسو مرګ سره دى

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الجهاد والسير/باب فتح مكة (رقم-۸۶ - (۱۷۸۰)

**حل اللغات:** ① اَلۡمَحۡيَا مَحۡيَاكُمۡ: زما ژوند ستاسو ژوند دي. ② اَلۡمَمَاتُ مَمَاتُكُمۡ: زما مرګ ستاسو مرګ دي.

١ قَالُوا: وَاللّٰهِ مَا قُلۡنَا إِلَّا ضِنًّا بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ. ٢ قَالَ: فَإِنَّ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ يُصَدِّقَانِكُمۡ وَيَعۡذُرَانِكُمۡ». رَوَاهُ مُسۡلِمٌ.

**ترجمه:** ١ په دې اوريدو سره هغه انصارو د معذرت اظهار کولو سره عرض وکړو په الله قسم چې مونږ دا خبره صرف ځکه وکړه چې الله او د الله رسول سره مونږ ته بخل وو ٢ حضور ﷺ وفرمايل الله او د هغه رسول ستاسو تصديق کوي او تاسو درست ګڼي او ستاسو دا معذرت قبلوي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ⑤ ضِنًّا: أَيۡ: شُحًّا وَبُخۡلًا: بخل، کنجوسي، حرص.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنۡ دَخَلَ دَارَ أَبِي سُفۡيَانَ فَهُوَ آمِنٌ:**

**د حديث پس منظر:** په ٨ هجرى کښې نبى کريم ﷺ دَ خپلو لسو زرو مجاهدينو صحابه کرامو سره دَمکې دَفتح کولو دَپاره تشريف راوړو. ابوسفيان ته اندازه وه چه مکې والا مقابله نه شي کولې. په دې وجه هغه دَ صلح دَپاره دَ مذاکراتو اودَخپل قوم قريش دَ بچ کولو دَپاره دَ رسول الله ﷺ طرف ته راروان شو. حضرت عباس رضي الله عنه هغه دَ حضورپاك په اوبنه باندې سورکړو اومکې سره نيزدې يوځائی مرالظهران پورې هغه بوتلوچرته چه حضورپاك ډيره اچولې وه. کله چه ابوسفيان په زبانی توګه باندې اسلام قبول کړو نوحضرت عباس رضي الله عنه اوفرمائيل يا رسول الله ﷺ دا سړی شان شوکت خوښونکې دې دَقوم مشرهم دې ده ته څه اعزاز ورکړه دې دَپاره چه دې خپل قوم ته اوښولې چه دَهغوی دَ بچ کولودَپاره ابوسفيان دا کارنامه اوکړه. هم په دې موقع باندې حضورپاك اوفرمائيل "من دخل دار ابي سفيان فهوآمن" يعنی څوك چه دَابوسفيان په کورکښې داخل شو هغه به امن کښې وی.

**قوله: وَمَنۡ أَلۡقَى السِّلَاحَ فَهُوَ آمِنٌ،**

**د وسلې په غورځولو امن ملاويدل:** ابوسفيان ونيل دا امن کافی نه دې زما پوره قوم زما په کورکښې نه شي راتلې نوبيا حضورپاك اوفرمائيل "من اغلق عليه الباب فهو امن" يعنی چاچه دکوردروازه بنده کړه هغه په امن کښې دې. چاچه وسله اوغورزوله هغه په امن کښې دې. بيا ابوسفيان اوونيل چه اودا امن مکمل دې. په دې باندې انصارو اوونيل چه حضورپاك قومی خاندانی اومعاشرتی محبت کښې راګيردې اوس خو مونږ پاتې شو. حضورپاك خپلو خلقوله لاړو. په دې باندې حضورپاك جواب ورکړو زما مرګ اوزما ژوند نن نه پس تاسو سره دې. ژوندبه هم تاسوسره تيروم اومرګ به هم تاسوسره راځی.

**قوله: إِلَّا ضِنًّا بِاللّٰهِ:**

**د مذکوره جملې مطلب:** يعنی مونږ دا جمله دَ څه دنياوی مقصد اوغرض دَپاره نه ده ونيل

بلکه دَ حرص لاندې مو ونیلې ده چه تاسو زمونږ نه جدا نه شئ اوددې عظیم نعمت نه مونږ محروم پاتې نه شو.

**[٦٢٢٠] د نبی علیه السلام انصارو سره د محبت اظهار**

٦٢٢٠-(¹) [٢٥] [١] وَعَنْ أَنَسٍ [٢] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَأَى صِبْيَانًا وَنِسَاءً مُقْبِلِينَ مِنْ عُرْسٍ [٣] فَقَامَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٤] فَقَالَ اللَّهُمَّ أَنْتُمْ مِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ اللَّهُمَّ أَنْتُمْ مِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ يَعْنِي الْأَنْصَارَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی [٢] یوه ورځ رسول الله ﷺ د انصارو بچی او ښځې د یو واده وغیره د دعوت طعام نه واپس راتلونکي ولیدل [٣] نو نبي ﷺ د هغوئ په لار کې یا د هغوئ سره یوځاي کیدو د پاره یو ځاي باندې اودریدلو [۴] او هغوئ مخاطب کولو سره یې وفرمایل خداونده! زه تا ګواه کولو سره د انصارو دې ښځو او بچوته وایم چې اې انصارو! په ټولو خلقوکي تاسو ځما په نزد محبوب ترین یئ خداونده! زه تا ګواه کولو سره وایم چې اې انصارو! په ټولو خلقوکي تاسو ځما په نزد محبوب ترین یئ د حضور ﷺ مراد د أَنْتُمْ نه ټول انصار وو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** -① مُقْبِلِينَ: أَيْ: رَاجِعِينَ: واپس راتلونکی ② عُرْسٍ: أَي طَعَامُ الْوَلِيمَةِ: د واده روټئ، ولیمه

**تسهیلات:**

**قوله:** رَأَى صِبْيَانًا وَنِسَاءً مُقْبِلِينَ مِنْ عُرْسٍ:

**د نبی علیه السلام انصارو ته خطاب:** دَ واده دَ دعوت نه دَ انصار ماشومان او ښځې راتلې حضورپاك مخامخ اودریدو اوئی فرمائیل "اللهم انتم" په دې جمله کښې التفات دې اصل عبارت داسې دې "اللَّهُمَّ أَنْتَ تَعْلَمُ صِدْقِيْ فِيْمَا أَقُوْلُ فِيْ حَقِّ الْأَنْصَارِ" دَ دې جملې نه پس حضورپاك په توګه دَ التفات انصار مخاطب کړه اووئی فرمائیل "أَنْتُمْ مِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ".

**[٦٢٢١] انصارو سره د احسان کولو وصیت**

٦٢٢١-(²) [٢٦] [١] وَعَنْهُ قَالَ «مَرَّ أَبُو بَكْرٍ وَالْعَبَّاسُ بِمَجْلِسٍ مِنْ مَجَالِسِ الْأَنْصَارِ وَهُمْ يَبْكُونَ [٢] فَقَالَا مَا يُبْكِيكُمْ فَقَالُوا ذَكَرْنَا مَجْلِسَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنَّا فَدَخَلَ أَحَدُهُمَا عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَخْبَرَهُ بِذَلِكَ [٣] فَخَرَجَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَقَدْ عَصَبَ عَلَى رَأْسِهِ حَاشِيَةَ بُرْدٍ فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ وَلَمْ يَصْعَدْ

---

¹ اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم للأنصار: «أنتم أحب الناس إلی» (رقم-٣٧٨٥) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل الأنصار رضی الله تعالی عنهم (رقم-١٧٤ - (٢٥٠٨)

² اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «اقبلوا من محسنهم وتجاوزوا عن مسیئهم» (رقم-٣٧٩٩) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل الأنصار رضی الله تعالی عنهم (رقم ١٧٦ - (٢٥١٠) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی فضل الأنصار وقریش (رقم ٣٩٠٤) واحمد فی المسند:١٨٨/٣

بَعْدَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ فَحَمِدَ اللّٰهَ تَعَالٰى وَأَثْنٰى عَلَيْهِ

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه بیان کوي د حضور ﷺ د مرض وفات په دوران کې یوه ورځ حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عباس رضي الله عنه د انصارو یومجلس باندې تیر شو نو وي لیدل چې هغه اهل مجلس ناست ژړل یې [۲] هغه دواړو حضراتو د هغوئ نه پوښتنه وکړه تاسو ولې ژاړئ هغوئ اوویل زمونږ په منځ کې د رسول الله ﷺ مجلس مونږ ته رایاد شو په دې اوریدو سره هغه دواړو کې یوصاحب حضرت ابوبکر رضي الله عنه یا حضرت عباس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او حضور ﷺ یې دې خبرې نه آگاه کړ (چې د انصارو جماعت ستاسو مجلس مبارك یادولو سره ژاړي) [۳] نو رسول الله ﷺ په دې حالت کې حجرې مبارکې نه بهر تشریف راوړې چې دسر درد د کمولو د پاره د ځادر یوڅاك د پټي په طور سرمبارك باندې تړلي وو بیا خطبې ورکولو د پاره منبر باندې کیناستې چې د هغه ورځې نه وروسته بیا حضور ﷺ ته منبرته ختل نصیب نه شو مخکې حضور ﷺ د الله جل جلاله حمد او د هغه کامله ثناء بیان کړه

**حل اللغات:-** ① عَصَبَ: أَيْ: رَبَطَ وَشَدَّ: په سرباندې پټئ تړل او کپړا راتاوولو ته وائي. ② حَاشِيَةً: یعنې د ځیل ځادر غاړه ئې د پټئ په توګه په سرمبارك باندې تړلې وه (چه د سر درد ورسره قلار شي) ③ بُرْدٍ: ځادر.

[۱] ثُمَّ قَالَ أُوصِيكُمْ بِالْأَنْصَارِ فَإِنَّهُمْ كَرِشِي وَعَيْبَتِي. [۲] وَقَدْ قَضَوُا الَّذِي عَلَيْهِمْ وَبَقِيَ الَّذِي لَهُمْ [۳] فَاقْبَلُوا مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَتَجَاوَزُوا عَنْ مُسِيئِهِمْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بیا یې وفرمایل اې مهاجرو! زه تاسو ته د انصارو په باره کې وصیت کوم چې د دوئ سره د رعایت او حمایت او حسن سلوك رویه اختیاروئ ځکه چې انصار ځما جاعت صحابه، اصحاب راز اومحبوب او ځما جامه دانې دي [۲] په دې کې شك نشته چې په هغوئ کوم حق وو هغه هغوئ اداکړی دی او څه چې د هغوئ حق دي یعنې اجر او ثواب او د جنت سرفرازي هغه د الله سره باقي دی [۳] نو د هغوئ د نیکو خلقو عذر چې د خپل څه خطا یا کوتاهي سلسله کې بیان کړي قبلوئ یې او د هغوئ د خرابو خلقو د خرابو کارونو نه چې د هغه عذر پیش کولو نه هغوئ عاجزه وي درګذر معافي کوئ (بخاري)

**حل اللغات:-** ④ كَرِشِي: أَيْ: بِطَانَتِي: یعنې انصار زما باطن دی په کوم کنبې چه زړه ګرده او کولمې ټول هرڅه راخی ⑤ عَيْبَتِي: عیبة اصل کنبې صندوقچه او منګی ته وائی په کوم کنبې چه ضروری سامان کیخودې شی. دلته ددې ډیرې معانې کیدې شی بعضې دادی زما خاص خلق، خاص جماعت او ملګری، دمحبت لائق خلق، رازدار. ⑥ قَضَوْا: أَيْ: أَدَّي الْأَنْصَارُ: پوره کړو انصارو (خپل حق یعنې وفا ئې اوکړه)

**تسهیلات:**

**قوله:** ذَكَرْنَا مَجْلِسَ النَّبِيِّ:

**د مذکوره جملې مطلب:** یعنې کوم وخت چه حضورپاك بیمارشوې نه وو مونږ ټول به یوځائې کیناستو. اوس دَ بیمارئې دَ وجې نه حضورپاك دکور نه بهر نه شي راتلې. دَ حضورپاك مجلس چه کله رایادشو نوژړا راغله.

**قوله:** كَرِشِي:

**د کرش څخه مراد:** په کاف زبر راء باندې زیردې په یوه نسخه کښې په کاف باندې کسره ده او راء ساکن ده. "ای بطانتی" یعنې انصار زمابا طن دی په کوم کښې چه زړه ګرده او کولمې ټول هرڅه راځي. دادَ عربي محاوره لاندې خاص الخاص. رازدار او نیزدیکت طرف ته اشاره کیږي.

**قوله:** وَعَيْبَتِي:

**د مذکوره ټکي مفهوم:** عرب خلق عیبه ونیلو سره زړه او سینه مراداخلي په کوم سره چه رازدارئې طرف ته اشاره کیږي. ځکه چه دَ انسان راز دَهغه په زړه او سینه کښې وي

**[۶۲۲۲] مالګې سره دا نصارو تشبيه**

٦٢٢٢-() [٢٧] ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «خَرَجَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ ٢ حَتَّى جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ٣ ثُمَّ قَالَ: أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ النَّاسَ يَكْثُرُونَ وَيَقِلُّ الْأَنْصَارُ حَتَّى يَكُونُوا فِي النَّاسِ بِمَنْزِلَةِ الْمِلْحِ فِي الطَّعَامِ ٤ فَمَنْ وَلِيَ مِنْكُمْ شَيْئًا يَضُرُّ فِيهِ قَوْمًا وَيَنْفَعُ فِيهِ آخَرِينَ فَلْيَقْبَلْ مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَلْيَتَجَاوَزْ عَنْ مُسِيئِهِمْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما بیان کوي رسول الله ﷺ د خپلې بیمارۍ په دوران کې چې په هغه کې وفات راتلو یوه ورځ حجرې مبارکې نه بهر راووتلو ٢ منبر باندې تشریف فرماسو اول حضور ﷺ د الله جل جلاله حمد او ثناء بیان کړل ٣ بیا یې وفرمایل پوهه شئ: د خلقو یعنې مسلمانانو تعداد ورځ په ورځ زیاتیږي چې په هغه کې معتد به حصه خپل خپل وطن پرېښودلو سره د هجرت په نیت به مدینې ته راځي او د انصارو تعداد به کم شي ددې پورې چې په نوروخلقوکې به د انصارو تناسب طعام کې د مالګې برابر پاتې شي ٤ نو اې مهاجرینو په تاسو کې چې کوم سړی د څه اقتدار مالك جوړ شي او د هغه په سبب هغه څه خلقوته یعنې نیکو کارو خلقوته فائده رسولړ او څه خلقوته یعنې بدکارو خلقوته د نقصان رسولو اختیار لري نو هغه سړي ته پکار دی چې د انصارو د نیکو کارو نیکې قبوله کړي

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب علامات النبوة فی الإسلام (رقم-۳۶۲۸) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل الأنصار رضی الله تعالی عنهم (رقم-۱۷۶ - (۲۵۱۰) واحمد فی المسند: ۲۸۹/۱

او د هغوئ د بدکارو د بدي نه درګذر معافي وکړي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ①يَقِلُّ: کم به شي، کمیږي به (تعداد او ډله د انصارو) ②وَلِيَ: دا د وِلَايَةٌ نه دي، څه عهده او اقتدار ملاویدل مراد دی

**تسهیلات:**

**قوله: وَيَقِلُّ الْأَنْصَارُ:**

**د انصارو د کمیدو دوه وجوهات:** ① چونکه انصار دَ نصرت نه دي او دَنصرت نه دَمحمدعربی ﷺ او مهاجرینو نصرت مراد دی. نوانصارکیدل یوداسي صفت دي چه چاته دا صفت حاصل شو بس هم هغه ته حاصل شو. کوموخلقوچه دَحضورپاك نصرت کړي وو هغه خلق په دغه زمانه کښي خاص وو دَ بل چا په نصرت سره دَ انصارو صفت نه شي حاصلیدلي په دي وجه چه دَ انصارنه به څوك مړکیدو دَهغوی ډله کمیږي یووخت به داسي راشی چه دَانصار نه به څوك باقي پاتي نه شي

② په دي حدیث کښي جهادکښي دَ انصارخلق زیات شهید کیدو طرف ته اشاره وی اوواقعی انصار په هره یوه معرکه کښي ګڼړ شمیرکښي شهیدان شوی دی

پاتي شو مهاجرین نوهجرت یو زماني سره خاص نه دي لهذا مهاجرین کمیږی نه دَ قیامت پوري چه څوك هجرت کوی دَمهاجر په صفت سره متصف کیږی.

**قوله: فَمَنْ وَلِيَ:**

**انصارو سره د ښیګړي وصیت:** یعنی په تاسوکښي که یوسړي صاحب اقتدار وی اوهغه دَ نفع اونقصان په حیثیت کښي شی نوهغه له پکار دی چه انصارسره ښه سلوك اوکړی هغوی ته معافی اوکړی.

**[٦٢٢٣] دا انصارو دړې نسلونه دعا**

> ۶۲۲۳-() [۲۸] ①وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②«اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ وَلِأَبْنَاءِ الْأَنْصَارِ وَأَبْنَاءِ أَبْنَاءِ الْأَنْصَارِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت زید بن ارقم ﷺ وایي رسول الله ﷺ دعا وفرمایله ② اي الله، انصار او د انصارو خامن او د انصارو لمسي وبخښي (مسلم)

[1] اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب قوله: {هم الذین یقولون: لا تنفقوا علی من عند رسول الله حتی ینفضوا} [المنافقون: ۷] . ینفضوا: یتفرقوا {ولله خزائن السموات والأرض ولکن المنافقین لا یفقهون} (رقم-۴۹۰۶) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب من فضائل الأنصار رضی الله تعالی عنهم (رقم-۱۷۲ - ۲۵۰۶) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب فی فضل الأنصار وقریش (رقم-۳۹۰۹) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل الأنصار (رقم-۱۶۵)

**تسهیلات: قوله**: اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلأَنْصَارِ وَلِأَبْنَاءِ الأَنْصَارِ:

**دانصارو په اولاد دوه اقوال**: په حدیث الباب کښې دریونسلونو ته دعاکړې شوې ده.

(ا)پخپله انصار صحابه کرام دی (ب)دَ انصارو ځامن تابعین (ج) دَ تابعینو ځامن تبع تابعین شو

پس حضورپاك دَ دریوارو دَپاره دعا اوکړه کوم چه دَخیرالقرون مصداق دی

② دا هم ممکن ده چې د ابناء الانصار څخه دَ قیامته پورې هغوی نسلونه مراد وی په کوم کښې چه دَ ځامنو سره لونړه هم شامل دی.

**[٦٢٢٤] دانصارو بهترینې قبیلې**

۶۲۲۴-(۱) [۲۹] ① وَعَنْ أَبِي أُسَيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «- ② خَيْرُ دُورِ الأَنْصَارِ بَنُو النَّجَّارِ ثُمَّ بَنُو عَبْدِ الأَشْهَلِ ثُمَّ بَنُو الحَارِثِ بْنِ الخَزْرَجِ ثُمَّ بَنُو سَاعِدَةَ ③ وَفِي كُلِّ دُورِ الأَنْصَارِ خَيْرٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① او حضرت ابواسید رضي الله عنه وايي چې رسول کریم ﷺ وفرمايل ② د انصارو بهترين کور (یعنی د هغوئ افضل قبائل) بنو نجار بیا بنو عبد الاشهل بیا بنو حارث بن خزرج بیا بنو ساعده دي ③ اود انصارو ټولوقبیلو کې خیر او نیکي ده. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ① دُور: د دار جمع ده، کورونه یا قبیلې.

**تسهیلات**:

**قوله**: وَفِي كُلِّ دُورِ الأَنْصَارِ خَيْرٌ:

**دانصارو د قبیلو فضیلت**: دَانصارو په ټولو قبیلو کښې تعمیم بعد التخصیص دې. اول خو حضورپاك دَ خاص خاص قبیلو ذکر اوکړو بیا ئې په مجموعی توګه دَ ټولو قبیلو باره کښې اوفرمائیل چه هم دَ انصارو ټولوقبیلو ته دَ خیر ښیګړې فضیلت حاصل دی اودَ هغوی ټولې قبیلې دَ اهل مدینه دَ نورو قبیلونه افضل دی

**په حدیث کښې دخیر دوه معانی**: امام عسقلانی رحمه الله فرمائیلی دی چه اول کوم دَ خیر لفظ دې هغه خو دَافضل په معنی کښې دې اودویم خیر دَفضل په معنی کښې مستعمل شوې دې مطلب دا شو چه دَ انصارو ټولو قبیلو ته خیر او فضل حاصل دې ·لیکن دَ مرتبو په اعتبارسره په دې کښې تفاوت دې چه اول څلور قبیلې دَ انصارو دَ زیات فضیلت والا دی. کیدې شی چه دغه څلورو قبائلو دَ دین عالی نصرت اودَ رسول کریم ﷺ خاص خدمت کړې وی.

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب فضل دور الأنصار (رقم-۳۷۸۹) ومسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم/باب فی خیر دور الأنصار رضی الله عنهم (رقم-۱۷۹ - (۲۵۱۱) والترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أی دور الأنصار خیر (رقم-۳۹۱۱)

## [٦٢٢٥]د حاطب بن ابي بلتعه د معافی واقعه

٦٢٢٥-(١)[٣٠] ⑴ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: «بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنَا وَالزُّبَيْرَ وَالْمِقْدَادَ وَفِي رِوَايَةٍ وَأَبَا مَرْثَدٍ بَدَلَ الْمِقْدَادِ ⑵ فَقَالَ: انْطَلِقُوا حَتَّى تَأْتُوا رَوْضَةَ خَاخٍ ⑶ فَإِنَّ بِهَا ظَعِينَةً مَعَهَا كِتَابٌ فَخُذُوهُ مِنْهَا ⑷ فَانْطَلَقْنَا تَتَعَادَى بِنَا خَيْلُنَا حَتَّى أَتَيْنَا إِلَى الرَّوْضَةِ فَإِذَا نَحْنُ بِالظَّعِينَةِ ⑸ فَقُلْنَا أَخْرِجِي الْكِتَابَ قَالَتْ: مَا مَعِي مِنْ كِتَابٍ. ⑹ فَقُلْنَا لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ أَوْ لَتُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ،

**ترجمه:** ⑴ او حضرت علي كرم الله وجهه بيان كوي چې رسول الله ﷺ ما ته زبير رضي الله عنه ته او مقداد رضي الله عنه ته او په يوه روايت كې د مقداد رضي الله عنه په ځاى د ابو مرثد رضي الله عنه ذكر وكړى د روانګي حكم وكړى ⑵ او وي فرمايل تاسو خلق تيز رفتاري سره سفر كولو سره روضه خاخ ته ورشئ ⑶ هلته به يوه ښځه بيا مومي چې د اوښ په سورلي په كجاوه به ناسته وي هغه سره يو خط دى تاسو خلق هغه خط هغه نه آخستو سره راوړئ ⑷ نو مونږ فوراً روان شو او خپل آسونه تيز رفتاري سره زغلولو سره روضه خاخ ته ورسيدو او هغه ښځه مو رالاندې كړه ⑸ مونږ هغه ښځي ته اوويل راوړه هغه خط رااوباسه او مونږ ته يي حواله كړه هغه ښځي اوويل ما سره هيڅ خط نشته ⑹ مونږ لږ تيز كيدو سره ورته اوويل ته خط رااوباسه يا به مونږ ستا نه كپړې ايسته كړو يعنى كه ته خط نه راوكاږې نو مونږ به مجبوراً تا بربنډه كوو چې هغه خط پيدا شي

**حل اللغات:-** ① رَوْضَةَ خَاخٍ: وَهِيَ مَوْضِعٌ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ: د مديني منورې او مكې په مينځ كښې د يو ځائي نوم دې. اخومديني ته نزدې دې. ② ظَعِينَةً: كومه ښځه چه په اوښ باندې سوره شي او په سفر باندې اوځي هغې ته ظعينة وائي. ③ تَتَعَادَى: أَيْ: تَتَسَابَقُ: دمنډو تړرو په معنى كښې راغلې دې. ④ لَتُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ: أَيْ: لَتَرْمِيِنَّ وَتَتَجَرَّدِنَّ: كپړې به درنه اوباسو او بربنډه به دې كړو.

⑴ فَأَخْرَجَتْهُ مِنْ عِقَاصِهَا، ⑵ فَأَتَيْنَا بِهِ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَإِذَا فِيهِ: مِنْ حَاطِبِ بْنِ أَبِي بَلْتَعَةَ إِلَى نَاسٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ يُخْبِرُهُمْ بِبَعْضِ أَمْرِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ⑶ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَا حَاطِبُ مَا هَذَا؟ ⑷ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ لَا تَعْجَلْ عَلَيَّ إِنِّي كُنْتُ امْرَأً مُلْصَقًا فِي قُرَيْشٍ وَلَمْ أَكُنْ مِنْ أَنْفُسِهِمْ ⑸ وَكَانَ مَنْ مَعَكَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ لَهُمْ قَرَابَةٌ يَحْمُونَ بِهَا أَمْوَالَهُمْ وَأَهْلِيهِمْ بِمَكَّةَ ⑹ فَأَحْبَبْتُ إِذْ فَاتَنِي ذَلِكَ مِنَ النَّسَبِ فِيهِمْ أَنْ أَتَّخِذَ فِيهِمْ يَدًا يَحْمُونَ بِهَا قَرَابَتِي ⑺ وَمَا فَعَلْتُ كُفْرًا وَلَا ارْتِدَادًا عَنْ دِينِي وَلَا رِضًا بِالْكُفْرِ بَعْدَ الْإِسْلَامِ

**ترجمه:** ⑴ بيا هغه ښځي هغه خط د خپلې كونځې نه راوښكلو، مونږ ته يي حواله كړې

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير/باب الجاسوس (رقم-٣٠٠٧) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب من فضائل أهل بدر رضي الله عنهم وقصة حاطب بن أبي بلتعة (رقم-١٦١ - (٢٤٩٤) وابوداود في كتاب الجهاد ، باب في حكم الجاسوس إذا كان مسلما(رقم-٢٦٥٠) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في فضل الأنصار وقريش (رقم-٣٩٠٥) واحمد في المسند:١/٨٠

۲و مونږ. هغه خط اخستو سره رسول اللهﷺ ته راغلو هغه خط خلاصولو سره وکتل شو نو په هغه کښې لیکلي وه د حاطب بن ابي بلتعه د طرف نه اهل مکه وو کښې د مشرکینو په نوم بیا مخکښې حاطب د مکي مشرکینو ته د رسول اللهﷺ د بعضې اقداماتو او منصوبو په باره کښې معلومات فراهم کړي وو۳ رسول اللهﷺ (حاطب طلب کړ) او هغه ته یې وفرمایل اې حاطب! داځه دي؟ ماته ونبایه داڅه حرکت تاکړي دی او ولې دي کړي دی؟۴ حاطب اوویل یا رسول الله! خما په باره کښې تادی مه کوئ؛ یعنی خما پوره خبرو اوریدو نه بغیر د دې حرکت په بدله کښې خما متعلق د کفر او سزا فیصله مه کوئ (دراصل زه یوداسې سړي یم چې دقریشو خلقوسره د بهر نه راتلو سره یوځاي شوی یم (یعنی قریشو سره خما څه نسبي او قرابتي تعلق نشته بلکه د بهر نه راغلی په هغوئ کښې شریك شوی یم او محض د هغوئ حلیف یم)۵ هرکله چې ستاسو سره کوم نور مهاجرین دي هغوئ مکي والاو سره قرابت لري او د مکي مشرکین د هغه قرابت لحاظ کولو سره په مکه کښې د هغه مهاجرینو د مال وجائیداد او د هغوئ د اهل وعیال حفاظت کوي (نو په دې بناء چې خما او د مکي د مشرکینو په منځ کښې نسبي او قرابتي تعلق معدوم دی)۶ما وغوښتل چې د هغوئ د پاره څه داسې کارنامه و کړم چې د هغه په بدله کښې هغوئ په مکه کښې خما د قرابتدارو حفاظت کوي ۷تاسو ته د زړه په صدق سره یقین درکوم چې ما دا حرکت په دې وجه نه دی کړي چې زه د سرد په دائره ایمان او اسلام کښې داخل شوی نه یم او کافریم اونه په دې وجه چې زه مخکښې خو مسلمان شوی وم لیکن اوس د دائره اسلام نه وتلی یم او مرتد شوی یم او نه په دې وجه چې د اسلام نه وروسته اوس کفر ماته ښه لګي اود نورِ ایمان نه تعلق ماتولو سره د کفر تیاري ته تلل غواړم

**حل اللغات:-** ⑤عِقَاصِهَا: عقاص دَ عَقِيصَة جمع ده، وَهِيَ الشَّعْرُ الْمَضْفُورُ: دَ سر دَ چوټي دَ ویښتو ګوچی ته وانی یعنی کمڅئ ⑥مُلْصَقًا: أَيْ حَلِيفًا: د بهرنه راتلو سره یو ځاني شوې یم، ⑦يَحْمُونَ: يَحْفَظُونَ وَيُرَاعُونَ: حفاظت ئې کوی او لحاظ ئې ساتی، ⑧فَاتَنِي: فوت شوې دې زمانه. یا ماته حاصل نه دې (یعنی ماته د قریشوسره قرابت اورشته نه ده حاصل) ⑨يَدًا: دَدې جمع ایادی ده. أَيْ: صَنِيعَةً: احسان اوانعام ته وانی

۱ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: إِنَّهُ قَدْ صَدَقَكُمْ ۲ فَقَالَ عُمَرُ: دَعْنِي يَا رَسُولَ اللَّهِ أَضْرِبْ عُنُقَ هَذَا الْمُنَافِقِ. ۳ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: إِنَّهُ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ اللَّهَ اطَّلَعَ عَلَى أَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ: اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ قَدْ وَجَبَتْ لَكُمُ الْجَنَّةُ." ۴ وَفِي رِوَايَةٍ قَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ﴾ [الممتحنة: ۱]". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ (د حاطب داپوره بیان اوریدو سره) رسول اللهﷺ صحابه ؓ ته وفرمایل په دې کښې شك نشته چې حاطب ستاسو مخکښې بالکل ریښتیا بیان کړي دی (حقیقت حال

هغه دی چې هغه خو دلی دي ۲ لیکن عمر فاروق رضی الله عنه اوویل یارسول الله! ماته اجازت راکړئ چې زه د دې منافق څټ ووهم ۳ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل داسې سوچ مه کوه او په دې حقیقت نظر لره چې حاطب غزوه بدر کې شریك شوي دی( په دې حضرت عمر رضی الله عنه اوویل که دې غزوه بدر کې شریك شوي دي نو شریك شوي دي وي اوس خو ده جاسوسي کولو سره د غداري ارتکاب کړی دی او د واقعي سزا مستوجب شوي دي) بیا ورته حضور ﷺ وفرمایل او تاته د حقیقت حال څه علم دی( یعنی ته داخبره څرنګه کولی شې چې حاطب مستوجب قتل دی) ممکنه ده الله جل جلاله اهل بدر خپل خصوصي نظر کرم او مغفرت سره نوازلی وي د بدر د غازیانو په حقله الله جل جلاله فرمایلي دي تاسو چې څه غواړئ کوئ حقیقت خودادی چې جنت ستاسو د پاره واجب شوي دي ۴ او په یوه روایت کې ستاسو د پاره جنت واجب شوي دي په ځای دادی چې تاسو مې بخښلي یې دي نه وروسته الله جل جلاله حاطب او د داسې خلقو د مذموم حرکت خلاف متنبه کولو د پاره دا آیت نازل کی چې د هغه ترجمه داده اې ایمان والاوو څما او خپل دښمنان یعنی هغه خلق چې زه یې دښمن لرم او تاسو ورسره دښمني لري هغوئ خپل دوستان مه جوړوئ الخ. (بخاري مسلم)

**تسهیلات: قوله:** وَأَبَامَرْثَدٍ:

**په روایاتو کښې تعارض:** یوروایت کښې دی چه حضورپاك حضرت مقداد رضی الله عنه وراولیکو. په دویم کښې دی چه حضورپاك ابومرثد رضی الله عنه اولیګلو نودا په ظاهر تعارض دی.

**د تعارض جواب:** حضورپاك څلورکسان روان کړي وو یعنی حضرت علی، حضرت زبیر، حضرت مقداد اوحضرت ابومرثد رضی الله عنهم. نو په بعضې روایاتو کښې دَ ابومرثد رضی الله عنه ذکر دې دَمقداد رضی الله عنه نشته دې اوبعضې کښې دَحضرت مقداد رضی الله عنه ذکردې دَ ابومرثد رضی الله عنه نشته دې. دا تعارض نه دې روایت بیانونکو کله څوك ذکرکړې دې اوکله ئې نه دې ذکرکړې.

**قوله:** لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ أَوْلَتُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ:

**د صحابۀ د نبي عليه السلام په قول د یقین معیار:** دغه ښځې دَ خط کیدو نه انکار اوکړو نوصحابه کرامو هغې ته اوونیل چه خط راؤباسه ګنی مونږ به تا بربنډه کړو ځکه چه دَحضورپاك فرمان دروغ کیدې نه شی ته دروغ واینی. دې نه معلومیږی چه دَ صحابه کرامو ایمان څومره مضبوط وو چه دَحضورپاك دَ فرمان په مخکښې هیڅ یوڅیز قبلولو ته هډو تیارنه وو

**قوله:** فَأَخْرَجَتْهُ مِنْ عِقَاصِهَا:

**په روایاتو کښې تعارض:** په دې روایت کښې د عقاصها لفظ راغلې دې او په بل روایت کښې دی چه "اخرجته من حجزتها" یعنی دَخپلې شاته حصې دبر سره دَ نرمې ملا نه ئې خط راویستلو. په دواړو روایتونوکښې په ظاهره تعارض دې.

**دتعارض جواب**: دَدغه ښځې اوږده وینښته وو هغې اول داخط دَ وینښتو په چوټیه کښې اوتړلو اوبیا ئې دا دَکمربند لاندې دباؤ کړو نودواړه اطلاق صحیح دی که عقاصها اووائی اوکه حجزتها اووائی.

**قوله**: بِبَعْضِ أَمْرِ رَسُولِ اللَّهِ:

**په مکې د حملې کولواراده پټه ساتل**: دَفتح مکه په موقع باندې حضورپاك خپله اراده دومره پټه اوساتله چه حضرت عائشه ﷵ ته هم پته نه وه چه حضورپاك چرته جهاد له ځی؟ بلکه دَ مدینې په لارو باندې څوکئی کینولې وې چه څوك سړې دَ مکې والو په مخکښې دَ حضورپاك دَمهم متعلق راز ښکاره نه کړی ځکه چه که قریشوته اول پته لګیدله نوهغوی به ښه تیارې کولو نوښه جنګ به کیدلو او ډیره زیاته وینه به توئیدله. حضورپاك غوښتل چه په بې خبرئی کښې په قریشو باندې حمله اوکړې شی دې دپاره چه دَ کم نه کم وینه توئی شی اودَ حرم شریف تقدس په ځائی پاتې شی.

**داموڅخه مراد**: امر رسول نه مراد دادې چه حضرت حاطب ﷛ په اندازه سره اوخودل چه رسول الله په څه مهم باندې ځی کیدې شی چه په مکه باندې حمله وی نویاد لرئی تاسو دَحق دا سیلاب منع کولې نه شئی مګر زه تاسو خبروم چه دَخپل بچاؤ انتظام اوکړئی.

**قوله**: فَقَالَ: اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ قَدْ وَجَبَتْ لَكُمُ الْجَنَّةُ:

**اهل بدر ته د ګناهونو د معافۍ اعلان**: یعنی حاطب ﷛ بدری صحابی نه دې اوکیدې شی چه الله تعالی دَ اول نه معلومه کړه چه دَاهل بدر اعمال ګمراه کن نه شی کیدې نوالله تعالی اوفرمائیل چه ما ته اوبخښلې چه څه غواړې کوه. الله تعالی ته معلومه وه چه دې به څه غلط کار نه کوی. دَ جواب خلاصه داده چه اهل بدر داسې شهزادګان دی چه الله تعالی دَهغوی هر ناز اوانداز هیر کړې دې بس دَ هغوی دَمحبوبیت په مخکښې په زرګونو ګناه معاف دی.

**[٦٢٢٦]په فرشتوکښې د اهل بدر د شرکاء فضیلت**

٦٢٢٦-() [٣١] [١]وَعَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ قَالَ: «جَاءَ جِبْرِيلُ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: [٢]مَا تَعُدُّونَ أَهْلَ بَدْرٍ فِيكُمْ؟ [٣]قَالَ: مِنْ أَفْضَلِ الْمُسْلِمِينَ أَوْ كَلِمَةً نَحْوَهَا [٤]قَالَ وَكَذَلِكَ مَنْ شَهِدَ بَدْرًا مِنَ الْمَلَائِكَةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1]

**ترجمه**: [١] او حضرت رفاعه بن رافع ﷛ بیان کوي جبرائیل ﷺ رسول الله ﷺ ته راغې او پوښتنه یې وکړه [٢]چې غزوه بدر کې شریکیدونکی تاسو په خپل منځ کې د کومې طبقې

[1] اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب شهود الملائکة بدرا (رقم-٣٩٩٢) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أهل بدر (رقم-١٦٠)

خلقو نه شمير كوئ ۲ حضور ﷺ ورته وفرمايل مونږ هغوئ د ټولو نه اعلى او د ټولو نه ښه مسلمانانو كې شميرو يا حضور ﷺ دغه شان څه نورو الفاظو كې جواب وركړو او ښكاره داده چې حضور ﷺ به داسې فرمايلي وي هم افضل المسلمين، يعنى هغه اصحاب بدر د ټولو نه اعلى او د ټولو نه ښه مسلمانان دي، ۳ حضرت جبرائيل عليه السلام دي خبري اوريدوسره اوويل دغه شان د هغه فرشتو په باره كې مونږ ګڼو چې غزوه بدر كې د اهلِ اسلام د مدد د پاره شريك شوي وي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① مَاتَعُدُّونَ :أيْ مَاتَعْتَبِرُونَ: په كومه طبقه كښې ئې شميرئ. د څه فضيلت او مرتبې اعتبار پرې كوئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَاتَعُدُّونَ أَهْلَ بَدْرٍفِيكُمْ؟

**د بدر شريكو فرشتو فضيلت:** دَ حضرت جبرائيل عليه السلام مقصد دا وو چه په غزوه بدركښې شريك مسلمانان دَ نورو مسلمانانو نه افضل دى. دغه شان زمونږ خيال هم دغه دې چه مونږ فرښتوكښې كومې فرښتې په غزوه بدر كښې شريكې شوې دى هغه دَ هغه ټولو فرښتو نه غوره دى چه په دغه غزوه كښې نه وې شريكې شوې. په دې حديث شريف كښې په غزوه بدر كښې دَ شريكيدونكو خاص فضيلت بيان كړې شوې دې.

**[٦٢٢٧] د اصحاب بدر او حديبيه فضيلت**

٦٢٢٧-(۱) [۳۲] ۱ وَعَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ لَا يَدْخُلَ النَّارَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ أَحَدٌ شَهِدَ بَدْرًا وَالْحُدَيْبِيَةَ. ۲ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلَيْسَ قَدْ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: " ﴿وَإِنْ مِنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا﴾ [مريم: ۷۱] ". ۳ قَالَ: فَلَمْ تَسْمَعِيهِ يَقُولُ: " ﴿ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوْا﴾ [مريم: ۷۲] ". ۴ وَفِي رِوَايَةٍ لَا يَدْخُلُ النَّارَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ أَحَدٌ الَّذِينَ بَايَعُوا تَحْتَهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او ام المؤمنين بي بي حفصه رضي الله عنها بيان كوي رسول الله ﷺ وفرمايل زه اميد لرم چې كوم سړى بدر او حديبيه كې شريك شوي دي هغه به انشاء الله د دوزخ په اور كې نه داخليږي ۲ ما دي خبري اوريدوسره عرض وكړو يارسول الله! آيا الله جل جلاله دا نه دى فرمايلي چې په تاسو كې هيڅ سړى داسې نشته چې په دوزخ به نه وارد كيږي ۳ حضور ﷺ وفرمايل آيا تا دا نه دي اوريدلي چې الله جل جلاله دي نه وروسته داهم فرمايلي دي چې بيابه مونږ هغه خلق دوزخ ته تلو نه بچ كړو چې هغوئ تقوىٰ اختيار كړه ۴ او په يوه روايت كې

[1] اخرجه مسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل أصحاب الشجرة أهل بيعة الرضوان رضى الله عنهم (رقم-۱٦۳ - (۲٤۹٦) وابوداود فى كتاب السنة/باب فى الخلفاء (رقم-٤٦٥۳) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى فضل من بايع تحت الشجرة (رقم-۳۸٦۰) وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب ذكر البعث (رقم-٤۲۸۱)

داسې دي حضور ﷺ وفرمايل اصحاب شجره کې به هيڅ سړی انشاء الله د دوزخ په اور کې نه داخليږي او اصحاب شجره نه مراد هغه خلق دي چې د حديبيه په مقام د ونې لاندې بيعت کړی وو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① وَارِدُهَا: أَيْ مَارُّبِهَا: ور تيريږی به، حاضريږی به هغې دوزخ ته ② أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ: دَصلح حديبيه په موقع چه دَ کومې ونې لاندې بيعت شوې وو هغه دَ کيکر ونه وه دَ کيکرداونه په قرآن کريم کښې تحت الشجرة په نوم سره ياده کړې ده، دې بيعت ته بيعت رضوان هم وائي.

**تسهيلات:**

**قوله: أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ:**

**د اصحاب الشجرة نه مراد:** دلته هم دَ صلح حديبيه د بيعت اوبيعت کونکوذکردې. دا بيعت هغه وخت واخستې شو کوم وخت چه حضورپاك ته اووئيلې شو چه حضرت عثمان رضي الله عنه اهل مکه گرفتارکړې دې او بيائی قتل کړې دې. حضورپاك دَانتقام اخستلو او کافرانوسره په جنګيدلوباندې دَ صحابه کرامو نه بيعت واخستلو روستومعلومه شوه چه حضرت عثمان رضي الله عنه صحيح سالم دې. دَدې بيعت لوئی فضيلت دې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمائي چه "بايعناه على الموت" يعنی مونږ به دې باندې بيعت کړې وو چه دَعثمان رضي الله عنه بدله به اخلو ګنی دَ خان بازی به لګوو.

**[۶۲۲۸] داهل حديبيه فضيلت**

۶۲۲۸-()[۳۳] ①«وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: كُنَّا يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ أَلْفًا وَأَرْبَعَمِائَةٍ، ② قَالَ لَنَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْتُمُ الْيَوْمَ خَيْرُ أَهْلِ الْأَرْضِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** ① او حضرت جابر رضي الله عنه وايي د حديبيه په ورځ زمونږ تعداد يوهزار او څلور سوه ۱۴۰۰ وو ② او زمونږ متعلق رسول الله ﷺ فرمايلي وه نن ورځ تاسو په زمکې والو کې د ټولو نه ښه خلق ياست. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: أَنْتُمُ الْيَوْمَ خَيْرُ أَهْلِ الْأَرْضِ:**

**په صحابؤ کښې فرق مراتب:** دَدې حديث لاندې امام سيوطی رحمه الله ليکلی دی چه صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې ① دَ ټولو نه افضل خلفاء اربعه دی. ② بيا عشره مبشره ③ بيا اهل بدر ④ بيا اهل احد ⑤ بيا اهل حديبيه.

[1] اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب غزوة الحديبية (رقم-٤١٥٤) ومسلم في كتاب الإمارة/باب استحباب مبايعة الإمام الجيش عند إرادة القتال، وبيان بيعة الرضوان تحت الشجرة (رقم-٧١ - (١٨٥٦)

## [٦٢٢٩] د اصحاب بدر مرتبه

٦٢٢٩-()[٣٣]① وَعَنْهُ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَنْ يَصْعَدِ الثَّنِيَّةَ ثَنِيَّةَ الْمُرَارِ② فَإِنَّهُ يُحَطُّ عَنْهُ مَا حُطَّ عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ فَكَانَ أَوَّلَ مَنْ صَعِدَهَا خَيْلُنَا خَيْلُ بَنِي الْخَزْرَجِ، ثُمَّ تَتَامَّ النَّاسُ③ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: كُلُّكُمْ مَغْفُورٌ لَهُ إِلَّا صَاحِبَ الْجَمَلِ الْأَحْمَرِ④ فَأَتَيْنَاهُ فَقُلْنَا تَعَالَ يَسْتَغْفِرْ لَكَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-⑤ قَالَ: لَأَنْ أَجِدَ ضَالَّتِي أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لِي صَاحِبُكُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**① او حضرت جابر ﷛ بیان کوي د حدیبیه د سفر په دوران کې رسول الله ﷺ چې دا وفرمایل چې تولو نه مخکې چې کوم خلق هغه ثنیة المرار باندې وختل② نو دهغه نه دومره ګناهونه معاف شي څومره چې د بني اسرائیلو ګناه معاف شوی وي نو د تولو نه مخکې چې کوم خلق هغه ثنیة المرار باندې وختل هغه زمونږ آسونه یعنی د قبیله خزرج آس سوار وو هغوئ نه وروسته مخکې وروسته تول خلق وختل ③نو رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو تول وبخښل شوئ علاوه د هغه سړي نه چې شور اوښ والا دې (یعنی د منافقانو سردار عبد الله بن ابي)④ د حضور ﷺ دا ارشاد اوریدو سره مونږ هغه سور اوښ والا سړی (یعنی عبد الله بن ابي) ته ورغلو او هغه ته مو اوویل زمونږ سره راځه چې مونږ رسول الله ﷺ ته ستا په حق کې هم دبخښش او مغفرت درخواست وکړو ⑤خو هغه بدبخت اوویل حقیقت دادی چې زه خپل ورك شوی شی پیدا کم نو دا خما په نزد د هغه خبرې نه زیات خوښ او عزیز دی چې ستاسو صاحب زما د پاره بخښش او مغفرت وغواړي (مسلم)

**حل اللغات:**- ①يَصْعَدِ: دا د صعود نه دې د ختلو په معنی کښې دې ②ثَنِيَّةَ: هِيَ الطَّرِيقُ الْعَالِي فِي الْجَبَلِ: د دوو غرونو په مینځ کښې اوچتې لارې ته ثنیة وائی ③الْمُرَارِ: وَهُوَ مَوْضِعٌ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْحُدَيْبِيَةِ مِنْ طَرِيقِ الْمَدِينَةِ: د مکې او حدیبیه په مینځ کښې د مدینې په لار کښې د یو ځائی نوم دې (دا کنده هم دغه ځائی طرف ته منسوب ده. په دې وجه ورته ثنیة المرار اوونیلې شو) ④يُحَطُّ: أَيْ يُوضَعُ عَنْهُ: رجیږي، غورځیږي (یعنی معاف کیږي) ⑤صَاحِبَ الْجَمَلِ الْأَحْمَرِ: د سور اوښ د مالك مغفرت به نه کیږي (یعنی عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَيٍّ رَئِيسُ الْمُنَافِقِينَ) ⑥ضَالَّتِي: خپل ورک شوي څیز (یعنی اوښ یا اس وغیره)

①وَذُكِرَ حَدِيثُ أَنَسٍ قَالَ لِأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ «إِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي أَنْ أَقْرَأَ عَلَيْكَ فِي بَابٍ بَعْدَ فَضَائِلِ الْقُرْآنِ».

**ترجمه:**① او د حضرت انس ﷛ حدیث قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ إِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي أَنْ أَقْرَأَ عَلَيْكَ فضائل قرآن نه وروسته والا باب کې نقل شوي دي (یعنی صاحب مصابیح دا حدیث هلته دی باب کې نقل کړی وو لیکن دې حدیث کې د قرآن کریم ذکر وو خکه مؤلف مشکوٰة دا هلته نقل کی)

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم رقم الحدیث ۳۸٦۳ ومسلم فی صحیح رقم الحدیث ۲۸۸۰

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ يَصْعَدِ الثَّنِيَّةَ ثَنِيَّةَ الْمُرَارِ:**

**د حدیث پس منظر:** په شپږمه هجری کښې حضورپاك دعمرې دپاره مکې ته روان شو. خوچه کله دوی د حدیبیه مقام ته اورسیدل نود قریشوکافرانودوی دعمرې کولونه منع کړل. دا ځان له یو تفصیلی قصه ده. لیکن په زیربحث حدیث کښې چه کومه تذکره ده هغه دا چه ثنیة المرار یوسخته تیریدونکې اوچته غونډئی وه. حضورپاك ته اندیښنه وه چرته دَدې شاته دَ قریشوکافرانو مورچه نه وی جوړه کړې اوناڅاپی حمله کولوسره نقصان اونه کړی. په دې وجه حضورپاك دَترغیب په توګه اودَ انعام په توګه دا اوفرمائیل که په دغه غونډئی څوك اوخیژی اودَدښمن حال احوال معلوم کړی نودَهغه به دومره ګناهونه ختم شی څومره ګناهونه چه دَ بنی اسرائیلو معاف شوې وو.

**قوله: فَإِنَّهُ يُحَطُّ عَنْهُ مَا حُطَّ عَنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ:**

**د بنی اسرائیلو دګناهونومعاف کیدو سره د تشبیه ورکولومطلب:** په تاریخ کښې دَدې هیڅ پته نه لګی. نوعلماء کرامو جواب ورکړې دې چه بنی اسرائیلوته الله تعالی په اریحا ښارکښې دَداخلیدلوحکم ورکړې وو اوفرمائیلې وو چه که تاسوپه عاجزئی او سادګئی سره توبه کونکی دَ حطة نعره لګولوسره سر ښکته داخل شئی نو وعده ده چه ستاسو ګناه به معاف کړم. بنی اسرائیلو په دغه وعده باندې عمل اونه کړو اوپه اریحاکښې داخلیدو وخت کښې دَ سجدې په ځائی په کوناټو خوئیدونکی داخل شو اودَ حطة په ځائی دَ حنطة الفاظ ونیل شروع کړه الله تعالی هغوی ته سزا ورکړه.

دلته حضورپاك ماحط عن بنی اسرائیل په الفاظوسره دَهغوی دَ ګناه معاف کیدوطرف ته اشاره کړې ده چه که بنی اسرائیلودغه وعده پوره کړې وه نودَهغوی ټول ګناهونه به معاف کیدل مګرهغوی داسې اونه کړل اووعده خلافی ئی اوکړه. لهذا په تاسوکښې چه کوم یوسړې ثنیة المرار باندې ختلوسره دَ دښمن حال احوال معلوم کړی دَهغه ټول ګناهونه به معاف کړې شی.

**قوله: ثُمَّ تَتَامَّ النَّاسُ:**

**د مذکوره جملې مطلب:** دا صیغه دَ تمام په معنی کښې ده. ای تتابع یعنی دې نه پس خلقو په ګنړشمیرکښې اتباع کولوسره لاړل. حضورپاك زیرې ورکړو چه که څوك په دې کښې لاړل ټول په ټول دَهرې ګناه نه پاك شو.

**صاحب الجمل الاحمر نه څوک مراد دی:**

**قوله: إِلَّا صَاحِبَ الْجَمَلِ الْأَحْمَرِ:**

**د صاحب الجمل الاحمر څخه مراد:** دَ سور اوښ دَمالك نه رئيس المنافقين عبدالله بن ابی ابن سلول مراد دي. حضرت جابر رضی الله عنه فرمائي مونږ هغه ته اووئيل چه راشه اودَحضورپاك نه دَ استغفار دعا اوغواړه. په جواب كښې عبدالله بن ابی ابن سلول اووئيل زما اوښه وركه شوې ده زه هغه لټوم كه چرې ماته زما وركه شوې اوښه ملاؤشوه نوهغه زمادَپاره دَدې نه زياته بهتره ده چه ستاسو نبی زمادَپاره استغفاراوكړي.

**قوله:** صَاحِبُكُمْ:

**د كافرانو د اصطلاح استعمال:** چه هغه وخت كومه اصطلاح وه دابه كافرانو استعمالوله. هغوی به مسلمانانوته وئيل چه دا نبی ستاسو مشر دې او لوئی دې زمونږ نه دې. دې منافق هم هغه دَ كافرانو اصطلاح استعمال كړه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٦٢٣٠] د شيخينو او ابن مسعود رضی الله عنه فضيلت

٦٢٣٠-() [٣٥] [١] عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ [٢] «اقْتَدُوا بِاللَّذَيْنِ مِنْ بَعْدِي مِنْ أَصْحَابِي أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ [٣] وَاهْتَدُوا بِهَدْيِ عَمَّارٍ [٤] وَتَمَسَّكُوا بِعَهْدِ ابْنِ أُمِّ عَبْدٍ. [٥] وَفِي رِوَايَةِ حُذَيْفَةَ: مَا حَدَّثَكُمُ ابْنُ مَسْعُودٍ فَصَدِّقُوهُ) بَدَلَ (وَتَمَسَّكُوا بِعَهْدِ ابْنِ أُمِّ عَبْدٍ») رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** [١] حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روايت كوي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [٢] تاسو د هغه دواړو پيروي كوئ چې څما د صحابه رضی الله عنهم نه دی او زما نه وروسته به خليفه وي او هغه ابوبكر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه دی [٣] د عمار بن ياسر رضی الله عنه سيرت او د هغه نقش قدم اختيارولو سره سيده لاري باندې خي [٤] او د ام عبد د خوی عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه عهد مضبوط ونيسئ [٥] او په يوه دويم روايت كې چې حضرت حذيفه رضی الله عنه نه روايت دی د ام عبد د خوی عهد مضبوط ونيسئ په خاي دا الفاظ دي چې: ابن مسعود رضی الله عنه تاسو ته كوم حديث بيان كړي او د دين احكام او مسائلو سره متعلق كومې خبرې درته بنايي په هغه كې هغه ريښتني گڼئ. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① اقْتَدُوا: اقتداء او تابعداری كوئ (يعنی زمانه پس دَ شيخين اقتدا كوئ). ② اهْتَدُوا: أي سِيرُوا: روان شئ. خئ يعنی تابعداری كوئ (د اقتداء او اهتداء معنی يوه ده. خو فرق صرف دادې چه اقتداء عام ده قول اوفعل دواړوته شامل ده، اواهتداء خاص ده فعل سره). ③ تَمَسَّكُوا: مضبوط اونيسئ يعنی عمل اوكړئ ④ بِعَهْدِ: أي بِوَصِيَّةٍ: دَعهد نه وصيت اونصيحت او دينی احكام اومسائل مراد دی.

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب عمار بن ياسر وكنيته أبو اليقظان رضی الله عنه(رقم-٣٧٩٩) وابن ماجه فی كتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبی بكر الصديق رضی الله عنه(رقم-٩٧)

**تسهيلات:**

**قوله:** اقْتَدُوا بِاللَّذَيْنِ مِنْ بَعْدِي مِنْ أَصْحَابِي أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ:

**د ابوبكر او عمر رضي الله عنهما خلافت ته اشاره:** حضورپاك په څو اشارو او بعضې تصريحاتو كښې دَ حضرت صديق اكبر او حضرت عمر رضي الله عنهما خلافت بيان كړې دې. په دې حديث كښې هم واضحه اشاره ده.

**قوله:** بِعَهْدِ ابْنِ أُمِّ عَبْدٍ:

**د عبدالله مسعود رضي الله عنه عظمت:** په يو بل حديث كښې دي "ماحدثكم ابن امعبد فصدقوة". يو روايت كښې دي چه حضورپاك فرمائيلي "رضيت لامتي مارضي به ابن امعبد" دَ زير بحث حديث دَدې قسم نورو روايتونو دَ وجې نه حضرت امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله خپل اجتهادي مسائل او دَ فقه بنياد دَحضرت ابن مسعود رضي الله عنه روايات او دَهغه په ترجيحاتو باندې كيخودې دې. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دَ شيخين خلافت بغير دَ شك شبه كولو قبول كړې وو.

**[٦٢٣١] د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د امارت استحقاق**

٦٢٣١-() [٣٦] [١] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢] «لَوْ كُنْتُ مُؤَمِّرًا مِنْ غَيْرِ مَشُورَةٍ [٣] لَأَمَّرْتُ عَلَيْهِمُ ابْنَ أُمِّ عَبْدٍ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.[1]

**ترجمه:** [١] او حضرت علي كرم الله وجهه بيان كوي چې په يوه موقعه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي وه [٢] كه ما د مشوري نه بغير څوك امير او حاكم جوړولاى [٣] نو په خلقو امير او حاكم به مې د اُمّ عبد خوى يعنى عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه جوړ كړى وو. (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① مُؤَمِّرًا: امير جوړونكې، أَيْ: جَاعِلَ أَحَدٍ أَمِيرًا: يعنى كه ما څوک امير. حاكم جوړولې.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَوْ كُنْتُ مُؤَمِّرًا مِنْ غَيْرِ مَشُورَةٍ:

**د عبدالله بن مسعود د رائې د صحت دليل:** يعنى كه دَعام مشوره نه بغير څوك په يوكارباندې امير مقرر كولو نو دَ ابن مسعود رضي الله عنه دكمالاتو او صفاتو په رنړا كښې به ئې هغه امير جوړولو.

**دحديث په مطلب اشكال:** دَ حضورپاك دَ وفات نه پس خلفاء اربعه اميران جوړ كړې شو. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه كله هم امير نه دې جوړ شوې نو دَ زير بحث حديث څه مطلب دې؟

[1] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب عبد الله بن مسعود رضى الله عنه (رقم-٣٨٠٩) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل عبد الله بن مسعود رضى الله عنه (رقم-١٣٧)

**۵اشکال جواب:** حضورپاك دخپل وفات نه پس دَ امارت طرف ته اشاره نه ده کړې بلکه په دې کښې اميرعام په ځائې دَ يوبل امارت طرف ته اشاره ده لکه څنګه چه جهادی مهمات اوغزواتو په تشکيل کښې يو کس اميرجوړولې شی. مطلب دادې چه که عام مشوره نه وې نوزما رائې به دا وې چه هم ابن مسعود رضی الله عنه دَجماعت امير جوړ کړنی.

**[٦٢٣٢]د ابن مسعود رضی الله عنه فضيلت د ابوهريره رضی الله عنه په ژبه**

٦٢٣٢-(١) [٣٧] [١]وَعَنْ خَيْثَمَةَ بْنِ أَبِي سَبْرَةَ قَالَ: [٢]أَتَيْتُ الْمَدِينَةَ فَسَأَلْتُ اللّٰهَ أَنْ يُيَسِّرَ لِي جَلِيسًا صَالِحًا فَيَسَّرَ لِي أَبَا هُرَيْرَةَ، فَجَلَسْتُ إِلَيْهِ [٣]فَقُلْتُ: إِنِّي سَأَلْتُ اللّٰهَ أَنْ يُيَسِّرَ لِي جَلِيسًا صَالِحًا فَوُفِّقْتَ لِي. [٤]فَقَالَ: مِنْ أَيْنَ أَنْتَ؟ قُلْتُ: مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ، جِئْتُ أَلْتَمِسُ الْخَيْرَ وَأَطْلُبُهُ. [٥]فَقَالَ: أَلَيْسَ فِيكُمْ سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ مُجَابُ الدَّعْوَةِ؟

**ترجمه:**[١] او حضرت خيثمه بن ابي سبرة رحمه الله چې کبار تابعين او ثقاتو کې دي بيان کوي[٢] چې زه کوم وخت مديني ته راغلم نو ما د الله نه دعا وغوښتله چې ماته يونيك هم نشين ميسر حاصل شي( يعنی ماته يوداسي نيك بخت حاصل شي چې د هم نشين جوړيدو کامل استعداد او صلاحيت لري او د هغه د هم نشيني نه استفاده کيدی شي) نو حق تعالیٰ د حضرت ابوهريره په شان هستي زما دپاره ميسر وفرمايله چې د هغه صحبت او هم نشيني ما اختيار کړه او د استفادې په غرض د هغه په خدمت کې حاضري مي کوله[٣] ما يوه ورځ هغه ته عرض وکړو چې ما د الله جل جلاله نه دعا غوښتي وه چې ماته يو هم نشين حاصل شي او الله جل جلاله ځما دعا قبلولو سره ستاسو په شان همنشين ماته عطا کی [٤]حضرت ابوهريره رضی الله عنه زما نه پوښتنه وکړه ته د کوم ځاي اوسيدونکی يي ماعرض وکړو زه د کوفي اوسيدونکی يم او کوفي نه دلته ځکه راغلی يم چې د نيك او بابرکت همنشين په ذريعه د خير لټونکي او خپل نفس د پاره د خير طلبګار يم په دي اوريدو سره[٥] حضرت ابوهريره رضی الله عنه وفرمايل ايا ستاسو په منځ کې يعنی ستاسو په ښار کې سعد بن مالك رضی الله عنه نشته چې مستجاب الدعوات دی

**حل اللغات:-** ① فَوُفِّقْتَ: أَيْ جُعِلْتَ أَنْتَ مُوَافِقًا: يعنی ته زما دپاره موافق او ميسرکړې شوې، ته ماته ملاؤ شوې ② أَلْتَمِسُ: تلاش کوم، طلب کوم. ③ الْخَيْرَ: أَيِ الْعِلْمَ الْمَقْرُونَ بِالْعَمَلِ: دَ خير نه مراد هغه علم دې چه عمل هم ورسره وی يعنی علم سره د عمل نه.

[١]وَابْنُ مَسْعُودٍ صَاحِبُ طَهُورِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَنَعْلَيْهِ؟ [٢]وَحُذَيْفَةُ صَاحِبُ سِرِّ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ [٣]وَعَمَّارٌ الَّذِي أَجَارَهُ اللّٰهُ مِنَ الشَّيْطَانِ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ [٤]وَسَلْمَانُ صَاحِبُ الْكِتَابَيْنِ؟ يَعْنِي: الْإِنْجِيلَ وَالْقُرْآنَ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[١] آيا ستاسو په منځ کې عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه نشته چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب عبد الله بن مسعود رضی الله عنه (رقم-٣٨١١)

خادم خاص حيثيت سره سفر او حضر کې د رسول الله ﷺ مسواك او څپلې مبارکې او تکيه او بتك وغيره به يې د ځان سره ساتل ۲ آيا په تاسو کې حذيفه رضي الله عنه نشته چې منافقينو وغيره سره متعلق د رسول الله ﷺ صاحب راز وو ۳ آيا په تاسو کې د عمار رضي الله عنه په شان هستي نشته چې الله تعالیٰ د خپل رسول ﷺ د ژبې مبارکې په ذريعه د شيطان نه امن او تحفظ ورته ورکړې وو ۴ او آيا ستاسو په منځ کې سلمان فارسي رضي الله عنه نشته چې د دوو کتابونو يعني انجيل او قرآن منونکی دی هرکله چې د خير او برکت او علم وفضل لرونکی لوی لوی هستي ستاسو په ښار کې موجود دي نو محض د صحبت او همنشيني په ذريعه طلب خير او استفاده علم له خاطره خپل ښار پريښودلو سره دلته د راتلو ضرورت نه وو. (ترمذي)

**حل اللغات:** -۳ أجَارَهُ اللهُ: أي: أنقذه وخلصه: بچ کړې او خلاص کړې وو هغه لره الله پاک (يعنی عمار رضي الله عنه).

**تسهيلات:**

**قوله:** أَلْتَمِسُ الْخَيْرَ:

**د خير مصداق:** دَ خير نه مراد هغه علم دې چه عمل سره مقرون وی. کوم چه الله تعالی په خپل کلام پاك کښې دَحکمت په لفظ سره تعبير کړې دې. ﴿وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا﴾

**قوله:** وَسَلْمَانُ صَاحِبُ الْكِتَابَيْنِ:

**د صاحب الكتابين مطلب:** سلمان فارسي رضي الله عنه اول په انجيل باندې ايمان راوړې وو او په هغې به ئې عمل کولو کله چه قرآن نازل شو نو په هغې باندې ئې ايمان راوړو لکه چه سلمان فارسی رضي الله عنه دَ دواړو کتابونو منونکې شو.

**[٦٢٣٣] د بعضې صحابو رضي الله عنهم فضيلت**

٦٢٣٣-( )[٣٨] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ «نِعْمَ الرَّجُلُ أَبُو بَكْرٍ نِعْمَ الرَّجُلُ عُمَرُ نِعْمَ الرَّجُلُ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ نِعْمَ الرَّجُلُ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ نِعْمَ الرَّجُلُ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ نِعْمَ الرَّجُلُ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ نِعْمَ الرَّجُلُ مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ٢ ابوبکر رضي الله عنه هم ډير ښه سړی دی عمر رضي الله عنه هم ډير ښه سړی دی ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه هم ډير ښه سړی دی اسيد بن حضير رضي الله عنه هم څه ډير سړی دی ثابت بن قيس بن شماس هم ډير ښه سړی دی معاذ بن جبل رضي الله عنه هم ډير ښه سړی دی عمرو بن الجموح هم ډير ښه سړی دی دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب معاذ بن جبل، وزيد بن ثابت، وأبي، وأبي عبيدة بن الجراح رضى الله عنهم(رقم-٣٧٩٥)

**تسهيلات:**

**قوله:** نِعْمَ الرَّجُلُ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ:

**د اسيد بن حضير رضی الله عنه مختصر تعارف:** اسيد بن حضير دَ انصار مدينه نه دي او دَ قبيله اوس سره تعلق لری دَ بدر او احد په غزواتو كښې شريك شوي دي په مدينه كښې ۲۰ هجری كښې وفات شو.

**قوله:** نِعْمَ الرَّجُلُ مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ:

**د عمرو بن الجموح رضی الله عنه مختصر تعارف:** سيدنا معاذ بن عمرو الجموح دي هم دَ انصار مدينه نه دي. دوی دَ قبيله خزرج سره تعلق لرلو. دي هم په بيعت عقبه كښې خپل پلار سره حاضر وو او بدری دي. دوی خپل رور معاذ بن عفراء سره يو ځائی ابوجهل قتل كړو. دَ دوی انتقال دَحضرت عثمان رضی الله عنه په خلافت كښې شوي دي په حديث الباب كښې حضرت سرور كائنات صلی الله عليه وسلم دَ ډيرو صحابه كرامو رضی الله عنهم منقبت او فضيلت بيان كړي دي

**[٦٢٣٤] د دري صحابو داخليدو ته د جنت شوق**

| ٦٢٣٤ - ( )[٣٠] ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ: ② «إِنَّ الْجَنَّةَ تَشْتَاقُ إِلَى ثَلَاثَةٍ عَلِيٍّ وَعَمَّارٍ وَسَلْمَانَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت انس رضی الله عنه بيان كوي چې رسول كريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل ② حقيقت دادی چې جنت د دريو سړو ډير مشتاق دی او هغه علي رضی الله عنه عمار سلمان فارسي رضی الله عنه دی (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① تَشْتَاقُ: أي: اشتياقا كثيرا: ډير زيات شوق لری

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ الْجَنَّةَ تَشْتَاقُ:

**دجنت په مصداق كښې دوه اقوال:** ① لكه چه دا دريواړه كسان داسې جنتيان دی چه جنت پخپله هم دَدوی مشتاق دي او دَدوی انتظار كوی. لكه چه ټول جنتيان دَ جنت طلب كونكی دی خو دا دريواړه دَ جنت مطلوب دی

② بعضې وئيلی دی چه دَ جنت دَمشتاق كيدو نه مراد اهل جنت يعنی ملائكه او دَ حورو او غلمان مشتاق كيدل دی.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب سلمان الفارسی رضی الله عنه (رقم-۳۷۹۷)

## [٦٢٣٥]د حضرت عمار رضي الله عنه فضيلت

٦٢٣٥-()[٣٠][١]وَعَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: «اسْتَأْذَنَ عَمَّارٌ عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[٢]فَقَالَ: "ائْذَنُوا لَهُ مَرْحَبًا بِالطَّيِّبِ الْمُطَيَّبِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[١] او حضرت علي كرم الله وجهه بيان كوي چې يوه ورځ عمار رضي الله عنه د حضور ﷺ خدمت اقدس كې د حاضري اجازت طلب كړه [٢]نو رسول الله ﷺ وفرمايل دى دننه راولئ پاك او پاكيزه ته ښخير راغلئ( يعنى په خير راغلى يې ورته وفرمايل. (ترمذي)

**حل اللغات:**- ①مَرْحَبًا:مرحب مصدر ميمى دې بمعنى وسعت [أي أصاب القوم رحبا وسعة] دا لفظ هم ددې فعل مخدوف په وجه منصوب دې . ارحب يرحب رحبا ومرحبا ا ددې معنى وسعت او فراختيا ده ②بِالطَّيِّبِ الْمُطَيَّبِ: دې كښې مبالغه ده. يعنى ډير زيات پاک. ③ الطَّيِّبِ چه د ذات په اعتبار سره پاكيزه وى. ④الْمُطَيَّبِ چه د صفاتو. عاداتو او اخلاقو په اعتبار سره پاكيزه وى.(يعنى حضرت عمار رضي الله عنه ظاهراً اوباطناً پاكيزه انسان دې.)

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث كښې د ګرانولغاتوحل شوې دې باقى مضمون آسان دې

## [٦٢٣٦] سخت كارته غاړه وركول او عمار رضي الله عنه

٦٢٣٦-() [٣١][١]وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[٢]«مَا خُيِّرَ عَمَّارٌ بَيْنَ أَمْرَيْنِ إِلَّا اخْتَارَ أَشَدَّهُمَا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[١] او بي بي عائشه رضي الله عنها بيان كوي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [٢]عمار رضي الله عنه ته چې كله دوو كارونو كې د يو كار اختيار وركول شو نو هغه هميشه سخت ترين او مشكل كار اختيار كى. (ترمذي)

**حل اللغات:**- ①أَمْرَيْنِ: د امر تثنيه ده. دوه كارونه. ②أَرْشَدَهُمَا:أَيْ:أَصْلَحَهُمَا: ډير ښه يا آسان (په يو روايت كښې أَشَدَّهُمَا دې. ددې معنى دا أَيْ أَصْعَبُهُمَا: مشكل او سخت كار.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَرْشَدَهُمَا:

**تعارض:** په يوروايت كښې "ايسرهما" دې يعنى آسان كار به ئې اختيارولو په دې دواړو روايتونوكښې په ظاهره تعارض معلوميږى.

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب عمار بن ياسر وكنيته أبو اليقظان رضى الله عنه(رقم-٣٧٩٨) وابن ماجه في كتاب في الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل عمار بن ياسر (رقم-١٤٦)

[2] اخرجه الترمذي في السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب سعد بن معاذ رضى الله عنه (رقم-٣٨٤٧)

**د تعارض جواب:** "اشدهما" تعلق د حضرت عمار ﷺ ذات سره دې چه هغه د زيات ثواب د حاصلولو په غرض سره د يرزيات سخت كار د خپل ذات د پاره اختيارولو ليكن د نورو اشخاصو په اعتبار سره به ئې آسان كار اختيارولو دې د پاره چه د نورو خلقو د پاره هغه كار د مشقت سبب جوړنه شي.

**[٦٢٣٧] فرشتې او د سعد بن معاذ ﷺ جنازه پورته كول**

٦٢٣٧-()[٣٢] ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: لَمَّا حُمِلَتْ جِنَازَةُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ ② قَالَ الْمُنَافِقُونَ: مَا أَخَفَّ جِنَازَتَهُ، ③ وَذَلِكَ لِحُكْمِهِ فِي بَنِي قُرَيْظَةَ فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ④ «فَقَالَ إِنَّ الْمَلَائِكَةَ كَانَتْ تَحْمِلُهُ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷺ بيان كوي هركله چې د حضرت سعد بن معاذ ﷺ جنازه اوچتولو سره خلق روان شول (او هغوئ ته هغه جنازه سپكه معلومه شوه) ② نو منافقانو اوويل چې د ده جنازه څومره سپكه ده ③ او دومره سپكه د هغه فيصلې په وجه ده چې هغه د بنوقريظه باره كې كړې وه ④ د منافقانو دا خبره چې رسول الله ﷺ ته ورسيده: نو رسول الله ﷺ وفرمايل د هغه جنازه فرشتو پورته كړې وه. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① حُمِلَتْ: أَيْ: لَمَّا حَمَلَهَا النَّاسُ: يعنى كله چه اوچته كړې شوه ② مَا أَخَفَّ: څومره سپكه ده (يعنى د حقارت او سپكاوي په نظر سره ئې اوكتله).

**تسهيلات: قوله:** لِحُكْمِهِ فِي بَنِي قُرَيْظَةَ:

**د حديث پس منظر:** بنوقريظه په مدينه كښې اوسيدونكې د بااثر يهوديانو د يوې قبيلې نوم دې. د حضرت سعد بن معاذ ﷺ د هغه خلقو سره پخواني تعلقات وو. د جنګ خندق نه پس چه كله د دغه يهوديانو نه محاصره اوشوه نو هغوى حضرت سعدبن معاذ ﷺ خپل حكم اومنلو چه دې كومه فيصله اوكړى مونږ ته به منظور وى. هغوى راغله او د تورات مطابق ئې فيصله واوروله چه ښځې بوډاګان او ماشومان غلامان جوړ كړى او جنګ كونكى خوانان قتل كړى. كله چه دا فيصله نافذ شوه نو منافقان ډير ناراض شو. كله چه د حضرت سعدبن معاذ ﷺ انتقال اوشو او جنازه اوچته كړې شوه نو منافقانو وئيل د حضرت سعد ﷺ جنازه درنه نه ده بلكه سپكه ده لكه چه د ده په ايمان كښې فرق راغلې دې ځكه چه هغه د بنوقريظه باره كښې كومه فيصله كړې وه هغه ظالمانه فيصله وه. د دې خبرې د اطلاع په جواب كښې حضورپاك اوفرمائيل چه جنازه ځكه سپكه معلوميږى چه فرښتو جنازه اوچته كړې ده. وئيلې شى د دوى په جنازه كښې اويا زره فرښتې راغلې وې.

[1] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبى ذر الغفارى رضى الله عنه (رقم-٣٨٠١) وابن ماجه فى كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبى ذر (رقم-١٥٦) واحمد فى المسند:١٧٥/٢

## [۶۲۲۸] د ابوذر رضی الله عنه د صداقت ستائنه

۶۲۲۸ - (١)[٣٣] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ «مَا أَظَلَّتِ الْخَضْرَاءُ وَلَا أَقَلَّتِ الْغَبْرَاءُ أَصْدَقَ مِنْ أَبِي ذَرٍّ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه وايي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوريدل ٢ د ابوذر رضی الله عنه نه زيات د رينښتني ژبې سړي باندې نه شين آسمان سايه (سوري) کړيده او نه غبار الود (په بناورو ککړ) زمکې د هغه نه زيات رينښتني سړی پورته کړی. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① أَظَلَّتِ: دَ سوري کولو معنی کښې دې. ② الْخَضْرَاءُ: شين آسمان ته خضراء وائي. ③ أَقَلَّتِ: داد باب افعال نه دې، أَيْ حَمَلَتْ وَرَفَعَتِ: چه پورته کړی دی (دې زمکې يعنی په زمکه چه څه هم دی). ④ الْغَبْرَاءُ: أَيِ الْأَرْضُ: دَ دوړو زمکې ته غبراء وائی. ⑤ أَصْدَقَ: أَيْ: أَكْثَرَ صِدْقٍ: زيات رينښتونی ته اصدق وائی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَصْدَقَ مِنْ أَبِي ذَرٍّ:

**د حضرت ابوذر رضی الله عنه تعارف:** ابوذر غفاری رضی الله عنه دَدې امت دَټولو نه زيات زاهد اوتارك الدنيا انسان وو. هغه به دَ يو وخت نه بل وخت دَپاره خوراك ساتل جائز نه ګنړل. په دې باندې به ئې خلق په چوکه وهل. دَاسلام نه مخکښې دَ حنفاء نه وو. حضرت اميرمعاويه رضی الله عنه سره په شام کښې څه موده پاتې دې. حضرت امير معاويه رضی الله عنه حضرت عثمان ته درخواست اوکړو چه دې مدينې ته راؤغواړی. کله چه حضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه مدينې ته راغلو نو حضرت به صحابه کرامو اوتابعينو سره دَزهد باره کښې جګړه کوله. حضرت عثمان رضی الله عنه هغوی ته دَمدينې نه يو خوميله بهر زبده مقام ته دَ تللو اوويئيل هغوی لاړل او هم هلته وفات شو او هم هلته دفن دې. هغوی په زهد کښې دَ حضرت عيسیٰ علیه السلام په شان وو.

## [۶۲۲۹] په زهد کښې د ابوذر رضی الله عنه عيسی عليه السلام سره مشابهت

۶۲۲۹-(٢)[٣٣] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ «مَا أَظَلَّتِ الْخَضْرَاءُ وَلَا أَقَلَّتِ الْغَبْرَاءُ مِنْ ذِي لَهْجَةٍ أَصْدَقَ وَلَا أَوْفَى مِنْ أَبِي ذَرٍّ ٣ شِبْهِ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ يَعْنِي فِي الزُّهْدِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوذر رضی الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل ٢ څه داسې ويونکي

[1] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي ذر الغفاری رضی الله عنه (رقم-٣٨٠١) وابن ماجه فی كتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبي ذر (رقم-١٥٦) واحمد فی المسند:١٧٥/٢

[2] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب أبي ذر الغفاری رضی الله عنه (رقم-٣٨٠٢) وابن ماجه فی كتاب فی الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل أبي ذر (رقم-١٥٦) واحمد فی المسند:١٧٥/٢

باندې نه خو شین آسمان سوری وکړه او نه زمکې هغه پورته کې چې ابوذر رضي الله عنه نه زیات ریښتني وي او الله او درسول الله د حق د ابوذر رضي الله عنه نه زیات اداکونکې وي[۳] هغه ابوذر رضي الله عنه چې د عیسی بن مریم مشابه دی یعنی په زهدکې (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① ذِي لَهْجَةٍ: ذِي نُطْقٍ: خبرې کونکې (لهجة لسان یعنی ژبې ته هم وانی یعنی صاحب اللسان او خبرې په لسان کیږي نومطلب ئې شو صاحب کلام یعنی خبرې کونکې) ② أَصْدَقَ: أَيْ: أَكْثَرَ صِدْقٍ: زیات رښتوني. ③ أَوْفَى: زیات وفا کونکې (یعنی خپله وعده اولوظ پوره کونکې). ④ الزُّهْدِ: مصدر دې، دنیا سره ډیر زړه نه لګول یعنی د دنیا نه بې رغبته کیدل.

**تسهیلات: قوله:** وَلَا أَوْفَى مِنْ أَبِي ذَرٍّ شِبْهِ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ يَعْنِي فِي الزُّهْدِ:

**عیسی علیه السلام سره په مشابهت کښې دوه اقوال:** په دې حدیث کښې د ابوذر رضی الله دویم صفت دا بیان شوې دې چې د آسمان دلاندې او زمکې دپاسه د ابوذررضی الله عنه پشان څوک پیدا شوې نه دی چې د عیسی علیه السلام سره مشابه وی.اوس د عیسی علیه السلام سره مشابهت په څه کښې دې نو په دې کښې دوه اقوال دی.

① دعیسی علیه السلام سره دابوذر رضی الله عنه مشابهت په زهد في الدنیا کښې وو اودا خبره رښتیا هم ده ځکه چې ابوذر رضی الله عنه د نبی علیه السلام د وفات څخه روسته دوی د زهد اوګوشه نیشنۍ ژوند اختیار کړې وو آن تردې چې وفات ئې هم په صحرا کښې شوې وو.

② عیسی علیه السلام سره مشابهت په عاجزۍ کښې دې.اودا صفت هم په حضرت ابوذر رضي الله عنه کښې علی وجه الکمال موجود وو.دا د هغوی د سیرت کتلو څخه معلومیږی.

**[٦٢٤٠] د څلورو صحابوډ علم فوقیت**

٦٢٤٠-(¹)[٣٥] [١] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ لَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ [٢] قَالَ الْتَمِسُوا الْعِلْمَ عِنْدَ أَرْبَعَةٍ عِنْدَ عُوَيْمِرٍ أَبِي الدَّرْدَاءِ، وَعِنْدَ سَلْمَانَ، وَعِنْدَ ابْنِ مَسْعُودٍ، [٣] وَعِنْدَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ الَّذِي كَانَ يَهُودِيًّا فَأَسْلَمَ " [٤] «سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ إِنَّهُ عَاشِرُ عَشَرَةٍ فِي الْجَنَّةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روایت دی د هغه د مرګ وخت چې نزدې شو (نو وصیت یې وکړو) [٢] چې علم څلور سړو نه حاصلوئ عویمر رضي الله عنه نه چې د هغه کنیت ابودرداء رضي الله عنه دی سلمان فارسي رضي الله عنه نه او عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه [٣] اوعبدالله بن سلام رضي الله عنه نه چې مخکې یهودي وو او بیا اسلام یي قبول کی [٤] ما رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوریدلي دي چې هغه عبد الله بن سلام د جنت د لس سړو نه لسم سړی دی. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① الْتَمِسُوا الْعِلْمَ: تلاش کړئ، طلب کړئ (علم دکتاب اوسنة یا علم دحلال اوحرام).

¹ اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب عبد الله بن سلام رضی الله عنه (رقم-٣٨٠٤) واحمد فی المسند: ٢٤٣/٥

**تسهیلات:**

**قوله:** عَاشِرُ عَشَرَةٍ:

**د عاشر عشرة په مفهوم کښې درې اقوال:** ① په لسو کسانو کښې لسم کس دې. دَدې جملې مطلب دادې چه عبدالله بن سلام رضي الله عنه لکه چه لس کسان کوم چه عشره مبشره دی په هغوی کښې دَ یو په شان دې.

② عبدالله بن سلام رضي الله عنه په جنت کښې داخلیدونکو نه لسم سړې دې

③ دَیهودو کوم لوئی لوئی سرداران جنت ته ځی په هغوی کښې به یو عبدالله بن سلام رضي الله عنه وی

**[٦٢٤١] د حذیفه رضي الله عنه او ابن مسعود رضي الله عنه فضیلت**

٣٣١ - ()[٣٦]«-① وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ: لَوِ اسْتَخْلَفْتَ؟ ②قَالَ: إِنِ اسْتَخْلَفْتُ عَلَيْكُمْ فَعَصَيْتُمُوهُ عُذِّبْتُمْ③وَلَكِنْ مَا حَدَّثَكُمْ حُذَيْفَةُ فَصَدِّقُوهُ وَمَا أَقْرَأَكُمْ عَبْدُ اللَّهِ فَاقْرَءُوهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت حذیفه بن الیمان رضي الله عنه بیان کوي یوه ورځ څو صحابه رضي الله عنهم اوویل یارسول الله! که تاسو پخپله صحابه وو نه څوك خپل خلیفه مقرر کړی وی نو ښه به وه یا دا معنی ده چې یارسول الله! که تاسو خپله څوك خپل خلیفه مقررولی نو هغه به څوك وو؟② حضور ﷺ ورته وفرمایل که زه څوك په تاسو باندې خپل خلیفه مقرر کړم او بیا تاسو د هغه نافرمانی وکړئ نو په عذاب کې به ونیول شئ③ بیا هم زه تاسو ته وصیت کوم چې حذیفه رضي الله عنه تاسو ته څه اووائي یا کوم حدیث بیان کړي نو هغه رېښتني وګڼئ او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه چې تاسو ته څه اووائي هغه اووایئ. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① لَوِاسْتَخْلَفْتَ؟: ددې دوه مطلبه کیدې شی: ۱: که تاسو په صحابه ؤ کښې څوك خپل خلیفه مقرر کړې وې نو ښه به وه. ۲: که تاسو خپله څوك خپل خلیفه مقررولی نو هغه به څوك وو؟

② فَعَصَيْتُمُوهُ: بیا تاسو دهغه خلیفه نافرمانی اوکړئ

**تسهیلات:**

**قوله:** لَوِاسْتَخْلَفْتَ:

**د حدیث مطلب:** یعنی صحابه کرامو سوال اوکړو چه یا رسول الله ﷺ که چرې تاسو دَخپل ځان نه پس څوك خپل خلیفه مقررکړې نودابه ښه وی حضورپاك دَ اسلوب حکیم لاندې جواب ورکړو ستاسو دا سوال ښه نه دې اونه تاسو له په دې کښې دَ پرېوتلو ضرورت شته. دادَ الله تعالی په لاس کښې دی هغه به په مناسب وخت کښې چه څوك مقرر کوی تاسو به هغه منلی اوستاسو به په هغه باندې اتفاق اوشی لیکن فرض کړه که څوك دَ اوس نه

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب مناقب حذیفة بن الیمان رضی الله عنه (رقم-۳۸۱۲)

خليفه مقرركړم او روستو ستاسو رائې دَهغه خلاف شي نوتاسو به په سخت عذاب كښې راګيرشئ. په دې وجه په دې سوال كښې مه پريوځئ مه دَ خلافت خبره كوئى بلكه دَ الله تعالى كتاب اودَ رسول الله ﷺ په مضبوطياسره اونيسئ. كتاب اوسنت خپلولوكښې دَ حذيفه اوعبدالله بن مسعود رضي الله عنهما اقتدا كوئى. دَدې دوو تخصيص ځكه اوكړې شو چه حضرت حذيفه رضي الله عنه صاحب سر رسول الله وو اوحضرت ابن مسعود رضي الله عنه په احكام شريعت كښې ممتاز حيثيت لرلو. په دې كښې دَ دواړودَ فضيلت ذكر دې.

**[٦٢٤٢] د محمد بن مسلمه رضي الله عنه د فتنو ځخه حفاظت**

۶۲۴۲-(۱) [۴۷] ⓵وَعَنْهُ قَالَ «مَا أَحَدٌ مِنَ النَّاسِ تُدْرِكُهُ الْفِتْنَةُ إِلَّا أَنَا أَخَافُهَا عَلَيْهِ ⓶إِلَّا مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ ⓷لَا تَضُرُّكَ الْفِتْنَةُ» رَوَاهُ ابوداؤد.

**ترجمه:** ⓵ او حضرت حذيفه رضي الله عنه وايي هركله چې دنياوي بدآمني او انتشار او د مسلنانانو په منځ كې د اختلاف او افتراق فتنه خلق راګير كړي نو ما سره خوف دى چې هيڅ سړى به د هغه د اثر نه محفوظ پاتې نشي ⓶علاوه د محمد بن مسلمه رضي الله عنه نه ځكه چې ما د رسول الله ﷺ نه محمد بن مسلمه ته دا فرمايل اوريدلي دي⓷ چې فتنه به تاته ضرر نه رسوي دا روايت ابوداود نقل كړى دى او په دې باره كې سكوت اختيار كړى دى بيا هم نوموړي محدث عبد العظيم منذري رحمه الله داحديث ثابت كړى دى.

**حل اللغات:-** ⓵تُدْرِكُهُ: راګير كړى هغه لره، رالاندې كړى، ⓶الْفِتْنَةُ: آزمائش (دنيوى امتحانات).

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَا أَخَافُهَا عَلَيْهِ إِلَّا مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ:

**د محمد بن مسلمه تعارف:** حضرت محمد بن مسلمه رضي الله عنه انصارى خزرجى اشهلى، دَ اوچتې پايې صحابى دې. هغوى په مدينه منوره كښې دَحضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه په لاس باندې اسلام قبول كړې وو. دَ تبوك نه علاوه په ټولو غزواتو كښې شريك شوې دې او بعضې حضراتو ليكلى دى چه حضورپاك دَ غزوه تبوك په موقع باندې هم دې په مدينه كښې خپل خليفه پريخودې وو. دَ حضورپاك په حكم باندې هغوى دَ خپل مينځ دَ اختلافاتو او دَ انتشار دَهرې فتنې نه خپله لمن بچ اوساتله. كله چه به هم داسې ناقابل برداشت موقع راتله حضرت محمدبن مسلمه رضي الله عنه به چرته ګوټ كښې كيناستو. او دغه شان به دَ فتنې اوفساد دَ شر او ضرر نه محفوظ پاتې كيدو. په اختلاف دَ رواياتو ۴۳هجرى يا ۴۶ هجرى كښې وفات شو.

---

[۱] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب السنة/باب ما يدل على ترك الكلام فى الفتنة (رقم-۴۶۶۳)

## [٦٢٤٣] نبی علیه السلام او د عبد الله بن زبیر رضی الله عنهما تحنیک

۶۲۴۳-() [۳۸] ① وَعَنْ عَائِشَةَ، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَأَى فِي بَيْتِ الزُّبَيْرِ مِصْبَاحًا، ② فَقَالَ: يَا عَائِشَةُ مَا أُرَى أَسْمَاءَ إِلَّا قَدْ نُفِسَتْ ③ وَلَا تُسَمُّوهُ حَتَّى أُسَمِّيَهُ ④ فَسَمَّاهُ عَبْدَ اللَّهِ وَحَنَّكَهُ بِتَمْرَةٍ بِيَدِهِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او بي بي عائشه رضي الله عنها بيان کوي چې يوه شپه خلاف معمول رسول الله صلی الله علیه وسلم د زبير په کورکي چراغ (ډيوه) بل اوليدله ② نو وي فرمايل اې عائشه رضي الله عنها خما خيال کې د بي بي اسماء رضي الله عنها بچې پيدا شوي دي ځکه چې د هغه په نزد ولادت نزدې وو او د اوقت خلاف معمول د چراغ (ډيوه) بليدل د دې خبري علامه ده ③ تاسو خلق د دې بچي نوم مه ايږدئ تردې پورې چې زه يي نوم کينږدم ④ نو حضور صلی الله علیه وسلم د هغه بچي نوم عبد الله کيښووی او د خرما په ذريعه د هغه تحنيك يي وکړو. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① مِصْبَاحًا: أَيْ: سِرَاجًا: ډيوه، چراغ، ② نُفِسَتْ: أَيْ: وَلَدَتْ وَصَارَتْ ذَاتَ نِفَاسٍ: ماشوم ئې شوې دې دنفاس بيماری ئې شروع شوې ده (د حضرت اسماء رضي الله عنها) ③ حَنَّكَهُ: إِذَا مَضَغْتَ تَمْرًا أَوْ غَيْرَهُ، ثُمَّ دَلَكْتَهُ بِحَنَكِهِ: دَ تحنيك معنی ده کهجوره چوپولو سره دَماشوم په خله کښې ورکول يا په حلق پورې مږل.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَحَنَّكَهُ بِتَمْرَةٍ بِيَدِهِ

**د نو مولود تحنيک کول:** کهجوره يا بل خوږ څيز په خله کښې چوپولو سره دَ نوی پيدا شوی ماشوم په خله کښې ورکول يا دَهغه تالو پورې لګول مستحب دی. دَدې حديث نه ملعومه شوه چه چاکره بچې پيدا شی نوهغه له پکار دی چه يو نيك صالح سړی باندې دَ هغه ماشوم نوم کيږدی او کهجوره يا شات او يا بل څه خوږ څيز سره دَهغه تحنيك اوکړی چه هغې سره دۀ ته برکت حاصل شی.

**د عبدالله بن زبير پيدائش:** حضرت زبير بن عوام رضي الله عنه دَ حضورپاك دَ ترور حضرت صفيه رضي الله عنها خوئی اودَ حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه خوم دې. دَ حضرت عائشه رضي الله عنها خور حضرت اسماء رضي الله عنها دَهغه په نکاح کښې وه. دَ لوئی قدر اومنزلت لرونکې صحابی دې او په عشره مبشره کښې هم دې.

حضرت عبدالله دَ حضرت زبير رضي الله عنه او دَ حضرت اسماء رضي الله عنها خوئی دې. سرکاردوعالم صلی الله علیه وسلم دَهغوی کنيت دَهغوی دَ نيکه حضرت ابوبکر رضي الله عنه په کنيت باندې کيخودې وو اودَهغه نوم ئی هم دَنيکه په نوم باندې کيخودې وو.

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب عبد الله بن الزبير رضی الله عنه(رقم-۳۸۲۶) واحمد فی المسند:۹۶/۶

**نبی علیه السلام اوعبدالله بن زبیر تحنیک:** دَ هجرت نه پس په مدینه کښې چه دَمهاجرینو کوم خامن پیدا شو په هغوی کښې دَ ټولو نه وړومبې حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه ۱ھ کښې پیدا شوې وو. کله چه دې پیدا شو نوحضرت ابوبکر رضي الله عنه دَ ده په غوږ کښې اذان اوکړو. حضرت اسماء رضي الله عنها دې حضور پاك له راوستلو او دَ حضورپاك دَ برکت نه دِ که غیږ کښې ئې ورکړو. حضورپاك کهجوره راؤغوښتله او په خله کښې ئې اوچوپوله او بیائې دَهغه خله کښې ورکړه بیا ئې خپل مبارك لعاب دَ هغه په خله کښې ورکړل او دَهغه تحنیك ئې اوکړو. دغه شان دَعبدالله رضي الله عنه په خیټه کښې چه کوم څیز دَ اول نه داخل شو هغه دَ حضورپاك مبارك لعاب دهن وو. دې نه پس حضورپاك دَهغه دَپاره دَ خیراوبرکت دعا اوکړه.

**[٦٢٤٤]معاویه رضی الله عنه ته د نبی علیه السلام دعا**

۶۲۴۴-() [۳۹][۱]وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمِيرَةَ عَنِ «النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۲] أَنَّهُ قَالَ لِمُعَاوِيَةَ:[۳] اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا وَاهْدِ بِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:**[۱] او حضرت عبد الرحمٰن بن ابي عمیره رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي[۲] چې حضور صلی الله علیه وسلم د حضرت معاویه رضي الله عنه په حق کې داسې دعا وکړله[۳] اي الله دې راه راست ښوونکی او راه راست پیداکونکی جوړکړي او دده په ذریعه خلقوته هدایت وکړي.(ترمذي)

**حل اللغات:-** ① هَادِيًا: أَيْ: مُرْشِدًا لِلنَّاسِ: نورو ته لاره ښودونکي (د جنت). ② مَهْدِيًّا: أَيْ مُهْتَدِيًا فِي نَفْسِهِ: په خپله هدایت حاصلونکي. ③ وَاهْدِ بِهِ: اوهدایت ورکړي په معاویه سره (د خیر اود شر لار واضحه کولو ته هدایت وائی).

**تسهیلات:**

**قوله:** اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا وَاهْدِ بِهِ:

**د معاویه رضی الله عنه دپاره د نبی علیه السلام درې دعاګانې:** دَدې په شان یو حدیث مخکښې تیرشوې دې هلته پوره تفصیل په وضاحت سره شوې دې. بهرحال په حدیث الباب کښې هم رسول کریم صلی الله علیه وسلم دَ معاویه رضي الله عنه دَ پاره درې دعاګانې کړی دی.

① امیرمعاویه دې خلقو ته هدایت ورکړی

② پخپله دې په هدایت باندې وی.

③ معاویه دې مکمل اواکمل دَ هدایت ذریعه وی. یو روایت کښې دی چه حضورپاك دعا اوکړه اې الله معاویه ته دَ کتاب اوحساب علم ورکړه. دې دَ عذاب نه بچ کړې. ده له په ښاریو باندې تسلط ورکړې. او په یو روایت کښې ئې فرمائیلی دی اې معاویه کله چه ته بادشاه جوړشې نو په خلقو باندې سختی مه کوه نرمی کوه.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب مناقب معاویة بن ابی سفیان رضی الله عنه (رقم-۳۸٤۲) واحمد فی المسند: ٤/٢١٦

**دمعاویه رضی الله عنه مختصر تعارف:** دَحضرت علی رضی الله عنه دَ وفات نه پس کله چه دَ سیدنا حضرت حسن رضی الله عنه او حضرت امیرمعاویه رضی الله عنه په مینځ کښې صلح اوشوه نو ټول عالم اسلام حضرت معاویه رضی الله عنه دَوخت خلیفه اومنلو او تقریباً تر شلو کالو پورې امیرمعاویه رضی الله عنه دَ ټولې اسلامی دنیا امیر اوخلیفه وو دَ رجب میاشت ۶۰هجری کښې دَهغوی انتقال اوشو په خپله آخری زمانه کښې به حضرت معاویه رضی الله عنه دا ارمان کولو چه افسوس زه دَ قریشو دَ یو معمولی کس په شان ذی طویٰ کښې پروت وې اودَدې حکومت او خلافت هیڅ څیز مې نه لیدلو. حضرت معاویه رضی الله عنه سره دَ حضورپاك دَ تبرکاتو نه یو څادر، تهبد او یوقمیص اودَدې نه علاوه ویښته مبارك او نوکونه مبارك هم وو. په خپل آخری وخت کښې حضرت معاویه رضی الله عنه وصیت کړې وو چه دَرسول کریم صلی الله علیه وسلم په قمیص سره ماله کفن راکړئی او تهبند زما لنګ جوړکړئی او ویښته مبارك او څه نوکونه زما په مخ او پوزه باندې کیږدئی او څه زما دَ سجدو په ځائی باندې اوتړئی.

### [۶۲۴۵] د عمروبن العاص د ایمان ګواهی

۶۲۴۵-() [۵۰] [۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «أَسْلَمَ النَّاسُ وَآمَنَ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ» [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ.[1]

**ترجمه:** [۱] اوحضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] خلقو خو اسلام قبول کی او عمرو بن العاص رضی الله عنه ایمان راوړی [۳] دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یي دي چې داحدیث غریب دی او د دې اسناد قوي نه دی.

**حل اللغات:** - ① أَسْلَمَ: اسلام ئې قبول کړو (یعنی خلقو دجنګ نه پس ایمان ته غاړه کینښوده). ② آمَنَ: ایمان ئې راوړو (یعنی عمرو بن العاص رضی الله عنه بغیر دجنګ نه په خپله رضا ایمان قبول کړو).

**تسهیلات:**

**قوله:** أَسْلَمَ النَّاسُ وَآمَنَ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① نورو خلقوسره خوجنګونه شوی نوبیا هغوی چرته مسلمانان شوی لیکن عمروبن العاص رضی الله عنه خوبه رضا اورغبت سره پخپله مسلمان شوې.
② نورو خلقو ته دَ ایمان اواسلام دعوت ورکړې شوې لیکن عمرو بن العاص رضی الله عنه دَ اسلام حقانیت اومحمدعربی صلی الله علیه وسلم په نبوت باندې پوهه شو او په زړه کښې ئې دَ قبولیت اوایمان یوه جذبه راپیدا شوه او په منډه منډه مدینې ته راغلو اوایمان ئې قبول کړو.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب عمرو بن العاص رضی الله عنه (رقم-۳۸٤٤) واحمد فی المسند: ٤/١٥٥

**د حدیث پس منظر**: ونیلی شی چه د حبشه نجاشی هغوی ته اونیل چه حیرانتیاده ای عمروا محمد ﷺ خوهم ستا د تره خوئی دې او ته د هغه د حقیقت لوحقانیت نه تراوسه پورې ناخبر وې؟ د مکې کافرانو حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه سفیرجوړولوسره حبشه ته لیګلې وو چه د مکې نه حبشه ته تختیدلې مسلمانان واپس راوله. هلته چه عمرو بن العاص رضی الله عنه په خپل مشن کښې ناکام شو نود الله تعالی د طرف نه د هغه په زړه کښې د ایمان نور په غورزنګونو شو اوهغه ایمان راوړو. دغه شان هغه علی وجه البصیرة ایمان په دل وجان سره قبول کړو او په ډیره ښکلې طریقه سره حضورپاك سره د اسلام باره کښې خبرې اترې اوکړې. کیدې شی چه هم دې طرف ته اشاره وی چه نورو خلقو اسلام قبول کړو مګر عمروبن العاص رضی الله عنه ایمان راوړو.

**[٦٢٤٦] د جابر رضی الله عنه پلار سره د الله تعالی بې حجابه خبرې کول**

٦٢٤٦ - (١)[٥] [١] «وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ لَقِيَنِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] فَقَالَ: يَا جَابِرُ، مَا لِي أَرَاكَ مُنْكَسِرًا؟ [٣] قُلْتُ: اسْتُشْهِدَ أَبِي وَتَرَكَ عِيَالًا وَدَيْنًا. [٤] قَالَ: أَفَلَا أُبَشِّرُكَ بِمَا لَقِيَ اللَّهُ بِهِ أَبَاكَ؟ قُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ. [٥] قَالَ: مَا كَلَّمَ اللَّهُ أَحَدًا قَطُّ إِلَّا مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ [٦] وَأَحْيَا أَبَاكَ فَكَلَّمَهُ كِفَاحًا، قَالَ: يَا عَبْدِي تَمَنَّ عَلَيَّ أُعْطِكَ.

**ترجمه**: [١] او حضرت جابر رضی الله عنه بیان کوي یوه ورځ رسول الله ﷺ سره خما ملاقات وشو [٢] نو حضور ﷺ راته وفرمایل اې جابر! څه وجه ده چې زه تا غمجن وینم؟ [٣] ما عرض وکړو یارسول الله! خما پلار غزوه احد کې شهید شوي دي او هغه یوه لویه کورني او قرضه پریښي ده ګویا خما د پریشاني څواسباب پیداشوي دي [٤] حضور ﷺ وفرمایل آیا زه تاته د هغه معاملي خبر درکولو سره تا خوشحاله نه کړم چې الله جل جلاله ستا پلار سره کړیده ما عرض وکړو چې هو یارسول الله! ما خوشخبري سره ضرور ونوازئ [٥] حضور ﷺ وفرمایل الله جل جلاله چې کله هم چا سره کلام کړی دی د پردي حجاب د شا نه یې کړی دی [٦] خو ستا پلار الله جل جلاله ژوندی کی او بیا هغه سره یې روبرو کلام وفرمایلي (یعنی د الله جل جلاله او ستا د پلار په منځ کې نه څه حجاب حائل وو او نه څه دویمه واسطه) او ورته یې وفرمایل اې خما خاص بنده! خما د فضل وکرم په سهاره ارزو وکړه (یعنی د کوم شي چې خواهش وي هغه زما نه وغواړه زه به یې تاته عطا کړم په دې اوریدو سره ستا پلار ګویاشو)

**حل اللغات**: - ① مُنْكَسِرًا: يَعْنِي: مَهْمُومًا حَزِينًا: یعنی خفه، غمجن او دلګیر زړه. ② عِيَالًا: بال بچ، اهل وعیال ③ كِفَاحًا: أَيْ مُوَاجِهًا عِيَانًا: مخامخ خبرو اترو ته وائی. ④ تَمَنَّ: آرزو او خواهش اوکړه

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب تفسیر القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب: ومن سورة آل عمران (رقم-٣٠١٠) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فیما أنکرت الجهمیة (رقم-١٩٠) واحمد فی المسند: ٣٦١/٣

۱ قَالَ: يَا رَبِّ تُحْيِينِي فَأُقْتَلُ فِيكَ ثَانِيَةً. ۲ قَالَ الرَّبُّ - تَبَارَكَ وَتَعَالَى -: إِنَّهُ قَدْ سَبَقَ مِنِّي أَنَّهُمْ لَا يُرْجَعُونَ فَنَزَلَتْ "﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا﴾ [آل عمران: ۱۶۹]» "الْآيَةَ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ اې ځما ربه! زه خو بس دا غواړم چې ما ژوندی کولو سره دنيا ته بيا وليږه چې ستا په لار کې جهاد کولو سره يو وار بيا ووژل شم (او ستا رضا او خوشنودي مزيد حاصلولو د پاره يوه بله وسيله هم راته حاصله شي) ۲ الله ﷻ ورته وفرمايل په دې باره کې دا حقيقت ياد ساتل پکار دی چې ځما دا حکم د مخکې نه نافذ دی چې څوك مړه شوي دي دنياته به واپس نه راځي (او بيا ستا د پلار او د أحد د نورو شهداوو په حق کې) دا آيت نازل شو چې د هغه ترجمه داده او کوم خلق چې د الله ﷻ په لار کې قتل شوي دي هغوئ باندې د مړو خيال مه کوئ الخ. (ترمذي)

**حل اللغات:** -۵ تُحْيِينِي: په معنی ددعا سره دې، أَيْ: أَحْيِنِي: ماله ژوند راکړه (چه ستا په لارکښې جهاد اوکړم).

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَحْيَا أَبَاكَ فَكَلَّمَهُ كِفَاحًا:

**د عبدالله سره د الله تعالی خبرې کول:** يعنی ستا پلار چه په احد کښې شهيد شوې دې الله تعالی هغه ژوندې کړو او بغيرد واسطه او بغيرد قاصد هغه سره کلام اوکړو. معلومه شوه چه دَ احد شهيدانو سره الله تعالی کلام اوکړو مګر دَ پردې نه شاته ئې اوکړو. آيا صرف دَ حضرت جابر ﷺ پلار عبدالله ﷺ ئې پرده کښې دننه راؤغوښتلو او مخامخ ئې کلام اوکړو.

**[۶۲۴۷] جابر ﷺ دپاره پنځه ويشت ځله د مغفرت دعا غوښتل**

۶۲۴۷ -(۱) [۵۲] ۱ وَعَنْهُ قَالَ: «اسْتَغْفَرَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَمْسًا وَعِشْرِينَ مَرَّةً» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت جابر ﷺ وايي رسول الله ﷺ ځما د پاره پنځويشت ځله د مغفرت دعا غوښتلي ده. (ترمذي)

**تسهيلات:** **قوله:** خَمْسًا وَعِشْرِينَ مَرَّةً:

**د دعا په عدد کښې دوه احتمالات:** ۱ يو احتمال دادې چه هم يو ځل رسول الله ﷺ دَ حضرت جابر ﷺ دَ پاره دَ مغفرت دعا پنځه ويش ځل اوغوښتله

۲ دويم احتمال دادې چه په مختلف وختونو او مختلف مواقع کښې پنځه ويش ځل دَمغفرت دعا اوغوښتله.

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب مناقب جابر بن عبد الله رضی الله عنهما (رقم-۳۸۵۲)

## [٦٢٤٨] د براء بن مالك رضي الله عنه منقبت

۶۲۴۸-() [۵۳] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «كَمْ مِنْ أَشْعَثَ أَغْبَرَ ذِي طِمْرَيْنِ لَا يُؤْبَهُ لَهُ [۳] لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللَّهِ لَأَبَرَّهُ مِنْهُمُ الْبَرَاءُ بْنُ مَالِكٍ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] څومره خلق دي چې په ظاهره خو ببرسري په ګرځي او دوي زړي كپړي اغوستونكى وي او د خپل ظاهري حالت په سبب داسې حقير ګڼلى شي چې نه څوك د هغوئ پروا كوي او نه هغوئ طرف ته توجه كوي [۳] ليكن د هغوئ د باطن داحال وي كه هغوئ د الله په بهروسه قسم واخستى نو الله جل جلاله د هغوئ قسم رېښتيا كوي (يعنى كه هغه خلق قسم اخستو سره اووائي چې الله جل جلاله به داسې وكړي نو الله جل جلاله د هغوئ د قسم لحاظ ساتي او هغه شان كوي يا كه هغوئ د خپل څه كار په باره كې قسم اخستو سره اووائي چې مونږ به فلانى كار كوو نو الله جل جلاله د هغه ذرائع او اسباب ورته مهيا كوي او هغوئ ته د هغه كار كولو توفيق او طاقت وركوي) او داسې خلقو نه يو براء بن مالك رضي الله عنه هم دى داروايت ترمذي رحمه الله اودلائل النبوت كې بيهقي نقل كړى دى

**حل اللغات:**- ① أَشْعَثَ: د دې جمع شُعْثٌ ده، وَهُوَ الْمُتَفَرِّقُ مِنَ الشَّعْرِ: سربېرو ببنتو والا انسان ته وائى. ② أَغْبَرَ: د دې جمع غُبْرٌ ده، وَهُوَ الَّذِي الْتَصَقَ الْغُبَارُ بِأَعْضَائِهِ: ګرد جن چه په اندامونو ئې خاورې دوړې لګېدلې وى. ③ ذِي طِمْرَيْنِ: أَيْ صَاحِبِ ثَوْبَيْنِ خَلَقَيْنِ: شليدلې زړو كپړو ته وائى. دلته دوه زړې كپړو نه قميص او پرتوګ يا لنګ مراد دې. ④ لَا يُؤْبَهُ: دَ باب فتح نه يا د باب افعال نه دې، أَيْ لَا يُبَالَى بِهِ: څوک ئې هيڅ پرواه نه ساتي، هيڅ حيثيت نه وركوي. ⑤ لَأَبَرَّهُ: أَيْ لَأَمْضَاهُ: پوره ئې كړى يعنى قسم ورله الله تعالى رشتوني كړى (اوحانث پكښې نه شي).

**تسهيلات:** قوله: لَا يُؤْبَهُ لَهُ:

**دالله تعالى د نيكانو بندګانو يو صفت:** يعنى چه داسې سړې وى چه په معاشره كښې هغه ته څوك اهميت نه وركوى بې نام او خراب حال وى هيڅ شمير كښې نه وى ليكن دَالله تعالى په نيز دَهغه دومره لوړ مقام وى كه چرې هغه پخپله قسم اوخورى نوالله تعالى هغه دغه قسم كښې رښتوني او برى الذمه جوړوى. هم دَداسې كسانو نه يو براء بن مالك رضي الله عنه دي.

**د براء بن مالك تعارف:** حضرت براء بن مالك رضي الله عنه دَ حضرت انس رضي الله عنه حقيقى رور دي. دَ فضلاء صحابه كرامو نه دي. دَ عربو په نوموړو بهادرانو پهلوانانو كښې دَهغه شمير كيږى احد اودَدې نه پس په ټولو غزواتو كښې رسول الله صلى الله عليه وسلم سره شريك شوې. الله تعالى هغه ته دومره بهادرى او طاقت وركړې وو چه په يوجنګ كښې هغه يوازې سل كافران جهنم ته رسولى وو. په جنګ يمامه كښې دَاهم قلعه دَ فتح كولو دپاره هغه خپل ځان مسلح كړو اودَ

[۱] ) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب مناقب جابر بن عبد الله رضى الله عنهما (رقم-۳۸۵۴) والبيهقى فى دلائل النبوة رقم الحديث ۶/ ۳۶۸

مالوچو په بورئی کښې بند کړو اودَمنجنيق په ذريعه سره هغه قلعه ته دننه ورا وغورزولو. هغه دننه اوجنګيدو او قلعه ئې فتح کړه. هغوی په ۲۰ هجری شهيد شوي وو.

**[۶۲۴۹] اهل بيت او انصار**

۶۲۳۹-(١) [۵۳] ⓵ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⓶ «أَلَا إِنَّ عَيْبَتِيَ الَّتِي آوِي إِلَيْهَا أَهْلُ بَيْتِي، ⓷ وَإِنَّ كَرِشِيَ الْأَنْصَارُ فَاعْفُوا عَنْ مُسِيئِهِمْ وَاقْبَلُوا عَنْ مُحْسِنِهِمْ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه:** ⓵ او حضرت ابوسعيد خدري ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⓶ پوهه شئ خما خاص خلق او خما صاحب راز او امين چې د هغوئ په منځ کې زه تيکانه حاصلوم خما اهل بيت دی او خما ولي ⓷ او دوست انصار دی نو تاسو د دې انصارو خطاکارو د خطاګانو نه چشم پوشي کوئ او د هغوئ د نيکو کارو عذر قبلوئ دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح دی.

**حل اللغات:-** ① عَيْبَتِيَ: أَيْ: خَاصَّتِي: زما خاص خلق، رازدار ملګری. ② آوِي: أَيْ: أَمِيلُ وَأَرْجِعُ: يعنی زه رجوع کوم، خائې نيسم. (چاته چه په وخت دضرورت اوحاجت کښې رجوع کولې شي)، ③ كَرِشِيَ: أَيْ: بِطَانَتِي: يعنی انصار زما باطن دی په کوم کښې چه زړه ګرده او کولمې ټول هرڅه راځي.

**تسهيلات: قوله**: فَاعْفُوا عَنْ مُسِيئِهِمْ وَاقْبَلُوا عَنْ مُحْسِنِهِمْ:

**دحديث الباب مخاطبينو کښې درې احتمالات:**

① حديث الباب کښې خطاب ټول امت ته دې ② يا خلفاؤ ③ يا امراؤ ته خطاب دې

**دانصارو باره کښې خصوصی وصيت:** چه که يو انصاری سړې دَ چا په ذاتی معامله کښې څه زياتې اوکړی اوهغه انصاری معذرت اوکړی نو دَ هغه معذرت قبول کړئی. که چرې هغه عذر اونه کړی نوبيخپله دَ هغه نيکئی مخې ته کړئی او هغه معاف کړئی اوهغه ته درګزر اوکړئی ځکه چه دا زمونږ دَ رسول ﷺ کوربانه دی. په دې حديث کښې هم دَ رسول کريم ﷺ دَ اهل بيتو او انصارو دَمحبت ذکر دې.

**[۶۲۵۰] مؤمن اودانصارو سره بغض نه ساتل**

۶۲۵۰-(٢) [۵۵] ⓵ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ⓶ «لَا يُبْغِضُ الْأَنْصَارَ أَحَدٌ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ» ⓷ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

[1] اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فی فضل الأنصار وقريش (رقم-۳۹۰۴) واحمد فی المسند:۸۹/۳

[2] اخرجه مسلم فی كتاب الإيمان/باب الدليل على أن حب الأنصار وعلى رضی الله عنهم من الإيمان وعلاماته، وبغضهم من علامات النفاق (رقم-۱۳۰ - (۷۶) والترمذی فی كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فی فضل الأنصار وقريش (رقم-۳۹۰۶) واحمد فی المسند: ۳۰۹/۱

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] څوك چې په الله او د قيامت په ورځ باندې ايمان لري هغه انصارو سره بغض او عداوت نه لري [۳] دا روايت ترمذي نقل كړى دى او ويلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح دى.

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث كښې د ګرانو لغاتو حل شوې دې باقي مضمون آسان دې.

**[٦٢٥١] د ابوطلحه رضي الله عنه د قوم فضيلت**

٦٢٥١ -(١) [٥٦] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ، «عَنْ أَبِي طَلْحَةَ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] أَقْرِئْ قَوْمَكَ السَّلَامَ [۳] فَإِنَّهُمْ مَا عَلِمْتُ أَعِفَّةٌ صُبُرٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه خپل ميرني شوئيلي پلار حضرت ابوطلحه رضي الله عنه نه روايت كوي د هغه بيان دى رسول الله ﷺ ماته فرمايلي وه [۲] چې ته خپل قوم ته څما سلام ورسوه [۳] څكه چې د څوپوري ماته علم دى هغوئ پاكباز او صابر خلق دي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① أَعِفَّةٌ: دَ عَفِيف جمع ده پاك خلق مراد دى چه دَ هر قسم سوال او فحاشئى نه پاك وى. ② صُبُرٌ: دا دَ صَابِر جمع ده ميدان جهاد وغيره مشكلاتو كښې ثابت قدم او صبر كونكى خلق مراد دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا عَلِمْتُ:

**د ما علمت نحوى تحقيق:** په جمله كښې موصوله دې او دا جمله معترضه ده په "انهم" كښې ضمير جمع دې دا حرف دَ ان دَپاره اسم دې او اعفة خبر دې.

**[٦٢٥٢] د اهل بدر فضيلت**

٦٢٥٢ -(٢) [٥٧] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ: «أَنَّ عَبْدًا لِحَاطِبٍ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] يَشْكُو حَاطِبًا إِلَيْهِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَيَدْخُلَنَّ حَاطِبٌ النَّارَ. [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ: كَذَبْتَ، لَا يَدْخُلُهَا فَإِنَّهُ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا وَالْحُدَيْبِيَةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دى چې يوه ورځ د حاطب بن ابي بلتعه غلام د نبي ﷺ په خدمت كې راغي [۲] او حضور ﷺ ته يې د حاطب خلاف سخت شكايت وكى او هغه او ويل يارسول الله! (حاطب په ما ډيره سختي كوي) څكه هغه به ضرور دوزخ ته ځي [۳] رسول الله ﷺ په دې اوريدو سره ورته وفرمايل ته دې خپله خبره كې چې حاطب رضي الله عنه به

[1] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى فضل الأنصار وقريش (رقم-٣٩٠٢) واحمد فى المسند: ١٥٠/٣

[2] اخرجه مسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من فضائل أهل بدر رضى الله عنهم وقصة حاطب بن أبى بلتعة (رقم-١٦٢ - (٢٤٩٥) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فيمن سب أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-٣٨٦٥) واحمد فى المسند:٣٢٥/٣

ضرور دوزخ ته ځي دروغجن يي حاطب به دوزخ ته نه ځي ځكه چې هغه بدر او حديبيه كې شريك شوي دي. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① يَشْكُو: شكايت ئې اوكړو.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَشْكُو حَاطِبًا:

**د غلام خپل مالک څخه شکايت کول:** غلام داويناكول غوښتل چه حاطب به دوزخ ته ځي ځكه چه هغه دَ كافرانو دَپاره دَمسلمانانو جاسوسي كړې وه او هغه په ما باندې ظلم كوي. نو رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چه هغه دوزخ ته نه شي تللې ځكه چه هغه په جنګ بدر او حديبيه كښې شريك شوې دې اودَ هغه باره كښې الله تعالى فرمائيلى دى چه دَ دې نه پس چه كوم عمل كوې نو ستا به مواخذه نه كيږي. په دې وجه الله تعالى دَهغه دَ جاسوسنې قصور معاف كړې دې اوتركومې پورې چه په تاباندې دَ ظلم خبره دد نو هغه ظلم نه شي كولې ته په غلطه ئې.

**د شرکاء بدرته د الله تعالى مغفرت:** په جنګ بدر او صلح حديبيه كښې چه كوم صحابه كرام موجود وو دَهغوى باره كښې يقينى او قوى اميد دې چه هغوى به دَ دوزخ دَ اور نه محفوظ وى چونكه حضرت حاطب بن ابى بلتعه رضی الله عنه هم په بدر او حديبيه كښې شريك وو دَهغه باره كښې يقين سره وينا كول چه هغه به دوزخ ته ځى دروغ دى.

**[٦٢٥٣] سلمان فارسي رضی الله عنه او اهل فارس**

٦٢٥٣ -(١) [٥٨] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ: ﴿وَإِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُمْ﴾ [محمد: ٣٨] ② قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَنْ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ ذَكَرَ اللَّهُ إِنْ تَوَلَّيْنَا اسْتُبْدِلُوا بِنَا، ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَنَا، ③ فَضَرَبَ عَلَى فَخِذِ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ، ثُمَّ قَالَ: هَذَا وَقَوْمُهُ، ④ وَلَوْ كَانَ الدِّينُ عِنْدَ الثُّرَيَّا لَتَنَاوَلَهُ رِجَالٌ مِنَ الْفُرْسِ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي يوه ورځ رسول الله ﷺ دا آيت وان تتولوا يستبدل قوما غيركم ثم لايكونوا امثالكم تلاوت كړ ② نو بعضې صحابه رضی الله عنهم عرض وكړو يارسول الله! هغه كوم خلق دي چې د هغوئ په باره كې الله ﷻ فرمايلي دي كه مونږ روګرداني وكړه نو هغوئ به زمونږ په ځاي ودرول شي او هغوئ به زمونږ په شان نه وي ③ په دي اوريدو سره حضور ﷺ د سلمان فارسي رضی الله عنه په ورنو خپل لاس مبارك ووهى او وي فرمايل هغه دا دي او دده قوم دي ④ كه دين د ثريا په بلندي هم وي نو دوئ اهل فارسو نه څومره خلق به دهغه ځاي نه دحاصلولو نه منع نشي. (ترمذي)

---

[١] اخرجه الترمذى في السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في فضل العجم (رقم-٣٩٣٣)

**حل اللغات:-** ① يَسْتَبْدِلْ: په بدل کښې به راولی، ② أَمْثَالَكُمْ: په شان ستاسو. ③ اسْتُبْدِلُوا بِنَا: هغوی به زمونږ په بدل کښې راوستلې شی. ④ الثُّرَيَّا: کهکشان ستوروته ثريا وائی په اوچتوالی کښې دې سره تشبيه ورکولې شی. ⑤ الْفُرْسِ: مَنْ بَلْدَهُ فَارِسُ: د فارس اوسيدونکی.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَضَرَبَ عَلَى فَخِذِ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ..الخ:

دې حديث کښې دَحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله فضيلت ثابت کيدې شی ځکه چه امام ابوحنيفه رحمه الله دَاهل فارس نه وو.

**قوله:** لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُمْ:

**د نافرمانۍ په صورت کښې د بل قوم د راوستلو اعلان:** په دې کښې حضرات صحابه کرامو ته خطاب دې که چرې تاسو خلق دَ دين خدمت نه کوئی نو ستاسو په ځائی به الله پاك دَ بل قوم نه دَ دين خدمت واخلی. ستاسو دين ته ضرورت دې دَدين تاسو ته ضرورت نشته دې. بيا صحابه کرامو سوال اوکړو چه هغه به کوم خلق وی چه زمونږ نه پس به دين سنبال کړی نو حضورپاك حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه اودَ هغه قوم طرف ته اشاره اوکړه.

**قوله:** مِنَ الْفُرْسِ:

**د فرس په مصداق کښې څلور اقوال:** ① دې ځخه مطلق عجم يعنی غير عرب مراد دی.
② دې ځخه هغه خلق مراد دی دَ چا ژبه چه فارسی وه
③ دې ځخه هغه خلق مراد دی دَ چا چه نسلی او وطنی تعلق دَ فارس (ايران) سره وو
④ دې ځخه سيدالائمه امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله مراد دې.

**دعجمو خدمات:** که په تاريخ باندې نظر واچولې شی نود خيرالقرون ځخه روسته چې د دين اسلام کوم خدمت بالخصوص داحاديثو کوم خدمت عجمی کړې دې دا عربو نه دې کړې صحاح سته راواخله ددې مصنفين عجم دی. دغه شان په نورو مختلفو اليه فنونوکښې عجمو د خپل قابليت شمع روښانه کړې ده.

**[۶۲۵۴]په عجميانو د نبی عليه السلام اعتماد**

۶۲۵۳-(۱) [۵۱] ① وَعَنْهُ «قَالَ: ذُكِرَتِ الْأَعَاجِمُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ: لَأَنَا بِهِمْ أَوْ بِبَعْضِهِمْ أَوْثَقُ مِنِّي بِكُمْ أَوْ بِبَعْضِكُمْ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايې يوه موقع باندې د رسول الله صلی الله عليه وسلم مخکې د عجمي خلقو ذکر وشو نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل ② چې د دې دين د حفاظت او دياتـداري په معامله کې ددي عجمي خلقو يا په دوئ کې بعضې خلقو باندې تاسو اهل عربو نه يا

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی فضل العجم (رقم-۳۹۳۲)

ستاسو د بعضې خلقو نه زيات اعتماد او بهروسه لرم. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① الْأَعَاجِمُ: د عجم اوسيدونکی (غير عرب) ② أَوْثَقُ: أَيْ: أَرْجَى فِي الْاِعْتِمَادِ: زيات اعتماد والا.

**تسهيلات: قوله:** أَوْ بِبَعْضِهِمْ:

**په عجمو د نبی علیه السلام اعتماد:** کښې او دَشك دَپاره دې راوی ته شك دې چه حضورپاك کوم يولفظ استعمال کړې وو؟ مطلب دا چه زه دَټول اهل ايمان عجم باره کښې يا دَبعضې باره کښې دومره په اميديم او په هغوی باندې زما دومره يقين او اطمينان دې چه په تاسو عربو باندې دومره نشته.

**د خطاب مخاطبين:** علامه طيبی رحمه الله فرمائی چه دَ رسول الله ﷺ دَ دې کلام مخاطب بعضې عرب وو چه يو خاص قبيلې سره ئی تعلق لرلو. حضورپاك دَ جهاد په يوه موقع باندې دغه خلقو ته په جهاد کښې دَمال خرچ کولو حکم ورکړو نو هغه خلقو دَمال په خرچ کولو کښې سستی اوکړه په دې باندې حضورپاك دا کلام اوکړو. لهذا دا کلام دَعامو صحابه کرامو باره کښې نه دې بلکه دَ يو خاص طبقه باره کښې دې. دَعام صحابه کرامو شان خوخه بل رنګ دې هغوی په حضورپاك باندې قربان وو دَهغوی په مقابله کښې دَبل چا تصور کيدې شی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۶۲۵۵] د نبی کريم ﷺ څلوارلس نقباء

۶۲۵۵-() [۲۰] ① عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ سَبْعَةَ نُجَبَاءَ رُقَبَاءَ ③ وَأُعْطِيتُ أَنَا أَرْبَعَةَ عَشَرَ. ④ قُلْنَا: مَنْ هُمْ؟ ⑤ قَالَ: أَنَا وَابْنَايَ، وَجَعْفَرٌ، وَحَمْزَةُ، وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ وَمُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ، وَبِلَالٌ، وَسَلْمَانُ، وَعَمَّارٌ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ، وَأَبُو ذَرٍّ، وَالْمِقْدَادُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** ① حضرت علي کرم الله وجهه بيان کوي ② د هرنبي اووه ډير مخصوص او برګزيده ترين خلق او د هغه په هرحالت کې نګهباني او حفاظت کونکی ورته عطاکيدل ③ ليکن ماته داسې څوارلس (يعنی دوچند عطاشوي دي) ④ راوي وايي (چې حضرت علي رضي الله عنه مونږته د حضور ﷺ دا ارشاد نقل کی) نو مونږ ځني پوښتنه وکړه چې هغه څوارلس کوم کوم دي ⑤ حضرت علي رضي الله عنه جواب راکړو يو خو زه يم او ځما دواړه ځامن حسن او حسين دی جعفر بن ابي طالب دی حمزه بن عبد المطلب دی ابوبکر رضي الله عنه دی عمر رضي الله عنه دی مصعب بن عمير رضي الله عنه دی بلال رضي الله عنه دی سلمان فارسي رضي الله عنه دی عمار دی عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه

---

[1] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۷۸۴) واحمد فی المسند: ۱/۱۴۸

دي ابوذر ﷺ دي او مقداد ﷺ دي. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① نُجَبَاءَ: دَ نَجِيبُ جمع ده، أي الْمُخْتَارُ: برگزيده او خاص خاص خلقو ته وائي. ② رُقَبَاءَ: دا دَ رقيب جمع ده، أي الْحَافِظُ: نگران او محافظ ته وائي.

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث كښې د ګرانو لغاتو حل شوې دې باقي مضمون آسان دې.

**[۶۲۵۶] د عمار ﷺ د الله تعالى دشمن**

۶۲۵۶-()[۱۱] ① وَعَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ قَالَ: كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ كَلَامٌ ② فَأَغْلَظْتُ لَهُ فِي الْقَوْلِ، فَانْطَلَقَ عَمَّارٌ يَشْكُونِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ③ فَجَاءَ خَالِدٌ وَهُوَ يَشْكُوهُ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ④ قَالَ: فَجَعَلَ يُغْلِظُ لَهُ وَلَا يَزِيدُهُ إِلَّا غِلْظَةً ⑤ وَالنَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- سَاكِتٌ لَا يَتَكَلَّمُ،

**ترجمه:** ① او حضرت خالد بن وليد ﷺ وايي په يوه موقع يوه معامله كې خما او عمار بن ياسر ﷺ په منځ كې خبري وشوي ② ما د هغه خلاف يوه سخته خبره وكړه نو عمار خما خلاف شكايت وړلو سره د رسول الله ﷺ په خدمت كې ورسيدى او هغه حضور ﷺ ته شكايت كوى ③ چې په دې كې خالد هم راورسيدى ④ د راوي بيان دى چې دربار رسالت كې خپل شكايت اورولو سره خالد ته قهر راغې او هغه عمار ته بدرد وئيل شروع كړل او د هغه سخت كلامي او درشت ګوئي كې اضافه كيدله ⑤ هغه وخت رسول الله ﷺ چپ چاپ ناست اوريدلي (يې يو حرف يې د ژبې نه نه اوښكلو داصورت حال ليدو سره خالد سخت ګوئي كې اضافه كيدله او حضور ﷺ خاموش ناست وو)

**حل اللغات:-** ① فَأَغْلَظْتُ: سخته خبره مې ورته اوكړه،

① فَبَكَى عَمَّارٌ وَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلَا تَرَاهُ! ② فَرَفَعَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَأْسَهُ ③ وَقَالَ: «مَنْ عَادَى عَمَّارًا عَادَاهُ اللَّهُ وَمَنْ أَبْغَضَ عَمَّارًا أَبْغَضَهُ اللَّهُ». ④ قَالَ خَالِدٌ: فَخَرَجْتُ فَمَا كَانَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيَّ مِنْ رِضَا عَمَّارٍ فَلَقِيتُهُ بِمَا رَضِيَ فَرَضِيَ.

**ترجمه:** ① عمار د غصې نه د صبر لمن پريښودله او بې اختياره په ژړا شو او په ژړا كې يې اوويل يارسول الله! آيا تاسو نه وينئ چې خالد څه كوي او ستاسو مخكې ماته څه څه وايي ② رسول الله ﷺ په دې اوريدو سره خپل سرمبارك پورته كى ③ او وې فرمايل كوم سړى چې عمار سره د ژبې دښمني ساتي الله به هغه دښمن لري او كوم سړى چې عمار ﷺ سره د زړه بغض لري الله به د هغه سره بغض لري ④ حضرت خالد وايي د حضور ﷺ دا ارشار ګرامي اوريدو سره خما هوش په خاى شو او ما دافيصله كولو سره د حضور ﷺ د مجلس نه بهر راووتم چې څرنګه كيدى شي عمار خوشحاله او راضي كړم او هغه وخت هيڅ شى خما په

---

[1] اخرجه احمد في المسند: ۴/۹۰

نظر کې د عمار د راضي کولو او خوشحالولو نه زيات خوبن او بنه نه وو؛ بيا داسې وشوه چې ما د عمار د خوشحالولو او راضي کولو دپاره هغه سره داسې سلوك اورويه اختيار کړله چې هغه زما نه راضي او خوشحاله شو يعنی ما د هغه نه معافي وغوښتله هغه سره غاړه په غاړې شوم هغه سره په تواضع او انکساري سره پيش راغلم او هغه ته مې تحفې تحائف وليږلي او دې تولو خبرو د هغه ناراضګي او د هغه قهر زائل کړله او هغه زما نه بالکل خوشحاله شو.

**حل اللغات:**-② عَادَی: د عداوت نه دې، دشمنی کوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَغْلَظْتُ لَهُ فِي الْقَوْلِ:

**د خالد د سختئ مطلب:** دَحديث الباب په مذکوره واقعه کښې په حضرت عمار رضی الله عنه باندې دَ حضرت خالد رضی الله عنه دَ سختئی نه مراد کنځلې يا تهمت نه بلکه په سخته لهجه او اندازسره خبره کول مراد دی لکه څنګه چه په غصه کښې آواز اوچت شی اودا جګړه نه په څه ذاتی معامله کښې وه اونه په دينی معامله کښې. دارنګ په حديث باب کښې په مذکوره واقعه باندې په حضرت خالد رضی الله عنه باندې دَ بې ادبئی اعتراض ځکه نه شي کيدې چه دې خو يا دَ دربار نبوی دَ آدابو نه خبر نه وو يا دغه وخت دَ آداب نبوی متعلق دَ آيات نزول نه وو شوې.

**قوله:** فَبَكَى عَمَّارٌ:

**د عمار رضی الله عنه راضی کول:** حضرت عمار رضی الله عنه دَ خپلې بې وسئی دَحضرت خالد رضی الله عنه په سختئی او دَ رسول کريم صلی الله علیه وسلم په خاموشئی ليدو په ژړا شو. نو حضورپاك دَ حضرت عمار رضی الله عنه باره کښې داسې فضائل بيان کړل چه دَحضرت خالد رضی الله عنه دَ زړه دنيا بدله شوه او هغه حضرت عمار رضی الله عنه راضی کړو.

**[٦٢٥٧] خالد ته د سيف الله لقب ورکول**

٦٢٥٧-()[٦٣]①وَعَنْ أَبِي عُبَادَةَ أَنَّهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ- صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ②«خَالِدٌ سَيْفٌ مِنْ سُيُوفِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ ③وَنِعْمَ فَتَى الْعَشِيرَةِ». رَوَاهُمَا أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوعبيده رضی الله عنه نه روايت دی هغه وايي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوريدل ② خالد د الله بزرګ وبرتـ د تـورو نـه يـوه توره ده ③ هغه د خپلي قبيلې بني مخزوم چې د قريشو يوښاخ دی بهترين خوان دی دا دواړه روايتونه احمد نقل کړي دي.

**حل اللغات:**- ① فَتَى الْعَشِيرَةِ: يعنی خالد رضی الله عنه دَخپلې قبيلې بنی مخزوم بهترين خوان دې.

---

[١] اخرجه احمد في المسند: ٩٠/٤

**تسهیلات:**

**قوله: وَنِعْمَ فَتَى الْعَشِيرَةِ:**

**د خالد ده قبیلې تعارف:** بنو مخزوم دَقریشو یو شاخ دې. دَحضرت خالد ﷺ تعلق بنی مخزوم سره وو حضرت عکرمه ﷺ هم مخزومی دې.

**قوله: خَالِدٌ سَيْفٌ مِنْ سُيُوفِ اللَّهِ عَزَّوَجَلَّ**

**خالد رضی الله عنه ته د الله توره وئیل:** دَ پورته حدیث مطابق دا گمان نه دی کول پکار چه نعوذبالله حضرت خالد ﷺ دَ حضرت عمار ﷺ سره بغض لرلو. که چرې داسې خبره وه نو حضرت خالد ﷺ به هم هغه وخت حضرت عمار نه راضی کولو او نه به ئې پوخلا کولو. بله دا چه دَ صحابه کرامو متعلق دَ الله تعالی فرمان دې ﴿رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ﴾ چه هغوی په خپل مینځ کښې رحم دل دی. دارنګ صاحب مصابیح دَ تیرشوی حدیث نه پس دَ حضرت خالد ﷺ دَ شان متعلق حدیث ذکرکولوسره لکه چه دغه وهم لرې کړو چه خالد ﷺ دَ الله په تورو کښې یوه توره ده. دَ دې مطلب دا دې چه څوك چه الله تعالی دَ مشرکانو خلاف دَ تیکی نه بهر راویستې وی او دَ کافرانو په سرونو باندې ئې مسلط کړې وی هغه یو صحابی سره ذاتی بغض څنګه ساتلې شی؟ یا دا معنی ده چه الله تعالی حضرت خالد ﷺ صاحب شمشیر جوړکړې دې. بهر حال په دې حدیث کښې دَ حضرت خالد ﷺ دَتکړه توب او بهادرئی تعریف کړې شوې دې چاسره چه دَ الله تعالی تائید، نصرت او امداد شامل حال دې.

**[٦٢٥٨] څلورو صحابو سره د محبت ساتلو حکم خداو ندی**

٦٢٥٨-(١) [٣٣] [١] وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] «إِنَّ اللَّهَ - تَبَارَكَ وَتَعَالَى - أَمَرَنِي بِحُبِّ أَرْبَعَةٍ وَأَخْبَرَنِي أَنَّهُ يُحِبُّهُمْ. [٣] قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، سَمِّهِمْ لَنَا؟ قَالَ: عَلِيٌّ مِنْهُمْ، [٤] يَقُولُ ذَلِكَ ثَلَاثًا وَأَبُو ذَرٍّ، وَالْمِقْدَادُ، وَسَلْمَانُ، أَمَرَنِي بِحُبِّهِمْ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت بریده ﷺ وایې چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [٢] الله ﷻ ماته څلورو سړو سره علی الخصوص د محبت کولو حکم کړی دی او دایې راته خو دلی دی چې الله سبحانه وتعالی هم دې څلورو سړو سره محبت کوي [٣] دا ارشاد اوریدو سره صحابه ﷺ عرض وکړو یارسول الله! مونږ ته هم د هغه څلورو نومونه وښایې چې مونږ هم د هغوئ سره په دې بناء محبت کوو چې الله او د هغه رسول هغوئ سره محبت کوي حضور ﷺ وفرمایل په هغوئ کې یو خو علي ﷺ دی [٤] دا الفاظ حضور ﷺ درې خله وفرمایل (چې خلق پوهه شي چې دې څلورو کې افضل علي ﷺ دی یا هغه طرف ته اشاره کولو د پاره دا الفاظ یې

[١] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٣٧١٨) وابن ماجه فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فضل سلمان، وأبی ذر، والمقداد (رقم-١٤٩)

ډرې خلـه وفرمايـل چې څومره محبت مجموعي طور سره باقي دريـو سره ساتلی شـي هغـومره تنهـا علـي رضي الله عنه سـره سـاتل پکـار دی، يـو ابـوذر رضي الله عنه دی يـو مقـداد رضي الله عنه دی او يوسلمان رضي الله عنه دی الله جل جلاله ماته حکم کړی دی چې زه دې څلورو سرو سره محبت ساتم، او دايې راته خو دلي دي چې هغه هم دې څلورو سره محبت ساتي، دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث حسن غريب دی

**تسهيلات:**

**قوله:** أَمَرَنِي بِحُبِّ أَرْبَعَةٍ:

**په محبت الهی کښې عدم حصر:** دَ حديث الباب حاصل داډې چه الله پاك هرمؤمن متقی خصوصًا هرصحابی سره محبت ساتی كمافی القرآن ﴿يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ﴾ مگر دَ الله پاك دې څلورو حضراتو سره خصوصی محبت دې

**[٦٢٥٩] ابوبکر رضي الله عنه اوبلال دعمر په عدالت کښې**

٦٢٥٩-()[٣] [١]وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: كَانَ عُمَرُ يَقُولُ: "[٢]أَبُوبَكْرٍ سَيِّدُنَا وَأَعْتَقَ سَيِّدَنَا يَعْنِي بِلَالًا" رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر رضي الله عنه بيـان کوي حضرت عمر فـاروق رضي الله عنه بـه فرمايـل[٢] ابوبكر رضي الله عنه زمونږ سردار دی اوهغه زمونږ سردار آزاد کړی دی( يعنی بلال رضي الله عنه ) (بخاري)

**حل اللغات:-** ① سَيِّدُنَا: أَيْ خَيْرُنَا وَأَفْضَلُنَا: زمونږ سردار دې (يعنی په مونږ ډير غوره او فضيلت والا دې)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَبُوبَكْرٍ سَيِّدُنَا وَأَعْتَقَ سَيِّدَنَا يَعْنِي بِلَالًا:

**ابوبكراوبلال رضی الله عنهما ته سردارن وئيل:** په حديث الباب کښې دی چه دَ حضرت عمرفاروق رضي الله عنه مراد دې طرف ته اشاره کول وو چه حضرت بلال رضي الله عنه هم دَ اهل اسلام دَ سردارانو نه يو سردار دې دارنګ په حديث الباب کښې حضرت عمر رضي الله عنه دَ حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه په باره کښې سيد حقيقًا فرمائيلی دی او دَ حضرت بلال رضي الله عنه باره کښې تواضعًا فرمائيلی دی ځکه چه حضرت عمر رضي الله عنه دَ حضرت بلال رضي الله عنه نه افضل دې. بعضې حضرات فرمائی چه دَ سيادت نه افضليت نه لازميږی.

**[٦٢٦٠] د بلال رضي الله عنه د ابوبکر رضي الله عنه څخه مطالبه**

٦٢٦٠-()[٤٥] [١]وَعَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ: أَنَّ بِلَالًا قَالَ لِأَبِي بَكْرٍ: [٢]إِنْ كُنْتَ إِنَّمَا اشْتَرَيْتَنِي لِنَفْسِكَ فَأَمْسِكْنِي، وَإِنْ كُنْتَ إِنَّمَا اشْتَرَيْتَنِي لِلَّهِ فَدَعْنِي وَعَمَلَ اللَّهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت قيس بن ابي حازم تابعي نه روايت دی چې حضرت بـلال رضي الله عنه حضرت

[1] اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب ما ذكر عن بني إسرائيل (رقم-٣٤٥٤)
[2] اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب ما ذكر عن بني إسرائيل (رقم-٣٤٥٥)

ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته ویلي وه که تاسو د خپل ځان د پاره زه خرید کړی وم نو ما د ځان سره وساته (او په کوم خدمت چې غواړي ما مامور کئ)[۲] لیکن که تاسو محض د الله ﷻ د رضا او خوشنودي دپاره زه خرید کړی وم نو بیا ما د الله د کار د پاره آزاد پریږدئ. (بخاري)

**حل اللغات:-** ①فَأَمْسِكْنِي: نو د ځان سره مې اوساته. ②فَدَعْنِي: أي: فَاتْرُكْنِي: نو ما پریږدئ، آزاد مې کړئ. ③وَعَمَلَ اللهِ: ددې دوه مطلبه دی، ۱: هغه عمل چه زه ئې غورہ ګڼم دالله تعالی دپاره. ۲: هغه کارچه الله تعالی ئې زما دپاره خوښوی.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنْ كُنْتَ إِنَّمَا اشْتَرَيْتَنِي لِنَفْسِكَ فَأَمْسِكْنِي:

**د حديث پس منظر:** په دې حدیث د پوهیدلو دپاره په یو پس منظر او مختصر شان قصه باندې پوهیدل ضروری دی. حضرت بلال رضی الله عنه په مکه مکرمه کښې غلام وو کله چه هغه مسلمان شو نو د هغه آقاګانو هغه ته ډیرې زیاتې سزاګانې ورکړې. اُمیه بن خلف به تږله شپه هغه وهلو او د ورځې به ئې په ګرمو شګو اوګرموقوتکانړو باندې سملولو او په سینه به ئې ورته غټې کانړې کیخودلو اوچاپیره به ئې ترې اور بلولو اوغوښتنه به ئې ترې کوله چه اسلام پریږده. حضرت ابوبکر رضی الله عنه د حضرت بلال رضی الله عنه په ځائې غلام ورکولو سره حضرت بلال رضی الله عنه د هغه د آقاګانو نه واخستلو اوبیائې آزاد کړو. حضرت بلال رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې لګیا وو او په مسجدنبوی کښې په اذان باندې مامورشو کله چه: حضورپاك انتقال اوشو نوحضرت بلال رضی الله عنه وئیل اوس د محبوب نه بغیر د محبوب په ښار کښې اوسیدل ګران دی. په دې وجه د مدینې منورې د در و دیوال نه لرې چرته په یوځائې کښې به ژوندتیروم په دې غرض سره هغه شام ته د تلو اراده اوکړه چه هلته به جهاد هم کوم او ژوندبه هم تیروم بل طرف ته صدیق اکبر رضی الله عنه هغه د شام د تلو نه منع کولوځکه چه د اذان دپاره دې د هغوی نه زیات موزون هم وو او د رسول الله ﷺ مؤذن هم وو.

په دې موقع حضرت بلال رضی الله عنه حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه ته اوفرمائیل که چرې تازه د خپل ذات دپاره اخستې ووم نوما دلته په مدینه کښې حصار کړه اوکه د الله تعالی د رضا دپاره دې اخستې ووم نوما د الله تعالی د کارونو پوره کولو دپاره آزاد پریږده چه چرته خم چه لاړشم او د الله تعالی په زمکه کښې جهاد کوم. حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه هغه ته اجازت ورکړو اوبلال رضی الله عنه اسلامی لښکرسره د دمشق طرف ته لاړو او په ۱۸ هجری یا ۲۰ هجری کښې هم هلته انتقال شو.

**[۶۳۶۱] د ابوطلحه ﷺ په کور کښې د نبي عليه السلام ميلمه**

۳۳-() [۳۱] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: إِنِّي مَجْهُودٌ. [۲] فَأَرْسَلَ إِلَى بَعْضِ نِسَائِهِ فَقَالَتْ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا عِنْدِي إِلَّا مَاءٌ، [۳] ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَى أُخْرَى فَقَالَتْ مِثْلَ ذَلِكَ، وَقُلْنَ كُلُّهُنَّ مِثْلَ ذَلِكَ، [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: مَنْ يُضِيفُهُ يَرْحَمُهُ اللَّهُ. [۵] فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ - يُقَالُ لَهُ أَبُو طَلْحَةَ - فَقَالَ: أَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي يوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کې يو سړی راغي او هغه اوويل زه ډير پريشانه حال او تکليف او مشقت کې گرفتار يم يعنې فقر او افلاس راگير کړی يم او د لوږې نه پريشانه حال کيدو سره په دې اميد دلته راغلی يم چې تاسو راته خوراك د پاره څه عطا کئ؛ [۲] په دې اوريدو سره حضور ﷺ يو سړی خپلې يوې بي بي ته وليږی او ورته يې اوويل که په کور کې څه موجود وي نو د دې مصيبت زده سړي د پاره يې رااوليږئ هغوئ جواب ورکړو قسم دی په هغه ذات چې تاسو يې په حق سره پيغمبر رااليږلي يې ما سره د اوبو نه ماسوا د خوراك څکاك نور هيڅ شی موجود نشته [۳] بيا حضور ﷺ دويمې بي بي کره سړی وليږی هغه هم هغه جواب ورکړو کوم چې مخکې بي بي ورکړی وو او دغه شان حضور ﷺ خپلو ټولو بيبيانو ته سړی وليږی او ټولو نه دغه شان جواب راغي [۴] بيا رسول الله ﷺ حاضرين مجلس مخاطب کولو سره وفرمايل څوك چې دا سړی ميلمه جوړ کړي په هغه به الله خپل خاص رحمت نازل کړی [۵] په دې اوريدو سره انصارو کې يو سړی ابوطلحه ﷺ اودريدلو او هغه اوويل يارسول الله دا سړی زه خپل ميلمه کوم

**حل اللغات:-** ① مَجْهُودٌ: أَيْ فَقِيرٌ أَصَابَهُ الْجَهْدُ: يعنې زه بې وسه مجبوره او مصيبت وهلی فقير يم

[۱] فَانْطَلَقَ بِهِ إِلَى رَحْلِهِ فَقَالَ لِامْرَأَتِهِ: هَلْ عِنْدَكِ شَيْءٌ؟ [۲] قَالَتْ: لَا إِلَّا قُوتُ صِبْيَانِي. قَالَ: فَعَلِّلِيهِمْ بِشَيْءٍ وَنَوِّمِيهِمْ [۳] فَإِذَا دَخَلَ ضَيْفُنَا فَأَرِيهِ أَنَّا نَأْكُلُ فَإِذَا أَهْوَى بِيَدِهِ لِيَأْكُلَ فَقُومِي إِلَى السِّرَاجِ كَيْ تُصْلِحِيهِ فَأَطْفِئِيهِ [۴] فَفَعَلَتْ، فَقَعَدُوا وَأَكَلَ الضَّيْفُ، وَبَاتَا طَاوِيَيْنِ، [۵] فَلَمَّا أَصْبَحَ غَدَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -،

**ترجمه:** [۱] بيا ابوطلحه ﷺ هغه سړی خان سره کورته بوتلو کورته رسيدو سره هغه خپلې ښځې ام سليم ﷺ نه پوښتنه وکړه ستا سره څه طعام شته [۲] د هغه ښځې اوويل بس دومره دی چې د بچو ضرورت به يوحده پورې پوره کړي ابوطلحه ﷺ هغه ته اوويل بچې په څه طريقه اوده وساته [۳] او هرکله چې زمونږ ميلمه طعام د پاره کورته راشي او دسترخوان باندې کيني نو ته داسې ښکاره کړه چې گويا مونږ هغه سره هغه طعام خورو او څرنگه چې

[1] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب قول الله: {ويؤثرون على أنفسهم ولو كان بهم خصاصة} [الحشر: ۹] (رقم-۳۷۹۸) ومسلم في كتاب الأشربة/باب إكرام الضيف وفضل إيثاره (رقم-۱۷۲ - (۲۰۵٤)) والترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة الحشر (رقم-۳۳۰٤)

زمونږ میلمه نوړئ اوچتولو د پاره خپل لاس مخکښې کی نو ته دي ظاهرولو سره لکه چې د چراغ (ډیوې) بتئ تیك کولو د پاره او د هغه د رڼا زیاتولو اراده ده چراغ (ډیوې) طرف ته ورشه او ورو شان پوکي ورکولو سره یا څه بلي طریقي سره چراغ (ډیوه) مړه کی چې تیاره شي او میلمه باندې داښکاره نشي چې مونږ طعام نه خورو[۴] نو د هغه ښځي دغه شان وکړل او داسې وشوه چې دسترخوان باندې کینا ستل نو هغه دري سره یعنی ابوطلحه رضی الله عنه د هغه ښځه او میلمه لیکن طعام صرف میلمه وخوړلي هغه دواړو ښځه خاوند په لوږه شپه تیره کړه[۵] بیاچي سهار شو او ابوطلحه رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو

**حل اللغات:**-۲ قُوتُ: گذاره حال رزق، ۳ فَعَلِّلِيهِمْ: أَيْ أَلْهَاهُ: ماشومان بچي اوغولوه، څه تسلي ورکولو سره نې اوده کړه. ۴ أَهْوَى: أَيْ: قَصَدَ: قصد او اراده اوکړی یعنی دخوراک دپاره لاسونه راوړده کړی. ۵ السِّرَاجِ: ډیوه، چراغ، ۶ فَأَطْفِئِيهِ: چراغ گل کړه، ډیوه مړه کړه، ۷ طَاوِيَيْنِ: أَيْ جَائِعَيْنِ: یعنی ښځه خاوند نهر خالي خیټه اوده شو.

[۱] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَقَدْ عَجِبَ اللَّهُ أَوْ ضَحِكَ اللَّهُ مِنْ فُلَانٍ وَفُلَانَةٍ. [۲] وَفِي رِوَايَةٍ مِثْلَهُ وَلَمْ يُسَمِّ أَبَا طَلْحَةَ، وَفِي آخِرِهَا فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى "﴿وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾ [الحشر: ۹]»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] نو حضور ﷺ ته بذریعه کشف یابذریعه وحي داټوله قصه معلومه شوي وه څکه حضور ﷺ وفرمایل د فلانې سړی یعنی د ابوطلحه رضی الله عنه او د فلانې ښځي (یعنی د ابو طلحه د ښځي ام سلیم رضی الله عنها) داکار الله تعالی ډیر خوښ کی یادایي وفرمایل چې د هغه دواړو دي کار باندې الله جل جلاله ته خندا ورغله مراد دا چې الله جل جلاله دي عمل باندې هغه دواړو نه ډیر خوشحاله شو[۲] د ابوهریره رضی الله عنه په یودویم روایت کې چې لفظًا او معنًا د دې روایت په شان دی د ابوطلحه رضی الله عنه ذکر نشته (یعنی په هغه کې یقال له ابوطلحه الفاظ نشته) او د هغه روایت په اخر کې داهم دی چې دي واقعي نه وروسته دا آیت نازل شو **ویؤثرون علی انفسهم ولوکان بهم خصاصة** او هغه خلق خپل خان باندې نوروته یعنی خپلو میلمنو یا یو حاجتمند له ترجیح ورکوي که څه هم هغوئ خپله حاجتمند او اوږي وي الخ (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**-۸ يُؤْثِرُونَ: ترجیح ورکوی، غوره کوی، ۹ خَصَاصَةٌ: أَيْ حَاجَةٌ وَمَجَاعَةٌ: حاجت مند وی، اوږي وی

**تسهیلات: قوله: فَعَلِّلِيهِمْ:**

**د مذکوره جملې مطلب:** یعنی نهر بچي غولولوسره اوده کړه او خوراك دَمیلمه دپاره راوړه. اوبیا دَ تیك کولو په بهانه سره ډیوه مړه کړه اوخوراك په میلمه باندې اوخوره وه نوهم داسې اوکړه.

**قوله**: عَجِبَ اللّٰهُ أَوْ ضَحِكَ اللّٰهُ:

**الله تعالی ته د عجب یا ضحک نسبت**: دا دواړه الفاظ دَ متشابهات نه دی دې نه دَالله تعالی خوشحالول مراد دی. دَدې حدیث نه معلومیږی چه دا دَزمانه حجاب دَ حکم راتلونه مخکښې زمانه وه په کوم کښې چه دا قصه پیښه شوه.

**[٦٣٦٢] خالد رضي الله عنه بن ولید ته د سیف الله لقب ملاویدو موقع**

۶۳۶۲-() [۷] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: نَزَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَنْزِلًا فَجَعَلَ النَّاسُ يَمُرُّونَ، [۲] فَيَقُولُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «مَنْ هٰذَا يَا أَبَا هُرَيْرَةَ؟ فَأَقُولُ: فُلَانٌ. [۳] فَيَقُولُ: نِعْمَ عَبْدُ اللّٰهِ هٰذَا، وَيَقُولُ: مَنْ هٰذَا؟ فَأَقُولُ: فُلَانٌ. فَيَقُولُ: بِئْسَ عَبْدُ اللّٰهِ حَتّٰى مَرَّ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ فَقَالَ: مَنْ هٰذَا؟ فَقُلْتُ: خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ. [۴] فَقَالَ: نِعْمَ عَبْدُ اللّٰهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ سَيْفٌ مِنْ سُيُوفِ اللّٰهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي دیوه سفر په دوران کې مونږ خلق رسول الله ﷺ سره یومقام باندې پړاو وکی نو هغه وخت هرکله چې رسول الله ﷺ خپله خیمه کې دننه آرام فرمایلې او زه د خیمې نه ووتم خلق به د رسول الله ﷺ د خیمې نه بهر اخوا دیخوا تلل راتلل [۲] رسول الله ﷺ به چې کله د خیمې نه د یوسړی د تیریدلو اواز واوریدی نو پوښتنه به یې کوله اې ابوهریره ! تیریدونکی سړی څوك دی نو ما به حضور ﷺ ته ښودلو چې فلانی سړی دی [۳] بیا به حضور ﷺ د هغه سړي نوم اوریدو سره فرمایل چه دا د الله نیك بنده دی او فرمائیل به ئې چه دا څوک دې؟ ما به اوونیل چې فلانې دې. نو حضور ﷺ به به اوفرمائیل چې دابد سړي دي دا سلسله دغه شان جاري وه ددې پورې چې کوم وخت خالد رضي الله عنه بن ولید تیر شو او حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې داڅوک دي ؟ماوویل چې خالد دی [۴] رسول ﷺ د هغه نوم اوریدو سره وفرمایل خالد رضي الله عنه بن ولید د الله نیك بنده دی د الله د تورو نه یوه توره ده. (ترمذي)

**حل اللغات**:- ① يَمُرُّونَ: خلق به تیریدل راتیدل. تلل راتلل به

**تسهیلات**:

**قوله**: نِعْمَ عَبْدُ اللّٰهِ:

**د عبدالله تعریف کول**: دَ حضورپاك دا فرمان به چرته دَ یو منافق باره کښې وی ګنی دَ یومسلمان باره کښې داسې فرمان نبوی اګرچه هغه کس په څومره خرابه لار باندې ولې نه وی بعید دې دَ دې نه علاوه دَ هغه وخت اهل ایمان کښې داسې خراب خلق وو هم نه چه حضورپاك دَ چا په حق کښې داسې خبره اوکړی اوکه چرته څوك داسې وو هم نو شاذونادر به وی چرته.

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب مناقب خالد بن الولید رضی الله عنه (رقم-۳۸۴۶)

**[٦٢٦٣] انصارو د پاره دعا**

۶۲۶۳-(¹)[٦٨] ۞وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ: «قَالَتِ الْأَنْصَارُ: ۞ يَا نَبِيَّ اللَّهِ لِكُلِّ نَبِيٍّ أَتْبَاعٌ وَإِنَّا قَدِ اتَّبَعْنَاكَ ۞ فَادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَ أَتْبَاعَنَا مِنَّا فَدَعَا بِهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۞ او زید بن ارقم رضی الله عنه وایي په یوه موقع باندې انصارو عرض وکړو ۞ یارسول الله! خرنګه چې د هرنبي څه تابعدار وي پس دغه شان مونږ خلق ستاسو ربښتني او پاخه تابعدار یو ۞ تاسو دعا وکئ چې الله جل جلاله زمونږ تابعدار هم زمونږ نه کړي نو حضور صلی الله علیه وسلم هغوئ د پاره دعا وکړله. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① أَتْبَاعٌ: تابعداری کونکی.

**تسهیلات:**

**قوله: فَادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَ أَتْبَاعَنَا مِنَّا..الخ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① په حدیث الباب کښې دی چه کوم مناقب اوفضائل حضورپاك زمونږ په حق کښې ارشاد فرمائیلی دی د هغې د فضل اوشرف او د هغې د برکتونو لاندې دې زمونږ جانشین او موالی هم راشی

② د انصارو مطلب دا وو چه تاسو دعا اوکړئ چه الله تعالی څنګه مونږ ته ستاسو د تابعداری اود خوشحالئ د خدمت زیاته حصه راکړې ده دغه شان زمونږ د تابعدار یعنی زمونږ لاندې خلق او زمونږ اولاد هم واقعی زمونږ په شان ستاسو ربښتونی تابعدار او ربښتونی منونکی جوړکړی.

**[٦٢٦٤] انصار د زیاتو شهیدانو خاوندان**

۶۲۶۴-(²)[٦٩] ۞وَعَنْ قَتَادَةَ قَالَ: مَا نَعْلَمُ حَيًّا مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ أَكْثَرَ شَهِيدًا أَعَزَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ: ۞ وَقَالَ أَنَسٌ: قُتِلَ مِنْهُمْ يَوْمَ أُحُدٍ سَبْعُونَ، وَيَوْمَ بِئْرِ مَعُونَةَ سَبْعُونَ، وَيَوْمَ الْيَمَامَةِ عَلَى عَهْدِ أَبِي بَكْرٍ سَبْعُونَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۞ او حضرت قتاده تابعي رحمه الله نه روایت دی هغه وفرمایل د عربو قبائلو نه د یوې قبیلې یا قام په باره کې مونږ ته دا علم نشته چې د هغوئ د شهیدانو تعداد د انصارو د شهیدانو نه زیات وي (او د قیامت په ورځ به انصارد ټولو نه زیات باعزته منلی شي) ۞ د حضرت انس رضی الله عنه بیان دی چې د احد په جنګ کې اویا انصار شهیدان شول بیر معونه کې اویا انصار چې قراء وو شهیدان شول او د یمامه جنګ کې چې د عهد ابوبکر رضی الله عنه په خلافت کې د مسیلمه کذاب خلاف وشو اویا انصار شیهدان شول. (بخاري)

¹ ) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی رقم الحدیث ۳۷۸۷

² اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب من قتل من المسلمین یوم أحد (رقم-٤٠٧٨)

**حل اللغات:-** ①حَيًّا: أي: قَبِيلَةً: قبيله، قوم. ②أَعَزَّ: أي: شَهِيدًا: چه شهيد شوى وى. ③بِئْرِ مَعُونَةَ: دا هغه كوهى نوم دې چرته چې د هذيل قبيلې خلقو په دهوكه سره قاريان بوتلى وو اوبيا ئې دې كوهى سره قتل كړى وو. ④يَوْمَ الْيَمَامَةِ: دا هغه ورځ وه چې دنبى عليه السلام د وفات څخه روسته مسيلمه كذاب دنبوت دعوى كړې وه او ابوبكر صديق رضى الله عنه دهغوى د مقابلې دپاره لښكر ليږلې وو. په كومه ورځ چې دغه جنګ شوې وو. هغې ته يوم اليمامه وائى.

**تسهیلات:**

**قوله: أَكْثَرَ شَهِيدًا أَعَزَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْأَنْصَارِ:**

**انصار او د تولو څخه زيات شهدان:** په حديث الباب كښې دى چه دَ قيامت په ورځ به هغه قبيله دَ زيات عزت والا وى دَ چا شهيدان چه زيات وى. حضرت قتاده رحمه الله فرمائى چه زمونږ دَعلم مطابق دَ ټولو نه زيات دَ شهيدانو تعداد دَ انصارو دې لكه چه دَ حديث الباب دَ ترجمې نه واضح دى.

**[۶۲۶۵] دبدرى صحابو وظيفه**

۶۲۶۵-()[۷۰] [۱]وَعَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ قَالَ: عَطَاءُ الْبَدْرِيِّينَ خَمْسَةُ آلَافٍ، [۲]وَقَالَ عُمَرُ: لَأُفَضِّلَنَّهُمْ عَلَى مَنْ بَعْدَهُمْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت قيس بن ابي حازم تابعي رحمه الله وايي كوم خلق چې د بدر په جنګ كې شريك شوي وه هغوئ كې د هرهرسړي وظيفه پنځه پنځه زره درهم وه چې بيت المال نه به ورته اداء كيدله[۲] او حضرت عمر رضي الله عنه فرمايلي وه زه د بدر جنګ كې شريكيدونكو ته مرتبه كې په نورو ټولو خلقو باندې ترجيح وركوم. (بخاري)

**حل اللغات:-** ①عَطَاءُ: بخشش، حصه د غنيمت. ②الْبَدْرِيِّينَ: أي: الَّذِينَ حَضَرُوا قِصَّةَ بَدْرٍ: هغه صحابه چه په جنګ بدر كښې شريک شوى وو.

**تسهیلات:**

**قوله: عَطَاءُ الْبَدْرِيِّينَ:**

**بدريانو دپاره پنځه زره درهم وظيفه:** صديق اكبر رضي الله عنه په بدر كښې شريك مجاهدينو دَپاره دَ بيت المال نه دكال پنځه زره درهم وظيفه مقرر كړې وه. دا وظيفه دَ نورو نه زياته وه دې دَپاره چه دَ اهل بدر فضيلت ثابت شى. دې نه پس حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم دې فضيلت ته عملى جامه اچول په ځائى اوساتل بلكه په قولى توګه ئى دَدې اعلان هم اوكړو اواراده ئى اوكړه چه زه به دا فضيلت په ځائى ساتم.

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب المغازى (رقم-۴۰۲۲)

## تَسْمِيَةُ مَنْ سُمِّيَ مِنْ أَهْلِ بَدْرٍ فِي الْجَامِعِ الْبُخَارِيِّ

### دَ اهل بدر نه دَهغه یوڅو صحابه کرامو نومونه کوم چه بخاری کښې ذکر دی

قال الله تعالى: ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ﴾ (آل عمران: ۱۲۳)

**د غزوه بدر پس منظر:** په کال ۲ هجری کښې دَ بدرواقعه پیښه شوې وه. دَ قریشو یوه تجارتی قافله دَشام نه مکې طرف ته واپس راروانه وه. حضورپاك ۳۱۳ صحابه کرام خان سره واخستل اودَ دغه قافلې دَ نیولو دَپاره دَبدر طرف ته روان شو. په تادنی سره دَ وتلودَ وجې نه دغه صحابه کرامو سره جنګی سامان دَ نشت برابر وو. باقاعده دَ یوجنګ صورت نه وو په دې وجه ئی هم دَوسله اهتمام اونه کړې شو. صرف قافله رانیول وو خوقافلې په چالاکئی سره خپل ځان بچ کړو اودَ قریشو کافرانو ته ئی خطرناك پیغام اولیګلوچه مونږ لوټ شو. که چرې قافله بچ کول غواړئی نو زر راؤرسئی مسلمانانو زمونږ لاره بنده کړې ده.

**دابوجهل اعلان:** ابوجهل اعلان اوکړو او یو زر لښکرئی سره دَ سازوسامان واخستو او دَبدر طرف ته روان شو. دواړه فوجونه مخامخ شو اَو قافله په بله لاره باندې بچ اووتله. اوس یوباقاعده مسلح لښکرسره دَدې بې سروسامان یوڅوسوو صحابه کرامو مقابله سرله راغله.

**د مسلمانانو فتح:** مقابله چه کله اوشوه نوالله تعالى دَ مسلمانانوامداد اوکړو هغوی له ئی غلبه ورکړه او اویا کافران اووژلې شو او اویا ګرفتار کړې شو. یوڅو صحابه کرام هم شهیدان شو. کومو صحابه کرامو چه په جنګ بدرکښې حصه واخسته هغوی ته اهل بدر وائی دَهغوی ډیرلوئی شان دې. هم په دې وجه محدثین په ډیر اهتمام سره دَهغوی نه دَ یوڅو نومونه یا دَټولو نومونه په خپلو کتابونوکښې درج کوی. صاحب مشکوة هم داسې کړی دی.

**دَ اهل بدر شمار:** په جنګ بدرکښې دَ شریك صحابه کرامو په تعدادکښې څه اختلاف دې. بعضې علماؤ دَهغوی شمیر ۳۱۵ خودلې دې بعضې روایاتوکښې ۳۱۷ تعدادخودلې دې. بعضې دَ ۳۶۵ ذکرکړې دې او بعضې روایاتوکښې ۳۱۴ ذکردې. مګر په الاستیعاب کښې لیکلی دی چه راجح قول دادې چه دَ اصحاب بدر تعداد ۳۱۳ دې. امام بخاری رحمه الله په صحیح بخاری کښې دَاهل بدر نه صرف ۴۵ نومونه ذکرکړی دی. حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه حضورپاك په اهل بدرکښې شمیرکړې دې. هغه دَ حضورپاك دَ لوربی بی دَ خدمت دَپاره په مدینه کښې دَحضورپاك په حکم سره شاته پاتې شوې وو.

**دَ بدریانو دَ نومونو خواص:** الله تعالى دَ اهل بدرپه نومونوکښې عجیبه خاصیت او عجیبه برکت کیخودې دې. وئیلی شی چه دَدې نومونودَ ذکرکولونه پس الله تعالى دعاقبلوی. بعضې علماؤ لیکلی دی چه څومره اولیاء الله ته دَ اهل بدردَ نومونو په برکت سره ولایت

ملاؤ شوي دي داهم یوحقیقت دي چه دَ اهل بدر دَ نومونو په برکت سره کومو بیمارانو دَ خپل صحت دپاره دعا غوښتې ده الله تعالی ورته صحت ورکړې دې. دې نه علاوه نور هم خواص دی. صاحب مظاهرحق دَ دعاپه انداز سره دَ اهل بدر ۳۱۴ نومونه مظاهرحق کښې ذکرکړی دی. اوبیانې په آخره کښې جدا دعا هم نقل کړې ده. دَ اهل بدرپه نومونوباندې مشتمل وړې وړې کتابچې هم چهاپ شوی دی.

**د بدری صحابه کرامو نومونه:**

(۱) النبی محمدبن عبدالله الهاشمی صلی الله علیه وسلم (۲) عبدالله ابن عثمان

(۳) ابوبکر الصدیق القرشی (٤) عمربن الخطاب العدوی

(۵) عثمان بن عفان القرشی خلفه النبی صلی الله علیه وسلم علی ابنته رقیة وضرب له بسهمه

(۶) علی ابن ابی طالب الهاشمی (۷) ایاس بن بکیر

(۸) بلال ابن رباح مولی ابی بکر الصدیق (۹) حمزة بن عبدالمطلب الهاشمی

(۱۰) حاطب بن ابی بلتعة حلیف لقریش (۱۱) ابوحذیفة بن عقبة بن ربیعة القرشی

(۱۲) حارثة بن الربیع الانصاری قتل یوم بدر وهو حارثة بن سراقة کان فی النظارة

(۱۳) خبیب ابن عدی الانصاری (١٤) خنیس بن حذافة السهمی

(۱۵) رفاعة بن رافع الانصاری (۱۶) رفاعة بن عبدالمنذر

(۱۷) ابولبابة الانصاری (۱۸) زبیر بن العوام القرشی

(۱۹) زید ابن سهل (۲۰) ابوطلحة الانصاری

(۲۱) ابو زید الانصاری (۲۲) سعد ابن مالک الزهری

(۲۳) سعد ابن خولة القرشی (۲٤) سعیدبن زیدبن عمروبن نفیل القرشی

(۲۵) سهل بن حنیف الانصاری (۲۶) ظهیر بن رافع الانصاری

(۲۷) واخوه عبدالله بن مسعود الهذلی (۲۸) عبدالرحمن بن عوف الزهری

(۲۹) عبیدة بن الحارث القرشی (۳۰) عبادة ابن الصامت الانصاری

(۳۱) عمرو بن عوف حلیف بنی عامر بن لوی (۳۲) عقبة بن عمرو الانصاری

(۳۳) عامربن ربیعة العنزی (۳٤) عاصم بن ثابت الانصاری

(۳۵) عویم بن ساعدة الانصاری (۳۶) عتبان بن مالک الانصاری

(۳۷) قدامة بن مظعون (۳۸) قتادة بن النعمان الانصاری

(۳۹) معاذ بن عمرو بن الجموح (۴۰) معوذ بن عفراء

(۴۱) واخوه مالک ابن ربیعة (۴۲) ابواسید الانصاری

(۴۳) مسطح بن اثاثة بن عباد بن اللمطلب ابن عبدمناف (۴۴) مرارة بن الربیع الانصاری

(۴۵) معن بن عدی الانصاری (۴۶) مقدادبن عمروالکندی حلیف بنی زهرة

(۴۷) هلال بن امیة الانصاری رضی الله عنهم.

**په فهرس کښې حقیقة اوحکما د بدری صحابه کرامو شمولیت:** ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه په دې باب کښې دَ هغه اصحاب بدر دَ نومونو ذکر دې دَ چا چه حقیقتًا یا حکمًا بدری کیدو ذکر په صحیح بخاری کښې راغلې دې. اوداد (حقیقتًا یا حکمًا قید) ځکه دې چه په دې زمره کښې دَ حضرت عثمان غنی رضی الله عنه نوم شامل کول صحیح اومنلې شی. (کوم چه دَ حضورپاك په حکم سره حقیقتًا خو په جنګ بدر کښې شریك شوې نه وو لیکن حکمًا هغه هم بدری منلې شی) په دې باب کښې دَ هغه بدری صحابه کرامو رضی الله عنهم نومونه نشته دې چه نه خو بخاری په خپل دې باب کښې بیان کړی دی او نه دَ سر نه دَهغوی ذکر په بخاری کښې راغلې دې. دَدې مطلب دا شو چه امام بخاری رحمه الله دَ اصحاب بدر په فهرست باندې مشتمل په دې باب کښې صرف دَ هغه بدری صحابه کرامو نومونه ذکر کړی دی دَ کوم متعلق چه په صحیح بخاری کښې صراحت سره ذکر شوې دې چه هغوی په جنګ بدر کښې شرکت کړې دې. که پخپله هغه صحابه کرامو دَ خپل ځان متعلق په صراحة سره بیان کړې وی یا نورو په جنګ بدر کښې دَهغوی شریکیدل په صراحت سره روایت کړې وی. دغه شان دَ هغه بدری صحابه کرامو نومونه په دې باب کښې ذکر شوی نه دی دَ کومو ذکرچه په صحیح بخاری شریف کښې راغلې دې. مګر په داسې صراحت سره نه دی راغلی چه هغوی په جنګ بدر کښې شریك وو.

دَدې وضاحت په رڼاکښې په دې خبره باندې حیرانتیا او اشکال موقع نه پاتې کیږی چه دَمخصوص بدری صحابه کرامو په فهرست باندې مشتمل په دې باب کښې یو جلیل القدر بدری صحابی حضرت ابوعبیدة الجراح رضی الله عنه مبارك نوم نه دې ذکرکړې شوې. حضرت ابوعبیده رضی الله عنه بیشکه په بدر کښې شریك وو او په دې باندې دَ ټولو محدثینو او اصحاب سیر اتفاق دې.

دَ دې نه علاوه په بخاری شریف کښې په ډیرو ځایونوکښې دَ دوی ذکر هم راغلې دې مګر دَ بخاری په یو روایت کښې په صراحت سره بیان نه دې شوې چه هغه په جنګ بدر کښې شریك وو.

# [٢٣]باب ذكر اليمن والشام وذكر اويس القرني

**د يمن او شام او د اويس قرني د ذكر باب**

**خلاصة الباب:**

**فيه سبعة عشر حديثاً مشتملة على اربع مسائل:**

① ذكر اويس القرني رحمه الله : ١-

② مدح أهل اليمن والدعاء لهم: ٢، ۶، ٧، ١١-

③ ذم المشرق : ٣، ۴، ٥-

④ ذكر الشام والترغيب إليه والدعا لأهله: ۶، ٨، ٩، ١١، ١٢، ١٣، ١۴، ١٥، ١۶، ١٧-

**قوله:** اليمن:

**د يمن تعارف او مصداق**: يمن هغه ښاريوا وكلوته وئيلې شي چه دَمكې مكرمې ښې طرف ته واقع دى. نن صبا يمن دَ يو مستقل ملك په حيثيت سره پيژندلې شي چه دَجزيره نمائې عرب په جنوب كښې واقع دې. اوسره دَدې چه موجوده يمن په هغه ټولو خطوباندې مشتمل نه دې په كوم چه پخوانئى زمانه كښې يمن محيط وو ليكن اوس هم دَ پخوانئى زمانې ډيرې مركزى لويئې حصې په يمن كښې شامل دى. دَ يمن طرف ته چه كله دَ يوڅيز نسبت كيږى نووائى يمنى، يمان، يمانى.

**قوله:** الشام:

**د كافرانو سازش**: شام په هغه ښارونو او كلوباندې مشتمل يو مشهور ملك دې چه دَبيت الله نه ګس طرف ته واقع دى نن صبا شام ته سوريا او سيريا وئيلى شى. دَدنيا دكافرانو داكوشش دې چه دَاسلام تاريخى مقاماتو نومونه دَ ذهنونونه اوباسى. ځكه دَشام سوريا نوم كيخودو دَ حبشه ايتهوپيا دَ جبل الطارق نوم جبرالټر او دَ قسطنطنيه نوم ئى استنبول كيخودو.

**قوله:** قرن:

**د قرن مصداق**: په يمن كښې دَ يو كلى نوم قرن دې. قاف او راء دواړو باندې زبر دې. هم دا كلې دَحضرت اوويس قرنى نيكونو نه يو سړى قرن بن رومان آباد كړې وو. اويس قرنى هم دې كلى طرف ته منسوب دې. يو بل ځائى قرن المنازل دې كوم چه په طائف كښې واقع دې اودَ اهل نجد دَپاره ميقات دې. دكوم په قاف چه زبر او راء ساكن ده. دَاويس قرنى دې سره تعلق نشته دې. كه چاليكلې دې نو هغه غلط فهمى ده.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۶۲۶۶] د حضرت اویس قرني رحمه الله فضیلت

۶۲۶۶ - (۱) [۱] ① عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «إِنَّ رَجُلًا يَأْتِيكُمْ مِنَ الْيَمَنِ يُقَالُ لَهُ أُوَيْسٌ لَا يَدَعُ بِالْيَمَنِ غَيْرَ أُمٍّ لَهُ، ③ قَدْ كَانَ بِهِ بَيَاضٌ فَدَعَا اللّٰهَ فَأَذْهَبَهُ إِلَّا مَوْضِعَ الدِّينَارِ أَوِ الدِّرْهَمِ ④ فَمَنْ لَقِيَهُ مِنْكُمْ فَلْيَسْتَغْفِرْ لَكُمْ» ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ⑥ «إِنَّ خَيْرَ التَّابِعِينَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ أُوَيْسٌ وَلَهُ وَالِدَةٌ وَكَانَ لَهُ بَيَاضٌ فَمُرُوهُ فَلْيَسْتَغْفِرْ لَكُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه نه روایت دي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② یوسړی به یمن نه تاسو ته راشي د هغه نوم به اویس وي هغه به یمن کې د مور نه ماسوا بل هیڅوك پري نږدي ③ د هغه په بدن کې به سفیدي یعنی د برص بیماري وي هغه الله جل جلاله نه دعا وغوښته نو الله جل جلاله د هغه د بدن نه سفیدي ختم کړه هو صرف د یو درهم یا یو دینار په قدر سفیدي باقي پاتې شوي وه ④ په تاسو کې چې کوم سړی هغه اویس رحمه الله سره یوځاي شي نو هغه ته پکار دی چې هغه نه د ځان د پاره د مغفرت یا دعا وغواړي ⑤ او په یوه روایت کې داسې دی حضرت عمر رضي الله عنه بیان وکړو چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوریدل ⑥ په تابعینو کې ښه سړی هغه دی چې د هغه نوم اویس رحمه الله دی د هغه یوه مورده او د هغه بدن باندې د برص یوه نښه ده نو تاسو د هغه نه ځان د پاره دعائې مغفرت وغواړئ. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① خَيْرَ التَّابِعِينَ: په تابعینو کښې افضل تابعي (یعنی اویس قرنی).

**تسهیلات: قوله:** بَيَاضٌ:

**د اویس قرنی په بدن د یو درهم برابر سپینوالې:** یعنی دهغه په بدن باندې دبرګی مرض بیماری وه پوره بدن ئی سپین وو هغه دالله تعالی نه دعا اوغوښتله نود یو دینار یادرهم خائی سپین پاتې شو دې دپاره چه دالله تعالی شکرئی په خیال کښې وی ددې دپاره هم چه دهغه د پیژند ګلو دپاره نشانی پاتې شی. دحضور پاك نشاندهی سره حضرت عمر رضي الله عنه هغه هم په دغه سپین داغ باندې اوپیژندلو.

**قوله:** خَيْرَ التَّابِعِينَ:

**په تابعینو کښې افضل تابعی:** حضورپاك هغه په تابعینو کښې دټولو نه افضل اوګرځولو خکه چه دا داسې تابعی دې چه دحضورپاك په زمانه کښې مسلمان شوې وو دعذر د وجې نه حاضر نه شو. نور علماؤ لیکلی دی حضورپاك خپله جبه د هدیه په توګه هغه له لیکلې وه.

**اشکال:** په عالمانو کښې مشهوره دا ده چې په تابعینو کښې د ټولو نه افضل تابعی

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب فضائل الصحابة رضی الله تعالی عنهم /باب من فضائل أویس القرنی رضی الله عنه (رقم -۲۲۳ (۲۵٤۲)

سعيد بن مسيب وو. اود دې حديث څخه معلوميږي چې افضل تابعي اويس قرني دې.

**دا اشکال جواب:** دا ممکن ده چه حضورپاك اويس قرني رحمه الله ته ثواب او فضيلت دَ عبادت دَوجې افضل تابعين فرمائيلي وي او سعيد بن مسيب رحمه الله چه دَ افضل تابعينونه دې هغه دَ کثرت علم په اعتبار سره افضل وي.

**د حضرت عمر رضي الله عنه او د حضرت اويس قرني رحمه الله ملاقات:**

جلال الدين سيوطي رحمه الله په جمع الجوامع دَاويس بن عامر قرني سره متعلق ډير څه ليکلي دي. زه خاص خاص خبرې دلته نقل کوم دَدې حديث په رڼا کښې حضرت عمرفاروق رضي الله عنه مسلسل په دې لټون او تلاش کښې ووچه اويس قرني رحمه الله سره ملاقات اوشي. يوخل دَحضرت عمر رضي الله عنه او اويس قرني رحمه الله ملاقات اوشو سوال جواب اوشو او خبرې اترې ئې داسې اوکړې.

**عمرفاروق** رضي الله عنه: آياته اويس بن عامرئې؟

**اويس قرني** رحمه الله: اوجې. زه هم هغه يم.

**عمرفاروق** رضي الله عنه: آيا ته قبيله مراد سره تعلق لرې او قرني ئې؟

**اويس قرني** رحمه الله: او صيبه!

**عمرفاروق** رضي الله عنه: آيا په تا برګې مرض وو؟

**اويس قرني** رحمه الله: اوجې.

دې نه پس حضرت عمر رضي الله عنه دَرسول الله ﷺ پوره حديث واوروله چه اويس قرني رحمه الله سره متعلق وو په کوم کښې چه دَدعا کولو خبره وه. حضرت عمر رضي الله عنه چه کله دَدعاء مغفرت درخواست اوکړو نو اويس قرني رحمه الله اووئيل اې امير المؤمنين تاسو څه فرمايئ؟ زما په شان سړې به ستاسو دَ پاره دَمغفرت دعا کوي؟ حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل يقيناً ته به زما دَپاره دَمغفرت دعا غواړې.

نو بيا حضرت اويس رحمه الله دَ فاروق اعظم رضي الله عنه دَپاره دَمغفرت دعا اوغوښتله. دې نه پس حضرت عمر رضي الله عنه دَ اويس قرني رحمه الله نه پوښتنه اوکړه اوس وايه چرته تلل غواړې؟ هغه وئيل زه کوفې ته تلل غواړم. حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل آيا ستاسو باره کښې دکوفې حاکم ته څه ليکل اوکړم؟

حضرت اويس رحمه الله اوفرمائيل اې امير المؤمنين ما په خپل نامعلوم حال باندې پريږده.

**دَاويس قرني باره کښې بل روايت:** په يو بل روايت کښې دي چه حضرت عمر رضي الله عنه فرمائي يوخل ما ته حضورپاك آواز اوکړو زه حاضرشوم نو وئې فرمائيل اې عمر! زما په امت کښې به يو سړې وي چاته چه به اويس وئيلې شي ته چه هغه ته اوګورې نو خدائي به درياد شي کله چه ته هغه سره ملاوشې نو زما سلام ورته وايه او دَهغه نه دَځان دَپاره دَمغفرت دَدعا

درخواست اوکړه. هغه به الله تعالی ته دَدومره زیاتوخلقو سفارش کوی لکه چه دَ ربیعه اومضر خلق دی.

حضرت عمرفاروق رضی الله عنه فرمائی دَحضور پاك دَ ارشاد نه پس زه دَدغه سړی په لټهون کښې شوم مګرماته په عهدنبوی کښې دغه سړې ملاؤنه شو.

بیامادَ صدیق اکبر رضی الله عنه په دورحکومت کښې اولټهولو مګرماته ملاؤنه شو.

بیاچه کله زمادَ امارت وخت شو نوما هغه نور په تیزئی سره لټهول شروع کړو تردې چه د دَنیادَمختلفو ملکونو ښارونو قافلونه ماپوښتنه کوله آیا په تاسوکښې څوك داسې سړې هم شته چه دَهغه نوم اویس وی. قبیله مرادسره دَهغه تعلق وی اودَقرن اوسیدونکې وی؟ هم په دغه لټون کښې یوسړې ماته یوځل اووئیل اې امیرالمؤمنین ته چه دکوم سړی باره کښې تپوس کوې هغه زما دَ تره ځوئی دې لیکن هغه خودومره عاجزغریب دې اودَدومره درجې پورې کم تر اوبې حیثیت سړې دې چه ستاسوغوندې عظیم انسان دَهغه باره کښې پوښتنه کول ستاسودَ شان سره نه ښائی.

حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه ته کومې دَسپاکوی کلمې دَهغه باره کښې وایې داستادَ پاره دَ هلاکت سبب دې. حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی چه مادغه سړی سره هم دا خبرې اترې کولې چه دَلرې نه په اوښ یوسور ښکاره شو په اوښ باندې زړه کجاوه وه په مینځ کښې یوسړې ناست وو دَجادَ بدن چه څه حصه په زړو شلیدلوکپړو کښې پټه وه اوځه ښکاره وه. دَ هغه په کتلوسره زما خیال راغلوچه هم دغه سړې اویس قرنی دې. ماورمنډه کړه اوهغه له لاړم چه ته اویس قرنی ئی؟ هغه جواب راکړو اوجی. مااووئیل رسول الله صلی الله علیه وسلم تاته سلام رالیګلې دې دغه سړی اووئیل وعلی رسول الله السلام وعلیك یاامیرالمؤمنین. دې نه پس ماهغه ته اووئیل دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم دې چه ته زمادَ پاره دَمغفرت دعااوکړې. دې نه پس زمادا معمول شو چه هر کال به مې دَ حج په موقع اویس سره ملاقات کولو خپل احوال او اسرار به مې هغه ته بیانول اوهغه به خپل احوال اواسرار ماته بیانول.

### [٦٢٦٧] داهل یمن فضیلت

٦٢٦٧ - (¹) [۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ قَالَ: «أَتَاكُمْ أَهْلُ الْيَمَنِ [۲] هُمْ أَرَقُّ وَأَلْيَنُ قُلُوبًا [۳] الْإِيمَانُ يَمَانٍ وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ وَالْفَخْرُ وَالْخُيَلَاءُ فِي أَصْحَابِ الْإِبِلِ [٤] وَالسَّكِينَةُ وَالْوَقَارُ فِي أَهْلِ الْغَنَمِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهریره رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي (کوم وخت چې د یمن نه ابوموسٰی اشعري رضی الله عنه او د هغه د قوم خلق خدمت رسالت کې حاضر شول) نو حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل تاسو ته د یمن خلق راغلي دي [۲] چې تاسو ته د راتلونکو نورو خلقو په نسبت

¹ اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب قدوم الأشعریین [ص:۱۷۳] وأهل الیمن (رقم-٤٣٨٨) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب تفاضل أهل الإیمان فیه، ورجحان أهل الیمن فیه (رقم-٨٤ - (٥٢) واحمد فی المسند: ۲/۲٥۲

زيات رقيق القلب او زيات نرم دل دي [۳] ايمان د يمن دی او حکمت هم يمني دی او فخر يعنی د خپل مال ومنصب په ذريعه خپله لويي كول او تكبر كول په اوښانو والا كې دي [۴] او اطيمنان او تحمل او وقار په بزو والاؤ كې دی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَرَقُّ: دَ رقيق نه دې نرم شفيق باريك او ښكلې معنى كښې دې. ② وَأَلْيَنُ: نرم زړه والا، مهربانه (هم ظاهری هم باطنی). ③ الإِيمَانُ يَمَانٍ: يمن طرف ته ايمان نسبت دې يعنی د يمن خلق ايمانداری دی ④ الحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ: د حكمت څخه علم مراد دې يعنی د يمن خلقو كښې علم دې ⑤ الفَخْرُ: أي: الإفتِخَارُ: فخر او لوئی كول. ⑥ الخُيَلَاءُ: غرور او تكبر. ⑦ السَّكِينَةُ: أي: التَّأنّي: اطمينان، تسلی. ⑧ الوَقَارُ: أي: الحِلْمُ وَالأُنْسُ: تحمل اوبرداشت، محبت كول.

**تسهيلات: قوله: وَالحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ**

**دحكمت څخه مراد:** دَحكمت نه مراد علم دې يعنی دَهغه زمانې اهل يمن داسې وو. دَ قيامته پورې دَاهل يمن دَپاره دا فضيلت نشته دې. بعضې لږ شان خلق به اوس هم داسې وی چه په دغه صفاتو سره به متصف وی.

**نوټ:** باب بدء الخلق اوباب وفات النبي ﷺ كښې او په نورو مقاماتو كښې دَدې حديث تشريح او توضيح شوې ده.

## [۶۲۶۸] د كډبه خلقو تعريف

۶۲۶۸-() [۳] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «رَأْسُ الْكُفْرِ نَحْوَ الْمَشْرِقِ، [۳] وَالْفَخْرُ وَالْخُيَلَاءُ فِي أَهْلِ الْخَيْلِ وَالْإِبِلِ وَالْفَدَّادِينَ أَهْلِ الْوَبَرِ، [۴] وَالسَّكِينَةُ فِي أَهْلِ الْغَنَمِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] د كفر سر مشرق طرف ته دی [۳] فخر او تكبر اسونو والاوو اوښانو والاؤ او بزګرانو كې دی چې د اوښ د وېښتانو په خيمو كې اوسيږي يعنی هغه خلق چې آباديو نه لرې جنګلاتو او صحراګانو كې اوسيږي او داسې خلق به هغه زمانه كې زيات تر د اوښانو د وېښتانو نه جوړې شوې خيمو كې اوسيدل [۴] او نرمي او مسكيني بزو والاؤ كې وه. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① رَأْسُ الكُفْرِ: أي: مُعْظَمُهُ وَمَنْشَؤُهُ: يعنی دَ كفر څوكه او دَ كفر سر اوليډر اوسرغنه مشرق كښې دې، يا دا چه كفر د مشرق د طرفه راوخی. ② نَحْوَ: طرف. ③ الفَدَّادِينَ: أي: الفَلَّاحِينَ: زميندار خلق (چغې صورې وهونكې صحرائی ځنګلی خلق مراد دی). ④ أَهْلِ الوَبَرِ: أي شَعْرُ الإِبِلِ: يعنی دَ اوښانو دَ وېښتو په خيمو كښې اوسيدونكې جتې خلق به وی. وَالمُرَادُ بِهِمْ سُكَّانُ الصَّحَارِي: (دَدې نه هم هغه صحرائی ځنګلی خلق مراد دی).

[1] اخرجه البخاری كتاب بدء الخلق/باب: خير مال المسلم غنم يتبع بها شعف الجبال (رقم-۳۳۰۱) فی ومسلم فی كتاب الإيمان/باب تفاضل أهل الإيمان فيه، ورجحان أهل اليمن فيه (رقم-۸۵ - (۵۲) والترمذی فی كتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الدجال لا يدخل المدينة (رقم-۲۲۴۳) ومالک فی الموطا فی كتاب الاستئذان/باب ما جاء فی أمر الغنم (رقم-۱۵) واحمد فی المسند: ۴۱۸/۲

**تسهيلات:** **قوله**: رَأْسُ الْكُفْرِ:

**د رأس الكفر مصداق**: دَ مدينې منورې نه چه كومې علاقې دَمشرق طرف ته راځي هغه فارس ايران او روس وغيره دى. هم په دې علاقوكښې دَ ياجوج ماجوج مركز دې او هم دَدغه علاقونه به دَ دجال خروج كيږي.

**[۶۲۶۹] د مدينې څخه مشرق طرف د فتنو مركز**

| ۶۲۶۹-()[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] قَالَ: «مِنْ هَاهُنَا جَاءَتِ الْفِتَنُ نَحْوَ الْمَشْرِقِ، [۳] وَالْجَفَاءُ وَغِلَظُ الْقُلُوبِ فِي الْفَدَّادِينَ أَهْلِ الْوَبَرِ عِنْدَ أُصُولِ أَذْنَابِ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ فِي رَبِيعَةَ وَمُضَرَ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

**ترجمه**: [۱] او حضرت ابومسعود انصاري ﷛ د رسول الله ﷺ نه روايت كوي [۲] چې يوه ورځ حضور ﷺ مشرق طرف ته د لاس مبارك اشاري كولو سره وفرمايل چې فتنې دې خاي نه راغلي دي [۳] او بد زباني او د زړه سختوالي په خيمو كې اوسيدونكو خلقو كې وى چې خپل څاروي څرولو د پاره د اوښانو او غواګانو لكۍ پسې لګيدلي دي داخلق ربيعه او مضر قبائلو كې دى. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ① الْجَفَاءُ: دا د وفا ضد دې، بې وفا او بې لوظه ته وانى خو دلته ددې نه مراد سخت ژبې شاړ شبر خلق مراددى يعنى كلى وال خلق. ② غِلَظُ الْقُلُوبِ: سخت زړه خلق، ()أُصُولِ: جرړې ته وائى. ③ أَذْنَابِ: د ذَنَب جمع ده، لكۍ ته وائى.

**تسهيلات**: **قوله**: وَغِلَظُ الْقُلُوبِ:

**دزړونو دسختوالى وجه**: دَتعليم اوتهذيب د عدم په وجه به دَهغوى زړونه سخت وى. دا صفت به دهغه زميندارانوخلقو وى چه چغې صورې وهونكى به وى. په څناورو باندې چغې وهى او دَ څناورو دَ ويښتونه جوړو شوو خيموكښې به اوسيږي. اودَ غواګانو غوايانو او اوښانو لكو پورې به اينختې وى. دا صحرايى ځنګلي خلق ربيعه څخه به هم وى او دَ قبيله مضر څخه به هم وى.

**[۶۲۷۰] حجازيان د ايمان خاوندان**

| ۶۲۷۰-()[۵] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «غِلَظُ الْقُلُوبِ وَالْجَفَاءُ فِي الْمَشْرِقِ [۳] وَالْإِيمَانُ فِي أَهْلِ الْحِجَازِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
|---|

**ترجمه**: [۱] او حضرت جابر ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د زړه سختوالي او سخت ګوئي مشرق كې ده خكه چې د كفر او فتنو مصدر او مركز د دې طرف علاقې دى [۳] او ايمان حجاز والو كې دى. (مسلم)

---

[۱] اخرجه البخارى كتاب المناقب/باب باب (رقم-۳۴۹۸) فى ومسلم فى كتاب الإيمان/باب تفاضل أهل الإيمان فيه ورجحان أهل اليمن فيه (رقم-۸۱ - (۵۱) والترمذى فى كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب (رقم-۲۲۶۸) ومالك فى الموطا فى كتاب الاستئذان/باب ما جاء فى المشرق (رقم-۲۹) واحمد فى المسند:۱۲۱/۲

[۲] اخرجه البخارى فى كتاب المغازى/باب قدوم الأشعريين [ص:۱۷۳] وأهل اليمن (رقم-۴۳۸۹) واحمد فى المسند:۳۳۲/۳

**تسهیلات:**

**قوله:** وَالْإِيمَانُ فِي أَهْلِ الْحِجَازِ:

**د اهل حجاز په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دَاهل حجاز نه مراد مکه مدینه اوطائف اودَدې سره متعلق ښارونه او آبادئی دی

② دَ اهل حجاز څخه مراد انصار دی. اودَدوی نوم حجاز په دې اعتبارسره وئیلې شوې دې چه دا دَنجد اوتهامه په مینځ کښې حائل دی دَ نجد معنی اوچته زمکه او دَ تهامه معنی ده ښکته زمکه

**[٦٢٧١] د شام او یمن دپاره د برکت دعا**

٦٢٧١-() [٦] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي شَامِنَا اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي يَمَنِنَا. ③ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَفِي نَجْدِنَا. ④ قَالَ: اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي شَامِنَا اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي يَمَنِنَا. ⑤ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَفِي نَجْدِنَا، فَأَظُنُّهُ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ: ⑥ هُنَاكَ الزَّلَازِلُ وَالْفِتَنُ وَبِهَا يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1]

**ترجمه:** ① او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وايي يوه ورځ رسول الله ﷺ داسې دعا وکړله ② خدايه! زمونږ ملك شام کې برکت واچوي او خدايه! زمونږ ملك يمن کې برکت راکړې ③ په دې اوريدو سره صحابه رضی الله عنهم عرض وکړو يارسول الله! زمونږ نجد په باره کې هم دعا وفرمايه (چې مونږته د دې علاقې د طرف نه هم برکت راکړي) ④ رسول الله ﷺ بيا وفرمايل خدايه! زمونږ ملك شام کې برکت واچوي زمونږ يمن کې برکت راکړي ⑤ صحابه رضی الله عنهم دوباره عرض وکړو يا رسول الله! او زمونږ نجد په باره کې هم دا دعا وفرمايي راوي وايي خما گمان دا دی چې په دريم ځل حضور ﷺ بيا هغه الفاظو کې دعا وکړه ⑥ او د نجد په باره کې يې وفرمايل هلته به زلزلې وي فتنې وي او د هغه ځاي نه به د شيطان ښکر ښکاره کيږي. (بخاري)

**حل اللغات:**- ① يَطْلُعُ: أَيْ: يَظْهَرُ: ښکاره کيږی به. ② قَرْنُ الشَّيْطَانِ: أَيْ: حِزْبُهُ: قَرن ښکر ته وائی يعنی د شيطان ښکر (خو ددې نه دشيطان ډله او دهغه ملگری مراد دی)

**تسهیلات: قوله:** نَجْدِ:

**دنجد مصداق:** دَرياض دَ اطرافو اکثر علاقې په نجد کښې راځی. دادَ حجاز نه دَ مشرق طرف ته واقع دی. دَ شيطان دَ ښکرنه دَ شيطان جماعت مراد دې. چه فتنه خورونکې جماعت دې

**قوله:** اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي شَامِنَا:

**د شام مصداق:** دَ شام نه مراد دَ فلسطين زمکه ده چه دَ انبياء کرامو آخری آرام گاه ده.

**په شام کښې د برکت څخه مراد:** په شام کښې دَ برکت څخه مراد دَهغه ځائی په برکتونو کښې زياتوالې دې چه اهل مدينه او ټولو مؤمنانوته حاصل شی.

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب الفتن/باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «الفتنة من قبل المشرق» (رقم-٧٠٩٤) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٩٥٣)

**قوله:** اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي يَمَنِنَا:

**په يمن كښې د بركت ځخه مراد:** دغه شان په يمن كښې دَبركت ظاهرى او باطنى دواړه بركتونه مراد دي اودَ يو قول مطابق دغه دواړو ملكونودپاره دَدعا ظاهرى داعيه دا هم ده چه اهل مدينه دَپاره به غله او نور دَخوراك څيزونه هم دَدې دواړو ملكونونه راتلل.

**قوله:** قَالَ فِي الثَّالِثَةِ هُنَاكَ

**د هناك څخه مراد:** "هناك" نه مراد دَ نجد طرف دې اودَ نجددَ طرف نه مراد هم دَ حجاز مشرقى طرف دې. دكوم ذكر چه په ماقبل حديث كښې دَ "نحوالمشرق" دَ الفاظو سره راغلې دې.

**قوله:** الزَّلَازِلُ:

**د زلزلو څخه مراد:** ① دَ زلزلې څخه ظاهرى زلزلې مراد دى كومې چې هرڅوک پيژنى چې زمكه خوزيدل شروع شى.

② د زلزلو څخه باطنى زلزلې مراد دى. مطلب دا دې چه دَ هغه ځائى دَ خلقو روحانى آرام او سكون ختميدل

**قوله:** وَالْفِتَنُ وَبِهَا يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ

**د فتنو څخه مراد:** اودَ فتنو نه مراد هغه آفتونه او مصيبتونه دى په كوم سره چه په دين كښې ضعف اوكمزورى پيدا شى او په نيكئى او ايماندارئى كښې كمې راشى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٦٢٧٢]داهل يمن په باره كښې دعا

٦٢٧٢ -( ) [٤] ① عَنْ أَنَسٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② نَظَرَ قِبَلَ الْيَمَنِ فَقَالَ: ③ اللّٰهُمَّ أَقْبِلْ بِقُلُوبِهِمْ وَبَارِكْ لَنَا فِي صَاعِنَا وَمُدِّنَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** ① حضرت انس رضي الله عنه د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت كوي ② چې يوه ورځ رسول الله ﷺ يمن طرف ته نظر پورته كى ③ او بيا داسې دعايې وفرمايله خدايه! د اهل يمن زړونه متوجه كړه راوګرزوه او زمونږ صاع او زمونږ مد كې زمونږ د پاره بركت راكړې. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① أَقْبِلْ: دا د إقبال نه د امر صيغه ده. أي اجْعَلْ قُلُوبَهُمْ مُقْبِلَةً إِلَيْنَا: يعنى اې الله ته د يمن دخلقو زړونه زمونږ طرف ته متوجه كړه. ② صَاع: يو صاع د څلور مد برابر وى. بيا يو مد د يو رطل او د رطل ددريمې حصې برابر وى. او رطل د دولسو اوقيو برابر وى. او يوه اوقيه د څلوېښتو دراهمو برابر وى.

**تسهيلات: قوله:** اَللّٰهُمَّ أَقْبِلْ بِقُلُوبِهِمْ

**ديمن دپاره ددعا وجه:** حضورپاك دَ اهل يمن دَپاره "دعاځكه اوكړه چه دَ اهل مدينه غله

[1] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٩٥٤) واحمد فى المسند:١٨٥/٥

وغيره به د يمن نه راتله او هم په دې وجه نې د هغوی په صاع اومد كښې د بركت دعا اوكړه.

**قوله:** وَبَارِكْ لَنَا فِي صَاعِنَا وَمُدِّنَا:

**په صاع اومد كښې د بركت دپاره د دعا وجه:** صاع اومد دوه پيمانې دی دكوم په ذريعه چه د غلې لين دين كيږي. په صاع كښې تقريبًا درې نيم سيره غله راځي اومد ددې څلورمه حصه ده اودلته صاع او مد كښې د بركت دعا فرمائيلې شوې ده لكه چه ظرف مظروف مراد اخستې شوې دې.

**[۶۲۷۳] په شام باندې د فرښتو وزرې خورول**

۶۲۷۳-( ) [۸] [۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «طُوبَى لِلشَّامِ. [۳] قُلْنَا: لِأَيٍّ ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ [۴] قَالَ: لِأَنَّ مَلَائِكَةَ الرَّحْمَنِ بَاسِطَةٌ أَجْنِحَتَهَا عَلَيْهَا»، رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** [۱] او حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] خوش بختي ده اهل شام ته [۳] مونږ پوښتنه وكړه په څه وجه يارسول الله! [۴] حضور ﷺ وفرمايل په دې وجه چې د رحمٰن فرښتې د شام زمكې او د هغه اوسيدونكو باندې خپلې وزرې خورې كړې دي چې هغه زمكه او د هغه خلق د كفر نه محفوظ شي (او ترمذي رحمه الله د رحمٰن فرښتې د لفظي تركيب دې طرف ته اشاره كوي چې دلته فرښتو نه مراد د رحمت فرښتې دي). (احمد ترمذي)

**حل اللغات:-** ① طُوبَى :د طَابَ نه مصدر دې، وَالْمَعْنَى لَكَ أَصَبْتَ خَيْرًا: خير اوخوشحالي دې وي تا لره. ② بَاسِطَةٌ: خورې كړې وی (دپاره دحفاظت). ③ أَجْنِحَتَهَا: جمع د جناح ده ،وزرې

**تسهيلات:**

**قوله:** مَلَائِكَةَ الرَّحْمَنِ:

**د وزرو خورلو څخه مراد:** دَ دې نه دَ رحمت فرښتې مراد دی چه فرښتو خپلې وزرې خورې كړی دی. دادې خبرې نه كنايه ده چه دَ شام په ملك كښې اوسيدونكو ابدال باندې يا په اهل شام باندې دَ الله تعالى رحمت راخور شوې دې. دَ فرښتو دَ وزرو نه مراد صفات او دَ ملائكه طاقت دې. باقي دَ فرښتو وزرې دَ دنيا دَ خلقو په مثو باندې قياس كول نه دی پكار. (التعليق الصبيح: ۴۰۴/۷).

**[۶۲۷۴] د حضر موت ذكر**

۶۲۷۴-( ) [۹] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «سَتَخْرُجُ نَارٌ مِنْ نَحْوِ حَضْرَمَوْتَ أَوْ مِنْ حَضْرَمَوْتَ تَحْشُرُ النَّاسَ. [۳] قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ فَمَا تَأْمُرُنَا؟ قَالَ: عَلَيْكُمْ بِالشَّامِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[2]

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [۲] ډير نزدې د حضرموت د طرف نه يادايي وفرمايل د حضر موت نه به يو اور ښكاره شي او هغه اور به

[1] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۹۵٤) واحمد فى المسند:۱۸٤/۵

[2] اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء لا تقوم الساعة حتى تخرج نار من قبل الحجاز (رقم-۲۲۱۷) واحمد فى المسند:۱۱۹/۲

خلق جمع کړي او شړلو سره به يې بوځي په دي اوريدو سره [۳] صحابه ﷺ عرض وکړو یارسول الله! بیا زمونږ په باره کې څه حکم دی؟ یعنې هغه وخت مونږ ته څه کول پکار دي او چیرته تلل پکار دي حضور ﷺ وفرمایل تاسو ته شام ته تلل پکاردي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① حَضْرَمَوْتَ: د یمن د یوښار یا قبیلې نوم دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** مِنْ نَحْوِحَضْرَمَوْتَ: دا الفاظ ئی ارشاد اوفرمائیلی یا دَمن حضرموت الفاظ ئی ارشاد اوفرمائیل لکه چه راوی ته شك دې. دَ اور نه مراد یا خو په حقیقتاً اور دې یا دَدې نه شر اوفتنې مراد دی.

**قوله:** عَلَيْكُمْ بِالشَّامِ: تاسو له دې وخت کښې شام ته تلل پکاردی ځکه چه دغه وخت به شام فرښتو په ګیره کښې اخستې وی په دې وجه به هلته نه اور ځی او نه شر اوفساد. دغه شان یو حدیث ماقبل کښې دَ قیامت په علاماتوکښې تیر شوې دې. الحاصل دلته داخبره کول زیاته صحیح ده چه دلته دَ حضر موت دَ طرف نه راښکاره کیدونکی کوم اور ذکر دې هغه په حقیقت کښې اور نه دې بلکه فتنې او شر مراد دې.

**[۶۲۷۵] د شام فضیلت**

٦٢٧٥-(١) [١٠] [١] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِوبْنِ الْعَاصِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُوْلُ: [٢] «إِنَّهَا سَتَكُوْنُ هِجْرَةٌ بَعْدَ هِجْرَةٍ [٣] فَخِيَارُ النَّاسِ إِلَى مُهَاجَرِ إِبْرَاهِيْمَ» [٤] وَفِي رِوَايَةٍ «فَخِيَارُ أَهْلِ الْأَرْضِ أَلْزَمُهُمْ مُهَاجَرَ إِبْرَاهِيْمَ وَيَبْقَى فِي الْأَرْضِ شِرَارُ أَهْلِهَا [٥] تَلْفِظُهُمْ أَرَضُوْهُمْ تَقْذَرُهُمْ نَفْسُ اللّٰهِ النَّارُ مَعَ الْقِرَدَةِ وَالْخَنَازِيْرِ [٦] تَبِيْتُ مَعَهُمْ إِذَا بَاتُوْا وَتَقِيْلُ مَعَهُمْ إِذَا قَالُوْا». رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ وایی ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل [۲] د هجرت نه وروسته به هجرت وي [۳] نو بهترین سړی به هغه وي چې هغه هغه خاي ته هجرت کولو سره لاړ شي چیرته چې حضرت ابراهیم ﷺ هجرت کړی وو (یعنی ملك شام ته او دلته هغوی هغه وخت په هجرت راغلي وه هرکله چې هغوی خپل آبائی ملك عراق نه ترك وطن کړی وو) [۴] او په یوه روایت کې دا الفاظ دي چې په مخ د زمکې به بهترین خلق هغه دي چې دي خاي ته هجرت کول په ځان بنه لازم ونیسي چیرته چې حضرت ابراهیم ﷺ هجرت کړی وو یعنی د شام ملك ته او هغه وخت په مخ د زمکې باندې د هغه بدترخلق یعنی کفار او فجار پاتې شي [۵] چې هغوی به د هغوی د ملك نه اوباسي د الله ذات به هغوی پلیت ګڼي او اور به هغوی د خنزیرانو او بیزوګانو سره یوځای کولو سره شړي [۶] او هغه اور به د هغه سره شپه تیروي چیرته چې د هغوی شپه راشي او هغوی سره به قیلوله آرام کوي چیرته چې هغوی قیلوله کوي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① فَخِيَارُ النَّاسِ: غوره او بهترین سړي په خلقوکښې، ② أَلْزَمُهُمْ: أَيْ: أَكْثَرُهُمْ لُزُوْمًا: هغوی سره کیدل په ځان لازم اوګڼړی. ③ تَلْفِظُهُمْ: دا صیغه دَ ضرب یضرب نه ده دَدې ماده لفظ دې، أَيْ: تَرْمِيهِمْ: دَ غورزولو او یستلو په معنی کښې دې ④ أَرَضُوْهُمْ: دا جمع ده اودَدې مفرد ارض دې

[١] ) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحديث ٢٤٨٢ واحمد فی المسند ٢/ ١٩٩

زمکې ته وائی. یعنی زمکه به هغه خلقوته ځائی نه ورکوی بلکه اخواکوی به نې. ⑤تَقْذَرُهُمْ:دَ سمع یسمع نه، دَ کراهت او قباحت په معنی کښې دې. ⑥نَفْسُ اللّٰهِ:أَيْ:ذَاتُهُ:دادَ متشابهات نه دې مراددالله تعالی ذات دې یعنی الله تعالی به هغه خلق نه خوښوی بلکه هغوی نه به نفرت کوی. ⑦الْقِرَدَةِ: بیزوګان، ⑧تَبِيتُ:دَ شپې تیرولو په معنی کښې دې. ⑨تَقِيلُ:دادَقیلوله نه جوړدې، وَهِيَ الِاسْتِرَاحَةُ بِالنَّهَارِ: قیلوله یَنی د ورځې آرام کولو ته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَخِيَارُ النَّاسِ إِلَى مُهَاجَرِ إِبْرَاهِيمَ:

**په آخره زمانه کښې شام ته د هجرت فضیلت:** دَدې حدیث مفهوم اومطلب دادې چه ډیر زر به دَحق اوباطل په معرکوکښې مسلسل هجرتونه وی ښه خلق به هغه وی چه دَشام طرف ته هجرت کوی چرته چه حضرت ابراهیم علیه السلام دَ عراق نه هجرت فرمائیلې وو. دَخوخلقو دَهجرت نه پس کافرانوسره سخت شریر اوخراب خلق پاتې شی هغوی به دَحق دَپاره نه هجرت کوی او نه به دَ حق په طرف اودریدو سره کافرانوسره جهادکوی. بلکه ذلیل جوړیدوسره به کافرانو سره وی. زمکه به هغوی ذلیل ګنړلوسره اخوادیخوا غورزوی اودَالله تعالی ذات به دَهغوی نه نفرت کوی. بیابه یواځې راشی اوکافران چه خنزیران او بیزوګان دی هغوی سره به دغه اشرار اومنافقان یوځائی کولوسره ګډوډ کړی.

**قوله:** النَّارُ مَعَ الْقِرَدَةِ وَالْخَنَازِيرِ

**د قردة اوخنازیرپه مصداق کښې دوه احتمالات:**

① دَ بیزوګانو او لیوه ګانوه څخه کافران مراد اخستې شی

② دَ بیزوګانو او لیوه ګانوه څخه حقیقی ځناور مرادکیدې شی.

**قوله:** تَبِيتُ مَعَهُمْ إِذَا بَاتُوا وَتَقِيلُ مَعَهُمْ إِذَا قَالُوا:

**د فتنې څخه نه جدا کیدل:** دې نه مراد دادې چه دَدغه خلقو دَفتنې اوفساد اور به هغوی سره لګیدلې وی که ورځ وی اوکه شپه وی. دَ فتنې دَ اور نه مراد فتنه ده. کله چه دا منافقان خلق دکافرانو اخلاق خپل کړی نوکافرانوسره به په فتنوکښې اخته شی. دَدوی به داخیال وی چه فتنه په ملك کښې ده بهربه نه وی نودَ وطن پریخودودَپاره به اوځی خودغه فتنه به دَ هغوی ځان نه پریږدی بلکه دوی سره سره به ځی.

**[٦٢٧٦] آخره زمانه کښې شام ته دهجرت کولو حکم**

٦٢٧٦-()[١]①وَعَنِ ابْنِ حَوَالَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«سَيَصِيرُ الْأَمْرُ أَنْ تَكُونُوا جُنُودًا مُجَنَّدَةً ③جُنْدٌ بِالشَّامِ وَجُنْدٌ بِالْيَمَنِ وَجُنْدٌ بِالْعِرَاقِ»، فَقَالَ ابْنُ حَوَالَةَ: خِرْلِي يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ أَدْرَكْتُ ذَلِكَ، ④فَقَالَ: «عَلَيْكُمْ بِالشَّامِ فَإِنَّهَا خِيَرَةُ اللَّهِ مِنْ أَرْضِهِ يَجْتَبِي إِلَيْهَا خِيَرَتَهُ مِنْ عِبَادِهِ، ⑤فَأَمَّا إِنْ أَبَيْتُمْ فَعَلَيْكُمْ بِيَمَنِكُمْ وَاسْقُوا مِنْ غُدُرِكُمْ ⑥فَإِنَّ اللَّهَ - عَزَّ وَجَلَّ - تَوَكَّلَ لِي بِالشَّامِ وَأَهْلِهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

[١] ) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحديث ٢٤٨٣ واحمد فی المسند ٤/ ١١٠

**ترجمه:**۱ حضرت ابن حواله ﷺ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ۲هغه زمانه نږدې ده هرکله چې د دين او ملت به دا نظام وي چې ستاسو د مسلمانانو به جداجدا څو لښکرجوړ شي۳ يولښکر به په شام کې وي يولښکر به په يمن کې اويو لښکر په عراق کې په دې اوريدو سره ابن حَواله عرض وکړو يارسول الله! که هغه زمانه کې زه وم نو وفرمايي چې زه کوم لښکر اختيار کړم ۴حضور ﷺ ورته وفرمايل ته شام اختيار کړه ځکه چې د شام زمکه د الله د زمکو نه برګزيده زمکه ده يعنې الله ﷻ په آخره زمانه کې د ديندارو اوسيدو د پاره د شام زمکه خوښه کړې ده۵ بيا که ته شام اختيارول قبول نه کړي نو خپل يمن اختيار کړه او ګوره چې تاسو شام ته لاړ شي نو خپله او خپلو حيوانانو باندې د خپلو حوضونو نه اوبه څښوي ۶حقيقت دادی چې الله ﷻ محض خما په وجه خما د امت په حق کې دا ذمه اخستې ده چې هغه به د کفارو د فتنې او فساد او د هغوئ د غلبې نه شام او اهل شام مامون او محفوظ ساتي. (احمد ابوداود)

**حل اللغات:-** ①سَيَصِيرُ: زر ده چه رابه شی (هغه زمانه). ②الأَمْرُ: ددې نه مراد يا اسلام دې يا کفارو سره جنګ (جهاد) دې. ③مُجَنَّدَةً: أَيْ: مَجْمُوعَةً: د يو جماعت او يو موټي په معنی کښې دې (چه تاسو ټول به په کلمه د اسلام راجمع يئ). ④خِيَرَةُ اللّٰهِ: أَيْ: مُخْتَارَةٌ: دالله تعالی غوره او خوښه. ⑤أَبَيْتُمْ: أَيْ: امْتَنَعْتُمْ: يعنی که تاسو دَ شام دَتلونه انکاراوکړئ، يعنی هلته د تلو قصد نه کوئ. ⑥يَجْتَبِي: أَيْ: يَجْمَعُ: راجمع کوی، راولي. ⑦اسْقُوا: اوڅکوئ، څروب کړئ. ⑧غُدُرِكُمْ: أَيْ: حِيَاضِكُمْ: حوضونه، تالابونه.

**تسهيلات: قوله:** أَنْ تَكُونُوا جُنُودًا مُجَنَّدَةً:

**دامت په درې ډلو کښې تقسيمېدل:** يعنی دَ امر اسلام يا امرجنګ انجام اوتيجه به دا رااوخی چه تاسو مسلمانان به په دريوډلو او دريو لښکروکښې تقسيم شئ.

① يوه ډله په شام کښې وی ② دويمه به عراق کښې وی.

③ دريم به يمن کښې جوړيږی

حضرت ابن حواله ﷺ تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ زه کوم يوکيمپ ته لاړشم؟ يجتبی اجتباء دَ خوښولو په معنی کښې راځی دلته جمع کول مراددی يعنی الله تعالی به خپل نيکان خلق دَ شام طرف ته راجمع کوی.

**قوله:** عَلَيْكُمْ بِالشَّامِ:

**شام ته دهجرت کولو حکم:** او واسقوامن غدرکم په مينځ کښې واقع ده. مطلب داچه دَشام طرف ته هجرت اوکړه اودَهغې دَحوضونو نه اوبه اوڅکه.

**قوله:** تَوَكَّلَ:

**دشام دخلقو حفاظت خداوندی:** تکفل په معنی کښې دې يعنی الله تعالی به دَشام اودَهغې دَاوسيدونکو حفاظت فرمائی. خلاصه دا چه دَهجرت او سکونت دَپاره دَ تلولونه اول شام بهتردې ګنی بيا يمن اختيارکړه. دَعراق نوم مه اخله. غدرجمع ده دَدې مفرد غدير دې حوض ته وائی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٦۲۷۷] د شام په خلقو د علي رضي الله عنه د لعنت کولو څخه انکار

٦۲۷۷ -() [۳] ① عَنْ شُرَيْحِ بْنِ عُبَيْدٍ، قَالَ: ② «ذُكِرَ أَهْلُ الشَّامِ عِنْدَ عَلِيٍّ وَقِيلَ: الْعَنْهُمْ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ. ③ قَالَ: لَا إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ④ الْأَبْدَالُ يَكُونُونَ بِالشَّامِ وَهُمْ أَرْبَعُونَ رَجُلًا ⑤ كُلَّمَا مَاتَ رَجُلٌ أَبْدَلَ اللَّهُ مَكَانَهُ رَجُلًا ⑥ يُسْقَى بِهِمُ الْغَيْثُ وَيُنْتَصَرُ بِهِمْ عَلَى الْأَعْدَاءِ ⑦ وَيُصْرَفُ عَنْ أَهْلِ الشَّامِ بِهِمُ الْعَذَابُ»[1].

**ترجمه:** ① حضرت شريح بن عبيد تابعي رحمه الله روايت کوي ② چې يوه موقع باندې د سيدنا علي رضي الله عنه مخکې د اهل شام ذکر وشو او هغوئ ته اوويل شوه اې امير المؤمنين! شام والو باندې لعنت اووايئ! ③ حضرت علي رضي الله عنه ورته اوويل نه زه اهل شام باندې لعنت نشم ويلې حقيقت خو دادی ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي ④ آبدال په شام کې دی او هغه څلويښت سړي دي ⑤ هر کله چې په هغوئ کې يو سړی وفات شي نو الله جل جلاله د هغه په ځاي دويم سړی مقرروي ⑥ د دې ابدالو د وجود له برکته باران کيږي د دوئ مدد سره د دين د دښمنانو نه بدله اخستی شي ⑦ او د دوئ له برکته اهل شامو نه سخت عذاب دفع کولی شي.

**حل اللغات:-** ① الْعَنْهُمْ: لعنت اووايئ په شام والو باندې. ② الْأَبْدَالُ: دَ بدل جمع ده دَ اولياء الله يو ډلي ته أبدال وائي. ③ أَبْدَلَ اللَّهُ: په بدل کښې راولی الله پاک (بل سړي). ④ الْغَيْثُ: أَي: الْمَطَرُ: باران. ⑤ يُنْتَصَرُ: مدد کولی شی، ⑥ يُصْرَفُ: لرې کولی شی، دفع کولی شی.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْأَبْدَالُ يَكُونُونَ بِالشَّامِ:

**د ابدال وجه تسميه:** ابدال جمع ده اودَ دې مفرد بدل دی. لکه څنګه چه ابرار جمع ده او مفرد ئې بر دې چونکه داخلق دَ يو بل په مرتبه باندې فائز کيدوسره بدليږی په دې وجه دوی ته ابدال اووئيلې شو.

**قوله:** الْعَنْهُمْ:

**د حديث پس منظر:** دَحضرت علی رضي الله عنه اوحضرت معاويه رضي الله عنه يواوړدجنګ شوې دې. حضرت علي رضي الله عنه په حق باندې وو اودَمعاويه رضي الله عنه نه اجتهادی غلطی شوې وه. حضرت معاويه رضي الله عنه دَ اوږدې مودې راسې دَ شام دَملك ګورنرپاتې وو. هغه دَحضرت علی رضي الله عنه نه مطالبه کړې وه چه دَعثمان رضي الله عنه قاتلان مونږ ته حواله کړه دې دَپاره چه مونږ دَهغوی نه قصاص واخلو. حضرت علی رضي الله عنه فرمائيلې وو چه اول تاسوخلق بيعت اوکړئی بيادَ قصاص مطالبه اوکړئی. بهرحال دَحضرت علی رضي الله عنه څه ملګرو هغوی ته اووئيل چه دَ اهل شام دَپاره يوه زورداره بددعا اوکړه دې دَپاره چه ټول په ټول هلاك شی. حضرت علی رضي الله عنه دَخيروکولونه انکاراوکړو اوبيائی دَ شام په تعريف کښې يوحديث نقل کړو په کوم کښې چه دَ ابدال ذکرراغلې دې.

[1] اخرجه احمد فی المسند: ۱۱۲/۱

**دابدالو مركز:** په زيربحث حديث كښې رسول الله ﷺ دَ ابدال دَحقيقت طرف ته اشاره فرمائيلې ده. اول خوحضورپاك دَ ابدال مسكن اودَهغوى مركزى مقام خودلى دې چه داخلق به په شام كښې وى. دَدې مطلب دانه دې چه دَشام نه علاوه به په بل ځائې كښې نه وى بلكه دَدې مطلب دادې چه دَدوى مركزى هيډكوارټر اواكثرى جماعت به په شام كښې وى.

**د ابدال څخه مراد:** دادَ الله تعالى دَغيبى نظام خلق وى دَدوى زيات تر تعلق تكوينيات سره وى. ابدال دَ خلقونه په عام توګه پټيرى په دې وجه دوى ته رجال الغيب هم وائې. حضرت خضر عليه السلام دَدې نظام مشر دې. حضورپاك په دې حديث كښې دَهغوى دَ جماعت نظم ونسق طرف ته هم اشاره كړې ده چه داڅلويښت سرى وى. دغه څلويښتونه چه كله هم څوك مړكيږى نو الله تعالى دَعام اولياء الله نه يوبدل جوړولوسره دغه دَ څلويښتو شميرپوره كوى.

**دابدالو كارونه:** دَدغه نفوس قدسيه په ذريعه اودَ هغوى په وجودسره دَالله تعالى نه دَ باران دعا غوښتلې كيږى اودَ دښمن په مقابله كښې دكاميابئى دعا غوښتلې كيږى اوالله تعالى امدادكوى. دَدوى په بركت سره دَ اهل شام نه لوئى لوئى فتنې اوعذاب اخواكيږى. دا حديث امام احمدبن حنبل رحمه الله په مسنداحمدكښې نقل كړې دې.

**د انتظامى امورو دپاره په انسانانوكښې انتخاب:** ملاعلى قارى رحمه الله په مرقات كښې دې نه علاوه يوحديث دَ ابن عساكر رحمه الله په حواله سره نقل كړې دې په هغې كښې دَ ابدال پوره تفصيل دې ترجمه اوګورئى: ابن عساكر رحمه الله دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه يوروايت نقل كړې دې چه مرفوع حديث دې.

① الله تعالى په خپل مخلوق كښې درې سوا داسې سرى پيداكړى دى دَ چادَ زړه صفت چه دَ حضرت آدم عليه السلام دَ زړه په صفت دې.

② بيا الله تعالى څلويښت سرى پيداكړى دى دَ چا قلوب چه دَحضرت موسى عليه السلام دَ قلب په صفت دى.

③ دغه شان الله تعالى اووه كسان داسې مقرركړى دى دَ چا قلوب چه دَحضرت ابراهيم عليه السلام دَ قلب په صفت دى.

④ بياالله تعالى پنځه كسان داسې مقرركړى دى دَچاقلوب چه دَحضرت جبرائيل عليه السلام دَ قلب په صفت باندې دى.

⑤ بياالله تعالى درې داسې كسان پيداكړى دى دَ چاقلوب چه دَحضرت ميكائيل عليه السلام دَ قلب په صفت دى.

⑥ بيا الله تعالى دې ټولونه يوسړې داسې مقرركړو دَ چاقلب چه دَحضرت اسرافيل عليه السلام دَ قلب په صفت باندې دې. (لكه چه دادَ ټولواميروى)

**د نيابت سلسله:** ①كله چه دَدغه آخرى يوانتقال كيږى نوالله تعالى دَدغه دريودَ جماعت نه يوته ترقى وركولوسره دَ دريو په جماعت كښې بدلى كوى

② اوكله چه دَپنځودَ جماعت نه دَچا انتقال كيږى نوالله تعالى دَ اوو دَ جماعت نه چاته

ترقي ورکولوسره دهغه ځائی بدل کړی.

③ اوکله چه داووه د جماعت نه څوك انتقال شی نو الله تعالی د څلویښتو د جماعت نه یو ته ترقي ورکولوسره دهغه ځائی بدل کړی.

④ اوکله چه د څلویښتو د جماعت نه د چا انتقال کیږی نو الله تعالی د دریو سوو د جماعت نه یو ته ترقي ورکولوسره دهغه ځائی بدل کړی

⑤ اوکله چه د دریو سوو والا د جماعت نه څوك انتقال شی نو الله تعالی د عام اولیاء الله نه چا ته ترقي ورکولوسره دهغه ځائی بدل کړی.

**د ابدالو کلیزه اجتماع:** ابدال سره متعلق د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما حدیث هم دې په دې وجه د دې نه انکار مناسب نه دې. ونیلې شی چه په کال کښې یوځل د دوی اجتماع په حجاز کښې کیږی او دهغوی استاذی د دنیا مختلف مقاماتو کښې د مخلوق خدا په خدمت کښې مقرر کیږی. دا د عام انسانانو په شان انسانان دی خو د دوی یوځان له نظام دې.

**[۶۲۷۸] د دمشق د انتخاب ترغیب**

٦٢٧٨-() [١٣] ① وَعَنْ رَجُلٍ مِنَ الصَّحَابَةِ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② «سَتُفْتَحُ الشَّامُ فَإِذَا خُيِّرْتُمُ الْمَنَازِلَ فِيهَا ③ فَعَلَيْكُمْ بِمَدِينَةٍ يُقَالُ لَهَا دِمَشْقُ ④ فَإِنَّهَا مَعْقِلُ الْمُسْلِمِينَ مِنَ الْمَلَاحِمِ وَفُسْطَاطُهَا ⑤ مِنْهَا أَرْضٌ يُقَالُ لَهَا الْغُوطَةُ». رَوَاهُمَا أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① اصحابو رضی الله عنهم کې یو سړي نه روایت دی رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② هغه زمانه نزدې ده هرکله چې د شام د ملك ښارونو او علاقو کې د کورونو جوړولو او رهائش پذیر کیدو اختیار ورکول شي ③ نو تاسو هغه ښار اختیارول په ځان لازم وګڼئ چې هغه ته دمشق ونیل کیږي ④ ځکه چې دمشق ښار مسلمانانو د پاره د جنګونو نه د پناه ځاي دی او د مشق یو جامع ښار دی ⑤ او د دمشق په زمکو یعنی علاقو کې یوه زمکه او علاقه ده چې هغه ته غوطه ونیل کیږي دا دواړه روایتونه امام احمد نقل کړي دي.

**حل اللغات:-** ① مَعْقِلُ: أَيْ: مَلَاذُهُمْ: د پناه او د حفاظت ځائی (فوجی چهاونړئ، مضبوط او محفوظې قلعه ته وائی). ② الْمَلَاحِمِ: د مَلْحَمَة جمع ده، وَهِيَ الْحَرْبُ: جنګونو او قتال ته وائی. ③ فُسْطَاطُهَا: وَهُوَ الْبَلْدَةُ الْجَامِعَةُ: لوئې ښار، جامع ښار (یعنی مرکزی فوجی چهاونړئ او فوجی کیمپ). ④ الْغُوطَةُ: وَهِيَ اسْمُ الْبَسَاتِينِ وَالْمِيَاهِ الَّتِي عِنْدَ دِمَشْقَ: دمش سره بالکل نیزدې د باغونو او اوبو والا یو ځائی دې کوم ته چه غوطه وائی.

**تسهیلات: قوله:** دِمَشْقُ:

**د دمشق محل وقوع:** په دال باندې زیر او میم باندې زبر دې او شین ساکن دې. بل دا لفظ د دال په زبر او میم په زیر سره هم لوستلې کیږی. دې وخت کښې دا زمکه د شام دارالخلافه ده.

**قوله:** مَعْقِلُ:

**د دنیا څلور نهرونه:** علامه زمخشری رحمه الله لیکلی دی په دنیا کښې څلور جنتونه دی.

① یو غوطه ② دویم نهر ایل دې ③ دریم اشعب کدان ④ څلورم سمرقند دې.

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحدیث ۴۲۹۸ واحمد فی المسند ۴/ ۱۶۰

علامه ابن جوزی رحمه الله فرمائي چه مادا څلورواړه مقامات ليدلي دي په دې کښې دغو ته فوقيت په دغه باقي څلورو باندې داسې دې لکه څنګه چه د دغه څلورو افضليت په باقي دنيا باندې دې

**[٦٢٧٩] خلافت په مدينه کښې او ملوکيت په شام کې**

٦٢٧٩-(١) [٣] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «الْخِلَافَةُ بِالْمَدِينَةِ ② وَالْمُلْكُ بِالشَّامِ».

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل خلافت په مدينه کې دی ② او ملوکيت يعنی بادشاهي په شام کې.

**حل اللغات:-** ① الْخِلَافَةُ: خلافت، بادشاهي (يعنی د دې حقدار). ② الْمُلْكُ: ملوکيت او آمريت (خليفه چه د نبی عليه السلام په منهج باندې وی، او ملوکيت چه په هغې کښې دغه التزام نه وی).

**تسهيلات:**

**قوله:** وَالْمُلْكُ بِالشَّامِ:

**دامير معاويه رضی الله عنه ملوکيت ته اشاره:** د ملك څخه مراد په ظاهره د خلافت نه پس د ملوکيت طرف ته اشاره ده يعنی د حضرت علی رضي الله عنه دور د خلافت دې او د معاويه رضي الله عنه دور د ملوکيت دې. داتشريح عام علماء نه خوښوی بلکه په زير بحث حديث د يويل حديث د وجې نه په آسانئ سره پوهيدلې شي.

**د خلافت استحکام او شام:** خصائص نبوت سره متعلق يوحديث دې چه د حضورپاك د پيدائش ځائي مکه ده او د هجرت ځائي مدينه ده او د هغوی ملك يعنی بادشاهت شام دې. مطلب دا چه د حضورپاك نبوت خو په مدينه کښې دې ليکن د نبوت مضبوطيا او د هغې استحکام په شام کښې دې چه د جهاد مرکزيه په شام کښې وی په کوم سره چه به د مدينې د نبوت حفاظت کيږی. نولکه چه د ملك نه مراد ملوکيت نه دې بلکه استحکام او مضبوطيا مراد ده. دې ورسره حديث کښې هم د نبوت عموميت او خوررولو طرف ته اشاره ده.

**[٦٢٨٠] د شام فضيلت**

٦٢٨٠-(٢) [٤] ① وَعَنْ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «رَأَيْتُ عَمُودًا مِنْ نُورٍ خَرَجَ مِنْ تَحْتِ رَأْسِي سَاطِعًا ③ حَتَّى اسْتَقَرَّ بِالشَّامِ» رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمر رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ② ما په خوب کې وليدل چې د نور يوه ستن څما د سر د لاندې نه راپورته شوه ③ او بيا ملك شام ته تلو سره نصب شوه دا دواړه روايتونه بيهقي دلائل النبوت کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ① عَمُودًا: أي: اسْطُوَانَةً: ستن. ② سَاطِعًا: أي: رَافِعًا: راپورته شو (دا د نور ستن راپورته شوه او د دې رڼا اثر د دنيا په اطرافو کښې خورشو). ③ اسْتَقَرَّ: أي: تَمَّتْ: قرار ئې بيا موندلو، قائم پاتې شو.

---

[١] ) اخرجه البيهقی فی دلائل النبوة رقم الحديث ٦/ ٤٤٧

[٢] اخرجه احمد فی المسند : والبيهقی فی دلائل النبوة رقم الحديث ٦/ ٤٤٩

**تسهیلات:**

**قوله**: رَأَيْتُ عَمُودًا مِنْ نُورٍ:

**د نور نبوت شام ته رسیدل**: دنور ستن، هم هغه نورنبوت او نورهدایت دي. چه تیزئی سره به خور شي اوشام ته به رسیدوباندې به قرار بیاموميږ. دا حدیث د هغه حدیث هم تائیددې چه د ولادت په وخت حضرت آمنه یونور لیدلې وو په کوم سره چه دشام محلات روښانه شوي وو.

**[٦٢٨١] د دمشق د ښار غوره والي**

٦٢٨١ــ(١) [٣] ١ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ «إِنَّ فُسْطَاطَ الْمُسْلِمِينَ يَوْمَ الْمَلْحَمَةِ بِالْغُوطَةِ ٣ إِلَى جَانِبِ مَدِينَةٍ يُقَالُ لَهَا دِمَشْقُ مِنْ خَيْرِ مَدَائِنِ الشَّامِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ١ او حضرت ابودرداء رضی الله عنه روایت کوي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ٢ د دجال خلاف فوجي کار وايي او جنګ وجدال په ورځو کې د مسلمانانو د جمع کیدو ځاي غوطه دی ٣ چې د شام د هغه ښار نواحي علاقه ده چې هغه ته دمشق وئیل کیږي او دمشق د شام د ښارونو نه ښه ښار دی. (ابوداؤد)

**حل اللغات:**- ① فُسْطَاطُ: أَيْ: مَكَانَ الْفِئَةِ: د لوئې جماعت ښار (یعنی مرکزی فوجی چهاونړئی اوفوجی کیمپ). ② يَوْمَ الْمَلْحَمَةِ: دمسلمانانو د جمع کیدو ورځ. ③ الْغُوطَةِ: وَهِيَ اسْمُ الْبَسَاتِينِ وَالْمِيَاهِ الَّتِي عِنْدَ دِمَشْقَ: دمش سره بالکل نیزدې د باغونو او اوبو والایوځائی دې کوم ته چه غوطه وائی.

**تسهیلات:**

**قوله**: فُسْطَاطَ الْمُسْلِمِينَ:

**د فسطاط المسلمین وضاحت**: یعنی مرکزی فوجی چهاونړئی اوفوجی کیمپ دملحمة الکبری دقیام په وخت به په غوطه کښې وی. خو په یوروایت کښې ددمشق ذکردې کوم نه چه تضاد معلومیږي. لیکن داخبره معلومیږي چه غوطه ددمشق نه چاپیره د زرخیز باغونو نوم دې لکه چه غوطه په دمشق کښې دننه ده اوس تضادپاتې نه شو.

**[٦٢٨٢] په دمشق ښار دعجمی حکمران عدم غلبه**

٦٢٨٢ــ(٢) [١٤] ١ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سُلَيْمَانَ قَالَ: «سَيَأْتِي مَلِكٌ مِنْ مُلُوكِ الْعَجَمِ ٢ فَيَظْهَرُ عَلَى الْمَدَائِنِ كُلِّهَا إِلَّا دِمَشْقَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ١ او حضرت عبد الرحمن بن سلیمان تابعي رحمه الله نه منقول دی هغه اوویل هغه زمانه راتلونکې ده هرکله چې د عجم حکمرانانو نه به یوحکمران حمله وکړي ٢ هغه به ټول ښارونو باندې غلبه حاصله کړي ماسوا د شام ښار دمشق څخه. (ابوداؤد)

---

[1]) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحدیث ٤٢٩٨

[2]) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحدیث ٤٦٣٩

**تسهیلات:**

**قوله:** مِنْ مُلُوكِ الْعَجَمِ:

**د ملک (بادشاه) مصداق:** دَدې بادشاه تعین اونه کړې شو چه دابه څوك وی. په وقائع روزګار کښې به یوه واقعه وی دکوم دَ ظهورنه پس چه به معلومه شی چه دَحدیث دا مخفی اشاره څومره واضح فرمان وو.

# [۲۴] باب ثواب هذه الامة

## دَدې امت دَفضیلت بیان

| خلاصة الباب: |
|---|
| **فيه إثنا عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:** |
| ① كثرة ثواب الأمة المحمدية مع قلة الأجل: ١- |
| ② مدح بعض أفراد الأمة المحمدية بعد النبى صلى الله عليه وسلم: ٢، ٤، ٥، ٧، ٨، ٩- |
| ③ قيام الطائفة من الأمة المحمدية بأمر الله تعالى: ٣، ١٠- |
| ④ خصوصية الأمة المحمدية: ١١- |
| ⑤ ذكر الفرق في الأمة المحمدية: ١٢- |

**د امت دوه قسمونه او د هغې تعریف:**

① **امت اجابت:** دا هغه دې چاچه دین اسلام قبول کړې دې اودَ حضورپاك په طریقو باندې دَتللو التزام ئی کړې دې. علماء امت لیکلی دی چه اهل بدعت دَامت اجابت نه خارج دی څکه چه هغوی خو سره دَدې چه دین اسلام منلې دې لیکن دَدې متابعت ئی نه دې کړې بلکه نوی نوی بدعتونه ئی جوړکړی دی. لکه آغا خانی، قادیانی، روافض، اوبعضې بریلیان، منکرین حدیث، ذکری، بهائی اومعتزله خوارج دی. دَدې باطلو فرقو خلق په امت اجابت کښې نه دی بلکه په امت دعوت کښې شمیر دی.

② **امت دعوت:** دا هغه دې چه دین اسلام ئی نه دې قبول کړې لهذا دوی ته به دَدین دعوت ورکولې شی ګنی دوی سره به جنګ کیږی. دَاسلام دَدعوت ترتیب داسې دې چه اول کافرانوته دَاسلام دعوت ورکړې شی که چرې هغوی قبول نه کړو نو بیابه دَ جزیه دعوت ورکولې شی ګنی دَ جنګ اعلان به کولې شی.

**قوله:** ثواب:

**د ثواب څخه مراد:** دلته په عنوان کښې ثواب هذه الامة لفظ دې مګر وړاندې احادیثو کښې دَ ثواب په ځائی دَدې امت دَ فضائلو بیان کړې شوې دې لهذا دلته به دَ ثواب نه فضیلت اخستلې کیږی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۶۲۸۳] وخت کم او ثواب زیات**

۶۲۸۳-(۱) [۱] ۱ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ «إِنَّمَا أَجَلُكُمْ فِي أَجَلِ مَنْ خَلَا مِنَ الْأُمَمِ مَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعَصْرِ إِلَى مَغْرِبِ الشَّمْسِ، ۳ وَإِنَّمَا مَثَلُكُمْ وَمَثَلُ الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى كَرَجُلٍ اسْتَعْمَلَ عُمَّالًا ۴ فَقَالَ: مَنْ يَعْمَلُ لِي إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ ۵ فَعَمِلَتِ الْيَهُودُ إِلَى نِصْفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ،

**ترجمه:** ۱ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ نه روایت کوي چې حضور ﷺ مونږ مسلمانان مخاطب کولو سره وفرمایل ۲ د نورو امتونو د خلقو په مقابله کې ستاسو د ژوند موده دومره ده څومره چې د ټولي دنیا په مقابله کې د مازیګر د ما نځه نه وروسته د نمر غرق یدو پورې درمیاني وخت ۳ دي نه علاوه الله ﷻ رب العزت سره ستاسو معامله او د یهودو او نصارٰی وو معامله داسې ده څرنګه چې یو سړی په اجرت کار کولو د پاره څه مزدوران طلب کړي ۴ او هغوئ ته اووائي څوك شته چې غرمې پورې ځما کار وکړي او زه به دومره وخت د کار کولو د اجرت په طور هرسړي ته یو یو قیراط ورکړم ۵ نو هغه اجرت منظورولو سره یهودو غرمې پورې یو یو قیراط باندې کار وکی

**حل اللغات:-** ① أَجَلُكُمْ: أَيْ: مُدَّةُ الْحَيَاةِ: ستاسو د ژوند موده اونیته یعنی مقرر ژوند ② خَلَا: أَيْ: فِي جَنْبِ آجَالِ مَنْ مَضَى: یعنی دمخکینو تیرو شوو امتونو په نسبت. ③ اسْتَعْمَلَ: أَيْ: طَلَبَ مِنْهُمُ الْعَمَلَ: دکار کولو دپاره مزدور اونیولو. ④ عُمَّالًا: د عَامِل جمع ده، محنت مزدوری کونکی ته وائی. ⑤ قِيرَاطٍ: د دینار شلمې حصې ته وائی (دلته تکرار دې طرف ته اشاره ده چه هریو کس ته به خان خانله قیراط ملاویږی).

۱ ثُمَّ قَالَ: مَنْ يَعْمَلُ لِي مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ إِلَى صَلَاةِ الْعَصْرِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ ۲ فَعَمِلَتِ النَّصَارَى مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ إِلَى صَلَاةِ الْعَصْرِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ، ۳ ثُمَّ قَالَ: مَنْ يَعْمَلُ لِي مِنْ صَلَاةِ الْعَصْرِ إِلَى مَغْرِبِ الشَّمْسِ عَلَى قِيرَاطَيْنِ قِيرَاطَيْنِ ۴ أَلَا فَأَنْتُمُ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ مِنْ صَلَاةِ الْعَصْرِ إِلَى مَغْرِبِ الشَّمْسِ ۵ أَلَا لَكُمُ الْأَجْرُ مَرَّتَيْنِ فَغَضِبَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى،

**ترجمه:** ۱ بیا هغه سړي اوویل څوك شته چې غرمې نه مازیګره پورې ځما کار وکړي او زه به هرسړي ته یو یو قیراط ورکړم ۲ نو یهودو نه وروسته د حضرت عیسٰی منونکو خلقو (یعنی نصارٰی) غرمې نه مازیګره پورې یو یو قیراط باندې کار وکی ۳ او بیا هغه سړي اوویل څوك شته چې مازیګر نه وروسته ماښام پورې ځما کار وکړي او زه به هرسړي ته دوه دوه قیراطه ورکړم ۴ دي نه وروسته حضور ﷺ وفرمایل پوهه شئ دي مثال کې تاسو هغه خلق یي چې مازیګر نه نمر لویدو پورې کار کونکي یي ۵ یادلرئ ستاسو اجر دوچنده دی او په دې وجه چې ستاسو د کار موده خو کمه ده لیکن مستحق د دوچنده اجر ګرځول شوي یي نو په دې باندې یهود او نصارٰی په غوصه شول

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب إذا خاصم فجر (رقم-۲۴۵۹) واحمد فی المسند: ۱۷۱/۲

۱ فَقَالُوا: نَحْنُ أَكْثَرُ عَمَلًا وَأَقَلُّ عَطَاءً، ۲ قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى: فَهَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِنْ حَقِّكُمْ شَيْئًا؟ قَالُوا: لَا. ۳ قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى: فَإِنَّهُ فَضْلِي أُعْطِيهِ مَنْ شِئْتُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ۱ او هغو يهود او نصارى وو اوويل د عمل د اعتبار نه خو مونږ زيات شو ليكن اجر وثواب كې زمونږ حصه ډيره كمه ده ۲ الله ﷻ هغوئ ته جواب وركړو آيا ما تاسو سره څه ظلم كړى دى؛ يعنى ستاسو چې كوم اجرت مې مقرر كړى وو او تاسو ته د څه وركولو وعده مې كړې وه آيا په هغه كې مې څه كمى كړى دى، يهود او نصارى وو اوويل زمونږ په حق كې خو تاڅه كمى نه دى كړى او ستا د طرف نه دا تفاوت او تفريق څرنګه دى ۳ پروردګار وفرمايل حقيقت دادى چې دا زيات اجر وركول خما فضل او احسان دى چاته چې غوارم زيات وركوم زه فاعل مختار يم څه چې غوارم كوم يې. (بخاري)

**حل اللغات:** -۶ أَكْثَرُ عَمَلًا: زيات عمل او محنت كونكى، ۷ أَقَلُّ عَطَاءً: لږه بدله او لږ اجر او ثواب ملاويدونكى، ۸ فَضْلِي: يعنى دا زما فضل او احسان دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّمَا أَجَلُكُمْ فِي أَجَلِ مَنْ خَلَا مِنَ الْأُمَمِ مَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعَصْرِ إِلَى مَغْرِبِ الشَّمْسِ:

**عمر كم او ثواب زيات:** ددې امت عمر كم دې ليكن په يو نيكئى باندې لس اودې نه هم د زياتو وعده ده. دې امت ته ليلة القدر وركړې شوې ده په كوم سره چه د عمرونو كمې لرې كيږى دوى سره د عباداتو او طاعاتو ميدان ډير وسيع دې. ددوى عمل كم مګر ثواب زيات دې دغه شان دا كم خرچ او بالانشين امت دې.

**دامت محمدى او سابقه امتونو د عمرونو نسبت:** يعنى ستاسو مرګ او مقرر ژوند دمخكښې خلقو په نسبت دومره كم دې څومره وخت چه د مازيګر نه د مابنام پورې دې. په سابقه امتونو كښې د يهوديانو عمر لكه چه د سحرنه واخله تر ماسپښين پورې او د عيسايانو د ماسپښين نه تر مازيګره پورې اوږد وو. ستاسو عمر لكه چه د مازيګر نه تر مابنام پورې مختصر دې مګر په معنوى اعتبار سره دا ډير كامياب عمر دې په دې شرط چه څوك ددې قدر اوكړى.

**[٦٢٨٤] دراتلونكو امتيانو يو فضيلت**

٦٢٨٤-(١)[۲] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ «إِنَّ مِنْ أَشَدِّ أُمَّتِي لِي حُبًّا نَاسٌ يَكُونُونَ بَعْدِي ۳ يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ رَآنِي بِأَهْلِهِ وَمَالِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل ۲ حقيقت خو دادى چې خما په امت كې ما سره ډير زيات محبت ساتونكى هغه خلق دي چې خما د وفات نه وروسته به پيدا كيږي ۳ هغوئ كې به څوك دا ارزو كوي چې آر مان هغوئ ما ويني او خپل اهل وعيال او اثاثه هرڅه په ما قربان كړي (مسلم)

**حل اللغات:** - ۱ يَوَدُّ: أَيْ: يَتَمَنَّى: خوښوى به، خواهش او آرزو به لرى.

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الجنة وصفة نعيمها وأهلها/باب فيمن يود رؤية النبى صلى الله عليه وسلم باهله وماله (رقم-١٢ - (٢٨٣٢)) واحمد فى المسند:٤١٧/٢

**تسهيلات:**

**قوله:** لَوْرَآنِي بِأَهْلِهِ وَمَالِهِ:

يعني په راتلونکو خلقو کښې څه داسې عاشقان هم دی چه دځان اومال بازی لګولو کښې ماته په کتلو کښې به زما زیارت ته ترجیح ورکوی. ددې حدیث توضیح اوتشریح مخکښې شوې ده

**[٦٢٨٥] ترقیامته پورې د هدایت یافته ولې پیشنګونی**

٦٢٨٥-()[٣] ① وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ② «لَا يَزَالُ مِنْ أُمَّتِي أُمَّةٌ قَائِمَةٌ بِأَمْرِ اللَّهِ ③ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ وَلَا مَنْ خَالَفَهُمْ ④ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ عَلَى ذَلِكَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَذُكِرَ حَدِيثُ أَنَسٍ إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللَّهِ فِي كِتَابِ الْقِصَاصِ.

**ترجمه:** ① او حضرت معاویه رضی الله عنه وایي ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل ② څما په امت کې به یوه ډله همیشه داسې وي چې د الله جل جلاله په حکم به قائمه وي ③ د دې ډلې دیني او جماعتي نظم او معاملاتو ته به نه هغه سړی نقصان رسولی شي چې د هغه تائید او اعانت یې ترک کړی وي او نه هغه سړی ورته ضرر رسولی شي چې د موافقت په ځای د هغه مخالفت باندې کلک ولاړ وي ④ ددې پورې چې د الله حکم راورسي او هغه به خپله دې لاره یعنی د احکام خداوندي اطاعت او د دین خدمت او اعانت باندې قائم وي. (بخاري مسلم) او د حضرت انس رضی الله عنه روایت کرده حدیث: ان من عباد الله لواقسم على الله لابره کتاب القصاص کې نقل شوي دي.

**حل اللغات:-** ① خَذَلَهُمْ: أَيْ: مَنْ تَرَكَ عَوْنَهُمْ: چه دهغه مدد او مرسته ئې پریښودې وی. ② أَمْرُ اللَّهِ: أَيْ: مَوْتُهُمْ: دالله دحکم نه مراد د سړی مرګ او اجل دې یعنی مرګ ورته راشی.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَزَالُ مِنْ أُمَّتِي أُمَّةٌ قَائِمَةٌ بِأَمْرِ اللَّهِ

④ وَقَالَ التُّورِبِشْتِيُّ: الْأُمَّةُ الْقَائِمَةُ بِأَمْرِ اللَّهِ وَإِنِ اخْتُلِفَ فِيهَا فَإِنَّ الْمُعْتَدَّ بِهِ مِنَ الْأَقَاوِيلِ أَنَّهَا الْفِئَةُ الْمُرَابِطَةُ بِثُغُورِ الشَّامِ نَضَّرَ اللَّهُ بِهِمْ وَجْهَ الْإِسْلَامِ، لِمَا فِي بَعْضِ طُرُقِ هَذَا الْحَدِيثِ وَهُمْ بِالشَّامِ، وَفِي بَعْضِهَا حَتَّى تُقَاتِلَ آخِرُهُمُ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ، وَفِي بَعْضِهَا قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَأَيْنَ هُمْ؟ قَالَ: "بِبَيْتِ الْمَقْدِسِ".

**دامة قائمه په مصداق کښې څلور اقوال:**

① د امة قائمه څخه مراد هغه خلق دی چې د دین د اقامت دپاره د قرآن اوحدیث په خدمت کښې مشغول وی یعنی عالمان.

② دا هغه خلق دی چې په دین اسلام باندې قائم ولاړ وی. د زماني انقلابات او حوادث د هغوی په ایمان کښې تزلزل نشی راوستې.

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب المناقب/باب (رقم-٣٦٤١) ومسلم في كتاب الإمارة/باب قوله صلى الله عليه وسلم: «لا تزال طائفة من أمتي ظاهرين على الحق لا يضرهم من خالفهم» (رقم-١٧٤ - (١٠٣٧)

③ ددې څخه څه مخصوص ډله مراد نه ده بلکه مجموعی طور به په ټوله دنیا کښې دین اسلام باندې یوه ډله قائمه ولاړه وی که په یو ملک کښې مسلمانان کمزوری شی نو په بل کښې به غالب وی او د خپل دین څخه به خبر وی لکه په اسلامی تاریخ کښې د خلفاء راشدینو په زمانه کښې دین اسلام په حجاز کښې غالب وو اودا د دین اسلام مرکز وو بیا د بنو عباس په دور کښې بغداد د علم او د دنیاری مرکز وو بیا بخارا او سمرقند د علم مرکز وو بیا په څه وخت کښې مصرد علم مرکز وو اواوس الحمد لله په برصغیرپه پاکستان کښې علم اوقوت زیات دی په ټولو اسلامی ملکونو کښې واحد پاکستان ایټمی طاقت دی او ددې څخه روسته داسې ښکاری چې د ۲۰۲۳ څخه روسته ترکی په دنیا کښې طاقتور ملک شی الله تعالی دې اردګان ته عمرداز وی کوم چې په موجوده وخت کښې د دوی صدر دې.

④ علامه توریشتی فرمائی چې ددې څخه د شام علاقه مراد ده چې په شام کښې به یوه ډله همیشه دپاره په دین اسلام باندې قائمه ولاړه وی اګرچې په څه وخت کښې کمزورې شی نو بیا به هم دوی خپل کار نه پریږدی ځکه چې د شام په باره کښې په کثرت سره احادیث راغلی دی چې د الله تعالی نیکان بندګان به په شام کښې وی (مرقاة)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۶۲۸۶] د امت محمدي مثال

۶۲۸۶-( ) [۳] ①عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "②«مَثَلُ أُمَّتِي مَثَلُ الْمَطَرِ لَا يُدْرَى أَوَّلُهُ خَيْرٌ أَمْ آخِرُهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

**ترجمه:** ① حضرت انس رضي الله عنه بیان کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل ② څما د امت حال د باران د حال په شان دی د هغه په باره کې معلومه نه ده چې د هغه اول ښه دی یا د هغه آخر ښه دی (ترمذي)

**تسهیلات:**

**نوټ:** دې نه مخکښې حدیث نمبر (۶۲۸۳) تشریح اوتوضیح کښې ددې حدیث تشریح هم شوې ده هغه یو بهتر کلام دې هغه بار بار وښیل پکار دی.

**قوله:** لَا يُدْرَى أَوَّلُهُ خَيْرٌ أَمْ آخِرُهُ

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① په زیر بحث حدیث کښې دَ راتلونکو خلقو افضیلت په صحابه کرامو باندې نه دې ورکړې شوې بلکه دَ اول دور دَ خوبیانو په شان د دویم دور او دریم خوبیانې او نیکنی بیان کړې شوی دی لهذا په دې حدیث کښې چه کوم دَ خیر صیغه استعمال کړې شوې ده دادَ اسم تفضیل دپاره نه ده بلکه دَ دغه تفضیل نفس فعل په معنی کښې استعمال شوې ده کله "الصَّيْفُ أَحَرُّ مِنَ الشِّتَاءِ. وَالْعَسَلُ أَحْلَى مِنَ الْخَلِّ"

② دَخیر صیغه هم د اسم تفضیل په معنی کښې استعمال کړې شی په دې اعتبار چه دَ اول

[1] اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۲۸۶۹

دور ښيګړه او افضليت يو جدا حيثيت دې او د دويم دور او دريم افضليت جدا حيثيت او جدا اعتبار دې لکه څنګه چه د حديث نمبر (۳۸۳) په وضاحت کښې تفصيل سره ليکلې شوی دی.

**د حديث مفهوم:** خلاصه دا چه حضور پاك د امت محمديه ښيګړه او نيکی عام خودلې ده چه دا داسې غوره امت دې چه د دې هر طرف په خير او ښيګړه باندې مشتمل دې. د دې اول او آخر ټول برابر دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۶۲۸۷] د امت محمدي دوه مثالونه

۶۲۸۷-(¹)[٥] ١ عَنْ جَعْفَرٍ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ «أَبْشِرُوا وَأَبْشِرُوا إِنَّمَا مَثَلُ أُمَّتِي مَثَلُ الْغَيْثِ لَا يُدْرَى آخِرُهُ خَيْرٌ أَمْ أَوَّلُهُ ٣ أَوْ كَحَدِيقَةٍ أُطْعِمَ مِنْهَا فَوْجٌ عَامًا ثُمَّ أُطْعِمَ مِنْهَا فَوْجٌ عَامًا لَعَلَّ آخِرَهَا فَوْجًا أَنْ يَكُونَ أَعْرَضَهَا وَأَعْمَقَهَا عُمْقًا وَأَحْسَنَهَا حُسْنًا ٤ كَيْفَ تَهْلِكُ أُمَّةٌ أَنَا أَوَّلُهَا وَالْمَهْدِيُّ وَسَطُهَا وَالْمَسِيحُ آخِرُهَا ٥ وَلَكِنْ بَيْنَ ذَلِكَ فَيْجٌ أَعْوَجُ لَيْسُوا مِنِّي وَلَا أَنَا مِنْهُمْ». رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت امام جعفر صادق رحمه الله خپل پلار حضرت امام باقر رحمه الله نه او هغه د امام جعفر د نيکه دادا يعنی خپل والد امام زين العابدين بن علي بن حسين بن علي رضي الله عنه نه روايت کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ٢ خوشحاله شئ او خوشحاله شئ خبره داده چې څما د امت اجابت د افرادو حال د حصول منفعت د اعتبار نه د باران د حال په شان دی د هغه په باره کې معلومه نه ده چې د هغه آخر ښه دی يا د هغه اول ښه دی ٣ يا څما د امت مثال د يو باغ په شان دی چې د هغه څه حصو نه يو کال يو جماعت وخوړلي (يعنی نفع يې خنې واخستله) او د هغه څه حصې نه په دويم کال يو بل جماعت وخوړلي شايد چې د مخکنې جماعت په مقابله کې وروستنې جماعت په طول وعرض کې زيات وي او په خوبيو کې هم د هغه نه ښه وي ٤ نو هغه امت دې ولې نيست ونابود شي چې د هغه اول کې زه يم د هغه په منځ کې مهدي وي او د هغه په آخر کې مسيح عيسي وي ٥ هو د دې زمانو په منځ کې يو کج رو يعنی ګمراه جماعت به پيدا شي د هغه جماعت خلق به څما په لاره او طريقه تلونکي نه وي او څما د متبعينو پيروکارو نه به نه وي او نه زه د هغوئ نه يم (يعنی زه به هغوئ نه راضي او د هغوئ حامي او مدد ګار نه يم بلکه د هغوئ د سر کشي او فسق په سبب هغوئ نه د خپلي ناراضګي او بيزاري اظهار کوم. (رزين)

**حل اللغات:** - ① الْغَيْثِ: أَيْ: الْمَطَرُ: باران ② أُطْعِمَ: د مجهول صيغه ده، أَيْ انْتَفَعَ: فائده ئې تري واخسته يعنی څه خوراک ئې تري اوکړو ③ فَوْجٌ: أَيْ: جَمْعٌ: يوې ډلې، جماعت، ④ عَامًا: أَيْ سَنَةً: کال ⑤ أَعْرَضَهَا: پلنوالی ته واني ⑥ أَعْمَقَهَا عُمْقًا: اوږدوالی او ژور والی ته واني (د پلن والی او ژوروالی نه مراد زياتوالي دې) ⑦ أَحْسَنَهَا حُسْنًا: په صفاتو او خوبيانو کښې بهتر وی ⑧ فَيْجٌ: دا مفرد دې د دې

---

¹ رواه رزين

جمع أَفْوَاج او فُيُوج ده. أَيْ فَوْج: فوج ته وائي (ددې نه مراد جماعت دې). ⑨أَعْوَجُ: د کوږ په معنی کښې دې (ددې نه مراد ګمراه او سرکشه خلق دی).

**تسهيلات:**

**قوله:** مَثَلُ الْغَيْثِ لَا يُدْرَى آخِرُهُ خَيْرٌ أَمْ أَوَّلُهُ:

**باران سره دامت تشبيه:** رومبي مثال کښې دَامت تشبيه باران سره ورکړې شوې ده چه داامت دَنورو خلقودَ پاره په علم اوعرفان، هدايت خدمت اورهنمائي کښې دَ باران په شان نافع اوفائده رسونکې دې.

**قوله:** أَوْ كَحَدِيقَةٍ أُطْعِمَ مِنْهَا فَوْجٌ عَامًا ثُمَّ أُطْعِمَ مِنْهَا فَوْجٌ عَامًا:

**ميوه دارباغ سره د امت تشبيه:** په دويم مثال کښې دَدې امت تشبيه ميوه دار باغ سره ورکړې شوې دې دکوم ميوې چه عام خلق خوري.

دغه شان دا امت دې چه د دې صفات اوکمالات اوهداياتونه خلق عام فائدې اوچتوی لکه چه دا امت دَانسانانودَپاره دَدنيا اوآخرت دواړو نافع دې. پخپله هم نفع رسوی اوعام خلق هم دې نه فائدې اوچتوی

**قوله:** أَنْ يَكُونَ أَعْرَضَهَا وَأَعْمَقَهَا عُمْقًا:

**د عمق او طول سره موصوف کولوفائده:** په دې حديث کښې امت ته عمق او طول اوعرض سره په دې وجه متصف کړو کله چه دې له باغ سره تشبيه ورکړې شوه. نودَباغ په صفات کښې طول عرض اوعمق وې نودَدې ذکر ضروري شو.

**قوله:** وَلَكِنْ بَيْنَ ذَلِكَ فَيْجٌ أَعْوَجُ لَيْسُوا مِنِّي وَلَا أَنَا مِنْهُمْ:

**د ګمراه ډلې پيشنګوئي:** بهرحال تردې پورې خو په دې حديث کښې دَدې امت ښيګړه خوبي او افضليت بيان کړې شو. مګرددې حديث په مينځ کښې استدراك سره دَځه خلقوګمراهي اوکوګوالي طرف ته اشاره کړې شوې ده.

**د ګمراه ډلې مصداق:** دلته دَدې نه جماعت مراددې يعنی په مينځ کښې يوکوګ ګمراه جماعت راځي دکوم چه ما سره هيڅ تعلق نشته دې لکه معتزله خوارج مرجئه اودَهغوی منونکي دی.

### [۶۲۸۸] دايمان بالغيب په اعتبارسره غوره امت

۶۲۸۸–(۱) [۶] ①وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②«أَيُّ الْخَلْقِ أَعْجَبُ إِلَيْكُمْ إِيمَانًا؟ قَالُوا: الْمَلَائِكَةُ. ③قَالَ: وَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ وَهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ؟ قَالُوا: فَالنَّبِيُّونَ. ④قَالَ: وَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ وَالْوَحْيُ يَنْزِلُ عَلَيْهِمْ؟ قَالُوا: فَنَحْنُ. قَالَ: وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُونَ وَأَنَا بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او هغه د خپل نيکه دادا نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ يوه ورځ صحابه ؓ نه پوښتنه وکړه ②چې او ښايي د ايمان د اعتبار نه تاسو مخلوق کې څوك زيات خوښوي ( يعنی د الله مخلوقاتو کې د کوم مخلوق

[1] ) اخرجه البيهقی فی دلائل النبوة رقم الحديث ۶/ ۵۳۸

ایمان تاسو ډیر ښه او قوي ګڼئ؛ صحابه جواب ورکړو مونږ خو د فرشتو ایمان ډیر ښه او قوي ګڼو ۳ حضور ﷺ وفرمايل د فرشتو په ايمان کې څه عجيبه والي دی هغوئ خو خپل پروردګار سره اوسيږي يعنی فرشتې خو مقرب بارګاه خداوندي دی (او د عالم جبروت عجائب او غرائب هر وخت مشاهده کوي که د هغوئ ايمان قوي دی نو په دې کې څه عجيبه غريبه خبره ده) هغه اصحابو ﷺ يانورو اصحابو ﷺ عرض وکړو نو بيا هغه پيغمبران دي (چې زمونږ په نزد د هغوئ ايمان ډير ښه او قوي دی) ۴ حضور ﷺ وفرمايل بلاشبه هغوئ به د شك اوشبهي نه لري او د قوي تر ايمان حامل وي آسمان نه وحي نازليدو سره په هغوئ راځي اوس صحابه ؤ ﷺ اوويل نو بيا مونږ خلق يو چې ستاسو صحابه يو ۵ رسول الله ﷺ وفرمايل ستاسو په ايمان کې څه عجيبه والی دی هرکله چې ستاسو په منځ کې زه موجود يم

**حل اللغات:-** ① أَعْجَبُ: أَيْ: أَغْرَبُ: عجيبه او نا آشنا (يعنی خوښ خلق). ② بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ: أَيْ: فِيمَا بَيْنَكُمْ: يعنی په تاسو کښې،

> ۱ قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: إِنَّ أَعْجَبَ الْخَلْقِ إِلَيَّ إِيمَانًا لَقَوْمٌ يَكُونُونَ مِنْ بَعْدِي ۲ يَجِدُونَ صُحُفًا فِيهَا كِتَابٌ يُؤْمِنُونَ بِمَا فِيهَا».

**ترجمه:** ۱ راوي وايي دي نه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل حقيقت دادی چې ځما په نزد د ايمان د اعتبار نه دټول مخلوق نه ډير ښه خلق هغه دي چې ځماد زمانه حيات نه وروسته پيدا شي( يعنی تابعين او د هغوئ اتباع کونکي چې نسل درنسل به ترقيامته پورې دنيا ته راځي ) ۲ هغه خلق به د دين مجموعه مصحف يعنی قرآن کريم بيا مومي او په هغه کې چې څه مذکور دي په ټولو باندې به ايمان راوړي.

**حل اللغات:-** ③ صُحُفًا: د صَحِيفَة جمع ده، أَيْ: مَصَاحِفَ: د کتاب اجزاء او حصې مثلا سيپارې (ددې نه مراد قرآن دې). ④ كِتَابٌ: أَيْ: مَكْتُوبٌ: يعنی ليکلې شوی به وی (په هغې کښې د الله تعالی دطرفه).

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَنَا بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ:

**د نزول وحی مشاهده:** يعني زه ستاسو په مينځ کښې موجود يم اوتاسو په ما باندې دَ وحی نازليدو مشاهده کوئی. دَ نبوت نښې او معجزې ګورئی اودغه شان اوامر او نواهی هم ګورئی اوپه خپلو سترګو باندې مشاهده کولو نه پس ستاسودَ پاره دَ شك اوتردد هيڅ موقع نشته.

**قوله:** إِنَّ أَعْجَبَ الْخَلْقِ إِلَيَّ إِيمَانًا:

**قابل تعريف امت:** يعنی دَ هغه خلقو ايمان راوړل به په غيبو وی. هغوی نه نبی ليدلی اونه ئی دَ نبی صحبت په ذريعه دَ حق دَ انوارو مشاهده کړې اونه ئی څه معجزه ليدلې هغوی چه به دَ خپلو مشرانو نه دَاخبار او آثار په صورت کښې چه څه هم اوری هم په هغې باندې به يقين او باور کوی او په خدائی او دَ خدائی په رسول اودَ خدائی په کتاب به ايمان راوړی.

او په دغه ایمان باندې به په مضبوطیا سره قائم وی. هم په دې وجه دهغوی ایمان لره افضل او خوښ کړې شوې ګرځولې شوې دې. لکه چه په دې کښې د ایمان بالغیب تعریف او تحسین فرمائیلې شوې دې.

**[۶۲۸۹] دآخری زمانی دغوره ډلې درې صفات**

۶۲۸۹-(۱) [۷] ۱ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْعَلَاءِ الْحَضْرَمِيِّ قَالَ: حَدَّثَنِي مَنْ سَمِعَ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ۲ يَقُولُ: «إِنَّهُ سَيَكُونُ فِي آخِرِ هٰذِهِ الْأُمَّةِ قَوْمٌ لَهُمْ مِثْلُ أَجْرِ أَوَّلِهِمْ ۳ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُقَاتِلُونَ أَهْلَ الْفِتَنِ» رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت عبد الرحمن بن علاء حضرمي رحمه الله وايي ماته هغه سړي داحديث بيان کی چی هغه د رسول الله ﷺ اوريدلی وو ۲ حضور ﷺ وفرمايل حقيقت دادی چې هغه زمانه راتلونکې ده هرکله چې د دې امت آخري دور کې به يوجماعت پيدا شي چې د هغه ثواب به د دې امت د ابتدائي دورد خلقو يعنی صحابه ؤ رضی الله عنهم د ثواب په شان وي ۳ د هغه جماعت خلق به مخلوق خدائه د هغه شرعي امورو تلقين او تبليغ کوي چې د هغه وجود په دين کې بيا موميدی شي او هغه خبرو نه د منع کولو کوشش به کوي کوم چې خلاف شرع دي او د کوم چې دين سره څه واسطه او تعلق نشته او هغه خلق به فتنه خورونکو يعنی اسلام او مسلمانانو نه منحرف کيدونکو خارجيانو رافضيانو او ټولو بدعتيانو سره جنګيږي (خواه د اسلحي او طاقت په ذريعه خواه د ژبي او قلم په ذريعه) دا دواړه روايتونه بيهقي دلائل النبوت کې نقل کړی دی.

**حل اللغات:-** ① مِثْلُ أَجْرِ أَوَّلِهِمْ: د دې امت د ابتدائی دورد خلقو يعنی صحابه ؤ رضی الله عنهم د ثواب په شان ثواب به ورته ورکولې شی. ② أَهْلَ الْفِتَنِ: فتنه اوفساد خورونکی خلق (ددې نه باغيان، خوارج او روافض وغيره ټول اهل بدعت مراد دی).

**تسهيلات:**

**قوله:** وَيُقَاتِلُونَ أَهْلَ الْفِتَنِ:

**د حديث مصداق:** حضورپاك ددې حديث په مصداق کښې داسې خلقو نښاندهی فرمائيلې ده چه په دين حق باندې به قائم وی اوداهل باطل به په نره مقابله کوی بلکه هغوی سره به جنګ کوی. اوس ښکاره خبره ده چه باطل سره جنګ کونکی مجاهدين دی نوددې حديث رومبی مصداق مجاهدين دی دې نه پس چه څوك وی نو وی به.

**[۶۲۹۰] په ناديده د ايمان راوړلو فضيلت**

۶۲۹۰-(۲) [۸] ۱ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ۲ «طُوبَى لِمَنْ رَآنِي ۳ وَطُوبَى سَبْعَ مَرَّاتٍ لِمَنْ لَمْ يَرَنِي وَآمَنَ بِي». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ۱ او د حضرت ابو امامه رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ۲ مبارك بادي ده هغه سړي ته چاچې زه وليدم او په مايي ايمان راوړی ۳ او اووه ځله مبارك بادي ده

(۱) اخرجه البيهقی فی دلائل النبوة رقم الحديث ۶/ ۵۱۳

(۲) اخرجه احمد فی المسند:۵/۲۶۴

هغه سړي ته چې هغه زه نه يم ليدلي او په ما يې ايمان راوړی او څما د نبوت تصديق يې وکړو. (احمد)

**تسهيلات: قوله:** وَطُوبَى سَبْعَ مَرَّاتٍ:

**د سبع عدد مطلب:** امام طيبي رحمه الله فرمائي چه طوبیٰ جمله معطوفه ده او ماقبل باندې دَ دې عطف دې. عبارت به داسې شی "أي وقال رسول الله طوبیٰ لمن لم يرني وآمن بي سبع مرات" دلته دَ اووه دَ عدد د تعيين نه تکثير مراد دې تحديد نه.

**[٦٢٩١] د روسته زماني دامتيا نو فضيلت**

٦٢٩١-()[٩] [١] «وَعَنِ ابْنِ مُحَيْرِيزٍ قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي جُمُعَةَ رَجُلٍ مِنَ الصَّحَابَةِ: حَدِّثْنَا حَدِيثًا سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] قَالَ: نَعَمْ أُحَدِّثُكُمْ حَدِيثًا جَيِّدًا [٣] تَغَدَّيْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَمَعَنَا أَبُو عُبَيْدَةَ ابْنُ الْجَرَّاحِ [٤] فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَحَدٌ خَيْرٌ مِنَّا أَسْلَمْنَا وَجَاهَدْنَا؟ [٥] قَالَ: نَعَمْ قَوْمٌ يَكُونُونَ مِنْ بَعْدِكُمْ يُؤْمِنُونَ بِي وَلَمْ يَرَوْنِي». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن محريز تابعي رحمه الله بيان کوي ما ابوجمعه ته (چې صحابه و رضي الله عنه نه يوسړی دی) درخواست وکی چې زمونږ په مخکې څه داسې حديث بيان کی چې تاسو خپله د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکي نه اوريدلی وي [٢] حضرت ابوجمعه رضي الله عنه اوويل هو زه ستاسو مخکې يو ډيرښه حديث بيانوم چې ډيره فائده به درته ورسوي او تاسو ته به د خير او فضيلت بشارت هم عطا کړي [٣] نو واورئ يوه ورځ مونږ د سهار طعام باندې رسول الله ﷺ سره وو زمونږ په منځ کې مشهور صحابي حضرت ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه هم وو (چې عشره مبشره وو نه دی) [۴] ابوعبيده رضي الله عنه (د نعمت الهي د شکر او ذات رسالت پناه د انعام واحسان د ذکر په طور) اوويل يا رسول الله! آيا يو سړی زمونږ نه هم ښه کيدی شي مونږ خو هغه خلق يو چې هغوئ ستاسو په لاس مبارك ايمان او اسلام قبول کی او ستاسو سره اوږه په اوږه د دين د دښمنانو خلاف مو جهاد وکی [٥] حضور ﷺ په دې اوريدو سره وفرمايل هو ستاسو نه هم ښه خلق شته او هغوئ هغه خلق دي چې ستاسو نه وروسته پيدا کيږي او په ما باندې ايمان راوړي هرکله چې هغوئ به زه ليدلی هم نه يم دا روايت احمد او دارمي نقل کړی دی

**حل اللغات:-** ① حَدِيثًا جَيِّدًا: أَيْ حَسَنًا: ښائسته اوښه حديث. ② تَغَدَّيْنَا: أَيْ: أَكَلْنَا الْغَدَاءَ: يعنی د سحر روټئ يا خوراک مو اوخوړلو.

[١] وَرَوَى رَزِينٌ عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ مِنْ قَوْلِهِ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَحَدٌ مِنَّا إِلَى آخِرِهِ.

**ترجمه:** [١] او رزين دا روايت د حضرت ابوعبيده رضي الله عنه نه د هغه خپلو الفاظو سره تر آخر پورې نقل کړی دی يعنی د رزين نقل کړه حديث کې د ابن محريز او د ابوجمعه د مکالمې ذکر نه دی کړی.

---

[1] واحمد في المسند: ۴/۱۰۶

**تسهیلات: قوله:** رَجُلٌ مِنَ الصَّحَابَةِ

**د رجل په مصداق کښې درې اقوال:** دَدې "رجل" نه مراد یا خو انصاری صحابی دې چاته چه کنانی ونیلی شی دَ هغه په نوم کښې مختلف اقوال دی.

① حبیب بن سباع ② جنید بن سباع ③ بعضې ونیلی چه څه بل څه به وی دَ چاچه به دَ شام سره تعلق وی. هغه نې دَ صحابه کرامو ﷺ نه شمیرلې دې. (التعلیق الصبیح ۴۱۴/۷)

**قوله:** أَسْلَمْنَا وَجَاهَدْنَا قَالَ نَعَمْ

**ه مذکوره جملې په ترکیب کښې درې احتمالات:** امام طیبی رحمه الله فرمائی دَدې جملې په ترکیب کښې درې احتماله دی:

① معك: دَ جمله ثانیه نه حال دې. دغه شان په جمله اولی کښې یو معك محذوف دې عبارت به داسې شی "أي أسلمنا معك وجاهدنا معك" اوحرف استفهام محذوف دې.

② چه دا محض جمله استفهامیه وی او "أسلمنا وجاهدنا" حال وی دَ "نعم، بلی" په ځائی واقع وی

③ دلته استفهام دَ انکار په توګه وی او دَ "نعم بلی" په معنی کښې وی چه مونږ په تاباندې اسلام نه دې راوړې او تاسره مو جهاد نه دې کړې حضورپاك اوفرمائیل "نعم" (نو دلته "نعم" دَ بلی په معنی کښې دې).

**د ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه مقصد:** دَ ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه مقصد دَ خپل خان په باره کښې تعریفی کلمات نه دی بلکه دَالله پاك دَ نعمتونو اقرار دې. نو رسول کریم ﷺ اوفرمائیل روستو راتلونکی خلق به ایمان بالغیب راوړی او دَ اسلام دَ خدمات کولو دَ وجې به تاسو نه وړاندې ځی. واضحه دې وی چه دَ غیر صحابی فضیلت هم جزوی دې

**[۶۲۹۲] د محدثینو فضیلت**

۶۲۹۲-(۱)[۱۰] ① وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «إِذَا فَسَدَ أَهْلُ الشَّامِ فَلَا خَيْرَ فِيكُمْ ③ وَلَا يَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي مَنْصُورِينَ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ». ④ قَالَ ابْنُ الْمَدِينِيِّ: هُمْ أَصْحَابُ الْحَدِيثِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ① او د حضرت معاویه بن قره رحمه الله نه روایت دی چې هغه د خپل پلار نه نقل کوي هغه اوویل رسول الله ﷺ وفرمایل ② هرکله چې اهل شام تباه شي نو بیابه په تاسو کې خیر نه وي ③ او خما په امت کې به یوجماعت داسې وي چې د دین دښمنانو باندې غالب کیدو د پاره هغوی ته به د الله نصرت او تائید حاصل وي دې جماعت ته هغه سری هیڅ نقصان او ضرر نشي رسولی چې د هغوی تائید او اعانت ترك کړي ځکه چې په دې جماعت باندې د الله ﷻ بې انتهاء عنایت او مهرباني وي ددې پورې چې قیامت به قائم شي ④ او ابن مدیني رحمه الله چې د اکابرو محدثینو نه دی وایي د دې جماعت نه مراد ارباب حدیث دی دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي يې دي چې دا حدیث حسن صحیح دی

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۲۱۹۲

**حل اللغات:-** ①فَسَدَ: خراب شي یا تباه شي «دَعلم، عمل اوعقیدې په اعتبار سره چه کله اهل شام بربادشي بیا به تاسو ټولو کښې هیڅ ښیګړه نه وي. ②طَائِفَةٌ: ډله، جماعت. ③مَنْصُورِينَ: أَيْ: غَالِبِينَ عَلَى أَعْدَاءِ الدِّينِ: مدد به ورسره کولې یعني ددین په دشمنانو به غالب راځي. ④خَذَلَهُمْ: أَيْ: مَنْ تَرَكَ عَوْنَهُمْ: چه دهغه مدد او مرسته ئې پرېښودې وي.

**تسهیلات:**

**قوله: فَسَدَ أَهْلُ الشَّامِ:**

**د اهل شام د فساد څخه مراد:** چه کله اهل شام تباه اوبرباد شي نوبیا دَهغوی طرف ته هجرت کولو اوهلته سکونت اختیارولوکښې هیڅ ښیګړه نه وي. نن صبا په شام کښې د شیعه ګانو حکومت دې د بشارالاسدد وجې سنیان در په درخاورې په سر شو خصوصاً د حلب مسلمانانو باندې بمباریانې کیږي هغوی ترک ته هجرت کړې دې. الله تعالی دې د دوی ناصر او مددګار شي.

**قوله: تَقُومَ السَّاعَةُ:**

**د طائفه منصور محل وقوع:** یعني قرب قیامت پورې به دَاهل حق دا طائفه منصوره قائمه وي. ملاعلي قاري رحمه الله لیکلي دي چه دا څه ضروري نه ده چه داطائفه دې دَ شام په زمکه باندې وي بلکه دا دَمجاهدینو طائفه ده چه دَ دنیا په مختلف حصوکښې دَ الله تعالی دَ دین د سرلوړنې دَپاره جنګیږي. دا یوخطه سره خاص نه دی.

**قوله: هُمْ أَصْحَابُ الْحَدِيثِ:**

**د اهل حدیث په مصداق کښې دوه اقوال:** ① علي بن المدیني رحمه الله ډیر لوئی محدث دې هغه فرمائي چه دې طائفه نه مراد اصحاب حدیث دي.

② ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه دَ اصحاب الحدیث نه مراد هغه اهل حق دي چاچه دَاحادیثو تعلیم اوتعلم اوکړو اودَې په درس اوتدریس سره ئې خدمت اوکړو هغوی ټول عمرونه په دې کښې اولګول او په کتاب اوسنت باندې عمل اوکړو چه دَ اهل سنت والجماعة په نوم سره مشهوردي. لکه چه ملاعلي قاري رحمه الله دَ اصحاب الحدیث نه اهل سنت والجماعت مراد اخلي.

**[۶۲۹۳] امت محمدی ته د دري څیزونو معافي**

٦٢٩٣-() [١] ①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ②«إِنَّ اللَّهَ تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِي الْخَطَأَ وَالنِّسْيَانَ ③وَمَا اسْتُكْرِهُوا عَلَيْهِ» رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ.

**ترجمه:** ① او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② الله تعالی خما امت ته خطاء او نسیان معاف کړي دي ③ او د هغه ګناه نه یې هم ورته معافي عطا کړي ده چې په هغه کې په زبردستۍ مبتلاشوی وي. ابن ماجه اوبیهقي

[1] اخرجه ابن ماجه في السنن کتاب النکاح/ طلاق المکره والناسي (رقم-٢٠٤٥)

**حل اللغات:-** ① تَجَاوَزَ: أَيْ عَفَا: معاف کړی ني دی، ② الْخَطَأَ: مَالَمْ يَتَعَمَّدْهُ: هغه گناه چه بغير دقصد او ارادې نه ني کړی وی ③ النِّسْيَانَ: کوم کار چه په هيره باندې اوشی ④ اسْتُكْرِهُوا: دا دمجهول صيغه ده، أَيْ مَاطُلِبَ مِنْهُمْ مِنَ الْمَعَاصِي عَلَى وَجْهِ الْإِكْرَاهِ: يعنی هغه گناه چه په زور او زبردستئ پرې بل چا کړی وی

**تسهيلات:**

**قوله:** تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِي الْخَطَأَ:

**په خطا او اخطاء کښې فرق:** ① غيرارادی بغيردقصد اوارادې څخه چې دَيو سړی دَلاسه يوغلط کار اوشی هغې ته خطاء وائی. خطاء غلط دې دکوم ضدچه صحيح کاردې لکه چه يوسړی صحيح کارکول غوښتل په غلطئ سره په غلط کارکښې پريوتلو هغه معاف دې.

② بعضې علماؤ ليکلی دی چه په غير ارادی اوغيرقصدی توگه باندې کوم خراب کاراوشی هغې ته خطاء نه بلکه اخطاء وائی يعنی غيرارادی لغزش نوبيابه وئيلې شی چه د صيغه دَباب افعال نه استعمال شی.

**د خطا مثال:** بهرحال دَ مثال په توگه يوسړی ښکار ويشتلو مگر گولئ لاړه په يوانسان ولگيدو يانی توپک صفاکولوناڅاپی گولئ اوچليدله اوڅوك اولگيدلو اومړشو نودا خطاء ده

**خطاء سره د حقوق العباد عدم معافی:** په دې کښې چه کوم معاملات دَ حقوق الله دَ قبيل نه دی، هغه خو په دنيااوآخرت کښې معاف دی په هغې به نبول نه کيږی خوچه کوم معاملات حقوق العبادسره متعلق دی دهغې په دنيا کښې مواخذه او معاوضه ده هغه معاف نه دی لکه چه په قتل خطاء کښې ديت دې ددې پوره تفصيل دَ فقې په کتابونوکښې کتل پکاردی

**قوله:** وَالنِّسْيَانَ

**د نسيان څخه مراد:** نسان کښې هم تفصيل دې بعضې مقاماتوکښې نسيان معاف دې لکه چه په روژه کښې څه خوړل څکل اوکړې شی نو هغه معاف دی خوهم دغه نسيان يعنی هيره په مانځه کښې معاف نه دی لهذا دلته دَنسيان نه مطلق نسيان مرادنه دې

**قوله:** وَمَا اسْتُكْرِهُوا عَلَيْهِ:

**د جبر او اکراه په صورت کښې معافی:** يعنی که چا په چاباندې زور اوزبردستی اوکړه نوهغه سړې معاف دې په کوم چه زبردستی کړې شوې وی سره ددې چه هغه ته دَقتل او ضرب شديد دړکه هم نه وی ورکړې شوې بياهم دَ زبردستئ په نتيجه کښې چه چايوه گناه اوکړه هغه معاف ده

[ ٦٢٩٤ ] د دې امت د الله تعالى درجه فضيلت

٣٣ - ( ) [ ١ ] وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ أَنَّهُ «سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾ [آل عمران: ١١٠] [ ٢ ] قَالَ: أَنْتُمْ تُتِمُّونَ سَبْعِينَ أُمَّةً أَنْتُمْ خَيْرُهَا وَأَكْرَمُهَا عَلَى اللَّهِ تَعَالَى». [ ٣ ] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ - وَالدَّارِمِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه:** [ ١ ] او حضرت بهز بن حكيم بن معاويه بن حيده قشيري بصري رحمه الله دخپل پلار حضرت حكيم بن معاويه نه او هغه د بهز نيكه دادا او خپل پلار حضرت معاويه ابن حيده رضي الله عنه نه روايت كوي هغه د رسول الله ﷺ نه د الله تعالى د دې ارشاد كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ په تفسير كې دا فرمايل واوريدل [ ٢ ] چې اې اهلِ اسلامو! تاسو اويا امتيان پوره كوي او د الله تعالى په نزد تاسو د هغه ټولو امتونو نه ښه او قدرمن يې ، [ ٣ ] دا روايت ترمذي ابن ماجه او دارمي نقل كړې دى او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن دى .

**حل اللغات:-** ① تُتِمُّونَ: أَيْ تُكْمِلُونَ وَتُوَفُّونَ: پوره كوئ به تاسو

**تسهيلات:**

**قوله:** كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ:

**امت دوه قسمونه:** ① امت دعوت : دَدې نه خه هغه ټول كافران دى چاته چه دَاسلام دعوت وركول په مسلمانانو باندې لازم دى

② امت اجابت :دَدې نه خه هغه ټول مسلمانان دى چاچه اسلام قبول كړې دې اوپه دې باندې قائم دى. په زيربحث حديث كښې دَ امت اجابت دَ صفاتو بيان دې.

**دزمانې په اعتبار سره دخطاب په تعلق كښې احتمالات:** ملاعلى قارى رحمه الله دَدې حديث په شرح كښې څو احتمالات بيان كړى دى هغه فرمائى

① دَالله تعالى دَعلم قديم مطابق دَ روز اول نه دا امت دَ رشد اوهدايت په خصوصى صفاتو سره پيدا كړې شوې وو دكوم ظهورچه دَ رسول الله ﷺ دَ تشريف راوړونه پس اوشو لكه چه دَدې خطاب تعلق تيرشوې زمانې سره دې صيغه هم دَ ماضى ده مطلب داشوچه دَ الله تعالى په قديم فيصله كښې تاسو دَ اول نه بهترين امت گرځولې شوې وئ

② لوح محفوظ كښې دَدې امت دَ ښيگړې او بهتر امت كيدو ذكر دَ اول نه شوې وو چه دَداسې ښه صفت والا امت راتلونكې دې.

③ په تيرو شوو ټولو امتونو كښې دَهميشه نه امت محمديه كوم ذكرخير كيدلو هغه مراددې. مطلب دا شوچه دَ كنتم صيغه دَماضى بعيد دَپاره استعمال كړې شوې ده ليكن

---

[١] اخرجه الترمذى فى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة آل عمران (رقم-٣٠٠١) السنن وابن ماجه فى كتاب الزهد/باب صفة أمة محمد صلى الله عليه وسلم (رقم-٤٢٨٨)

په دې کښې استمرار اودوام دې انتقطاع نشته دې لکه څنګه چه ﴿وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ کښې استمرار او دوام دې انتقطاع نشته دې
په دې وجه بعضې مفسرينو کنتم کښې کان دَ صار په معنی کښې اخستې دې اوبعضې کنتم دَ انتم په معنی کښې اخستې دې.

**د امة په مصداق کښې درې اقوال:** ① دَدې اعزازی خطاب مصداق دَدې امت ټول مسلمانان دی لکه چه دَدې امت ټول مسلمانان "خیرامة" کښې داخل دی. دَ زیر بحث حدیث ظاهری مفهوم هم په دې باندې دلالت کوی.

② دَدې مصداق صرف مهاجرين دی.

③ دَدې مصداق دَدې امت شهدا علماء اوخصوصی صلحاء خلق دی

**راجح قول:** بهرحال عام شارحینو دَدې حدیث عموم خوښولوسره اختیارکړې دې اووئیلی دی چه صحیح ایمان، صحیح عقیده اوصالح اعمال باندې قائم ټول مسلمانان دَدې حدیث اودَدې آیت مصداق دی. لکه چه دا فضیلت عام دې شرط دادې چه امت په خپله اصل ذمه وارئی باندې قائم وی چه کامل ایمان او مکمل جهاد دې.

**قوله:** سَبْعِينَ أُمَّةً:

**د سبعين عدد په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① دَ اويا عدد دَتحديد دَپاره نه دې بلکه دَتکثيردَپاره دې مطلب دا چه تاسو دَ ېې شميره پخوانوامتونو دَتکميل دَپاره راغلئی يعنی لکه چه څنګه چه دټولو انبياء کرامو دَپاره خاتم النبيين جوړيدوسره راغلې يم دغه شان تاسو دَ ټولو امتونودَپاره خاتم امت جوړيدو سره راغلئی

② ملاعلی قاری رحمه الله داهم فرمائی که چرې دَدې نه هم اويا امتونه مراد وی نوبيابه دَدې نه لوئی لوئی اومشهور امتونه مرادوی دکوم په ضمن کښې چه واړه امتونه خپل پخپله داخل شی يعنی د لويو امتونو ذکر ئې اوکړو اوواړه امتونوذکر ئې پريخودو

**آخری خواست:** الله تعالی دې تسهيلات شرح مشکاة زما دپاره د آخرت ذخيره اوګرځوی زه ددې دولسم جلد څخه نن د خيالی په ورځ د مابنام مانخه څخه پس په شل منټه دپاسه اووه بجې فارغ شوم الله تعالی دې ورته مقبوليت ورکړی او د عالمانو او طالبانو دپاره دې د فائدې اخستلو ذريعه وګرځوی آمين

.......(الحمدلله! دولسم جلد ختم هو).......